يَهْدِىٓ اِلَى الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ

په پښتو ژبه کښې اولنۍ جامع مفصل، عام فهم او تحقیقي انداز
کښې علمي تحفه

# رُشْدُ الْقُرْآن

فِي

# تَفْسِیْرِ آیَاتِ الْقُرْآن

څلورم جلد

مشتمل دے د سورۃ بنی اسرائیل څخه اخلے د سورۃ مومنون پورے


مؤلف

شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا اُسَیْدُ الله صاحب هزاروی رحمة الله علیه

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿يَهۡدِيٓ إِلَى ٱلرُّشۡدِ فَـَٔامَنَّا بِهِۦۖ وَلَن نُّشۡرِكَ بِرَبِّنَآ أَحَدٗا﴾

په پښتو ژبه کښې آسان. عام فهم او تحقیقی انداز کښې. علمی او الهامی نکاتو باندې مشتمل. لاجوابه علمی تحفه

# رشد القرآن

## في تفسير آيات القرآن

## څلورم جلد

له ابتداء د سورة بنی اسرایل نه تر آخر د سورة مومنون پورې

تالیف شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا أُسید الله صاحب رحمة الله تعالی علیه

## د طباعت ټول حقوق محفوظ دي


**د کتاب نوم:** رشد القرآن «خلورم جلد» فی تفسیر آیات القرآن

**تالیف:** شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا أسید الله صاحب رحمة الله تعالی علیه

**ضبط وترتیب:** مولاناثناء الله صاحب 03449250706

**تصحیح ونظرثاني:** مولانا تقی الله صاحب03005774523

**تعداد:** ۵۰۰ جلده

**طبع** دوم

**د ملاویدو پتې:**

۱ - مکتبه رشیدیه جدید قصه خوانی پښور

۲ - مکتبه دیوبند، کمال پلازه کوهاټ

۳ - مکتبه رشیدیه، اکوړه خټک

۴ - مکتبه علمیه اکوړه خټک

| ركوع | سورة بنى اسرائيل | آيتونه |
|---|---|---|
| ١٢ | بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ | ١١١ |
| | خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکې دې شروع کوم | |

## رقمها حسب التسلسل (١٧) وحسب النزول (٥٠)

سورة بنی اسرائیل مکی سورة دې سیوا دځوایتونو نه (١١٠، ١١١) ایتونو باندی مشتمل دې په ترتیب قرانی کښ ولسم اوپه ترتیب نزولی کښ پنځوستم نمبرسورت دې دسورت القصص نه وروستو اودسورت یونس نه مخکښ نازل شویدې زمانه دنزول ئی دور اخیردمکي معظمي دې دهجرت نه یوکال مخکښ نازل شویدې، کل کلمات ئی (٥٣٣) اوکل حروف ئی (٦٤٦٠) دې.

**ربط**: ربط اسمی دسورت النحل سره دادې چې په سورت النحل کښ نحل ته دالهام خیرذکروو اوپه سورة بنی اسرائیل کښې انسانانوته دسبل الخیرذکردې چې ﴿إِنَّ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانَ يَهۡدِي لِلَّتِي هِيَ أَقۡوَمُ﴾ (ایت نمبر ٩).

ربط مضمونی ئی دماقبل سره دادې چې په سورة النحل کښ دمشرکینو مطالبه دعذاب پوره کیدلوذکروو چې دوئ به حضورﷺ ته وئیل چې کوم عذاب نه ته مونږ یره وې هغه عذاب نه واقع کیږي نو اللهﷻ په دوئ باندی قحط سالی مسلطه کړه چې دهغې ذکرپه (١) سورة النحل ایت نمبر (١١٢) «ضرب الله مثلاقرية الخ» کښ تیرشویدې اوپه سورة بنی اسرائیل کښ ددوئ مطالبه په باره دمعجزي کښ پوره کیدلوذکردې چې ستاسومطالبه دیوعظیم الشان معجزي وه نوهغه پوره شوه اوواقعه دمعراج یوه عظیم الشان معجزه ده، که بیاهم تاسوتوحیدنه منئ نوهلاک به شئ (جواهرالقران) اودغه (٢) شانتی مخکښ سورت کښ اثبات دتوحیداوشوپه اکثردلائل عقلیوسره اوپدیکښ اثبات دتوحیدکیږي په عظیم معجزي سره او (٣) دغه شانتی په سورت النحل کښ تخویف ذکروو دعذاب نه، په سورة بنی اسرائیل کښ ذکرداسبابو دعذاب کیږي، چې هغه خلور (٤) اسباب دي (١) توحیدنه انکارکول (٢) معجزاتونه انکارکول (٣) اخراج الرسل (٤)

استهزاء بالرسل او (۴) دغه شانتی دسورة النحل په اخیرکښ دصبرتعلیم ورکړې شوې وو اوپه سورة بنی اسرائیل کښ انجام دَ صبر اودهغې نمونې بیانیږي او (۵) دغه شانتی دسورة النحل په اخیرکښ په طریقه ددعوت اوتبلیغ کښ حکمت ذکروو په سورت بنی اسرائیل کښ دهغې حکمت تفسیرذکرکیږي چې ﴿وَقُل لِّعِبَادِي يَقُولُوا الَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾ سورة بنی اسرائیل ایت نمبر ۵۳

**دعوه سورت**: دسورت مرکزی دعوه هغه اثبات دتوحید دې اودادعوه دسورت په اخیرکښ ذکرکیږي چې ﴿قُلِ ادْعُوا اللَّهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمَٰنَ﴾ بنی اسرائیل ایت نمبر ۱۱۰ اوورسره ورسره ذکردڅلور (۴) اسبابودَعذاب هم بیانیږي لپاره دتحذیراوطرق دفعیه دعذاب هم ذکرکیږي.

**خلاصه**: دَسورت دَ مضامینومختصره خلاصه داده چې پدې سورت کښ یودلیل وحی. شپږدلائل عقلیه، څلوردلائل نقلیه، پنځه ځلې تخویف دنیوی، پنځه ځلې تخویف اخروی. څلورځلې پکښې بشارتونه، اته ځلې پکښې زجرونه، څلورځلې په کښ شکوی دیوسوال جواب. یودلیل عقلي برای اثبات حشراوڅلورپکښ امورمصلحه ذکرکیږي اودغه شانتی بعض ایات معجزه اوپه مینځ کښ اموردفعیه دَعذاب اوتفسیردطریقې دَتبلیغ هم بیانیږي او اعلان کیږي چې دخپل اباتی دشمن شیطان اودَابلیس دَلمسه نه ځان بچ اوساتئ.

تفصیل ئې داده چې په ایت (نمبر ۱) ﴿سُبْحَانَ الَّذِي﴾ کښ اثبات ددعوې اولا په دلیل وحی سره کیږي اوبیادلیل عقلي ذکرکیږي په ﴿إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ سره اوذکردَمعجزه اسراهم ذکرده په ایت نمبر ۲، ۳ ﴿وَآتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ﴾ نه تر ﴿إِنَّهُ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا﴾ پورې دلیل نقلي ذکرکیږي دحضرت موسی علیه السلام نه، سره دترغیب نه توحیدنه، دایت نمبر ۴ نه تر ۸ پورې ﴿وَقَضَيْنَا إِلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ نه تر ﴿لِلْكَافِرِينَ حَصِيرًا﴾ پورې تخویف دنیوی نمونه ذکرکیږي ایت نمبر ۹ ﴿إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ﴾ کښ ذکردمعجزې دقرآن دې سره دبشارت اخروی نه، په ایت نمبر ۱۰ ﴿وَأَنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ کښ تخویف اخروي ذکرکیږي، په ایت نمبر ۱۱ ﴿وَيَدْعُ الْإِنسَانُ﴾ کښ شکوه اوزجرذکرکیږي په طلب کولودشرسره. په ایت ۱۲ ﴿وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ﴾ کښ دویم دلیل عقلي

ذکر کیږي، په ایت نمبر ۱۳، ۱۴، ۱۵ ﴿وَكُلَّ إِنسَـٰنٍ أَلْزَمْنَـٰهُ﴾ نه تر ﴿حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا﴾ پورې کښې تخویف اخروي سره دَ حکمت دارسال رسل بیانیږي، په ایت نمبر (۱۶، ۱۷) ﴿وَإِذَآ أَرَدْنَآ﴾ نه تر ﴿مَحْظُورًا﴾ پورې کښې دکفارو دیو اعتراض جواب ذکرکیږي سره دتخویف اوبشارت اخروي نه. په ایت نمبر ۲۱ ﴿ٱنظُرْ كَيْفَ﴾ کښې ترغیب الی الاخرة بیانیږي، دَایت نمبر ۲۲ نه تر ۳۸ ﴿لَّا تَجْعَلْ مَعَ ٱللَّهِ﴾ نه تر ﴿عِندَ رَبِّكَ مَكْرُوهًا﴾ پورې اعاده دتوحید کیږي ثانیا او امور ثلاثه دفعیه دعذاب بیانیږي چې (۱) شرک نه ځان بچ کول دي ایت نمبر ۲۲ (۲) دویم احسان دمخلوق سره ایت نمبر ۲۳ نه تر ۲۹ (۳) عدل کول او ظلم نه ځان بچ کول. ایت نمبر ۳۱ نه تر ۳۸ او په مینځ کښې په ایت نمبر ۳۰ ﴿إِنَّ رَبَّكَ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ﴾ کښې دریم عقلي بیانیږي، په ایت نمبر ۳۹ ﴿وَلَا تَجْعَلْ﴾ کښې ثمره دماقبل ذکرکیږي سره داعادې دمسئله توحید نه په دریم ځلي، په ایت نمبر ۴۰، ۴۱، ۴۲ ﴿أَفَأَصْفَىٰكُمْ﴾ نه تر ﴿ذِى ٱلْعَرْشِ سَبِيلًا﴾ پورې کښې زجربیانیږي په شرک بالملئکة او په نفرت دقرآن سره، په ایت نمبر ۴۳، ۴۴ ﴿تُسَبِّحُ لَهُ﴾ نه تر ﴿حَلِيمًا غَفُورًا﴾ پورې مسئله دتوحید ذکرکیږي چې هرشی که هغه نباتات دي، جمادات دي یاوحوش اوطیوردي داټول دَالله ﷻ پاکی بیانه وي، په ایت نمبر ۴۵، ۴۶، ۴۷، ۴۸ ﴿وَإِذَا قَرَأْتَ﴾ نه تر ﴿فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا﴾ پورې دنه منلووجوهات سره دڅلوروزجرونوبیانیږي (۱) زجرپه انکاردَقرآن سره (۲) زجرپه انکاردَتوحید سره (۳) زجرپه انکاردَرسول سره (۴) زجرپه انکاردَبعث سره، په ایت نمبر ۴۹ ﴿وَقَالُوٓا۟ أَءِذَا كُنَّا﴾ کښې شکوه ذکرکیږي، په ایت نمبر ۵۰، ۵۱ ﴿قُلْ كُونُوا۟﴾ نه تر ﴿أَن يَكُونَ قَرِيبًا﴾ پورې جواب شکوه ذکرکیږي، په ایت نمبر ۵۲ ﴿يَوْمَ يَدْعُوكُمْ﴾ کښې تخویف اخروي ذکرکیږي، په ایت نمبر ۵۳، ۵۴ ﴿وَقُل لِّعِبَادِى﴾ نه تر ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَـٰكَ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا﴾ پورې طریقه دتبلیغ ذکرکیږي، په ایت نمبر ۵۵ ﴿وَرَبُّكَ أَعْلَمُ﴾ کښې څلورم دلیل عقلي بیانیږي، په ایت نمبر ۵۶، ۵۷ ﴿قُلِ ٱدْعُوا۟ ٱلَّذِينَ﴾ نه تر ﴿كَانَ مَحْذُورًا﴾ پورې دلیل نقلي بیانیږي دانبیاء سابقین نه او دَ ملائکو نه. په ایت نمبر ۵۸ ﴿وَإِن مِّن قَرْيَةٍ

﴾ کښې تخویف دنیوی ذکر کیږي.ایت نمبر ۵۹. ۶۰ دریم ایت د معجزه دي په یکښې دویم سبب دنزول عذاب ذکر کیږي چې هغه انکاردمعجزاتونه چې قوم ثمود دناقې معجزې نه انکارکړې وو اومشرکینودَمعراج دواقعی تسلیم کولونه انکاراوکړو.دایت نمبر ۶۱. نه تر ۶۵ ﴿وَإِذْ قُلْنَا﴾ نه تر ﴿وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ وَكِيلًا﴾ پوري واقعه دحضرت ادم علیه السلام اوابلیس ملعون بیانیږي لپاره ددې چې شیطان ستاسو ازلي دشمن دې دَده لمسه مه منئ،په ایت نمبر ۶۶ ﴿رَّبُّكُمُ ٱلَّذِي يُزْجِي﴾ کښې پنځم دلیل عقلي ذکر کیږي،په ایت نمبر ۶۷ ﴿وَإِذَا مَسَّكُمُ﴾ کښې زجردې په مشرکینوباندی په ایت نمبر ۶۸، ۶۹ ﴿أَفَأَمِنتُمْ﴾ نه تر ﴿عَلَيْنَا بِهِۦ تَبِيعًا﴾ پوري تخویف دنیوي دې په ایت نمبر ۷۰ ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا﴾ کښې ترغیب الی التوحیددې په ذکردنعمتونوسره،په ایت نمبر ۷۱. ۷۲ ﴿يَوْمَ نَدْعُوا﴾ نه تر ﴿وَأَضَلُّ سَبِيلًا﴾ پوري بشارت سره دتخویف اخروي بیانیږي. دَایت نمبر ۷۳ نه تر ۷۵ ﴿وَإِن كَادُوا﴾ نه تر ﴿عَلَيْنَا نَصِيرًا﴾ پوري تحذیردې دَمداهنت نه په ایت نمبر ۷۶. ۷۷ ﴿وَإِن كَادُوا﴾ نه تر ﴿تَحْوِيلًا﴾ پوري دریم سبب دعذاب بیانیږي چې هغه اخراج دَرسولانودې،دایت نمبر ۷۸ نه تر ۸۱ ﴿أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ﴾ نه تر ﴿زَهُوقًا﴾ پوري خلوراداب اوامورمصلحه بیانیږي،په ایت نمبر ۸۲ ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ ٱلْقُرْءَانِ﴾ کښې ترغیب الی القرآن بیانیږي،په ایت نمبر ۸۳، ۸۴ ﴿وَإِذَآ أَنْعَمْنَا﴾ نه تر ﴿هُوَ أَهْدَىٰ سَبِيلًا﴾ پوري زجردې په سبب داعراض کولوسره،په ایت نمبر ۸۵، ۸۶ ، ۸۷ ﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ﴾ نه تر ﴿عَلَيْكَ كَبِيرًا﴾ پوري زجراوشکوه ده په سوال عنادباندی په ایت نمبر ۸۸ ﴿قُل لَّئِنِ ٱجْتَمَعَتِ﴾ کښې تحدي ده لپاره دَ اثبات دصدق دقرآن،دَ ایت نمبر ۸۹ نه تر ۹۳ ﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَا﴾ نه تر ﴿بَشَرًا رَّسُولًا﴾ پوري زجرونه اوشکوه ذکرکیږي سره دَجواب شکوه نه په ﴿سُبْحَانَ رَبِّي هَلْ كُنتُ﴾ سره .په ایت نمبر ۹۴ ﴿وَمَا مَنَعَ ٱلنَّاسَ﴾ کښې شکوه بیانیږي چې کافرانوبه په رسالت

اوبشریت کښ منافات کنړلو ،په ایت نمبر۹۵ ، ۹۲ ﴿قُل لَّوْ كَانَ ﴾ نه تر ﴿خَبِيرًا بَصِيرًا ﴾پورې دهغې جواب ذکرکيږي،په ایت نمبر۹۷ ، ۹۸ ﴿وَمَن يَهْدِ اللَّهُ ﴾نه تر﴿خَلْقًا جَدِيدًا ﴾پورې تخویف اخروي ذکرکيږي،سره دَ سبب دانکاردَبعث نه. په ایت نمبر۹۹﴿أَوَلَمْ يَرَوْا ﴾ کښ دلیل عقلي ذکرکيږي لپاره داثبات دَ بعث، په ایت نمبر ۱۰۰ کښ﴿قُل لَّوْ أَنتُمْ تَمْلِكُونَ ﴾کښ شپږم دلیل عقلي ذکرکيږي په توحیدباندی،دایت نمبر۱۰۱ نه تر۱۰۴ ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا ﴾نه تر﴿لَفِيفًا﴾پورې خلورم سبب دَعذاب ذکرکيږي چې هغه استهزاء باالرسل ده اومثال ئې ذکرشویدې په واقعه دَ حضرت موسی علیه‌السلام اوفرعون سره،په ایت نمبر۱۰۵ ، ۱۰۲ ﴿وَبِالْحَقِّ أَنزَلْنَاهُ ﴾نه تر﴿تَنزِيلًا ﴾پورې ترغیب الی القرآن ذکرکيږي،په ایت نمبر۱۰۸،۱۰۷ ، ۱۰۹﴿قُلْ آمِنُوا ﴾نه تر﴿خُشُوعًا﴾پورې دريم دلیل نقلي ذکرکيږي په توحیدباندی دمؤمنین سابقین نه په ایت نمبر۱۱۰ ، ۱۱۱ ﴿قُلِ ادْعُوا اللَّهَ ﴾نه تر﴿تَكْبِيرًا﴾پورې په اخیرکښ دعوه دسورت بطورخلاصه بیانیږي.

| سُبْحَانَ | الَّذِي | أَسْرَىٰ | بِعَبْدِهِ | لَيْلًا | مِّنَ | الْمَسْجِدِ | الْحَرَامِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| [1] پاك دې هغه ذات چې بوتلې ئې ووبنده خپل په يوه حصې دشپې کښ دمسجدحرام نه | | | | | | | |
| إِلَى | الْمَسْجِدِ | الْأَقْصَى | الَّذِي | بَارَكْنَا | حَوْلَهُ | لِنُرِيَهُ | |
| ترمسجداقصی پورې هغه چې برکت اچولې دې مونږه چاپیره دهغې نه. لپاره ددې چې اوښایومونږه ده ته [2] | | | | | | | |
| مِنْ | آيَاتِنَا | ۚ | إِنَّهُ | هُوَ | السَّمِيعُ | الْبَصِيرُ | ① |
| ځنې علامات دقدرت خپل | | | [3] بیشکه الله ﷻ | همدې | اوریدونکې | لیدونکې دې | |

[1] اشاره برای دلیل وحی واول ایت معجزه

[2] نظاره قدرت باری تعالی یاهلاکت مشرکین دربدربعد ازانکارمعجزه اسراء

[3] اول دلیل عقلي

﴿سُبْحَنَ﴾د ااول ایت معجزه دې پدیکښ دعوه دسورت هم ذکرشویده چې توحید دې اودیته دلیل وحی هم وئیلی کیږي اودهغې دَاثبات لپاره معجزه دَ اسراء ذکرشویده.او(سبحن) د راجح قول مطابق مصدر دمجردو دې اوفعل ورله مقدردې دمزیدونه.اوتقدیردعبارت داسی دې چې (سبحوا سبحانا الذی الخ) اوحذف دَ عامل یاسماعي دې لکه دامشهوردې اویاقیاسي دې لکه دامسلک دشیخ رضي دې اولفظ دسبحن اکثرپه هغه امورو کښ استعمالیږي چې هغه عظام اوحیران کن وي اوهرکله چې واقعه دَ معراج یوه عظیم واقعه وه نوددې وجه د دې سورت شروع هم به لفظ دسبحن سره اوشو.

**مباحثه متعلقه بواقعه معراج:** دَمعراج متعلق یوڅومباحث دی(۱)تحقیق دلفظ معراج اواسراء(۲)تاریخ اومقام دَواقعه معراج(۳)معراج جسماني وو یاروحاني فقط(۴) دَ منکرینود شبهاتوجوابونه.

(۱)اسری دَاسراء نه مشتق دې دشپې بوتللوته وئیلی کیږي اومعراج دعروج نه دې په بره خیژولوته وئیلی کیږي اوپه اصطلاح دعلماؤکښ،دَمکې نه بیت المقدس پوري دَحضورﷺ دشپې بوتلل پطریقه دَمعجزې سره، ته اسراء وئیلی کیږي اودَبیت المقدس نه په بره ترسدرة المنتهی پوري سیاحت ته معراج وئیلی کیږي اوهرکله چې دَمکې نه تربیت المقدس پوري سفرپه براق باندی وو اوبیاپه بره سیاحت دسیړیو(پاوړیو)په ذریعه وو نوددې وجه نه اول سفرته اسراء اودویم ته معراج وئیلی کیږي اگرچه کله کله دَدواړوسفرونو په مجموعی باندی اطلاق دَاسراء اویامعراج کیږي.

(۲)معراج واقعه دحضورﷺ دمعجزاتو نه یوه عظیمه معجزه ده داکله واقع شوي ده؟ په تعین کښ ئی تقریباًسو(۱۰۰)پوري اقوال دعلماؤنه مروي دي.پدې اتفاق دې چې داواقعه قبل الهجرت وه خودهجرت نه څوکاله مخکښ وه دَدې تعیین ندې شوې،راجح قول دادې چې دَ حضرت خدیجة الکبریٰ رضي الله عنها دَ وفات نه وروستو اودَ بیعت العقبة نه مخکښ دَطائف دَسفرنه بعدمعراج واقع شویدې اوحضرت خدیجة رضي الله عنها دَحضورﷺ سره په شعب ابی طالب کښ موجوده وه دَشعب ابی طالب نه دَوتلونه ورستودحضرت خدیجة رضي الله عنها انتقال شویدې اوحضورﷺ دَشعب ابی طالب نه په(۱۰)نبوی کښ وتلې وونوددې وجه زیات راجح قول دادې چې دَمعراج

سفرسن(۱۱)نبوي دَسفرطائف نه وروستوواقع شویدي اوبعضوسن (۱۲)نبوی ته ترجیح ورکړي ده اودَمیاشتی په تعین کښ پنځه(۵)اقوال مشهوردي.ربیع الاول.ربیع الاخر.رجب. شوال. رمضان.زیات مشهورقول دادي چې دَ رجب په وویشیتم(۲۷)باندی شویدي

دَمعراج واقعه په قرآن مجیدکښ په دوه مواضعوکښ ذکرشویده په دي سورة کښ اوپه سورة النجم کښ لیکن په دواړوخاینوکښ مختصره ده په احادیثوکښ داپه تفصیل سره ذکر شویده،هغه صحابه کرام رضی الله عنهم چي دهغونه واقعه معراج نقل شویده دهغوتعداد تقریباً خلورخلویښت(۴۴)ته رسیږي،امام ابن کثیر رحمه الله په خپل تفسیرکښ داواقعه په پوره تفصیل سره ذکرکړیده اوپنځویشت(۲۵)صحابه کرامونومونه ئی ذکرکړیدي چې دَهغو نه داواقعه مروي ده اوامام بخاري رحمه الله په خپل صحیح کښ په متعددوځینوکښ امام مسلم رحمه الله په کتاب الایمان اوامام نسائی رحمه الله په کتاب الصلوة کښ ذکر کړیده دټولو خلاصه داده چې حضور ﷺ یوه شپه دَ حضرت ام هانی رضی الله عنها په کورکښ ارام فرمائیلوچې دکورچت سوري شواوحضرت جبرئیل علیه السلام سره دنورو فرشتوراغي اوحضور ﷺ یې دخان سره مسجدحرام ته بوتللواوحضور ﷺ هلته په حطیم کښ سملاستو،بیاحضرت جبرئیل علیه السلام اومیکائیل علیه السلام حضور ﷺ بیرزمزم ته بوتللو اوهلته ئی سملولو ،سینه مبارکه ئی ورله سیری کړه زړه مبارک ئی ورله راویستلو اودزمزم وریه اوبوسره ئ وینځولو اوبیا دسرو زرو لوخی چي دَایمان اوحکمت نه ډک وو راوړي شودَ حضور ﷺ زړه ئ نه ډک کړو اوسینه مبارکه ئی په خپل اصل حالت باندی ټهیک کړه اوبیابراق راویستلي شوچې په هغی باندی جناب رسول کریم ﷺ ترمسجداقصی پوري سفراوکړو،په مسجداقصی کښ انبیاء کرام حضور ﷺ ته په انتظاروو حضور ﷺ براق یوکانړی ته اوتړلو اوحضرت جبرئیل علیه السلام سره مسجداقصی ته لاړلو اوهلته یومؤذن اذان اوکړو اوحضرت جبرئیل علیه السلام حضور ﷺ دَلاس مبارک نه اونیسواوامامت ته ئی مخکی کړواوبعض علماء فرمائی چې واقعه دامامت پس دراکوزیدلودَاسمانونونه ده.اوبیادَغوره قول مطابق د جنت نه دزمردااوزبرجدو سیړئی(پاوړئی) راوړي شوې اوپه هغې سره حضور ﷺ اسمانونوته اوختلو اودَسیړیوښی اوچپ طرف ته ملائک جلوه وو.اول اسمان ته په رسیدوسره اودهغې دَداروغې سره خبروکولونه پس دروازه کولاؤکړې شوه هلته دَ حضرت ادم علیه السلام سره سلام کلام اوملاقات اوشواوهلته ئی دَحضرت ادم علیه السلام ښي طرف ته اصحب الیمین یعني جنتیان اولاد اوکتلو په صورمثلیه سره اوچپ طرف ته جهنمیان اوکتلواوپه دویم اسمان کښ دَحضرت یحیی علیه السلام

اوعیسی علیہ السلام سره سلام کلام اوملاقات اوشوپه دریم آسمان کښې د حضرت یوسف علیہ السلام اوپه
څلورم کښې د حضرت ادریس علیہ السلام .پنځم کښې د حضرت هارون علیہ السلام اوشپږم کښې د حضرت
موسی علیہ السلام اوپه اوم اسمان کښې دحضرت ابراهیم علیہ السلام سره ملاقات اوشووچې هغه بیت
المعمورته تکیه لګولی وه اوبیاحضور ﷺ سدرة المنتهی ته اوچت کړې شو اوهلته حضور ﷺ
حضرت جبرئیل په خپل اصل صورت کښې اوکتلو بیاحضور ﷺ مشاهده دجنت اود جهنم هم اوکړه
اومختلف قسم خلک ئې په جهنم کښې په مختلفوعذابونوسره اوکتلو چې دهغې تفصیل په
احادیثوکښې ذکردي، بیاحضور ﷺ صریف الاقلام مقام ته عروج اوشواوبیامقام دصریف الاقلام
نه حضور ﷺ په یو(رفرف) باندې کینولې شواوحجابات طی کولونه پس مقام د (دنی فتدلی فکان قاب
قوسین اوادنی) ته اورسیدلو اودیدارالٰهی سره مشرف کړې شواود الله ﷻ دیدارئې په رؤیت بصري
سره اوکړو اوالله ﷻ ته ئې تحفه د توحیدپیش کړه چې(التحیات لله والصلوة والطیبات)نوالله ﷻ
ورته په بدله کښې اوفرمائیل(السلام علیک ایهاالنبی ورحمة الله وبرکاته) نوحضور ﷺ بطور درخواست
اوفرمائیل(السلام علینا وعلی عبادالله الصلحین) اوالله ﷻ په تحفه کښې پنځوس مونځونه ورکړل په
واپسئ کښې په موسی علیہ السلام باندې راغې نوموسی علیہ السلام ورته اوفرمائیل چې ستاامت دامونځونه
نشي ادا کولې اوواپس لاړشه په الله ﷻ باندې داکم کړه،نود حضرت موسی علیہ السلام باربار
اصرارسره پنځه پنځه مونځونه کمیدل حتی چې پنځه مونځونه پاتې شو حضور ﷺ
صبرشواوحکم راغې چې دا دې پنځومونځونوبدله اواجربه هغه میلاویګې چې کوم په پنځوس
باندې میلاویده حضور ﷺ چې کله واپس راغې اوخلکوته ئې قصه دمعراج اوکړه
نوکافروتکذیب اوکړو اواستهزاء ئې شروع کړه اواعتراضات ئې شروع کړل،څنې کافرانواوئیل
چې بیت المقدس څنګه دې؟ نوحضور ﷺ ته بیت المقدس مخې ته راوړې شواوحضور ﷺ دوئ ته
ټول صفات د بیت المقدس بیان کړل چې دوئ ئې تصدیق اوکړو .ابوجهل حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته
دمعراج واقعه بیان کړه چې تاسوبه داهم منئ چې دمکې نه بیت المقدس ته اوبیااسمانونوته
اوبیاجنت اوجهنم سیروغیره چې داټول دشپې په یوه حصه کښې شویدي؟ نوحضرت ابوبکر رضی الله عنه
ورنه جواب ورکړو چې فرشته په لږ وخت کښې داسمان نه راځې نوحضور ﷺ د هم لاړشي
آسمانونوته دا خود عقل نه بعیده نده.

(۳) **معجراج جسماني يافقط روحاني وو** دَجمهورسلف. وخلف عقيده داده چې دحضورﷺ په حالت دبيدارئ كښ روح مع الجسد معراج شويدې. دَځنې صحابه كرام مثلاحضرت عائشهؓ حضرت معاويهؓ اوامام بيهقي دحضرت ابن مسعودؓ نه روايت نقل كړيدې چې دحضورﷺ معراج صرف روحاني وويعنى خوب كښ حضورﷺ تلې وو اوجسماني نوو. اودغه شان تې په تابعين كښ دَحسن بصريؒ نه هم داسي نقل شويدې، اواستدلال كوي دَدې سورت په آيت نمبر ۲۰ ﴿وَمَا جَعَلْنَا ٱلرُّءْيَا ٱلَّتِىٓ أَرَيْنَـٰكَ إِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ﴾ سره ليكن جمهورعلماء ددينه مختلف جوابونه كړيدې

(۱) بعض علماء فرمائى چې دَدې ايت تعلق دمعراج سره ندې بلكه پدې ايت كښ دبدر دخوب تذكره ده چې حضورﷺ ته په خوب كښ دَرؤسامشركين 'مقتولين' ځايونه په خوب كښ ښكاره كړې شوى وو.

(۲) بعض علماء فرمائى چې پدې ايت كښ واقعه حديبيه دَهغې خوب ذكردې چې حضورﷺ صحابهؓ ته اوفرمائيل چې ماخوب كتلې دې چې عمره ادا كوو اوبيادَعمري په ارادې دَ صحابه كرامؓ ديوجماعت سره روان شو، چې په هغه موقعه كښ واقعه حديبيه مخې ته راغله.

(۳) حضرت ابن عباسؓ دَدې ايت په تفسيركښ فرمائى (رؤياعين اريهارسول اللهﷺ) يعنى رؤيا، په معنى دَرؤيت بصري سره دې چونكې واقعه معراج يوعجيب اوغريب واقعه وه اوپدې كښ حضورﷺ مختلف عجائب اوغرائب مشاهده كړې وو، نودَدې وجه نه تعبيرورنه په رؤياسره اوشوچې اكثراستعمال ئې په خوب كښ په بيوشي كتلوباندې كيږي اوپه كلام عرب كښ دَدې لپاره ډيرشواهددي چې كله كله لفظ دَ رؤيا په رؤيت بصري كښ هم مستعمليږي لكه داقول دَشاعرشوچې:

**وكبرللرؤياوهش فواده	وبشرقلباكان جمابلاله**

اوداجواب دټولونه غوره دې. اوحضرت انورشاه كشميريؒ فرمائى چې رؤيادَعالم غيب كتلوته وئيلى كيږي اورؤيت دعالم مشاهده كتلوته وئيلى كيږي نودلته لفظ دَرؤيادې نه درؤيت باقى دَ حضرت عائشهؓ اودَ حضرت معاويهؓ روايات چې په هغې كښ تصريح ده چې معراج فقط روحاني وو، حضرت عائشهؓ فرمائى مافقدجسدرسول اللهﷺ ولكن الله اسرى بروحه (طبرى ص۱٦ ج۸) دحضرت معاويهؓ نه چې كله تپوس اوكړې شوپه باره دَمعراج كښ نواوفرمائيل

ئي،كانت رؤيامن الله صادقة)(طبري ص١٦ ج٨) نوعلماء فرمائي چې پدي دواړو رواياتوکښې يوراوي محمدبن حميددې چې هغه ضعيف دې ځني اصحاب الجرح والتعديل ورته ردې المذهب اوكذاب وئيلی دي،اودويم راوي محمدبن اسحاق دې چې هغه مختلف فيه راوي دې ځني ائمو ورته كذاب،اودجال وئيلي دي ځنوئی تعديل كړيدې اوراجح خبرده داده چې په كوم روايت كښې دې متفردوي ياعنعنه كړي وي نوهغه به مشكوک وي اوقابل حجت به نوي اوپدې ځای كښې دَده روايت دثقه راويانومخالفت كښې راغليدې ،اودغه شانتي حضرت عائشه دَمعراج واقعې په وخت كښې ډيره وړه وه اودَ حضورﷺ سره ئي نكاح هم نوو شوې اوحضرت معاويه په هغه وخت كښې مشرف شوې نوو په ايمان سره، اوباقي دَحضرت ابن مسعود روايت چې كوم بيهقي نقل كړيدې چې دهغې نه معلوميږي چې دادَخوب واقعه ده نودهغې په سندكښې ابوهارون عبدي راوي دې چې ابن كثيردهغه په باره كښې فرمائي چې دې اكذب من فرعون وو اوبي اعتباره دي البته دَحديث انس بن مالک نه چې روايت كړيدې امام بخاري په هغې كښې الفاظ دي(فاستيقظ وهوفي المسجدالحرام) دهغې نه معلوميږي چې دا واقعه دَخوب وه،ليكن دَدې په سند كښې هم يوراوي دې شريک بن عبدالله اودهغه په باره كښې دَمحدثين اتفاق دې چې دده حافظه خرابه وه اوډيربه خطاء كيدلو،امام نووي فرمائي چې دَ ده په روايتوكښې ډيراوهام دي اوصاحب دتهذيب حافظ ابن حجر دده په باره كښې ليكلي دي چې دې دَتقديرنه هم منكروو،حافظ ابن حجر په فتح الباري په اخركښې دَ حديث شريک اغلاط شماركړيدي اوبيائی فيصله كړيده چې دَ شريک هغه روايت به قابل استدلال وي چې هغه دَ عام احاديثو مخالف نوي.

دَجمهوررودمذهب لپاره ډيرشو اهداوترجيحات دي:

(١)لفظ دَ ﴿سُبْحَٰنَ﴾هم پدي دلالت كوي چې داواقعه دَخوب نده بلكه دَبيدارئ ده،ځكه چې په لفظ دسبحن سره دَواقعې عظمت ته اشاره وي،معراج روحاني څه امرعظيم اوقابل تعجب ندي،بلكه امرعظيم اوقابل تعجب هغه معراج روح مع الجسد دي،فالتسبيح انمايكون عندالامور العظام فلوكان منامالم يكن فيه كبيرشئ ولم يكن مستعظما(ابن كثيرج٣ ص٢٣).

﴿۲﴾لفظ د ﴿ أَسْرَىٰ﴾هم دال دي چې معراج په جسدعنصري سره وو ځکه چې داسراء معنی بوتلل دي په جسدعنصري سره دبيدارئ په حالت کښ خوب اوياصرف روح بوتللوته اسراء نه وئيلی کيږي اودالفظ په قران مجيدکښ په متعددومواضعوکښ استعمال شويدې معنی ئی دَبيدارئ په حالت کښ په جسدعنصري سره بوتلل دي.لکه فاسربعبادي ليلا الخ﴿الدخان ايت نمبر۲۳﴾وغيره شو.

﴿۳﴾لفظ دَ﴿بِعَبْدِهِۦ﴾ هم دلالت کوي چې معراج په جسدعنصري سره ووځکه چې اطلاق دَعبدپه مجموعي دروح مع الجسدباندی کيږي﴿فان العبدعبارة عن مجموع الروح والجسد﴾﴿ابن کثيرج۳ ص۲۳﴾ قران مجيدکښ چې چرته هم لفظ دعبدذکرشويدې نومجموعه دروح اوجسدورنه مرادکيږي صرف روح نه مرادکيږي لکه وان کنتم فی ريب ممانزلنا علی عبدنا﴿البقره ايت نمبر۲۳﴾.

﴿۴﴾﴿وَمَا جَعَلْنَا ٱلرُّءْيَا ٱلَّتِىٓ أَرَيْنَـٰكَ إِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ ﴾هم دلالت کوي چې معراج په جسدعنصري سره وو ځکه چې دَخلکو لپاره فتنه اوازمائش صرف روحاني سيرنووبلکه ازمائش اوفتنه دَخلکولپاره هغه معراج په جسدعنصري سره دي اودَدې وجه نه کفارو داسې قسم مستبعد اوکڼلو اوتکذيب ئی اوکړو حتی که چې ځني نوي مسلمانان هم مرتدشو.

﴿۵﴾مازاغ البصر وماطغی﴿النجم ايت نمبر۱۷﴾ هم دلالت کوي چې داپه جسدعنصري سره وو﴿۶﴾لقدرای من ايت ربه الکبری﴿النجم ايت نمبر۱۸﴾هم دال دي چې معراج په جسدعنصري سره ووځکه چې جسدعنصري سره نوې فقط روحاني وې نوداځه لويه نشاني نده ولوکان منامالماکانت فيه اية ولامعجزة (قرطبی)

اودغه شانتی داحاديث نه هم معلوميږي چې داواقعه په حالت دَيقظت اوپه جسدعنصري سره وه لکه ﴿۱﴾حضورﷺ دَحضرت ام هانیؓ په کورکښ ارام فرمائيل اوچت سورې کيدل دَفرشتي راتلل.﴿۲﴾حضورﷺ مسجدحرام ته بوتلل﴿۳﴾دَحضورﷺ شق صدرکول.دحضورﷺ زړه مبارک دَايمان اوحکمت نه ډکه ول﴿۴﴾براق باندی سوريدل حالانکه روح يولطيف اوغيرمرئی څيزدې نوهغه په براق څنګه سوريږي﴿۵﴾ انبياء کرامو عليهم السلام لره امامت کول﴿۶﴾حضرت جبرئيل عليه السلام دلاس نه نيول اواسمان ته بوتلل﴿۷﴾انبياء کرام عليهم السلام سره سلام کلام کول﴿۸﴾ حضورﷺ ته شراب اوپئ پيش کول اودَحضورﷺ پئ څکل﴿۹﴾ اوخاص طورپردَحضرت ام

هانیؓ روایت چې فرمائی «بات رسول اللهﷺ لیلة اسری به فی بیتی ففقدته من اللیل فقال رسول اللهﷺ ان جبرئیل علیه السلام اتانی فاخذ بید الخ» (۱۰) اودغه شانتي د حضرت ام هانیؓ مشوره ورکول چې لاتحدث الناس فیکذبوک (۱۱) اودغه شانتی لفضل ابوبکربالتصدیق (۱۲) اودغه شانتي په دغه شپې باندی دَبیت المقدس دروازي نه بندیدل،لکه پدي ګواهي ورکړي وه یوعالم دَیهودیانوتفصیلي واقعه په ابن کثیر(ج۳ ص۲۴)کښ مذکوره ده،داټول پدي دلالت کوي چې داواقعه په جسدعنصري سره وه.

بعضي محدثینو دَدواړو قولینوپه مینځ کښ تطبیق کړیدي چې داواقعات متعدددي. نوبوځل دی په خوب کښ روحاني طورشوې وي اوبل ځل دی په جسدعنصري سره شوې وي.لیکن ابن کثیررحمه الله پدي ردکړیدي اوفرمائی چې ومن جعل من الناس کله روایة خالفت الاخری مرة علی حدة فاثبت اسرآات متعددة فقدابعدواغرب وهرب الی غیرمهرب ولم یتحصل علی مطلب(ابن کثیرج۳ ص۲۲) تفصیل په ابن کثیرکښ دي من شاء فلیطالع ثمه

مازری په شرح دَمسلم کښ داسی تطبیق کړیدي چې دَمکي نه تربیت المقدس پورې داسیرپه حالت دیقظت کښ وو اوبیاپه بره سیرداَسمانونوروحاني وو(روح المعانی ج۱۵ ص۷) لیکن دي قول ته هم محدثین خاص کرحافظ ابن کثیرضعیف ونیلی دي،بعضي خلکو قول کړیدې په فرق باندی په مینځ دَاسرا اومعراج کښ،لیکن امام بیهقي پدي ردکړیدې اوثابته کړیده چې اسراء اومعراج دواړه په یوه شپه کښ وو

حقه خبره داده چې کومه واقعه دَمعراج په قرآن مجیدکښ ذکرده داپه حالت دبیداری کښ په جسدعنصري سره وه

(۴) ځني ګمراه فرقواودَنفساني خواهشاتومتبعینُ دمعراج رسولﷺ نه دځني سائنسي خبروپه بنیادانکارکړیدي،قادیاني دجال اوسرسیداحمدخان په ډیرجراءت سره په خپلو کتابونوکښ دَواقعی معراج نه انکارکړیدي اومختلف قسم شبهات ئی ذکرکړیدي چې دومره لرېوخت کښ دومره لوئی سفرځنګه اوشو؟ طبقات نار اوزمهریرباندی تیریدل ځنګه اوشولو؟ داپه حقیقت کښ دَاللهﷻ دَقدرت نه انکارکول دي،اَللهﷻ دَصریح خبرپه مقابله کښ خپل ناقص عقل استعمالول دي،انماامره اذا ارادشیئاان یقول له کن فیکون نه څرګندانکاردي،حالانکه دَاللهﷻ اودَرسول اللهﷺ دَخبرنه پس یوانسان په خلاف عقل امورو کښ چون چرانه کوي اوخپل عقل

ناقص كنړي اوواقعه معراج خودانساني عقل نه هم خلاف نده. سرعت حركت اونيزرفتار يواضافي شئ دي. دهغي څه حداوانتهاء نده مقرره اوقدرت الهي نه بعيده نده چي يوجسم كثيف په آن واحده كښ لري نه ترلري حده پوري اوړه سوى. لكه څنګه لهرونه دهوا په يوه لمحه كښ په حكم دالله ﷻ سره كروړاؤكلوميترمسافت طى كوي. ځني سيارې په يوساعت كښ انه لاكه اتيازره، (۸۸۰۰۰۰) كلوميله حركت كوي دنمرنيا په يوسيكنډكښ يوكم ديرش ارب اود نوي كروړه پنځويشت لاكه (۲۹۹۷۲۵۰۰۰۰۰) كلوميټررفتار كوي دحضرت سليمان عليه السلام وزيراصف برخيادسترګى په رپ كښ دبلقيس عظيم الشان تخت داقصى ديمن نه تراقصى شام پوري راوړى وو. فرشته په آن واحده كښ دعرش نه فرش پوري دالله ﷻ په حكم سره راتلل كوي، نودحضور ﷺ دشپي په يوه حصه كښ معراج ته تلل څنګه خلاف عقل شو؟؟

(۱) طبقات ناريه، اوزمهريريه دتوهماتو نه دي، (۲) په تقديردتسليم سره حرارت اوبرودت دهغوصفات ذاتيونه ندي بلكه عرضى دي اوسلب دعوارضوبالاجماع ممكن دي لكه څنګه چي دحضرت ابراهيم عليه السلام لپاره داورنه حرارت لري كړي شوې وو. (۳) دغه شانتي ممكنه ده چي دمعراج په شپه حضور ﷺ جسداطهردحضور ﷺ دكثافت جرمى نه پاک كړي شوې وي اوتيول انوارات اوتجليات وو، لكه چي دامعلوميږي دبعض الفاظودحديث نه. (۴) دغه شانتي په جسدعنصري باندى دحرارت اوبرودت اثرات په هغه وخت كښ ظاهربږي چي كله دهغه استقراراوقيام راشي اوكه چرته قيام اواستقرارئى نوي راغلي لكه په اوركښ لاس په تيزئى سره تيرول نوپه هغې باندى بياا‌ثرهم نه ظاهربږي، دحضور ﷺ دبراق رفتاريوقدم ترحدبصري هومره وو نودطبقات ناريه اوزمهريريه اثرات به په څنګه ظاهرشوي وو؟؟

**تنبيه:** (۱) دمعراج په شپه حضور ﷺ دالله ﷻ ديداركړې وو نومسلک د اهل سنت والجماعت دادې چي داديداراورؤيت بصري وو، پدې دلالت كوي هغه حديث چي ذكركړيدې امام مسلم په خپل صحيح كښ دحضرت ابوذر رضي الله عنه نه فرمائى چي (سالت رسول الله ﷺ هل راءيت ربک فقال ..... نور انى اراه الحديث).

(۲) واقعه اسراء اومعراج په دليل قطعى يعني قران اوپه حديث متواتره سره ثابته ده سره داجماع دامت مسلمه نه، نومنكرئى زنديق، اوملحددي حافظ ابن كثير رحمه الله فرمائى فحديث الاسراء اجمع عليه المسلمون واعرض عنه الزنادقة والملحدون (ابن كثير) اوواقعه معراج په منكركښ اختلاف دي اوعندالبعض ضال مضل مبتدع دي وجه داده چي اسراء ثبوت په ايت قطعى

غیرمحتمل التاویل سره شویده اومعراج اګرچې په احادیثو صحیحوسره ثابت دي خو اٰیت ولقدراٰه نزلة اخرىٰ کښې تاویل کیدلې شي نودې وجه نه منکرته ئې عند البعض کافرنشي وئیلې

(۳)دمعراج په شپه حضورﷺ دَانبیاء کرامﷺ سره ملاقات کړې وو.اولاد ادمﷺ ئې دهغه ښي اوچپ(ګس)طرف ته کتلي وو اودَدې امت واعظان بې عمله ئې په جهنم کښې لیدلي وو.نوانبیاء کرامﷺ کښې دَحضرت عیسیٰﷺ په باره کښې اتفاق دې چې هغه موجودوو اودې په وجودحقیقي سره په اسمانونوکښې اودغه شانتې دَحضرت ادریسﷺ په باره کښې هم یو قول دادې چې دَجنت نه اسمانونوته راوستلې شوې وودَباقي انبیاء کرامﷺ په باره کښې اګرچې علامه عینيرحمه الله فرمائي:قلت الانبیاء احیاء فقدرآهم النبيﷺ حقیقة(عیني ص۴۸ ج۴)خوظاهردَحدیث نه دامعلومیږي چې ارواح دَانبیاء کرامﷺ ممثل کړې شوې وولکه چې په حدیث کښې راغلیدي چې(مثلت لي الانبیاء) اوملاعلي قاريرحمه الله په مرقات شرح دَمشکوة کښې اوشیخ الاسلام علامه شبیراحمد عثمانيرحمه الله په فتح الملهم کښې تصریح کړیده چې ارواح ممثل کړې شوې وو.اودَقبرونونه اسمانونوته په وجود نو عنصریوسره نوومنتقل کړې شوي(مرقات ج۱۱ فتح الملهم ج۱) اګرچه انبیاء کرام په خپلوقبرونوکښې ژونددې،اوباقي اولاداد مﷺ اوواعظان بې عمله بالاتفاق ممثلات وو.

﴿ أَسْرَىٰ﴾پدیکښې تجریدشویدې په معنیٰ دَمطلق بوتللوسره دې بعبده هرکله چې مقام عبدیت اولی وو په نسبت دَمقام نبوت اورسالت ته نوددې وجه نه ذکردَعبداوشولو.دَدینه معلومه شوه چې په انبیاء کرامﷺ کښې هم عبدیت اولی دې نوپه نورامت کښې په طریق اولی، دې لوکان للنبيﷺ اسم اشرف منه لسماه به في تلك الحالة العلیة(قرطبی) اودغه شانتې وصف عبدیت ذکر کولو لپاره دَسدالباب الغلودې چې څوك په محبت کښې غلواونکړي لکه چې نصاری وو کړې وه دَ حضرت عیسیٰﷺ په باره کښې(روح المعانی) اودغه شانتې پدیکښې اشاره ده چې درجات عالیه اومراتب رفیعه انسان ته په مقام عبدیت سره میلاویږي،صاحب دَروح المعانی فرمائي چې اللهﷻ تعبیرپه عبدسره چې مضاف وي ضمیردَغائب ته بغیردحضورﷺ نه بل چاته ندې کړې. له وجی دفرق نه په مینځ دَمقام حبیب اوکلیم کښې

**فائده**:مقام عبدیت چې دَمقام نبوت نه اولی دې نوجه ئې داده چې په مقام عبدیت کښې. انصراف عن الخلق الی الحق وي اوپه نبوت ،رسالت کښې انصراف عن الحق الی الخلق وي،خوداتقابل

اولويت اوعدم اولويت دانبياء کرامو ﷺ دخپلو اوصافو په مينځ کښ دي مطلقا ندي والاّلازم به شي افضليت دمطلق عبد په رسول باندې داباطل دي بلکه داداسې ده لکه قرآن مجيد چه څنې حصه ئې اولي ده دځنې نورونه لکه څنګه چې دماتريديو مذهب دې چې دقرآن مجيد هغه حصه چې متکلم فيه پکښ الله ﷻ دي هغه اولي ده دهغې حصې نه چې متکلم فيه پکښ يو کافراومشرک دي نوقل هوالله احد اولي دې دتبت يدا ابی لهب نه نودغه شانتې دحضور ﷺ څنې اوصاف اولي دي دځنې نورونه

﴿لَيْلًا﴾تنوين لپاره دتقليل دي پديکښ اشاره ده چې معراج په ټولې شپې نوو مشتمل بلکه دشپې په يوه حصه کښ وو. ﴿مِّنَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ﴾مرادورنه ټول حرم دي ﴿إِلَى ٱلْمَسْجِدِ ٱلْأَقْصَا﴾مرادورنه بيت المقدس دي اوتوصيف ئې په اقصى سره ځکه کيږي چې ياليري دي دمسجدحرام نه چې ددواړو په مينځ کښ دځلويښت شپوفاصله ده اويا په دغه وخت کښ اخرى جماعت په مخ دزمکه باندې دغه وو ،اويابعيددي داقذارواوخباثت نه دظاهردايت نه اګرچه دامعلوميږي چې حضور ﷺ بيت المقدس ته تلي وو اوبيت المقدس ته په دخول باندې ايت دلالت نه کوي خونفي ئې هم نه کوي هغه ثابت دي په احاديثوصحيحوسره نودايت اودَ احاديثوځه تعارض هم نيشته دي ﴿ٱلَّذِى بَٰرَكْنَا﴾ملك شام کښ(موجوده فلسطين)الله ﷻ ظاهرى اوباطني هرقسم برکات پيداکړيدي نهرونو ،ونو بوټو اوپه ميوو باندې هم خسته دي اودانبياء کرامو ﷺ مقرهم دي اوحشربه دَ مخلوقاتو دقيامت په ورځ دلته کيږي. ﴿لِنُرِيَهُۥ مِنْ ءَايَٰتِنَآ﴾لام لپاره دعاقبت دي اومراد په ايتاسره هغه عجائب دي چې حضور ﷺ کتلي وو.لکه هراسمان کښ دانبياء کرام ﷺ سره ملاقات.احوال جنت اوجهنم مشاهده اوملائکو سره ملاقات دالله ﷻ ديداروغيره شو.پدي ايت کښ التفات شويدي دغائب نه متکلم ته لپاره دتعظيم دبرکاتو اواياتو ،ځکه چې تعظيم دمضاف معلوميږي دتعظيم دمضاف اليه ،نه اوبعض مفسرين فرمائي چې ﴿أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِۦ﴾کښ ذکردهغه سيروو چې هغه دعالم مشاهده نه عالم غيب ته وو نودهغې سره مناسب صيغي دغائب وې،او ﴿بَٰرَكْنَا﴾کښې انزال دبرکاتو په تعظيم دنازل کونکی باندی وؤ نوتعظيماً ئې اضافت متکلم ته اوشولو،او ﴿لِنُرِيَهُۥ مِنْ ءَايَٰتِنَآ﴾دلالت کوي چې داسفر

انتهائي مسافت والا اوناممکن وو، اوهلته رسائي دبلندوسعت نه خارج ده. او داخاص الله جل جلاله په کرم اومعونت وو.... نومناسب ورسره صيغه دَمتکلم وه نوځکه ضمير دمتکلم ته ئې اضافت اوشولو (روح ج۱۵ ص۲۳) ﴿إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ﴾ دااول دليل عقلي دې په توحيدباندې. انّ،هوضميرفصل اوخبرمعرف باللام دا ټول په حصرباندې دلالت کوي چې هرڅه اوريدونکې اودهرڅه ليدونکې صرف اوصرف الله جل جلاله دې.

| وَءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلْنَٰهُ هُدًى لِّبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ |
|---|
| اوورکړې وومونږه موسیٰ عليه السلام ته کتاب (تورات) اوګرځولې وومونږه هغه ذريعه دهدايت لپاره دبنی اسرائيلو |
| أَلَّا تَتَّخِذُوا۟ مِن دُونِى وَكِيلًا ۝٢ ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ |
| چې مه نيسئ تاسوسيوازمانه (څوک) کارساز[2] اې اولاده دَهغه چا چې سواره کړې وو مونږه دنوح عليه السلام سره |
| إِنَّهُۥ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا ۝٣ |
| [3] بيشکه هغه وو بنده شکرګزار |

﴿وَءَاتَيْنَا﴾ دااول دليل نقلي دې په توحيدباندې دحضرت موسیٰ عليه السلام نه په ماقبل ايت کښې اکرام دَحضور صلی الله عليه وسلم ذکرشو په سيردَمعراج سره اوپدې کښې اکرام دَحضرت موسیٰ عليه السلام ذکرکيږي په عطاء کولودکتاب سره چې سيرئې کړې وو لپاره دَ دې کوه طورته،اوپدې ايت کښې دَتورات خلاصه هم الله جل جلاله ذکرکړيده چې دَټول تورات خلاصه داده چې دَالله جل جلاله نه سيوابل څوک کارسازمه جوړه وئې.

﴿وَجَعَلْنَٰهُ﴾ ضميرياراجع دې کتاب ته ياموسیٰ عليه السلام ته اوحمل دَ﴿هُدًى﴾مبالغة دې﴿أَلَّا

(۱) اول دليل نقلي

(2) حرف نداء محذوف ثمره شکرګذاري

(3) مقصود بالنداء محذوف اى اشکروا

تَتَّخِذُواْ ﴾ الأمرکب دي أن او لانه او أن يامصدريه ناصبه دي معنى ئي ده لئلا تتخذوا اويا ان تفسيريه دي لکه چې په وانطلاق الملاء منهم انِ مشوا(ص ايت نمبر۶) کښې ان تفسيريه دي نومعنى ئي ده اى لاتتخذوا اويا ان زائده دي اوقلنا پټکښې مقدردي نوتقديرئى داسې دي فقلنا لاتتخذوا الخ باقي نحويانوچه کوم مواضع دزيادت د ان لپاره بيان کړيدي داګرچه دهغه مواضعونه ندي خوهغه حصرهم عقلي ندي﴿مِن دُونِى وَكِيلًا ﴾ وکيل په وزن دفعيل سره په معنى دمفعول سره دي يعني کارسازچې هغه رب دي اى رباتکلون اليه امورکم غيرى (روح) ﴿ذُرِّيَّةَ﴾پدې ايت کښې ترغيب ذکرکيږي توحيدمنلوته په دوه طريقوسره اول دا چې ستاسونيکونه مى دنوحﷺ سره په کشتئ کښې سواره کړي وو دويم داچې ستاسوپلار حضرت نوحﷺ هم توحيدبيانونکى وو ،ذريةمنصوب دي بنابرنداء په اصل کښې ياذرية دي اوداقائمقام د(ياايهاالناس)دي اومقصود باالنداء محذوف دې چې اشکروا دې ځکه دحضرت نوحﷺ سره په کشتئ کښې دهغه دري ځامن وو سام،حام،يافث اوداټول انسانان دهغود ذريت نه دي اويانصب براختصاص يامدح دي اواختصُ يااَمْدحُ فعل مادحه مقدردي، اويامنصوب دي له وجې ددينه چې دامفعول ثانى دي لپاره لاتتخذوا نوتقديرئى داسې دي لاتتخذوا ذرية من حملنا مع نوحٍ من دونى وكيلا،﴿إِنَّهُۥ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا ﴾ دمفعول به وزن دمبالغې صيغه ده معنى ئى ده ډيرشکرکوونکې داپه حقيقت کښې علت دي دماقبل انجاء لپاره،چې حضرت نوحﷺ اودهغه ملګروته نجات په برکت دشکرسره وو اوتنبيه په شکرباندې لپاره ددې ده چې شکر مستلزم دې توحيدلره اوشرك کول اعلى مرتبه دکفران ده اوپديکښې ترغيب دې اقتداء دحضرت نوحﷺ ته چې هغه ستاسوپلاروو چې هغه ناشکري اوشرك نووکړې بلکه توحيدئى اختيارکړې وژ نوتاسوهم د هغوئى اقتدا اوکړئ،فکانه قيل کونوا موحدين شاکرين لنعم الله مقتدين بنوح الذى انتم ذريته من حمل معه(بحر)ددې ايتونو په مينځ کښې ربط داسې شوچې اول دليل وحى بياعقلي اوبيانقلي چې وحى ،عقل اونقل ټول داوائى چې توحيدحق دې.

وَقَضَيْنَآ إِلَىٰ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ فِى ٱلْكِتَٰبِ لَتُفْسِدُنَّ فِى ٱلْأَرْضِ

[1] اوفیصله اوروليږ وه مونږه بنی اسرائیلو ته په کتاب (تورات) کښ چې خامخا فساد به کوئی تاسو په زمکه شام کښ

مَرَّتَيْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا ۝ فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ أُولَىٰهُمَا بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ

دوه ځلي او خامخا لوئي به کوئي لوئي ډيره پس هر کله چې راغله نيټه داول ځلي فساد نو مسلط کړلو مونږه په تاسو باندي

عِبَادًا لَّنَآ أُو۟لِى بَأْسٍ شَدِيدٍ فَجَاسُوا۟ خِلَٰلَ ٱلدِّيَارِ ۚ وَكَانَ

بندګان زمونږه چې خاوندان د جنګ وو سخت سخت جنګ والا وو، پس ورننوتل دوئی به په مینځ د کورونو کښ او وه

وَعْدًا مَّفْعُولًا ۝ ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ ٱلْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ وَأَمْدَدْنَٰكُم

داوعده پوره کړي شوي بيا او ایس درکړه مونږه تاسو ته غلبه په هغوئي باندي او امداد مو اوکړو ستاسو

بِأَمْوَٰلٍ وَبَنِينَ وَجَعَلْنَٰكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا ۝

په مالونو سره او په ځامنو سره او او ګر ځولئ مونږه تاسو ډيري ډلي والا.

﴿وَقَضَيْنَآ إِلَىٰ﴾ دا تخويف دنيوی نمونه بيانيږي چې عذاب دنيوي په خلکو باندی په سبب دَانکار دَتوحید سره راځي لکه څنګه چې بني اسرائیلو دَتوحیدنه انکار اوکړو دوه (۲) ځلي، نو الله ﷻ په اول ځلي په دوئ باندی سخت اوظالم بادشاهان مقرر کړل چې دوئ ئی ذليل کړل اودَ کورونو بی عزتي ئی ورله اوکړه، اوپه دويم ځل بياالله ﷻ دوئ ته سخت عذاب ورکړو.

﴿وَقَضَيْنَا﴾ په معنیٰ دَ اعلمناهم اوحيناالیهم سره دي ځکه متعدي شو په الی سره اوچې متعدي بنفسه شی مفعول ته نو معنی ئی اعلام او اخبار وي اوچې په علی سره شی نو معنی ئی حکم او فیصله وي اوچې په لام سره شي نو معنی ئی اتمام وي (فتح القدير).

[1] نمونه تخويف دنيوی

﴿فِي ٱلْكِتَٰبِ﴾غوره قول مطابق مرادورنه تورات دي﴿لَتُفْسِدُنَّ﴾ داجواب دي دقسم محذوف لپاره اومتعلقات دَقضينا هم محذوف دي نوتقديردَعبارت داسې دي وقضيناالی بنی اسرائیل بفسادهم وعلوهم والله لتفسدن الخ(بحر) اوداهم جائزه ده چې قضينا دې جاری وي په مجری دقسم او ﴿لَتُفْسِدُنَّ﴾دې ورله جواب قسم وي لکه عرب وائی چې قضاء الله لاقومن(بحر) ﴿فِي ٱلْأَرْضِ﴾مراد ورنه ياجنس ارض دي ياملك شام اويامصردي، ﴿مَرَّتَيْنِ﴾دامفعول مطلق دي ﴿لَتُفْسِدُنَّ﴾لپاره من غيرلفظه اومرادورنه دوه ځلي فسادکول دي اوپه تعيين دفساد باندی څه قطعي دليل نيشته دي ان الله تعالى ذكره فسادهم في الارض مرتين ولم يبين ذلك فلايقطع بشيئ لماذكر(روح) اوبعض مفسرينو دهغي فسادتعيين کړيدي چي.اول ځلي فسادهغه مخالفت کول وؤدَشريعت دموسی ﷺ نه اوقتل دَحضرت زکریا ﷺ وو او سبب دَقتل دَحضرت زکریا ﷺ داووچې ددوئ بادشاه مړشو نودوئ په خپل مينځ کښ دَبادشاهئ لپاره جنګونه شروع کړل اويوبل ئی قتل کول حضرت زکریا ﷺ دوئ ته وعظ اونصيحت کولوخودوئ دهغه دَقتل منصوبه جوړه کړه نوهغه ورنه اوتختيدلو اوپه يوه ونه کښ ئی پناه واخسته نوشيطان دَحضرت زکریا ﷺ دکپړې يوه حصه اونيوله چې هغه بهرپاتې شوه اوخلکوته ئی اوښودلونوهغوئ هغه اونه په مينځ باندی اره کړه اوحضرت زکریا ﷺ ورسره په مينځ باندی غوڅ شواوشهيدشو.

اوبعض وائی چې سبب دَقتل هغه تهمت ووچې دوئ لګولې وو په حضرت زکریا ﷺ باندی دَزنا(نعوذبالله) دَحضرت مريم ﷺ سره اوبيائې شهيدکړه ،اوبعض مفسرين فرمائی چې اول فسادهغه حبس دَحضرت شعياء بن امصيا ﷺ وو په ارمياکښ اوقتل دَهغه وو اوپه اونه کښ پناه حضرت شعياء ﷺ اخيستې وه اوحضرت زکریا ﷺ په خپل مرګ باندی وفات شوې وو اوسبب دَقتل دهغه داوو چې په بنی اسرائيلوکښ يوبادشاه دَداسې ښځې سره نکاح کولوچې هغه دَده لپاره جائزنوه حضرت شعياء ﷺ هغه منع کړواودَالله ﷻ دَعذاب نه ئی ويره ولونوهغه قتل کړو اودهغې ښځې په باره کښ څلوراقوال دي (۱)دهغه خپله لوروه (۲)دهغه وريره (وررلور)وه (۳)دَخپل وروربنځه وه اودهغه په عقدکښ وه(۴) دهغه دښځې دَبل خاوندنه لوروه(زادالمسير).

اودويم فسادهغی کښ راجح قول اودَاکثرمفسرينو رائی داده چې هغه قتل دَحضرت يحيی بن زکريا ﷺ وو اوپدې جزم کړيدې ابن جريرطبري واماافسادهم في الارض المرة الاخرة فلااختلاف بين

اهل العلم انه كان قتلهم يحي بن زكريا ﷺ (طبري ج۸ ص۲۵) اودَحضرت يحيى دقتل په سبب كښې دوه واقعات مفسرينو بيان كړيدي يوه(۱) واقعه داده چې بادشاه ديوې ښځې سره نكاح كولو چې دهغه لپاره جائزه نوه حضرت يحيى ﷺ منع كړلو.بادشاه حضرت يحيى ﷺ دهغې ښځې په مطالبې سره قتل كړو.دويم (۲) واقعه داده چې حضرت يحيى ﷺ ډيرحسين وو دبادشاه ښځې دحضرت يحيى ﷺ نه مطالبه دَبدكارئ اوكړه اوهغه انكاراوكړو نودبادشاه ښځې خپلې لورته اوونيل چې دَخپل پلارنه دَحضرت يحيى ﷺ دَسرمطالبه اوكړه نوهغې مطالبه اوكړله اوبادشاه دې قتل كړو.و﴿وَلَتَعْلُنَّ﴾ پديكښې دَهغوئ نورومعاصيوته اشاره ده لكه په عاموخلكوباندې ظلم وغيره كول شواوپه ﴿عُلُوًّا كَبِيرًا﴾كښې اشاره ده چې داګناهونه په دوئ كښې په كثرت سره ظاهرشوي وو﴿فَإِذَا جَآءَ﴾ داول عذاب ذكر دې چې دَاول فساد دَوجې نه راغلې وو ﴿وَعْدُ﴾بمعنى دَموعود سره دې مرادورنه عقاب دې اوياوعدپه معنى دَوعيدسره دې﴿بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ﴾ مرادورنه بعثت تكويني دې تشريعي ندې مراد﴿عِبَادًا لَّنَآ﴾ددې په تعين كښې څواقوال دې خومشهورقول داد

ې چې مراد ورنه بخت نصردې چې هركله بنى اسرائيلوظلم اوشرك شروع كړو نو الله ﷻ په دوئ باندې بخت نصرمسلط كړو چې هغه ددوئ قتل عام اوكړوڅلويښت زره(۴۰۰۰۰)ياڅلويازره(۷۰۰۰۰) بني اسرائيل ئې قتل كړلواوباقي ئې دَځان سره بطور غلامان بوتللو اوبيت المقدس ئې وران كړلو اوقيمتي سامان ئې ورنه يوړلو.اويا(۷۰) كالوپورې بني اسرائيلو دغه شانتې دذلت ژوند تير كړو،چې پدې دوران كښې دَايران يوبادشاه دبنى اسرائيلودَيو زنانه سره نكاح اوكړواودهغې په مطالبې باندې هغه په بابل باندې حمله اوكړه اوبني اسرائيلوته ئې نجات وركړلواودوئ بيابيت المقدس ته راغلل اودَخپلو بداعمالونه توبه تائب شواومسجداقصى ئې په هغه زوړطرزباندې ئې بياتعميركړو اوهم دغه واقعې ته اشاره شويده په ﴿ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ﴾كښې(رازي ج۷ ص ۲۹۹)دې قول ته اكثروعلماؤذهاب كړيدې اوځنې احاديث اوتاريخي روايات هم دَدې شاهددي﴿أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ﴾ دَباس توصيف په شديدسره تاكيدأدې ځكه باس وئيلى كيږي شديدجنګ ته ،نوداپښانته ته دظلّ ظليل دې اوياپكښې

تجرید شویدې ﴿فَجَاسُوا﴾ دامشتق دې دَجوس نه اوجُوس وئیلی کیږي طلب الشئ باستقصاء نه نومعنی ئې داده چې دوئ به تجسس کولو اوتالاشي به ئې اخیستله دَدوئ دکورونوچې څوك خوژوندې پاتې نه دې ای مشوابین منازلهم یتجسسون اخبارهم...ینظرون هل بقی احدلم یقتلوه(زادالمسیر) اویا ﴿فَجَاسُوا﴾ په معنی دَعاثوایعني افسدوا سره دې او ﴿خِلَٰلَ﴾ په معنی دوسط سره دې نومعنی ئې داده چې دَدوئ په کورونوکښې به ئې دَدوئ بې عزتي کوله ﴿ثُمَّ رَدَدْنَا﴾ دا رَدْ اوغلبه دَسلو(۱۰۰)کالونه یادَاوسوه (۷۰۰)کاله نه پس ووچې سل(۱۰۰) یااوه سوه(۷۰۰)کاله بنی اسرائیلو دَبخت نصریادجالوت غلامي اختیارکړه دَمشقت ژوند ئې تیرکړلودهغې نه وروستوچې کله دوئ دَخپلوبدعملونونه توبه اوویستله نوالله ﷻ دَیوشاهِ فارس په وجي سره دوئ ته نجات ورکړلو،په ﴿عَلَيْهِمْ﴾ کښې اشاره ده غلبې اوفتح دَدوئ ته په هغه فاتح قوم باندې چې دوئ ئې خپل غلامان جوړکړي وو. ﴿وَأَمْدَدْنَٰكُم بِأَمْوَٰلٍ﴾ نومالونه ورنه هغوئ لوټ کړي وو نوالله ﷻ دَنیك عمل په بدلې سره دَدوئ په مالونوکښې اضافه اوکړه. ﴿وَبَنِينَ﴾ دیرکسان ددوئ قتل شوي وو څه غلامان شوي نوالله ﷻ ورله په اولاد کښې هم ترقي ورکړه اوغلامان ئې ورله ازادکړل. ﴿وَجَعَلْنَٰكُمْ﴾ خاندان اونسل کښې ورته هم الله ﷻ ترقي ورکړه.

| إِنْ أَحْسَنتُمْ أَحْسَنتُمْ لِأَنفُسِكُمْ ۖ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا ۚ |
|---|
| اوئیل مونږه،که نیکی کوئ تاسونونیکی کوئ تاسولپاره دفائدې خپلې اوکه بدې کوئ تاسوپس ضررئې خاص دې په تاسوپورې |
| فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ ٱلْـَٔاخِرَةِ لِيَسُـۥٓـُٔوا۟ |
| پس کله چې راغله نیته دروستنی فساد(مقررکړل مونږه په تاسو باندې ظالمان چې وران کړي هغوئ |
| وُجُوهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا۟ ٱلْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُوا۟ |
| مخونه ستاسواوچې داخل شي هغوئ بیت المقدس ته لکه چې داخل شوې وو هغوئ دیته اول ځلی اوتس نس کړي |

وَاِنۡ عُدۡتُّمۡ عُدۡنَا ۘ وَجَعَلۡنَا جَهَنَّمَ لِلۡكٰفِرِيۡنَ حَصِيۡرًا ۝

مَا عَلَوۡا تَتۡبِيۡرًا ۝ عَسٰى رَبُّكُمۡ اَنۡ يَّرۡحَمَكُمۡ ۚ

هغه څه چې غالب شي پرې دوئي سم تس نس. قريبه ده چې رب ستاسو مهرباني اوکړي په تاسو. او که چرې

بیا اوګرځیدلئ تاسو (فساد ته) نو اوبه ګرځو مونږه (عذاب ستاسو ته)، او ګرځولیدي مونږه جهنم لپاره د کافرانو جیل خانه.

﴿إِنْ أَحْسَنتُمْ﴾ په دیکښې قلنا مقدردې ای قلنا ان احسنتم الخ او مراد د احسان نه توحید او اطاعت د الله ﷻ دې، مقصدئې دادې چې که تاسو په توحید او په اطاعت د الله ﷻ باندې دغه شانتې کلک پاتې شوئ نو خپله فائده ده او کچرته شرك او ګمراهئ کښې مبتلا شوئ نو خپل نقصان دې او په تکرار د احسان کښې اشاره ده چې رحمت د الله ﷻ غالب دې په غضب باندې (اللباب) اولام په ﴿فَلَهَا﴾ کښې د انتفاع والاندې بلکه لام لپاره د اختصاص دې چې د احسان فوائد او د ګناه نقصان په تاسو پورې خاص دې بل چاته ندې متعدي، ای الاحسان والاساءة کلاهما مختص بانفسکم لایتعد النفع والضرر الی غیرکم (کشاف) اویالام د استحقاق دې لکه په ولهم عذاب کښې چې لپاره د استحقاق دې اویالام په معنی د علی سره دې اویا په معنی د الی سره دې او متعلق ئې محذوف دې ای فالیها ترجع الاساءة (قرطبی) ﴿فَإِذَا جَآءَ وَعۡدُ﴾ دا دویم ځلې فساد دهغوئ ذکر کیږي چې هغه قتل د حضرت یحیی ﷺ وو او عزم د قتل د حضرت عیسی ﷺ وو جواب د ﴿فَإِذَا﴾ محذوف دې چې هغه بعثناهم دې په دې دلالت کوي جواب د اول اذا ﴿ٱلۡأٓخِرَةِ﴾ دا صفت د ﴿ٱلۡكَرَّةَ﴾ لپاره دې ای فاذا جاء وعدعقوبة المرة الاخرة من افسادکم بعثناهم الخ (زاد المسیر).

دویم ځل په دوئ باندې چې مسلط شوي وو نو مشهور قول دادې چې هغه د روم یو بادشاه وو چې هغه د دوئ قتل عام اوکړو مسجد اقصی ئې وران کړو او ټول قیمتي جواهرات ئې ورنه یوړلو، دهغه نوم یا انطیاخوس وو یا طیطس وو اویا قسطنطین وو، ﴿لِيَسُـُٔوا﴾ لام یالام کئ دې اویالام العاقبة دې او متعلق دې په جواب محذوفه د ﴿فَإِذَا﴾ پورې چې بعثناهم دې ﴿وُجُوهَكُمۡ﴾

مراد دَ وجوه نه یاتول ذات مراددي اومطلب دادي چې داسې خلك په تاسوباندی مقرر کړل چې هغوئ ستاسو اهانت اوکړو اوتاسوئی قتل کړئی اونسبت دَ اساءت وجوه ته ځکه اوشولوچې اثاردَاعراض نفسانیه چې حاصل وي په زړه کښ هغه ظاهریږي په مخ باندی(کبیر)اویامرادورنه معنٰی حقیقة ده چې مخونه دي اومقصداداي چې داسې ظالمان په تاسوباندی مونږه مقررکړل چې هغوئ ستاسومخونه وران کړل اویاورنه مراد،سرداران اومشران دي(فتح القدیر) ﴿وَلِيَدۡخُلُوا﴾دا لام هم یالام کئ دي اویالام العاقبة دي اوداعطف دې په ماقبل جارمجرورباندی اوهغه متعلق وو په بعثنا مقدرپوري نوداهم په هغې پوري متعلق دي،ای بعثناهم لیدخلوا. ﴿ٱلۡمَسۡجِدَ﴾مرادورنه مسجد اقصی دي، ﴿كَمَا دَخَلُوهُ﴾تشبیه په نفس دخول کښ نده مرادبلکه په قتل اذلال،قهر اوغلبې کښ ده چې لکه څنګه اول ځل دَدوئ اذلال اوقتل عام کړې وو نودغه شانتې په دویم ځل باندی هم وو،ای انهم یدخلونه بالسیف والقهروالغلبة والاذلال(بحر)،﴿وَلِيُتَبِّرُوا﴾تتبیر وئیلې کیږي اهدام سره دَ اهلاك ته نوپډي کښ اشاره ده چې دادویم ځلې سزا ډیرسخته وه په نسبت سره اول ته،﴿عَسَىٰ رَبُّكُمۡ﴾ اویا(۷۰) کالوپوري،یهودیانو بیادغه شانتې دذلت اوغلامئ ژوندتیرکړو اودهغې نه وروستو الله ﷻ په دوئ باندی بیاخپل رحم اوکړو اودَغلامئ زندګئ نه ئی ورله نجات ورکړو خوورسره ورسره ئی تنبیه هم ورکړه چې وان عدتم عدنا یعنې کچرته تاسوبیاافساد اوکفروغیره اختیارکړل نومونږه به هم دغه شانتې سزاپه دنیاکښ درکړو اوپه اخرت کښ به په جهنم کښ قید کړې شئ،چنانچه دَحضورﷺ دَبعثت نه بعد دوئ بیاخپل زاړه خباثتونه شروع کړل دَحضورﷺ دَقتل اراده(العیاذبالله) په هغه باندی سحراوپه خوراك کښ زهروروکول وغیرداتول ئی اوکړل نوالله ﷻ دمسلمانانوپه لاس دوئ ته سزاورکړه دَنبوقریظه بالغان ئی ټول قتل کړل،زنانه اوماشومان ئی ورله غلامان کړل، بنونضیرئی اوشړل، اوجزیه پرې مقررکړه اوبیادَحضرت عمر﷛ په زمانه کښ دَجزیرة العرب نه هم اوشړې شول اودَ وضربت علیهم الذلة والمسکنة وباءوا بغضب من الله مصداق اوګرځیدلو. ﴿جَهَنَّمَ لِلۡكَٰفِرِينَ حَصِيرًا﴾حصیردَفعیل په وزن په معنی دَفاعل یعنې حاصرة سره دي ای وجعلنا جهنم حاصرة لهم(کبیر)اویاپه معنی دَمفعول سره دي ای جعلناهاموضعا محصورالهم(کبیر)اومقصداداي چې عذاب دَدنیاکه هرڅومره تکلیف ده

شي خواخركارخلاصى ورنه كيږي كه نورخه نوي نوپه مرګ سره ورنه خلاصى راتسي اوعذاب دجهنم نه په هيڅ صورت خلاصي نه كيږي (اللهم اجرنا بفضلك وبكرمك وبجودك من النار امين ثم امين).

| |
|---|
| إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ |
| [1] بيشكه داقرآن خودنه كوي خلقونه دهغه لارې چې هغه سمه (نيغه ده) [2] اوزيري وركوى مؤمنانو نه هغه كسان |
| يَعْمَلُونَ الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا كَبِيرًا ۝ وَأَنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ |
| چې عملونه كوي نيك (موافق دسنت) چې بيشكه لپاره ددوئ ثواب لوئ دي [1] اوبيشكه هغه كسان چې نه لري يقين |
| بِالْآخِرَةِ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ۝ |
| په اخرت تيار كړي دي مونږه لپاره دهغوئ عذاب دردناك |

﴿إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ ﴾ پدې ايت كښې بشارة مع ترغيب الى القرآن ذكر كيږي ديته ايت معجزه وئيلې شي اوددې تعلق دابتداء دسورت سبحن سره دې چې داقرآن هم داسراء پشانتې يوه معجزه ده،نوكه ايمان موراوړو نوالله ﷻ به تاسوته اجردركړي اوكه ايمان مورانه وړو نوسخت عذاب كښې به ګرفتارشئ اوهذا كښې اشاره ده تعظيم دقرآن ته ﴿يَهْدِي﴾مفعول او(ل)ديهد لپاره محذوف دې چې هغه الناس دې اوپديكښې اشاره ده چې قرآن دعام انسانيت لپاره ذريعه دهدايت ده د يومخصوص فرقي اوقوم لپاره ندې﴿لِلَّتِي﴾ مفعول ثاني دې الطريقة پكښې محذوف دې اى للطريقة اللتى الخ(روح) اوياورله موصوف حالة محذوف دې اى للحالة اللتى هى اقوم الحالات واسدها(كشاف) اومرادورنه ملة اسلام اوتوحيددې.﴿هِيَ أَقْوَمُ ﴾ اقوم صيغه داسم تفضيل ده اواسم تفضيل اكثر لپاره دزيادت على الغيروي خوكله كله دنفس زيادت لپاره هم راځي په معنى دفاعل

(1) دوم ايت معجزه

(2) بشارت اخروى

(1) تخويف اخروى

سره.لكه الله اكبرشو .چې په معنی د الكبيرسره دي.نو دلته هم اسم تفضيل لپاره دنفس زيادت دي څكه چې توحيد او دين اسلام نه علاوه بل دين صحيح او مستقيم نشته دې چې هغه مفضل عليه شي او دي ورله مفضل شي.نو ﴿أَقْوَمُ﴾ معنى قيمة دي لكه فيها كتب قيمة شو (كبير.بحر)

﴿وَيُبَشِّرُ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾دابشارت اخروي دي اومراد د﴿أَجْرًا كَبِيرًا﴾ نه جنت اوديدار الهى دي.

﴿وَأَنَّ ٱلَّذِينَ﴾تخويف اخروي دي.اوداعطف دي په ماقبل﴿أَنَّ لَهُمْ﴾باندى اود ﴿وَيُبَشِّرُ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ ماتحت دي نو معنى ئى داده چې بشارت وركړي مؤمنانوته په دوه انواعو دبشارتونو باندى چې دوئ ته به ثواب ميلاويږي اودشمن ته به ئى عقاب ميلاويږي.والمعنى انه تعالى بشرالمؤمنين بنوعين من البشارة بثوابهم وبعقاب ادعانهم(كبير).

**فائده**: پدې ايت كښې الله جَلَّ جَلَالُهُ مكلفين دوه(٢) اقساموته منقسم كړل چې يوقسم مؤمنين صلحاء دي چې دهغوئ مقام جنت دي دويم قسم غيرمؤمنين چې دهغوئ مقام جهنم دې اودريم قسم ذكرنشوكوم چې معتزله ثابته وي نومعلومه شوه چې دريم قسم نشته دې كچرته دريم قسم وې نوخامخابه ذكرشوې وو اودهغوئ اخروي انجام به هم ذكرشوې وو.

علامه زمخشري په خپل تفسيركښې ددېنه جواب كړيدې چې هغه دهغه دعلمي جلالت شان لره غيرمناسب دې ليكلي قلت كان الناس حينئذامامؤمن تقى وامامشرك وانما حدث اصحاب المعتزلة بين المترلتين بعدذلك(كشاف ج٢ ص٦٠٨)خوداجواب دمشهوري قاعدي العبرة لعموم الالفاظ نه هم مخالف دې اودقران مجيد عدم جامعيت لره هم مستلزم دې اوخلاف هم دې دواقعي نه.

| وَيَدْعُ ٱلْإِنسَانُ بِٱلشَّرِّ دُعَآءَهُۥ بِٱلْخَيْرِ ۖ وَكَانَ ٱلْإِنسَانُ عَجُولًا ⑪ وَجَعَلْنَا |
|---|
| [1] اوغواړي انسان شرلره پشان دغوختلو دده خيرلره، اودې انسان جلتى كوونكې. [2] اوګرځوليده مونږه |
| ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ ءَايَتَيْنِ فَمَحَوْنَآ ءَايَةَ ٱلَّيْلِ وَجَعَلْنَآ ءَايَةَ ٱلنَّهَارِ مُبْصِرَةً |
| شپه اوورځ دوه دليلونه دقدرت خپل پس كمه كړيده مونږه علامه دشپې اوګرځوليده مونږه علامه د ورځي رڼا والا |

(1) شكوى

(2) دليل عقلى دوم

لِّتَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلِتَعْلَمُوْا عَدَدَ السِّنِيْنَ

لپاره ددې چې طلب کړئ تاسو فضل دجانبه درب ستاسو نه او لپاره ددې چې او پېژنئ شمار دکالونو

وَالْحِسَابَ وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنٰهُ تَفْصِيْلًا ﴿۱۲﴾

او حساب او هر څیز واضح کړې دې مونږه په کامل وضاحت سره

﴿وَيَدْعُ الْإِنسَانُ﴾ پدې ایت کښې شکوې ذکر کیږي چې معجزه اسراء دَدې لپاره او خودلې شوه چې دوئ اوبیریږي او ایمان راوړي مګر دوئ داسې احمقان دي چې مسئله توحید منلو او دالله ﷻ دَخوف په ځائ التبادعذاب مطالبه کوي، اودغه شانتې زجردې په استعجال دَعذاب سره.

﴿الْإِنسَانُ﴾ مراد ورنه جنس انسان دې، اونسبت ورته دَبعضو افرد یعنی کفارو دَعادت شویدې (روح) اویاورنه مراد مطلق انسان دې اومراد دَ بددعانه هغه بددعاده چې کومه انسان دَغصې په وخت کښې کوي مقصد دادې چې کچرته الله ﷻ بددعا پشانته دَدعاءزقبوله ولې نو انسان به هلاك شوې وو ای ويدعو الانسان علی نفسه وولده وماله بالشرفيقول اللهم اهلك والعنه عندضجره وغضبه... فلواستجيب له فی دعائه علی نفسه وماله وولده كما يستجاب له فی الخيرهلك(طبري) اودَدې وجه نه منع راغلیده په حدیث کښې دَبد دعانه چه حضورﷺ فرمائی لاتدعوا علی انفسكم ولاعلی اموالكم ان توافقوا من الله ساعة اجابة يستجيب فيها اویاالف لام عهدخارجي دې اومراد دَالانسان نه مخصوص کافرنضربن الحارث دې چې هغه دخپل ځان لپاره بددعاکړې وه چې اللهم ان كان هذاهوالحقّ من عندك فامطرعلينا حجارة من السماء(الانفال ايت نمبر۳۲).

﴿دُعَآءَهٗ﴾ دامنصوب بنزغ الخافض دې ای كدعائه ربه اهايهب له العافية(قرطبی) ﴿وَكَانَ الْإِنسَانُ عَجُولًا﴾ الف لام په الانسان کښې جنسي دې اومراد ورنه جنس انسان دې چې فطري طورباندې انسان تلوار کوونکې پیدا شویدې ای طبعه العجلة(قرطبي) لکه په سورة الانبياء کښې ذکردې چې خلق الانسان من عجل(ايت نمبر۳۷) اویاورنه مرادمطلق کافراویاهغه کافرمخصوص دې مقصددادې چې دغه کفاراویانضربن حارث جلتی کوونکې دې دغې عذاب ته اوحالانکه هغه عذاب خامخاراتلونکې

دې،اوپدیکښې په دوئ پورې تهکم مقصوددې. اومبالغا فی العجلة لیستعجل الشئ والعذاب وهواتیه لامحالة ففیه نوع تهکم به(روح) اویاورنه مراد حضرت ادم ﷺ دې لکه ابن جریرطبري رحمه الله اوحافظ ابن کثیرپدې ځائ کښې دَحضرت ابن عباس رضی الله عنه اوسلمان فارسي رضی الله عنه نه دَحضرت ادم ﷺ تفصیلي واقعه نقل کړیده چې کله الله جل جلاله په ادم ﷺ کښې روح واچولو اوهغه نوم(ناف) پورې راغلو نوحضرت ادم ﷺ پاسیدو نواوغورزیدلو اوطاقت ئې نه لرلو چې اودریدلې وې نواوئې وئیل یارب عجل قبل اللیل(طبري،ابن کثیر)﴿وَجَعَلْنَا ٱلَّيْلَ﴾ دادویم دلیل عقلي دې په توحیدباندې چې شپه اوورځ دالله جل جلاله دقدرت اوواحدنیت دوه عظیم نشانئ دې،نومرادد ﴿ءَايَتَيْنِ﴾نه نفس شپه ونفس اورځ ده چې دانفس شپه اونفس ورځ الله جل جلاله دوه دلیله پیداکړیدي اوپدوپورې دَمخلوقاتو مصالح دنیوي اودیني متعلق دي،نوبناء پدې توجیه،﴿فَمَحَوْنَآ ءَايَةَ ٱلَّيْلِ﴾ کښې اضافت دَاٰیة،لیل اونهارته اضافت بیاني دې نوتقدیربه ئې داسې شي فمحونا الایة اللتی هی اللیل وجعلنا الایة اللتی هی النهارمبصرة یعني مونږه بې نوره ګرځولي ده یونشانه چې هغه شپه ده اوګرځولي ده مونږه بله نشانه چې هغه ورځ ده رڼا،اویامراد دَ﴿ءَايَتَيْنِ﴾ نه شمس وقمردې اودَایت مقصددادې چې پیداکړیدي مونږه دَشپې اوورځې لپاره دوه علامتونه چې هغه نمراوسپوږمئ دې،نوپدې تقدیراللیل نه مخکښې مضاف مقدردې ای وجعلنانیری اللیل والنهار ایتین الخ (کبیر)اویامراددَایتین نه په دې تقدیرذی ایتین دې،ای وجعلنااللیل والنهارذوی ایتین(روح) ﴿فَمَحَوْنَا﴾فاء تفصیلیه ده دَاضافت بیانی په صورت کښې مراد دَ ﴿فَمَحَوْنَا﴾نه تیاره دَشپې ده چې دَدې رڼاالله جل جلاله محوکړې اوتیاره دَشپې راولې،چې په هغې کښې څه شئ په اسانه سره نه ښکاري ای جعلنااللیل ممحوالضوء مطموسه مظلمالایستبان فیه شئ(کشاف) اودویم تقدیربه بناء مراد دَ﴿فَمَحَوْنَا﴾ نه کموالې دَرڼادَسپوږمئ دې چې دَسپوږمئ رڼاالله جل جلاله کمه کړیده اودااَیت ترکیب دَقبیلي دَضیق فم الرکیة نه دې چې حصول دَمحوابتداء وو وروستونه وو(روح)اویاپه حقیقت باندې محمول دې چې اولا دَنمراوسپوږمئ دواړو رڼایوشانتې وه خوبیاحضرت جبرئیل ﷺ پخپل وزرسره،دَالله جل جلاله په حکم سره سپوږمئ اووهله نودهغې رڼاکمه شوه،داتفسیرمنقول دې دَحضرت عکرمه رضی الله عنه نه اومراددَ ﴿فَمَحَوْنَا﴾نه هغه توروداغ دې په مخ دَ سپوږمئ کښې(طبري) ﴿وَجَعَلْنَآ ءَايَةَ

﴿ٱلنَّهَارِ مُبْصِرَةً﴾اسناد مجازي دي مراد ورنه يبصراهلها دي اويا﴿مُبْصِرَةً﴾ نه مراد مضيئة دي مجازاً په علاقې دَسببيت سره ، ﴿لِّتَبْتَغُواْ فَضْلاً﴾دامتعلق دي په ﴿وَجَعَلْنَآ ءَايَةَ ٱلنَّهَارِ﴾پورې اومراد دفضل نه رزق دي، اوعلت دَ﴿ءَايَةَ ٱلَّيْلِ﴾محذوف دي چې هغه لتسكنوا دي. ﴿وَلِتَعْلَمُوا﴾ دامتعلق دي په﴿ءَايَةَ ٱلَّيْلِ﴾ او ﴿ءَايَةَ ٱلنَّهَارِ﴾دواړو پورې اودَدينه معلومه شوه چې حساب كول په شمسي سره جائزدي ليكن په قمري سره حساب كول فرض كفائي دي اومراد په ﴿وَٱلْحِسَابَ﴾سره حساب دمياشتو اودهفتو اودَورځودي،﴿وَكُلَّ شَيْءٍ﴾ يعني ځومره منافع ديني دي يادنيوي دي هغه ټول مونږ په تفصيل سره واضح كړيدي،څه قسم التباس پكښې نشته دي،دَدې ايت توضيح په سورة النحل ايت نمبر۸۹ كښې تيرشويده.

وَكُلَّ اِنْسَانٍ اَلْزَمْنٰهُ طٰٓئِرَهٗ فِيْ عُنُقِهٖ ؕ وَنُخْرِجُ لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

[1]اوهرانسان سره لازم كړيدې مونږ عمل دهغه، په غاړه دهغه كښې، اوراوباسوبه مونږه لپاره دده په ورځې دقيامت

كِتٰبًا يَّلْقٰىهُ مَنْشُوْرًا ⑬ اِقْرَاْ كِتٰبَكَ ؕ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ

يو كتاب چې ميلاوبه ـيې دده ته خورووررا وبه ونيلې شي ورته) اولوله عملنامه خپله كافي دي نفس ستا نن ورځ

عَلَيْكَ حَسِيْبًا ⑭ مَنِ اهْتَدٰى فَاِنَّمَا يَهْتَدِيْ لِنَفْسِهٖ

په تاباندې حساب كوونكې پس څوك چې په حق روان شو نوبيشكه دې په حق روان دې دنفع خپل خان لپاره

وَمَنْ ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ؕ وَلَا تَزِرُ

او څوك چه چې واوړيدو دحق نه،پس بيشكه اوړي دحق نه چه وبال اوتاوان ئې په خپل خان دې اونشي پورته كولې

---

(1) تخويف اخروى

وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ؕ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِيْنَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُوْلًا ﴿۱۵﴾

پيتی والاپيتی دګناهونودبل چا اونه[1] يومونږه عذاب ورکوونکی ترهغه وخته پوري چې ا وليږو مونږه رسول

﴿وَكُلَّ اِنْسَانٍ﴾پدې کښ تخويف اخروي ذکرکيږي ﴿وَكُلَّ﴾منصوب دې په فعل مقدرسره اودَمااضمرعلى شريطة التفسيردَقبيلي نه دې ﴿اَلْزَمْنٰهُ طٰٓئِرَهٗ﴾مراد دَطائرنه دهرانسان والاعمل دې خيروي اوکه بدوي دَشپې وي اوکه دورځې وي بطورجزغيرمنفك دده سره لازم دې،اى عمله الصادرمنه باختياره جسماني قدرله خيراكان اوشرا(روح)اوتشبيه په طائرسره ځکه ورکړې شوه چې طائرسره به دوئ فال کولو اويامرادورنه قسمت دې دَانسان والا،چې دهرانسان سره دَتقديرپه وجې سره سعادت ياشقاوت لازم دې اودهغې نه دې انحراف نشي کولې اى شقاوته وسعادته وماكتب له من خيروشر وماطارته من التقدير(قرطبي).

﴿فِيْ عُنُقِهٖ﴾داياكنايه ده شدت لزوم اوكمال ارتباط نه،ځکه چې په عرف کښ دَنه جداكيدونكى شئ نه تعبيرپه دې سره کيږي،اوتخصيص دَعنق ځکه کيږي چې په ټولواعضاؤكښ-عنق(غاړه) داسې عضوده چې پدې کښ لګولې شوې شئ دَانسان دَخائست يادَبيكاروالى سره خصوصى تعلق لري(طبري) اوياتنه مرادحقيقةً عنق(غاړه) ده امام مجاهدرحمه الله فرمائى چې مامن مولود يولدالاوفى عنقه ورقة مكتوب فيهاشقى اوسعيد(خازن) ﴿وَنُخْرِجُ لَهٗ﴾مرادتنه ظاهره ول دي،چې هغه صحيفه اواعمالنامه چې دَانسان نه مخفي ده قيامت په ورځ به ورته ظاهره کړې شي اوحضرت حسن بصري رحمه الله فرمائى چې صحيفه اعمال فرشتي دَانسان سره په قبرکښ دفن کوي اوقيامت په ورځ به دقبرنه راوخكلى کيږي،﴿اِقْرَاْ﴾ دَدينه مخکښ يقال له مقدردې اوقائل دَدې الله جل جلاله به وي په واسطه دَفرشتوسره ﴿كَفٰى بِنَفْسِكَ﴾باء زائده ده او﴿بِنَفْسِكَ﴾ فاعل دَكفى دې او ﴿حَسِيْبًا﴾تميزدې په معنى دَحاسب سره اوداايت دليل دې پدې چې هرانسان كه هغه امي وي اوكه لوستونكې وي خپله عمل نامه به په خپله لولي، ﴿مَنِ اهْتَدٰى﴾دامتعلق دې په

(1) تخويف دنيوى

ماقبل﴿إِنَّ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ ﴾پوري اوپدي کښې اثاردعملونو اونتيجه دَحساب ذکرکيږي.چې هرانسان به دَخپل عمل نتيجه مومي که خيروي اوکه شروي.﴿فَإِنَّمَا يَضِلُّ ﴾ يعني وبال اوگناه دګمراهئ په هغه باندی دې بل چاته ندې متعدي،﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ ﴾داتاکيدد دې ماقبل جملي دې چې دَيونفس گناه به په بل نفس نشي بوج کولې اودا ايت دَوليد ابن مغيره په باره کښې نازل شوې دې چې هغه خلکوته اووئيل چې څمااتباع اوکړئ اودَحضرت محمدﷺ انکاراوکړئ اوگناه ستاسوپه ماباندی دې،نودا ايت نازل شو، اودا ايت رددې په هغه چاچې گناه کوي اووائی چې ماته فلانی وئيلي دي گناه ئې په هغه باندی دې اودَدې ايت تعارض وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ سره نشته دې څکه هلته يوعذاب دخپلې ګمراهئ دې اوبل عذاب دَاضلال دې اودغه شانتې دَدې ايت تعارض دَحديث ابن عمرؓ سره هم نشته دې چې هغه روايت نقل کړيدې درسول اللهﷺ نه چې ان الميت يعذب ببكاء اهله عليه اګرچه حضرت عائشهؓ ددې ايت ظاهري منطوق دَوجې نه حديث په يومخصوص واقعه باندی حمل کړيدې،خوجمهورمحدثين اومفسرين فرمائی چې ايت اوحديث کښې څه تعارض نشته دې حديث محمول دې په باره دهغه چاکښې چې وصيت على البكاء ئې کړې وي،لکه څنګه چې رسم دَجاهليت وو،نودغه تعذيب دَقبيلي دَجزاء دَاضلال نه ده،اويامراد دَميت نه محتضر دې چې قريب المرګ وي اوميت اطلاق پدې مجازا شويدې اومراددَتعذيب نه تکليف دنيوي دې نومقصددَحديث دادې چې په ژړادَاهل سره قريب المرګ ته تکليف رسيږي خوژړاپرې نده پکار، ﴿وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ ﴾مراددَعذاب نه پدې ځائ کښې عذاب دنيوي دې چې هغې ته عذاب دَاستيصال وئيلی کيږي،هغه موقوف دې په ارسال درسل باندی پس دَاتمام حجت نه اوچې کوم قوم ته رسول نوي مبعوث نوهغه قوم ته عذاب دنيوي نه ورکولې کيږي اوپه داسې قوم اوكـس باندی ايمان په ذات دَاللهﷻ اوپه توحيدباندی راوړل ضروري دي دَخپل عقل دَوجې نه،دَدې وجه نه امام ابوحنيفهؒ فرمائی چې کچرته يوسړې په داسې ځائ کښې وي چې هلته ورته هيڅ داعي نوي رسيدلې نوبياهم داکس په توحيددَاللهﷻ باندی مکلف دې څکه چې دَانسان لپاره تولونه لوئی داعي دَهغه والاعقل دې.

بعض مفسرینو دعذاب نه مراد عام عذاب اخیستی دي او ددې ایت نه ئی استدلال کړیدي په نفي دَوجوب عقلي باندی. اودا ایت ئی دلیل گرځولی دي پدي چې که یوقوم ته رسول نوي مبعوث نوهغه قوم اگرچه ایمان نوي راوړي نوبیاهم به ورته عذاب اخروي نه میلاویږي خوحقیقت دادې چې دَدي ایت تعلق صرف دَعذاب دنیوي سره دي. چې هغه عذاب استیصال دي اوپدې آیت سره استدلال په نفی دَوجوب عقلی باندی عقلاً نقلاً ضعیف دي[۱]

---

(۱) هرچه ده وجه ضعف نقلاًهغه داده(۱) چې هرپیغمبرخپل قوم ته اولادعوت په دلیل عقلي سره ورکړیدي، الله ﷻ فرمائی قالت رسلهم افی الله شك فاطرالسموات والارض(ابراهیم ایت نمبر ۱۰) نوداواضح دلیل دې چې عقل داعي دې اودَدي په وجه سره انسان مکلف په توحیدگرځیږي (۲) حضرت ابراهیم ﷺ قبل النبوت اثبات دَتوحید په عقل سره کړیدې الله ﷻ فرمائی چې ابراهیم ﷺ کله ستوري. سپوږمۍ. نمرته اوکتلونو اووئی فرمائیل (هذا ربی) هذاربی(الانعام. ۷۶. ۷۷. ۷۸) (۳) دغه شانتي حضرت ابراهیم ﷺ خپل پلاراوقوم ته اوفرمائیل چې انی ارنك وقومك فی ضلال مبین(الانعام ۷۴) نودوئ ته ضلالت ثابته ول دَوحی په ذریعي سره نوو. چې دوئ انکاردَوحي نه کړي وو بلکه دوئ توحیدنومنلی دَعقل دَوجي نه چې دامنل پکاروو نومعلومه شوه چې عقل هم داعي دې اوددې په ذریعي سره انسان مکلف گرځیږي (۴) الله ﷻ دَجهنمیانونه اخبارورکوي فرمائی چې دوئ به وائی چې لوکنا نسمع اونعقل ماکنافی اصحٰب السعیر(الملك ۱۰) نومعلومه شوه چې ترك انتفاع دَعقل دَوجي نه دوئ جهنم ته لاړل.لکه څنگه چې دَترك انتفاع دَنقل وجي نه سړی جهنم ته ځي(۵) دَمشرك په باره کښ الله ﷻ فرمائی ان الله لایغفران یشرك به ویغفرمادون ذلك نودایت مطلق دي چې الله ﷻ مشرك نه معاف کوي بطور عموم اواطلاق هرقسم مشرك ته شامل دي

هرچه دي عقلاً نوهغه داسې دي کچرته قول په ثبوت دَوجوب عقلي اونشي نولازم بشي عدم دَثبوت دوجوب شرعي تالي باطل دي مقدم ئی مثل دې په بطلان کښ.هرچه دي دلیل دملازمي ځکه چې وجوب شرعي مستلزم دې دوجوب عقلي لره اوکچرته وجوب شرعي مستلزم عقلي لره نشي نولازم بشي اثبات الشئ بنفسه یادوریاتسلسل تالي په دري واړو شقوقوسره باطل دي مقدم ئی مثل دې په بطلان کښ دلیل دملازمي دادې چې هرکله یونبي دعوی دَنبوت اوکړي اومعجزه ظاهره کړي نوپه مستمع اومخاطب باندې دخبره اوریدل اوپه دې معجزه کښ تامل کول واجب وي اویابه نوي؟ شق ثاني خوباطل دې بداهة والاباطل بهٔ شي قول بالنبوة. اوکه واجب وي نومدعی ثابته شوله اوکه په شرعي سره راغلي وي نوداشرع مثبت چې ده نودابه بعینه یاهغه مثبت چې مدعی هغه به وي اویابه غیروي، که شق اول وي نولازم شواثبات الشئ لنفسه اوکه شق ثاني وي نوپه هغې کښ کلام کوم چې دهغې شرعي اثبات په عقل سره شویدې که په شرع اخرسره که په عقل سره وي دعوی ثابته شوه اوکه په شرع سره وي نوداشرعه به یاهغه اوله وي یابه بله وي کچرته اوله وي نودورشواوکه غیروي نوتسلسل لازمیږي. اوهرچه دي عرفا، نوعرف پدې شاهددې چې اسباب دَعلم دَمخلوقاتو دري(۳) دي. حواس، خبرصادق اوعقل خوځنگه چې خبرصادق چې هغه مشتمل دې په خبرمتواتر اوخبررسول باندې سبب دَعلم دې نودغه شانتي عقل هم سبب دَعلم دې، باقي په نفي دَوجوب عقلي باندې چې کوم دلائل

وَ اِذَآ اَرَدْنَآ اَنْ نُّهْلِكَ قَرْيَةً اَمَرْنَا

او هركله چې اراده اوكړو مونږه ددې چې هلاك كړويو كلي نو حكم اوكړو مونږه

مُتْرَفِيْهَا فَفَسَقُوْا فِيْهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا

عيش پرستو دهغې ته په اطاعت باندې پس نافرماني اوكړې هغوئ په هغې كښې پس ثابت شي په هغو باندې

الْقَوْلُ فَدَمَّرْنٰهَا تَدْمِيْرًا ﴿١٦﴾ وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْۢ بَعْدِ

فيصله دعذاب نو هلاك كړو مونږ هغوئ لره په لوئ هلاكت سره او ډير هلاك كړيدي مونږه د پيړيو نه ورستو

نُوْحٍ ؕ وَكَفٰى بِرَبِّكَ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِيْرًا بَصِيْرًا ﴿١٧﴾ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ

دنوح عليه السلام نه او پوره دې رب ستا په گناهونو د بندگانو خپلو باندې خبردار ه ليدونكې (١) څوك چې اراده كوي

الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ

دنيا نو په تلوار به وركړو مونږه ده لره په دې دنيا كښې څومره چې مونږه اوغواړو دچا لپاره چې مونږه اراده كړيده

ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ ۚ يَصْلٰىهَا مَذْمُوْمًا مَّدْحُوْرًا ﴿١٨﴾ وَمَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ

بيا مقرر كړيدې مونږه لپاره دده جهنم داخل به شي دې ورته بدو نيلې شوې رټلې شوې او څوك چې اراده لري داخرت

وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ كَانَ سَعْيُهُمْ مَّشْكُوْرًا ﴿١٩﴾

او كوشش كوي هغې لره كوشش مناسب دهغې او دې مومن دې پس دغه كسان كوشش ددوئ قبول كړې شوې

كُلًّا نُّمِدُّ هٰٓؤُلَآءِ وَهٰٓؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ ؕ

هريو سره مونږه امداد كوو ددې دنيا غوښتونكو سره او اخرت غوښتونكو سره دادبخشش د رب ستا نه دې

---

ونيلې دې علامه الوسي رحمه الله په روح المعاني كښې دهغې تفصيلاً جوابونه ذكر كړيدي، (من شاء فليطالع ثمه)
نو خلاصه دبحث دا ده چې عقل حجت دې په ايمان بالله او واحدانيت په باري كښې او ارسال درسل لپاره دتتمه
ددين او دهغې امورو لپاره دې چې دهغې وخت موقوف دې په شرع باندې

(١) جواب سوال مقدر

وَمَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحْظُورًا ﴿۲۰﴾

اونده ورکړه درب ستابند کړې شوې

﴿وَإِذَآ أَرَدْنَآ ﴾پدي ایت کښ تخویف دنیوي بیانیږي اوډماقبل ایت تفصیل دې چې کله الله ﷻ دَیوقوم دَاهلاك اراده اوکړي نودَرسولانو په واسطه سره دهغې مالدارانوته دَاطاعت امراوکړي لیکن هغوئ په فسق اوفجورکښ مبتلاشي نوالله ﷻ ئي هلاك کړي مراددَ﴿أَرَدْنَا ﴾ نه اراده ازلیه نه ده بلکه مرادورنه دُنُوّ اونزدیکت دَوخت دې.ای اذادناوقت اهلاك قوم ولم یبق من زمان امهالهم الاقلیل(کشاف)﴿أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا ﴾ماموربه محذوفه ده چې هغه اطاعت دې چې امرناهم بالطاعة والتوحید.اویا﴿أَمَرْنَا﴾ نه مراد کثرت دې نومعنی ئی داشوه یعني ډیرکړومونږه مالدارانولره یعنی دهغوئ مالونه وغیره په طوردَاستدراج سره ډیرکړو اوعلامه زمخشري فرمائی چې﴿أَمَرْنَا﴾ ماموربه محذوفه وه چې هغه فسق دې ای امرناهم بالفسق اوامرپه خپلي حقیقي معنی کښ مستعمل ندې ځکه الله ﷻ چاته دَفسق حکم نه کوي بلکه مجازي معنی ورنه مرادده چې الله ﷻ په دوئ باندی دَخپلونعمتونوباران اوکړې اودوئ دهغې دَوجې نه راحت پسند اوعیش پرست شی اوپه فسق کښ مبتلاشی اویوقرائت دَ﴿أَمَّرْنَا﴾په تشدیدسره هم راغلیدې نومعنی ئی داشوه چې مونږه دهغې مشران اوحاکمان مترفین جوړ کړو ،نوهغوئ فسق کوي نورعیت هم په فسق کښ مبتلاشي ځکه چې الناس علی دین ملوکهم، اومترف وئیلی کیږي عیش پرست ته اوتخصیص ئی ځکه اوشولوچې باقي خلك دَدوئ متبع وي،وخصوا بالامر لان غیرهم تبع لهم(قرطبی) ﴿فَدَمَّرْنَاهَا ﴾ تدمیراستعمال اکثرپه هغه ځائ کښ کیږي چې هلاکت په ټول قوم باندی په یوځای راشي ای استاصلناهابالهلاك(قرطبی)اوذکردَمفعول مطلق لپاره دَتاکیددې ﴿وَكَمْ أَهْلَكْنَا ﴾داهم تخویف دنیوي دې چې کله هم قومونه نافرماني شروع کړي اوفسق کښ مبتلاشي نودَالله ﷻ عذاب راشي اوټول هلاك شي دَنوح ﷺ نه تراوسه پوري څومره قومونه الله ﷻ هلاك کړیدي چې هغوئ دَخپل پیغمبر خبره نوه منلې،﴿وَكَم ﴾ خبریه دې، ﴿مِنَ ٱلْقُرُونِ ﴾ورله تمیزدې اومراد دَقرون نه اهل

قرون دي چې هغه مکذبین وو او اطلاق دقرن یاپه څلوینبت (۴۰) یاپه اتیا (۸۰) یا په سلو (۱۰۰) او یاپه یو سل شلو (۱۲۰) کالو نو باندی کیږي. ﴿مِنۡۢ بَعۡدِ نُوحٍ﴾ پدیکښې اشاره ده چې د نوحﷺ نه مخکښې شرك نوو په توحید باندی خلك وو. نوحﷺ اول پیغمبر وو چې قوم ورته تکلیف رسولي وو او دشرك ردئی کړې وو او قوم ئی په عذاب سره هلاك شوي وو او په ایت نمبر ۲ کښې هم دېته اشاره شوې ده. ﴿وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ﴾ دا کلام په مقام دمدح کښې راغلیدې نو ځکه په اسم باندی ئی بازانده داخله شویده (طبري) تفصیل ئی مخکښې تیرشویدې. ﴿خَبِيرًۢا بَصِيرًا﴾ یعنی عالم دي په باطن او په ظاهر په هرڅه باندی ﴿مَّن كَانَ يُرِيدُ﴾ پدې ایت کښې تخویف اخروي دې هغه چالره چې صرف ددنیاږوندئی مقصد اصلی ګرځولې وی او داخرت نه غافله وي او دکفارو دیو اعتراض جواب هم ذکر کیږي چې کفارو به اعتراض کولو کچرته دامسنله توحید او دادین اسلام حق وې نو مونږ ته به الله ﷻ ولې مال، دولت او مختلف قسم رزق راکولو ځکه چې مونږه خو ددې مخالف یو او مسلمانان به ولې غریبانان وو حالانکه هغوئ ددې منونکي دي؟ نو جواب اوشولو چې په دنیاکښې مال، دولت او وسعت رزق دحقانیت او مقبولیت عندالله دلیل ندې بلکه کوم سړې چې ددنیاطالب شي او دنیاته په اخرت باندی ترجیح ورکړي نو پدې دنیاکښې مونږه هغه ته مال دولت ورکوولیکن په اخرت کښې ذلت، محرومئ او دجهنم نه علاوه بل هیڅ شی به ورته نه میلاویږي.

﴿ٱلۡعَاجِلَةَ﴾ دا صفت دې موصوف ئی مقدر دې ای الدار العاجلة مراد ورنه د دنیا زندګی ده یعني دهغه هر کار صرف ددنیاد مقصد لپاره وي د دنیاعزت ، ناموس، شهرت او ریالتوي ﴿عَجَّلۡنَا لَهُۥ فِيهَا﴾ یعني کوم مقاصد دنیوي لپاره چې عمل خیر کوي نو هغه ورته په دنیاکښې میلاویږي. او په ﴿مَا نَشَآءُ﴾ کښې اشاره ده چې هغه په خپلو ټولو مقاصدو کښې نه کامیابیږي او ټولې تمناګاني ئی نه حاصلیږي. ددې ایت دسورة هود ایت نمبر ۱۵ سره تعارض نیشته دې اګرچه هلته ایت مقید ندې په قید دمشیت سره ځکه چې هلته پوره پوره بدله ورکول مشروط دي په شرط سره چې دهغې اعمالو اضداد په نیك اعمالو باندی زائدنوي ددې وجه نه ځنې خلك عمل صرف دنیوي مقاصدو لپاره کوي خو بیاهم هغه تمناګانې ئی نه پوره کیږي او په ټولو مقاصدو کښې کامیابی ورته

نه حاصليږي اوياهغه ايت مطلق دي اوداايت مقيددې.خوهغه مطلق ددې ايت دوجې نه هم مقيد دې(قرطبي) اوپه ﴿لِمَن نُّرِيدُ﴾كښې اشاره ده چې دهرطالب دنياته هم دنيانه حاصليږي نوهرڅه موقوف دي په مشيئت اوارادي دالله ﷻ باندې ﴿مَذْمُومًا﴾داحال دي دضميرد ﴿يَصْلَىٰهَا﴾ نه پدې كښې اشاره ده اهانت اوذم دهغه ته ﴿مَّدْحُورًا﴾په معنى دړټلي شوي سره دې اى مطرودا مبعدا من رحمة الله تعالى(روح) نوپدې كښې اشاره ده چې دوئ به دالله ﷻ درحمت مستحق نه ګرځيږي اوهميشه لپاره به په جهنم كښې وي.

﴿وَمَنْ أَرَادَ ٱلْـَٔاخِرَةَ﴾دابشارت اخروي دې دهغه خلكو لپاره چې داخرت دنعمتونو لپاره سعي كوي اونيك عمل كوي موافق دسنت رسول الله ﷺ اودالله ﷻ رضائى مقصودوي. ﴿وَسَعَىٰ لَهَا سَعْيَهَا﴾مرادورنه اطاعات اوقربات دي چې ددې په وجه سره دې داخرت كاميابى مومي. اوبدعات اوخرافاتو نه ځان بچ ساتي،اوعمل كول دي موافق دسنت رسول الله ﷺ اى طلب ذلك من طريقة وهومتابعة الرسول ﷺ (ابن كثير). ﴿وَهُوَ مُؤْمِنٌ﴾طاعات بغيرد ايمان نه بالكل نه قبليږي. نومعلومه شوه چې دعمل عندالله قبوليت لپاره شرطونه دي(۱) دټول نه لوئى شرط ايمان دې (۲)نيت اواراده ده(۳)دعمل كوشش(۴) طريقه هم صحيح وي يعني موافق دسنت وي.نوچې كله داڅلور شرطونه پوره شي نو الله ﷻ فرمائى ﴿فَأُولَـٰٓئِكَ كَانَ سَعْيُهُم مَّشْكُورًا﴾چې متصف په دغه صفاتو سره ددوئ عمل به مقبول وي﴿كُلًّا نُّمِدُّ﴾ ددې ماقبل ايت سره تعلق دي كه څوك دنياطلب كوي اومريدالعاجلة وي اوياآخرت طلب كوي اومريدالاخرة وي اودهغې لپاره ساعي وي،نو دواړو قسمو خلكوته الله ﷻ رزق وركوي په دنياكښې اوحاجتونه ئې پوره كوي.دنياكښې څه فرق نيشته دي فرق به بعدالممات وي،تنوين په ﴿كُلًّا﴾كښې عوض دمضاف اليه نه.دې اى كل الفريقين. اودامفعول به مقدم ده د ﴿نُّمِدُّ﴾لپاره. ﴿هَـٰٓؤُلَآءِ﴾ بدل دي د﴿كُلًّا﴾نه اومشاراليه ددې طالبين ددنيادي يعني الله ﷻ اراده كوونكو ددنياته هم مال اولاد رزق وغيره پدنياكښې وركوي. ﴿وَهَـٰٓؤُلَآءِ﴾ مشاراليه ددې طالبين داخرت اودهغې لپاره سعي كوونكى دي﴿مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ﴾

عطاء په معنی دَعطیه سره دې مرادورنه عطاء دنیوي ده. ﴿وَمَا كَانَ عَطَآءُ﴾ مرادورنه عام عطاء دنیوي وي که اخروي (روح)، اووضع دَاسم ظاهرپه ځائ دَمضمرباندی لپاره دَمزید اهتمام شان دَالله ﷻ دې اولپاره دَاشعارپه علیت دَحکم باندی.

| |
|---|
| اُنْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۭ وَلَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ |
| [1]اوګوره ته چې څرنګه غوره والې ورکړیدې مونږه ځنی ددوئ لره په ځنی نوروباندی اوخامخا اخرت ډیرلوئ دې |
| دَرَجٰتٍ وَّاَكْبَرُ تَفْضِيْلًا ۝۲۱ لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ |
| په اعتباردمرتبوسره اوډیرلوئ دې په اعتباردغوره والی سره، [2]اومه جوړه ته دالله ﷻ سره حق داردبندګئ بل څوك |
| فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا مَّخْذُوْلًا ۝۲۲ |
| پس ناست به پاتی شې بدونیلی شوې رسوا شوې محروم کړې شوې |

﴿اُنْظُرْ كَيْفَ﴾ پدې ایت کښ ترغیب الی الاخرة بیانیږي چې په دنیاکښ دَخلکوپه خپل مینځ کښ دَمال په اعتبارسره حسن اوقبح په اعتبارسره تفاوت دې خوداتفاوت معتبرندې دَفضیلت اعتبارپه درجات دَاخرت باندی دې دنیاکښ اګرچه اکثراوقاتوکښ کافردَمؤمن نه په مال کښ زیات وي لیکن دَاخرت والادرجات دَمؤمن سره مختص دې اوکافربه ورنه محروم وي.

﴿لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ﴾ پدې ایت کښ نتیجه دَماقبل دلائلوعقلیه اونقلیه اودَواقعاتوبیانیږي چې دَدې ټولو دلائلو اودواقعاتومقصد اونتیجه داده چې دَالله ﷻ سره شریك مه جوړه وئی، اودغه شانتې په ماقبل کښ دَدرجاتودَاخرت ذکرکوواوپدې ایت کښ یوسبب دَاسبابودَحصول دَدرجات داخرت ذکرکیږي، اوخطاب په ﴿لَا تَجْعَلْ﴾ کښ یاحضورﷺ ته دې اومرادورنه عام خلك دې اویاخطاب عاموخلکوته دې په قاعدې دَخطاب خاص مرادورنه عام سره لکه ولوترى اذوقفوا. ﴿فَتَقْعُدَ﴾ داجواب نهی دې اوتخویف دنیوی یااخروي دې اومعنی

---

[1] ترغیب الی الآخرة
[2] ثمره دلائل مذکوره

دتقعد صارده اويامكث ده ﴿مَذْمُومًا﴾چې عيبونه اوبدئ په ده وئيلې شي خكه چې مشرك سړې
كاذب وي اوكاذب مستحق دذم وي﴿مَّخْذُولًا﴾ په معنى دمحروم سره يعني كچرته دالله ﷻ نه
علاوه بل څوك ځان لپاره كارساز اوحاجت رواجوړكړي نوپه دنياكښې به دذلت زندګى تيره وي
اوپه اخرت كښې به هم ستاهغه خدايان چې دالله ﷻ سره دې شريك ګرځولى ووهغه به
ستاامداد اونه كړي.

وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ

اوحكم كړيدې رب ستاچې مه كوئ عبادت تاسو دبل چا مګرصرف دهغه او(احسان كوئ) دموراوپلار سره

اِحْسَانًا ۭ اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَآ اَوْ كِلٰهُمَا فَلَا تَقُلْ

په نيكئ كولوسره. كچري اورسيږي ستاپه ژوند كښې بوډاوالى ته يو ددې دواړونه يا دواړه پس مه وايه

لَّهُمَآ اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا ﴿٢٣﴾ وَاخْفِضْ لَهُمَا

دوئ ته اف. قدرى اومه رټه ته دوئ اوكوه دوئ ته خبره ادبناكه (نرمه) اوكوزكړه دوئ ته

جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيٰنِيْ

وزردعاجزئ دوجي دشفقت نه اووايه ته اې ربه خما رحم اوكړې په دوئ باندى لكه چې دوئ پالنه كړيده خما

صَغِيْرًا ﴿٢٤﴾ رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَا فِيْ نُفُوْسِكُمْ ۭ اِنْ تَكُوْنُوْا صٰلِحِيْنَ

په وړكوالې كښې رب ستاسو ښه خبردې په هغه څه چې ستاسو په زړونو كښې دې كچري يئ تاسو نيكان

فَاِنَّهٗ كَانَ لِلْاَوَّابِيْنَ غَفُوْرًا ﴿٢٥﴾ وَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ وَالْمِسْكِيْنَ

پس بيشكه الله ﷻ دې توبه كوونكوته بخنه كوونكې دې. اووركوه خپلوانوته حق دهغوئ اومسكين ته

وَابْنَ السَّبِيْلِ وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيْرًا ﴿٢٦﴾ اِنَّ الْمُبَذِّرِيْنَ كَانُوْٓا اِخْوَانَ الشَّيٰطِيْنِ

اومسافرته اومه خرج كوه مال په بى ځايه خرج كولوسره. بيشكه بى ځايه خرج كوونكې دې رونړه دشيطانانو

وَكَانَ الشَّيْطٰنُ لِرَبِّهٖ كَفُوْرًا ﴿۲۷﴾ وَاِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ ابْتِغَآءَ رَحْمَةٍ

اودي شيطان دخپل رب نه ډيرناشکره اوکه ته مخ اوګرځوی ددوئ نه دوجې دطلب کولودرحمت

مِّنْ رَّبِّكَ تَرْجُوْهَا فَقُلْ لَّهُمْ قَوْلًا مَّيْسُوْرًا ﴿۲۸﴾ وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُوْلَةً

درب ستاچې اميدئې لري ته دهغې پس وايه ته دوئ ته وينانرمه اومه ګرځوه ته لاس خپل تړلي شوي

اِلٰى عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُوْمًا مَّحْسُوْرًا ﴿۲۹﴾

دغټ خپل سره اومه پرانزه لاس په پوره پرانستلوسره پس ناست به يې شې ملامته ستومانه

﴿وَقَضٰى﴾ پدې ايت کښې امورثلاثه دفعيه دعذاب ذکرکيږي پس دواقعه داسراء نه اوددلائلو عقليه اونقليه نه،امراول ددفعيه لپاره توحيددې يعني شرك نه بچ کيدل دي.دقضى لپاره معانى کثيره دي کله په معنى دخلق سره وي لکه فقضهن سبع سموات،کله په معنى دحکم اوفيصلې سره وي لکه فاقض ماانت قاض،کله په معنى دفراغ سره وي لکه اذا قضيت الصلوة کله په معنى داراد سره وي لکه اذا قضى امرا،کله په معنى دعهدسره وي لکه اذقضيناالى موسى الامر.اوکله په معنى دامرمحکم سره وي،چې نسخ نه قبلوي،دلته ورنه دغه اخيره معنى مراده ده،﴿وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا﴾ ددينه مخکښې فعل مقدردي اى احسنوا احسانا،اودا دويم امردې دامورثلاثونه لپاره ددفعيه دعذاب،چې هغه دوالدينواودنورو خپلوانوسره احسان کول دي خودوالدينوحقوق په نورو خپلوانواومساکينواومسافرو باندې مقدم اوفائق وو نوددينه وجه نه حقوق دوالدينوپه ټولونورو حقوقوباندې مقدم ذکرکړې شو اوپنځه اداب ئې بيان کړې شو،الله ﷻ دوالدينوسره احسان اودهغوئ اطاعت امر،دخپل عبادت امرسره متصل ذکرکوي اوعطف ددې ئې کړيدې په ماقبل جملې ﴿تَعْبُدُوْٓا﴾باندې وجه داده چې الله ﷻ دوجودانسانى لپاره علت اوجاعل حقيقى دې اوموريلار علت مجازي دي نودالله ﷻ شکريه داده چې صرف دهغه عبادت اوکړې شي اوبل څوك ورسره شريك نه کړې شي،اودوالدينو شکريه داده چې هغوئ سره احسان اوکړې شي نوددينه داهم معلومه شوه چې الله ﷻ سره په عبادت کښې والدين هم شريك کول ندي جائزچې

هغوئ علت مجازي دي نونورخيزونه په طريقه اولى سره جائزندي اوتنوين په ﴿إِحْسَٰنًا﴾كښې لپاره دتعظيم دي اى احساناعظيما كاملا(كبير).

**تنبيه:** والدينوسره احسان اودهغوئ اطاعت واجب دي خوپه معاصي كښې دهغوئ اطاعت ندي ضروري دوجي ددي قول دالله جل جلاله نه چي وان جاهداك على ان تشرك بي...فلاتطعهما (سورة لقمان ايت نمبر ۱۵)اودوجي دقول درسول اللهﷺ نه چي لاطاعة لمخلوق فى معصية الخالق اودغه شانتي والدين اګرچه كافروي خوپه اولادباندی حسن سلوك اودهغوئ خدمت كول واجب دي،دوجي دعموم داياتونو داحسان نه اودوجي ددي قول دالله جل جلاله چي وصاحبهما فى الدنيا معروفا فامربمصاحبة الوالدين المشركين بالمعروف(جصاص) اودوجي دعموم دهغه احاديثونه چي په هغي كښې امرداطاعت اوفضيلت داطاعت دوالدينو راغليدي اودغه شان نزول دايت لاينهكم الله عن الذين لم يقتلوكم دحضرت اسماءﷺ دتپوس په باري دحسن سلوك دمشركى مورسره شويدي،دوالدينو اطاعت فضيلت په باری كښې احاديث قرطبى،ابن كثير،درمنثور وغيره په تفصيل سره ذكركړيدي.

**تنبيه۲:** والدين چي كله كافروي(العياذبالله)نودهغوئ سره داحسان طريقه داده چي هغوئ لپاره دهدايت دعااوكړي شي،هغوئ ته داسلام دعوت وركول اودهغوئ خدمت كول په جان اومال سره

﴿إِمَّا يَبْلُغَنَّ﴾امامركب دي دان شرطيه اومازائده نه لپاره دتاكيدځكه چي لحوق دنون ثقيله په فعل شرط پوري بغيردزيادت دمانه جائزندي،پس نشي وئيلې چي ان تكرمن زيدا يكرمك(كشاف) ﴿عِندَكَ﴾يعني ستازير كفالت،﴿ٱلۡكِبَرَ﴾ تخصيص دبوډاوالى حالت ځكه اوشولوچې پدې عمركښې والدين ضعيف شي اودبچودخدمت محتاج شي اوددې وجه نه په يوحديث شريف كښې نبيﷺ ارشاداوفرمايلو چي رغم انفه رغم انفه رغم انفه،قيل من يارسول اللهﷺ؟ قال من ادرك والديه عندالكبراحدهما اوكليهما ثم لم يدخل الجنة(مسلم كتاب البروالصلة) ﴿فَلَا تَقُل لَّهُمَآ أُفٍّ﴾دااولينې ادب دې كلمه داف يااسم دي دهرهغه صوت لپاره چي دزړه تنګوالى اوديوخيزبدګڼړلو وخت كښې دخولى نه صادريږي، اويااسم فعل دې په معنى داتضجرسره اولفظ داف عبارة النص دې په حرمت داف كولوكښې اودلالة النص دې په هرهغه سلوك كښې دوالدينوسره چي په هغې سره والدينوته

تکلیف رسیږي لکه په هغوئ باندی غصه کول شوداهغوئ دخدمت نه تنکیدل اوسپکی سپوری ورته ونیل.دهغوئ وهل، قیدکول،مزدورجوړول حتّی که چې پلاردخپل اولادپه قتل کې قصاصاًقتل کول تول حرام دي،﴿وَلَا تَنْهَرْهُمَا ﴾ دويم ادب دې مراد د دينه منع كول دي داظهاردمخالفت نه په قول کښ دَوالدينو على سبيل الرد اوياعلى سبيل التكذيب چې دهغوی يوه خبره ردکړې شي اوياورته دَدروغونسبت اوکړې شي، مطلق نه ورنه ندې مراد خکه هغه به دلالة النص سره معلوم شويدې دَمخکښ جملي نه ﴿وَقُل لَّهُمَا ﴾دادريم ادب دې چې هغوئ ته خائسته اونرمه خبره کوئ چې دَهغوئ ادب پکښ ملحوظ وی،دَدې وجه نه حضرت عمرؓ ددې ايت په ضمن کښ ارشاد اوفرمايلو چې موراوپلارته په نوم سره اواز کول جائزندي بلکه هغوئ لپاره به دَادب والا الفاظ استعماله ولې شي لکه یابتاه یااماه شو، ﴿وَٱخْفِضْ﴾داڅلورم ادب دې چې دهغوئ سره داسی شفقت اومهرباني والاسلوك کوه لکه څنګه چې هغوئ تاسره دوړوکوالی په حالت کښ کولو﴿جَنَاحَ ٱلذُّلِّ ﴾ ،الذل په معنی دَمذلول سره دې يعني وزري دَعاجزئ اوداکنایه دَانتهائ شفقت اودَعاجزئ نه دَهغوئ سره لکه څرنګه چې يوطائرناست وي په زمکه باندی نوخپلي وزري ئی لاندې کړي وي اوچې کله دَالوتلو اراده اوکړي نوخپلي وزري کولاؤکړي،اوبعض مفسرين فرمائی چې کلام مبني دې په استعاري باندی چې تشبيه ورکړې شويده دَذل دَطائرسره چې خوف زده وي نودامکنيه ده اوثبوت دجناح، ذل ته تخيليه ده اوثبوت دَخفض ترشيحيه ده خکه چې کله طائر اويريږي نووزري خپلي ملصقي کړي په زمکه پوري،﴿مِنَ ٱلرَّحْمَةِ ﴾ يعني داعاجزي اوشفقت صرف دَوجی دَرحمت نه وي خوف اوعاردَوجي نه نوي،اونه رياپکښ مقصودوي. ﴿وَقُل رَّبِّ ٱرْحَمْهُمَا ﴾داپنځم ادب دې چې هغوئ ته دعادَرحمت هم کوئ قفال فرمائی چې چې لفظ درحمت جامع دې هرخيرلره چې ديني وي اوکه دنيوي وي،لفظ الرحمة جامع لكل الخيرات في الدين والدنيا والدين چې کله مسلمانان وي نودَهغوئ په حق کښ رحمت دعاکولومقصدظاهردې اوکچري کافروي نودَدعاء رحمت مقصددادې چې هغوئ لپاره دَهدايت سوال اودعاء اوکړې شي خکه چې هدايت الی الاسلام عين رحمت دې،اوبعض علماء فرمائی چې

داایات دعام مخصوص منه البعض دقبیلي نه دې اوکافروالدین پکښې ندي داخل اوبعض دنسخ قائل دي په ایت دماکان للنبی والذین امنوا الخ(التوبة ایت نمبر۱۱۳)سره او﴿وَقُل﴾ صیغه دامرده اوامرچې کله خالي وي دقرائنونه نوحمل کیږي په وجوب باندی نوددې وجه نه په اولاد باندی والدینوته دعاکول واجب دي، ﴿كَمَا رَبَّيَانِي﴾کاف یاتشبیه لپاره دې نومطلب به داشي چې داسې رحمت په دوئ باندی اوکړه لکه څرنګه چې دوئ څماتربیت اوپه ماباندی رحمت کړې وو اوهرکله چې تربیت مستلزم وورحمت لره نوپه جانب دمشبه کښې ذکردرحمت اوشو اوپه جانب دمشبه به کښې ذکردتربیت اوشو،اویاکاف تعلیلیه دې نومعنی به ئې داشي چې دوجې د تربیت ددوئ نه مالره،ای لاجل تربیتهما لی(روح) لکه څرنګه چې په واذکروه کماهداکم کښې کاف تعلیل لپاره دې،بعض علماء فرمائی چې دادعادرحمت مختصه ده په بعدالموت پورې یعني دهغوئ په حیات کښې دهغوئ اطاعت کوئ اوپس دمرګ نه ئې ورته دعاکوئ کن بارا فی حیاتهما وادع لهما بعدموتهما(بحرسمرقند ) قرطبی پدې مقام کښې یوه عجیبه واقعه په خپل سندسره دحضرت جابرؓ نه نقل کړیده چې هغه قابل دیده ده، ﴿رَّبُّكُمْ أَعْلَمُ﴾اشاره ده تصحیح نیت ته په ټولوطاعاتوکښې اوخاص طورپه احسان کښې دوالدینو سره اوتهدیداوزجردې پدې چې دهغوئ دخدمت نه تنګ شي اوبدئ ګڼړي په زړه کښې،﴿بِمَا فِي نُفُوسِكُمْ﴾ یعني ستاسودزړونو رازونه الله ﷻ ته معلوم دي کوم سړي چې په صدق زړه سره اوپه اخلاص سره دوالدینوحقوق اداکوي هغه هم الله ﷻ ته معلوم دي اوکوم کس ریایابل څه وجې نه خدمت کوي اوپه زړه کښې بدګڼړي هغه هم الله ﷻ ته معلوم دي ﴿إِن تَكُونُوا صَالِحِينَ﴾یعني کچرته قصدکونکې دصلاح اوبرئ دوالدینو سره،نه یئ قصدکوونکی دنافرمانئ اودفساد اوپه زړه کښې صادق یئ اوڅه غلطي درنه اوشوه یادوالدینوپه خدمت کښې څه کوتاهي اوشوه نو﴿فَإِنَّهُ كَانَ﴾ یعني الله ﷻ به ستاسودغه تقصیرمعاف کړي داایت اګرچې په اعتباردمتعلق سره خاص دې په والدینوپورې خوپه اعتباردالفاظوسره عام دې ټولو طاعاتولره﴿لِلْأَوَّابِينَ﴾ پدیکښې تقریباترلسو(۱۰)پورې اقوال دعلماؤنه مروي دې،خو زیات غوره دادې (۱)چې مراد ددینه هغه څوك دې چې رجوع کوونکې وي دګناهونونه اطاعت دالله ﷻ ته.(۲)مرادورنه هغه څوك دې چې په تنهائ کښې خپل ګناه یادکړي اوبیاپه هغې

استغفارکوي(۳)مرادورنه هغه څوك دي چي ګناه ورنه صادرشي نوتوبه اوباسي بیاورنه ګناه صادرشي نوتوبه اوباسي بیاصادرشي بیاتوبه اوباسي(۴)مرادورنه محسن دي(۵) مرادورنه صلوة الضحی کوونکی دي.کومه خبره چي مشهوره ده لکه په روایت دابن المنکدردي چي اوابین دمانښام په وخت کښ نفل کول دي داخبره داصحیح نده په صحیح حدیث کښ صلوة الاوابین اطلاق په صلوة الضحی باندی شویدي.

﴿وَءَاتِ ذَا ٱلۡقُرۡبَىٰ﴾پدي آیت کښ دري(۳) نوروحقدارانو دحقوقوذکرکیږي چي(۱) دوالدینو نه علاوه دنوروخپلوانوسره هم احسان کوئ اوصله رحمي پالئ(۲) مساکین اوغریبانو سره امدادکوئ(۳)اومسافروسره همدردي کوئ﴿حَقَّهُۥ﴾ چي کله رشته داران مساکین وي او سړي به خیله موسراومالداره وي نوهغوئ سره امدادکول واجب دي،﴿وَلَا تُبَذِّرۡ﴾بعض علماء فرمائی چي تبذیراواسراف مترادفین دي خوغوره خبره داده چي تبذیروئیلی کیږي انفاق مال فی غیرحقه یعني مال په داسي مصرف کښ خرچ کول چي په هغي ځای کښ خرچ کول شرعا جائزنوي.لکه په شرك اوبدعاتوکښ مال خرچ کول شویالکه رقص اوسرودشو وغیره،﴿إِنَّ ٱلۡمُبَذِّرِينَ﴾مبذرته دشیطان ورور ځکه وئیلی شویدي چي شیطان کومي باطل لاري ته خلك رابلي نومبذردمال په ذریعې دشیطان امدادکوي،اودهغه سره مشاکل دي په معصیت دالله ﷻ کښ لانهم یوافقونهم فیمایدعونهم الیه ویشاکلونهم فی معصیة الله(زادالمسیر) اویامراد داخوة نه مماثلت دي چي مبذرمماثل دي دشیطان سره په دي بدوصفاتوکښ ځکه چي عرب په ملازم للشئ باندی اطلاق داخ کوي لکه چي وائی فلان اخوالکرم والجود،فلان اخوالسفر(اللباب) اویامراد داخوة نه مقارنت دي چي مبذرمقارن دي دشیطان سره په اورکښی لکه الله ﷻ فرمائی ومن یعش عن ذکرالرحمن نقیض له شیطانا فهوله قرین(زخرف ۳۶) ای قرنائهم فی النارعلی سبیل الوعید(ابی سعود) ﴿وَكَانَ ٱلشَّيۡطَٰنُ﴾داتتمه دتعلیل ده چي مبذراوشیطان دواړه ناشکره دي دالله ﷻ ځکه چي دمال شکراداکول دادي چي هغه دالله ﷻ داطاعت اوپه مرضی کښ خرچ شي ځکه چي شکروئیلی کیږي صرف العبدجمیع ماانعمه الله تعالی الی ماخلق لاجله.اوکله چي دالله ﷻ مرضی اواطاعت خلاف مال خرچه شي نودیته کفران نعمت وئیلي کیږي،نومبذرهم دکفران نعمت مرتکب شو لکه څرنګه شیطان کفران دنعمت دالله ﷻ

کړیدي، ﴿وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ ﴾پدي ایت کښ ادب بیانیږي په وخت دعدم قدرت لروداحسان کولوکښ،چې کچرې یوسړی دَخپلوانو اومستحقینوسره مالی امداد اواحسان کولوباندی قادرنوي نوهغوئ ته سخته خبره اوبي کاره جواب ورکول ندي جائزبلکه نرمه خبره اوښې طریقې سره خپل عذرپیش کړی. ﴿عَنۡهُمُ﴾ ضمیردَغوره قول مطابق راجع دې مذکورینوته. ﴿ٱبۡتِغَآءَ رَحۡمَةٖ ﴾دامفعول له دې دَاعراض لپاره اوکنایه ده دَ فقرنه ځکه چې نیشوالي دَمال سبب دې دَطلب دَمال لپاره اوطلب دَمال ورسره لازم دې نودَدې وجه نه فقرته نوم دَ ﴿ٱبۡتِغَآءَ رَحۡمَةٖ ﴾ورکړې شواویاداچه ﴿وَإِمَّا تُعۡرِضَنَّ ﴾شرط دې او ﴿فَقُل لَّهُمۡ ﴾ورله جواب شرط دې اوابتغاء رحمة دامتعلق دې په جواب شرط پورې اوتقدیم دَمتعلق جزاپه جزاباندی په مذهب دکوفیانو باندی جائزدې مطلقًا نومطلب دَایت دادې چې دوئ ته نرمه خبره کوه نوته به دَالله ﷻ رحمت طلب کړې دوجی دَرحمت ستانه پدوئ باندی ای فقل لهم قولاسهلا لینا، رحمة لهم وتطییبا لقلوبهم ابتغاء رحمة من ربك،ای ابتغ رحمة الله التی ترجوها برحمتك علیهم(کشاف) ﴿فَقُل لَّهُمۡ قَوۡلٗا مَّيۡسُورٗا ﴾مفعول په معنی دَفاعل سره دې یعني نرمه اوخوږه خبره ورته اوکړه ای لینالطیفا طیبا(قرطبی) اویاورنه مراد دعا دیسرده.چې دوئ ته دعااوکړه چې الله ﷻ دی ستامشکل اسان کړي، ﴿وَلَا تَجۡعَلۡ يَدَكَ ﴾پدې ایت کښ طریقه بیانیږي دَمال دَخرچ کولو اوامرکیږي په اختیارولودَمیانه روی سره چې دَمال په خرچ کولوکښ افراط اوتفریط نه کاراغستل ندې پکارچې نه بالکل چاسره امدادکوي اوبخل اختیارکړي اونه دومره سخاوت چې هرڅه ختم کړي چې بیاحسرت اوندامت کوي،بلکې خیرالاموراوسطها باندی عمل پکاردې. ﴿مَغۡلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ ﴾دااستعاره تمثیلیه دَمحسوس ده لپاره دَمعقول ځکه چې یدمغلولة محسوس دې اوبخل یوصفت قائمه دې په نفس دَانسان پورې نومشابه کړې شوحال دَبخیلانو دَحال دَهغه چاسره چې لاسونه ئې تړلی شوي وي په څټ پورې،لکه څرنګه دهغه لاسونه بند وي دَتصرف کولونه په مال کښ نودغه شانتې بخل دَبخیل هم مانع وي هغه لره دَ تصرف کولونه په خپل مال کښ،اوذکردَلاس ځکه اوشولو چې په دې سره اخذاواعطاء کیږي ﴿وَلَا تَبۡسُطۡهَا ﴾دااستعاره ده دَاذهاب دَمال نه اوسخاوت نه په مال کښ اودَبسط په مقابله کښ قبض ذکرکیږي خوپدې ځائ کښ دبخل نه تعبیر په غل سره اوکړې شوځکه چې دا زیات ابلغ وو په نسبت سره قبض نه

اودانهي اګرچې په اعتباردلفظ سره خاص ده خومرادورنه عموم دې اوهرامتي ورته مراد دې ﴿فَتَقْعُدَ مَلُومًا﴾، دالف نشرمرتب دې ﴿مَلُومًا﴾مرتب دې په ﴿وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ ﴾باندی. او ﴿مَحْسُورًا﴾مرتب دې په ﴿وَلَا تَبْسُطْهَا ﴾باندی.

| إِنَّ | رَبَّكَ | يَبْسُطُ | الرِّزْقَ | لِمَنْ | يَشَآءُ | وَيَقْدِرُ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| [1]بيشکه رب ستافراخه وي رزق لپاره دهغه چاچې اوغواړي اوتنګه وی ئې(چاته چې اوغواړي) | | | | | | |

| إِنَّهُ | كَانَ | بِعِبَادِهِ | خَبِيرًا | بَصِيرًا ﴿٣٠﴾ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه | الله ﷻ | دې | په | خپلو | بندګانوباندی | خبردارليدونکې |

﴿إِن رَبَّكَ ﴾دادريم دليل عقلي دې په توحيدباندی چې درزق تنګي اوفراخي دالله ﷻ په اختيارکښ دې اوازاله دتوهم کيږي چې کچرته څوك سخاوت کوي اولاس اونه تړي نوکيدې شي چې داسړی غريب شي؟

نودَدې ازاله اوشوله چې رزق فراخ کوونکې اوتنګی ورکوونکې الله ﷻ دې په سخاوت سره انسان غريب کيږي نه اوپه بخل سره انسان مالداره کيږي نه

﴿إِنَّهُ كَانَ بِعِبَادِهِ ﴾ داعلت دې دَماقبل لپاره چې الله ﷻ څني بندګانو لره رزق فراخ کړي اوڅني باندی تنګستيا راولي، ځکه چې الله ﷻ دَخپلو بندګانو په مصلحتونوباندی ښه خبرداردې.

| وَلَا | تَقْتُلُوٓا | أَوْلَادَكُمْ | خَشْيَةَ | إِمْلَاقٍ | نَّحْنُ | نَرْزُقُهُمْ | وَإِيَّاكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| [2]اومه وژنئ [3]تاسو اولادخپل دوجې ديرې. روزي وركوودوئ ته دلوږې نه مونږه اوتاسو ته هم | | | | | | | |

(1) دليل عقلی سوم برتوحيد.

(2) امرسوم برای دفعيه عذاب

(3) ظلم اول

إِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْـًٔا كَبِيرًا ﴿٣١﴾ وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰٓ إِنَّهُ كَانَ

بیشکه قتل ددوئ ده ګناه لویه،[4] اومه نزدي کیږئ تاسوزناته بیشکه دازنادي

فَاحِشَةً ۖ وَسَآءَ سَبِيلًا ﴿٣٢﴾ وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا

دبی حیائی کاراوبده لارده، [1] اومه وژنئ تاسوهغه نفس چې حرام کړیدې الله جَلَّ جَلَالُهُ ‹‹وژل دهغه›› مګر

بِالْحَقِّ ۗ وَمَن قُتِلَ مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَانًا

په حق سره، اوڅوك چې اووژلې شو په ظلم سره پس په تحقیق سره ګرځولیدې مونږه وارث دهغه لره اختیار‹‹غلبه››

فَلَا يُسْرِف فِّي الْقَتْلِ ۖ إِنَّهُ كَانَ مَنصُورًا ﴿٣٣﴾ وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا

پس ندې کوي زیاتې په قتل کښې. بیشکه دده امدادکړې شویدې [2] اومه نزدي کیږئ مال دیتیم ته مګر

بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُ ۚ وَأَوْفُوا بِالْعَهْدِ ۖ

په داسې طریقې سره چې هغه خائسته وي تردې پورې چې اورسیږي دې خوانئ خپلې ته، اوپوره کوئ وعدې لره

إِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْئُولًا ﴿٣٤﴾ وَأَوْفُوا الْكَيْلَ إِذَا كِلْتُمْ وَزِنُوا

بیشکه دوعدې په باره کښې به تپوس کیدې شي، اوپوره کوئ پیمانه چې کله پیمانه کوئ تاسو اوتول کوئ

بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴿٣٥﴾ وَلَا تَقْفُ

په تلې برابرې سره ‹‹انصاف سره›› داکار‹‹برابروالې›› ډیرغوره دې اوخائسته انجام والادې [3] اوپیروي مه کوه

مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ ۚ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ

دهغې څیز چې نوي تالره په هغې باندې څه علم‹‹دلیل›› بیشکه غوږونه اوسترګې اوزړونه

‹4› ظلم ثانی

‹1› ظلم ثالث

‹2› ظلم رابع

‹3› ظلم خامس

كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا ۝ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّكَ

ددې ټولو په باره کښې به تپوس کيدې شي [4] اومه ګرځه ته په زمکه کښې په تکبرسره بيشکه ته

لَنْ تَخْرِقَ الْأَرْضَ وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُولًا ۝ كُلُّ ذَٰلِكَ

هرګزنشي شلولې زمکه اوهرګزنشي رسيدلې غرونوته په اوږدوالی کښې ټول دغه مذکور

كَانَ سَيِّئُهُ عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوهًا ۝

دي منهيات ددې په نيزدرب ستاناخوښ

﴿وَلَا تَقْتُلُوٓا﴾دادفعيه دعذاب لپاره دريم امرذکردې چې هغه دظلم نه ځان بچ ساتل دې،اوپدې کښې اوه منهيات ذکرکيږي،دا اوله نهي ده چې خپل اولاد مه قتلوئ دفقردخوف نه. په دورجاهليت کښې عربو به خپلې،بچئ دوه(۲) وجونه قتلولې څني خلکو به ددې وجه نه قتلولې چې هغوئ به ځان لپاره داخبره پيغورکنړله چې ځمالورسره بل څوك نکاح کوي نوځنګه به ئې چې بچئ پيداشوه نوفورا به ئې ژوندئې ښخه کړه(۲) اوځني خلکو به دافکرکولو چې دابچئ خوځه کارروزګارنشي کولې نوديته به رزق څوك ورکوي؟ نوهغه به ئې قتل کړه.اودا وجه اکثرې وه،نوپدې ايت کښې ددغې رداوکړې شو چې خپل اولاد فقردخوف دوجې نه مه قتلوئ. اومراد دقتل نه عام دې که جسماني وی اوکه روحاني وي،داوړوقسموته ايت شامل دې.تفصيل ئې په سورة الانعام(ايت نمبر(۱۵۱) تير شويدې. اومراد د ﴿أَوْلَٰدَكُمْ﴾نه بنات يعني بچئ دي﴿خَشْيَةَ إِمْلَٰقٍ﴾، املاق فقرته وئيلی کيږي اوهرکله چې مراددفقرنه پدې مقام کښې فقرمتوقع وو نوددې وجه نه لفظ دخشية ورسره ذکرشو اوپه سورة الانعام کښې ورنه مراد فقرناجزيعنى حالاًغربت مرادوو دد وجه نه هلته کښې من املاق بغيردزيادت دلفظ خشية نه ذکرشو﴿نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ﴾ داتعليل دنهی د چې رزق ورکوونکی مونږه يو اوتقديم دضميرچې راجع د اولاد ته په ضمير د خطاب

(4) ظلم سادس

باندی کښې اشاره ده چې تاسوته هم رزق دَاولاد په برکت سره میلاویږي تقدیم ضمیر الاولاد علی المخاطبین علی عکس ماوقع فی سورة الانعام للاشعارباصالتهم فی افاضة الرزق(ابی سعود) ﴿كَانَ خِطْئًا﴾كان ناقصه دَ اسم ئې ضمیرمستتره دَ خطئا ورته خبردَ،اوقرات مشهوره بکسرالخاء اوبسکون الطاء دَ مصدردَخطایخطاء دَ اوچې بفتح الخطاء شي نوبیااسم مصدردَ وئیلی کیږي عمداًگناه ته، ﴿كَبِيرًا﴾صفت دَ ﴿خِطْئًا﴾لپاره،یعني لوئی گناه دې دادلیل دې پدې چې دَخطاء اطلاق کله کله په گناه کبیره باندی هم کیږي،

﴿وَلَا تَقْرَبُوا۟ ٱلزِّنَىٰٓ ﴾پدې کښې دویمه نهي ذکرکیږي دَظلم نه، په ماقبل ایت کښې دَقتل دَاولادنه نهي وه اوپدې کښې نهې ده دَایجاددولدنه په طریقه غیرمشروعه سره چې هغې ته زناوئیل کیږي اودَ﴿وَلَا تَقْرَبُوا۟﴾ نه مراد نهی دَدواعي، مبادي اومقدمات دَزنادې چې کوم څیزونه اسباب اودواعي دَزنادي هغه هم مه اختیاره وئ هغه هم حرام دي اوزناخوپه طریقه اولی سره حرام ده وهوفی عن دواعی الزنا ولوارید بالنهی عن نفس الزنا تقال ولاتزنوا(مدارك) ﴿إِنَّهُۥ كَانَ فَـٰحِشَةً ﴾فحش اطلاق په هرلوئی گناه باندی کیږي اوپه هربی حیائی کارباندی کیږي،﴿وَسَآءَ سَبِيلًا ﴾سبیلا منصوب دي بناء پدې چې تمیزواقع شویدې دساء نه اومخصوص بالذم ورله محذوف دې چې هغه هو ضمیردي چې راجع دې زاني ته چې په هغې دلالت کړیدې زنا اوپدې کښې اشاره ده چې دَزنا لپاره مفاسدکثیره دي منجمله دهغې نه دادي چې پدې سره اختلاط په انسابُ کښې راځي،عدم تربیت دَولدالزنا، فسادپه معاشره کښې راځي چې هغه مستلزم دي قتل مقاتلي لره وغیره، ﴿وَلَا تَقْتُلُوا۟ ٱلنَّفْسَ ﴾ دادریمه نهي ده دَظلم نه چې هغه قتل دَنفس دې بغیردَسبب شرعي نه ﴿حَرَّمَ ٱللَّهُ ﴾مفعول به مقدره دې ای حرم الله قتلها اومرادورنه حرمت دَهغه نفس دې چې محفوظ وي په اسلام سره یاپه جزئی سره اویاپه عهدسره. ﴿إِلَّا بِٱلْحَقِّ ﴾قتل دَنفس حرمت مغلظه دې اوحل داعارضي دې دَدې وجه نه اولاً نهي دَمطلق نفس دَقتل نه اوشوه اوپه استثناء سره ئې حل ثابت شودَ وجې دَیودَاسبابوشرعیونه چې هغه درې(۳)اسباب دي(۱) ارتداد(۲)، قتل عمدمؤمن (۳)، زنابعدالاحصان. اودَدي ایت په ترکیب کښې متعدد اقوال راغلیدي(۱) باء سببیه ده

جارمجرور متعلق دي په ﴿وَلَا تَقْتُلُواْ ﴾پوري او استثناء مفرغه ده يعني مستثنی منه محذوف دی ای لاتقتلوها بسبب من الاسباب الابسبب الحق(۲) باء لپاره دملابسته ده اوجارمجرور متعلق دی نه مقدرپوري چې هغه متلبس دي اوجارمجرورسره دمتعلق نه حال واقع شويدې دفاعل نه اويادمفعول نه تقديردعبارت داسي دي لاتقتلواها الامتلبسين بالحق داپه هغه صورت کښ چي حال شي دفاعل نه،اوچې حال شي دمفعول نه نوبيابه تقديردعبارت داسې شي لاتقتلوها الامتلبسة بالحق(۳)﴿إِلَّا بِٱلْحَقِّ ﴾دامفعول مطلق دي د﴿وَلَا تَقْتُلُواْ ﴾ لپاره په اعتبار دموصوف مقدره سره تقديردعبارت داسې دي چې لاتقتلوهاقتلا ماالاقتلا متلبسا بالحق، ﴿وَمَن قُتِلَ مَظْلُومًا ﴾يعني بغيرد يوسبب نه چې مبيح للقتل وي، ﴿فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِۦ ﴾مراد دولي نه هوالطالب بدمه شرعادې چې هغه وارث دمقتول دي برابره ده سړې وي که ښځه وي غټ وي ياوړوکې وي خوعلی قدر المواريث چې اقرب به مقدم وي په ابعدباندی اوياورنه مرادسلطان اوبادشاه دې په وخت دعدم دوارث کښ.﴿سُلْطَٰنًا﴾ مرادورنه تسلط اوقدرت دي په قاتل باندی په قصاص ياپه ديت سره.اوياورنه مراد حجت دي لپاره دقصاص﴿فَلَا يُسْرِف فِّى ٱلْقَتْلِ ﴾ اسراف فی القتل دادي چې دیوپه ځائ باندی دوه قتل کړي.يادَاصل قاتل په ځائ بل څوك دهغه په رشته دارانو کښ قتل کړي.اويادمقتول مثله يعني اندامونه پريکړي.﴿إِنَّهُۥ كَانَ مَنصُورًا﴾ علت دنهي لپاره دې ضميرراجع دي ولی ته، مرادورنه دادي چې په دنياکښ ورته الله ﷻ حق دقصاص ورکړې دې اوحق ديت ورکړې دي اوحکام ته ئی امرکړيدې لپاره دامداد دهغه،اوياضميرراجع دې مقتول ته مطلب دادې چې الله ﷻ دده امداد اوکړوچې په دنياکښ به دده دقاتل نه قصاص ياديت اغستلې شي اوپه اخرت کښ به ده ته اجراوثواب ميلاويږي،يعنی انه منصورفی الدنيا بايجاب القود علی قاتله وفی الاخرة بتکفيرخطاياه(خازن)

﴿وَلَا تَقْرَبُواْ ﴾داځلورمه نهی ده دظلم نه چې ديتيم مال په ناحقه سره مه خورئ اوپه نهی دقربت سره مبالغه مقصود ده په نهی دتصرف کښ﴿إِلَّا بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ ﴾ ،موصول صفة دي

دَموصوف محذوفه لپاره چې هغه خصلة دې اى الابالخصلة التى هى احسن الخصال.يعنى په هغه خصلت اوطريقې سره پکښې تصرف جائزدې چې هغه ښه خصلت اوښه طريقه وې چې هغه ديتيم مال حفاظت دې،يادګټې اوربح پکښې مقصودوې اوتجارت ورله اوکړې وغيره وهى حفظه وطلب الربح فيه والسعى فيمايزيدبه (فتح القدير) ﴿حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُۥ﴾ داغايه دَمذکورلپاره نده بلکه دمفهوم لپاره ده چې هغه تسليم اوحواله کول دې.مطلب دَايت دادې چې دَيتيم دَمال حفاظت کوئ اوهغه ته ئې مه حواله کوئ ترڅوچې بالغ شوې نوې اوچې بالغ شي اوپه خپلې نفع نقصان باندې پوهه شي نوبياورته حواله کړئ، اوپه "اشد"کښې اشاره ده کمال عقل دَيتيم.والمراد ببلوغ الاشد کمال عقله ورشده بحيث يمكنه القيام بمصالح ماله(خازن) ﴿وَأَوْفُوا۟ بِٱلْعَهْدِ﴾ په ماقبل کښې څلورمنهيات ذکرشواواوس په مينځ کښې درې اوامرذکرکيږې اول امردادې چې ايفاء عهدکوئ اومراد په ايفاء سره عمل کول دې دَمقتضىٰ دهغې اوعدم نقض دعهد دې اومراد دَعهدنه ټول مامورات دَالله ﷻ اوټول نواهي دَالله ﷻ دې که هغه تعلق لري دَحقوق الله سره يادحقوق العبادسره، ﴿إِنَّ ٱلْعَهْدَ﴾ وضع دَاسم ظاهرپه ځائ دَمضمرباندې لپاره دَاهتمام شان ده ﴿كَانَ مَسْـُٔولًا﴾ په ديکښې حذف الايصال شويدې اصل کښې داسې دې (مسئولاعنه) يعنې دَعهدکوونکې نه به دَعهدپه باره کښې تپوس کولې شي چې خپل عهددې پوره کړيدې کنه؟ اوياً ﴿مَسْـُٔولًا﴾ په معنى دَمطلوباً سره دې چې داعهدبه طلب کولې شي دَمعاهدنه، اويادا چې داعبارت په حذف دَمضاف سره دې يعنې انّ الصاحب العهدكان مسئولا،اويادا چې خودعهد نه به تپوس کولې شي په ورځ دَقيامت لپاره دَتبکيت دناکث اوناقض لکه څرنګه چې به تپوس کولې کيږي دَژوندئ ښخه کړې شوې جينئ نه چې بایّ ذنب قتلت (التکوير:۹) ﴿وَأَوْفُوا۟ ٱلْكَيْلَ﴾،دادويم امردې چې ايفاء دکيل اووزن کوئ،اومراد دَايفاء نه اتمام يعنې پوراوالې دې په تول کښې﴿إِذَا كِلْتُمْ﴾،يعنې چې کله تاسوبل چاته تول کوئ نوپه هغې کښې پوراوالې کوئ، ﴿وَزِنُوا۟﴾دادريم امردې چې په وزن کښې کمې مه کوئ،نودا امردې په اتمام دوزن سره اوماقبل امروو په اتمام دکيل سره،﴿بِٱلْقِسْطَاسِ﴾ په نيز دَاکثرو علماء دالفظ عربي دې اسم دې لپاره دَميزان (تلى) ځني علماء فرمائي چې دامشتق دې

دَقسط نه چې هغه انصاف ته وئیلی کیږي نوهرکله چې میزان هم یوه اله دَانصاف وه نوهغې ته قسطاس اووئیلې شو ،خوصاحب دَبحرعلامه ابوحیان پدي ردکړیدي چې دادواړه جدا جدا دي ځکه چې ماده دَقسط ،ق،س،ط ده اوماده دَقسطاس،ق،س،ط،س،ده نولهذا داماخوذ دَقسطس نه دي نه دَقسط نه،اوپه نیزدَبعض علماء دالفظ عجمي یعني رومي دي اوبیامعرَب شویدي اوپه لغت رومي کښ قسطاس وئیلې کیږي میزان ته اوداقول دَامام مجاهد رحمه الله اوابن درید رحمه الله اوابن جبیر رحمه الله وغیرهم دي اودې قول ته ترجیح ورکړیده علامه آلوسي رحمه الله هغه فرمائي(وعلى القول بانه رومى معرب وهوالصحيح(روح ج۱۵ ص۷۲)) نولهذا دیته مطلقا غلط وئیل لکه بعض مفسرینوورته وئیلی دي داغیرمناسبه ده اودامخالف دَ انّاانزلنه قراناعربيا ،سره ندي ځکه چې نقل کیدل دَدغه شانتي الفاظو عربي ته اوبیامستعمل کیدل په کلام دَفصحاء کښ اواحکام دکلام عربي پدي جاري کیدل مثلا تعریف تنکیروغیره سره داعربي اوګرځي.لانه بعد التعريف والسماع فى فصيح الكلام يصيرعربيا فلاحاجة الى انكارتعربيه(روح) (۲)اویاتول قرآن ته عربي وئیل تغلیبا دي او(۳) یاورنه مراد اسلوب عربي دي ﴿ٱلْمُسْتَقِيمِ﴾ داتاکیداً اوئیلی شوچې په هغه تله(میزان) کښ څه قسم کوږوالې اوانحراف مه کوئ ﴿ذَٰلِكَ﴾ مشاراليه ئې ایفاء الکیل اواتمام دوزن دي ﴿خَيْرٌ﴾یعني په دنیاکښ انصاف اوپوره وزن په خلکوکښ دَنیك نامئ اوپه کاروبارکښ دترقئ ذریعه ګرځیږي﴿وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا﴾ اوانجام په اعتبارسره هم ډیربهتردي ځکه چې الله ﷻ دَطرفنه ثواب اوانعامات میلاویږي اوپه حدیث کښ راغلیدي چې التاجرالصدوق الامين مع النبين والصديقين والشهداء والصلحين.

﴿وَلَا تَقْفُ﴾داپنځمه نهي ده دَظلم نه،چې بې تحقیقه خبري مه کوئ اوبې دلیله خبري اتباع مه کوئ،تقف،مشتق دَقيافة نه دي دَچادَنقش قدم باندی تللوته وئیلې کیږي،اوپدیکښ دوه لغته راغلیدي قفايقفو،اوقاف،يقوف ﴿مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ﴾مراد دَعلم نه پدي ځائ کښ اعتقاد راجح دي برابره خبره ده چې هغه دلیل قطعی نه حاصل شوي وي اوکه ظنی نه،المرادبالعلم هو اعتقادالراجح المستفاد من مسندقطعيا كان اوظنيا(ابى سعود) نولفظ دَعلم ظن اویقین دواړوته شامل دي اوهرکله چې

علم نكره ده اوپه سياق دَنفي كښ واقع شويده چې مفيددَعموم ده نوداسالبه كليه ده چې مستلزمه ده ايجاب جزئى لره.نودايت مطلب داشوچې دهغه څيزاتباع مه كوه چې په هغې بندى تاته هيڅ قسم علم نوي،چې كوم علم په هغه ځاىٔ كښ مطلوب وي لكه چې په باب دَعقاندوكښ علم قطعي مطلوب دې نوكه هغه وو نواتباع به كيدې شي كنى نه به شي كيدې اودغه شانتي په كوم ځاى كښ دليل ظني كافي وو اومطلوب وو نوهلته به دهغې اتباع كيدې شي.نودَدينه معلومه شوه چې دَدې ايت نه استدلال كول پدې خبره چې خبرواحد مفيدللعلم ندې اوياتقليددَمجتهد ندې پكار،غلط دې اودغه شانتي داايت عام دې هرقسم اقوالواوافعالولره چې بې دليله اوبې تحقيقه وي مثلا دروغ،بهتان،بغض عداوت،ناجائزتقليد رسم،رواج پابندي وغيره ته شامل دې،﴿إِنَّ ٱلسَّمْعَ ﴾ يعني دَدې ټولو اعضاء په باره كښ به تپوس كيږي دَستركوپه باري كښ به تپوس كيږي چې دَدې استعمال دِ په كوم ځاىٔ كښ كړې دې دغه شانتي دغوږ په باره كښ به تپوس كولې شي چې پدې سره دي څه اوريدلي وو ، دزړه په باره كښ به تپوس كولى شي چې پده كښ دَ څه څيزعزم پټ كړې وو ،نودَدې توجيه په بناء داتپوس به دَانسان نه وي،نوپدې ځاىٔ كښ دَ ﴿ٱلسَّمْعَ﴾نه مخكښ مضاف مقدردې يعني ان صاحب السمع كان مسئولا ،څكه چې سوال به دَمكلف نه كيږي اوداعضاء خومكلف اوعاقل ندي اويا(۲)مقصد دادې چې سوال به دَدَغي اعضاء نه وي لپاره دَ رسوائى دَدغه انسان چې خپل اعضاء به پري په خپله كواهي وركړي لكه په بل ځاىٔ كښ الله ﷻ فرمائى اليوم نختم على افواههم (يس ۶۵) اودغه شانتي ذكرپه سورة حم السجدة ايت نمبر(۲۰) كښ هم دې اويا(۳)مقصددادې چې دَدې اعضاء نه به دَانسان تصديق طلب كولې شي چې يوسړې دعوىٰ اوكړي چې داخبره مااوريدلي ده نودَغوږ نه به تصديق طلب كولې شي چې آياده رشتيااوريدلي وه ياپدې دعوى كښ دروغژن دې،دغه شانتي دَستركونه به تصديق طلب كولې شي،زړهنه به تصديق طلب كولې شي آيادا سړې په فلاني څيزباندى عالم وو اوپه هغې باندى ئي فكركړې وو چې په كوم څيزباندى دَعلم لرودَعوىٰ كوي،يادې په خپلي دعوى كښ دروغژن دې،دَدي دواړو توجيهاتو په بناء تقديردَعبارت ضرورت نيشته اوتخصيص دَدې درې(۳) اعضاؤدَدې وجه نه اوشولو چې سمع اوبصراسباب دَعلم دي اوفؤاد يعني زړه اله دعلم ده اوهركله چې سمع اوبصرپه ذريعې علم زيات حاصليدلو په نسبت سره نورو حواسونه نوددې وجه نه اكتفاء پدې اوكړې شوه اوذائقه،شامه لامسه ذكراونشو.

﴿وَلَا تَمْشِ﴾ داشپړمه نهي ده دظلم نه چې هغه غرور اونکبردي ﴿مَرَحًا﴾ په بدبکښ دوه (۲) قراءته راغليدي عام اومشهور قرائت په فتح دراء سره دي.د مصدر حال واقع شوېدی دضميرفاعل دَ ﴿تَمْشِ﴾ نه په اعتبار دمضاف مقدره سره ای دامرح اوي مفعول مطلق دي دفعل مقدرلپاره چې تمرح دي ای تمرح مرحا اويامفعول له دي ای لاجل المرح اودويم قرائت په کسرې سره دي اوصيغه داسم فاعل ده اومنصوب دي بنابرحالبت اومراد دمشي نه فخراوتکبردي اوهرکله چې تکبراوتواضع دواړه دصفاتو دقلب نه دي يعني په زړه کښ وي خواثرئی په ګرځېدلوکښ ظاهرېږي نوددي وجه نه دتکبر سره لفظ دمشي راغې اوپه سورة الفرقان آيت نمبر (۳) کښ دمؤمنين په اوصافو کښ هم دمشی علی الارض هونًا ذکر راغليدي. ﴿إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ﴾ داعلت دي لپاره دنهي دتکبرنه اوپديکښ تهکم دي په لوئی کوونکي پورې چې اې بنده ته ولې تکبراولوئی کوي؟ ته خويوکمزورې اوضعيف بنده ئی دپاڅه اولاندې نه.ګيراومحاط ئی په دوه (۲) انواعو دجمادينوسره، نه دومره طاقتور اوقدرت والائی چې زمکه سيري کړې اونه دومره دنګ اوغټ ئی چې دغرونو سرته اورسي ځکه چې تکبرخوددغه دوه (۲) څيزونودوجې نه کيږي اودادواړه په تاکښ مفقوددي اوامام رازي رحمه الله فرمائی چې مشي مستلزمه ده ارتفاع اوانخفاض لره يعني اوچت والې اولاندې والې په مشي کښ راځي،نوالله تعالیٰ تنبيه ورکړه چې په حالت دانخفاض کښ دزمکې په شلولوباندی قادرنه ئی اوپه حالت دارتفاع کښ دغرونوسرته په رسيدلوباندی قادرنه ئی بلکه يوعاجز اوکمزورې بنده ئی،نوځه لپاره تکبرکوې. قرطبي فرمائی استدل العلماء بهذه الاية علی ذم الرقص وتعاطيه،يعني ددينه دګډا حرمت هم معلوميږي ځکه چې په رقص اوګډا کښ مرح په طريقې داشديت سره موجود دي.

﴿كُلُّ ذَٰلِكَ﴾ مشار اليه دذلك لپاره ماقبل ذکرکړې شوي خصلتونه اوعادتونه دي نوبناء پدي اضافت به په سيّئه کښ به اضافت لامي وي اوذا به اضافة البعض الی الکل دقبيلی نه وي.نومعنی به نی داسې شي چې ټول دغه مذکوره خصلتونه ،منهيات دي الله تعالیٰ ته ناخوښ يعني پدغه مذکوروکښ کوم منهيات چې دي هغه الله تعالیٰ ته ناخوښ دي.نومراد دسيّئة نه فقط منهيات شو.اوتنبيه فقط په منهياتوځکه اوکړې شوه چې تخليه اولی وي دتحليه نه اودفع دمضرت

اودمفاسدو اهم وي دجلب منفعت اومصالحونه. اويااضافت بياني دي اويه ذٰلك سره اشاره تولومذكوروته ده كه اوامردي اوكه نواهي دي خونواهي ورنه مراددي صراحت يعني هغه صراحتامذكوردي اوماموراتِ ورنه دلالةً مراددي يعنى دَدي اضداد مراددي مثلا ﴿وَأَوْفُوا بِالْعَهْدِ﴾ نه دَدي ضديعني عدم ايفاء عهدوالاحرمت دلالة معلوميږي نومطلب به ئى داشي چې دغه ټول مذكوركه اوامردي كه نواهي دي داټول خراب اوبدځيزونه دي «بعض بعينه اودبعضو اضداديا صراحتا اويادلالة» الله ﷻ ته ناخوښ دي، اوداترجمه حضرت شيخ الهند رحمه الله غوره كړيده او ﴿مَكْرُوهًا﴾ خبردې د ﴿كَانَ﴾ لپاره اومراد دَ﴿مَكْرُوهًا﴾ نه مبغضا يعني ناخوښ دې وهوالذى لايرضاه الله عزوجل ولايامربه(قرطبى) اومراد ورنه هغه ندې چې كوم مصطلح دفقهاؤدي اګرچې هغې ته هم شامل دي ځكه چې مبغض كله حرام وي اوكله مكروه اصطلاحي وي،نودلته ورنه مراد حرام دې اوتعبيرورنه په لفظ دمكروه ځكه اوشوچې اشاره راشي دې خبري ته چې يوشى الله ﷻ ته مبغض اومكروه وي نومجرد كراهت كافي دي دَيوبنده لپاره په وجوب دَمنع كښې دهغې ځيزنه چې ده خپل ځان دهغې ځيزنه منع كړي،ووصف بذلك بمطلق الكراهة مع ان اكثره من الكبائرللايذان بان مجردالكراهة عنده تعالى كافية فى وجوب الكف عن ذلك(ابى سعود،روح).

| ذٰلِكَ مِمَّآ أَوْحَىٰٓ إِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ ۗ وَلَا تَجْعَلْ |
|---|
| داچې ذكرشول اوامراونواهي دبعضي هغه احكاماتونه دي چې وحى كړيده تاته رب ستادحكمت نه[1] اومه ګرځوه |
| مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا اٰخَرَ فَتُلْقٰى فِيْ جَهَنَّمَ مَلُوْمًا مَّدْحُوْرًا ۞ |
| دالله ﷻ سره معبود بل پس اوبه غورځولى شي ته په جهنم كښې ملامته كړې شوې رټلې شوې.[2] |
| أَفَأَصْفٰىكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِيْنَ وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ إِنَاثًا ۗ |
| اياپس غوره كړې ئى تاسورب ستاسوپه ځامنوسره اونيولى دې دملائكونه لونړه |

1. ثمره ماقبل واعاده توحيدبارسوم.
2. زجر

## اِنَّكُمْ لَتَقُوْلُوْنَ قَوْلًا عَظِيْمًا ۝

بیشکه تاسو خامخا وائی کوئ خبره ډیره لویه

﴿ذٰلِكَ﴾مشارالیه دَدې لپاره په تاویل دَمذکورسره ماقبل ټول اوامراونواهي دي او پدیکښې تفسیردهغه حکمت ذکرکیږي چې دکوم بیان په سورة النحل ادع الی سبیل ربك ،ایت نمبر۱۲۵ کښې ذکرشوې وو یعني دامذکورټول احکامات که اوامر دي یانواهي په حکمت الهي باندی مبني دي اوددي احکاماتو په منلوکښې دَانسان خیراوفائده ده او"من" په﴿مِمَّا﴾ کښې دغوره توجیه مطابق تبعیضیه دې ځکه چې دامذکوربعض احکامات شرعیه دي اوټول ندي.من الحكمة،دحکمت ډیرمعاني کړې شویدي دلته تنه راجحه معنی دَعلم الشرائع ده چې په هغې سره انسان ته دَالله ﷻ معرفت اوپه عمل سره ورته خیرحاصلیږي،اویامراد دَحکمت نه محکم دي چې نسخ نه قبلوي،نومقصد دادې چې دامذکورهغه احکامات دي چې محکم دي نسخ نه قبلوي اوعقل هم دَدې په صحت باندی دال دې اوصاحب دکشاف دَحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړیدي چې داآیتونه په الواح دَحضرت موسیٰ علیه السلام کښې هم موجودوو او﴿مِنَ الْحِكْمَةِ﴾ جارمجرور یامتعلق دې په﴿أَوْحَى﴾ پوري ای اوحی من الحكمة، اومن پکښې یاتبعیضیه دې ځکه چې دابعضې دَحکمتونونه دي اویاابتدائیه دې اویاجار مجرور متعلق دې په مقدرپوري اوپه اعتباردَمقدرسره حال واقع شویدې دَما کښې دَموصول نه ای من الذی اوحاه الیك ربك کائنا من الحكمة(روح)اویاجار مجرور بدل واقع شویدې دَموصول نه.

﴿وَلَا تَجْعَلْ﴾پدې کښې اوومه نهي دَظلم نه ده چې هغه شرك دې،دَدې مذکوراحکاماتو ابتداء هم په نهي دَشرك سره شوې وه اوپه اختتام کښې ئې هم دوباره نهي دَشرك نه اوشوه پدیکښې اشاره ده چې دَټولو طاعاتواوحسناتوبنیاد توحیددې اودَټولو ظلمونو اوشرونو بنیاد اوجړه شرك دې کروه لانه المقصود والتوحید راس کل حکمة(جامع البیان) اوخطاب په﴿وَلَا تَجْعَلْ﴾ کښې امت ته دې په واسطه دَحضور ﷺ سره،﴿فَتُلْقَى﴾ دانتیجه اوتخویف اخروي دې ﴿مَلُومًا مَّدْحُورًا﴾په مخکښې

ایت کښې ﴿مَذْمُومًا مَّخْذُولاً ﴾ذکرشوې وو ،نوفرق په مینځ دملوم اومذموم کښې دادې چې مذموم استعمال په هغه ځائ کښې کیږي چې کس په یوفعل قبیح کښې شروع کوي نو په هغې وخت کښې دَهغه فعل قبح اوګناه اونقصان ورته ذکرکړې شي،اوذم ورته بیان کړې شي نودیته مذموم وئیلې کیږي، اوملوم وئیلی کیږي هغه چاته چې هغه ته دَفعل ذم بیان کړې شوې وي اوهغه دهغه فعل قبیح ارتکاب اوکړې نودَهغې نه وروستو ملامت کولې شي اوورته وئیلې شي لم فعلت کذا(داکارتاولې اوکړو) ماحملك علیه(څه باعث وو په تاباندې) نودیته ملوم وئیلې کیږي.نواول امردَشرك هغه ذم دې په دنیاکښې اواخرئی لوم دې په عقبی کښې اوفرق په مینځ دمخذول اومدحور کښې دادې چې مخذول وئیلی کیږي هوالمتروك اعانته ونصره والمفوض الی نفسه چې دهغه اعانت اوامداد پریخودلې شوې وي اوخپل ځان ته حواله کړې شوې وي اومدحور وئیلی کیږي المطرود المبعد علی سبیل الاهانة والاستخفاف به یعنی چې هغه رټلې شوې اولرې کړې شوې وي په طریقې دذلت اوسپکوالی سره،نودَمشرکینومعبودان په دنیاکښې ددوئ نصرت اوامدادنشي کولې نومخذول شو اوپه اخرت کښې به دَالله ﷻ درحمت نه لرې اومطرود به وي علی سبیل الاهانة ورته به وئیلی شي این شرکاؤکم ماکنتم تعبدون، نوخلاصه داده چې وصف دَذم اوخذلان په دنیاکښې دې،نوځکه هلته﴿فَتَقْعُدَ مَذْمُومًا مَّخْذُولاً ﴾ ذکرشو،اوعذاب جهنم ورسره ذکرنشواووصف د(لوم)او(دحور)په اخرت کښې دې نوځکه دلته ورسره جهنم ذکرشو اوداسې اووئیلی شو﴿فَتُلْقَىٰ فِي جَهَنَّمَ مَلُومًا مَّدْحُورًا ﴾اوهرکله چې افعال دَانسان په دنیاکښې اختیاري دي اوپه اخرت کښې دې غیرخودمختاروي نوځکه په مخکنې ایت کښې﴿فَتَقْعُدَ﴾ ذکرشو ،چې هغه یوفعل اختیاري دې اودلته ذکر د﴿فَتُلْقَىٰ﴾ اوشو چې هغه دَالقاء نه دې چې داپه اوصافو اوافعالو غیراختیاریوباندې دلالت کوي(وفی القعود هناك والالقاء ههنا اشارة الی ان للانسان فی الدنیا صورة اختیار بخلاف الاخرة)(النیشابوري).

﴿اَفَاَصۡفٰكُمۡ﴾ يدي كښې زجربيانيږي په مشركينو باندې په شرك بالملئكه سره چي مشركينو به ونيل نعوذبالله چي فرښتې دالله ﷻ لونړه دي .اواستفهام انكاري دې اوداخل دې نه مقدرباندې يعني مستفهم عنه مقدردي اوفاء عاطفه ده او

﴿اَفَاَصۡفٰكُمۡ﴾ عطف دي په هغه مقدرباندې نوتقديرد عبارت داسې دي افضلكم على جنابه فخصكم بافضل الاولاد(روح) اويافاء استنافيه ده اوتقديرد عبارت نه ضرورت نيشته اواصفكم باب افعال دي دصفوة نه دي اوداوئيلې كيږي ترجيح وركولوته،نومقصد دادې چي آياالله ﷻ تاسونه فضيلت دركړيدې اوتاسوته ئې ترجيح دركړيده په نارينه اولاد سره اوخان لپاره زنانه اولاد يعني لونړه نيولي دې؟ چي هغه يوكمزورې مخلوق دې چي تاسوئې خان لپاره هم نه خوښوئ اوتعبيرد بنات نه په اناث سره ځكه اوشوچي اشاره راشي ضعف دهغوئ ته﴿قَوۡلًا عَظِيۡمًا﴾ يعني يود الله ﷻ لپاره اولاد ثابته ول چي هغه مستلزم دي تركيب لره په الله تعالى كښې چي منافي دي دقدم اووجوب سره دايوجهل دې اوقول باطل دې اودويم اضعف الاولاد چي هغه بنات دي دهغې ثبوت الله ﷻ لره كول جهل عظيم دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدۡ | صَرَّفۡنَا | فِيۡ | هٰذَا | الۡقُرۡاٰنِ |
| [1]اوخامخاپه تحقيق سره باربار بيانه كړيده (مسئله دتوحيد ،مونږه پدې قرآن كښې | | | | |
| لِيَذَّكَّرُوۡا | وَمَا | يَزِيۡدُهُمۡ | اِلَّا | نُفُوۡرًا ﴿۴۱﴾ |
| لپاره ددې چي نصيحت قبول كړي دوئ اونه زياتوي داقرآن دوئ لره مگر لرې والي دحق نه. | | | | |
| قُلۡ لَّوۡ كَانَ مَعَهٗۤ اٰلِهَةٌ | كَمَا يَقُوۡلُوۡنَ | اِذًا | لَّابۡتَغَوۡا | |
| اوايه ته كچرې وو دالله ﷻ سره نورمعبودان لكه چي دوئ وائي نوپدغه وخت كښې خامخا تالاش كړې به وه دوئ | | | | |

(1) زجربانكارالقرآن

إِلَىٰ ذِي الْعَرْشِ سَبِيلًا ﴿٤٢﴾ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يَقُولُونَ

خاوند د عرش نه یوه لاره .پاکی ده الله ﷻ لره اولوئ دې دهغې نه چې دوئ وائی په حق د الله ﷻ کښې

عُلُوًّا كَبِيرًا ﴿٤٣﴾ تُسَبِّحُ لَهُ السَّمَاوَاتُ السَّبْعُ وَالْأَرْضُ وَمَن فِيهِنَّ ۚ

په لوئی ډیري سره باکي بیانه وي الله ﷻ لره اوه اسمانونه اوزمکه اوهغه څوک چې په دې کښې دی

وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ۗ

اونشته هیڅ شئ مګرتسبیح وائی متلبس د حمد دهغه سره لیکن نه پوهیږئ تاسو په تسبیح دهغوئ باندی

إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ﴿٤٤﴾

بیشکه الله ﷻ صبرناك بخښونکي دی

﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَا﴾ په دې ایت کښې زجرذکرکیږي په نفرت ددوئ باندی دقرآن سره د اوصرفنا د باب تفعیل نه دې په لغت کښې تغییرته وئیلی کیږي اوپه اصطلاح کښې یوځیزامثله متعدده ته تحویل کولوته وئیلی کیږي اودلته مفعول چې هغه التوحید دې مقدردې نومقصد دادې چې مونږ دامسئله توحید په مختلفو دلائلو سره بیان کړیده، کله په دلائلوعقلیوسره کله په نقلیوسره کله په امثالوسره.کله په واقعاتوسره وغیره اوبعض مفسرین فرمائی چې مفعول مقدرهغه داقول سابق د مشرکینو دې چې الملئکة بنات الله نوتقدیردعبارت داسې دې چې صرفناهذا القول خوقول اول زیات راجع دې ﴿لِيَذَّكَّرُوا﴾ مراد د تذکرنه،تدبر تفکر اووعظ قبولول دي اومراد تنه هغه ندې چې بعدالنسیان حاصل شي ﴿إِلَّا نُفُورًا﴾ یعنی دَدغی تصریف دَ وجه نه پکاروه چې دوئ حق ته قریب شوي وې خودضد اوعناد دَوجې نه دوئ دَحق نه نورهم لري شولو.نومراد دَ﴿نُفُورًا﴾نه تباعداولري والي دَحق نه دې ای تباعدا عن الحق وغفلة عن النظروالاعتبار(قرطبی)

﴿قُل لَّوْ كَانَ مَعَهُ﴾ دامتعلق دې په ﴿لَا تَجْعَلْ مَعَ اللَّهِ﴾ پوري اودارد دې شرك فی الالوهیت باندی اوعام مفسرین دَایت مقصد داسې بیانه وي کچرته دَالله ﷻ سره بل خدائ موجود وې نودَعادت موافق هغه به دَ ذی العرش(الله ﷻ) سره په سلطنت کښې جګړه کوله اودخپلي حصي

سلطنت مطالبه به ئی کوله چې هغه مستلزم دي امکان تمانع لره او امکان فساد لره او داخو باطل دي نو معلومه شوه چې بل خدائ هم نیشته دې «ددې تحقیق انشاء الله په سورة الانبیاء کښې به راشي» نودَدي توجیه په بناء مراد دَ ﴿سَبِيلًا﴾نه اسباب دَغلبي اوجګړي مراددي یعني لاره دَجګړي ای بالمغالبة والقهر لیزیلوا ملکه(خازن) اودَحضرت شیخ الشیوخ رحمه الله په نیز راجحه توجیه دَایت داده چې دادلیل دې په عجز دَمعبودانو مشرکینو، ځکه چې مشرکینوبه دخپلو معبودانو په باره کښې به ئی وئیل چې مونږه دَ دوئ عبادت ځکه کوو چې دازمونږه سفارشیان دي الله ﷻ ته نو الله ﷻ اوفرمائیل چې بیاخوپکارده چې داسفارشیان دي الله ﷻ ته دَقربت اونزدیکت لاره طلب کړي. ځکه چې سفارش کوونکې چې چاته سفارش کوي نو اول دهغه قربت اونزدیکت حاصله وي اوځوك چې نزدیکت اوقربت طلب کوونکې وي نو هغه عاجزه وي اوځوك چې عاجزه اومحتاجه وي نوهغه اله نشي کیدې ځکه چې عجز اواحتیاج خاصه اوعلامه دَامکان اوحدوث ده اواله واجب الوجود اوقدیم وي،نودَدي توجیه په بناء مراد دَ ﴿سَبِيلًا﴾نه لاره دَقربت اونزدیکت ده ﴿سُبْحَـٰنَهُۥ﴾پدې ایتونو کښې مسئله توحید بیانیږي اوپه ﴿سُبْحَـٰنَهُۥ﴾کښې اشاره ده نفی دَ شرك فی الوهیت ته چې هغه مستلزم وو امکان تمانع لره اومغالبه لره یعني الله ﷻ دَعجز اوتصادم نه پاك دې اوپه﴿وَتَعَـٰلَىٰ﴾کښې اشاره ده نفي دَشرك فی الملئکة ته چې هغه داقول ددوئ دې چې الملئکة بنات الله چې دامستلزم دې تماثل لره یعني الله ﷻ لره مماثل راتلل دَدینه الله ﷻ اعلی دې په لوئی علوې سره اوتقیید په وصف دَ ﴿كَبِيرًا﴾سره لپاره دَمبالغي دې په کمال تنزه کښې(کشاف) ﴿تُسَبِّحُ لَهُ ٱلسَّمَـٰوَٰتُ﴾پدې کښې علت بیانیږي لپاره دَمسئله توحید چې ټول مخلوقات اودکائناتوذره ذره په زبان حال یاقال سره دَالله ﷻ تسبیح اوپاکي بیانه وي اودَالله ﷻ دَوحدانیت ګواهي ورکوي نو اې مشرکینو تاسو الله ﷻ لره شریك جوړول اوالله ﷻ لره اولادثابته ول ډیره شرمناك خبره ده

﴿وَإِن مِّن شَىْءٍ إِلَّا﴾، ان نافیه دې اومن زائده دې اوشئ نکره ده په سیاق دَ نفي کښې واقع شویده مفیده دَعموم ده نومقصد دادي چې زمکې اواسمانونه اوپه دیکښې کوم انسانان،جنات،ملائك

دي اوددينه علاوه نورڅومره څيزونه چې دي که هغه نباتات دي ياجمادات دي ټول د الله ﷻ تسبيح

وائي پوهه شه پدې چې تسبيح لپاره څلوراقسام دي (١)قلبي (اعتقادي)(٢)فعلي(٣)قولي(۴)حالي ياڅهري، **قلبي يااعتقادي** وئيلی کيږي اعتقاد ساتل په تنزيه د الله ﷻ باندی دهرقسم عيوب اودنقصان نه، **تسبيح فعلي** وئيلی کيږي هغه فعل ته چې دال وي په تنزيه دواجب تعالی باندی لکه مونځ وغيره شو او**تسبيح قولي** عبارت دې په ژبه باندی د الله ﷻ پاکې بيانولونه او**تسبيح حالي ياڅهري** هغه دلالت دحال دمخلوق دې په تنزيه دخالق باندی لکه وجود اوصورة دانسان وغيره دال دې په تنزيه اوپه قدرت د الله ﷻ باندی نوملائکو والا تسبيح دغه څلورقسمه مذکورټول دي اودمؤمن که دانس نه وي يادجناتونه وي هغوئ تسبيح هم دغه څلوروارړه انوع مذکوره دي اودکافر والاتسبيح اګرچې قلبي.فعلي،قولي خونيشته ليکن حالي تسبيح ئی شته دې اود نباتاتو ،جماداتوکښ اختلاف دې بعض مفسرين مطلقا دتسبيح حالي قائل دي اوبعض فرمائی چې نباتات که شنه وي نوتسبيح قالي ورله شته دې خوکچرته نباتات اوچ شي اوياجمادات مات شي نوبيائی تسبيح حالي وي اوقالي ئی ختمه شي اواستدلال ئی کړيدې په هغه حديث سره چې نقل کړيدې امام بخاري رحمه الله په کتاب الوضوءکښ،باب من الكبائر ان لايستتر من بوله،عن ابن عباس رضي الله عنه ان النبی ﷺ مرعلی قبرين فقال انهما ليعذبان.....ثم قال لعله يخفف عنهما مالم ييبسا،نوددينه معلومه شوه چې نباتات چې څوپوري شنه وي نوتسبيح قولي کوي اوچ شي نوتسبيح قولی ئی ختم شي،ليکن راجح اوغوره مذهب دادې چې دجماداتو ،نباتاتو والا تسبيح هم دغه ټول اقسام مذکوره دې،هرچې دې اعتقادي دنوثابت دې ددې قول د الله ﷻ نه وانّ منها لمايهبط من خشية الله (البقره، ٧۴) اوهرچه دې تسبيح فعلي دنوثابت دې ددي قول د الله ﷻ نه ،كل قدعلم صلوته وتسبيحه (النور، ۴١) اوهرچې دې تسبيح قولي نوهغه ثابت دې دوجهي ددي قول د الله ﷻ د الله ﷻ نه ياجبال اوّبي معه الخ(سباء، ١٠) اودغه شانتي اناسخرناالجبال معه يسبحن بالعشی والاشراق (ص:١٨) اودغه شانتي په څينواحاديثو کښ دنباتاتو اوجماداتونه تسبيح قولي ثابت دې لکه حديث دابن مسعود رضي الله عنه چې نقل کړيدې امام بخاري رحمه الله په کتاب المناقب کښ چې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائی چې مونږه به معجزات باعث برکت ګڼړلو اوتاسوئی سبب ديری ګڼړئ مونږه درسول الله ﷺ سره په سفرکښ وو چې اوبه کمې شولې،حضور ﷺ ارشاداوفرمايه چې کومې اوبه چاسره باقي دي هغه ماله راوړئ نوصحابه رضي الله عنهم يولوښې راوړوچې په هغې کښ لږي شانتي اوبه وي حضور ﷺ

خپل لاس مبارك په هغې كښې كېخودلو اوبيائي اوفرمائيل چې دبركت والا پاكو اوبوته راشئ اوبركت دجانبه دالله ﷻ نه دې پس ماخپله اوبه كتلې چې راوتلې دمينځ دګتو دحضورﷺ نه اوبه تحقيق سره مونږ به اوريدلو تسبيح دخوراك حالانكه هغه به خوړه لې كيدلو. اودغه شانتې نورو احاديثو كښې دجماداتو وغيره تسبيح ثابت دې اودغه شانتې دجماداتواونباتاتو نه په لسان القال سره خبري په ډيرو احاديثو اواثاروكښې ثابت دې،دكانړې حضورﷺ ته سلام كول. دغه شانتې دمؤذن په حق كښې شجر مدر،حجر ګواهي وركول يوغربل غرته اوازكول چې هل مرّبك اليوم ذاكر لله عزوجل؟ دغه شانتې دزمكې يوه حصه بلې حصې ته اوازكول هل مرّبك اليوم عبدفصلى الله اوذكرالله عليك اوبياخا ــ طورداسطوانه حنانه ژړا اوسلګئ وغيره داقصه عام مسلمانانوته هم معلومه ده داټول دصحيح احاديثو ــ ثابت دي نومعلومه شوه هريوځيزشعور اوادراك لري اوپه لسان القال سره خبري وغيره كولي شي نولهذا دتسبيح نه مراد تسبيح قولي مرادكول زيات غوره اوراجح دي،مزيد تفصيل امام قرطبى اوابن كثير په خپلوتفاسيروكښې كړيدې.

﴿وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ﴾كچرته مراد دتسبيح نه حالي شي نوداخطاب بياكفاروته دې او﴿لَّا تَفْقَهُونَ﴾ په معنى دلاتفكرون سره دې چې اى مشركينو تاسوددې اشياؤ په تسبيح حالي باندې سوچ اوفكرنه كوئ،اوكه مراد دتسبيح نه قولي شي لكه داراجحه هم ده نوبياخطاب عام دې او﴿لَّا تَفْقَهُونَ﴾ په خپلې معنى سره دې يعني لاتعلمون تسبيحهم.

| وَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ جَعَلْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ |
|---|
| [1] اوكله چې تلاوت كوې ته دقرآن نواوګرځوومونږ په مينځ ستاكښې اوپه مينځ دهغه كسانوكښې چې ايمان نه راوړي |
| بِالْآخِرَةِ حِجَابًا مَّسْتُورًا ﴿٤٥﴾ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ |
| په اخرت باندې پرده پټه اوګرځولي دي مونږ په زړونو ددوئ باندې پردې د دې چې دبدكړلو به پوهې دقرآن نه |

(1) نه منلو وجه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْقُرْاٰنِ | فِي | رَبَّكَ | ذَكَرْتَ | وَإِذَا | ط | وَقْرًا | وَفِيٓ اٰذَانِهِمْ |
| اوكرخولي دې مونږه، په غوږونو ددوئ كښې درندوالي. اوكله چې ياده وې ته رب خپل په قرآن كښې | | | | | | | |
| بِمَا | اَعْلَمُ | نَحْنُ | ۞ نُفُوْرًا | اَدْبَارِهِمْ | عَلٰى | وَلَّوْا | وَحْدَهٗ |
| يواځې هغه .اوګرځي دوئ په خپل شاګانو باندې تښتيدونكي. مونږه ښه پوهيږو په هغې مقصد | | | | | | | |
| نَجْوٰى | هُمْ | وَاِذْ | اِلَيْكَ | يَسْتَمِعُوْنَ | اِذْ | بِهٖ | يَسْتَمِعُوْنَ |
| چې غوږ دې دوئ قرآن ته په هغې سره كله چې غوږ ايږدي  دوئ تاته اوكله چې دوئ پټې  جرګې كوي | | | | | | | |
| ۞ | مَّسْحُوْرًا | اِلَّا رَجُلًا | اِنْ تَتَّبِعُوْنَ | | الظّٰلِمُوْنَ | يَقُوْلُ | اِذْ |
| كله چې وائي ظالمان چې تابعدارى نه كوئ تاسومګرديوداسې سړي چې جادوېرې كړې شويدې | | | | | | | |

﴿وَإِذَا قَرَأْتَ﴾پدې ايت كښې دَمسئله توحيدنه دَانكارعلت اووجه بيانيږي سره دزجرنه په انكار دقران سره چې دوئ پدې ايتونوكښې غوراوفكر نه كوي بلكه دَدينه نفرت اوپدې پورې ټوقې كوي ﴿وَبَيْنَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ﴾وضع دموصول په ځائ دَضميرلپاره دَمبالغې دې په ذم دَهغوى كښې اوهركله چې ايمان بالاخرة دَمعظمو امورودَايمان نه وو  اوداايت تمهيد وولپاره دَراتلونكې ايت چې هغې كښې ددوئ انكار بالاخرة ذكركيږي نودَدې وجه نه دلته كښې دكفارو وصف دَعدم ايمان بالاخرة  باندې تصريح اوشوله اونوراوصاف كفريه ذكرنشو﴿حِجَابًا مَّسْتُورًا﴾ ،مستورا ياپه خپلې معنى سره دې اومرادتنه حجاب معنوي دې ظاهري ندې مراد ځكه چې داكفاربه دَحضورﷺ سره قريب اويوځاى به ناست وو اوپه ظاهركښې به نې كتلو خودنبيﷺ دَاتباع نه ورله مانع هغه حجاب معنوي چې هغه ضدعناد اوجهل دې اويا﴿مَّسْتُورًا﴾ په معنى دَذاسترسره دې لكه سيل مفعم اى ذامفعم يالكه جارية مغنوجة اى ذات غنج شو اوياپه معنى دَاسم فاعل سره دې اى ساترالك اومراد حجاب نه حجاب حقيقى دې خوهركله چې هغه حجاب به په ظاهركښې نبكاريدلونه نوځكه نې توصيف په ساتراياذاسترسره اوشولو اويادا كلام دَقبيلې دَحذف الايصال نه دې اى مستورابه الرسولﷺ  اوپدې احتمال هم دَحجاب نه مراد حجاب حقيقي دې

اودي احتمال ته (حجاب حقيقي ته) ترجيح ورکړيده قرطبي اورازي اواکثرومفسرينو اودرواياتونه هم دَدي احتمال ترجيح معلوميږي ځکه چې اکثرومفسرينودَدي ايت په ضمن کښې يوه واقعه بيان کړيده چې کله تبت يدا ابی لهب نازل شو نودَابولهب ښځې ام جميل يوکاڼړی رواغستلو اوراغله چې(العياذبالله) حضورﷺ پري اوولي اوحضورﷺ پدغه وخت کښې دَحضرت ابوبکرﷺ سره ناست وو ليکن هغې ته حضورﷺ په نظررانغي اوهغې دَحضرت ابوبکر نه تپوس اوکړو چې ستا ملګرې څه شوهغه ځماهجوکړيده؟ حضرت ابوبکرﷺ ورته اوفرمائيل چې په خدائ قسم! هغه خونه شاعردې اونه شعر ونه وائي نوځرنګې ستاهجونی اوکړه نوهغې ښځې اووئيل چې ماداکاڼړې دهغه لپاره راغستې وو کچرته ميلاوشوې وې نومابه(العياذبالله) هغه په سرويشتلې وې اوواپس لاړه،حضرت ابوبکرﷺ دَهغې ښځې تللونه پس حضورﷺ ته عرض اوکړو چې يارسول اللهﷺ هغې ښځې خوته اونه ليدلی څه وجه ده؟ حضورﷺ اوفرمائيل چې ځما اودهغې په مينځ کښې يوفرشته حائله شوې وه اوپه ځنې رواياتوکښې داسې راغليدي چې حضرت ابوبکرﷺ عرض اوکړو چې يارسول اللهﷺ انی اخاف ان تراك يعني زه يريدم چې تااونه ګوري نوحضورﷺ ورته اوفرمائيل چې دامانشي کتلې ځکه چې مادَقرآن څه اياتونه تلاوت کړيدي،خوبهرحال دَدې رواياتو نه داثابتيږي چې مراددَحجاب نه حقيقي حجاب دي اوامام قرطبی اونورو مفسرينو دَحضرت کعبﷺ نه روايت کړيدې چې کله به حضورﷺ دکافرانو دَسترګو نه پټيدل اوغوختلو نودَقرآن مجيد درې(۳) اياتونه به ئې تلاوت کړلو ،نودهغې دَاثريه برکت سره کفارو به بياحضورﷺ نشوليدلې،يودَسورة النحل ايت اولئك الذين طبع الله على قلوبهم وسمعهم وابصارهم( النحل:۱۰۸) دويم دَسورة الكهف ايت انَاجعلنا على قلوبهم اكنة ان يفقهوه وفى آذانهم وقرا(الكهف:۵۷) اودريم دَسورة الجاثيه ايت افرايت من اتخذ الهه واضلّه الله على علم وختم على سمعه وقلبه وجعل على بصره غشاوة( الجاثيه:۲۳) اوامام قرطبي‌رحمه‌الله دَدي درې(۳) مذکوره ايتونو سره سورة يٰسين ابتداء نه ترفهم لايبصرون پورې اضافه هم کړيده اوبيائی خپله واقعه هم بيان کړيده ﴿وَجَعَلْنَا عَلَىٰ﴾پدي ايت کښې هم زجردې چې کله دوئ ضداوعناد شروع کړونو اللهﷻ دَدوئ په زړونوباندی مهرجباريت ثبت کړو﴿أَكِنَّة﴾ جمع دکنان ده وئيلی کيږی پردی ته اومراد تنه

معنوي پرده يعني مهرجباريت دې ﴿أَن يَفْقَهُوهُ﴾ دامفعول له دې په تقديرد مضاف سره اي كراهه ان يفقهوا على كنهه ويعرفوا انه من عندالله تعالى.

حضرت مولانا شبيراحمد عثماني رحمه الله فرمائي چې قرآن مجيد ډېرمؤثر كلام دې خو په كفرو باندې دَدې تاثير ځكه نه ظاهرېږي چې هغوئ طلب كوونكې دهدايت ندي اوكوم سړي چې طلب كوونكې نوي نوپه هغه باندې قرآن مجيد اثرهم نه كوي اوهدايت ورته نه ميلاوېږي اودَدې مثال داسې دې لكه نمرچې رنړائی تول جهان ته رسي اوهرڅيز دَنمردَرنړانه فائده اخلي خوكچري يوسړې ځان په ته خانه كښې بند كړي دروازې، كهړكئ، اوروشن دان هم په ځان پسې بند كړي. بلكه سترګي هم پټي كړي نودَه ته به دَنمررنړا اونه رسي اونه به ئې اوګوري. ﴿وَفِيٓ ءَاذَانِهِمْ وَقْرًا﴾ وقروئيلی كيږي ثقل اوبوجه ته نومقصد دادې چې دَغوږونونه ئې دَسماع قبول استعداد سلب شويدې اوپه غوږونو كښې ئې ثقل اوبوج دې نوپه سماع قبول سره حق نشي اوريدلی

﴿وَإِذَا ذَكَرْتَ﴾ زجردې په انكاردَتوحيد سره چې دا قرآن هسې پدوئې باندې بدنه لګي اوورته ناست وي خوچې كله هم پدې كښې دَتوحيد ذكرراشي اوذكردَالله ﷻ وحده اوشي نودوئې بيادَدې قرآن سره نفرت شروع كړي ځكه چې دَوئ داخوښوي چې دَالله ﷻ دَذكرسره سره زمونږ دَالهه اومعبودان باطله ذكرهم وي، ﴿نُفُورًا﴾ دامفعول مطلق دې دَ﴿وَلَّوْا﴾ لپاره اومفعول مطلق من غيرلفظه اومن غيربابه په مذهب دَسيبويه باندې جائزدې چې كله دواړه متحدالمعنى يامتقارب المعنى وي ﴿نَّحْنُ أَعْلَمُ﴾ پدې كښې زجردې په استهزاء دَرسول سره ځني مشركينو به دَحضور ﷺ نه قرآن اوريدلو اوهغې ته به ئې غوږكيخودلو خوداوريدلومقصدبه ئې فائده اخستل مقصود نه وو بلكه استهزا اواعتراض به ئې مقصد وو خوچې كله به ورته دَحضور ﷺ په خبروكښې اوپه قرآن مجيدكښې څه قسم اعتراض موقعه ميلاؤنشوه نوبيابه ئې خپل مينځ كښې مشوره اوكړه چې دا(حضور ﷺ) مسحوردې اودَسحردَوجې نه(العياذبالله) دَده دماغ خراب شويدې نوځكه دې داسې خبري كوي، نوالله ﷻ اوفرمائيل چې مونږ ته علم دې چې داظالمان دَڅه مقصدلپاره دي قرآن ته اودَحضور ﷺ خبروته غوږ كيدي اودَهغې بدله به ورته ميلاوېږي ﴿إِذْ يَسْتَمِعُونَ﴾ ظرف دې دَ ﴿أَعْلَمُ﴾ لپاره اى اعلم وقت استماعهم بمابه يستمعون(كشاف) اومراد پدې اخبارسره تاكيددې په

وعيد كښ اومرادتنه تقييد دَعلم دَالله ﷻ پدغه وقت پوري ندې ﴿إِذْ يَقُولُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ بدل دې د ﴿وَإِذْ هُمْ نَجْوَىٰٓ﴾ نه اووضع دَاسم ظاهرپه ځائ دَمضمر باندی اشاره ده چې داجرګې ددوی دظلم په وجه دې، ﴿إِن تَتَّبِعُونَ﴾ ان نافيه دې اوداكلام مبنی دې په فرض اوتقديرباندی يعنی انكم ان تبعتموه فقداتبعتم رجلا مسحورا(كبير) ځكه چې پدغه وقت كښ مخاطبين ددې قول والا ايمان نوو راوړې اومرادَ﴿مَّسْحُورًا﴾ نه دادې چې په هغه جادوكړې شوې دې اودماغ ئې خراب شوي دي اويا﴿مَّسْحُورًا﴾ په معنى دَساحرسره دې ځكه چې مفعول كله په معنى دَفاعل سره راځي نومقصد دادې چې داپيغمبر ﷺ ساحردې اودده په كلام كښ دَسحرتاثيردې اويا﴿مَّسْحُورًا﴾ په معنى دَمخدوع دهوكه كړې شوي سره دې اويامسحور دَسَحْر(په فتح دسين سره) نه دې چې خوراك اوڅنباك ته محتاج وي نومقصد دادې چې دې ستاسو پشانتي يوبشردې خوراك اوڅنباك كوي

**تنبيه**: دَلفظ مسحورنه كوم مطلب كفارو مرادكولودَهغې دَنفي نه دانده لازمه چې په حضور ﷺ باندی دَسحرعارضي طورپراثرنه كولو، اوداآيت مكي دې اوپه حضور ﷺ باندی په مدينه منوره كښ جادو اوسحركړې شوې وو چې دهغې اثرات عارضي طورحضور ﷺ باندی څه وخت لپاره ظاهرشوي وو چې دَامورد نيوي كښ به ورته كله كله ذهول كيدلو چې داواقعه په صحيحو احاديثو كښ ذكرده، نولهذا دَآيت اودَحديث په مينځ كښ څه تعارض نيشته دې، پوره تفصيل به ئې انشاء الله په معوذتين كښ راشي.

| |
|---|
| انظُرۡ كَيۡفَ ضَرَبُوا۟ لَكَ ٱلۡأَمۡثَالَ فَضَلُّوا۟ فَلَا يَسۡتَطِيعُونَ سَبِيلٗا ﴿٤٨﴾ |
| اوګوره ته چې څرنګې بيانه وي دوئ په تاپورې مثالونه(بد) پس ګمراه شول دوئ پس طاقت نه لري دوئ دسمې لارې |
| وَقَالُوٓا۟ أَءِذَا كُنَّا عِظَٰمٗا وَرُفَٰتًا أَءِنَّا لَمَبۡعُوثُونَ خَلۡقٗا جَدِيدٗا ﴿٤٩﴾ |
| [1] اووائی دوئ آياچې كله شومونږه هډوكې اوذرې ذرې نوآيامونږه به دوباره ژوندي كړې شوپه پيدائش نوی سره |

[1] شكوى

| قُلْ | كُوْنُوْا | حِجَارَةً | اَوْ | حَدِيْدًا ﴿۵۰﴾ | اَوْ | خَلْقًا | مِّمَّا | يَكْبُرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ته ورته اوايه [2] | چې | شئ تاسو كانړي | اويا اوسپنه. | اويا بل مخلوق | دهغې نه | چې | لوئ | وي |

| فِيْ | صُدُوْرِكُمْ | فَسَيَقُوْلُوْنَ | مَنْ | يُّعِيْدُنَا | قُلِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ستاسو په سينو (زړونو) كنبې. | پس قريبه ده چې دوئ به اوائي | څوك به دوباره پيدا كړي مونږه | | | ته ورته اوايه |

| الَّذِيْ | فَطَرَكُمْ | اَوَّلَ | مَرَّةٍ | فَسَيُنْغِضُوْنَ | اِلَيْكَ | رُءُوْسَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې هغه ذات به مو پيدا كړي چې پيدا كړي يئ تاسو اول ځل. | | | | پس قريبه ده چې خوزوي به دوئ تا ته سرونه خپل | | |

| وَيَقُوْلُوْنَ | مَتٰى | هُوَ | قُلْ | عَسٰى | اَنْ | يَّكُوْنَ | قَرِيْبًا ﴿۵۱﴾ | يَوْمَ | يَدْعُوْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوا به وائي كله به وي داوخت؟ | | | ته اوايه چې شايد چې وي داوخت ډير نژدې، | | | | | په هغه ورځ چې اواز به دركړي تاسو ته | |

| فَتَسْتَجِيْبُوْنَ | بِحَمْدِهٖ | وَتَظُنُّوْنَ |
|---|---|---|
| پس قبوله به كړئ تاسو دا (بلنه) | چې متلبس به وئ په حمد دالله ﷻ سره | اوګمان به كوئ تاسو |

| اِنْ | لَّبِثْتُمْ | اِلَّا | قَلِيْلًا ﴿۵۲﴾ |
|---|---|---|---|
| چې ندې وخت | تير كړې تاسو په دنيا كنبې | مګر ډير لږ وخت | |

﴿اُنْظُرْ كَيْفَ﴾ دازجردې كفاروته سره دتسلي نه حضور ﷺ ته ﴿الْاَمْثَالَ﴾ مراد دَدينه بيكاره صفتونه دي چې كله به ئې (العياذ بالله) حضور ﷺ ته ساحروئيل كله كاهن، كله شاعر، كله مفترى ﴿فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا﴾ مراد دَسبيلا نه ذرائع دي يعني دَخپل كوشش باوجود دوئ ته داسې ذرائع نه ميلاويږي چې دوئ هغه اختيار كړي اويونوم په تاباندې چسپان كړي اوپخپل مقصد كښې كامياب شي اوخلك ستانه منع كړي اويا اورنه مراد لاره دَهدايت ده يعني دَخپلو اقوالو اوپه پيغمبر ﷺ پورې استهزاء كولو دَوجې نه دَسمې لارې نه بې لارې شول او اوس طاقت دَهدايت نه

(2) جواب شكوى.

مومي، ﴿وَقَالُوٓا أَءِذَا ﴾شکوه ده دکفارونه اوعطف دَدي په ﴿ضَرَبُوا﴾باندی دې اود﴿كَيْف ﴾ ماتحت دې ای انظر کیف قالوا ااذاکنا چې پیغمبرﷺ ته کله ساحر. کله شاعر. کله مجنون. کله مفتری وئیل خوقابل دَتعجب دې خودهغې نه زیات دَتعجب خبره داده چې دوئ وائی چې دَمرګ نه پس چې کله زمونږ بدنونه خاوري شي هډوکي ریزه ریزه شي نوآیا دوباره به مونږه ژوندي کیږو، داخوبالکل ناممکنه خبره ده، دابه څرنګه کیږي؟ اوهمزه په ﴿أَءِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴾کښې استفهامي ده اواستفهام لپاره دانکاردې چې مفید دې لپاره دکمال استبعاد اواستنکارچې دوئ به دوباره ژوندي کیدل ډیربعیدکنړلو. ﴿خَلْقًا جَدِيدًا ﴾خلقا مفعول مطلق دې من غیرلفظه دَ﴿لَمَبْعُوثُونَ﴾ لپاره اویاحال دې دَضمیرد ﴿لَمَبْعُوثُونَ﴾نه اوخلق په معنی دَمخلوق سره دې ای حال کوننا مخلوقین ﴿قُلْ كُونُوا ﴾داجواب شکوه ده. چې خاوري نه پیداکیدل تاسوبعیدتصورکوئ حالانکه دَخاوري نه یوځلي تاسوپیداکړې شوي هم یئ بلکه دَمرګ نه پس کڅري تاسوکانړي یااوسپنه یابل داسې څیزچې دَهغې نه پیداکیدل تاسوته ډیرمشکل ښکاري هغه هم جوړشئ نوالله ﷻ پدي قادر دې چې تاسودوباره دهغې څیزونه پیداکړي، نودَ ﴿كُونُوا ﴾نه مخکښې لفظ دَ نعم مقدردې اومراد پدي امرسره امرتکلیفی ندې بلکه امرتقدیري دې چې په معنی دَشرط سره دې ای لوکنتم حجارة اوحدیدا اوجواب شرط ئی مقدردې لمااعجزتم الله تعالی عن الاعادة اوبعض مفسرین فرمائی چې امرلپاره دَتعجیزدې لکه په فاتوا بسورة کښې چې دې
اوبعض مفسرین فرمائی چې دالفظ اګرچه امردې خومعنی ئی دَخبرده اومقصد دادي چې الله ﷻ دوئ ته خبرورکوي چه کڅري تاسودکانړی یااوسپنې یادَبل سخت څیزنه هم جوړشوي ونی نوبیاهم ستاسو دوباره پیداکول الله ﷻ ته مشکل نوو ﴿أَوْ حَدِيدًا ﴾داترقي ده چې دِکانړي نه خوهم یومخلوق پیداشویدي نوتاسو اوسپنه جوړشئ یعني انسان دَمرګ نه پس دغه انساني اعضاء اواجزاء په اوسپنه باندی هم بدل شي اواوسپنه تنه جوړه شي چې په هغې کښې دَحیات څه قسم اثرات هم نیشته دي بیابه هم الله ﷻ تاسودوباره پیداکړي ﴿أَوْ خَلْقًا ﴾په معنی دَمخلوق سره دي یعني داسې سخت مخلوق چې دهغې نه دوباره ژوندي کیدل ستاسوپه زړونوکښې

ډیرمستبعدوي لکه اسمان حتی که مجسمه دَمرګ جوړه شي نوبیابه هم الله ﷻ تاسوپیدا کړي ﴿فَسَيَقُولُونَ﴾دادهغوئ اعتراض نقل کیږي چې دوئ به ډیرحیرت سره سوال کوی چې مونږه ذري ذري شو یاکانړي شویااوسپنه اویابل څه مخلوق جوړشونومونږ به څوك دوباره پیداکوي نوجواب اوشو چې ﴿قُلِ ٱلَّذِى فَطَرَكُمْ﴾یعني هغه ذات چې تاسو ئی دَعدم محض نه امکان ته اوبیائی دَخاورونه وجودته راوستئ نودغه ذات پدي قادر دي چې دوباره هم تاسو دَدي خاورونه پیداکړي څکه چې اعاده اسانه وي دَانشاء اوابداع نه، ﴿فَسَيُنْغِضُونَ﴾دادریم سوال دي دَدوئ بطور استهزاء دوئ به تپوس کولوچې بنه دادوباره پیداکیدل به کله وي؟ نغض په کلام عرب کښ کته،بره حرکت ته وئیلی کیږي النغض فی کلام العرب انماهو حرکة بارتفاع ثم انخفاض اوانخفاض ثم ارتفاع(طبری)نونغض دراس مقصد دادي چې سربنکته کوي اوبیااوچته وي اوداعمل بارباركوي اوداعمل به دوئ استهزاء کولو ،﴿قُلْ عَسَىٰٓ أَن يَكُونَ﴾ یعني داوخت ډیرقریب دي اګرچه تعین علم ئی بغیردَالله ﷻ نه بل چاته نیشته دي عسیٰ په کلام دَالله ﷻ کښ لپاره دَتیقن وي اودالپاره تاکیددَقربت دي چه دغه وخت ډیرقریب دي ﴿يَوْمَ يَدْعُوكُمْ﴾داتخویف اخروي دي اوحال دَبعث بیانیږي او﴿يَوْمَ﴾ بدل دي دَ ﴿قَرِيبًا﴾نه اویامنصوب دي بناء پدي چې مفعول به دي دَفعل مقدرلپاره چې اذکردي اومراد دَ ﴿يَدْعُوكُم﴾نه یانفخه ثانیه ده (دویمه شپیلئ)لپاره دَبعث اویاتنه مراد آوازدي لپاره دَحشرچې آوازبه اوکړې شي هلموا الی عرض الرحمن اوبعض فرمائی چې دَدینه مراد هغه آوازدي چې حضرت اسرافیل ﷺ به په کانړي دَبیت المقدس اودریږي اواهل قبور ته به په یوښکرکښ اعلان اوکړي ایتهاالعظام البالیة واللحوم المتفرقة والعروق المتقطعة اخرجوا من قبورکم.فتستجیبون باب استفعال لپاره دَتاکید دي مراد تنه اجابت دي یعنی تاسوبه موافقت کوئ دبلنه کوونکی چې کوم شی به تاسورابلي، او(باء)په ﴿بِحَمْدِهِۦ﴾کښ ملابست لپاره ده ای متلبسین بحمده. اومراد دحمدنه دَالله ﷻ تسبیح اوتقدیس دي مؤمنان به هم دَالله ﷻ حمدبیانه وي چې الحمدلله الذی اذهب عنا الحزن (ابن کثیر)اوکافربه هم تسبیح وائی لکه چې په څني روایاتوکښ راغلي دي چې کافربه دَالله ﷻ تسبیح بیانه وي اووائي به سبحنك اللهم وبحمدك(روح) خوکه فرته به

داځه نفع نه ورکوي.اوعلامه زمخشري رحمه الله دعا.استجابت اوحمد دري واړه په مجاز بندی حمل کړي دي چې مراد دَ ﴿يَدۡعُوكُمۡ﴾نه انبعاث دې اومراد استجابت نه مطاوعت دې دانبعاث اومقصد دادې چې په کومه ورځ مونږه ستاسو دوباره پيدا کيدل اوغواړو نوفورا به تاسو راپاسئ اوځه شئ به هم ستاسو لپاره مانع اورکاوټ دَ بعث نه نوي.اومراد دَ ﴿بِحَمۡدِهِۦ﴾نه مبالغه ده په انقياد کښ، اوبعض مفسرين فرمائی چې مراد دحمد نه امر دې اوباء سببيت ده يعني تاسو به استجابت اوکړئ په سبب دَامردَالله تعالیٰ سره ، ﴿إِن لَّبِثۡتُمۡ إِلَّا قَلِيلٗا﴾مراد تنه ياهغه وخت دې چې کوم ئې په دنياکښ تيرکړي وي يعني چې کله دَاخرت والا سختيو معائنه اوکړي نودَدنيا والاعمربه ډيرکم ښکاره شي اوياتنه مراد هغه وخت دې چې کوم ئې په قبرکښ تيرکړي وي چې داخرت عذاب اوسختيو دَوجې نه دَقبر عذاب اوزندګی به ورته کمه محسوسه شي ای مالبثتم فى القبور الاقليلا(روح) اودَحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دي چې دَدينه مراد هغه وخت دې چې مابين النفختين وي ځکه پدغه وخت کښ به پدوئ باندی عذاب نوي اوچې کله نفخه ثانيه اووهلې شي اوقبرونونه راپاسي نوداوخت به ورته ډيرکم محسوس شي اودابه اووائی چې ياويلنا من بعثنامن مرقدنا.

| |
|---|
| وَقُل لِّعِبَادِي يَقُولُوا الَّتِي هِيَ أَحۡسَنُۚ إِنَّ الشَّيۡطَٰنَ يَنزَغُ بَيۡنَهُمۡ |
| (۱)اواوايه بندګانوځماته چې کوی دې دوئ هغه خبره چې هغه خائسته ده، بيشکه شيطان فساداچوي په مينځ ددوئ کښ |
| إِنَّ الشَّيۡطَٰنَ كَانَ لِلۡإِنسَٰنِ عَدُوّٗا مُّبِينٗا ۝ رَّبُّكُمۡ أَعۡلَمُ بِكُمۡۖ إِن يَشَأۡ |
| بيشکه شيطان دې لپاره دانسان دشمن ښکاره ،رب دستاسو ښه پوهه دې په حال دستاسوباندی که اوغوړي |
| يَرۡحَمۡكُمۡ أَوۡ إِن يَشَأۡ يُعَذِّبۡكُمۡۚ وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ عَلَيۡهِمۡ |
| نورحم به اوکړي په تاسو باندی اوکه اوغواړي نوعذاب به درکړي تاسوته ،اونه ئې ليږلې مونږه ته په دوئ باندی |

(1) طريقه تبليغ

# وَكِيلًا ﴿٥٤﴾

نگران(ذمه وار)

﴿وَقُل لِّعِبَادِى﴾پدي آيتونو كښې طريقه دَدعوت اوتعليم بيانيږي چې دهغې ذكرپه سورة النحل ايت نمبر(۱۲۵) ادع الى سبيل ربك كښې شوې وو ، يعني په وخت دَ دعوت كښې نرمي كوئ كچري يوجاهل ستاسومذاق اوتمسخركوي نوتاسوورسره سختي مه كوئ اومراد ﴿لِعِبَادِى﴾نه مؤمنان دي ځكه چې اكثرپه ايات قرآنيه كښې دَ(عباد)نه مراد مؤمنين دي لكه په سورة الزمر ايت نمبر(۱۷) فبشرعباد اوسورة الفجر ايت نمبر(۲۹) فادخلى فى عباد اوسورة الدهر ايت نمبر(۲)عينايشرب بهاعبادالله وغيرذلك، اومراد پدي توجيه سره دَ ﴿ٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ﴾نه مراد نرمه اومدلله خبره ده اوقرطبى فرمائى چې پدي ايت كښې خطاب مؤمنانوته دې اوهدايت بيانيږي چې په خپل مينځ كښې په وخت داختلاف كښې سختي خبري مه كوئ بلكه نرمې سره خبري كوئ دَسختوخبرو په وجي سره شيطان ستاسو په مينځ كښې اختلاف پيداكوي.

﴿إِنَّ ٱلشَّيْطَٰنَ يَنزَغُ﴾نزع وتيلى كيږي الاغراء بالفساد تَه يعنى چې شيطان ستاسوپه مينځ كښې فساد پيدانكړي،دَدي لپاره تاسو په دعوت كښې نرمي كوئ.

**فائده**: دامما نعت دَهغه سختئ نه دې چې هغه بى ضرورته اوبي محله وي اوپه وخت دَضرورت اوقتال كښې سختى كول ضروري دي.

﴿رَّبُّكُمْ أَعْلَمُ﴾ددينه مخكښې لفظ دقولوا لهم مقدردي اوداخطاب مشركينو ته دې پواسطه دَمؤمنانو سره،اوداتفسيردي دَ﴿هِىَ أَحْسَنُ﴾ ،او﴿إِنَّ ٱلشَّيْطَٰنَ﴾ دا دوه جملي په مينځ كښې بطور معترضي راغلي وي،اومراد په﴿يَرْحَمْكُمْ﴾ سره توفيق دَ ايمان دې يعني تاسودوئ ته نرمه خبره كوئ چې هغه داده چې تاسو دوئ ته داسې وائي چې ستاسورب ښه عالم دې په تاسوباندى اوهدايت دَهغه په اختيار كښې دې كه خوښه شي نوتاسوته به توفيق دَهدايت اوايمان به دركړي يابه عذاب دركړي چې كله تاسوپه شرك باندى مړه شئ اودوئ ته صراحتاجهنمي يانورسخت قسم الفاظ مه استعماله وئ، اوياخطاب مؤمنانوته دې په طريقي دَالتفات سره لكه ماقبل كښې

خطاب مؤمنانو ته وو. اومراد په ﴿يَرۡحَمۡكُمۡ﴾ سره نجات دي د كفارمكه نه او ﴿يُعَذِّبۡكُمۡ﴾ نه مراد تسلط دي دهغوئ يعنى كچري تاسودعوت اوتبليغ كوئ پدغه طريقي مذكوري سره نو الله ﷻ به په تاسوباندى رحم اوكړي چې دَدشمنانو نه به تاسوته نجات دركړي. اوپه ترك دَدعوت سره به تاسوته سزا دركړي په تسلط دَدشمن سره.

| وَرَبُّكَ اَعۡلَمُ بِمَنۡ فِي السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ؕ وَلَقَدۡ |
| --- |
| اورب ستاښه پوهه دې په هغه چاچې په اسمانونوكښ دي اوپه زمكه كښ دى اوخامخا تحقيق سره[1] |
| فَضَّلۡنَا بَعۡضَ النَّبِيّٖنَ عَلٰى بَعۡضٍ وَّاٰتَيۡنَا دَاوٗدَ زَبُوۡرًا ﴿۵۵﴾ |
| غوره والي وركړيدې مونږه ځنى پيغمبرانوته په ځنوباندى اووركړې وومونږه داؤد عليه السلام ته زبوركتاب |

﴿وَرَبُّكَ اَعۡلَمُ﴾ داڅلورم دليل عقلي دې په توحيدباندى چې علم محيط په ټولو څيزونو باندى الله ﷻ لره ثابت دي اوستاسوپه احوال ظاهره اوباطنه باندى خبرداردې نوچاته اوغواړي پيغمبرئي جوړكړي دادهغه خپل حكمت دې. ﴿وَلَقَدۡ فَضَّلۡنَا﴾ ځني انبياؤته موفضيلت كلي ياجزئي په ځني نورو انبياؤ باندى وركړيدې داهم دَالله ﷻ دَعلم محيط اوحكمت بالغه په وجه سره دې اواختلاف په مراتبودَانبياء كښ شته دې تفصيل ئې په سورة البقرة ايت نمبر(٢٥٣) كښ تيرشويدې. ﴿وَاٰتَيۡنَا دَاوٗدَ زَبُوۡرًا﴾ يعني داؤد عليه السلام ته ئې زبور وركړې وو نوحضور ﷺ ته قرآن وركول څه بعيده خبره نده. اوتخصيص دَحضرت داؤد عليه السلام كښ مختلف توجيهات دي غوره توجيه داده چې كفاروبه داوئيل چې لولا نزل هذا القران على رجل من القريتين عظيم، نوپدې ايت كښ اشاره اوشوله چې عظمت اوفضيلت عندالله مال اوبادشاهئ دَوجي نه ندې حضرت داود عليه السلام ته الله ﷻ بادشاهي هم وركړې وه اوزبوركتاب هم، خوفضيلت دهغه په كتاب سره وو، نه دَدنيا په بادشاهى سره. اوبعض علماء فرمائى چې پدې تخصيص كښ دَحضور ﷺ فضيلت كلي ته

(1) دليل عقلى چهارم برتوحيد.

اودامت محمدیهﷺ فضل اوشرف ته اشاره ده ځکه چې په زبورکښې دحضورﷺ خاتم النبیین کیدل اودحضورﷺ دامت فضل اوشرف ذکروولکه الله ﷻ فرمائي ولقدکتبنا فی الزبورمن بعدالذکران الارض یرثهاعبادی الصالحون ‹انبیاء ۱۰۵› ،اوبعض علماء فرمائي چې په دې تخصیص کښې حضورﷺ ته دغلبې اوریاست بشارت دې، اوحضرت مولاناعثمانی رحمه الله فرمائي چې وجه دتخصیص داده چې حضرت داودﷺ به جهاد هم کولو اودزبور تعلیم به ئې هم ورکولو .نو هغه دوه څیزونه دلته هم دي قرآن اوجهاد ،قرطبي فرمائي چې په زبورکښې احکامات دحل اوحرمت نوو بلکه په هغې کښې اذکار،تسبیحات اومواعظ وو، نوممکنه ده چې د جهاد حکم الله ﷻ په زبورکښې نوي ذکرکړې بلکه مستقلا ذکرشوې وی اوپه حدیث کښې ذکردې چې کان لایفر اذالاقی.

| |
|---|
| قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ فَلَا يَمْلِكُوْنَ |
| [1]اوایه ته راووایه هغه بتان چې گمان پری کوئ تاسو‹دخدائ سره دشریکانو› سیوا دالله ﷻ نه، پس اختیار نه لري هغوئ |
| كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيْلًا ۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ |
| دلرې کولو دتکلیف ستاسو نه اونه دکمولویامنتقل کولوبل چاته،هغه معبودان چې دوئ‹مشرکین›بلنه کوی‹دهغوئ |
| يَبْتَغُوْنَ اِلٰى رَبِّهِمُ الْوَسِيْلَةَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ وَيَرْجُوْنَ رَحْمَتَهٗ |
| تالاش کوی هغوئ رب خپل ته نزدیکت چې کوم یوددوئ نه زیات نزدې دې‹الله ﷻ ته› اوامید لری دوئ درحمت دهغه |
| وَيَخَافُوْنَ عَذَابَهٗ ؕ اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُوْرًا ۝ وَاِنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اِلَّا نَحْنُ |
| اوبیریږي دعذاب دهغه نه بیشکه عذاب درب ستادې چې یره تنه کیدې شي،اونیشته هیڅ یوکلې مگرمونږه |
| مُهْلِكُوْهَا قَبْلَ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ اَوْ مُعَذِّبُوْهَا عَذَابًا شَدِيْدًا ؕ كَانَ ذٰلِكَ |
| هلاک کوونکی یو دهغې مخکښې دورځې دقیامت نه یاعذاب ورکوونکی یو هغې ته عذاب سخت. ده دافیصله |

‹1› ثمره مقصود ی برائ دلائل ثلاثه.

## فِي الْكِتٰبِ مَسْطُوْرًا ﴿۵۸﴾

په لوح محفوظ کښې ليکلې شوې

﴿قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ﴾دادليل نقلي پيش کيږي په توحيد باندې دملائکو اوانبياء سابقينو نه،چې دکومو انبياء کرامو يادملائکوياد نورو اولياؤ تاسو عبادت کوئ اوخپل کارساز اوحاجت روائي کنړئ نوهغوئ تاسوته هيڅ قسم فائده نشي رسولې اوضرر درنه نشي دفع کولې بلکه هغوئ په خپله الله ﷻ نه لارې اوذرائع دقربت تلاش کوي اود الله ﷻ درحمت اميد اوعذاب نه ئې خوف لري،اوپدې کښې ردپه شرك فى الدعا اوشرك فى التصرف باندې هم دې اوشان نزول ددې ايت په حديث دبخاري کښې چې روايت دې دابن مسعود ؓ نه داسې ذکرشويدې چې مشرکينو کښې څنې خلکو دپيريانو عبادت کولو اوهغه پيريان مسلمانان شوځو دغه مشرکينو دهغوئ عبادت نه پريخودلو،نوداايت نازل شو، ﴿زَعَمْتُم﴾ زعم دوه مفعولينوته متعدي کيږي اودلته کښې دواړه مقدردي،اصل کښې داسې دې زعمتموهم شرکاء او﴿مِّن دُونِهِ﴾ کښې من بيانيه دې اودابيان د﴿الَّذِينَ﴾ نه لپاره دې اوامرلپاره دتهديد اوزجردې،قرطبى اوصاحب دمدارك اوصاحب دبحر وغيره قول فرمائي چې پدې ايت کښې حضرت عيسى ؑ ،عزير ؑ اوملائك وغيره چې عبادت شوي وي هغه داخل دي نودغه شانتې هغه اولياء الله هم پدې کښې داخل دي چې دهغوئ عبادت کيږي ژوندي وي اوکه مړه وي، ﴿كَشْفَ الضُّرِّ﴾کشف دضرر عبارت دې ددېنه چې تکليف بالکلية ختم کړې شي اوهيڅ څيزهم پاتې نشي اوتحويل عبارت دې بدلولو ديوحالت نه بل حالت اويادېومکان نه بل مکان ته،مقصد دادې چې تاسوچې دچاعبادت کوئ نوهغوئ کښې څوك هم دومره اختيارنه لري چې ستاسو نه تکليف بالکلية ختم کړي،يائې کم کړي اويائې بل چاته منتقل کړي ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ ﴾داعلت دې دماقبل ايت لپاره چې هغوئ ستاسونه ضرر لرې کولوباندې څکه ندې قادرچې هغوئ په خپله الله ﷻ ته تقرب لپاره لارې تلاش کوي اودالله ﷻ رحمت طلب کوي اودهغه دعذاب نه يريږي﴿إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ ﴾ اسم اشاره مبتدا ده

الذين يدعون بدل دي دَاسم اشاري نه اوعائد پکښې محذوف دې يعني يدعوهم اويبتغون ويرجون ويخافون معطوف عليه سره دَمعطوفاتو خبردې دَ مبتداء لپاره. اوالی ربهم الوسيلة نه مراد تقرب دې الله ﷻ په طاعاتو اوعبادت سره اويالی په معنی دَمن سره دې اووسيله په معنی دَحاجت سره دې لکه داتفسيرمنقول دې دَابن عباس رضی الله عنه نه نومعنی ئی داده چې دوئ خپل حاجتونه دَالله ﷻ نه پوره کوي اوالله ﷻ ته سوال کوي ای يبتغون من ربهم الحاجات، ﴿أَيُّهُمْ أَقْرَبُ﴾ دابدل البعض دې دَضميردَ﴿يَبْتَغُونَ﴾ نه او ایّ په شپږو معانيو کښې استعماليږي(۱) کله شرطيه وي لکه اياماتدعو فله الاسماء الحسنى(۲) کله استفهاميه وي لکه ايّکم زادته ايمانا(۳) کله موصوله وي لکه ايّهم اشد على الرحمن (۴) کله لپاره دَتعجب وي لکه سبحان الله ای رجل هذا(۵) کله متصله دَنداء سره راځي لکه ياايها الرجل (۶) کله لپاره دَدلالت په کمال باندی راځي لکه زيد رجل ای رجل،نودلته يااستفهاميه ده نومعنی به ئی داشي چې څوك په هغوئ کښې اقرب دې الله ﷻ ته؟ اويا موصوله ده نومعنې به ئی داشي چې په هغوکښې کوم کس زيات اقرب الی الله ﷻ دې هغه هومره زيات تقرب طلب کوي، ﴿مَحْذُورًا﴾ يعنی لائق دَدي چې هرڅوك تنه ځان بچ کړي اوويريږي تنه.

**تنبيه**: مسئله توسل په تفصيل سره په سورة المائدة کښې ذکرشويده من شاء فليطالع فانه بحث انيق وتحقيق غريب، ﴿وَإِن مِّن﴾ داتخويف دنيوی دې اوماقبل ايت کښې چې دکوم عذاب نه دَځان بچ کولو حکم وو نوپدي آيت کښې دَهغې دوقوع خبرورکولې کيږي چې دافيصله حتمي اولوح محفوظ کښې ليکلي شويده چې دَقيامت نه مخکښې مخکښې به په هرقريې باندی هلاکت اوياعذاب راځي اومشرکينوته به خپل معبودان باطله هيڅ قسم نجات ورنکړي اوڅه مددبه ئی اونکړي او ان نافيه دې اومن زائده دې اودَقرية نه مراد ياهرګناه ګاره قريه ده اودآيت مقصد دادې چې دَقيامت نه مخکښې به هره ګناهګاره قريه به دَخپل ګناهونودَوجې نه به يابالکلية هلاك شي کچري ګناهونه ئی سخت قسم وو اويابه په نورو انواعو دعذاب کښې مبتلاشي لکه قحط شوه،بدامني شوه وغيره کچري ګناهونه ئی دَانتهائی لوئی درجي والانه وو. اويامراد دَقرئي نه قرية ظالمة ده چې دَمشرکينو والاقريي دې اومقصد دَايت دادې چې دَمشرکينو اودَظالمانو والاقريه به دَقيامت نه مخکښې مخکښې هلاك کړوپه هلاکت استئصال سره اويابه ئی په نورو عذابونوکښې مبتلا کړو لکه شکست اوغلامی،جزيه وغيره شواويامراد دَقرية نه عامه قريه ده

لکه چې داتقاضا دعموم دایت اودمن زائده هم ده،نودایت مقصد دادي چې ددنیاهره قریه به دقیامت نه مخکښ مخکښ ختمیږي،یابه په خپل طبعي موت سره چې هغه به دتعذیب نه خالي وي کچري مؤمنان وو اوسیدونکي دهغې اویاپه سخت قسم عذاب سره کچري اهل دهغې مشرکین اوکفاروو نودَ﴿مُهْلِكُوهَا﴾ نه مراد طبعي موت دې اوپه طبعي موت باندې اطلاق دهلاکت په قرآن اوحدیث دواړو کښ شویدي لکه حتی اذا هلك قلتم اوپه حدیث کښ دي کلما هلك نبي «الحدیث»داتوجیه زیاته غوره ده، ﴿كَانَ ذَٰلِكَ﴾یعنی دافیصله لوح محفوظ کښ لیکلې شویده اوددنیا هیڅ قسم طاقت اواسباب دافیصله نشي بدله ولې،حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله ددې ایت مقصد داسې بیانه وي چې دهرشهرخلك دیوبزرګ عبادت کوي چې مونږ دده رعیت یو اودده په پناه کښ یوخوچې کله وخت دعذاب راشي نوبیابه هغه ورته پناه ورنکړي.

| |
|---|
| وَمَا مَنَعَنَآ أَن نُّرْسِلَ بِالْآيٰتِ إِلَّآ أَن كَذَّبَ بِهَا الْأَوَّلُونَ ۚ وَاٰتَيْنَا |
| [1]اونه یومنع کړې مونږه دلیږلودفرمائشي معجزاتونه مګرداچې نسبت ددروغوکړې وودیته مخکنوخلکو .اوورکړې وه مونږه |
| ثَمُودَ النَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوا بِهَا ۚ وَمَا نُرْسِلُ بِالْآيٰتِ إِلَّا تَخْوِيفًا ۝ |
| ثمودیانوته اوښه معجزه ښکاره پس ظلم اوکړو هغوئ پدې باندې اونه لیږومونږه معجزې مګرلپاره دیرولو |

﴿وَمَا مَنَعَنَآ﴾دادریم ایت معجزه دې اوپدیکښ دویم سبب دنزول عذاب ذکرکیږي چې هغه انکاردې دمعجزاتونه اوکفاروبه باربار فرمائشي معجزات طلب کول لکه صفا ،مروه دسروزرو غرونه جوړیدل،یادمکې نه غرونه ختمول اودمکې زمکه دزراعت قابله جوړول وغیره نو الله تعالی پدې ایت کښ ددغې متعلق ارشاد فرمائی چې داسې معجزاتو مطالبه پوره کول ستاسو په حق کښ ښه ندې ځکه چې کله هم دیوقوم فرمائشي معجزه پوره کړې شي اوهغوئ بیاایمان رانوړي نوپه هغوئ باندې عذاب راځي اوبالکلیه هغه قوم هلاك کیږي لکه مخکني قومونو سره داسې شویدي لکه قوم ثمود ته دهغوئ دفرمائش معجزه ورکړې شوي وه چې ناقه وه بیائی هم

---

[1] سوم ایت معجزه.

نکار وکړونو الله ﷻ عذاب پرې راوستونو او بالکليه هلاك شو او ماپه ﴿وَمَا مَنَعَنَآ﴾ کښې نا فيه ده وناضميرمفعول دَمنع لپاره دې او ﴿أَن نُّرۡسِلَ﴾ وړله مفعول ثاني دې او ﴿إِلَّآ أَن كَذَّبَ بِهَا ٱلۡأَوَّلُونَ﴾ جمله په تاويل دَمصدرسره فاعل دَمنع دې تقديردَعبارت دادې چې ومامنعنا ارسال الآيات لا تکذيب الاولين(کشاف) اونسبت وقوعي دَمنع الله ﷻ خپل خان ته کول مجازا اواستعارة دې نه حقيقة ځکه چې منع وئيلې کيږي كف الغير وقسره عن فعل يريد ان يفعله يعنی بندول دَغيراومجبوره کول دَغيردَهغه فعل نه چې هغه دَهغې دکولو اراده کړې وي(روح) اودامعنی محاله ده په الله ﷻ کښې نو دَدې وجه نه دااستعاره ده دَترك الارسال دَمعجزتو مطلوبه نه،دوجې دَتاخير دَحکمت نه دچه هغه عذاب مؤخرکول دي نودآيت مقصد دادې چې مونږه هغه معجزات چې تاسو ئې طلب کوئ اوفرمائش ئې کوئ نوهغه مونږه پريښودلی دې دوجې دَحکمت نه چې هغه تاخيردَعذاب دې(روح) ﴿وَءَاتَيۡنَا﴾ دا يوفرد اويوه نمونه دَ اولون ذکرکيږي چې هغه ثموديان دي چې دَحضرت صالح ﷺ نه ئې فرمائشي معجزه طلب کړه چې دَيوکانړي نه دَلسومياشتو بلاربه اوښه رااوباسه نو الله ﷻ دَدوئ دغه مطالبه پوره کړه خوچې بيائې هم انکار اوکړو نو الله ﷻ بالکليه هلاك کړل اوواو لپاره دَعطف دې او داجمله عطف ده دَماقبل کلام په فحوی باندی نومعطوف عليه دَدې مذکوردې معنٰی چې په هغې باندی ماقبل کلام دلالت کوي چې هغه دکفارو اوښنو فرمائشي معجزات طلب کول اوبيادهغې نه تکذيب کول دي (روح) اوتخصيص په استشهادسره دقوم صالح ځکه اوشوچې دَدوئ دَهلاکت اثار اوامثال ديرقريب وو قريش مکه ته اوهرتلونکې راتلونکې به کتلو (فتح،کشاف) اوځني محققينو يوه نکته ذکرکړيده دَتخصيص دَنقې لپاره چې فرمائی چې مراد پدې ايتونو سره اثبات دقدرت دې په اعادې باندی پس دمرګ نه ځکه چې کفارو به داوئيل چې ائذا كنا ترابا وعظاما ورفاتا ائنا لمبعوثون خلقا جديدا. نودهغې په جواب کښې الله ﷻ اوفرمائيل چې ﴿كُونُواْ حِجَارَةً أَوۡ حَدِيدًا﴾ نوبياپدې باندی دوه امرين مرتب کړل په طريقې دَلف نشرغيرمرتب سره. نوپه ذکردَداؤد ﷺ سره اشاره ده اثبات دقدرت ته په حديد باندی اوپه ذکردَناقې دَحضرت صالح ﷺ کښې اشاره ده په قدرت باندی حجارة ته

﴿مُبۡصِرَةً﴾ داحال دې ﴿ٱلنَّاقَةَ﴾ نه په اعتبار دَموصوف مقدره سره چې اية دې او ﴿مُبۡصِرَةً﴾ په معنی دَمضينة سره دې لکه والنهار مبصرا شو اويا په معنی د ذات ابصار اوبصيرة سره دې ﴿فَظَلَمُواْ بِهَا﴾ مرادترينه انکار اوتکذيب اوکفراوقتل دَاوبنې دې ﴿وَمَا نُرۡسِلُ﴾ مراد په ﴿بِٱلۡأٓيَٰتِ﴾ سره يافرمائشي معجزات دي نود ﴿إِلَّا تَخۡوِيفٗا﴾ نه مراد بيانزول دَعذاب عاجله دې نو مقصد دادې چې دغه فرمائشي معجزاتو سره هم دوئ دَالله ﷻ نه ،نه اويريږي او ايمان رانه وړي نو بيا په دنيا کښې پري عذاب راځي،اوکچري مراد په بالايات سره معجزات غيرمطلوبه شي نوبيا مراد دَ ﴿إِلَّا تَخۡوِيفٗا﴾ نه عذاب اخرت دې نومقصد دايت دادې چې کوم معجزات چې مونږه ظاهره وو لکه ايات قرانيه شووغيره دعذاب اخرت نه دَيريدو لپاره دي(کشاف).

| |
|---|
| وَإِذۡ قُلۡنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ أَحَاطَ بِٱلنَّاسِۚ |
| (اوياد کړه هغه وخت) چې کله اوئيل مونږه تاته چې بيشکه رب ستا هغه گيره اچولې ده په خلقو (په قدرت سره) |
| وَمَا جَعَلۡنَا ٱلرُّءۡيَا ٱلَّتِيٓ أَرَيۡنَٰكَ إِلَّا فِتۡنَةٗ لِّلنَّاسِ وَٱلشَّجَرَةَ ٱلۡمَلۡعُونَةَ |
| اوندې گرځولې مونږه هغه ليدل چې خودلې دې مونږه تاته مگرازمائش لپاره دخلکو او (دغه شان هغه ونه چې لعنت کړ شوې) |
| فِي ٱلۡقُرۡءَانِۚ وَنُخَوِّفُهُمۡ فَمَا يَزِيدُهُمۡ إِلَّا طُغۡيَٰنٗا كَبِيرٗا ٦٠ |
| په قرآن کښ اويره وومونږه دوئ لره پس نه زياتوي دوئ لره مگرسرکشي لويه |

﴿وَإِذۡ قُلۡنَا لَكَ﴾ هرکله چې په مخکښني ايت کښ دکفارو فرمائشي معجزي نه پوره کولو سبب بيان شو نو اوس پدي ايت کښ دهغوئ طعن اوتشنيع باندی حضور ﷺ ته تسلي ورکولې کيږي چې دوئ طعن شروع کړو چې داځنگه پيغمبردې چې مونږ ته يوه فرمائشي معجزه نشي راوړې؟ نو الله ﷻ فرمائی چې دټولو مخلوقاتو حالات که ظاهري دي ياباطني الله ﷻ په هغې باندی په اعتباردَعلم اوقدرت سره احاطه کړيده کچري ددوئ مطالبه پوره هم کړې شي بيا هم دوئ ايمان نه

راوړي بيابه هم دوئ استهزاء کوي. اودوه ايات بطورمثال الله ﷻ ښائي چې يوه واقعه معراج چې څومره عظيمه معجزه وه اودوئ استهزاء وربوري شروع کړه او دويم شجره ملعونه چې هغه په جهنم کښې ده نوپه هغې پوري هم استهزاء کوی اودغه شانتي الله ﷻ تيزی ورکوي پيغمبر ﷺ ته په دعوت کښې چې دَدوئ خبروته التفات مه کوه خپل دعوت اوتبليغ کوه اوالله ﷻ په اعتبار دَقدرت سره په هرڅا احاطه کړيده نوستا حفاظت به هم الله ﷻ کوي. ﴿وَإِذْ قُلْنَا﴾ظرف زمان دې دَفعل مقدرلپاره چې اذکر دې ﴿أَحَاطَ بِٱلنَّاسِ﴾مراد تنه يااحاطه په اعتباردَعلم سره ده چې الله ﷻ ته علم دې چې څوك ايمان راوړي اوڅوك نه راوړي اويا احاطه په اعتباردَقدرت سره ده چې داخلك ټول دالله ﷻ په قدرت کښې دي،نودَالله ﷻ دَارادي نه بغيردوئ په هيڅ څيزباندی قادرندي اوتاته هيڅ قسم تکليف نشي درکولې،ستاحافظ اوناصرالله ﷻ دې،ددې دواړو توجيه په اعتبار الف لام په الناس کښې لپاره دَاستغراق حقيقي دې اوټول انسانان تنه مراد دي اوياعهدي دې اومراد تنه قريش مکه دي اومراد داحاطي نه اهلاك دهغوئ دې نودَايت مقصد بيادادې چې واقعه معراج دوئ اوکتله اودهغې باوجود ئې ايمان رانوړو نواوس دَدوئ دَهلاکت وخت قريب راغليدې اوبدرکښې الله ﷻ خپله وعده پوره کړه(قرطبي) اوپه صيغی دَماضي سره ذکرکول لپاره دَتحقق الوقوع دي.

﴿وَمَا جَعَلْنَا ٱلرُّءْيَا﴾دااول ايـت بطورمثـال بيـانيږي چـې دوئ دَفرمائشـي معجـزو پـه پـيش کيدلوسره هم ايمان نه راوړئ لکه څنګه چې دوئ تکذيب اوکړو دَعظيم معجزي دَمعراج نه اووجه داده چې معجزي اوايات ټول خلاف عـادت کيدلوکښـي مشترك دي اودَانازليږی دَجانبـه دَالله ﷻ نـه لپـاره دَتصديق دَرسـالت، نوتکـذيب دَبعضـو معجزاتـو مسـتلزم دې تکـذيب لـره دکـل معجزاتـو (ابـی سعود) اودَغوره قول مطابق مـراد د ﴿ٱلرُّءْيَا﴾نه رؤيت بصري يعني پـه سـترګو سـره ليـدل دي پـه شـپه دَمعراج کښې دااقول منقول دې دَابن عباس ﷺ نه نقل کړيدې امام بخـاري، تفصـيل ئـې پـه ابتـداء ددې سورت کښې ذکرشـويدې. ﴿إِلَّا فِتْنَةً﴾کفـارو داواقعـه بعيـده اوخـلاف عقـل ئـې اوکنړلـه نوانکـارئې اوکړو .حتـی کـه بعـض نـوي مسـلمانانو قدمونـه هـم اوخويځيـدل،اومخلص مسـلمانانو تصـديق اوکړو ،ايمـان کښې ورتـه ترقـي اوشوه داواضـح دليـل دې چې معراج پـه جسد عنصري سـره پـه حالـت دِيقظت يعني پـه ويخـه بانـدی وو ،کچري پـه ويخـه بانـدی نـوې بلکـه دَخـوب ليـدل وې اوروحـاني وې

نو په هغې سره امتحان نه كيږي. ﴿وَٱلشَّجَرَةَ ٱلْمَلْعُونَةَ﴾ دا دويم مثال بيانيږي او دا عطف دې په ما قبل ﴿ٱلرُّءْيَا ٱلَّتِيٓ﴾ باندې او په ايت كښې تقديم او تاخير دې اى ماجعلنا الرؤيا الّتى اريناك والشجرة الملعونة في القرآن الافتنة للناس (قرطبى) چې هر كله الله ﷻ دوئ ته خبرور كړو دَوني دَزقوم نه چې دا په جهنم كښې دى او دكافرانو خوراك به وي نو دوئ استهزاء شروع كړه او دائې اووئيل چې په جهنم كښې څرنګه ونې زرغونيږي حالانكه دغه اور به په كانړو بليږي، نو دا هم فتنة او امتحان دَخلكو لپاره وو. كفارو خلاف عقل او كنړلو او انكارئې تنه اوكړو، او مسلمانانو ئې تصديق اوكړو، او مراد دَدې شجرة نه شجر دَزقوم ده او ديته ملعونه وئيل يا مجازا دې په اعتبار دَآكلين سره چې خوړونكې دَدې ملعونين في القرآن دي، چې هغه كفار دي چې اصل كښې حقيقة لعنت په قرآن كښې په هغوئ وئيلې شوې او اونې دزقوم نه څه ګناه ندې شوې چې په هغې باندې لعنت اوئيلې شي، او يا ملعون په معنى دَضار سره دې يعني تكليف رسونكې او عرب هر تكليف رسونكې خوراك ته ملعون وائي. نو مطلب دَايت دا شو چې دهغې ونې تكليف رسول جهنميانو ته ذكر دې په قرآن كښې (كبير)، او يا ملعون په معنى لغوي سره دې چې ابعاد لرې والې ته وئيلى كيږي او اونه دزقوم هم مبعده ده دَصفات الخير نه او په هغې كښې صفات دَخير نيشته دي نو دَايت مطلب دا شو چې هغه ونه چې دهغې بد صفات بيان كړې شويدي په قرآن كښې لكه چې په سورة الدخان كښې ذكر دي، والله اعلم بالصواب. ﴿وَنُخَوِّفُهُمْ﴾ يعنى دې تخويف دَدوئ سركشي نوره هم زياته كړه او مزيد شرارت ئې زيات كړو.

| وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا۟ لِءَادَمَ فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبْلِيسَ |
|---|
| او يادكړه هغه وخت چې كله اووئيل موږ ملائكو ته چې سجده اوكړئ ادم ﷺ ته نو سجده اوكړه دوئ ټولو سيوا دابليس نه |
| قَالَ ءَأَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ طِينًا ۞ قَالَ أَرَءَيْتَكَ هَٰذَا ٱلَّذِى |
| اووئيل ده آيا سجده اوكړم څه هغه چاته چې پيدا كړيدې تا دختې نه، اووئيل ده (ابليس) خبر راكړه ته چې دا هغه سړى دې |
| كَرَّمْتَ عَلَىَّ لَئِنْ أَخَّرْتَنِ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ لَأَحْتَنِكَنَّ |
| چې عزت وركړيدې تا ده ته په ما باندې، كچرې تا ماله مهلت راكړو ترورځې دقيامت پورې نو خامخا به څه غلبه حاصله كړم |

| |
|---|
| ذُرِّيَّتَهٗٓ اِلَّا قَلِيۡلًا ﴿۶۲﴾ قَالَ اذۡهَبۡ فَمَنۡ تَبِعَكَ مِنۡهُمۡ فَاِنَّ جَهَنَّمَ |
| په اولاد دده باندې سيوا دلږو کسانو نه. اوئيل الله ﷻ ځه ته پس هغه چاچې تابعداري اوکړه ستا ددوئ نه پس بيشکه جهنم |
| جَزَآؤُكُمۡ جَزَآءً مَّوۡفُوۡرًا ﴿۶۳﴾ وَاسۡتَفۡزِزۡ مَنِ اسۡتَطَعۡتَ مِنۡهُمۡ بِصَوۡتِكَ وَاَجۡلِبۡ |
| بدله ده ستاسو پوره بدله. برانگيخته(آماده) کړه ته هغه څوك چې وس پرې برشي ستاد دوئ نه په اواز خپل سره اوراجمع کړه |
| عَلَيۡهِمۡ بِخَيۡلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكۡهُمۡ فِى الۡاَمۡوَالِ وَالۡاَوۡلَادِ وَعِدۡهُمۡ |
| پدوئ باندې سواره خپل اوپياده خپل اوشريك شه ددوئ سره په مالونو كښ اوپه اولاد كښ اووعده كوه ددوئ سره |
| وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيۡطٰنُ اِلَّا غُرُوۡرًا ﴿۶۴﴾ اِنَّ عِبَادِىۡ لَيۡسَ لَكَ عَلَيۡهِمۡ |
| اونه كوي وعده ددوئ سره شيطان مگردهوكي،بيشكه بندگان ځمانيشته دې تالره پدوئ باندې |
| سُلۡطٰنٌ ؕ وَكَفٰى بِرَبِّكَ وَكِيۡلًا ﴿۶۵﴾ |
| غلبه دگمراه كولو اوكافي دې رب ستا ذمه وار. |

﴿وَاِذۡ قُلۡنَا﴾ داقصه ادم ﷺ اوابليس ملعون ذكركيږي لپاره دَدې چې شيطان ستاسو ابائي دشمن دې دَده لمسه مه منئ، اوداواقعه معراج دَدې لپاره ظاهره كړې شوه چې تاسومسئله توحيد اومنئ اودَشيطان په لمسه كښ رانشئ لكه څرنگه چې شيطان دَالله ﷻ ديوايت نه انكاركړې وو ،اودهغې توهين ئې كړې وو نودهغې دَوجې نه ملعون اوگرځيدو ،نوتاسوچرته دَدې واقعې اوايت نه انكاراونكړئ كنې تاسوبه هم ملعون اوگرځيږئ، داواقعه څوځلې مخكښ تيره شويده، ﴿قَالَ ءَاَسۡجُدُ﴾ استفهام تعجبي لپاره دَانكاردې، طينا دامنصوب بنزع الخافض دې اى خلقت من طين، اوياحال دې دَموصول نه اوعامل پكښ اسجد،فعل دې اى ااسجد له وهوطين،نومقصد دادې چې ځه هغه چاته سجده اوكړم چې هغه په اصل كښ خاوره ده يعني ماده ئې خاورده ده اوځما ماده اور دې او اورغوره وي دَخاورې نه،نوځه ولې سجده اوكړم نودالله ﷻ دَحكم په مقابله كښ خپل دليل عقلي پيش كړو، ﴿قَالَ اَرَءَيۡتَكَ﴾ داذكردَحسد دَابليس لعين دې

دَحضرت ادم ﷺ سره اوپه ذکر دَقال کښ اشاره ده چې دَابلیس لعین داکلام په دي مخکښني کلام باندی ندې مرتب بلکه دَدي ترتب اوابتناء په بل کلام ده اودا دَماقبل سره ندې متصل او ﴿أَرَءَيْتَكَ﴾ کښ کاف حرف خطاب دې دَتاکیددَماقبل تاء خطابیه لپاره راغلیدې خودتاکید نحوي ندې بلکه تاکیدلغوي دې ځکه چې کاف ضمیرمنصوب متصل دې او ت ضمیرمرفوع متصل دې نومنصوب تاکید دَمرفوع لپاره نه واقع کیږي،اورؤیت نه مرادرؤیت علمي دې په معنی دَاخبرنی سره اودادوه مفعولین ته متعدي کیږي اودَدینه وروستو اکثرجمله استفهامیه مقدره وي،نو ﴿هَٰذَا ٱلَّذِى﴾ داجمله ورله مفعول اول دې اوجمله استفهامیه چې کومه مقدره ده هغه ورله مفعول ثانی د ې،نوتقدیردَعبارت داسې دې اخبرنی عن هذا الذی کرمته علی لم کرمته علی؟ اوبعض فرمائی چې دلته حرف استفهام مقدردې چې داخل دې په ﴿هَٰذَا﴾باندی او﴿هَٰذَا﴾ مبتدا ده، او﴿ٱلَّذِى﴾ موصول سره دَصلي نه خبردې ای اهذاالذی کرمت علیّ؟ اودااستفهام ئی علی وجه الاستصغار اواستحقار وو، چې داضعیف اوکمزوری انسان چې دَختړونه پیداکړې شویدې دَده دوجې نه تا په مالعنت اوکړو اوده ته دې فضیلت ورکړو په ماباندی په سجدي سره.

﴿لَئِنْ أَخَّرْتَنِ﴾لام موطئه للقسم دې اومراد دَ تاخیرنه مهلت ورکول دي دَژوند، ای لئن اخرت اهلاکی الی یوم القیمة، ﴿لَأَحْتَنِكَنَّ﴾دا یاماخوذ دې احتنك الجراد الزرع،نه چې کله جراد ټول فصل ختم کړي اوبیخ کني ورله اوکړي،نو معنی ئی داده چې زه به دَ اولاد ادم بیخ کني اوکړم اودوئی به هلاك کړم په اغوا اواضلال سره، ای لاستاصلن ذریته بالاغواء والاضلال (قرطبی) اویا ماخوذدې دَحنك الدابة نه چې دَاس والا لاندې شونډ دبره سره میلاؤکړې شي اوواګي پکښ واچولې شي دَدي لپاره چې مالك کوم خواته غواړي نوهلته ئی بوځي،نومقصدئی داشو چې زه به اولاد ادم باندی غالب شم اوکوم خوا ته ئی چې غواړم نوهلته به ئی بوځم،دَدواړو مقصد متقارب دې چې دسمي لاري اودتوحید دعقیدي نه ګمراهئ اوشرك ته راوستل دي،اومراد په ﴿إِلَّا قَلِيلًا﴾سره مخلصین بندګان دي لکه چې په سورة الحجرکښ هم تیرشوي وو چې الاعبادك منهم المخلصین.

﴿قَالَ اذْهَبْ﴾تخويف اخروى ذكر كيږي دمتبعين دشيطان لپاره پس دذكر دعداوت دهغه نه

دانسانانو سره، اومراد په﴿اذْهَبْ﴾ سره امر حقيقة په ذهاب سره ندې چې ضدد مجئ راتلل دې بلكه مقصود پدې سره دابليس لعين درخواست پوره كيدل دي دمهلت والا. اودا امر ورته اهانةً اوخذلانًا شويدې (كشاف)﴿فَإِنَّ جَهَنَّمَ جَزَآؤُكُمْ﴾ كم ضمير خطاب ياتغليبا راوړې شويدې دمخاطبينو په غائبينو باندى اصل كښې داسې وو فان جهنم جزاؤهم وجزاؤكم خو بيا غلبه وركړې شوه مخاطبين ته په غائبين باندى او اونيلى شو﴿جَزَآؤُكُمْ﴾ او يا التفات شويدې دغائب نه حاضرته، چې ﴿فَمَن تَبِعَكَ﴾كښې متبعين غائب ذكرشوې وو اوپدې ځائ كښې په صيغې دَ حاضر سره ذكرشو، اويا داچې دكم ضمير سره مراد فقط ابليس دې اوخطاب دوعيد فقط ابليس ته دَوجې دَاصالت نه دې په هرمعاصي كښې چې دالعين دَهرمعاصى لپاره اصل دې(وفى الحديث من سن سنة فعليه وزرها ووزرمن عمل بها الى يوم القيمة)﴿جَزَآءً مَّوْفُورًا﴾ وفرلازمى اومتعدې دواړه استعماليږي،نوكه متعدې شي نوبيا په معنى دَاسم مفعول سره دې يعنى جزاء موفرا يعنى داسې سزا چې پوره كړې شويده څه كمى به پكښې نوي،نوبناء پدې تقديردَدينه به مراد سزا دكافر اومشرك وي چې په هغې كښې به څه قسم كمى نشي كيدلې اودَمؤمن گناه گارسزا ته به نوي شامل خكه چې په هغې كښې به كمى كيدې شي،دعفو اومغفرت دَوجې نه، اويالازمي دې نو﴿مَّوْفُورًا﴾ په معنى دَ وافرا يعنى پوره كيدونكې سره دې،يعني جهنم به پوره پوره سزاوي ستاسو.
﴿وَاسْتَفْزِزْ﴾پديكښې خلورطريقي دگمراه كولو بيانيږي دَشيطان والا، اوداعطف دې په ماقبل ﴿اذْهَبْ﴾باندى اودا امرهم يااهانةً دې اويا تهديداً دې اوقرطبى فرمائى چې امردَتعجيزلپاره دې يعنى ته خپل كوشش كوه خوته دَاضلال په هيڅ چاباندى قادرنه ئى، اوپدې باندى قرينه روستنې آيت ﴿إِنَّ عِبَادِى﴾دې او استفز په معنى دَخويولو ،يرولوسره هم راځي دَبرانگيخته كول اودَ قطع په معنى سره هم راځي دلته په معنى دَبرانيگيخته يعنى اماده كول مراد دې. ﴿بِصَوْتِكَ﴾دا اوله طريقه د اضلال اودگمراه كولوده او مراد په صوت سره هرهغه اوازدې چې دَالله ﷻ معصيت ته

بلونكي وى، داشامل دي اواز دكفراوشرك بدعت ته اودغه شانتى مزمارا وغنا ګانو ته هم شامل دي اوبعض فرمائى چې مراد دَصوت نه شيطانى وسوسي دي، ﴿وَأَجْلِبْ عَلَيْهِم﴾ جلب په اصل كښ وتيلى كيږي يوځيز دَيومقام نه بل مقام ته منتقل كول لكه حديث كښ راغليدي لاجلب چې غله دَيوځائى نه بل ځائى ته مه منتقل كوئ خوچې كله په صله كښ ئى على راشي نوپه معنى د جمع كولوسره وي، دادويمه طريقه ذكركيږي،يعنى دَانسانانو دګمراه كولولپاره خپل ټول چلونه اوكيدونه جمع او استعمال كړه ﴿بِخَيْلِكَ﴾باء زائده ده اوخيل اطلاق كيږي سوارلښكرباندى.
اولفظ خيل جمع ده مفرد ورله من لفظه نيشته دي اګرچې بعضو ورله مفرد خائل وئيلى دي اورجل فَعِل په وزن په معنى دَفاعل راجل سره دي دااګرچې مفرد دي خومراد تنه پدي ځائ كښ جمع ده، اووئيلې كيږي پياده لښكرته ، علامه زمخشري رحمه الله فرمائي چې استفزازپه صوت سره،او اجلاب په خيل اورجل سره داتمثيل دي الله تعالى مثال اوتشبيه دَحال دَابليس په تسلط كښ دَحالت دَهغه چا سره وركړيده چې هغه په چاباندى حمله اوكړي اوپه هغوئ باندى چيغې اووهي اواوني يره وي اوهغوئ دَخپلو مراكزونه اوتختوي،نودغه شانتي الله تعالى شيطان ته هم تهديداً ياتعجيزاًوائى چې ته هم دغسي اوكړه، اوامام رازي رحمه الله فرمائى چې دابطور محاوره اوضرب المثل وئيلى شويدي، اومراد تنه خپل ټول كيدونه اوچلونه استعماله ول دي لكه خرنګې چې يوسړى په يوكاركښ كوشش مكمل كوي نوته ورته اووائي چې جنتنا بخيلك ورجلك،يعني خپل ټول چلونه دَاستعمال كړل،اوداتوجيه زياته غوره ده ځكه چې داهرقسم كيداومكرته شامل دي، اودارنګې داشامل دي،هرهغه چاته هم چې په سورلئ ياپياده ګرځي په معصيت دَالله تعالى كښ لكه چې دامنقول دي دَحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه. ﴿وَشَارِكْهُمْ﴾دادريمه طريقه بيانيږي دَاغوادشيطان اومراد په مشاركت في الاموال سره انفاق دَمال دي په معصيت دَالله تعالى كښ اوكسب كول دَمال دي په طريقه حرام سره،اونذرلغيرالله،تحريمات لغيرالله اوسائبه وصيله وغيره داټول تنه مراد دي،اومشاركت في الاولاد نه مراد اولاد ته ناجائزنومونه ايخودل لكه شركيه نومونه شول،عبدالعزى،عبدالدار اونن سبالكه عبدالرسول،پيربخش وغيره شول، دهغوئ دَاعطاء نسبت دَالله تعالى نه علاوه بل چاته كول، اودغه شانتي پديكښ دَاولاد غلط تربيت

هم شامل دي، چې والدين دخپل اولاد تربيت داسې اوكړي چې دهغه نه يهودي. يانصرانی يامجوسي جوړكړي لكه دَ نن سبا دَاكثرسكولونو اوكالجونو حال دي چې والدين پيسې هم خرچه كوي اودبچې تربيت عملې طورديهوديت،نصرانيت په طريقې سره كوي، اولوئی افسوس مقام دادې چې په هغې طريقې باندې والدين فخرهم محسوسه وي،بچې ته دَسلام په ځائ دَ ټاټا لفظ اودَاسلامې تعليم اوشعائرو اوتهذيب په ځائ غيراسلامې تعليم ښيئي،شرټ اوټائی خوونه ورته كوي والى الله المشتكى،وفى الحديث كل مولود يولد على فطرة الاسلام فابواه يهودانه اوينصرانه اويمجسانه اوكماقال ﷺ. ﴿وَعِدْهُمْ﴾داخلورمه طريقه بيانيږي چې غلطې اوددروغو وعدې ورسره كوه اوبې اصله تمناګانو كښې ئې راوله،لكه دغه شريكان چې تاسوئی عبادت كوئ دابه ستاسو پكارراځي، اودوئ به ستاسو حاجتونه پوره كوي، زمخشرى باوجود دَخپل جلالت شان دَ اعتزال دَمجبورئ نه ډيره غلطه اوناجائزه خبره كړيده چې دَ ﴿وَعِدْهُمْ﴾په مصداق كښې ليكلې دي الاتكال على الرحمة وشفاعة الرسول فى الكبائروالخروج من النار بعد ان يصيروا حمما)نو(العياذبالله) زمخشرى دَالله ﷻ په رحمت باندې اعتماد،اودَرسول الله ﷺ شفاعت اودګناه ګارانومؤمنين دَجهنم نه وتل داټول دَشيطان دَ ددروغو وعدو اودَبې اصله تمناګانو مصداق ګرزوليدې اللهم ارزقنا شفاعة شفيع المذنبين ﷺ وصحبه اجمعين) ﴿وَمَا يَعِدُهُمُ﴾دا ادخال الهى اوجمله معترضه ده چې دَشيطان وعدې سراسردهوكې دي اوحقيقت ئې هيڅ هم نيشته، اوپديكښې التفات شويدې دَ خطاب نه غائب ته، اودغه شانتې وضع دَاسم ظاهرشويده په ځائ دَمضمرباندې لپاره دَتصريح په وصف دَشيطينيت باندې او"غرور" وئيلی كيږي چاته غلط څيز خائسته ښكاره كول پدسې طريقې سره چې هغه ئې صحيح اوكڼي، (روح) اونصب دَ ﴿غُرُورًا﴾ياد وجې دَدينه دي چې دامفعول مطلق دي دَ﴿يَعِدُ﴾لپاره په اعتباردَ موصوف مقدره سره چې "وعدا" دي اويامفعول له دي اى ومايعدهم ويمنيهم الا لان يغرهم.

﴿إِنَّ عِبَادِي ﴾پدې كښې حفاظت دَبعض بندګانو ذكركيږي دَابليس دَ اغواء نه اواضافت دَعباد ياء متكلم ته تشريفا دي مرادتنه مخلصين بندګان دي، ﴿لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَٰنٌ﴾نفى دَسلطان نه مراد ياحجت اودليل دي اويا تنه مراد عدم قدرت دي په ګمراه كولودهغوئ باندې

﴿وَكَفٰى بِرَبِّكَ﴾ خطاب یاداَبلیس لعین سره دی، اویاحضور ﷺ سره دی اویا دانسان سره دی ځکه چې ماقبل کښې د شیطانی تسلط ذکر اوشونو دانسان په زړه کښې خوف پید اکیږي نو الله ﷻ تسلي ورکړه انسان ته چې ځه ستاکارسازاومحافظ یم، پدیکښې اشاره ده چې هرانسان په عصمت کښې محتاجه دی الله ﷻ ته.

| |
|---|
| رَبُّكُمُ الَّذِي يُزْجِي لَكُمُ الْفُلْكَ فِي الْبَحْرِ لِتَبْتَغُوا مِنْ فَضْلِهِ |
| [1] رب ستاسو هغه ذات دی چې چلوی ستاسو لپاره کشتئ په دریاب کښې لپاره د دې چې طلب کړئ تاسو دفضل د الله ﷻ، |
| إِنَّهُ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿٦٦﴾ وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ ضَلَّ مَنْ |
| بیشکه هغه دی په تاسو باندی مهربانه، اوکله چې اورسیږي تاسو ته تکلیف په دریاب کښې نو هیرشي تاسو نه هغه خوک چې |
| تَدْعُونَ إِلَّا إِيَّاهُ ۖ فَلَمَّا نَجَّاكُمْ إِلَى الْبَرِّ |
| سوالونه ترینه کوئ عبادت کوئ سیوا د الله ﷻ نه، پس هرکله چې راخلاص کړي الله تاسو اوچې خشکی ته |
| أَعْرَضْتُمْ ۚ وَكَانَ الْإِنْسَانُ كَفُورًا ﴿٦٧﴾ |
| نو مخ گرځوئ تاسو (د الله ﷻ نه) او دی انسان ناشکره. |

﴿رَبُّكُمُ الَّذِي﴾ دا پنځم دلیل عقلي دی په توحیدباندی چې په سمندرکښې ستاسو کشتئ الله ﷻ په خپل فضل اورحم سره چلوي اوتاسو دهغې په ذریعې سره کاروبار، تجارت کوئ، د دریاب دغرقیدونه بچ کوي، ددې تقاضه داده چې تاسو د الله ﷻ شکریه اداکړئ اوخالص دهغه عبادت کوئ ﴿يُزْجِي﴾ ،باب افعال نه صیغه دمضارع ده اوازجاء وئیلی کیږي راخکلو اوچلولوته اوازجاء الفلك دادی چې هغه په نرمو هواگانو یاپه نورو آلاتو سره په سمندرکښې محض

---

(1) دلیل عقلی پنجم برتوحید.

دَالله ﷻ په حکم چليږي. ﴿لِتَبۡتَغُواْ مِن ﴾من تبعيضيه دې اومراد دفضل نه رزق اوتجارت دي. ﴿وَإِذَا مَسَّكُمُ ﴾ پدي کښې زجر دې مشرکينوته چې کله په تاسوباندی په سمندرکښې طوفان راشي نوددغې سختئ په وخت کښې خپل معبودان باطله پريدئی اوخالص الله ﷻ رابلئ خوچې کله هغه تکليف ختم شي اوصحيح سالم دَسمندرنه رابهرشئ نوبياورسره شريکان جوړه وئ. ﴿ٱلضُّرُّ فِي ٱلۡبَحۡرِ ﴾ مرادتنه هغه سختي ده چې خوف غرقيدو يادَنورو اهوالودَسمندر دَوجي نه وي﴿ضَلَّ﴾په معنی دَزړه نه دَغائب کيدلوسره دې ای ذهب عن خواطرکم.يعنی ستاسودَزړونو نه هم هغوئ غائب شی اواستثناء په ﴿إِلَّآ إِيَّاهُ ﴾ کښې غوره توجيه مطابق متصله ده ځکه چې مشرکينو به دَالله ﷻ عبادت هم کله کله کولو اوخپل معبودان باطله به ئی دَالله ﷻ سره شريک کنړلو ،اوکچرته دَمن ﴿تَدۡعُونَ﴾نه مراد فقط معبودان باطله شي نوبيااستثناء منقطع ده.

﴿أَعۡرَضۡتُمۡ ﴾مراد تنه اعراض دَايمان اواخلاص اوطاعت نه دې ﴿وَكَانَ ٱلۡإِنسَٰنُ﴾مراد دَالانسان نه يا هغه انسان دې چې متصف وي پدي صفات مذکوره سره يعني کافرتنه مراد دې اويا تنه مطلق انسان مراددې اومقصد دادې چې دَانسان په طبعيت کښې کفران نعمت دې خوپه چاباندی الله ﷻ خپل فضل اوکړي نوهغه بچ کړي (قرطبی).

| أَفَأَمِنتُمۡ أَن يَخۡسِفَ بِكُمۡ جَانِبَ ٱلۡبَرِّ أَوۡ يُرۡسِلَ عَلَيۡكُمۡ |
|---|
| [1]آیاپس بی غمه ئی تاسوددینه چې ژوندې به خخ کړي تاسوپه طرف دوچې زمکي يارااوليږي په تاسوباندی |
| حَاصِبٗا ثُمَّ لَا تَجِدُواْ لَكُمۡ وَكِيلًا ۝٦٨ أَمۡ أَمِنتُمۡ أَن يُعِيدَكُمۡ |
| باران دکانړوبيابه اونه مومئ خپل ځانونو لپاره ذمه وار. اوکه يابی غمه ئی تاسو ددينه چې واپس بوځي تاسو |
| فِيهِ تَارَةً أُخۡرَىٰ فَيُرۡسِلَ عَلَيۡكُمۡ قَاصِفٗا مِّنَ ٱلرِّيحِ فَيُغۡرِقَكُم بِمَا |
| په درياب کښې دوباره پس رااوبه ليږي په تاسوباندی تيزه ماتونکی سيلئ پس غرق به کړي تاسوپه سبب دهغې |

(1) تخويف دنيوي.

كَفَرْتُمْ ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ عَلَيْنَا بِهِ تَبِيعًا ﴿٦٩﴾

چې كفر كړېدې تاسو بيابه اونه مومئ تاسو دخانونو لپاره په مونږ باندې ددې عذاب نه څوك بدلې اخوسنونكې تپوس كوونكې

﴿أَفَأَمِنتُمْ﴾پدي كښ تخويف دنيوى ذكركيږي،چې ستاسوداخيال دې چې دسمندر دعذاب نه راووتلو اوپه اوچه كښ په امن يو اودخپلومعبودانو په پناه كښ يو ،داسي نشي كيدې كچري الله ﷻ اوغواړي نوتاسوبه په زمكه كښ ننه باسي، اويابه درباندى دكاڼروباران او وره وي اواستفهام لپاره دانكاردې يعنى تاسوپه امن كښ نه ئى، اوفاعاطفه ده معطوف عليه ورله مضمون دماقبل جملي دې(اى افحسبتم بخروجكم الى البر آمنتم من انتقامه وعذابه(ابن كثير)، اويامعطوف عليه ورله مقدر دې اوتقديرداسې دې انجوتم فامنتم فحملكم ذلك على الاعراض (كشاف) ﴿أَن يَخْسِفَ﴾ لكه څنګه چې قارون خسف شوې وو او(باء) په ﴿بِكُمْ﴾كښ يادمصاحبت ده او﴿جَانِبَ﴾مفعول به دې د ﴿أَن يَخْسِفَ﴾لپاره اوجارمجرور په موضع دحال كښ دې، نومعنى به ئى داشي، چې دغه جانب دبر الله ﷻ به ته دزمكي ته بوځي په دسي حال كښ چې تاسو به مصاحب ئي ددغي زمكي،يعني پدي باندى به اوسيږي اويانصب د﴿جَانِبَ﴾ بنابرظرفيت دې اوباء لپاره دتعديت ده اومراد دجانب نه جهت دې دااحتمال زيات غوره دې،﴿أَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا﴾ حاصب دكاڼروباران ته وئيلى كيږي،لكه څنګه چې دحضرت لوط ﷺ په قوم باندى وريدلي وو، ﴿أَمْ أَمِنتُمْ﴾داهم تخويف دې چې الله ﷻ پدي هم قادردې چې ستاسو يوضرورت پيداكړي اوبياتاسودسمندر سفراوكړئ اويوه زبردسته سيلئ راوليږي اوتاسو هلاك كړي ﴿أم﴾منقطعه دې په معنى دبل سره دې اوضميرد﴿فِيهِ﴾ راجع دې بحرته، ﴿تَارَةً أُخْرَىٰ﴾تارة منصوب دې بناء برظرفيت،په معنى دكرة سره جمع ددې تير اوتارات رازي، اى وقتا غيروقت الاول، فيغرقكم بما كفرتم (باء) سببيه ده اى بسبب كفركم، ﴿عَلَيْنَا بِهِ تَبِيعًا﴾تبيع په معنى دتابع سره دې لكه عليم په معنى دعالم سره دې اوتبيع په كلام عرب كښ هرهغه چاته وائي چې هغه طلب

کوونکې ددم يادَدين وغيره وي يعني انتقام اوبدلي اغستونکې وي. والعرب تقول لكل طالب بدم اودين اوغيره تبيع(طبری)

| وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْٓ اٰدَمَ وَحَمَلْنٰهُمْ فِى الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنٰهُمْ |
|---|
| [1]اويقينا عزت ورکړيدې مونږه اولاد دادم الطيلا ته اوسواره کړيدي مونږه دوئ په اوچه اوپه درياب کښې او روزي موورکړيده دوئ ته |
| مِّنَ الطَّيِّبٰتِ وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلٰى كَثِيْرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيْلًا ۝ |
| دپاکيزه خوراکونونه اوغوره کړي مودي دوئ په ډيرو باندی دهغه چانه چې مونږپيداکړيدې په ډيرغوره کولوسره |
| يَوْمَ نَدْعُوْا كُلَّ اُنَاسٍ بِاِمَامِهِمْ ۚ فَمَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ |
| [2]يادکړه، هغه ورځ چې رااوبه غوارو مونږه هريوکس(ډله) په نوم دپيشوا ددوئ سره پس هرهغه څوك چې ورکړې شي هغه ته عملنامه |
| بِيَمِيْنِهٖ فَاُولٰٓئِكَ يَقْرَءُوْنَ كِتٰبَهُمْ وَلَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ۝ |
| دهغه په ښي لاس دده کښې پس دغه کسان لولي به عملنامي خپلي اوظلم به اونکړې شي پدوئ باندی په قدردتاردکجوري دهډوکي |
| وَمَنْ كَانَ فِيْ هٰذِهٖٓ اَعْمٰى فَهُوَ فِى الْاٰخِرَةِ اَعْمٰى وَاَضَلُّ سَبِيْلًا ۝ |
| اوهغه څوك چې وي په دي دنياكښې ړوند(دحق نه) پس هغه به په اخرت کښې ړوندوي اوډيرخطا دلاري نه |

﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا﴾ داتذكيربآلاء الله دي په وجوه اربعه سره لپاره دَترغيب الی التوحيد(۱)﴿كَرَّمْنَا بَنِيْٓ ءَادَمَ﴾ دااول نعمت ذکرکيږي،اوداكرامت په مختلف وجوه سره دي په عقل، په نطق،په تميز،په خط،په خائسته صورت، په معتدل قامت، په تدبيردامر معاش اومعاد سره دي اودغه شانتي دَانسان نه علاوه نورحيوانات خوراك په خلوسره کوي اوانسان په واسطه دګتوسره خوراك کوي دامنقول دي دابن عباس نه صاحب دکشاف واقعه نقل کړيده چې هارون رشيدته

---

[1] ترغيب الى التوحيد.
[2] بشارت وتخويف اخروي

یوخلي خوراك راوړې شو اوهغه سره امام ابویوسف رحمه الله هم ناست وو نوهارون رشید چمچی (کاشوغ) طلب کړې نوامام ابویوسف رحمه الله ورته اوفرمائیل چې ستانیکه دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه دَدې ایت ﴿وَلَقَدۡ كَرَّمۡنَا﴾ په تفسیرکښ منقول دي چې وجعلنا لهم اصابع یاکلون بها. چې مونږ ددوئ لپاره ګوتې ورکړیدي چې دوئ دَهغې په ذریعې سره خوراك کوي اوته چمچی غواړې اوپدغه وخت کښ چمچی راوړې شوي وي نوهغه چې کله داواوریدلونوهغه چمچی واپس کړي اوپه ګتوباندې ئې خوراك شوروع کړو اودغه شانتې پدې کښ داخل دي اکرام دَسړي به ګیري سره اواکرام دَښځې په کونځوسره (۲) ﴿وَحَمَلۡنَٰهُمۡ﴾ دادویم انعام دې چې په اوچه اوپه سمندر دواړو کښ تاسو لره تسلط درکړیدې په اوچه باندې سورلئ لکه موټر،اسونه، خچري،اوښان اوخرونه وغیره شو، اوپه اوبوکښ کشتی جهازونه وغیره شو (۳) ﴿وَرَزَقۡنَٰهُم﴾ دادریم انعام دې ددینه مرادمختلف قسم خوراکونه، څښکاك څیزونه، لباس اونور مزیدارمزیدارڅیزونه دې چې هغه انسانانوته په خپل صنع یابغیردَصنع خپلې نه میلاویږي.

(۴) ﴿وَفَضَّلۡنَٰهُمۡ﴾ داڅلورم انعام دې چې الله تعالی انسان ته فضیلت ورکړیدې په ډیرو مخلوقاتو باندې،په نیزد بعض مفسرینو داتاکید دې دَماقبل لپاره چې ﴿كَرَّمۡنَا﴾ دې خواکثرمفسرین فرمائی چې داتاسیس دې،امام رازي رحمه الله فرمائی چې تکریم استعمال په صفات اوامورخلقیه طبیعه ذاتیه کښ کیږي،اواستعمال دَتفضیل په اموراکتسابیه بالعقل کښ کیږي،نومراد په ﴿كَرَّمۡنَا﴾ سره امورخلقیه دې لکه عقل شو نطق،تمیز وغیره شو اومراد په ﴿وَفَضَّلۡنَٰهُمۡ﴾ سره اموراکتسابیه بالعقل دي لکه عقائد حقه اواخلاق فاضله شو.

﴿كَثِيرٖ مِّمَّنۡ﴾ کثیریاپه خپلې معنی سره دې اوتفضیل دَانسانانو په اکثرو مخلوقاتو دې نه په ټولومخلوقاتو، او"من" په معنی دَ"ما" سره دې اومفضل علیه ورلره جمادات نباتات وغیره دي اویا ﴿كَثِيرٖ﴾ په معنی دکل سره دې قرآن، حدیث اوپه کلام عرب کښ کثیرپه معنی دکل سره استعمال شویدې لکه واکثرهم کاذبون مراد تنه ټول دي او"من" په خپلې معنی سره دې اوتفضیل

په اعتباردَافرادو سره مراد دي خو "من" عام مخصوص منه البعض دي اوداتفضيل خاص دی په مؤمنين پوري اوكافرتنه ندي مراد .نودَدي توجيه په اعتبارثابت شو فضيلت دمؤمنانو په ملائكوباندی اودي احتمال ته راجح وئيلی دي امام رازی‌رحمه الله اونورو مفسرينو اوتائيدئی پيش كړيدي په هغه حديث سره چې نقل كړيدي امام بيهقي.اوابن كثيروغيره چې حضورﷺ ارشاد اوفرمايه چې كله الله‌جل‌جلاله حضرت ادمعليه السلام اودهغه ذريت پيدا كړو نوملائكو عرض اوكړو چې ياالله تاخودانسان پدسی طاقتنو سره پيداكړو چې دي خوراك هم كوي څښكاك هم كوي ببيانوسره نزديكت هم كوي، اوپه سورليو باندی سواري هم كوي نوپس ته ددنيا دَدوئی لپاره اوگرځوه اواخرت زمونږ لپاره خاص كړه، نوالله‌جل‌جلاله اوفرمائيلو چې كوم مخلوق ماپه خپل لاس پيداكړيدي اوپه هغه كښ ماخپل روح پوكلې دي هغه ځه دَهغې مخلوق پشانتي نه گرځوم چې هغه ماپه "كن" سره پيداكړيدي اودغه شانتی بل روايت دي دَحضرت ابوهريرة‌رضي الله عنه نه چې المؤمن اكرم على الله تعالى من الملئكة الذين عنده، اوبعض مفسرين فرمائی چې تفضيل په اعتباردَجنس انسان سره مرادي چې جنس دَانسان ته الله‌جل‌جلاله فضيلت وركړيدي په نورو مخلوقاتو باندی اوتفضيل دَجنس مستلزم ندي تفضيل دَافرادو لره، لكه الرجل خيرمن المراة ددي توجيه په اعتبارمن په خپل عموم باندی برقراردي.

**تنبيه**:ځني مفسرينو پدي مقام كښ دابحث ذكركړيدي چې په انسانانو اوملائكو كښ كوم افضل اوكوم مفضول دي،خوصاحب دَروح المعانی فرمائی چې اولا خودايقينی نده چې پدي ځائی كښ دَتفضيل نه مراد هغه متنازع فيه تفضيل مراد شي اوثانيا بتقديرالتسليم افضليت دَملائكو پدي مقام كښ ثابتيږي په اعتباردَمفهوم مخالف سره اودهغې په حجيت كښ اختلاف دي،نوزياته راجحه خبره داده چې دابحث دَدي مقام سره غيرمناسب دي اگرچه دَاحنافو اودَجمهور شوافع اواشاعرو مسلك دادي چې انبياء كرام عليهم الصلوات والتسليمات په كل مخلوقاتو كښ بهتردي اوبيارسل دَملائكه لكه جبرئيلعليه السلام وغيره شوهغوئی افضل دي اوعام ملائك په عاموبني ادم باندی افضل دي.

﴿يَوْمَ نَدْعُوا﴾پدي دوه ايتونوكښ بشارت اخروی اوتخويف اخروي ذكركيږي.او ﴿يَوْمَ﴾منصوب دي مفعول به دي دَفعل مقدرلپاره چې اذكردي﴿بِإِمَـٰمِهِمْ ﴾ امام وئيلی كيږي لمن ائتموابه چې مقتدي اوپيشوا دقوم وي كه دَهدايت والاوي يادَضلالت والاوي، نوپيغمبرعليه السلام امام

دي دخپل امت خليفه وقت امام دي دخپل رعيت.قرآن امام دي دامت مسلمه امام مسجد دخپلو مقتديانو اودهرانسان عمل خيروي كه شروي دهغه لپاره امام دي ځكه چي دخان لپاره نې مخکښې ليږلي دي اودوئ ورپسي روان دي. اوعملنامي ته هم امام ونيلى كيږي اوهركله چي مواقف دحشرږيردي نوددې وجه نه بلنه به هم په مختلفو اسماؤسره كيږي.كله به په نوم دپيغمبرسره چي هاتوا متبعى ابراهيم هاتوا متبعى موسى وغيره، اوكله به بلنه وركولي كيږي په نوم دكتاب سره چي يااهل التوراة يااهل الانجيل وغيره اوكله به بلنه وركولي كيږي په نوم دامام وقت سره لكه په روايت دحضرت علي رضي الله عنه كښې راغليدي چي(قال رسول الله ﷺ يدعى كل قوم بامام زمانهم وكتاب ربهم وسنة نبيهم(ابن مردويه)) اودغه شانتي روايت نقل كړيدي قرطبي فقال رضي الله عنه كل يدعى بامام زمانهم وكتاب ربهم وسنة نبيهم فيقول هاتوا متبعى ابراهيم.... ويقول هاتوا متبعى الشيطان هاتوارؤساء الضلالة امام هد . وامام ضلالة، ددينه داهم معلومه شوه چي نن سبا كوم گمراه اوغيراسلامي(سيكولر) جماعتونه دي دهغوئى اتباع كول اودهغوپه جماعتونو كښې شامليدل داخرت درسوائى اودتاوان سبب دي(اعاذناالله منها اللهم احشرنافى زمرة العلماء).

اوكله به بلنه په خپل نوم سره كيږي، اوكله به بلنه په نوم دمورسره كيږي، اوابن كثير رحمه الله فرمائى چي غوره خبرداده چي مراد دامام نه پدي مقام كښې عملنامه ده په قريني دمابعد ﴿فَمَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ﴾سره، يعنى هرسړى به دخپلي عملنامى سره رابللې شي چي رادي شي اصحاب اليمين اورادي شي اصحاب الشمال.

﴿فَمَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ﴾مراد كتاب نه عملنامه ده اوپه ښي لاس كښې وركول به لپاره دعزت اوتشريف دمؤمن وي اوپه اول الامركښې به ورته خوشخبري وي چي ته كامياب ئې، حضرت مولانا عثمانى رحمه الله فرمائى چي دقيامت په ورځ به ښي خلكوته عملنامي دمخامخ طرف نه په ښي لاس كښې ميلاويږي اوچاته به دشادطرفه په چپ لاس كښې ميلاويږي گويا چي دابه يوحسي علامت وي دده دمقبول كيدلو يادمردود كيدلو،﴿فَأُوْلَٰٓئِكَ﴾ من په اعتباردمعنى سره جمع وو نوځكه اسم اشاره جمع راوړي شوه، ﴿يَقْرَءُونَ﴾قرائت دعملنامي به اصحاب اليمين اواصحاب الشمال دواړه كوي خوتخصيص داصحاب اليمين ځكه اوشو چي قرائت دهغوئ به

واضح اودَخوشحالئ والاوي، اونورخلکو ته به هم خپله عملنامه ښائی اودهغې دَقرائت دعوت به ورکوي اوهرچې دي اصحاب الشمال نوهغوئ چې کله عملنامه اوګوري نوهیبت اوخوف به پري غالب شي اوژبه به ئی ترترئی شي نودَهغوئ قرائت پشانته دَنه قرائت دې نوځکه پدي ایت کښ تخصیص دَقرات په مؤمنانو پوري اوشو.

﴿وَمَن كَانَ﴾دادَاصحاب الیمین په مقابلي کښ دَاصحاب الشمال حالت بیانیږي اومشار الیه دَ"هذه" لپاره دا دنیاده اومراد دَ "اعمیٰ" نه عمی بصري نده مراد بلکه مرادتنه عمی قلبی ده چې دَالله ﷻ په نعم اودلائل دَقدرتونوکښ سوچ اوفکرنه کوي اوتوحید پریدي شرک کښ مبتلاشي.(ای عن حجة الله وآیاته وبیناته(ابن کثیر))

﴿فَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ أَعۡمَىٰ﴾دَدینه یامراد عمی باطنی ده چې دَجنت دلاري نه ړندیدل مراددي، نوداکنایه شوه دَعدم دخول دَجنت نه اویاتنه مراد عمی دَاعتذار نه ده چې په دنیاکښ ئ کومې خبري کولې اوځان لپاره ئ چې کوم عذرونه تیاره ول اوکوم اختراعي دلائل ئې جوړول نوهغه عذرونه اودلائل به ورنه هیرشي، اوهیڅ خبره به ورته هم یاده نوي لکه په سورة القصص ایت نمبر(٦٦) فعمیت علیهم الانباء کښ ذکردې، اوپه دواړو موضعین کښ اعمی صیغه دَصفت مشبه ده اوکوم مفسرین چې فرمائی چې دویم اعمی صیغه داسم تفضیل ده اوداقانون چې اسم تفضیل په وزن دَافعل سره هغه وخت کښ رازي چې کله دَده په مفهوم کښ عیب اولون(رنګ) نوي نودهغې نه مراد عیب ظاهري دې نه معنوي اوعمی دَقلب داعیب معنوي دې نوځکه اسم تفضیل په وزن دَافعل سره راغې اوبعض فرمائی چې دویم اعمی نه مراد عمی دَبصرده یعنی سترګي به ئی ړندې وي اوداړوندوالی به په بعض مواقف کښ وي،نواعتراض نه واردیږي چې دَایت تعارض دې دَایت دَ(سورة ق) سره چې هلته ورله اثبات دَسترګو شویدې لکه فکشفنا عنك غطاؤك فبصرك الیوم حدید تفصیل به ئی انشاء الله په سورة طه کښ راشي،

﴿وَأَضَلُّ سَبِيلٗا﴾داتاکیددې دَمضمون دَماقبل جملي لپاره. چې په اخرت کښ به داسې رانده وي چې دَتدارك هیڅ قسم امکان به ئی نوي په خلاف دَعمی په دنیاکښ.چې دَمافات دَتلافئ امکان په دنیاکښ شته دې اویامراد دَسبیل نه لاره دَجنت ده.

وَاِنۡ كَادُوۡا لَيَفۡتِنُوۡنَكَ عَنِ الَّذِیۡۤ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡكَ لِتَفۡتَرِیَ

[1]او بیشکه غواري دوئ (مشرکان چې تیرباسي (واړه وي) تا له د بیان دهغې نه چې وحي کړېده مونږه تاته لپاره ددې چې اونړې نه

عَلَيۡنَا غَيۡرَهٗ ۖ وَاِذًا لَّاتَّخَذُوۡكَ خَلِيۡلًا ﴿۷۳﴾ وَلَوۡلَاۤ اَنۡ ثَبَّتۡنٰكَ

په مونږباندې غیرددې قرآن نه او پدغه وخت کښې او به نیسي دوئ تا یو پوخ دوست، او کچرته نوې محکم کړې مونږه نه

لَقَدۡ كِدۡتَّ تَرۡكَنُ اِلَيۡهِمۡ شَيۡـًٔا قَلِيۡلًا ﴿۷۴﴾ اِذًا لَّاَذَقۡنٰكَ

نو په تحقیق سره نزدې وې ته چه میلان به دې کړې وؤ دوئ ته لږ غوندې نو په دغه وخت کښې خامخاڅکولی به وی مونږه تاته

ضِعۡفَ الۡحَيٰوةِ وَضِعۡفَ الۡمَمَاتِ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيۡنَا نَصِيۡرًا ﴿۷۵﴾

دوه[۲] چند عذاب په ژوند ددنیا او دوه[۲] چند عذاب پس دمرگ نه بیابه اونه مومې ته خان لره په مونږباندې مددگار

وَاِنۡ كَادُوۡا لَيَسۡتَفِزُّوۡنَكَ مِنَ الۡاَرۡضِ لِيُخۡرِجُوۡكَ مِنۡهَا وَاِذًا

او بیشکه غواري دوئ چې چلونه جوړ کړي تاته پدې زمکه دمکه کښې لپاره ددې چې اوباسي تا ددینه او پدغه وخت

لَّا يَلۡبَثُوۡنَ خِلٰفَكَ اِلَّا قَلِيۡلًا ﴿۷۶﴾ سُنَّةَ مَنۡ قَدۡ اَرۡسَلۡنَا

دوئ به ژوند تیره نکړي ورستو ستانه مگرلږ شانې، طریقه جاري ده دهغه چاسره چې بیشکه لیږلي وومونږ

قَبۡلَكَ مِنۡ رُّسُلِنَا وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحۡوِيۡلًا ﴿۷۷﴾

مخکښې ستانه درسولانو څخه نه او او به نه مومې ته زمونږ طریقې لره بدلیدل

﴿وَاِنۡ كَادُوۡا﴾ داخلورم ایت معجزه دې او متعلق دې په ابتداء دسورت پورې او پدې کښې تحذیر دې دمداهنت کولونه، چې مشرکانو کوشش دادې چې تادحق دلارې او توحید نه گمراه کړي خومونږه تاته استقامت نصیب کړو، او دغه شانتې دکفارو کوشش دې چې دحق په بیانولو

(1) جهارم ایت معجزه

کښې تاسو نرمي اختيارکړئ اودهغوئی طرف ته ميلان اوکړئی.نودوئی به ستاسو ملګرتيا اوکړي اودا ايت دَوفدثقيف په باره کښې نازل شويدې چې هغوئی راغلل اوحضورﷺ ته ئې اوئيل چې مونږه ايمان راوړو خوپه يوڅو شرائطو سره يوشرط دادې چې مونږ به په مونځ کښې رکوع اوسجده نه کوو دويم شرط دادې چې مونږ به خپل بوتان په خپلولاسونو باندې نه ماتوو،اودريم شرط دادې چې مونږ به تريوکال پوري هغه نذراني اوشکراني خورو چې کوم په لات اوعزی باندې دي، حضورﷺ دوئ ته داول شرط په باره کښې اوفرمائيل چې دکوم دين په عبادت کښې رکوع اوسجده نوي نوپه هغې کښې هيڅ خيرنيشته اودَدويم شرط په جواب کښې ورته اوفرمائيل چې خپل بوتان په خپل لاس باندې نه ماتول دَدي اختيارستاسوسره دې اوددريم سوال په جواب کښې ورته اوفرمائيل چې دَدغي نذرانو اجازت څه تاسوته نشم درکولې نوهغوئ اوئيل چې يارسول اللهﷺ زمونږ خواهش دې چې عرب داخبره اوکړي چې مونږ ته څه خصوصي څيزونه تاسوراکړيدي چې بل چاته ندي ورکړي اوکچري څوك اعتراض اوکړي نوتاسو ورته اووائی چې دادالله ﷻ امرو،حضورﷺ دَدوئ دَدې خبري بدکنړولو دَوجه نه غلې شو، اودوئ داخيال اوکړو چې حضورﷺ راضي شو،نوالله ﷻ داايت نازل کړونوپدي توجيه داايات مدني دې اوبعض مفسرين فرمائی چې داايت مکي دې لکه څنګه چې سورة مکي دې اوشان نزول داسې بيانه وي چې حضورﷺ ته مشرکين مکه راغلل اوورته ئې اوئيل چې مونږه ستا مجلس ته حاضريدل غواړو خوچونکه تاسره داکمزوري فقرا ناست وي نودوئ سره کيناستل زمونږ لپاره شرم دې چې کله مونږه راځونوته دوئ دَخپل مجلس نه باهر کوه، حضورﷺ اراده اوکړه چې دامجلس دَدوئ لپاره فارغ کړم دَڅه وخت لپاره نوداايت نازل شو.

﴿وَإِن كَادُواْ ﴾کښې "ان" مخففه عن المثقله دې اوضميرشان مقدره ورله اسم دې په اصل کښې "انه" دې او﴿كَادُوا﴾ دَافعال مقاربه نه دې اولام په ﴿لَيَفْتِنُونَكَ ﴾کښې لپاره دتاکيد اودفرق دې په مابين دَان مخففه او"ان" نافيه کښې، اومراد دَفتنه نه پدې ځائ کښې اړول دې دَحق خبري نه يعنی قريبه وه چې دوئ تادَحق خبري دبيان نه واړوي اودا په اعتباردزعم دَدوئ سره وو حقيقة نو خکه چې حضورﷺ معصوم وو نودوئ کوشش اوخواهش دَدغي خبري وو(بحر) ﴿أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ ﴾ مرادتنه اوامراونواهي وعد اووعيد دې﴿لِتَفْتَرِىَ عَلَيْنَا ﴾ لام تعليليه دې اودَلام نه وروستو ان

ناصبه مقدردې يعنی دَدې لپاره تادَحق خبرې نه واړه وې چې ته په مونږ باندی دروغ اوتړې.
اويالام العاقبت دې يعنی تادهغې خبرې نه چې کوم تاته مونږ وحي کړيده دهغې نه تاواړه وې
نوانجام به ئې داوي چې ته به په مونږ باندی دروغ اوتړې. ﴿غَيْرَهُ﴾مراد دَدينه هغه خبره ده چې
کوم بنی ثقيف نبیﷺ ته کړې وه چې کچرې څوك تپوس اوکړې چې تاولې دوئ ته ترجيح ورکړه
نوته ورته اووايه چې دادالله ﷻ امر وو، اودويم توجيه اوشان نزول مطابق مراد دَافتراء نه
بغيردَاذن اواجازت دَالله ﷻ نه فقراء صحابو ؓ نه دوئ لپاره مجلس فارغ کول دې.څکه چې
دنبي هرکارپه اذن دَالله ﷻ سره وي، اودَدې اذن خوالله ﷻ نوو ورکړې نوبغيردَاجازت اواذن نه
مجلس فارغه کول داګوياچې په الله ﷻ باندی افتراء وه.

﴿وَإِذًا لَّاتَّخَذُوكَ ﴾داجواب دَ شرط محذوف دې اودَ﴿وَإِذًا﴾ نه وروستو قسم مقدردې او
﴿لَّاتَّخَذُوكَ﴾ورله جواب قسم دې والتقدير والله اذا ای افتتنت وافتريت لاتخذوك(بحر) اوزمخشري
فرمائی چې ﴿لَّاتَّخَذُوكَ﴾جواب دَلو محذوفه دې ای لواتبعت مراد هم لاتخذوك خليلا(کشاف)
او﴿خَلِيلًا﴾کچرې ماخوذ شي دَ "خُلة" بضم الخاء نه نوهغه دوست ته وئيلی کيږي چې هغه قريبی
اومخلص دوست وي چې زړه دهغه دَمحبت لپاره دنورچا دَمحبت نه خالي وي،نودَايت مقصد
دادې چې کچرې ته ددوئی خبره اومني اوپه الله ﷻ باندی دروغ اووائی نودوئ به تاخپل قريبی
اومخلص دوست کړي اواوس چې کومه دشمني کوي تاسره نوداصرف دَتوحيد اودَحق بيانولو
دَوجې نه کوي اوکچرې ماخوذ شي دَ"خَلة" بفتح الخاء نه نووئيلی کيږي ضرورت مند اوحاجت
مندته نودايت مقصد به داشي کچرې تاددوئی اتباع اوکړه اوددوئ خبرې دې اومنلې نوته به دوئ
نه محتاجه شي ای فقيرا بحاجته اليهم(قرطبی) ﴿وَلَوْلَا أَن ﴾پدې کښې نفي دَمداهنت بيانيږي
دَپيغمبرﷺ نه ،چې پيغمبرﷺ دَحق بيانولو کښې هيڅ قسم مداهنت نه کارندې اغستې بلکه
دَالله ﷻ دَطرفه ورته تثبت حاصل دې اودادليل دې په عصمت دَپيغمبرﷺ باندی،په
ډيروتاکيداتوسره دانفی راغليده(١)﴿كِدتَّ ﴾دااول تاکيددې کاد دَافعال مقاربه نه دې په وقوع
دفعل باندی دلالت نه کوي(٢)﴿تَرْكَنُ﴾دادويم تاکيد دې﴿تَرْكَنُ﴾ دَرکون نه ماخوذ دې چې

دزړه والا معمولی میلان ته وتیلی کیږي(۳)﴿شَيْـًٔا﴾دادریم تاکید دي(۴)﴿قَلِيلًا﴾څلورم تاکید دي(۵) اوتنوین پکښې لپاره دَتقلیل دي،نومطلب داشوچې ته پیغمبرﷺ ئی چې ستاحفاظت اوعصمت مونږه په خپل خصوصي فضل سره کوو ګني ته به هم ددوئ دَمکر اوفریب دَوجه نه دوئ ته به ډیرمعمولي غونته مائله شوې وې،نودامعمولي غونته میلان هم نیشته یعنی امکان دَمیلان هم نیشته ځکه چې ته پیغمبراومعصوم ئی ﴿وَلَوْلَا﴾راځي لپاره دَانتفاء ثانی لوجود الاول نومیلان منتفی شو له وجي دَوجود د اول چې هغه تثبت دي اوعصمت دي اوپه روایت کښې راغلیدي چې کله داایت نازل شو نودَدینه وروستو به حضورﷺ بیابه دادعا کوله لاتکلنی الی نفسی طرفة عین(طبری)

﴿إِذًا لَّأَذَقْنَٰكَ﴾ دازجردي په مداهنت باندی اوخطاب عام امت ته دي په واسطه دَحضورﷺ سره چې پیغمبرﷺ که بالفرض والحال مداهنت اوکړنوهغه ته مداهنت معاف ندي اوعذاب پري ورته میلاویږي نوعام خلکوته په طریق اولی سره معاف ندي، ﴿ضِعْفَ ٱلْحَيَوٰةِ﴾ضعف منصوب دي بناء پدي چې داصفت دَمفعول به محذوفه دي تقدیر دَعبارت داسې دي(لاذقناك عذابا ضعفا فی الحیاة وعذابا ضعفا فی الممات(کشاف)) بیاموصوف حذف کړي شو اوصفت دَهغه قائمقام شو اوبیادَدغي صفت اضافت اوکړي شو اومراد دَضعف نه دوه چنده سزاء ده پدي دنیاکښې اودَ﴿وَضِعْفَ ٱلْمَمَاتِ﴾ نه مراد عذاب دَقبر اواخرت دي اوپدي ایت کښې اشاره ده چې دَمقربین سزاء په نسبت سره عام ابرارته زیاته سخته وي،لکه چې مشهوره ده حسنات الابرارسیئات المقربین.

﴿وَإِن كَادُوا۟ لَيَسْتَفِزُّونَكَ﴾پدي ایتونوکښې دریم سبب دَعذاب بیانیږي چې هغه اخراج دَرسل دي،دَحضرت شیخ په نیزراجحه خبره داده چې داایت هم مکي دي لکه څنګه چې پوره سورت مکي دي اودَدي ایت تعلق دَابتداء دَسورت سره دي چې واقعه معراج مونږه ظاهره کړه لپاره دَدي چې دامشرکین توحید اومني اوایمان راوړي خودوئ بیاهم توحید منلوته تیارنشو بلکه دَمکي نه ستا دَاخراج اواوباسلو منصوبی جوړه وي،خوکچري دوئ ته په اخراج باندی مجبوره کړي اوته هجرت اوکړي نودوئ بهٔ هم په ارام سره زندګي تیره نه کړي اوبیا دغه شانتي

اوشوه هم چې دَحضورﷺ دَ هجرت نه پس کفارمکه په ارام سره ژندګي تیره نه کړه قحط سالي
اوپه مختلف قسم عذابونو کښې ګرفتارشو اخرکارچې دَهجرت نه دوه کاله وروستو دبدرپه موقعه
کښې لوئی لوئی سرداران ئې مردارشو، اوبعض مفسرین فرمائی چې دَاایت مدنی دې لکه څنګه
چې داماقبل ایت دهغوئی په مذهب مدنی دې چې په حیله مداهنت کښې د ناکامئ نه
وروستودوئ ستادَاخراج کوشش کوی اومنصوبی جوړه وي اوشان نزول ئې داسې بیان کړیدې
چې حضرت ابن عباسؓ فرمائی چې حضورﷺ کله مدینی ته راغلونویهودیانو ورسره حسد
شروع کړو،نویوځلي دوئ حضورﷺ ته راغلل اوورته ئې اوونیل کچري ته په رښتیاپیغمبرﷺ ئې
نوشام ته لاړشه ځکه چې هغه دَاکثروانبیاء کرام مسکن دې نودَاایت نازل شو ﴿وَإِن كَادُوا ﴾
ضمیرکچرته راجع شي یهودودَمدینه نه لکه څنګه چې دویم قول دې نوځه اشکال نیشته دې
اوکچرته راجع شي مشرکین مکه ته لکه څنګه چې قول اول دې چې راجح هم دې.نوپیدي اشکال
دې چې دَدې ایت تعارض دې دَایت دَسورت محمد وکاین من قرية هی اشد قوة من قريتك اللتي
اخرجتك سره هلته نسبت وقوعی دَاخراج شویدې اهل قرية یعنی مکی والوته اودلته لفظ دکاد
استعمال شویدې چې هغه دلالت په مقاربت کوي نه په نسبت وقوعی باندی، علامه ابوحیان
فرمائی چې په سورة محمدکښې دَنفس اخراج ذکردې چې هغه واقع شویدې اودلته دَ هغه اخراج
ذکردې چې هغه علت دَاستفزازلپاره دې هغه ندې واقع شوې‌بحر، ﴿لَيَسْتَفِزُّونَكَ﴾استفزاز ونیلی
کیږي په چلو نواومکرونوسره ویستل،﴿مِنَ ٱلْأَرْضِ﴾ اول قول په بناء مراد تنه مکه معظمه ده
اودویم قول مدینه منوره تنه مراد ده،﴿وَإِذًا لَّا يَلْبَثُونَ﴾پدې کښې اشاره ده عذاب ته،
او﴿وَإِذًا﴾کښې تنوین عوض دَجملي نه راغلیدې ای واذا اخرجوك لايلبثون اومراد دَلبث نه
خوشحالئ اودراحت ژندګی تیرول دې،نودااعتراض نه واردیږي چې نفی خودَلبث یعنی دَژوند
تیره ولوراغلیده حالانکه هغوئی خودَاخراج رسول نه وروستو هم ژوندې وو، داتوجیه دحضرت
والدصاحب نورالله مرقده ده،اوحضرت تهانویؒ فرمائی چې په بدرکښې کوم لوئی لوئی
سرداران مردارشو هغه په منزله دکل سُکّان مکه وو نوددې وجه نه ترتب ﴿لَّا يَلْبَثُونَ﴾پري
صحیح دې اوکه قول ثانی مرادشي نوځه اشکال نیشته ځکه چې دَیهودیانو دَطرفنه اخراج

نومتحقق، اگرچې په نفس کوشش کولوسره هم هغوئ ته سزامیلاؤشوه لکه قتل دبنوقریظه اواجلاء دبنونضیرشو.

﴿سُنَّةَ﴾دامفعول مطلق دي دَفعل مقدره لپاره سنّة الله سنة یعنی دَهرقریبې سره دَالله ﷻ سنت داجاري دي چې کله هغوئی پیغمبر ﷺ اوباسي نوبیادوئ هم هلاك کیږي (بحر، کشاف).

| |
|---|
| أَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ |
| [1](قائم)سم کوه ته مونځونه دوخت دزوال دنمرنه ترتیاري دشپې پوري او(قائم کوه) مونځ دصبا |
| إِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا ﴿٧٨﴾ وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ |
| بیشکه مونځ دسحرته حاضري کیدیشي،اوپه ځنې حصه دشپې کښ تهجدکوه تهٔپه لوستلو دقرآن سره |
| نَافِلَةً لَّكَ ۖ عَسٰى أَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا ﴿٧٩﴾ |
| دازیاتی ده ستالپاره. قریبه ده چې اوبه رسوي تارب ځائ ستا ستائیلی شوي ته |

﴿أَقِمِ الصَّلٰوةَ﴾داذکر دامور مصلحه اودَخلورو آدابو کیږي، دااول امر مصلح اوادب دي پدیکښ دَمونځ اودهغې دَاوقاتو ذکردې، چې په خپل وختونو کښ مونځ اودَتهجد اهتمام کوه چې داپه صبراواستقامت کښ مدد ورکونکې دي،﴿لِدُلُوكِ﴾ لام یاپه معنی دَبعد سره دې ای بعددلوك الشمس، لکه داقول دَعربوشو کتبته لثلاث خلون ای بعدثلاث خلون، اویالام تعلیلیه دې ای لاجل دلوك الشمس، یاسببیه دې ای بسبب دلوك الشمس، اویالام په معنی دَوقت سره دې ای من وقت دلوك الشمس(جلالین) اودلوك دَ دلك نه دې مخلوته وئیلی کیږي بیضاوي فرمائی چې د ،ل، ك، ماده دلالت په انتقال کوي بلکه فرمائی چې دال اولام چې په کومې کلمې کښ راشي دریم حرف چې هریووي ورسره،دَدې په مفهوم کښ به انتقال معنی وي،لکه دلك،دلج، دلح، دلع،دلف وغیره شو اومالش اومخلوته ځکه دلك وئیلی کیږي چې په هغې کښ هم لاس مسلسل انتقال کوي په یوځائ باندی نوي او زوال اوغروب ته "دلك" ځکه وائی چې پدیکښ هم انتقال دَنمروي،

(1) امورمصلحه

اواطلاق دَدلوك په دوومعنیوباندی کیږي، زوال اوغروب،خودلته راجحه معنی زوال ده. ابن
جریرطبری اوابن کثیر داقول دَډیرتابعینونه نقل کړیدې اوحدیث مرفوع ئی هم په تائیدکښې
ذکرکړیدې، اودغه شانتي چې مراد تنه زوال شي نوپدیکښې به اشاره شي دَدري مونځونوته
ماسپخین،مازیګر،اوماښام اوکچري مرادتنه غروب شي نوصرف ماښام مونځ ته به اشاره
اوشي، ﴿إِلَىٰ غَسَقِ﴾پدیکښې اشاره ده ماسختن(عشاء)مونځ ته،﴿وَقُرْءَانَ ٱلْفَجْرِ﴾ دامصدر دې په
معنی دَقرات سره او مراد تنه دَسحرمونځ دې اوهرکله چې قرائت رکن اعظم وو دَمونځ لکه څنګه
چې رکوع اوسجده ده نوځکه تنه تعبیردَپوره مونځ نه په قرآن سره اوشو اوپدیکښې اشاره ده
دَسحرمونځ کښې تطویل دَقرا ءت ته،او﴿وَقُرْءَانَ﴾منصوب دې بنابرمفعولیت،دامفعول به دې دَاقم
لپاره اوعطف دې په ﴿ٱلصَّلَوٰةَ﴾باندی، ﴿ إِنَّ قُرْءَانَ ٱلْفَجْرِ ﴾وضع دَاسم ظاهرپه ځائ دَمضمر
دَتاکید اواهتمام شان لپاره دې،﴿كَانَ مَشْهُودًا ﴾ یعنی وخت دَحاضریدلو دَملائکودې یعنی
دَشپې اودورځې ملائك پدې وخت کښې جمع کیږي، اوحدیث دَابو هریرةﷺ کښې راغلیدي چې
قال النبیﷺ تجمع ملائکة اللیل وملائکة النهار فی صلوة الفجرثم قال ابوهریرة اقروا ماشئتم وقرآن الفجر
ان قرآن الفجرکان مشهودا (بخاری،مسلم) اویامراد دَ﴿مَشْهُودًا﴾نه شهود دَډیرو مصلینو دې پدې
وخت کښې اوامام رازيؒ فرمائی چې پدې وخت کښې شواهد دقدرت دې، چې هغه مختلف
انقلابات دې په عالم کښې(والتفصیل فی الکبیر).

﴿وَمِنَ ٱلَّيْلِ﴾دادویم امرمصلح دې چې دَشپې په څني حصه کښې مونځ دَتهجد کول دې من
تبعیضیه دې اوجارمجرور متعلق دې په فعل مقدرپوري چې "اقم" یا"اسهر" دې ای واسهرمن
اللیل(روح) او(فاء) په ﴿فَتَهَجَّدْ﴾کښې عاطفه ده معطوف علیه ورله فعل مقدردې، اوهجد دَهجود نه
ماخوذ دې،بعض اهل لغت فرمائی چې دالفظ دَاضدادونه دې اطلاق ئی په نوم اوپه ترك نوم
دواړو باندی کیږي، اوتعیین دَاحدهما به په قرینه سره وي لیکن څني نوراهل لغت دافرمائی چې
هجود اوهجد دَمجردو نه معنی ئی نوم یعنی خوب ده،خوباب تفعل نه چې کله راشي نومعنی ئی
ترك نوم ده ځکه چې د تفعل یوخاصیت سلب ماخذالاشتقاق دې بعض مفسرینو دلفظ تهجدنه

داخبره ثابته کړيده چې صلوة تهجد به شرعا هغه مونځ ته وئيلی کيږي چې وروستودَبيداريدلو دَخوب دَشپې نه وي اوکچري يوسړي اولاً بيدار وو او اوده شوې نوو نودهغه والا نوافلو ته به تهجدنه وئيلی کيږي، اودغه شانتي قول دامام مجاهد وغيره نه هم منقول دې چې التهجد الاستيقاظ من النوم للصلوة، نودا تقاضه دَسبق نوم کوي، ليکن اکثرمفسرين فرمائی چې اشتراط دَسبق نوم دَصلوة تهجد لپاره دَدينه ايت نه،نه معلوميږي،ځکه چې ترك النوم عام دې حقيقة وي چې يوکس اوده وي اوخوب پريدي اوراپاسي، اوياحکماوي چې په وقت نوم کښ نوم پريدي، دواړو ته ترك النوم اوتهجد وئيلی کيږي اومبرد فرمائی چې تهجد وئيلی کيږي وهوالسهر للصلوة اولذکرالله تعالی نودَدينه معلوم شوه چې اشتراط دَاستيقاظ بعدالنوم صحيح ندې،البته دَحضورﷺ اودَصحابه کرام عام معمول داوو چې په اولوحصوکښ به ئی خوب اوکړواوپه ثلث اخرکښ به ئی صلوة تهجد کولو ،ددې وجه نه داصورت افضل دې.

﴿نَافِلَةً لَّكَ﴾نفل په لغت کښ زائدعلی الاصل ته وئيلی کيږي،نويوه معنی ئی داده چې تهجد ستالپاره يوزائدحکم دې،يعني دَپنځه مونځونو نه علاوه په تاباندی تهجدهم فرض دي معناه الك مخصوص بوجوب ذلك وحدك(ابن کثير) اوبيضاوي فرمائی چې تخصيص دَدې فرضيت په حق دَنبيﷺ کښ لوجه دَفضيلت نه دې،نودَدينه معلوميږي چې تهجد په حضورﷺ باندی فرض وو، اودَدې تائيد په حديث دَحضرت عائشهؓ سره هم کيږي چې فرمائی چې حضورﷺ ارشاد اوفرمايه ثلث علیّ فريضة ولامتي تطوع: قيام الليل، والوتر، والسواك(مستدرك الحاكم،طبراني) اوداقول مروي دې دَابن عباسؓ،امام شافعيؒ نه اوداغوره کړيدې ابن جريرطبری هم،ليکن دَجمهورمذهب دادې چې ابتداء کښ تهجدپه حضورﷺ اوامت په ټولوباندی فرض وو ،ليکن په فرضيت دصلوة خمسه سره فرضيت دَتهجدومنسوخ شو دَحضورﷺ نه هم اودَامت نه هم، اوپه عدم فرضيت باندی ډيراحاديث دلالت کوي،چې نقل کړيدې مظهری اوشربينی اوجمهوردَ﴿نَافِلَةً لَّكَ﴾ تفسيرکوي، چې داستا لپاره زائد دې په فرضو باندی ای عبادة زائدة لك علی الصلوة الخمس (کشاف) ای تطوعا وزيادة علی الفرائض (کبير) اوکچري څوك اشکال اوکړي چې تهجدخودَټول امت په حق کښ نفل دې نوتخصيص ئی په حضورﷺ پوري والې اوشولو؟ نوجواب ئی دادې چې نوافل اوتهجد دَحضورﷺ په حق کښ زوائد محض وو ،خالص رفع درجات ذريعه وه ځکه چې

حضورﷺ معصوم وو په خلاف دَامت نه چې امت لپاره كفاره دذنوب گرځيږي.نو ددي وجه نه تخصيص ئى په حضورﷺ پوري اوشولو اوياتنه مراد عطيه اوبخشش دې يعني داعطيه اوبخشش ستالپاره دي، اوقرطبى احتمال اول رد كړيدې په دوه وجهينو سره (۱)، نافلة نه زائده فريضه مرادكول مجازدي اوارتكاب مجازته بغيرد تعذر دمعنى حقيقى نه غيرصحيح دي ۲. كچري مراد دَنافلة نه فرض شى نو تعارض به راشي دَډيراحاديثو صحيحو سره چې هغه دال دي په فرضيت دَصلوة خمسه مطلقا په حق دَهرچاكښ برابره خبره ده پيغمبروي اوكه امتي وي.لكه په حديث صحيح كښ راغليدي خمس صلوات فرضهن الله على العباد، اوهغه شانتي په حديث اسراء كښ راغليدي،هن خمس وهن خمسون لايبدل القول لد ، دااحاديث مطلق دي په حق دَهرچاكښ.

﴿عَسَىٰٓ أَن يَبۡعَثَكَ﴾ عسىٰ په كلام الهى كښ لپاره دَوعدي وي اومرادپه مقام محمود سره مقام دَشفاعت كبرى دي اوشفاعت كبرى هغه دي چې كله اولين اواخرين راجمع شي اوهرپيغمبرﷺ ته خپل فرياد اوكړي اوهريو پيغمبرﷺ به خپل عذرظاهركړي او دَشفاعت كولونه به معذرت اوكړي نواخركښ به مخلوقات حضورﷺ ته درخواست اوكړي نوحضورﷺ به دَاللهﷻ په حضوركښ سجده اوكړي اودَاللهﷻ تعريفات به بيان كړي اواجازت دَشفاعت به طلب كړي اخركارحضورﷺ ته به شفاعت اجازت ميلاؤشي اوورته به اوئيلى شي،يامحمد ارفع راسك قل تسمع،سل تعطه،واشفع تشفع الحديث، نوحضورﷺ به شفاعت اوكړي اومخلوقات به دَتكليف نه خلاص كړي نوپدي وخت كښ به هرڅوك دَحضورﷺ تعريف كوي اواللهﷻ به هم دَحضورﷺ تعريف كوي دَشان محمديت پوراپورا ظهوربه اوشي دغه مراد دي دَمقام محمود نه اوهم دغه مقام مراد دي چې لواء الحمد به په لاس دَحضورﷺ كښ وي.

وفى الحديث عن جابربن عبداللهؓ ان رسول اللهﷺ قال من قال حين يسمع النداء اللهم رب هذه الدعوة التامة والصلوة القائمة آت محمدا الوسيلة والفضيلة وابعثه مقاما محمودا الذى وعدته حلت له شفاعتى يوم القيمة(البخارى) احاديث دَشفاعت حافظ ابن كثيرؒ اومظهرى په تفصيل سره ذكركړيدي اوصاحب دَمظهرى وغيره فرمائى چې دَحضورﷺ لپاره درې قسمه شفاعتونه دي،ليكن حافظ ابن حجرؒ په فتح البارى(ج ۱۳ص ۲۵۰- ۲۵۱) اوعلامه عينى په عمدة القارى كښ تفصيلا داذكركړيدي چې حضورﷺ لپاره لس(۱۰) قسمه شفاعتونه ثابت دي اوبعض مفسرين فرمائى

چې مراد دَمقام محمودنه اعطاء دَلوآء الحمد ده حضورﷺ ته. اوبعض فرمائی چې مراد تنه زیات قربت دې الله ﷻ ته، لکه داقول منقول دې مجاهد رحمه الله نه لیکن قول اول راجح دې لکه بعض مفسرینو پدې باندې اجماع نقل کړیده.

| وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِیْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّاَخْرِجْنِیْ مُخْرَجَ صِدْقٍ وَّاجْعَلْ لِّیْ |
|---|
| اووایه ته چې اې ربه خما! داخل کړې مالره په داخلولودرشتیاسره اواوباسې ماپه ویستلورشتیاسره اواوګرځوی مالره |
| مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطٰنًا نَّصِیْرًا ﴿۸۰﴾ وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ؕ اِنَّ الْبَاطِلَ |
| له جانبه خپل نه حجت مددګار، اواوایه ته چې راغې حق او روك شوباطل بیشکه باطل دې |
| كَانَ زَهُوْقًا ﴿۸۱﴾ وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِیْنَ |
| ورو کیدونکې.اونازله وومونږه دقرآن نه هغه چې هغه شفاده اورحمت دې لپاره دمومنانو، |
| وَلَا یَزِیْدُ الظّٰلِمِیْنَ اِلَّا خَسَارًا ﴿۸۲﴾ |
| اونه زیاتوي داقرآن ظالمانولره مګرتاوان. |

﴿وَقُلْ رَّبِّ ﴾دا دریم امرمصلح اوداب ذکردې اودامتعلق دې په ﴿وَاِنْ كَادُوْا لَیَسْتَفِزُّوْنَكَ ﴾ پورې، چې داکافرکه ستادَخکلو منصوبې جوړه وې نوته پرواه مه کوه اودادعا وایه ﴿رَّبِّ اَدْخِلْنِیْ ﴾اوستا دمکې ته وتل اومدینې ته داخلیدل دَاسلام دَسربلندئی اودَمسلمانانو لپاره دَفتح اوخیرباعث دې، ﴿مُدْخَلَ﴾ او﴿مُخْرَجَ﴾ صیغې دمصدرمیمي دې دَباب افعال نه اوبعض فرمائی چې دامصدر دَدخل اوخرج مجردو دې اودلته مصدرواقع شویدې دَباب افعال لپاره من غیرلفظه اوبعض فرمائی چې دادواړه صیغې دظرف مکان دې یعنی ځائې دداخلیدلو اوځائې دَخارجیدلو(بحر) اواکثرمفسرین فرمائی چې مراد دَدې ادخال اواخراج نه خاص ادخال اوخاص اخراج دې چې هغه ادخال مدینې طیبې ته دې اواخراج دَمکې معظمې نه دې، داقول مروی دې دَابن عباس رضی الله عنه نه اوامام ترمذی رحمه الله په کتاب التفسیرکښې په سند صحیحه سره دابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړیدې چې حضورﷺ په مکه کښې وو چې کله ورته امراوشو په هجرت سره

نودا ایت نازل شو، اوبعض فرمائی چې ادخال او اخراج دواړو نه مراد مکې ته ادخال او اخراج دي.
ای اخرجنی من مکة امنامن المشرکین وادخلنی مکة ظاهرا علیها بالفتح (خازن) اوبعض فرمائی چې ادخال
قبرته مراددې په وخت دوفات کښې او اخراج دقبرنه مراد دې په وخت دبعث کښې اونور اقوال هم
پکښې راغلیدې لیکن صاحب دبحر فرمائی چې زیاته غوره خبره داده چې داپه خپل عموم باندې
پریخودلې شي اومرادتنه عام ادخال او اخراج شي په جمیع مکان او اوامر اومصادر اوموارد
دینیه اودنیویه پورې (بحر، ج۶ ص۳۱) اوابن کثیر اوابن جریر قول اول ته ترجیح ورکړیده
اومراد د صدق نه متعارفه معنی نده مرادځکه چې هغه صفت دکلام خبري لپاره واقع کیږي
اوداکلام انشائی دې بلکه مراد تنه افضل اواعلی اواکمل دې لکه یوسړی بنه جنګ اوکړي
نوعرب وائی هوصدق فی القتال اوددې وجه نه هرعمده اومرضی اوافضل شئ توصیف په صدق
سره کیږي لکه مقعد صدق قدم صدق اولسان صدق وغیره شو، نودلته هم مراد تنه دغه تمثیل
اومحاوره ده نومعنی داشوه چې داخلیدل هم ځماپه عزت اوبنه طریقې سره وي اوخارجیدل هم په
عزت سره وي اوځه قسم بدحالت راته اونه رسي اواضافت ئی صدق ته مبالغة دي.
﴿سُلْطٰنًا نَّصِيْرًا﴾ مراد دسلطانا حکومت اوتسلط دې اود﴿نَّصِيْرًا﴾نه مراد طاقت دې چې په
هغې سره نفاذ دحدود اونورو قوانین داسلام اوشي، یعنی داسې حکومت راته راکړې چې دهغې
دوجې نه په مخالفینو باندې غلبه حاصله شي اوداسې طاقت راکړي چې په هغې سره قیام اونفاذ
ددین اواستحکام ددین راشي (کشاف) حضرت مولاناشبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی دنیاکښې
چې کوم قانون وي که هغه سماوي (یعنی الله ﷻ رالیږلي وي) یاارضي وي (یعنی دانسانانو
خودساخته وي) دهغې دنفاذلپاره ضروری ده چې دحکومت مدد وي ځکه چې کوم خلك دلائل
اوبراهینو اوریدلونه پس هم عنادا په خپل کفرباندې مضبوط ولاړدي دهغوئ ضرر اوفساد
حکومت ختمولې شي اوحافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائی چې لابد مع الحق من قهرلمن عاداه وناداه ولهذا
یقول تعالی ولقدارسلنارسلنا بالبینت..... وانزلنا الحدید الایة، وفی الحدیث ان الله لیزع بالسلطان مالایزع
بالقرآن ای لیمنع بالسلطان عن ارتکاب الفواحش والاثام مالایمتنع کثیرمن الناس بالقرآن ومافیه من الوعید
الاکید والتهدیدالشدید وهذا هو الواقع (ابن کثیرص ۵۹ ج۳) (تفسیرعثمانی) ددینه معلومه شوه چې
دنفاذ اسلام لپاره دحکومت دحصول جدو جهدکول جائزنه بلکه یوه اهم فریضه اومطلوب شئ

دي اوددي وجه نه حضورﷺ ته دحکومت دغوختلو دعاحکم ورکړې شو اودهغې خلکو قول په الحاد اوګمراهئ باندی مبني دي چې علماء ته دحکومت دحصول لپاره جدوجهد کولو باندی پیغورورکوي، اواسلام اوسیاست جداجدا ګڼړی لیکن ضروري خبره تصحیح نیت اواخلاص وللهیت دي اوضد ،عناد ،حسد اوتکبرنه دځپل ځان حفاظت پکاردي کنی داممدوح په مذموم باندی بیابدل شي اونن صبادااموركالعنقاء دی الاماشاء الله،

﴿وَقُلْ جَآءَ ﴾داڅلورم امرمصلح اوادب بیانیږي اوداحکم په طوردپشنګوئی دي ای قل عنددخولك مكة(جلالين) يعنى حکومت اوغلبه به میلاؤشي اوچې کله په وخت دفتح کښ مکي ته داخلیږي نوداوایه چې﴿جَآءَ ٱلْحَقُّ ﴾ اومراد دحق نه دین اسلام اوتوحید دي اوباطل نه مراد کفر،شرك دي اوپه حدیث کښ راغلیدي عبدالله بن مسعود نه روایت دي قال: دخل النبيﷺ مكة وحول البيت ستون وثلثمائة نصب فجعل يطعنها بعود فى يده ويقول جآء الحق وزهق الباطل... جآء الحق ومايبدئ الباطل ومايعيد(البخارى ومسلم) يعنى حضورﷺ دفتح مكه په ورځ مکي ته داخل شونودمکي نه ګيرچاپيره(۳۶۰) بتان پراته وودحضورﷺ په لاس مبارك كښ لرګى وو په هغې لرګي سره به حضورﷺ هربت وهلو اوغورځلوبه ئې اوداايتونو به ئې تلاوت كول قل جآء الحق جاء الحق ومايبدئ الباطل .

﴿إِنَّ ٱلْبَٰطِلَ كَانَ زَهُوقًا ﴾ دادويمه پشنګوئی ده چې باطل همیشه لپاره ورکیدونکی دي چې کوم کفردکعبی نه اووتلوبیابه کله هم واپس رانشي، زهوق په وزن دفعول سره صیغه دمبالغي ده معنی ئی ده ډیرپه تیزئی سره زائله کیدونکې اوپه ﴿كَانَ زَهُوقًا ﴾کښ اشاره ده چې زوال دهرباطل دذات سره لازم دي چې چرته حق راشي باطل نشي پاتي کیدلي،اګرچې وقتی اوعارضي طورباطل کله کله غلبه اومندي، اوداجمله په منزله دعلت ده لپاره دماقبل.

﴿وَنُنَزِّلُ ﴾دامؤمنين ته بشارت اومنكرين ته زجربيانيږي، اوترغيب الى القرآن دي چې داقرآن داللهﷻ دطرف نه دمؤمنين لپاره رحمت،اودهرقسم باطني امراض لپاره شفاء ذريعه ده،اودمنكرينولپاره سراسردنقصان ذريعه ده، اومن په ﴿مِنَ ٱلْقُرْءَانِ ﴾کښ بیانیه دي چې بیان ئې کړیدي دَ د﴿مَا هُوَ ﴾ اوتقدیردعبارت داسې دي وننزل ماهوشفاء الذى هوالقرآن لكه فاجتنبوا الرجس

من الاوثان دي اوتقديم دمن بيانيه په مبيّن باندی لپاره دَاهتمام شان دي. اوبعض فرمائي چې من تبعيضيه دي اوتبعيض په اعتباردانزال سره دي چې هره حصه دَقرآن چې نازلي ده هغه بعض وه دَپوراقران نه نوهغې هري يوي حصي په باره کښ اوئيلې شوچې داشفاء ده نوګوياچې ټول قرآن ته شفاء اوئيلې شو، (قرطبی) اوبعض فرمائی چې من تبعيضيه دي اومراد دشفاء نه دَامراضوجسمانيونه شفاء مراد ده اودَقرآن مجيد ځني حصي دَامراض جسمانيه لپاره ذريعه دَشفاء ده لکه سورة الفاتحه وغيره سورتونه شولو اوصاحب دَبحروغيره ترجيح ورکړيده ديته چې من دَابتداء دَغايه لپاره دي اوداقول زيات واضح دي.

﴿شِفَآءٌ﴾مرادتنه دَهرقسم امراض دی که روحاني وي ياجسمانی وي. امام رازي رحمه الله فرمائی چې امراض روحانيه په دوه قسمه دي يواعتقادات باطله اودويم اخلاق مذمومه دي. په اعتقادات فاسده کښ سخت هغه اعتقادات فاسده دی چې فساد داعتقاد په باره دَالهيات، نبوات،معاد، قضااوقدرکښ راشي،نوقرآن مجيد مشتمل دې په دلائلوباندی لپاره دَاثبات دَمذهب حق اوپه ابطال دَاديان باطلوباندی،اوهرچې دي اخلاق مذمومه نوقرآن دهغې تفصيلات تعريفات،مفاسدوغيره تفصيلاذکرکړيدی اودغه شانتي اخلاق فاضله،کامله اواعمال محموده ته ارشاد قرآن مجيدپه تفصيل سره کړيدې نوځکه قرآن مجيد دَټولوامراض روحانيه لپاره شفاء دي اودغه شانتي دَامراض جسمانيولپاره هم ذريعه دَشفاء ده،ځکه چې دَامراض جسمانيه لپاره دَقرآن دم لوستل په احاديثو صحيحوکښ ثابت دي،لکه په روايت دَحضرت انس رضي الله عنه وغيره کښ دی آن رسول الله ﷺ رخص فی الرقية من الحمة والنملة(رواه الترمذی) اودغه شانتي دَحضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه مشهورروايت دي چې ان ناسا من اصحاب النبی ﷺ مروا بحی من العرب فلم يقروهم ولم يضيفوهم الی... فجعل رجل منايقراء عليه بفاتحة الکتاب فبراء فلمااتيناالنبی ﷺ ذکرناذلك له،قال ومايدريك انهارقية ولم يذکرنهينامنه وقال کلوا واضربوالی معکم بسهم(ترمذی) اودغه شانتي نورډيرروايات شو لکه هغه روايات چې دَمعوذتين په باره کښ راغليدی.علامه آلوسی رحمه الله دَقشيری نه نقل کړيدی چې دهغه بچی بيمارشو اوډيرسخت شو چې دې دَدَه ژوند نه مايوس شونوبوه شپه ئی دَالله ﷺ ديدارپه خوب کښ اوکړواودَخپل بچي دمرض شکايت ئی اوکړو، نوالله ﷺ ورته اوفرمائيل چې ايات الشفاء راجمع کړه اوهغه په ده باندی اولوله اويائی په

يولوخي كښې اوليكله اوهغه پده باندې اوځكوه. نوقشيرى دغه كاراوكړو نوهغه بچې ني صحبت ياب شو اوايات الشفاء هغه شپږ اياتونه دى(۱)ويشف صدورقوم مؤمنين(۲)شفاء لما في الصدور(۳)فيه شفاء للناس(۴)وننزل من القرآن ماهوشفاء ورحمة للمؤمنين(۵)واذامرضت فهويشفين(۶)قل هوللذين امنوا هدى وشفاء.

امام رازى رحمه الله فرمائى چې ټول جمهورفلاسفه اوجادو والاپډي متفق دي چې هغه دمونه چې دهغې الفاظ مجهول المعنى دى په تحصيل دمنافعو اوپه دفع دمفاسدوكښې لپاره دهغې لوئ اثردي نوقراءت دقران چې مشتمل دې په ذكرداللهﷻ باندې اوپه كبريائى داللهﷻ باندې خامخابه سبب وي لپاره دحصول دنفع په دين اودنياكښې اودې وجه نه حضورﷺ ارشاد اوفرمايه من لم يستشف بالقرآن فلاشفاه الله تعالى(كبير) اوباقي تعويذ ليكل هم په نيزدجمهور جائزدى اوثابت دى په حديث اوپه قول اوعمل دصحابهؓ اوتابعين اواسلافوسره(والتفصيل فى القرطبى) البته هغه تعويذات چې په هغې كښې استمداد دغيرالله نه وي، ياپداسې الفاظوباندې مشتمل وي چې هغې معنى اومقصدچاته معلوم نوي داناجائزدى اومنع په احاديثوكښې ددغه شانتي تعويذنونه راغليده. ﴿وَرَحْمَةٌ﴾داعطف دې په ﴿شِفَآءٌ﴾باندې يعنى قرآن دامراضولپاره ذريعه دشفاء ده اودظاهري باطنى نعمتونواوصحت ذريعه ده، نوپه ﴿شِفَآءٌ﴾كښې اشاره ده تخليه ته اوپه﴿وَرَحْمَةٌ﴾ كښې اشاره ده تحليه ته اوتخليه مقدمه وي په تحليه باندې نوځكه شفاء مقدم شوپه رحمة باندې(روح) ﴿وَلَا يَزِيدُ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾قرآن دمؤمنانولپاره ذريعه دشفاء ده ځكه چې هغوئى پدې سره نفع اخلي، اوكافر ته نفع نه اخلي نوامراض باطنى ورځ په ورځ زياتيږي په سبب دامراض سره لكه په سورة توبه كښې دي فامّاالذين فى قلوبهم مرض فزادتهم رجسا الى رجسهم الاية(توبه:۱۲۵) اونسبت دزيادة دنقصان قرآن ته تسبيبادې چې ددوئ اعراض عن القرآن داسبب دې لپاره دزيادت دخسران اودنقصان.

﴿وَإِذَآ أَنْعَمْنَا عَلَى ٱلْإِنسَٰنِ أَعْرَضَ وَنَـَٔا بِجَانِبِهِۦ ۖ وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ كَانَ﴾

[۸۳] اوكله چې انعام اوكړو مونږ په انسان باندې نومخ اوگرځوي اولرې كړي خپله ډډه(۱)ځنگ اوچې كله اورسيږي ده ته تكليف نووي دې

(۱) زجر.

يَـُٔوسًا ﴿٨٣﴾ قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلٰى شَاكِلَتِهٖ ؕ فَرَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَنْ

ناامیده، اووایه ته هرڅوك عمل كوي په طريقي خپلي سره پس رب ستاسوښه پوهه دي په هغه څ چي

هُوَ اَهْدٰى سَبِيْلًا ﴿٨٤﴾

هغه ښه موندونکی دي لاري لره.

﴿وَإِذَآ أَنْعَمْنَا﴾ دا زجردي په کافر اومشرك باندی چي دانعام په وخت کښ هم دالله ﷻ دياد اوذكرنه غافل وي په سبب دتكبرسره اودالله ﷻ انعامات خپلو خودساخته معبودانو ته منسوب كوي، اودسختئ په وخت كښ هم دالله ﷻ دذكرنه غافله وي اومايوسه ناامیده وي، اومراد د ﴿أَنْعَمْنَا﴾ نه جسمانی صحت اومالي وسعت دي اومراد د ﴿ٱلْإِنسَٰنِ﴾ نه دانوعه مذکوره دانسان ده چي کوم ذكريه ﴿وَلَا يَزِيدُ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ کښ اوشو ﴿أَعْرَضَ﴾ مرادتنه اعراض دي دذكردالله ﷻ نه اوشكرنه اداكول دي، ﴿وَنَـَٔا بِجَانِبِهِۦ﴾ دا تاكيددي دماقبل لپاره،یعنی خپل ځان دبيان دحق نه لري كري دوجي دتکبرنه، ﴿وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ﴾ مرادتنه مرض،فقر،اونورتكاليف دی ﴿كَانَ يَـُٔوسًا﴾،يئوس فعول په وزن مبالغی لپاره دي ای شديدالياس من رحمتنا(روح) سخت ناامیده شي دالله ﷻ درحمت نه، ﴿قُلْ كُلٌّ﴾ دا هم زجراوذم دي دکافراومدحه اوبشارت دمؤمن ده چي هريو انسان دخپل نيت،طبيعت موافق عمل كوي،ليكن فيصله حقانيت ددين ددوئ په طبعیتونو اوخيالاتو باندی نده مبنی،الله ﷻ ته علم دي چي دهدايت والادين دچادي، اوڅوك په حق دين باندی قائم دي دالله ﷻ دعلم محیط نه څوك هم بهرندي ،د ﴿شَاكِلَتِهِۦ﴾ تفسير،نيت،طبعيت اوطريقي سره شوېدي اومقصد اومفهوم دټولو متقارب دي چي هرانسان دخپل نيت اوعادت اورسم رواج چي هغه دده فطرت ثانيه اوګرزيدلي دهغي موافق عمل كوي،امام جصاص رحمه الله فرمائی فيه تحذيرمن الف الفساد والمساكنة اليه فيستمرعليه(احكام القرآن ج۳)چي پدي ايت كښ تحذيراوتنبيه ده پدي خبره چي دغلط مجلسونو اوغلط ماحول نه ځان بچ کول پکاردی، اوبيافرمائی چي ﴿شَاكِلَتِهِۦ﴾

معنی هم شکل جوړیدل هم رازي، مایشاکله ویلیق به ویشبهه(احکام القرآن) اودایت مقصد دادې چې هرسړی دَخپل شکل اودخپل مزاج موافق سړی سره میلاویږي.شریردَشریراونیك دنیك سره،لکه څرنګه چې په سورة النورکښ دي، الخبیثات للخبثین (النورایت نمبر۲۲)قرطبی واقعه نقل کړیده چې صحابه کراموﷺ په خپل مینځ کښ مذاکره دَقرآن اوکړه، نوحضرت ابوبکرﷺ اوفرمائیل چې ماقرآن اول نه تراخره پوري اولوستلوپه ټول قرآن کښ څماڵپاره دَزیات امید والاایت داایت مذکوره دې ﴿قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ﴾څکه چې مزاج دَبنده،عصیان دې اوعادت دَرب غفران دې، اوحضرت عمرﷺ اوفرمائیل چې ماقرآن دَاول نه تراخره پوري اولوستلو نوماته زیات امید والاایت دَسورة غافروالا اولنی دَري ایتونه ښکاره شو(حم(۱) تنزیل الکتب من الله العزیزالعلیم(۲)غافرالذنب وقابل التوب) (3)اوحضرت عثمانﷺ اوفرمائیل چې ماته (نبئ عبادی انی اناالغفور الرحیم(الحجر:۴۹))زیات امیدوالا،ښکاره شو اوحضرت عليﷺ اوفرمائیل چې ماته قل یعبادی الذین اسرفوا علی الخ (الزمر:۵۳)زیات امیدوالاښکاره شو،اوقرطبی رحمه الله فرمائی قرائت القرآن من اوله الی اخره فلم ارایة احسن وارجی من قوله تعالی(الذین آمنوا ولم یلبسوا ایمانهم بظلم الخ ) (الانعام:۸۲).[1]

| وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ ۭ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ وَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ |
|---|
| [2]اوتپوس کوي دوئ ستانه په باره دروح کښ ته اوایه چې روح دامردرب څما،نه دې، اوندې درکړې شوې تاسوته دعلم نه |
| اِلَّا قَلِيْلًا ۝ وَلَىِٕنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ |
| مګرلږ غوندې،اوکچرته خوښه شي زمونږ نوبوخوبه مونږه هغه شی چې وحی کړیده مونږه تاته بیابه اونه مومي ته خپل خان لپاره |

---

(1) تنبیه: امام رازی رحمه الله فرمائی چې دَایت مذکوره دلیل دې پدې چې تشکیك په ماهیاتوکښ جائزدې اونفوس ناطقه مختلف دې په اعتباردَماهیت سره، څکه چې داقرآن دخنی خلکولپاره رحمت اودخنولپاره ذریعه دَنقصان ده اوعلت ئی دابیان شو چې کلٌ یعمل علی شاکلته، چې دَقرآن والاثارکمال اوذکاء په نفوس طاهره کښ ظاهریږي،اوخزی اوضلال په نفوس کښ کدوره کښ ظاهریږی اودا په دې صورت کښ ممکن دې چې ارواح اونفوس مختلف وي په اعتباردَماهیت سره، ولکن القول هذا الاستدل غیرتام ولایخفی امافی هذا علی من له ادنی تامل.

2: شکوه

| بِهٖ | عَلَيْنَا | وَكِيْلًا | ﴿٨٦﴾ اِلَّا | رَحْمَةً | مِّنْ | رَّبِّكَ | ۭ | اِنَّ | فَضْلَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پدې | سره به مونږ باندې | څوک کارسازلیکن دوجې درحمت درب ستانه‌نه بوخو بیشکه فضل دَده | | | | | | | |

كَانَ عَلَيْكَ كَبِيْرًا ﴿٨٧﴾

دې په تاباندې ډیرلوئ

﴿وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ﴾ داز جراوشکوی ذکرکیږي دَ مشرکینو په سوال عنادا باندې اوربط دَدې ایت دَماقبل سره دادې چې په ماقبل ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ﴾ کښې اثبات درسالت ووعموما اوپدې کښې اثبات دَرسالت دې خصوصا(تهانوی) اوددې ایتونو په شان نزول کښې روایات مختلف دي دَدې وجه نه دَدې ایت مکي اومدني کیدلوکښې هم اختلاف راغلیدې.په روایت دَعبدالله بن مسعود ﷺ دی چې نقل کړیدې شیخینو چې فرمائی(بیناانامع النبیﷺ فی حرث وهومتکئ علی عسیب اذمرالیهود فقال بعضهم لبعض سلوه عن الروح (بخاری ج۲ ص۲۸۲))چې رسول اللهﷺ دَمدینې په یوباغ کښې وو اوځه ورسره ووم اوحضورﷺ دکهجوری په شاخ باندی تکیه لګولې وه چې دَیهودیانو یوجماعت تیرشو،نوپدوئ کښې ځنی کسانوځنی نوروته اونیل چې دَده نه (حضورﷺ نه) دَروح متعلق تپوس اوکړئ، نوځینوپکښې اوئیل چې مکوئ داسې نه چې تاسوته جواب درکړي چې هغه بیاتاسونه خوښنوئی،خوځنواوئیل چې ضرورتنه تپوس اوکړئ،نودوئ دَروح په باری کښې تپوس اوکړو، حضورﷺ خاموش شو اودوئ ته ئی فوري څه جواب ورنه کړو،پس څه پوه شوم چې حضورﷺ ته وحی کیږي، نوځه هم دَخپل ځائ نه پاڅیدم چې کله وحی نازله شوه(یعنی وحی نزول کیفیت ختم شو) نوحضورﷺ داایت تلاوت کړو.اوبل روایت چې هغه دَسیرروایت دې چې منقول دې دَابن عباس ﷺ نه چې قریش مکه دوه کسان نضربن حارث اوعقبه ابن ابی معیط دَمدینې یهودیانوعلماؤته اولیږلواوورته ئی اوئیل چې تاسوددوئ نه دمحمدﷺ په باره کښې تپوس اوکړئ ځکه چې دوئ اهل علم دی چې دوئ دَده په باره کښې څه وائی؟ داکسان چې لاړل اوتپوس ئی اوکړو نودوئ ورته اوئیل چې تاسو دَمحمدﷺ نه دَدرې څیزونو په باري کښې تپوس اوکړئ نوکچرې هغه دَدرې واړو جواب درکړو اویائی دَیوڅیزجواب هم درنه کړو نوپوهه شئ چې دې نبي نه دې،اوکچرې ددوو جواب نی درکړو اودریم

جواب ئې درنه کړو نوپوهه شئ چې نبي دې اوهغه درې څيزونه دادی (۱) هغه نوجوانانو واقعه څه وه اوهغه څوك وو چې ديوظالم بادشاه نه تختيدلې وو اوپه يوغارکښې ئې پناه اغستې وه (۲) هغه څوك وو چې دَمشرق نه مغرب ته ئې سفرکړې وو (۳) روح څه شئ دې؟ قريش دَحضورﷺ نه دادرې تپوسونه اوکړل نوحضورﷺ ورته اوفرمائيل چې څه به صباستاسو ددې سوالونو جوابونه درکړم (وانشاء الله ئې اونه وئيلو اووحی کښې تاخيراوشولو او داتاخير ياپنځلس اوياڅلويښت ورځې وو) اواهل مکه مختلف قسم خبرې شروع کړې اوحضورﷺ ته به ډيرتکليف رسيدلو.

اوبيا اچانك وحی راغله اوداايت ولاتقولن لشئ اني فاعل نازل شواوبيادديې وارو سوالونو جوابونه نازل شو، داول سوال په جواب کښې (ام حسبت انّ اصحٰب الكهف) نازل شواودَدويم سوال په جواب کښې واقعه دذوالقرنين نازله شوه اوددريم سوال په جواب کښې دايت نازل شوليکن قول اول ته ترجيح ده ځکه چې داروايت دَصحيحينو دې اودويم وجه داده چې پدې روايت کښې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه خپله واقعه اونزول کيفيت وحی په خپله بيانه وې، اودَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روايت کښې داترجيحات نيشته دې سيوادې نه چې ايت مکي ياديږې لکه څنګه چې ټول سورت مکي دې، اوحافظ ابن کثير رحمه الله تطبيق بين الروايتين کړيدې اوفرمائی چې قدتکون نزلت عليه بالمدينة مرة ثانية کمانزلت عليه بمکة قبل ذلك (ابن کثير).

﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلرُّوحِ﴾ مسئول عنه چې روح دې دَده په تعيين کښې اختلاف دې راجحه خبره داده چې مرادتنه روح انسانی دې، چې حقيقت اوماهيت دروح انسانی څه دې؟ لکه څنګه چې بدن انسانی اصل ماده خاوره ده اوماده توليدئی منی ده نودغه شانتی دروح والااصل ماده اوماده تخليق څه شئ دې؟ اويادخال دروح انسانی اوحيوانی په جسدکښې کيفيت څه دې؟

نوجواب راغی چې ﴿قُلِ ٱلرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّى﴾ يعنی روح دَعالم امرنه راکوزشوېدې اوپوره کنه اوحقيقت ئې صرف الله تعالی ته معلوم دې اوانسان ته دَدې په باره کښې تفصيلی علم ندې ورکړې شوې ځکه چې انسان په علم تفصيلی دروح باندی نشي پوهيدې اويامراد دروح نه قرآن دې (واطلاق په قرآن باندی دروح په مختلف مواضعوکښې شوېدې لکه (ينزّل الملئكة بالروح من امره (النحل ۲)) وکذلك اوحينا اليك روحا من امره (الشوری: ۵۲) نودَدوئ دَسوال مقصد دادې چې داقرآن تادَخپل ځان نه جوړکړيدې ياجبرائيل عليه السلام دَخپل ځان نه رانازل کړيدې، دَدې څه حقيقت

دي؟ نوجواب اوشو ﴿ٱلرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّى﴾ چې دَاداللهﷻ کلام دي اودهغه په حکم سره نازل شوېدي، اويامراد دَروح نه حضرت جبرئيلؑ دي چې دَهغه حقيقت څه دي اوهغه دَڅه شی نه پيداشوېدي، نوجواب ئی اوشوچې الروح من امرربی چې دَدې حقيقت علم صرف اللهﷻ ته دي په امردَاللهﷻ سره پيداشوېدي، اوڅلورم احتمال پکښې داهم ذکرشوېدې چې دروح نه مراد حضرت عيسىؑ دي اوسوال دهغه دَپيدائش متعلق دې چې حضرت عيسىؑ څرنګې پيداشوېدې نوجواب اوشو﴿مِنْ أَمْرِ رَبِّى﴾ ، چې په امردَرب سره چې کن دي پيداشوېدي. دَدينه علاوه نوراحتمالات پکښې هم ذکرشوېدی ليکن په ټولواحتمالاتوکښې غوره اوظاهراولنی احتمال دي. اوامام رازيؒ احتمال ثانی ته ترجيح ورکړيده ځکه چې مرادکول په روح سره قرآن دَامناسب دي دَسباق اوسياق سره، ځکه چې ماقبل کښې ذکردَ ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ ٱلْقُرْءَانِ﴾وو چې داقرآن شفاء دي دَامراض روحانيه اوبدنيه لره، اودغه شانتې په راتلونکوايتونوکښې دَقرآن اودهغې دَحقانيت ذکرکيږي﴿وَلَئِن شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ﴾، ﴿قُل لَّئِنِ ٱجْتَمَعَتِ ٱلْإِنسُ وَٱلْجِنُّ﴾.

﴿مِنْ أَمْرِ رَبِّى﴾من تبعيضيه دي اواضافت دَامررب ته تعظيمًا اوتشريفًادي اومراد په امرسره حکم دَاللهﷻ دي يعنی هغه کلام دَاللهﷻ چې په هغې سره دَمخلوقاتو تدبيراوتصريف په داسې طريقې سره اوکړې شي چې په هغې باندې دَايجاد اودَتکوين والا اغراض مرتب شي، لکه څرنګې يومشين اودهغې دَپرزو چلولواوکاراغستلولپاره دبجلئ دکرنټ وي هم دهغه شانتې ددې نظام دَچلولو لپاره دَاللهﷻ حکم چې هغه کلمه دَ"کن"ده د دَبجلئ دکرنټ حيثيت لري چې ديته روح وئيلې شي،اوحديث کښې دغې خزانې کهربائيه ته اشاره شوېده چې الارواح جنود مجندة اوتعلق دهرمادې سره علی حسب الهيئة والاستعداد دي، لکه هيئت انسانی سره خپل روح اوپه سترګه کښې دَخپل استعداد موافق روح چې هغه په غوږ اوپوزه کښې نيشته دي،وعلی هذا القياس نوخلاصه داده چې روح په اصل کښې شان اوصفت دَاللهﷻ دي چې مبداء الحيات دي لپاره دبدن، يعنی اثرات ددغې امرظاهريږي په بدن کښې علی حسب الهيئة والاستعداد . نومظهرئ اللهﷻ دي اوظاهريدونکی هغه اثرات دی اوددغې اثراتونه تعبيرپه مختلف الفاظو سره شوېدي څوک ورته جوهر مجرد وائی څوک ورته جسم لطيف وائی اوڅوک تنه تعبيرپه هغه (عرض) سره کوي

چې بخار لطيف دې چې حلول ئې کړيدې په بدن کښې په حلول سريانی سره لکه ماء الورد چې په ورد کښې حلول کړيدې (هذاخلاصة ماقال شيخ الاسلام وحکيم الاسلام نورالله مرقدهٔ) اودروح متعلق پوره تفصيل امام رازي په تفسير کبير کښې اوعلامه الوسي په روح المعانی کښې ليکلي دي

بعض مفسرين فرمائی چې من په «مِنْ أَمْرِ رَبِّي» کښې بيانيه دې او امر عبارت دې دشان دالله ﷻ نه او اضافت لپاره داختصاص دې ای هوجنس مااستاثرالله بعلمه من الاشياء اللتی لم يعلم عباده (فتح القدير) ای من علمه الذی منع ان يعرفه احد (زادالمسير) يعنی علم ددې خاص دې په الله ﷻ پورې اوبل چاته ئې ددې علم ندې ورکړې اوهم داوجه ده چې دروح متعلق قديم اوجديد فلاسفو اومحققينو تحقيق سرته ندې رسيدلې اودروح په حقيقت باندې ندې متفق شوې. اودقديم اوجديد محققينو اقوال ددې په باره کښې تقريبا (۱۱۸) يعنی يو سل اتلس ته رسيدليدی اوهريو نظريه دبل نه جدا ده

﴿وَمَآ أُوتِيتُم مِّنَ﴾ هذا اشارة النص دې په دېکښې چې دروح په معامله کښې ډيربحث اوتمحيص ندی کول پکار. ځکه چې انسان ته ددې په باره کښې علم قليل ورکړې شوېدې. چې څومره انسان ته ضرورت دې دهغې مطابق علم ورته الله ﷻ ورکړيدې چې داروح مبداء دحيات ده چې حيوان په نفخ دروح سره ژوندې کيږي اوپه مفارقت دروح سره بدن مړکيږی اويايوبخار لطيف دې ساري دې په بدن کښې لکه ماء الورد په ورد کښې. اوتنوين په «قَلِيلًا» کښې تنکير اوتقليل لپاره دې اوداحکم عام دې په پيغمبر اوغيرپيغمبر ﷺ ټولوته اوداحصرحصراضافی دې په نسبت سره علم دالله ﷻ ته دې اوعلم دممکن په نسبت سره واجب ته داسې دې لکه دمرغئ په مخوکه کې اوبو نسبت سمندر سره نو لهذا دااعتراض نه واريدېږي چې ددې ايت تعارض دې دبل ايت سره چې يؤتی الحکمة من يشآء ومن يؤتی الحکمة فقداوتی خيرا کثيرا (البقرة: ۲۶۹) اويا رفع دتعارض لپاره جواب دادې چې په سورة البقره کښې ذکر د خيرکثير دې اودلته ثبوت دعلم قليل دې اوثبوت دعلم قليل منافی دخيرکثير سره ندې بلکه لږ علم هم ذريعه دخيرکثير ګرځيږي.

«وَلَئِن شِئْنَا» هيدې ايتونو کښې تسلي ذکر کيږي پيغمبر ﷺ ته اوصدق دقرآن ذکرکيږي چې د قرآن حی الله ﷻ تاته ددې علم درکړيدې که بالفرض مونږه اوغواړو نو لږ وخت کښې به مونږه

ستادزړه نه وباسو ليکن ستادرب لويه مهرباني ده په تاباندې نوځکه ئې دانعمت عظمی نه
درکړيدې اوستا دزړه نه ئې نه اوباسي، اولام په﴿وَلَئِن﴾ کښ موطئه للقسم دې اوجواب قسم
محذوف دې او﴿لَنَذۡهَبَنَّ﴾ داجزاء ده دَشرط﴿شِئۡنَا﴾ لپاره اوقائمقام ده دجواب قسم
نوتقديردَعبارت داسې دې لئن شئناذهبنا بالقرآن عن الصدورلنذهبن اومراد په ذهاب سره محوه کيدل
دي دقرآن دَمصاحفونه اودَسينودَانسانانونه،﴿أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ﴾ قرآن تنه مراددې.﴿ثُمَّ لَا تَجِدُ﴾ ثم
لپاره دَتراخي دې يعني بعدالذهاب﴿عَلَيۡنَا وَكِيلًا﴾، يعنې داسې څوک نيشته چې هغه دقرآن
دَواپس کولوذمه داري واخلي اى متعهدا وملتزما استرداده بعدالذهاب به(روح) ﴿إِلَّا رَحۡمَةً﴾استثناء
منقطع ده په معنی دلکن سره ده اى لکن رحمة من ربك تمنع من ان تسلب القرآن(بحر) يعنی دالله تعالی
رحمت په تاباندې دومره زيات دې چې هغه مانع دې دذهاب دَقرآن نه دَستادسيني مبارکي نه.
اوداآيت دليل دې پدې چې قرآن دَانسان دَسينونه وتلې شي اګرچې دې ئې حافظ وي. اوددې وجه
نه حضرت عبدالله بن مسعودﷺ اوفرمائيل چې(اول ماتفقدون من دينكم الامانة واخرماتفقدون
الصلوة وان هذا القرآن كانه قدنزع منكم تصبحون يوما ومامعكم منه شئ فقال رجل كيف يكون ذلك
ياابا عبدالرحمن وقدثبتناه فى قلوبنا واثبتناه فى مصاحفنا نعلمه ابناء نا ويعلمه ابناء نا ابناءهم الى يوم القيمة قال:
يسرى به فى ليلة فيذهب بمافى المصاحف ومافى القلوب فتصبح الناس كاالبهائم ثم قراء عبدالله ولئن شئنا
لنذهبن الخ) اودغه شانتي روايت ذکرکړيدې امام ترمذی په خپل سنن کښ دَحضرت ابودرداءﷺ
نه چې فرمائی(كنامع النبیﷺ فشخص ببصره الى السمآء ثم قال هذا اوان يختلس العلم من الناس حتى
لايقدروامنه على شئ فقال زيادبن لبيد الانصارى كيف يختلس منا وقدقرانا القرآن فوالله لنقراءنه ولنقراءنه
نسائنا وابنائنا قال ثكلتك امك يازياد ان كنت لاعدّك من فقهآء اهل المدينة هذه التوراة والانجيل عنداليهود
والنصارى فماذا تغنى عنهم الحديث)(ترمذی ج۲ ص ۹۰ ابواب العلم) اودَصحيحينو په روايت کښ
چې ذکر دې چې ان الله لايقبض العلم انتزاعا ينتزعه من الناس ولکن يقبض العلم بقبض العلماء الحديث
نوددې احاديثو په خپل مينځ کښ تعارض نيشته دې تطبيق ئې ممکن دې چې اولاً به دَعلماء
قلت راشي، نيکان ، صلحاء،علمآء به کم شي اوبيابه دَزړونو نه علم اوبنکلې شي، ﴿إِنَّ فَضۡلَهُۥ

کان ـ ځېدیکښې اشاره ده عظمت شان د رسول الله ﷺ ته چې نزول د قرآن او حفاظت قرآن نې سینه کښې کړیدې وغیره.

قُلْ لَئِنِ اجْتَمَعَتِ الْإِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَىٰ أَنْ يَأْتُوا بِمِثْلِ هَٰذَا الْقُرْآنِ

اوایه ته کچري جمع شي انسانان اوجنات په دي خبره چې راوړي پیش کړي په شان ددي قرآن

لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا ﴿٨٨﴾ وَلَقَدْ صَرَّفْنَا

نونشی راوړي دوئ په شان ددې قرآن اگرکه وي بعضې ددوئ لره دبعضو مددگار. اوپه تحقیق سره مکرر بیان کړیدي مونږه

لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ فَأَبَىٰ أَكْثَرُ النَّاسِ إِلَّا كُفُورًا ﴿٨٩﴾

لپاره دخلکو پدي قرآن کښې دهرقسم مثال بیان نه پس نه کوي ډیرخلک بل کار سیوا دناشکرئ نه.

وَقَالُوا لَنْ نُؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْأَرْضِ يَنْبُوعًا ﴿٩٠﴾

اووائی دوئ چې هرگز مونږ ایمان نه راوړو په تا باندې ترهغه پورې چې جاري کړې ته مونږ لره دزمکې «دمکې» نه چینې

أَوْ تَكُونَ لَكَ جَنَّةٌ مِنْ نَخِيلٍ وَعِنَبٍ فَتُفَجِّرَ الْأَنْهَارَ خِلَالَهَا تَفْجِيرًا ﴿٩١﴾

اویاوي تالره باغ دکجورو اودانگورو پس روان کړې نهرونه په مینځ دهغې کښې په ډیرو روانولوسره

أَوْ تُسْقِطَ السَّمَاءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا كِسَفًا أَوْ تَأْتِيَ بِاللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ

اویاراوغورزوي ته اسمان لکه څنگه چې ستا گمان دې په مونږ باندې ټکړي ټکړي اویاراولې ته الله ﷻ اوملائکو لره

قَبِيلًا ﴿٩٢﴾ أَوْ يَكُونَ لَكَ بَيْتٌ مِنْ زُخْرُفٍ أَوْ تَرْقَىٰ فِي السَّمَاءِ وَلَنْ نُؤْمِنَ

مخامخ. اویاوي ستالپاره یوکوردسرو زرونه اویااوخیژي ته اسمان ته اوهیڅ کله یقین نه کوومونږه

لِرُقِيِّكَ حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نَقْرَؤُهُ قُلْ سُبْحَانَ رَبِّي

په ختلو ستا باندې ترهغه پورې چې نازل کړې ته په مونږ باندې یوکتاب «خط» چې مونږه اولولو هغه. اوایه ته پاکي ده رب خمالره.

## هَلْ كُنتُ إِلَّا بَشَرًا رَّسُولًا ﴿٩٣﴾

نه يم زه مګر يو بشر ليږلى شوى يم

﴿قُل لَّئِنِ ٱجْتَمَعَتِ﴾ په دې ايت کښې اثبات د صدق د قرآن کيږي په طريقې د تحدى چيلنج سره
چې چا به دا سوال کولو چې دا قرآن منزل من عندالله ندې او ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ ٱلْقُرْءَانِ﴾ سره دروغ وې
نو الله ﷻ تحدي او چيلنج ورکړو چې تاسو انس او جن ټول راجمع شئ او د دې قرآن پشانتې فصيح
بليغ قرآن پيش کړئ. خو تاسو قدرت نه لرئ د دغه شانتې فصيح بليغ قرآن په مثل باندې اګرچه
تاسو د يو بل نه مدد هم او غواړئ، نو د يو پيغمبر ﷺ په مقابله کښې ټول و انسانان او جنات راجمع شي
او د يو بل مدد هم کوي ټول په شريکه باندې د دې قرآن نظير نشي پيش کولې نو معلومه شوه چې
دا د انساني قوت او قدرت نه بهر دې. او د الله ﷻ کلام دې او په سورة البقرة کښې تير شوې دې چې
دعامو مفسرينو په نيز د تحدي څلور ځلې شوې ده،(۱) په پوره قرآن سره لکه دلته(۲) په لسو
سورتونو سره لکه په سورة هود آيت (نمبر ۱۳)(۳) په يوه سورت سره لکه سورة البقرة کښې(۴) او په
يوې جملې سره لکه په سورة الطور کښې او د حضرت والد صاحب نور الله مرقده وبرد مضجعه واجعل
رفاقته ورفاقتنا مع النبين والصدقين والشهداء والصلحين امين، په نيز پنځه ځلې تحدي شوې ده. څلور دا
مذکوره دى او يو ځلې په يو حرف سره شوې ده. ن.ق. وغيره شو چې دا سې پر معنى حرف پيش
کړئ. ﴿لَّئِنِ ٱجْتَمَعَتِ﴾ کښې لام موطئه للقسم دې او جواب قسم ﴿لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِۦ﴾ دې يعنى والله
لئن اجتمعت .... لايأتون بمثله. او د دې وجه نه دا جمله مرفوع ده او دا قول راجح دې او مراد په مثليت
سره فصاحت او بلاغت کښې مراد دې

﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَا﴾ دا زجر دې په انکار د قرآن سره او ترغيب الى القرآن ذکر کيږي چې مونږ په دې
قرآن کښې مختلف قسم احکامات وعد، وعيد او د عبرت نمونې، او دلائل د توحيد بيان کړې دى
خو بيا هم دا بد بخته کفار تنه انکار کوي، پکار ده چې په دې ايمان راوړي وې خو دوئ په ځائ د ايمان
انکار کوي او مراد د ﴿صَرَّفْنَا﴾ نه بيانه ول دې په مختلفو وجوهو سره او مراد د ﴿كُلِّ مَثَلٍ﴾ نه
هر مقصد او هر معنى او عبرتونه، احکام، وعد او وعيدونه دې. او تعبيرتنه په مثل سره ځکه

اوشوچې لکه څرنګې مثل مشتمل وي په حسن اوغرابت اوندرت باندې دغه شان قرآن مجيد الفاظ اومضامين هم مشتمل دي په فصاحت اوبلاغت اوپه ندرت باندې. من کل معنی هو کالمثل في غرابته وحسنه(کشاف).

﴿وَقَالُواْ لَن ﴾داشکوه ده په طلب کولودفرمائش معجزو باندې اوزجردې په سوالونو تعنتاً اوضداًباندې وروستو دبيان اعجاز قرآن نه، چې دوئ به حضورﷺ ته وئيل چې څوپورې تازمونږمطالبات نوي پوره کړي نومونږ په تاباندې ايمان نه راوړو اوهغه فرمائشي معجزات چې پدې ځائ کښې ذکردي هغه اوه(۷) مطالبات دي(۱)په زمکه دمکې کښې چيني(چشمې)راويستل چې اوبه دهغې دائمي وي نه ختميدونکې وي(۲) ستالپاره دې دکهجورو يولوئ باغ وي چې په هغې کښې داوبونهرونه جاري وي(۳)اسمان په مونږ باندې ټکرې ټکرې کړه اوراوغورزه په مونږ باندې(۴) دخپل صداقت لپاره داسمان نه فرشتې مخامخ راوستل(۵) ستالپاره دسرو زرو کورکيدل(۶) زمونږ په مخامخ اسمان ته ستاختل(۷) زمونږ په نوم باندې دالله ﷻ دطرف نه دځان سره خط راوړل. اومطالبه کوونکې ددې رؤساء قريش اومکه وو لکه څرنګه چې دشان نزول نه معلوميږي، چې حضرت ابن عباسؓ فرمائي چې رؤساء مکه ابوجهل، وليدبن مغيره، زمعه ابن اسود، عتبه بن ربيعه، شيبه بن ربيعه اونوروکسانودحضورﷺ ته اطلاع اوکړه چې ته زمونږخواته راشه،حضورﷺ پدې خيال چې کيديشي دوئ ايمان راوړي نودوئ خواته لاړو ،نودوئ ورنه ټولونه اول مطالبه اوکړه چې ستاددې خبرواوددين ددعوت دوجه نه مونږ ته لوئ تکليف پيداشوېدې، نولهذا که ستامقصد حصول مال وي نومونږ به تاته چنده اوکړو اومال به درکړو اوکچرته ستامقصدحصول عزت وي نومونږ به تاخپل سردارجوړکړو اوکچرته حکومت دمقصدوي نومونږ به تاخپل حاکم جوړکړو اوکچرته په تاباندې څه جنات مسلط شوي وي نومونږ به ستاعلاج اوکړو ،حضورﷺ ددوئ داټولې خبرې تکراؤکړې اوورته ئې اوفرمائيل چې(ولکن الله بعثني اليکم رسولا وانزل علی کتابا وامرني ان اکون لکم بشيرا ونذيرا فبلغت لکم رسالات ربي ونصحت لکم ونصحت لکم فان تقبلوامني ماجئتکم به فهو حظکم في الدنيا والاخرة وان تردوه علی اصبرلامرالله حتی يحکم الله بيني وبينکم (ابن کثير)).

نودوئ بيادحضورﷺ نه دغه مذکوره مطالبې اوکړې چې تاته علم دې چې زمونږ علاقه مکه ډيره تنګه ده ګيرچاپيره تنه غرونه دي اومونږه ډيرغريبان يو اوزندګي زمونږه ډيره تنګه ده نوته

داغرونه دَدي ځائ نه لري کړه چې زمونږه داشهروسيع شي اوزمونږ لپاره نهرونه جاري کړه لکه ځرنګې چې په ملك شام کښې دي، اويازمونږ اباؤ اجداد راژوندي کړه چې په هغې کښې به خاص طور دَقريش جداعلى قُصى بن کلاب وي چې زمونږه دهغه نه تپوس اوکړو چې ته رشتني ئى که دروغژن ئى،حضور ﷺ ورته بيادغه مذکورجواب کړوچې(ولكنّ الله بعثنى اليكم رسولا الخ) نودوئ بيادفرشتې مطالبه اوکړه چې هغه دي راشي اوستاتصديق دي اوکړي اودسرو اوسپينو زرو دَخزانومطالبه ئې اوکړه نوحضور ﷺ ورته بيادغه مذکورجواب ورکړو. نودوئ مطالبه اوکړه چې په مونږ باندې اسمان را اوغورزوه لکه ځرنګه چې ستادعو ده چې الله ﷻ پدې قادردې. حضور ﷺ اوفرمائيل کچري الله ﷻ اوغواړي نوپه تاسوباندې به اسمان رااوغورزوي. نويوکس پکښې دااوئيل چې ځوپوري الله ﷻ اوفرشتې مخامخ زمونږه نوي راغلي نومونږه ستاتصديق نه کوو ،حضور ﷺ دَدوئ دَمجلس نه پاسيدلونوعبدالله ابن ابى اميه ورته اوئيل چې ستاپه خبرو باندې به مونږه هغه وخت يقين اوکړو چې ته زمونږه په مخامخ يوه سيړهئ اولګوي اواسمان ته اوخيژي اوبيازمونږپه نوم باندې يوکتاب(خط) راوړي اودتصديق لپاره ورسره ځلورفرشتې هم وي حضور ﷺ ددوئ دَدې خبرونه ډيرغمژن شو نوالله ﷻ دااياتونه نازل کړو(ابن کثير،قرطبى).

﴿قُلۡ سُبۡحَانَ رَبِّي ﴾دادوئ دَدغې مطالباتو جواب دې په ﴿سُبۡحَانَ رَبِّي ﴾کښې اشاره ده بطلان دَمطالباتو ددوئ ته لکه ﴿أَوۡ تَأۡتِيَ بِٱللَّهِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ قَبِيلًا ﴾وغيره شواوپه هل كنت الابشرا رسولا کښې اشاره ده عجز خپل ته اومقصدرسالت ته، كانه قال هل كنت الابشرا والبشرلاقدرة له على الاتيان بذلك اودامطالبات پوره کول ځماپه فرائض منصبى کښې داخل ندى لکه ځرنګه چې دنورو پيغمبرانو په فرائض منصبى کښې داخل نوو نوځه هم دهغوئ پشانته بشريم او﴿هَل﴾ نافيه دي اوتفصيل جوابات ددوئ ددې مطالباتو په نورو موضعو کښې ذکردې لکه سورة الانعام ايت(نمبر۷) اوسورة الحجر(ايت نمبر۱۴) وغيره شو.

وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَهُمُ الْهُدٰٓى اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَبَعَثَ اللّٰهُ

او ندي منعه کړي خلك ددې نه چې ايمان راوړي چې کله راغی دوئ ته هدايت مګر دی خبري چې دوئ واني آيا راولېږلو الله تعالیٰ

بَشَرًا رَّسُوْلًا ۝۹۴ قُلْ لَّوْ كَانَ فِي الْاَرْضِ مَلٰٓئِكَةٌ يَّمْشُوْنَ مُطْمَئِنِّيْنَ لَنَزَّلْنَا

بشر لره رسول، ته او وايه که چري وي په زمکه کښې ملائك چې ګرځيدلي او سيدونکي وي نو خامخا نازله کړي به وه مونږه

عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُوْلًا ۝۹۵ قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًۢا بَيْنِيْ

په دوئ باندې داسمان نه فرشته رسول،ته او وايه چې پوره دي الله جل جلاله ګواه «فيصله کوونکی» په مينځ خما

وَبَيْنَكُمْ اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًاۢ بَصِيْرًا ۝۹۶ وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ

او په مينځ ستاسو کښې بيشکه الله جل جلاله دې په بندګانو خپلو باندې خبرداره ليدونکی،او هغه څوك چې هدايت او کړي الله جل جلاله هغه ته

فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ

پس هغه په سمه لار روان وي[1] او هغه څوك چې بې لارې ئې کړي هغه پس هيڅ کله به او نه مومي ته هغوئ لره

اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِهٖ ؕ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ عُمْيًا

مددګاران سوا د الله جل جلاله نه، او راجمع به کړو مونږ دوئ په ورځ دقيامت کښې په مخونو ددوئ باندې چې ړانده به وي

وَّبُكْمًا وَّصُمًّا ؕ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا ۝۹۷

او چاړ اګان به وي، او کاڼره به وي،ځائ ددوئ دوزخ دې هر کله چې کمې شي لمبې نو زياته وو به مونږه دوئ لره لمبې داور.

ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا

دا اور بدله ددوئ ده په سبب ددې چې دوئ کفر کړې وو په ايتونو زمونږه باندې او وئيل به دوئ چې آيا چې کله شو مونږه

---

[1] جواب شکوی.

[1] تخويف اخروي.

عِظَامًا وَرُفَاتًا ءَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ خَلْقًا جَدِيدًا ﴿۴۸﴾

هډوكي اوذري ذري دخاورو آيامونږ به بیاپورته کړی شو په پیدایښت نوی سره

﴿وَمَا مَنَعَ ٱلنَّاسَ ﴾دازجرذكركيږي په انكاردبشريت سره درسول نه. اوشكو ده چي هركله دمخكني شكوى په جواب كښ اووئيلې شو چي﴿هَلْ كُنتُ إِلَّا بَشَرًا رَّسُولاً ﴾نومشركينو اوئيل چي مونږه په بشرباندى ايمان نه راوړو ځكه چي رسالت اوبشريت كښ منافات دي بشر رسول نشي كيدي، اومراد دَ ﴿ٱلنَّاس﴾نه مشركين دى، ﴿أَن يُؤْمِنُوٓاْ ﴾مفعول د ﴿مَنَعَ﴾دي او ﴿أَن قَالُوٓاْ ﴾ ورله فاعل دي او ﴿أَن ﴾مصدريه دي او ﴿قَالُوٓا ﴾په معنى دَقولهم سره دي او ﴿إِذْ جَآءَهُمُ ٱلْهُدَىٰٓ ﴾ جمله متعلقه ده په ﴿مَنَعَ﴾پوري اوظرف دي دَمنع لپاره اومراد په﴿ٱلْهُدَىٰ﴾ سره وحى اورسالت دي اى مامنعهم وقت مجئ الوحى ان يؤمنوا بالقرآن اوبنبوتك الاقولهم ابعث الله الخ(روح) اوياظرف متعلق دي په مفعول پوري چي ﴿أَن يُؤْمِنُوٓاْ ﴾دي نومطلب به ئى داشي مامنعهم ان يؤمنوا وقت مجئ القرآن الاقولهم الخ ﴿أَبَعَثَ ٱللَّهُ ﴾استفهام انكاري دي اويااستفهام تعجبى دي

﴿قُل لَّوْ كَانَ ﴾ داجواب شكو ده چي رسول دَمرسل اليهم دجنس نه پكاروي نده مرسل دَجنس نه،لپاره ددي چي مرسل اليهم سره ئى التفات وي اوهغوئ ورنه فائده حاصله كړي. نومرسل اليهم خوبشردي نولهذا رسول به هم ورته بشرراتلل پكاردى اوكچرته رسول بشرنوي بلكه دَجنس دَملائكونه وي اونورمحض وي نوهغه به بشرته څرنګی عملي تعليم وركړي ځكه چي هغه به خودَبشريت دَضروورياتونه پاك وي،﴿يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ ﴾ داقيد ځكه ذكرشو چي ملائك په زمكه كښ موجوددي خودانسان پشانتي په زمكه كښ مقيم ندي اوپه زمكه كښ ژوند تيره ونكي پشانته دَانسان ندي بلكه هغوئ اسمانونوته خيژي اوزمكه كښ عارضي دي

﴿قُلْ كَفَىٰ بِٱللَّهِ﴾دا متعلق دي دَماقبل ﴿أَوْ تَأْتِيَ بِٱللَّهِ ﴾سره چي كفارو اوئيل چي الله ﷻ دي مخامخ راشي اومونږ ته دى اوائى چي دارسول دي نومونږ به اومنو نوجواب ئى اوشو چي الله ﷻ

خماتصديق كوي په خپل فعل سره چې خه دعوى دنبوت كوم او الله ﷻ ماته ظاهري او باطني امور چه خارق العادة دي عطاء كړي دي اوپه خپل مقصد كښې خه ورځ په ورځ ترقي كوم او تكذيب كوونكى ورځ په ورځ ناكامه كيږي نو دا الله ﷻ شهادت دې په رسالت خما باندې. ﴿شَهِيدًۢا بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ﴾ «شهيد» په معنى دگواه سره دې نومراد تنه معجزات اوفتوحات اوترقى عطاء كول دي.چې دا يوفعلي گواهي ده، او يامراد دگواهي نه علم دالله ﷻ دې. يدې خبره چې خه دالله رسول يم اوماتاسو ته تبليغ كړيدې اوتاسو خماتكذيب كړيدې ﴿إِنَّهُۥ كَانَ بِعِبَادِهِۦ﴾ يعنى الله ﷻ په ظاهر اوباطن په ټولو خبرداره دې.نوپدې هم خبردې چې ستاسو انكار اوتكذيب محض عنادًا اوتعنتًا دې.

﴿وَمَن يَهْدِ ٱللَّهُ﴾ دا تخويف اخروى دې اوذكر ددوه جماعتونو كيږي هدايت يافته اوگمراه جماعت دالله ﷻ طرف ته رجوع كوونكې اوجذبه صادقه لرونكې خلكوته الله ﷻ دصحيح لارې راهنمائى كوې اودمعاندينوپه زړونو باندې مهر دجباريت ثبت كوې چې سمې لارې ته دراتللو توفيق ورته هم نه ميلاويږي.( واو) په ﴿وَمَن يَهْدِ ٱللَّهُ﴾ كښې استنافيه دې او من شرطيه دې په خپلې معنى باندې دې اوقرطبى فرمائى چې "من" په معنى د"لو"سره دې اودايت، مقصددادې كچرې الله ﷻ دوئ ته جبرا هدايت كولې نودوئ به هدايت موندلې وې اى، لوهداهم الله لاهتدوا(قرطبى) ﴿وَمَن يُضْلِلْ﴾ يعني كوم كس چې معاندوې اوپه اختيارسره ضلالت اختياره وي نوده لپاره څوك امداد كونكى نوي،نونسبت داضلال الله ﷻ ته خلقاً دې. اوددې ايت نه معلومه شوه چې خالق دهدايت اوضلالت الله ﷻ دې اونسبت ئې انسان ته كسباً دې. ﴿فَلَن تَجِدَ لَهُمْ﴾ (هم) ضميرجمع دې او ﴿أَوْلِيَآءَ﴾ هم جمع دې اومقابله دجمع دجمع سره فائده كوي انقسام الاحاد على الاحاد نومعنى ئې داشوه چې هيڅ يوكس لپاره به هيڅ څوك هم مددگارنوي اوجمعيت دضميرپه اعتباردمعنى دمَنْ سره دې اوپه ماقبل كښې ضميرمفرد ارجاع په اعتباردلفظ من سره وواومراد په ﴿أَوْلِيَآءَ﴾ سره هدايت وركونكى دوستان دي، اومراد په ﴿مِن دُونِهِۦ﴾ سره من دون اذنه دې يعنى پغيرداذن اوارادې دالله ﷻ نه دوئ ته څوك هدايت نشي وركولې څكه چې په هرشئ

پوري ارادې دالله ﷻ متعلقه کيږي نو که هدايت دَدوئ ممکن وی نوهغه به په اذن اواراده دالله ﷻ سره وي، اودَدوئ دَعناد اوتعنت دوجي نه الله ﷻ ددوئ په هدايت پوري خپله اراده نه متعلقه کوي نودوئ ته هدايت ميلاويدل ندی ممکن. ﴿وَنَحْشُرُهُمْ﴾ دا التفات دي دغيبت نه تکلم ته، ﴿عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ﴾ دا ذکردَبعض مواقفو دَحشردې اودا ياحمل دې په حقيقت باندی چې دوئ به په خپلو مخونو باندی به حشرته روان وي لکه په حديث کښ ذکردي چې نقل کړيدې امام بخاری اومسلم دَحضرت انس ابن مالک رضي الله عنه (انّ رجلا سال رسول الله ﷺ كيف يحشر الكافر على وجهه يوم القيمة قال انّ الّذى امشاه على رجليه فى الدنيا قادرعلى ان يمشيه على وجهه يوم القيمة(بخارى ومسلم)) چې يوسړی دَحضور ﷺ نه تپوس اوکړو چې څرنګه به دکافرحشر دَقيامت په ورځ په مخ باندی کيږي نوحضور ﷺ ورته اوفرمائيل چې هغه ذات چې دې ئی په خپوباندی ګرځوليدې هغه قادردې پدې چې دَقيامت په ورځ دې په مخ باندی اوګرځوي، اوابن عباس رضي الله عنه فرمائی چې دوئ به په اورکښ راخکلې کيږي به په مخونوباندی لکه سورة القمر(ايت نمبر۴۸) کښ دی چې يوم يسحبون فى النّارعلى وجوههم اوابن الانبارى فرمائی چې دامحاوره استعماليږي په تيزئ اوپه منډوسره تللولپيار لکه عرب وائی چې قدم القوم على وجوههم، اذا اسرعوا،نودَايت مقصد داشو نحشرهم مسرعين مبادرين،يعنی په تيزئ سره به ئی بوځو. ﴿عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا﴾ ، عميا دامنصوب دې بناء برحاليت حال واقع شوېدې دَضميرمجروره نه، اومراد دَړوندوالي،ګونګوالي اوکونړوالي نه ياحقيقة دې چې دابه ابتداء په وخت دَقيام دَقبوروکښ به وي بيابه ورته الله ﷻ سترګي،غوږونه اوژبه به ورکړي اودوئ به جهنم اوګوري اودهغه اوازونه به واوري(بحر) اوبعض فرمائی چې دااستعاره ده، چې دَشدت حيرت اوذهول دَوجي نه دوئ به مشابه شي دَړندو، ګونګويانو اودکنړوسره، اوبعض فرمائی چې دَعمی نه مراد دادې چې دوئ به په سترګوسره هغه څه به نه ګوري چې دوئ ورسره خوشحاله شي اودَصما نه مراد دادې چې دوئ به دَخوشحالئ خبري نه اوري بغيردَتکليف دَخبرونه اودَ﴿بُكْمًا﴾ نه مراد دادې چې دوئ به دَخان لپاره څه حجت نشي پيش کولې،

﴿كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَٰهُمْ سَعِيرًا﴾مراد په خبت سره هغه حالت دې چې دَدوئ غرمني اوغوښي دبدن اوسيزي نو داور په لمبوکښ به څه سکون راشي چې دَدوئ دَغرمنو اودغوښي اعاده اوشي لکه چې په سورالنساء (ايت نمبر۵۶)کښ دي. اوددي وجه نه ابن عباس ﷺ نه دَدي ترجمه داسي منقوله ده كلمافرغت من احراقهم فيسكن اللهب القائم عليهم قدرمايعادون(بحر) او(خبو) داور مستلزمه نده تخفيف لره په عذاب کښ دامکنه ده چې خبوداور دي راشي اوتخفيف دَعذاب دي نوي راغلي،نوددي وجه نه دَدي ايت تعارض نيشته دې دَ(لايخفف عنهم العذاب )سره ﴿زِدْنَٰهُمْ سَعِيرًا﴾مراد په زيات والي سره ياپه نفس اور دَجهنم کښ دې چې دهغې لمبی دَهغې سختي اودهغې گرمی به زياته شي بعض مفسرين فرمائی چې زياتوالي په نفس اورکښ مستلزم دې دي لره چې حالت اولی دَعذاب جهنم اسان وو په نسبت سره دي دويم حالت ته اوداعارض دې دلايخفف عنهم العذاب سره نوددي وجه نه علامه ابوحيان فرمائی چې مراد په زياتوالي سره زياتوالي دې په حيز دَهغوئ کښ اوجهنم به په خپل حالت باندی وي په هغه به څه قسم ردبدل نه راځي، يعني چې هركله دهغوئ غرمني اوغوښي نوي راشي نودغه نوي غرمني اوغوښي به دَعذاب احساس زيات كوي. په ﴿زِدْنَٰهُمْ سَعِيرًا﴾کښ مفسرينو نكته بيان كړيده چې الله ﷻ پدي قادردې چې دوئ غرمني اوغوښي دې داسي اونه سوزوي چې په دويم ځل اعاده پکښ راشي خوبياهم الله ﷻ دوئ ته داسي سزا وركوي چې غرمني اوغوښي به ئې سوزي اوبيابه ئې اعاده كيږي ځكه چې دَهرجرم سزا دهغې مشاكل وي، نودوئ هم دَاعادي بعدالفناء نه منكروو، نوځكه الله ﷻ دَدوئ غرمني اوغوښي به فناء كوي اوبيابه ئې اعاده كوي،

﴿ذَٰلِكَ﴾مشاراليه عذاب دې داعلت بيانيږي دَسزاء لپاره ﴿بِأَنَّهُمْ كَفَرُوا﴾باء سببيه ده اومراد په كفرسره ثبات علی الكفردې،اومراد په ﴿بِـَٔايَٰتِنَا﴾سره ايات قرانيه اونوردلائل دَتوحيد اورسالت اوقيامت دي ﴿وَقَالُوٓا﴾دادويم علت دې دَسزاء لپاره چې انكارعن البعث باندی دوئ شبه كوي چې آيامونږه خاورو سره خاوري شو اوذري ذري شو نوبيابه پيداكيږو، اومراد په ﴿خَلْقًا جَدِيدًا﴾سره اعاده مرةً ثانيةً ده.

اَوَلَمۡ يَرَوۡا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ قَادِرٌ عَلٰٓی

[1]آیانه گوري دوئ چې بیشکه الله ﷻ هغه ذات دې چې پیداکړی دي اسمانونه اوزمکه قادردی هغه باندې

اَنۡ يَّخۡلُقَ مِثۡلَهُمۡ وَجَعَلَ لَهُمۡ اَجَلًا لَّا رَيۡبَ فِيۡهِ ؕ فَاَبَى الظّٰلِمُوۡنَ

چې پیداکړي مثل ددوئ اومقرر کړي ئ ده لپاره ددوئ یوه نیټه چې نیشته شك په هغې کښې پس نه کوی ظالمان بل کار

اِلَّا كُفُوۡرًا ﴿۹۹﴾ قُلۡ لَّوۡ اَنۡتُمۡ تَمۡلِكُوۡنَ خَزَآٮِٕنَ رَحۡمَةِ رَبِّىۡۤ اِذًا لَّاَمۡسَكۡتُمۡ

سیوا د ناشکرئ نه[2] اوایه ته کچرې تاسو مالکان شئ دخزانو درحمت درب خمانو په دغه وخت به ئ خامخا بند کړئ تاسو

خَشۡيَةَ الۡاِنۡفَاقِ‌ ؕ وَكَانَ الۡاِنۡسَانُ قَتُوۡرًا ﴿۱۰۰﴾

دیرې دخلاصیدلو نه اودې انسان ډیرتنگ زړی

دادلیل عقلي دې په ثبوت دقیامت باندی چې الله ﷻ دانسان نه لوئی لوئ اجسام زمکي اواسمانونه پیداکړیدی نودانسان پشانتي معمولي جسم والامخلوق پیداکول الله ﷻ ته څه مشکل ندی بلکه الله ﷻ پدي قادردې چې دوباره ئی پیداکړي اودَدغي لپاره الله ﷻ یواجل اونیټه مقرره کړیده چې په هغې کښې هیڅ شك نیشته دې.

اواستفهام په ﴿اَوَلَمۡ يَرَوۡا﴾ کښې لپاره دَتوبیخ دې اومراد په رؤیت سره رؤیت قلبي دې چې په معنی دَعلم اوفکرسره راځي. ﴿عَلٰٓی اَنۡ يَّخۡلُقَ مِثۡلَهُمۡ﴾ خلق په معنی دَاعادې سره دې اومراد په ﴿مِثۡلَهُمۡ﴾ سره نفس ذوات دَدوئ دی ځکه چې په کلام عرب کښې مثل کله کله په معنی دَنفس ذات سره راځي، لکه چې وئیلې کیږي مثلك لایبخل ای انت لایبخل نومطلب داشو. چې کوم ذات په پیدائش دزمکي اواسمانونو باندی قادر دې په اعادې دَذوات دَانسانانو باندی اقدردې، اوبعض فرمائی چې مثل په خپلې متبادرې معنی سره دې اومقصد دَایت دادې چې الله ﷻ داموجوده

(1) دلیل عقلي براثبات حشر
(2) دلیل عقلي ششم براثبات توحید

انسانان فناء کړي اوددوئ په ځائې نور دَدوئ مثل پیداکړي لکه په سورة التوبه آیت نمبر۳۹،کښې دي لیکن داتوجیه دَسیاق دکلام سره مناسبه نده. ﴿ لَهُمْ ﴾واوعاطفه دي اوداعطف دي په ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا ﴾باندې اومعطوف علیه یعنی ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا ﴾متضمن وو معنی دتقریرلره.نولهذا ددي په معنی کښې هم تقریردې نومطلب دَایت دادې چې قدعلموا بدلیل العقل جعل لهم الخ اوبعض فرمائی چې واو استنافیه دې اوداجمله په سوال مقدره دَسائل کښې واقع شوېده ګویاچې سائل سوال اوکړو چې دادومره خلك مره شوېدي نوداولې دوباره ندي راژوندی کړې شوې؟ نوجواب اوشو چې وجعل لهم الخ (عثمانی) اوقرطبی فرمائی چې په ایت کښې تقدیم تاخیردې نواصل کښې داسې دې چې اولم یروا انّ الله الذی خلق السموات والارض وجعل لهم اجلا لاریب فیه قادرعلی اومراد په اجل سره نیټه دَمرګ ده اویادَبعث ده،﴿فَأَبَى ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾وضع دَاسم ظاهرپه ځائ دَمضمرباندې لپاره دَاشعاراوتنبیه ورکول دي پدې خبره چې انکاردَقدرت دَالله ﷻ نه دالوئی ظلم دې اومخرج عن الملة دې

﴿قُل لَّوْ أَنتُمْ ﴾داشپږم دلیل عقلي دې په توحید باندې چې متصرف اومختاراومالك دکل خزانو صرف الله ﷻ دې ځکه کچرې دَخزانومالك دَالله ﷻ نه علاوه مخلوقات اوګرځیږي نودوئ دَالله ﷻ درحمت خزانې په مخلوقاتو باندې به بند کړې اونه به ئې خرچ کوې دَدې یرې نه چې دابه ختمې شي.نومعلومه شوه چې مخلوقات استحقاق دَتصرف اواختیارنه لري په خزانو دَالله ﷻ کښې. ﴿لَّوْ أَنتُمْ ﴾لوحرف شرط دې اوحرف شرط داخلیږي په فعل شرط باندې،نه په اسم باندې نودَدې وجه نه ﴿أَنتُم ﴾فاعل دې دَفعل مقدرلپاره چې تفسیردهغې شوېدې وروستو فعل سره. نوتقدیردَعبارت داسې دې لوتملکون انتم ،اولوانتم تملکون خزائن رحمة ربی مقدم دې او﴿لَّأَمْسَكْتُمْ﴾تالی دې او﴿خَشْيَةَ ٱلْإِنفَاقِ ﴾ تعلیل دې دَتالي لپاره. او﴿وَكَانَ ٱلْإِنسَٰنُ قَتُورًا ﴾ دلیل دملازمي دې نودلیل په نمط دَقیاس استثنائي رفعي کښې داسې دې کچرې تاسو مخلوقات دَخزانومالکان وئی نولازم به وې امساك بوجه دَخشیة دَانفاق دَستاسونه لکن تالي باطل دې یعني امساك خونیشته دې مشاهدة. نومقدم ئې مثل دې یعني تاسومالکان نه ئې اودلیل دَملازمي دادې چې انسان فطری طوربخیل اوحریص،تنګ زړې دې اوهرکله چې انسان مالك نه شو

باوجود دعلم اوعقل نونورمخلوقات په طريقه اولی سره مالکان نشي گرځيدې دا ايت صريح رد دې په هغه خلکو باندی چې اولياء الله يادانبياؤ کرامو ﷺ نه امداد غواړي.

وَلَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسٰى تِسۡعَ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ فَسۡـَٔلۡ بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ

[1]اوپه تحقيق سره ورکړي وي مونږه موسیٰ ﷺ ته نهه معجزات واضحه پس تپوس ئی اوکړه دبنی اسرائيلو

اِذۡ جَآءَهُمۡ فَقَالَ لَهٗ فِرۡعَوۡنُ اِنِّىۡ لَاَظُنُّكَ يٰمُوۡسٰى مَسۡحُوۡرًا ۝

هرکله چې راغی (موسیٰ ﷺ) دوئ ته پس اوئيل ده ته فرعون بيشکه ځه گمان کوم په تاباندی اې موسیٰ ﷺ دجادو کړې شوی.

قَالَ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَاۤ اَنۡزَلَ هٰٓؤُلَاۤءِ اِلَّا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ بَصَآئِرَ‌

اوئيل موسیٰ ﷺ په تحقيق سره پوهه ئی ته چې ندی نازلې کړي دامعجزې مگررب داسمانونو اودزمکي واضح دلائل

وَاِنِّىۡ لَاَظُنُّكَ يٰفِرۡعَوۡنُ مَثۡبُوۡرًا ۝ فَاَرَادَ اَنۡ يَّسۡتَفِزَّهُمۡ

اوبيشکه ځه گمان کووم په تاباندی ا ې فرعونه دهلاك کړې شوې پس اراده اوکړه فرعون چې اوباسي دوئ له

مِّنَ الۡاَرۡضِ فَاَغۡرَقۡنٰهُ وَمَنۡ مَّعَهٗ جَمِيۡعًا ۝ وَّقُلۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِهٖ

دزمکي (دمصرنه) پس غرق کړومونږه دې اوهغه خوك چې دده ملگری ووټول، اواوئيل مونږه ورستو (دغرق کولو) دهغه نه

لِبَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ اسۡكُنُوا الۡاَرۡضَ فَاِذَا جَآءَ وَعۡدُ الۡاٰخِرَةِ جِئۡنَا بِكُمۡ لَفِيۡفًا ۝ وَبِالۡحَـقِّ

بنی اسرائيلوته چې اوسيږئ تاسوپه زمکه کښې پس هرکله چې راشي وعده داخرت رابه ولومونږ تاسو گډوډ (جمع)[1] اوپه حق سره

اَنۡزَلۡنٰهُ وَبِالۡحَـقِّ نَزَلَ‌ ؕ وَمَاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِيۡرًا ۝

نازلول شروع کړيدی مونږه ددې قرآن اوپه حق سره نازل شوېدې اونه ئی ليږلې مونږه ته مگرزيری ورکوونکی اويره وونکی

---

(1) پنځم ايت معجزه

(1) التفات بسوئ اصل مکه.

﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا﴾ دا پنځم ايت معجزه دې او متعلق دې ياد ابتداء دسورت سره چې ﴿ سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ ﴾ دې مقصد دادې چې لکه څرنګه مونږه حضرت موسیٰ ﷺ ته نهه (۹) معجزې ورکړې وې لېاره ددې چې فرعون اودهغه قوم ئې تصديق اوکړي او ايمان راوړي خوهغوئی تکذيب اوکړو نو الله ﷻ هلاك کړل، نودغه شانتې ای مشرکين مکه! که تاسو ددې معجزې کتلونه ورستو ايمان رانوړئ نو تاسو به هم هلاك کړې شئ، اويامتعلق دې د سنة من قد سره او مقصد دادې چې لکه څرنګې فرعون موسیٰ ﷺ اودهغه قوم دمصرنه په وتلوباندې مجبوره کړو نوخپله هم پاتې نشو، دغه شانتې مشرکين مکه حضور ﷺ په هجرت باندې مجبوره کړو نودوئی به هم ډيروخت په مکه کښې پاتې نشي، ﴿تِسْعَ ءَايَٰتٍ﴾ تنوين په آيت کښې لپاره دتعظيم دې اومرادتنه هغه نهه (۹) لوئی لوئی معجزې دی چې په ژوند د فرعون کښې موسیٰ ﷺ ته ورکړې شوېدی. ورنه هسې خو د موسیٰ ﷺ معجزې د نهو (۹) نه زياتې وې.

په تعين د آيت کښې دعلماؤ مختلف اقوال راغليدی غوره قول دادې چې اوه (۷) هغه دی چې سورة اعراف کښې ذکردی، قحط، ميووکښې کمی، طوفان، ملخان، سپږئی، سينخخي اووينه مسلط کول او بله يد بيضاء او عصاء ده، داقول دعکرمه او مجاهد او دحضرت عطاء دې، او ضحاك دابن عباس ﷺ نقل کړيدی چې نهه معجزات عصا، يد بيضاء، دژبې لکنت ختميدل، انفلاق دبحر، طوفان، ملخان، سنخخي، سپږئی اووينه دی او څوك پکښې دطمس (دصورتونو مسخ کيدل) اضافه کوي، څوك پکښې دکوه طور او چتيدل اضافه کوي نوخلاصه داده چې دسورة اعراف کښې مذکور پنځه معجزي (فارسلنا عليهم الطوفان الخ) اتفاقي دی اوداباقي اختلافي دی، اوبعض مفسرينو د ﴿تِسْعَ ءَايَٰتٍ﴾ نه مراد نهه احکام مرادکړيدي چې هغه مذکوردی په حديث دصفوان بن عسال ﷺ کښې چې ذکرکړيدې امام ترمذی ﷫ اونسائی او ابن ماجه په خپلوسنن کښې چې يو يهودی بل يهودي ته اوئيل چې څه لاړشودې نبی ته اوتپوس تنه اوکړو، نوهغه بل ورته اوئيل چې نبی مه وايه ګني ده سترګي به څلورشي (ډيرخوشحاله به شي) دوئی راغلل نبی ﷺ ته اويوښتنه ئی اوکړه ددې ايت ﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَىٰ تِسْعَ﴾ په باره کښې نوحضور ﷺ ورته جواب کښې اوفرمائيل چې (لاتشركوا بالله شيئا، ولاتزنوا، ولاتقتلوا النفس التى حرم الله الابالحق ولاتسرقوا، ولاتسحروا، ولاتمشوا ببرئ الى سلطان فيقتله، ولاتاكلوا الربا، ولاتقذفوا محصنة اوقال ولاتفروا من الزحف

(شك شعبة) وعليكم يامعشر اليهود خاصة ان لاتعدوا في السبت الخ) امام ترمذي دي حديث ته حسن صحيح وئيلی دی اوحافظ ابن کثیر رحمه الله پدي توجيه ردکړيدي خکه چي مدار سند پديکښ عبدالله بن سلمة دي اودهغه په باره کښ حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلي دي چي صدوق الا نه ئي تغير کړاوودي وجه نه ابن کثير فرمائی چي شايد په ده باندی اشتباه شوېده اووهم ورته شوېدی اصل سوال چي کوم يهوديانو کړي وو نوهغه دلس (۱۰) کلماتو اوداحکاماتو متعلق وو چي کوم په حديث کښ مذکوردی نه ده نهه معجزاتو متعلق اودغه لس (۱۰) وصايا دقبيلی دحجت نه ندی اوپه ايت کښ ذکردنهه معجزاتودي چي هغه حجج اوبراهين وو په صدق دنبوت دحضرت موسی علیه السلام باندی اوعبدالله بن سلمه لپاره نورهم منکرروايات موجوددی نولهذا داروايت هم دمناکيردعبدالله بن سلمه نه دي نودابن کثيردعبارت خلاصه داده چي دايت سياق اوسباق پدي دلالت کوي چي مراد پدي ايت کښ نهه معجزات دي نه هغه لس وصاياچي کوم په تورات کښ ذکردي.ليکن دراوي نه التباس شوېدي نوهغه کلمات عشره په ځائی تسع ايات ذکرکړو.ليکن دابن کثيردارد محل نظردي ځکه چي ددي روايت ټول راويان ثقه دي.هرچي دي عبدالله بن سلمه نو هغه نه مطلقاضعيف دي اونه ئی مطلقاحافظه خرابه وه بلکه دکبرسني دوجي نه ئی په حافظه کښ تغيرراغلي وو اوددغه شانتي راوي په باره کښ دمحدثينورائی داده چي قبل التغيرروايات دده مقبول وي لکه اسحق سبعي وغيره شوباقی داتوجيه دسياق دايت نه مخالفه کيدل هم دليل دنکارت ندي ځکه چي ممکنه ده چي دادي جواب علی اسلوب الحکيم وي چي معجزات دومره ضروري ندي لکه څومره چي لس احکامات ضروري دي. والله اعلم بالصواب.

﴿فَسْئَلْ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ﴾خطاب حضور صلی الله علیه وسلم ته دي اومراد په سوال سره سوال لپاره داستفادي دعلم ندي، بلکه لپاره داستشهاد اودتقريردصدق دي، چي دابنی اسرائيل به هم ستاسره موافقت اوکړي چي کوم ته دغيبی نه خبرورکوی دوئی ته. اوبعض مفسرين فرمائی چي خطاب حضرت موسی علیه السلام ته دي اوبنابرقانون شيخ رضی چي کله هم امرحکايت وي دماضي نه نو قلنا به ورسره مقدروي نوتقديردعبارت به داسي شي فقلناله ﴿فَسْئَلْ﴾او ﴿بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ﴾مفعول ثانی دي داسئل لپاره اومفعول اول چي فرعون دي محذوف دي اواسال په معنی داطلب سره دي ای اطلبهم منه لتذهب هم الی الشام(جمل)اوپه يوقرائت کښ په صيغي دماضي سره راغليدي فسئل اوفاعل

دهغي لپاره هم موسی ﷺ دي ليکن غوره توجيه اوله ده. ﴿إِذْ جَآءَهُمْ﴾ دغوري اواولی توجيه مطابق دامتعلق دې په ﴿فَسْئَلْ﴾ پورې اوفسئل داپه مينځ کښ بطورجمله معترضه ذکرشوېده. اودنوروتوجيهاتومطابق ددې تعلق دقلنامقدرسره دې يعنی قلنا اذجاءهم.انّی لاظنك ياموسی مسحورا، ﴿مَسْحُورًا﴾ په معنی دساحرسره دې لکه مشؤوم په معنی دشائم سره دې. داقول دفرا دې يعنی ته په دې خپلو عجيبه معجزاتو اوافعالوکښ جادوګرئی ای ساحرا بغرائب افعالك (قرطبی)اويا ﴿مَسْحُورًا﴾ اسم مفعول خپلي معنی سره دې مقصد دادې چې په تاباندی سحرکړې شوېدې اودماغي توازن دې خراب شوېدې ځکه داسي خبري کوې. لکه په سورة الشعراء کښ دې(ان رسولکم الذی ارسل اليکم لمجنون) اوابن جريرطبری فرمائی چې ﴿مَسْحُورًا﴾ معنی ده چې تاته تعليم دسحردرکړې شوېدې. ﴿قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ﴾ داحضرت موسی ﷺ جواب دې فرعون ته چې ته هم پدې پوهه ئی چې داسحرندې بلکه دالله ﷻ دطرفنه په مااندی نازل کړی شوې معجزات دي ځمادصداقت لپاره اودخپل قدرت اظهارلپاره دلائل دي، اوهرچه دې سحرنوهغه خوبصائر نوي بلکه تخيل وي حقيقت نوي، اومشاراليه د﴿هَٰٓؤُلَآءِ﴾ لپاره ﴿تِسْعَ ءَايَٰتٍ﴾ دې ﴿بَصَآئِرَ﴾ جمع دبصيرة ده مراد تنه واضح دلائل دی يعنی داامورمذکوره هغه دلائل اومعجزات دی چې ځمادصدق لپاره الله ﷻ نازل کړيدي، مګرته ورنه عنادا انکارکوی اوتعبيرددينه په ﴿بَصَآئِرَ﴾ سره ځکه اوشو چې فرعون دغي معجزاتو ته سحروئيلی وو اوسحرتخيل وي نودهغې په جواب کښ بصائرذکرشوچې داتخيلات ندي بلکه حقيقت دې چې عصاء په ماراندی بدليږي داصرف داسې نده چې ناظرينوته مارښکاري اونورپه حقيقت کښ لرګی دې بلکه الله ﷻ ماهيت دلرګي په ماهيت دمارسره بدل کړو اوددي فرق په اعتبارسره دساحرانو دسحرلپاره کلام داسي راوړي شوېدې چې يخيل من سحرهم انهاتسعی(طه ۶۶)اودموسی ﷺ عصاپه باره کښ الفاظ داسي راوړی شوفاذا هی حيّة تسعی(طه ۲۰)، ﴿وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ﴾ ظن په معنی ديقين سره دې ځکه چې ظن دموسی ﷺ په داسې علاماتوباندی مبنی وو چې هغه مفيدديقين وو په خلاف دظن فرعون نه ځکه چې هغه دادله قطعيه مخالف وو نوځکه دهغه ظن باطل وو ﴿مَثْبُورًا﴾ دثبرنه، دې په معنی

دمحوس عن الخيرسره. هلاك شوي ته. ناقص العقل ته اوملعون ته هم ونيلي كيږي. ﴿فأراد﴾ ن چه
ظلم ذكركيږي دفرعون چې سبب دعذاب اوگرځيدو دده لپاره چې موسى ﷺ ودهغه بني
اسرائيل نى دمصرنه اوباسلو باندى مجبور كړو نوالله ﷻ فرمائي چې دغه فرعون ودده ملګري
مونږه غرق كړل. ﴿أن يَسْتَفِزَّهُم﴾ دادليل شودمخكښ تيرشوي ايت لپاره چې ﴿وإن كادوا
لَيَسْتَفِزُّونَكَ﴾ كچري اى مشركين مكه! تاسوحضور ﷺ دمكي نه اوباسئ نوتاسوبه هلاك شئ
لكه څرنګې چې فرعون موسى ﷺ اوباسلو باندى مجبوره كړو نومونږه غرق كړو ﴿مِنَ الأَرْضِ﴾
مرادتنه يازمكه دمصرده اويا تنه مرادټوله زمكه ده اودټول زمكي نه اخراج كنايه ده دقتل
دهغوئى نه استصالا

﴿فَأَغْرَقْنَهُ﴾ دامرتب دې په ماقبل ﴿فَأَرَادَ﴾ باندى يعنى دوئ دموسى ﷺ اودبنى اسرائيل
استفزازكولو اودقتل منصوبى ئى جوړه ولي نومونږه ددوئي استفزازاوكړو په غرق جميعا سره
(روح).

﴿وَقُلْنَا مِنْ بَعْدِهِ﴾ داذكردانعام دې په بنى اسرائيلوباندى چې دفرعون دغرق كولونه پس
مونږه بنى اسرائيلوته اوئيل چې تاسوپه مصر اوشام كښ په اطمينان اوسكون سره ژوندتيره وئ.
اوځماپه هداياتوباندى عمل كوئ اوداحكم وئيل په واسطه دموسى ﷺ سره وو، اوضميردبعده
راجع دې مفهوم دفعل سابق ته چې اغراق دې اواغراق مشتمل دې په فرعون اودهغه په قوم په
ټولوباندى نوافراد دضميرپه اعتباردمفهوم داغرقنه اخ سره دې.

﴿اَسْكُنُوا الْأَرْضَ﴾ مرادتنه يامصر دې اوياشام دې اويامطلقا زمكه ده اوپديكښ تسلي ده
حضور ﷺ اوصحابه مهاجرينوته چې څرنګې بنى اسرائيلوته الله ﷻ غلبه وركړه اوفرعون ئى
هلاك كړو اوبنى اسرائيل ئي هلته ابادكړل دغه شانتي ستاسو دشمن به هم الله ﷻ هلاك كړي
اوتاسو به په مكه كښ ابادكړي اودسكون اواطمينان ژوندبه نصيب كړي.

﴿فَإِذَا جَآءَ وَعۡدُ ٱلۡأٓخِرَةِ﴾ مرادتنه ورځ دَقیامت ده چې په دنیاکښې زندګي تیره ونی خو قیامت وعدي نه مه غافله کیږئ، ﴿لَفِيفًا﴾ دااسم جمع ده ونیلې کیږي هغه جماعت ته چې دَمختلفوقبائلونه وي مقصد دادې چې دقیامت په ورځ به تاسوټول جمع کیږئ که شقي وي یاسعید ،مؤمن وي که کافر،هلاك شده وي یانجات یافته اوبیابه اصل اودائمی فیصله به هلته کیږي، ﴿وَبِٱلۡحَقِّ أَنزَلۡنَٰهُ﴾ ماقبل کښې دَحضرت موسی ﷺ معجزات بیان شو نوپدې ایت کښې ترغیب الی القرآن ذکرکیږي چې دادَحضورﷺ لویه علمي معجزه ده چې نزول دَدې قرآن په حق سره شوېدې اوپه حق سره زمکې ته رسیدلې دې په مینځ کښې پکښې هیڅ قسم تبدیلي نده کړې شوې نومراد په ﴿وَبِٱلۡحَقِّ﴾ سره په دواړوموضعینوکښې محفوظ کیدل دې دَتغیر اوتبدیل نه اودشیطانو دَرصدنه «روح» اوبآء په دواړو موضعینوکښې لپاره دَملابست ده اوبعض مفسرین فرمائی چې مراد په ﴿وَبِٱلۡحَقِّ﴾ سره حکمت الهیه دې چې مقتضی دې دَانزال دَ قرآن لپاره، اومراد په دویم ﴿وَبِٱلۡحَقِّ﴾ سره عقائداواحکام شرعیه دی چې قرآن په هغې باندی مشتمل دې.نومطلب دَایت دادې چی نازل کړیدې مونږه داقرآن چې متلبس دې دهغه حکمت سره چې مقتضی دې دَانزال دَقرآن سره، اونازل کړیدې مونږه قرآن چې متلبس دې په عقائدو احکام سره ﴿إِلَّا مُبَشِّرًا﴾ دواړه منصوب دي بناء برحالیت ای حال کونك مبشرا للمطعین باالجنة ومنذرا للعاصین من النار.

| وَقُرۡءَانًا فَرَقۡنَٰهُ لِتَقۡرَأَهُۥ عَلَى ٱلنَّاسِ عَلَىٰ مُكۡثٍ وَنَزَّلۡنَٰهُ تَنزِيلًا ۝ |
|---|
| اوقرآن تقسیم کړیدې مونږه په حصولپاره ددې چې اولولې ته داپه خلکوباندی په دمه دمه اونازل کړیدې مونږه داقرآن په نازلولو سره. |
| قُلۡ ءَامِنُواْ بِهِۦٓ أَوۡ لَا تُؤۡمِنُوٓاْ ۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ مِن قَبۡلِهِۦٓ |
| ته اوایه ایمان راوړئ تاسوپدې قرآن اوکه ایمان نه راوړئ، [1] بیشکه هغه کسان چې ورکړې شوېدې ورته علم مخکښې ددې قرآن نه |

(1) سوم دلیل نقلي برتوحید ازمؤمنین سابقین.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا | يُتْلَىٰ | عَلَيْهِمْ | يَخِرُّونَ | لِلْأَذْقَانِ | سُجَّدًا | ۝ | وَيَقُولُونَ |
| هركله چي | اولوستلي شي | په دوئ باندي | پريوځي دوئ | په زنوباندى | سجده كوونكي | | اووائي دوئ |
| سُبْحَانَ | رَبِّنَا | إِنْ | كَانَ | وَعْدُ | رَبِّنَا | لَمَفْعُولًا ۝ | وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ |
| چې پاكي ده | درب زمونږه | بيشكه | ده | وعده | درب زمونږه | خامخا پوره كړې شوې | اوپريوځي په زنوباندى |

يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا ۝

چې ژاړي دوئ اوزياتوي دَدوئ عاجزي

﴿وَقُرْءَانًا﴾ داايت هم دَدي مخكني ايت سره متعلق دي اودَمنكرينو دَيو اعتراض جواب دي چي دوئ په قرآن باندى كولو، چي كچرته داقرآن دَالله ﷻ دَطرفنه نازل شوې وى نوپكارده چي دادي په يوځل نازل شوې وې، لكه څرنگه چي تورات په يوځل نازل شوېدي، دالږ لږ ولي نازليږي نومعلومه شوه چي داته دَځپل ځان نه جوړه وى؟ نوجواب اوشو چي دالږ لږ نازليدل مقتضىٰ دَ حكمت ده ځكه چي لږ لږ نازليدلو كښې مخلوقاتوته په حفظ كښې، اوعمل كولو كښې سهولت دي چي ته ورته په دمه دمه اولولي نودوئ به ئې يادكړي اوعمل به پري په اسانئ سره اوكړي او﴿وَقُرْءَانًا﴾ منصوب دي په فعل مضمرسره چي تفسيرئې ورستوفعل سره شوېدي نودادَقبيلې دَمااضمر على شريطة التفسيرنه دي اى فرقنا قرآنا، ﴿فَرَقْنَٰهُ﴾ دلته دوه قراته دي يوپه تخفيف سره چي دااكثرى دي اودويم په تشديدسره دي اودواړونه مراد تقسيم دَقرآن دي ايتونو اوسورتونه ته، اگرچه بعض مفسرين فرمائى چي دَتخفيف په صورت كښې مراد نزول دَقرآن دي لوح محفوظ نه اسمان دنياته اودَتشديدپه صورت كښې تقسيم اوتفريق دَقرآن دي سورتونو اوايتونوته،ليكن غوره خبره داده چي په دواړو صورتونوكښې تنه مراد تقسيم دي اونزول نجمادي ځكه چي ورستوورپسې ذكر دَ﴿لِتَقْرَأَهُۥ عَلَى ٱلنَّاسِ عَلَىٰ مُكْثٍ﴾ دي، ﴿عَلَىٰ مُكْثٍ﴾ دا صفت يادرسول لپاره دي چي خطاب ورته شوېدي په﴿لِتَقْرَأَهُۥ﴾ كښې نومكث داوصافودقارى نه شو ،چي قاري صفت

دادي چې هغه به قرآن په دمه دمه لولې اوياصفت دَمقروء لپاره دي چې قرآن دې يعنی حق دقرآن دادي چې په دمه دمه اولوستلې شي، ﴿وَنَزَّلْنَـٰهُ تَنزِيلًا ﴾ فرقنه دال ووپه نزول تدريجي باندی خوراجع وو سهل الحفظ اوفهم ته او﴿وَنَزَّلْنَـٰه ﴾ هم دال دې په نزول تدريجي باندی خوراجع دې حوادثو اومصالحوته يعنی سورتونه اوايتونه موجدا جدانازل کړيدی لپاره دَدي چې حفظ اوفهم کښ اساني وي اوتدريجي تدريجي نازل کړيدې لپاره دَدي چې دَحالاتومناسب هدايت تاسوته حاصل شي نولهذا تکرار نيشته دې، ﴿قُلْ ءَامِنُواْ بِهِۦٓ أَوْ لَا ﴾ دازجردې دَ منکرينولپاره. چې حقانيت اوصدق دَقرآن واضح شوېدي اوس که تاسوايمان راوړئ اوکه نه راوړئ ﴿أَو ﴾دَتسوي لپاره دې اوجواب دَدي جملي محذوف دې چې هغه فهوحق فی نفسه د (ابن کثیر) ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ﴾ دادريم دليل نقلي دې په توحيدباندی دَمؤمنينوسابقينونه يعنی دَيهود اونصاریٰ هغه علماء چې ايمان ئی قبول کړيدې دهغوئ حالت دادې چې کله هم دَقرآن ايتونه واوري نوپه سجده پريوځي اودَالله ﷻ تسبيح اوتقديس بيانه وي،نومراد په ﴿أُوتُواْ ٱلْعِلْمَ ﴾سره هغه علماء دَيهود اونصاریٰ ؤدي چې هغوئ به خپل کتابونه تلاوت کول مخکښ دَنزول دقرآن، اوپه حقيقت دَوحي باندی عالمان وو اودحضور ﷺ اوصاف ئی اوکتلوايمان ئی راوړلو،لکه عمروبن نفيل ورقه بن نوفل اوعبدالله بن سلام وغيره،﴿يَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ﴾خوررونيلې کيږي سقوط بسرعة په تيزئ سره غورزيدوته اولام په﴿لِلْأَذْقَانِ﴾ کښ په معنی دَ علی سره دې اواذقان جمع دذقن ده وئيلې کيږي څني ته اومجازا اطلاق ئی په ږيره باندی هم کيږي، اودغه شانتي اطلاق ئی مجازا په پوره مخ باندی هم کيږي، نومرادتنه دلته مخونه يعني تندې اوپوزه دې اودَدي وجه نه ابن عباس رضی الله عنه ترجمه کوي يسقطون بسرعة علی وجوههم(جصاص) اوپدې کښ اشاره ده زياتوالې دَخشوع ته چې دَخشوع دَوجي نه خپلې څني اوګيري زمکي ته نزدې کوي اودَدي وجه نه﴿لِلْأَذْقَانِ﴾ اووئيلې شو اوعلی الاذقان اونه وئيلې شو ،اوبعضی مفسرين فرمائی چې پديکښ اشاره ده مشقت اوچتولوته په حالت دَسجدې کښ په تندې اوپوزه باندی، چې دومره مشقت اوچتوونکې وي چې ګوياچې څني ئی دَزمکي سره ملصق کړې وي(روح)اوصوفيه کرام فرمائی چې مراد دَ ﴿لِلْأَذْقَانِ﴾نه دادې چې په

خله باندی څه وائی چې څني حرکت کوي اوبعض صوفیه کرام فرمائی چې مراد ترینه تعفیر اللحاعلی التراب دې لیکن دَتولوتوجیهاتو رجع کمال خشوع ته کیږي اوکه څوك اشکال اوکړي چې دومره اورد عبارت اوئیلې شو داسې ولې نه اوئیلې شوچې یسجدون؟ نو امام رازی رحمه الله فرمائی چې پدیکښې اشاره ده مسارعت اوجلدی کولوته په سجده کښې، یعني دَالله تعالی په عبادت اوسجده کښې دَسستئ نه کارنه اخلي، گویاخانونه غورزه وونکي وي، ﴿سُجَّدًا﴾ یعني دَالله تعالی دتعظیم اودَشکرلپاره سجده اداکوي چې سابقه کتابونوکښې کومه وعده دَرسول کړي وه دهغې ایفاء الله تعالی اوکړه اودوئی رسول الله صلی الله علیه وسلم اوموندلو اوپه هغه باندی ئې ایمان راوړلو . ﴿وَيَقُولُونَ﴾ یعنی په حالت دَسجدي کښې دَالله تعالی تسبیح بیانه وي دادلیل دې په جوازدتسبیح باندی په حالت دسجدي کښې، مسلم شریف کښې دَحضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چې (کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یکثران یقول فی سجوده ورکوعه سبحنك اللهم وبحمدك اللهم اغفرلی) اودَحضرت عقبه ابن عامر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چې لمانزل فسبّح باسم ربك العظیم،قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اجعلوها فی رکوعکم فلما نزل سبح اسم ربك الاعلیٰ قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اجعلوهافی سجودکم اودَحضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې عن النبی صلی الله علیه وسلم قال اذارکع احدکم فلیقل فی رکوعه سبحن ربّی العظیم ثلاثا، فاذا فعل ذلك فقدتم رکوعه،وذکرفی سجوده، سبحن ربی الاعلیٰ ثلاثا(ترمذی).

**فائده**: په حالت دَسجدي کښې دَحضور صلی الله علیه وسلم نه مختلف قسم تسبیحات مروي دي، دَجمهور فقهاؤ په نیزمسنون تسبیحات په رکوع کښې سبحان ربی العظیم دې اوپه سجده کښې سبحان ربی الاعلی دې کم ازکم درې درې ځلي، ځکه چې حضرت علي رضی الله عنه اوابن عباس رضی الله عنه اوعقبه ابن عامر رضی الله عنه نه مروي دی چې نورتسبیحات مخکښې دَنزول دَفسبح باسم ربك العظیم اودَسبّح باسم الاعلی نه وو(والتفصیل فی کتب الفقه).

﴿إِن كَانَ وَعْدُ﴾ ان مخففه عن المثقله دې اسم ورله ضمیرشان دې، اومراد په وعدې سره ارسال دَمحمد صلی الله علیه وسلم اوانزال دقرآن دې چې دَدوئ په کتابونوکښې پیشنگوئی شوې وه، ﴿وَيَخِرُّونَ﴾ دانوراوصاف ددوئ ذکرکیږي چې دَقرآن په اوریدلوسره دوئی باندی خوف الهي غالب شي

ژاړي، اوخشوع اوعاجزی نوره زیاته شي، او ﴿وَيَخِرُّونَ﴾مکرر ذکرشوعام مفسرین فرمائی چې داتکرار لوجي دَاختلاف دَسبب نه دې چې دَاولی سجدي لپاره سبب شکرکول وؤ په انجازدَوعدي باندی، اودویم وارسجدې سبب اوریدل دَقرآن اودهغې اثرات دي چې بکاء اوخشوع ده. لیکن حضرت شیخ نورالله مرقده فرمائی چې تکرارلوجي دبعدعهد دوصف اول نه دي اودَحضرت شیخ رائی زیاته الیقه ده دَمقام سره،ځکه چې اختلاف دَاسبابو حقیقة نیشته دې. ځکه چې دواړه مرتب دي په ﴿إِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ﴾باندی، اوبعض مفسرین فرمائی چې دَاول خرور نه مراد سجده ده اودویم وارخرورد نه مراد انحنا یعني سرټیټول دي دَژړالپاره. لیکن داتوجیه خلاف ظاهرده نولهذا دواړو کښې تنه مراد سجده کول دی.

**فائده**: (۱) حالت دَبکاء په فعل سره ذکرشواوحالت دَسجده په اسم سره ذکرشو وجه داده چې بکاء ناشی ده دَتفکرنه اوتفکرمتجددوي نوحالت بکاء هم متجدده ده نودَدي وجه نه دي سره مناسب فعل وو چې هغه په تجدد باندی دلالت کوي اوحالت دَسجو هروخت کښې متجدد نه وي ددې وجه نه مناسب ورسره اسم وو.

**فائده**:(۲) دقرآن وئیلو اوداوریدلو وخت کښې ژړَا مستحبه ده اوکه ژړانه راځي نودَژړا صورت اختیاره ول پکاردی عن سعدابن ابی وقاص ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ابکوا فان لم تبکوا فتباکوا(ابن ماجه) اودَالله ﷻ دَخوف اوخشیت دَوجي نه ژړا کول ډیرممدوح دی،په احادیثوکښې ډیره مدحه راغلیده، حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې فرمائی(قال رسول الله ﷺ لایلج النار رجل بکی من خشیة الله تعالی حتی یعود اللبن فی الضرع ولااجتمع علی عبدٍغبارفی سبیل الله تعالی ودخان جهنم) (مسلم، ونسائی)ترجمه: حضور ﷺ ارشاد اوفرمایه چې کوم سړی دَالله ﷻ دَخوف دَوجی نه اوژاړي هغه به جهنم ته نه داخلیږي ترڅوپوري پئ غولانځوته واپس نوي تلی(تعلیق بالمحال دې) اونه جمع کیږي په یومومن بنده باندی دَالله ﷻ دلاري دوړه (ګرد)اولوګی دَجهنم،یعنی په یومؤمن باندی دَالله ﷻ په لاره کښې خه دوړه(ګرد) لګیدلې وي نوپه هغه باندی دَجهنم لوګی حرام دې(۲)دَحضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې فرمائی چې سمعت رسول الله ﷻ یقول عینان لاتمسهما النارعین بکت من خشیة الله تعالی وعین باتت تحرس فی سبیل الله. ترجمه: یعنی مادَنبي ﷺ نه واوریدل چې فرمائیل ئی چې دوه قسمه سترګي دي چې هغې ته به دَجهنم اورنه رسیږي یوه هغه سترګه چې دَالله ﷻ دَخوف نه ئی ژړلې وي اودویمه هغه سترګه چې دَالله ﷻ په لاره کښې پهره ورکوي ویخه پاتي شي(۳)حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ

روایت دی فرمائي قال رسول الله ﷺ ما من عبد مؤمن يخرج من عينيه دموع وان كان مثل رأس الذباب من
خشية الله تعالى ثم تصيب شيئا من حر وجهه الا حرمه الله على النار (ابن ماجه) حضور ﷺ ارشاد وفرمایه
حضور ﷺ ارشاد وفرمایه چې ښځسته دي چې بنده مؤمن چې دهغه د سترګو نه د الله ﷻ د ويري
وځي دوجي نه اوښکي اوځي مګر الله ﷻ په دې بنده باندې دوزخ اور د جهنم حرام کړي
اوخاص طور اهل علم سره دا مقام او مرتبه زیات مناسبه ده او ددې وجه نه قرطبي فرمائي چې ((حق لمن
من توسم بالعلم وحصل منه شيئا ان يجري الى هذه الرتبة فيخشع عند استماع القرآن ويتواضع ويذل قرطبي
او ابن جرير طبري وغيره د عبد الاعلى التيمي رحمه الله قول نقل کړیدي ان من اوتي من العلم ما لا يبكيه لخليق
ان لايكون اوتي علما ينفعه(طبري)).

قُلِ ادْعُوا اللَّهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمَٰنَ ۖ أَيًّا مَّا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ

[1] اوايه ته چې بلنه کوئ تاسو يه نوم د الله ﷻ او يا بلنه کوئ په نوم د رحمان په هر نوم سره چې بولئ تاسو نو دي لره دي هغه نومونه

الْحُسْنَىٰ ۚ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴿١١٠﴾

خائسته او مه پريه اوچت اوازمه کوه دعا خپله او مه پټ والي کوه پدي سره او طلب کړه به مينځ ددی کښې لار.

وَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُن لَّهُ

[2] او ته اوايه چې ټول صفات دالوهيت خاص الله ﷻ لره دي هغه ذات دي چې نه ئی دي نيولی خوک ولد بچی او نشته هغه لره

شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُن لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ ۖ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا ﴿١١١﴾

څوک شريك په بادشاهئ کښی او نشته هغه لره څوک دوست مددګار، دوجي دعاجزئی نه اولوئی وايه دهغه په لوئی وئيلو سره

﴿قُلِ ادْعُوا اللَّهَ﴾ دا په اخيرکښی دعوی دسورت ذکرکيږي اودمشرکينو دیوسوال جواب
ذکرکيږي حضور ﷺ په حرم کښی ناست وو دعائی کوله چې ياالله يارحمن يارحيم

(1) خلاصه واعاده دعوی سورت

(2) بمنزله علت برای قل اول





نو مشرکینو اوئیل چې مونږه دَډیرو معبودانو دَعبادت نه منع کوي اوخپله دډیرومعبودانو عبادت کوي نودهغې په جواب کښې داآیت نازل شوچې په اسماء حسنی کښې په کوم نوم سره تاسو دَالله ﷻ نه غوښتنه کوئی نوکولې شئ، ستاسو اختیاردې که یاالله وائی یایارحمن وائی تعبیرات اګرچه بدل بدل دي لیکن مراد تنه ذات واحده دې.

عباراتنا شتّى وحسنك واحد وكل الى ذاك الجمال يشير

نو او په ﴿أَوِ ٱدۡعُواْ﴾ کښې لپاره دَتخییردې اودعا کله په معنی دنداء یعنی بلنې سره راځي اوکله په معنی دَتسبیح اوتقدیس سره راځي، اوکله په معنی دَتسمیه (نوم ورکول)سره راځي. نوزمخشری فرمائی چې دعاپدې مقام کښې په معنی دَتسمیې سره دې اودعاچې کله په معنی دَتسمیه سره وي نودوه مفعولینوته متعدي کیږي خوکله کله مفعول اول حذف کړې شي لوجه دَاستغناء نه اکتفاءً بالمفعول الثانی، لکه دعوته زیدا نوبیامفعول اول ه ضمیرحذف کړې شو اوئیلې کیږي دعوت زیدا، اودعاء پدې ځائ کښې باب افعال دې نومفعول ثانی ته متعدی دې پواسطه دَحرف جریعنی باء سره،لکه دعوت والدی بزید، شو خوبیادلته باء حذف کړې شوه نومعنی دَقل ادعو الله شوه سموا معبودكم بالله اوبالرحمن، أيّاما تدعوا "ای" حرف شرط دې تنوین عوض دَمضاف الیه نه راغلیدې چې هذين الاسمين دي اوما زائده دَتاکیددَابهام د "ای" لپاره راغلیده اوجزاء دَدې جملې شرطیې لپاره مقدره ده چې فهوحسن ده. ﴿فَلَهُ ٱلۡأَسۡمَآءُ ٱلۡحُسۡنَىٰۚ﴾ داجمله واقع ده په موقع دَجزاء باندی اوداپه حقیقت کښې تعلیل دې دَماقبل جملې لپاره،یعنی دَالله ﷻ لپاره اسماء حسنی دی اومن جمله دهغې نه الله اورحمن هم دي.

**فائده**(۱) امام رازي رحمه الله فرمائی چې تخصیص دَدې دوه اسمینوپه ذکرسره دلالت کوي په اشرف والي دَدې دواړو په نورو اسماؤباندی، اوتقدیم دَلفظ الله په رحمن باندی لوجه دَاعظم والي نه دي اوامام غزالي رحمه الله فرمائی چې اسم دَالله ﷻ په تولو اسماؤباندی اشرف دې ځکه چې لفظ دَالله ﷻ دلالت کوي په تولوصفاتوکمالیوباندی په خلاف دَنورو اسماؤنه ځکه چې احاد دهغوئ دلالت کوي په احاددَمعنی باندی لکه علیم،قدیروغیره شو، نودَادَالله ﷻ لپاره اسم محضه دې اودَدې وجه نه اطلاق ئې په غیردَالله ﷻ باندی جائزندې نه حقیقة اونه مجازا اودغه شانتې لفظ دَرحمن هم دې چې اطلاق ئې په غیرالله ﷻ باندی جائزندې اګرچې مشتق دې دَرحمت نه.

**فائده ٢** اسمآء دَالله ﷻ توقیفی دی موقوف دی په ادله دشرع باندی اوادله دشرعي نه یودلیل اجماع هم ده نولهذا په کوم اسم چې اجماع منعقده شوې وي نواطلاق ئې په الله ﷻ باندی جائزدې، اودغه شانتی هغه اسماء اعلام چې موضوع وي په نورو لغاتو کښې نودهغې اطلاق په الله ﷻ باندی جائزدې لکه لفظ دَخدائ پاك یاپروردګاروغیره شو اوپدې تصریح کړیده صاحب دَروح المعانی چې فرمائی چې کوم اسماء اعلام چې موضوع وي په نورو لغاتوکښې نواطلاق ئې په الله ﷻ باندی کولوکښې دهیڅ چانزاع نیشته دې اوددې وجه نه صاحب دَنبراس(ص۱۷۰)کښې لیکي(قال بعض المحققین لانزاع فی جوازاطلاق اسمائه الاعلام الموضوعة فی اللغات ك خدا فی الفارسیة وتنکری بالترکیة الخ) نومعلومه شوه چې خداوغیره هم دَاسماؤ دالله ﷻ نه دی اګرچې دَاسماء الحسنی نه،ندی نولهذا پدې سره نداکول اودعاغوختل جائزدي.اوداقول دَبعضومعاصرو مفسرینوچې ای خدایه دَدعاپه وخت کښې چې خلك وائی دَدې ایت اودسورة ·اعراف دایت نه صریح مخالفت دې دَدې لفظ پریخودل ضروري دي قول باطل دې اوهرچې دې دلیل پدې قول چې لفظ خدا اګرچه معنی ده دمالك، لیکن تعبدپه معانوسره صحیح ندې الخ دلیل باطل دې ځکه چې مراددتعبد،نه کچرته مونځ وغیره وي نوهغه مراد زمونږ ندې اونه په هغې کښې دَچانزاع شته اوکچرته مراد دتعبدنه دعاوي نوداتحکم دې اومخالف دې دَاجماع نه اودویم داچې موصوف فرق ندي کړې په مابین دَاسماء اعلام اوهغه اسماؤوکښې چې ماخوذوي دَصفاتو اودَافعالونه،لفظ (خدا)دَاسمائ اعلام نه،دې لکه قول دَصاحب نبراس مصرح دې پدې اوموصوف دافهم کړیده چې دالفظ دَهغه اسمآؤنه دې چې ماخوذدې دَصفاتواوافعالونه لکه چې داواضحه ده دَقول دهغه نه. چې وائي( اګرچه دَمعنی په لحاظ سره اطلاق ئې په طریقه دَتوصیف اواخبارپه الله ﷻ باندی صحیح دې) اودَ ﴿قُلِ ٱدْعُواْ ٱللَّهَ ﴾مقصد دانه دې چې دعاصرف په اسمآء حسنی سره جانزه ده اوپه نورواسماؤسره جائزنده ځکه چې ایت نص دې په جوازدَتوسل باندی په اسماء حسنی سره په وخت دَدعاء کښې﴿وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ ﴾ داادب دَدعاذکرکیږي چې ډیرپه اوچت اوازسره هم دعامه غواړئ چې چیغي وهئ اونه ډیره آهسته یعني بالکل په چپه سره دعاغواړئ بلکه درمیانی لاره اختیاره وئ.نومراد په صلوة سره دعاده داقول نقل کړیدې ابن جریرطبری دَحضرت عائشه ؓ ،حضرت ابن عباس ؓ ،حضرت زبیر ؓ .حضرت ابوعیاض.

حضرت مجاهد رحمه الله، حضرت عطاء رحمه الله او دحضرت مکحول رحمه الله نه او دسیاق او سباق دکلام هم سره موافق داده چې مراد دصلوة نه پدې ځائې کښې دعاده او بعضې مفسرین فرمائي چې مراد په صلوة سره مونځ دې او عبارت په حذف دمضاف سره دې یعنې ولاتجهر بقراءة صلوتك. نو مطلب داشو چې مونځ کښې هر وخت کښې جهر قرات مه کوه او نه هر وخت کښې پټ قرائت کوه بلکه درمیانې لاره اختیار کړه، ځنې مونځونو کښې جهري قرائت کوه او په ځنو کښې سري قرائت. نو په ﴿وَلَا تَجْهَرْ﴾ سره مراد ماسپخین او مازیګر مونځونه دي او ﴿وَلَا تُخَافِتْ﴾ سره اشاره ده دماښام او ماسخوتن او و دسحر مونځونو ته او وجه دا بیان کړې شوېده چې حضور ﷺ به په مکه کښې مونځ کولو په اوچت قرائت سره نو کفارو به قرائت دقرآن او ریدلو نو قرآن په حق کښې او دالله ﷻ په حق کښې به ئې ردې بدې وئیلې نوددې وجه نه ماسپخین او مازیګر مونځونو کښې حکم داخفاء اوشولو. او دماښام په وخت کښې به په خوراك او څښکاك کښې مصروفه وو، او ماسخوتن وخت کښې به اوده وو او دسحر په وخت کښې به هم دخوب نه نو و بیدارشوې نوددې وجه نه پدې مونځونو کښې جهرا قرائت حکم راغلیدې، او دجمعې مونځ چونکه په مکې کښې نوو بلکه په مدینې کښې فرض کړې شوېدې نوددې وجه نه په هغې کښې هم جهرا قرائت حکم راغلیدې، او بعضې فرمائي چې ﴿وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ﴾ سره ټول جهر مونځونه مراد دي، او دایت مقصد دادې چې په جهري مونځونو کښې ډیر په اوچت اواز سره هم قرائت مه کوه او نه ډیر خفیه قرائت کوه بلکه درمیان آواز سره قرائت کوه، دا قول هم مروي دې دابن عباس رضي الله عنه نه فرمائي چې حضور ﷺ به په مکه کښې دارارقم کښې په پټه باندې مونځ کولو نو چې په اوچت اواز سره به ئې قرائت کولو نو مشرکینو به قرآن ته کنځلې کولې او چې رورو به ئې قرآن تلاوت کولو نو صحابه کرامو رضي الله عنهم نه به په اوریدلو کښې تکلیف وو نو دهغې په باره کښې داایت نازل شو چې ډیر په اوچت اواز سره هم تلاوت مه کوه چې مشرکین واوري او بیا کنځل کوي او مه ډیر په پټه تلاوت کوه چې صحابه ئې هم نه اوري بلکه متوسطه لاره اختیار کړه.

﴿وَقُلِ الْحَمْدُ﴾ دا دټول سورت لب لباب او خلاصه او دسورت مرکزي دعوی ذکر کیږي چې داڅومره دلائل عقلیه نقلیه او معجزي بشارتونه تخویفونه وغیره ذکر شول دادي لپاره چې نفي دشرك اوشي او وحدانیت ثابت شي، او پدې ایت کښې نفي دشرك شوېده په دري (۳)

اعتبار اتو سره (۱) ﴿لَمۡ یَتَّخِذۡ وَلَدٗا﴾ (۲) ﴿وَلَمۡ یَكُن لَّهُۥ شَرِیكࣱ فِی ٱلۡمُلۡكِ﴾ (۳). ﴿وَلَمۡ یَكُن لَّهُۥ وَلِیࣱّ مِّنَ ٱلذُّلِّ﴾ وجه داده چې شريك كله ادنى وي، كله مساوي وي اوكله اعلى وي. نو ﴿لَمۡ یَتَّخِذۡ وَلَدٗا﴾ سره نفى دَشريك ادنى راغله اوپه ﴿وَلَمۡ یَكُن لَّهُۥ شَرِیكࣱ﴾ سره نفي دَشريك مساوي راغله اوپه ﴿وَلَمۡ یَكُن لَّهُۥ وَلِیࣱّ﴾ سره نفي دَشريك اعلى راغله، اوبعض مفسرين فرمائى چې پديكښې په درې فرقوباندى رد دې په ﴿لَمۡ یَتَّخِذۡ وَلَدٗا﴾ سره رد راغى په نصارىٰ باندى چې هغوئ دَمسيح ابن الله قائل وو اوپه ﴿وَلَمۡ یَكُن لَّهُۥ شَرِیكࣱ﴾ سره رد راغى په مشركينوباندى. اوپه ﴿وَلَمۡ یَكُن لَّهُۥ وَلِیࣱّ مِّنَ ٱلذُّلِّ﴾ سره رد راغى په يهوديانو باندى ځکه چې (العياذبالله) دهغوئ عقيده وه چې حضرت يعقوب عليه السلام په كشتئ كښې په الله تعالى باندى غالب شوېدې، اودادرې صفات سلبيه مستلزم دى درې صفات ثبوتيه كماليه لره ﴿لَمۡ یَتَّخِذۡ وَلَدٗا﴾ مستلزم دې كامل الذات لره چې الله تعالى كامل الذات دې او ﴿وَلَمۡ یَكُن لَّهُۥ شَرِیكࣱ فِی ٱلۡمُلۡكِ﴾ مستلزم دې منفرد والي لره په خلاّقيت كښې چې الله تعالى په خلاقيت كښې منفرددې، او ﴿وَلَمۡ یَكُن لَّهُۥ وَلِیࣱّ مِّنَ ٱلذُّلِّ﴾ مستلزم دې منعم على الاطلاق لره چې الله تعالى منعم دې على الاطلاق، نوددې وجه نه ترتب دَحمد پرې راغى چې هرذات چې پدې اوصافو متصف وي نو هغه قابل دَحمدوي.

﴿وَلَمۡ یَكُن لَّهُۥ وَلِیࣱّ مِّنَ ٱلذُّلِّ﴾ قانون دادې چې كله نفي داخله شي په كلام مقيدباندى نونفي عام طورپردَقيدكيږي نه ده مقيد، نودَظاهردَايت نه معلوميږي چې (العياذبالله) دَالله تعالى لره ناصريامانع شته دې خودَوجې دكمزورئ نه نيشته دې،نفس ناصريامانع ورله شته دې نوجواب دادې چې دلته ﴿مِّنَ ٱلذُّلِّ﴾ كښې من صله دې ﴿وَلِیࣱّ﴾ لپاره، نومقصددَايت دادې چې الله تعالى كمزورى ندې چې محتاج وي ولى ناصراومانع ته (ابن كثير) اوبعض مفسرين فرمائى چې ﴿وَلِیࣱّ﴾ په خپلې معنى سره يعنى دوست سره دې اومن تعليليه دې اودايت مقصددادې چې الله تعالى لپاره دوستان لوجې دكمزورئ نه نيشته دې اوالله تعالى كه ځان لپاره يوبنده دوست نيسى نودامحض

اصطناع ده په شان دَعبد کښ، نه دَدي وجه نه چې الله ﷻ ورته محتاج دې. ﴿وَكَبِّرْهُ﴾ مراد پدې سره یا تکبیر تحریمه ده اودَآیت مقصد دادې چې کله براءت عن الشرك اوکړئ نو عملي طور اثبات دَتوحید اوکړئ اوپه تکبیر تحریمه سره مونځ شروع کړئ، اویا تنه مطلق تعظیم دَالله ﷻ مراد دې چې کله نفي دَشریك په اعتبارات ثلاثه سره اوشوله اوهیڅ قسم شریك الله ﷻ لره نیشته دې نو تاسو دَالله ﷻ تعظیم اولوئی بیان کړئ، اولفظ دَتکبیر ابلغ دې په معنی دَتعظیم کښ اوتقیدئی په مصدرمنکرسره اشاره ده دیته چې انسان ځومره جهداومبالغه اوکړی په عبادت تحمید ،اوتمجید دَالله ﷻ کښ خو دَالله ﷻ حق نشي اداکولې، دَخپل قصوراوعاجزئ اووصف دَعبدیت اظهارورته پکاردې دسورت ابتداء په تنزیه دَالله ﷻ سره شوې وه اواختتام ئې په تعظیم سره اوشو ،په ابتداء کښ پیغمبر ﷺ لپاره وصف دَعبدیت ذکرشوې وو اوپه اختتام کښ دَټولو انسانو عجزته اشاره شوله نومعلومه شوه چې عبادت لائق صرف الله ﷻ دې نو ثابت شو چې لااله الاالله.

تم تفسیر سورة بنی اسرائیل.

| رکوع ۱۲ | سورة الكهف مكية | آیتونه ۱۱۰ |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکي دي شروع کوم | |

## رقمها حسب التسلسل (۱۸) وحسب النزول (۶۹)

**سورة الكهف** مكي سورة دي سيوادَيوايت واصبرنفسك الخ نه(۲۸) په نيزدَ ابن عباس رضي الله عنه اومقاتل فرمائی چې اول اته(۸) ایتونه یعنی اول نه ترصَعِیۡدًا جُرُزًا پوري مدني دی اوباقی سورة مکي دې، سورة الكهف ۱۱۰، ۱۱۱ ايتونوباندې مشتمل دې په ترتيب قرآني كښ اتلسم(۱۸) اوپه ترتيب نزولي كښ يوكم اويايوم(۶۹)نمبرسورت دې،دَسورة النحل نه مخكښ اودَسورة الغاشية نه بعدنازل شويدې،زمانه دَنزول ئي دوراخيردَمكي معظمي دې، كل كلمات (۱۵۷۷) اوكل حروف ئي(۶۳۶۰)دي.

**وجه تسميه:** پدې سورت كښ چونكه واقعه دَاصحاب كهف ذكركيږي نوددي وجه نه داسورت پدې نوم سره موسوم كړې شو ،تسمية الكل باسم الجزء.

**فضيلت:**عن ابى درداء رضي الله عنه عن النبى ﷺ قال من حفظ عشرآيات من اول سورة الكهف عصم من الدجال (مسلم،ابوداؤد،نسائى،ترمذى).(۲)عن ابن عمر رضي الله عنه قال:قال رسول الله ﷺ من قراءسورة الكهف فى يوم الجمعة سطع له نورمن تحت قدمه الى عنان السمآء يضئ له يوم القيمة وغفرله مابين الجمعتين(ابن كثيربحواله ابن مردويه وقال ابن كثيراحسن احواله الوقف)(۳) عن ابى سعيدعن النبى ﷺ انه قال من قراء سورة الكهف فى يوم الجمعة اضاءله من النورمابينه وبين الجمعتين(ابن كثيربحواله بيهقي)(۴) عن على رضي الله عنه مرفوعا من قراء سورة الكهف يوم الجمعة فهومعصوم الى ثمانية ايام من كل فتنة، وان خرج الدجال عصم منه.

**حصه ثالثه**: په سورة الفاتحه کښې تفصيلاً ذکرشوې وو چې دَمضامينو په اعتبارسره ټول قرآن څلورحصوته منقسم دې اودهرې حصې ابتداء په الحمدلله سره شوېده اوله حصه دَسورة الفاتحه نه تراختتام سورة المائده پورې،دويمه حصه دَسورة الانعام نه تراختتام سورة الاسراء پورې اودريمه حصه ده چې ابتداء ئې دَدې سورت نه کيږي ترسورة سباپورې اوڅلورمه حصه دَسورت سباء نه تراخره پورې، په اولې حصې کښې زياده ترمضمون دَخالقيت بيان شوې دې.دويمه حصه کښې مضمون دَربوبيت بيان شوې دې، اوپدې حصې کښې مضمون دَ حاکميت يعنى تصرف اوبرکت بيانيږي چې دَټول کائنات حاکم اومالك صرف ذات دَالله ﷻ دې،ټول تصرفات دَهغه په اختيارکښې دې،په خپلواختياراتوکښې څه حصه يوپيغمبرﷺ ياولي يابل چاته نده ورکړې اوبرکاتواچوونکې هغه دې.

**ربط**: ربط اسمی دَماقبل سره دادې (۱)چې په سورة بنې اسرائيل کښې انسانانوته دَسبل الخيرذکروو چې(ان هذا القرآن يهدى للتى هى اقوم (ايت نمبر۹)) اوپه سورة الکهف کښې اشاره کيږي اسبابودَربط قلبي ته پدې هدايت باندې چې﴿وَرَبَطْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ﴾(ايت نمبر۱۴) (۲)اودغه شانتې تعليم ورکول کيږي دَدعاچې (واربط قلوبنا على هذا کمار بطت قلوب اصحاب الکهف)(۳) دغه شانتې په ماقبل کښې ذکردَواقعه اسراء وو چې هغه اوله درجه ده دکمالاتو اوپدې سورت کښې ذکردَنزول کتاب دې چې هغه غايه دَه دَدرجاتو دکمال (کبير باختصار)(۴) اودغه شان په سورة الاسرآء کښې مانع عادى دکفارودايمان ذکرشوې وو ومامنع الناس الخ (ايت نمبر۹۴) اوپدې سورة کښې مانع حقيقي ذکردې ومامنع الناس الخ (ايت نمبر۵۵).

**ربط مضمونی**: ربط مضمونى ئې دَماقبل سره په څووجوه سره دې(۱)چې ماقبل کښې مضمون دَخالقيت اوربوبيت ذکرشونوپديکښې وروسې مضمون دَحاکميت يعنى تصرف اوبرکت ذکرکيږي

(۲)په ماقبل کښې رددَشرك اوشو اودَحضورﷺ دَحقانيت لپاره دَلوئ عظيم الشان معجزې ذکروو نوپدې سورت کښې دفعيه دَشبهاتوده په توحيدباندې چې دکوموشبهاتودَوجې نه کفارپه شرك کښې مبتلاوو(۳)دَسورة بنې اسرائيل اختتام په حمدسره شوې وو اوددې سورة افتتاح په حمدسره اوشوه(۴) سورة بنې اسرائيل افتتاح په تسبيح سره شوې وه چې هغه متعلق بالذات والتخليه وه، اوددې سورة ابتداء په حمدسره کيږي چې هغه متعلق بالصفات والتحليه دې ځکه

چې دَتخليې نه وروستوتحليه پکاروي(۵) په سورة النحل کښې دَتوحيد نه تعبيرشوې ووپه روح سره دغه مضمون په سورة بني اسرائيل کښې دَعوې په صورت کښې سره دَدليله ذکرشو .قل ادعو الله الخ دعوه او وقل الحمدلله الذى الخ ورله په منزله دَدليل وو نوداتحقيق اوشو لو دَمسئله توحيد اوپه سورة الکهف کښې دغه دليل دعوه اوګرځيدله اوددې دَاثبات لپاره نوردلائل ذکرکيږي نوتدقيق دَمسئله توحيدکيږي په سورة الکهف کښې اوسورة مريم اوطه وغيره تتمات دى لپاره ددې سورت.

**دعوه سورت:** ددې سورت مرکزي دعوه اثبات دَتوحيددې په رد دَاقسام اربعو دَشرك سره،چې شرك فى العلم،فى التصرف،فى العبادة اوفى الدعاء دې، اونفي دَعلم غيب کيږي دَانبياء نه لکه موسىٰ اوخضر اودَاوليآء نه لکه اصحاب الکهف شو اودَملوکونه لکه ذوالقرنين شو.

**شان نزول:** دَحضرت ابن عباس نه دَدې سورت شان نزول داسې منقول دې چې قريش مکه نضربن حارث اوعقبه ابن ابى معيط مديني ته دَيهوديانوعلماؤته اوليږلوچې تاسودَهغوئ نه دَحضور په باره کښې تپوس اوکړئ چې دابرحق پيغمبردې اوکنه دې ځکه چې دوئ اهل علم دى، نودادوه(۲)کسان چې مديني ته راغلل اواحباريهود سره ميلاؤشول اوهغوئ ته ئې دَحضور ځني احوال بيان کړل،نوهغوئ ورته اوئيل چې تاسولاړشئ اودَدې مدعي نبوت نه درې تپوسونه اوکړئ که دَتولوجوابونه ئې درکړل،يابالکل جواب درنه کړونوپوهه شئ چې داصحيح پيغمبرندې اوکه دَځنوجواب ئې درکړواودَيوجواب ئې درنه کړونوبياصحيح پيغمبردې.

اول: تپوس تنه دااوکړئ چې مخکښې زمانه کښې يوڅوځوانان دَيوظالم بادشاه نه پټ شوى وو اوپه يوغارکښې ئې پناه اغستې وه دهغوئ واقعه څه ده؟؟

دويم: دَهغه کس دَحال تپوس تنه اوکړئ چې هغه دَمشرق نه ترمغربه پوري سفرکړې وو.اودريم: دَروح په باره کښې تنه تپوس اوکړئ چې ددې حقيقت څه دې؟؟

نوهرکله چې دادوه کسان واپس مکي معظمي ته راغلل اوکفاروته ئې داټوله واقعه بيان کړه نوقريش مکه دَحضور نه دغه درې سوالونه اوکړل،حضور ته ورته اوفرمائيل چې څه به ستاسودَسوالونوجوابونه صبادرکړم اوانشاء الله ئې اونه وئيلو چې دهغې دَوجې نه وحي کښې تاخيراوشو ،دولس ياپنځلس،ياڅلورويشت بناء براختلاف اومشرکينومختلف قسم غلطي خبري

کولې چې دَهغې دَوجې نه حضورﷺ ته به ډيراذيت رسيدلو .آخردَغه مذکورو ورځونه پس دَدوؤ سوالونوپه جواب کښې سورة الکهف نازل شو ، اودروح په باره کښې دَسورة بني اسرائيل (ايت نمبر۸۵ ويسئلونك عن الروح الخ)نازل شو.

**خلاصه**: داسورت يوتمهيد ،څلوروحصو اويوي خاتمي ته منقسم دې.دَسورت دَابتداء نه ترايت (نمبر۸)پورې تمهيدبيانيږي، (ايت نمبر۹ نه تر۴۹ )پورې دسورت اوله حصه.د(ايت نمبر ۵۰ نه تر۵۹)پورې دَسورت دويمه حصه اودَايت(نمبر ۶۰ نه تر۸۲)پورې دَسورت دريمه حصه اودَ(ايت نمبر۸۳ نه تر۱۰۱ )پورې دَسورت څلورمه حصه ذکرکيږي اوبياپه اخرکښې يعنې(۱۰۲نه تر۱۰۱)پورې خاتمه دَسورت ذکرکيږي.

اول تمهيدبيانيږي په (ايت نمبر۱)کښې﴿ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِىٓ ﴾دعوه دَتوحيدذکرکيږي په (ايت نمبر۲ ، ۳) ﴿قَيِّمًا﴾تا﴿فِيهِ أَبَدًا ﴾کښې مقصد دکتاب الله ذکرکيږي په انذاراوبشارت سره. په (ايت نمبر۴ ، ۵)﴿وَيُنذِرَ﴾کښې زجرذکرکيږي په اتخاذدَولدسره په ايت (نمبر۶)کښې﴿فَلَعَلَّكَ بَٰخِعٌ ﴾کښې حضورﷺ ته تسلې ذکرکيږي په ايت (نمبر۷، ۸ ) ﴿إِنَّا جَعَلْنَا ﴾تر ﴿صَعِيدًا جُرُزًا ﴾کښې تزهيدفی الدنيابيانيږي،بيادهغې نه وروستو دسورت اوله حصه ام حسبت الخ نه شروع کيږي پدې حصه کښې دَيوې شبهې اجمالي اوتفصيلي جواب اوځه متعلقات اوزجرونه اوڅلوراموږمتفرعه. اودرې(۳)امورمصلحه لپاره دَمنکرينوذکرکيږي.

په ايت(نمبر۹) ﴿أَمْ حَسِبْتَ ﴾تا(نمبر۱۲) ﴿أَحْصَىٰ لِمَا لَبِثُوٓا۟ أَمَدًا ﴾پورې دَشبهې مختصر جواب دې شبهه دکفارو دَطرف نه داسې کيده چې اصحاب کهف يوڅونوجوانان وو،درې سوه (۳۰۰)کالونه زيات وخته پورې په غارکښې صحيح سلامت پراته وو،دومره اوږدې مدې کښې دوئ ته څه قسم تکليف نوو رسيدلې، نومعلومه شوه چې دوئ مافوق الاسباب قدرت اودَطاقت مالکان اومتصرف وو اوددې وجه نه دوئ به اوه(۷)روتئ دَاصحابوکهفوپه نوم اويوه(۱) روتئ به نې دَهغوئ دَسپي په نوم نذرکوله،نومختصرجواب ئې داسې کيږي چې دَاصحابوکهف واقعه دَاللهﷻ دَقدرت دَنشانونه يوه نشانې ده، پدې کښې دَاصحابوکهف خپل څه تصرف اواختيارڅه دخل نيشته،دَظالم بادشاه نه تښتيدل، په غارکښې پناه اغيستل، اوده کيدو ته محتاج کيدل. په راپاسيدلوکښې محتاج کيدل اودَاللهﷻ نه ربط قلبي سوال کول داټول پدې دلالت کوي چې دوئ

دَالله ﷻ عاجزان،موحدان بندگان وو،بیادَایت نمبر۱۳، ﴿نَحۡنُ نَقُصُّ ﴾نه ترایت (نمبر۲۱، ﴿وَكَذَٰلِكَ أَعۡثَرۡنَا ﴾پوري ددي شبهي تفصيلي جواب دې، پهایت نمبر۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ﴿سَيَقُولُونَ﴾نه تر﴿وَٱزۡدَادُواْ تِسۡعًا ﴾پوري كښ زجربيانيږي په اختلاف كولوسره په تعيين دَعددكښ اوځه اداب اوبعث دَاصحاب كهف په غاركښ ذكركيږي، اودغه شانتي په ایت نمبر۲۲ تاآيت نمبر ۳۰، پوري ﴿قُلِ ٱللَّهُ أَعۡلَمُ ﴾نه تر﴿مَنۡ أَحۡسَنَ عَمَلًا ﴾ پوري څلورشپږ تفريعات ذكركيږي پدي واقعه باندې، بيادَايت نمبر۳۲،﴿وَٱضۡرِبۡ لَهُم مَّثَلًا﴾نه ترايت نمبر۴۴،﴿وَخَيۡرٌ عُقۡبًا ﴾ پوري اول امرذكركيږي لپاره دَاصلاح دَمنكرينوچې په كومي دنياباندې تاسې مغرورئې اودَالله ﷻ احكاماتونه مومخ گرځوليدې هغه فاني ده دابه ستاسونه واغستې شي اودنياكښ به دَدي دَوجه نه په عذاب كښ مبتلاشي په ایت نمبر۴۵، ۴۲، ﴿وَٱضۡرِبۡ لَهُم مَّثَلَ ﴾نه تر﴿وَخَيۡرٌ أَمَلًا ﴾پوري دويم امرلپاره دَاصلاح دَمنكرينوذكركيږي، چې دادنياانتهائې حقيره ده قابل ترجيح اخرت دې دهغې تيارې اوكړئ پهایت نمبر ۴۷، ۴۸، ۴۹، ﴿وَيَوۡمَ نُسَيِّرُ ٱلۡجِبَالَ ﴾نه تر﴿ وَلَا يَظۡلِمُ رَبُّكَ أَحَدًا﴾پوري دريم امرلپاره دَاصلاح دَمنكرينوذكركيږي كچرته دغې حقيردنياته تاسوترجيح وركړه نوپه آخرت كښ به داستاسولپاره باعث عذاب گرځي، اوبياحصه ثانى شروع كيږي په حصه ثانى كښ دَيوي شبهې جواب يوتخويف اخروي يوتخويف دنيوي اوڅلوررزجرونه ذكركيږي

**شبه**: شبه داكيده چې كفاروبه په ځني حالاتوكښ دَجناتونه استعانت غوختلونو الله ﷻ به دَخپل تكويني قانون مطابق هغه كارپوره كولو، اودوئ به دافهم كوله چې داكاردې جناتواوكړلونودهغوئ عبادت اودهغوئ په نوم باندې به ئې نذرونيازكولو،نوپهایت نمبر ۵۰، ۵۱، ﴿وَإِذۡ قُلۡنَا ﴾نه تر ﴿عَضُدًا﴾پوري ددې شبهې جواب ذكركيږي چې داشياطين ستاسوزاړه دشمنان دى ،دوئ به په مختلفوطريقوسره ستاسوعقيده خرابه وي، دوئ ستاسودوستان اومددگاران نشي جوړيدې، اوپه ايت نمبر۵۲، ۵۳، ﴿وَيَوۡمَ يَقُولُ﴾نه تر﴿مَصۡرِفًا﴾ پوري تخويف اخروي ذكركيږي مشركينوته اوايتنمبر۵۳ تا ۵۸، ﴿وَرَءَا ٱلۡمُجۡرِمُونَ ٱلنَّارَ ﴾نه تر﴿مَوۡئِلًا﴾پوري

څلورزجرونه ذکرکيږي،اوپه ايت «نمبر۵۹» ﴿وَتِلْكَ الْقُرَىٰ﴾کښ تخويف دنيوي ذکرکيږي
اوبيادسورت دريمه حصه شروع کيږي.

**په حصه ثالثه** کښ دَيوي شبهي جواب دي، شبه داسي کيدله چي حضرت خضر عليه السلام غيب
دان وو ځکه چي هغه څه امورغيبيه حضرت موسى عليه السلام ته بيان کړي وو.نولهذا عالم الغيب صرف
ذات دَالله تعالى ندي نوددي شبهي جواب لپاره دَايت«نمبر ۲۰ نه تر ۸۲» ﴿وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ﴾نه
تر﴿مَعِيَ صَبْرًا﴾ پوري دَحضرت موسى عليه السلام اودَحضرت خضر عليه السلام واقعه بيانيږي اوبيادَسورت
څلورمه حصه شروع کيږي. **په حصه رابعه** کښ دَيوي شبهي جواب اوتخويف اخروي ذکرکيږي

**شبه:** داسي کيدله چي الله تعالى ذوالقرنين ته لوئي طاقت اوقدرت ورکړي وو اوهغه
کارسازاومتصرف وولکه سفردَمغاربواومشارقو،بندل دَياجوج ماجوج شول، نوددي شبهي
جواب لپاره«ايت نمبر۸۳ تا ۹۸» ﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ﴾نه تر﴿وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا﴾پوري واقعه
دذوالقرنين بيانيږي چي ذوالقرنين ته بقدرضرورت ظاهري اسباب ورکړي شوي وو اومافوق
الاسباب يوڅيزباندي هم قادرنوو اوپه ماتحت الاسباب اموروکښ هم محتاجه وواوپه ايت
نمبر۹۹، ۱۰۰، ۱۰۱» ﴿وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ﴾نه تر ﴿لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا﴾پوري تخويف اخروي
بيانيږي اوبياخاتمه دَسورت شروع کيږي.

خاتمه مشتمله ده په تفريعاتواوپه زجراوتخويف بشارت اوپه خلاصي دَسورت باندي«ايت
نمبر۱۰۲، تا۱۰۸» ﴿أَفَحَسِبَ الَّذِينَ﴾نه تر﴿لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا﴾ پوري اوله تفريع ده دادَ اولي
شبهي په جواب باندي بالذات اودَدويمي شبهي په جواب باندي بالتبع متفرع ده چي دَالله تعالى
نيك بندګان کارساز اومتصرف ندي لکه اصحاب کهف شو نوجنات به څرنګه کارسازاومتصرف
شي اوپه «ايت نمبر۱۰۹، ۱۱۰» ﴿قُل لَّوْ كَانَ﴾کښ دويمه تفريع ده اوداتفريع دَدريمي شبهي په
جواب باندي بالذات اودَڅلورمي په جواب باندي بالتبع متفرع ده چي غيب دان صرف الله تعالى
دي بل هيڅ څوك ندي نولهذا متصرف هم فقط هغه دي اوبل څوك نيشته دي، اوبيادَسورت په
اخري جملي ﴿فَمَن كَانَ يَرْجُوا﴾کښ دَټول سورت خلاصه اولب لباب ذکرکيږي چي کوم کس په

اخرت كښ دالله ﷻ دملاقات اودهغه درحمت اميدواروي نوهغه دې نيك عمل كوي اوتوحيد داومني ،اصحاب كهف،حضرت خضر ﷺ ،جنات، ذوالقرنين دكارساز. متصرف نه كنړي اوشرك جلي اوخفي دخپل ځان بچ ساتي.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْۤ اَنْزَلَ عَلٰی عَبْدِهِ الْكِتٰبَ وَلَمْ یَجْعَلْ

[1] ټول صفات دخداى [2] خاص الله ﷻ لره دي هغه ذات چې نازل كړيدې په خپل خاص بنده باندې كتاب قرآن چې نه دى ګرځولي

لَّهٗ عِوَجًا ؕ۱ قَیِّمًا لِّیُنْذِرَ بَاْسًا شَدِیْدًا مِّنْ لَّدُنْهُ

پدې كتاب كښ هيڅ قسم كوږوالى، [3] سيدها برابردې لپاره ددې چې اويره وي خلك دعذاب سخت نه دالله ﷻ دطرف نه او

وَیُبَشِّرَ الْمُؤْمِنِیْنَ الَّذِیْنَ یَعْمَلُوْنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ اَجْرًا حَسَنًا ۙ۲

اولپاره ددې چې زيرې وركړي مؤمنانو ته هغه مؤمنان چې عملونه كوي نيك چې بيشكه لپاره ددوئ بدله خائسته ده

مّٰكِثِیْنَ فِیْهِ اَبَدًا ۙ۳ وَّیُنْذِرَ الَّذِیْنَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۗ۴

ديره به وي په هغې كښ هميشه. [4] اواويره وي هغه كسان چې وائي هغوئ نيولې دې الله ﷻ (ځان لپاره) ولد بچى

مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ وَّلَا لِاٰبَآئِهِمْ ؕ كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ

نيشته لپاره ددوئ پدې باندې هيڅ علم اونه پلارانو ددوئ لپاره .ديره لوئ ده داخبره (په قباحت كښ) چې راوځي

مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ؕ اِنْ یَّقُوْلُوْنَ اِلَّا كَذِبًا ۵

دخلو ددوئ نه. نه وائي دوئ مګرصرف دروغ (وائي).

---

(1) تمهيدبراى ازاله شبهات ودعوى توحيد

(2) موصول باصله علت ودليل

(3) علت نزول قرآن

[4] تخويف واشاره به شبهات اربعه

﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ دَدي ځائ نه دَقرآن دريمه حصه شروع كيږي چې دَسورة سباء تراخره پوري ده
نوځكه دَدي سورت ابتداء په ﴿اَلْحَمْدُ﴾ سره اوشوه اوپدي حصه كښ زياده ترمضمون دحاكميت
بيانيږي چې دَټول جهان مالك متصرف اومختارصرف دَالله ﷻ ذات دې. اوځوك ورسره هم پدي
كښ شريك نيشته دې. او ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ تمهيد دې اودعوه دَتوحيدده چې ټول صفتونه دَالوهيت چې
علم غيب اوقدرت كامله دي دا خاص دي په الله ﷻ پوري ﴿الَّذِيٓ اَنْزَلَ﴾ موصول سره دَصله نه
دليل دې چې الله ﷻ مستحق دَټولومحامدو ځكه دې چې په پخپل بنده (محمد ﷺ) باندې ئې
كتاب نازل كړيدې چې هغه مشتمل دې په اصلاح دَمعاش اومعاد باندې. اوپدي تعليل باندې
اشعارلپاره موصول ذكرشوپه ځائ دَوصف. ﴿عَلٰى عَبْدِهٖ﴾ هركله چې نزول دَقرآن يوه عظيمه
معجزه وه چې ټول مخلوقات دهغې دَمثل پيش كولونه عاجزه وو نوددي وجه نه دَحضور ﷺ لپاره
پدي مقام كښ وصف دَعبديت غوره كړې شولپاره دَدفع توهم دَالوهيت. اواضافت دَ(عبد) هاء
ضميرته لپاره دَتعظيم دَحضور ﷺ اولپاره دَتعظيم دَقرآن دي ﴿وَلَمْ يَجْعَلْ لَّهٗ﴾ واو حاليه دي
و (لام) په معنې دَ (في) سره دي اى لم يجعل فيه عوجا او دَادعوې توحيددَاول جزلپاره دليل دې يعنى
الله ﷻ عالم الغيب دي اوعلم غيب صرف صفت دَالله ﷻ دې ځكه چې داسې قرآن ئې په خپل
بنده نازل كړيدې چې په هغې كښ هيڅ كوږوالى نيشته دې دَفصاحت اوبلاغت په اعلى ترين
معياركښ دې بيان ئ بالكل واضح دې اودَمضامينوپه اعتبارسره كامل اوجامع دې نوداسې
كتاب نازلول صرف دهغه ذات نه ممكن دې چې علم دَهغه محيط الكل اوهغه عالم غيب وي،
وددويمې حصې (قدرت كامله) لپاره دليل﴿لِّيُنْذِرَ بَاْسًا﴾ سره ذكركيږي، او﴿عِوَجًا﴾ كوږوالى ته
وئيلې كيږي ددې استعمال دوه قسمه كيږي(۱) بكسرالعين او(۲) بفتح العين اكثرواهل لغت قول
دا دې چې بكسر العين هغه نقصان كوږوالى ته وئيلې كيږي چې معنوي وي اومدرك بالبصرنوي
وبفتح العين هغه نقصان ته وئيلې كيږي چې حسي وي اومدرك بالبصروي اوتنوين په
﴿عِوَجًا﴾ كښ لپاره دَتنكيردې يعنى هيڅ قسم نقصان پكښ نيشته دې نه لفظي اونه معنوي يعنى
فصاحت اوبلاغت خلاف ندې، په معانيو كښ څه تعارض اواختلاف نيشته دې او الله ﷻ طرف ته
دعوت وركولوكښ دَمقصدنه انحراف نيشته دې، اونه په ايت كښ دَمصلحت نه خروج شته

دي،اوبعض مفسرينو دَعوج ترجمه په مخلوق سره کړيده نود «وَلَمۡ یَجۡعَل لَّهُۥ عِوَجَا» معنی دچې داقرآن مخلوق ندي ځکه چې دَابن عباس‌ﷺ نه دَغيرذی عوج الزمر ۲۸ تفسيرپه غيرمخلوق سره منقول دي(خازن) ﴿قَیِّمًا﴾ داپامنصوب دي دَدي وجه نه چې فعل ورله مقدردي چې جعل دي اَی جعله قيما اوياحال دي دَ ﴿ٱلۡكِتَـٰبَ﴾نه اوياد‌َضميردَله نه اويابدل واقع شويدي دَ «وَلَمۡ یَجۡعَل لَّهُۥ عِوَجَاۜ» جملي نه اوقانون په بدل کښ دادي چې دي مقصود بالحکم وي اومبدل منه په حکم دَتنحي اوترك کښ وي، نومعني به ئې داسي شي چې الحمدلله الذ انزل علی عبده الکتب وجعله قیما(کبیر) بعض علماء فرمائی چې په ايت کښ تقديم تاخيردي اصل عبارت داسې دي انزل علی عبده الکتب قيما ولم يجعل له عوجا، ليکن غوره توجيه اوله ده او ﴿قَیِّمًا﴾ معني ده چې متصف دي په استقامت سره مضبوط مضمون والادي داسې کامل اوجامع دي چې موحدپه توحيدباندي کلکوي اودَمشرك شبهات دفع کوي، دَعدم اعوجاج اودَقيم مفهوم تقريبا يودي خوبياهم دَ «وَلَمۡ یَجۡعَل لَّهُۥ عِوَجَاۜ» نه ورستو ﴿قَیِّمًا﴾ذکرشووجه داده چې کله کله يوځيزقيم اواستقامت والا وي خومعمولي غوندي اعوجاج پکښ وي چې عام طورنه محسوس کيږي، نودَدي وجه په دواړواوصافوباندي تصريح اوکړي شوه امام رازي‌رحمه‌الله اوځني نورمفسرين فرمائی چې داصفت لپاره دَتاکيدندي بلکه لپاره دَتاسيس دي اودَدواړو په مفهومونوکښ فرق دي. ﴿وَلَمۡ یَجۡعَل لَّهُۥ عِوَجَاۜ﴾مقصددادي چې داقرآن په خپله يعنی دذات په اعتبار سره کامل دي اودَ ﴿قَیِّمًا﴾مقصد دادي چې دي مکمل دي دَغيرلپاره يعنی داقرآن سبب دَهدايت دي دَمخلوقاتولپاره اوقرآن دَمخلوقاتولپاره داسي دي لکه څرنګه چې يوقيم(منتظم،مربی) وي دَماشومانولپاره، نوارواح بشريه په شانتې دَاطفالو(ماشومانو)دي اوقرآن په منزله دَيوشفيق، مهربانه مربي دي چې دَدوئ مصالحوباندي خيال کوونکي وي دَدشمن نه بچ کوونکي وي دَهرقسم مضراتوکه حالی يااستقبالی دَهغي نه ئې بچ کوي اودَدي وجه نه اولاً ﴿وَلَمۡ یَجۡعَل لَّهُۥ عِوَجَاۜ﴾ ذکرشو اوورپسي ﴿قَیِّمًا﴾ذکرشو اوداتوجيه زياته اليقه ده.

﴿لِّيُنذِرَ ﴾دا تخويف ذکرکيږي اولام تعليليه دي اودامتعلق دې په انزال پورې نوداحکمت اوعلت دقرآن بيانيږي، دقرآن مجيددنزول دوه (٢)حکمتونه اومقصدونه بيان شويدي. چې يوه انذاراوبل تبشيردې، انذاردوه مفعولينوته متعدي کيږي چې يو(منذر)وي اوبل (منذرمنه) وي پشانته دتبشير،لکه اناانذرنکم عذابا قريبا نوپدې ايت کښې منذرمنه مذکوردې اومنذرمحذوف دې ځکه چې په هغې دلالت کوي ورستنې ايت﴿وَيُنذِرَ ٱلَّذِينَ قَالُوا۟ ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ وَلَدًا ﴾اوپه هغې کښې (منذرمنه) محذوف دې ځکه چې په هغې باندې دلالت کوي داايت اوهرکله چې مقصود پدې سورت کښې دمنکرينودشبهاتوازاله ده نوددې وجه نه تخويف مکرر ذکرشو.اوبشارت مکرر ذکرنشو اودعدم تکراردبشارت نه په جملې دبشارت کښې مبشراومبشربه دواړه ذکرشو﴿بَأْسًا شَدِيدًا ﴾ پديکښې اشاره ده چې مقصود بالکلام (منذرمنه) دې اوتوصيف ئې په﴿شَدِيدًا ﴾سره اشاره ده سختئ دعذاب ته(اعاذناالله منها) ﴿وَيُبَشِّرَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾دابشارت ذکرکيږي چې دويم مقصداوحکمت دقرآن دې﴿أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا حَسَنًا ﴾دامبشربه دې اومراد په اجرحسن سره جنت دې اوپه تقديم دجارمجرورکښې اشاره ده اختصاص دمؤمنينوته په جنت سره﴿مَّٰكِثِينَ فِيهِ﴾منصوب دې بناء برحاليت چې داحال واقع شويدې دضميرمجروردَ﴿لَهُم ﴾نه اوهرکله چې مکث نقاضادتابيدنه کوله نوددې وجه ورپسې ذکرشو﴿أَبَدًا ﴾يعنی ددې مکث لپاره به څه انتهاء نه وي. ﴿وَيُنذِرَ ٱلَّذِينَ ﴾دا عطف دې په ﴿لِّيُنذِرَ ﴾باندې اوپدې کښې منذرلهم مذکوردې اومنذرمنه محذوف دې،عام مفسرين فرمائی چې پدې اِنذاراوماقبل انذارکښې فرق دې ماقبل انذارعام وشامل وو هرکافرته اودا انذارخاص دې هغه چاته چې داتخاذ ولدعقيده لري اوتخصيص ئې لپاره دشدت شناعت اوقباحت دکفرظاهره وي اوحضرت الشيخ فرمائی چې پدې اوپه ماقبل کښې فرق نيشته بلکه دبعدعهددوجې نه دانذاراعاده اوکړې شوه اوتنبيه مقصود ده په منذرلهم باندې،يعني هغه کوم منکرين دې چې دهغوئ انذارپدې ځائ کښې مقصوددې اودهغوئ دشبهاتوازاله مقصودده؟ پدې باندې تنبيه ده نوداهغه څوك دې چې هغوئ عقيده داتخاذ ولدلري اوپه لفظ داتخاذکښې اشاره ده چې مشرکين الله ﷻ لره اولاد حقيقة نه ثابتولو بلکه

مرادپه اولادسره متبني وو، چې الله ﷻ خپل ځني مخصوص بندګان انبياء کرام، فرښتي او اولياء خپل متبني يعنی نائبين جوړکړيدي اوهغوئ ته الله ﷻ بعض مافوق الاسباب امورکښې تصرف اواختيارورکړيدي لکه څرنګه چې والدحقيقي خپل ولدحقيقي ته څه امورحواله کوي نوددې وجه نه دوئ بيادَانبياء کرام، ملائکو اواولياء عبادت ضروري ګڼړي او ﴿وَيُنذِرَ﴾ فعل دې او ﴿الَّذِينَ﴾ مفعول دَ ﴿وَيُنذِرَ﴾ لپاره دې اوپه صيغي دَماضي اوموصول کښې اشاره ده په تحقق دکفردهغوئ اورسوخ دَشرك ته په زړونودَهغوئ کښې ﴿مَّا لَهُم بِهِۦ مِنْ عِلْمٍ﴾ پدې کښې دهغوئ دَقول ردَ دې اوضميرمجروره راجع دې دهغوئ قول (اتخاذولد) ته چې ددوئ داقول سراسرجهالت باندې مبني دې اوپدې باندې دوئ سره هيڅ قسم دليل نيشته دې، صرف دآباؤتقليدکوي او (من) په ﴿مِنْ عِلْمٍ﴾ کښې لپاره دَتاکيددَنفي دې اوکه څوك اشکال اوکړې چې اتخاذ الله ﷻ ولدلره محال فی نفسه دې نوڅرنګې به صحيح شي نفي دَعلم ددوئ نه په اتخاذولد باندې چې دوئ سره په اتخاذ دَولدباندې علم نيشته دې نوجواب دادې چې نفی دَعلم دَيوشئ نه دَدوه وجوه نه وي (۱) کله هغه څيزفی نفسه موجودوي خوتعلق دَعلم ورسره نوي راغلی اوانسان جاهله وي هغي ته په رسيدلوباندې (۲) اوکله کله هغه څيزبالکل موجود نوي معدوم محض وي اوتعلق دَعلم ورسره نوي ممکن نوبياهم نفي دَعلم ورنه راځي اودَدې وجه منطقيان وائي چې سالبه په وخت دَعدم دَموضوع کښې هم صادقه وي، نودلته چې نفي دَعلم راغليده نودَقسم ثاني دَقبيلې نه دې، چې اتخاذدَولدمعدوم محض دې محال فی نفسه دې نوځکه ورنه نفي دَتعلق دَعلم هم راغله، (ونظيره قوله تعالی ومن يدع مع الله الها آخرلابرهان له (المؤمنين:۱۱۷)) ﴿كَبُرَتْ كَلِمَةً﴾ (کبرت) فعل دې ضميردَمؤنث چې راجع دې ﴿اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا﴾ ته په تاويل دَ (مقالة) سره فاعل دې اوکلمة منصوب دې تميزواقع شويدې دهغې فاعل نه ليکن قول دَجمهورراجح دې چې کلمة منصوب دې اوتميزدې اوپدې کښې معنې دَتعجب ده ﴿تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ﴾ داپه محل دَنصب کښې صفت دَماقبل يعنی ﴿كَلِمَةً﴾ لپاره دې اوپديکښې مزيدتقبيح اوشناعت اودَدوئ والادالوئ جرامت په ددې دروغوباندې ذکرکيږي، اوپديکښې اشاره ده چې وسوسه اوحديث النفس دکفريه

خبروقابل مواخذه ندې، چې ترڅوپورې تکلم اوعزم پرې نوې راغلې ﴿إِن يَقُولُونَ إِلَّا كَذِبًا﴾ (ان) نافيه دې اوداپه منزله دَدليل دې دَماقبل لپاره چې دَدوئ داقول قبيح دې ځکه چې داكذب محض دې اودَصدق شائبه پکښې هم نيشته ځکه چې نسبت دَولدالله ﷻ ته ممتنع دې عقلا (کمامرمرارا) اوثبوت دَممتنع عقلې کول کذب محض وې اوددې وجه نه الله ﷻ فرمائي په سورة مريم کښې وقالوا اتخذالرحمن ولدا لقدجئتم شيئاادًا،تكادالسموات يتفطرن منه وتنشق الارض وتخر الجبال هدا(مريم:۸۸، ۹).

| |
|---|
| فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ عَلَىٰ آثَارِهِمْ إِن لَّمْ يُؤْمِنُوا بِهَٰذَا الْحَدِيثِ |
| پس آياته هلاکت کښې اچوونکې ئې ځان خپل لره په دوئ پسې کچرې دوئ ايمان نه راوړې پدې خبره«قرآن»باندې |
| أَسَفًا ۝ إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ زِينَةً لَّهَا |
| نه وجې دغم نه بيشکه گرځولې دې مونږه هغه څه چې په زمکه باندې دې خايست لپاره ددې«زمکې» |
| لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ۝ وَإِنَّا لَجَاعِلُونَ |
| لپاره ددې چې ازمائش اوکړو مونږه ددوئ چې کوم يودَدوئ نه خائسته عمل والادې، اوبيشکه خامخا گرځوونکې يومونږه |
| مَا عَلَيْهَا صَعِيدًا جُرُزًا ۝ |
| هغه څيزلره چې پدې زمکه باندې دې ميدان هموار«صفا ،بې گياه» |

﴿فَلَعَلَّكَ بَٰخِعٌ﴾ فاء استنافيه ده پدې کښې تسلې ذکرکيږې حضور ﷺ ته هرکله چې حضور ﷺ دَمشرکينو دَايمان راوړلونه مايوسه شونوسخت تکليف ورته اورسيدلواوپريشانه شونودااَيت نازل شو ،(لعل) دَاکثرو مفسرينوپه نيزلپاره دَترجې وې په محبوب څيزکښې اولپاره دَاشفاق وې په محذورکښې،نودلته لپاره دَاشفاق دې اوبعض مفسرين فرمائي چې لعل پدې ځائ کښې لپاره دَنهې دې تشفيقا اى لاتبخع نفسك(بحر) اوبعض فرمائي چې لپاره دَاستفهام انکارې دې، اوعلامه زمخشرې رحمه الله فرمائي چې داكلام محمول دې په تشبيه باندې چې حضور ﷺ ته به دَقريش مکه دَايمان نه راوړو دَوجې نه به ډيرسخت تکليف اوډيرفکرکښې مبتلاوو ،دَحضور ﷺ داحالت مشابه کړې شودهغه حالت سره چې هغه دَخپل دَيومحبوب په فراق کښې مبتلاوې اوصبر اونکړې شي

اوخپل خان هلاکت نه اورسوي او ﴿بَٰخِعٞ﴾ صیغه دَاسم فاعل ده وئیلې کیږي هغه چاته چې ډېر
اوفکردوجي نه خپل ځان هلاك کوونکې وي اودابه اضافت اوپه ترك اضافت دواړه سره
راغلیدي. ﴿عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِمۡ﴾ دااستعاره فصیحیه ده (اثار) وئیلې کیږي نقش قدم ته چې یو سړی
لاړشي اونشان ئې پاتې شي اودلته تنه مراد دادې چې دَدوئ دَایمان راوړلونه مایوسې نه ورسته
اویاددوئ موت على الكفرنه ورستو ﴿إِن لَّمۡ يُؤۡمِنُواْ﴾ (ان) شرطیه دې اوجمله ﴿لَّمۡ يُؤۡمِنُواْ﴾ ورله
شرط دې اوجواب ئې محذوف دې چې په هغې باندې باخع نفسك دلالت کړیدې اوبعض فرمائي
چې جواب شرط ﴿فَلَعَلَّكَ بَٰخِعٞ﴾ دې اوهغه مقدم اوحرف شرط سره دَفعل شرط نه مؤخردې
اومراد په ﴿بِهَٰذَا ٱلۡحَدِيثِ﴾ سره قرآن دې اوقرآن ته حدیث په اعتباردَالفاظودَقاري سره وئیلې
شویدې او ﴿أَسَفًا﴾ مفعول له دې لپاره دَ ﴿بَٰخِعٞ﴾ او (اسف) وئیلې کیږي شدت غم ته. یعنی دَدوئ
دَایمان نه راوړلودَ وجې ته شدت غم نه خپل ځان مه هلاك کوه ﴿إِنَّا جَعَلۡنَا مَا عَلَى ٱلۡأَرۡضِ﴾ پدې
ایتونوکښې تزهیدفی الدنیااودَمشرکینوایمان نه راوړلو علت اووجه بیانیږي، چې دوئ ایمان
دَدې وجه نه، نه راوړي چې دوئ سره مال اودولت دې باغات اومحلات دې حالانکه داخیزونه
دَفخرقابل ندي،دَدنیا داټول څیزونه دیوځوورځوزینت دې اودَانسان لپاره ابتلاء اوازمائش دې
نوپدې مه دهوکه کیږي اودَغوره قول مطابق مراد دَ ﴿مَا عَلَى ٱلۡأَرۡضِ﴾ نه مرادعام دې که
حیوانات وي،معدنیات اوکه نباتات وي اوبعض مفسرینو ئې تخصیص په نارینوپوري کړیدې
بعضوئې په علماء پوري اوبعضوپه نیکوبندګانوپوري کړیدې ﴿زِينَةٗ لَّهَا﴾ دامنصوب دې بناء پدې
چې دامفعول ثانی دې دَ ﴿جَعَلۡنَا﴾ لپاره اویامفعول له دې دهغې لپاره اوپدیکښې اشاره ده چې
اسباب اومال دولت ددې دنیااواولاد،ازواج،عهدې داټول صرف دَدې دنیازنیت دې اوداخرت
زینت ندې، اودغه شانتې اشاره ده سرعت فناء دَدې اسبابو ته ځکه چې دافقط زینت دې اوزینت
عرض دې اوعوارض کلهاپه معرض دزوال کښې وي اودَدې وجه نه حضورﷺ ارشاد اوفرمایه
چې(عن ابی سعیدعن النبیﷺ قال ان الدنیاحلوة خضرة وان الله مستخلفکم فیهافناظرماذاتعملون فاتقوا
الدنیا واتقوا النساء (متفق علیه) ترجمه:یقیناً چې دنیاخوګه اورنګینه ده،اوالله ﷻ ورته تاسولیږي

چې او کوري چې تاسو څه عمل کوئ.نو دنیا اوښځونه ځان ساتئ.او دحلوة حضرة مقصد دادې چې صرف په خولې کښې خوند پیدا کوي اوسترګې ورته خوشحاله کیږي.دوام اوڅه حقیقت نه لري ﴿لِنَبْلُوَهُمْ﴾داعلت دزینت دې چې دادنیامونږه صرف زینت ګرځولیده لپاره ددې چې امتحان وازمائش ورسره واخلو اوامتحان کله لپاره دفائدې دممتحن وي چې هغه ته پته نه لري اودامتحان په ذریعې سره پته اولګوي چې څوك قابل اوڅوك نه ناقابله وي اوکله امتحان ددې لپاره وي چې امتحان ورکوونکې دخپل ځان دحقیقت نه واقفه شي ځکه چې دهغه دخپل ځان په باره کښې ګمان دلائق وي نودامتحان په ذریعې سره ورته پته اولږي چې څه څومره لائق یم. نو دلته اوله معنې اومقصد په الله ﷻ کښې محال دې ځکه چې هغه عالم الغیب دې بلکه دلته اودغه شانتې په نورو مواضعو کښې تنه مراد مقصدثاني دې اوددې وجه مفسرینو ددې ایت ترجمه داسې کړیده نعاملهم معاملة المختبر(روح، رازي، شربیني) یعنی دوئ سره داسې معامله اوکړو لکه دامتحان اخستونکې یعنی دوئ ته دوئ حقیقت حال اوښایو ، اوبعضوجهلاء لکه هشام بن الحکم وغیره شواستدلال کړیدې پدې ایت سره چې الله ﷻ دحوادثوباندې قبل الوجود علم نه لري.لیکن دوئ قول مبني دې په جهل باندې، تفصیل ئې امام رازي په تفسیرکبیرکښې کړیدې اومراد په ﴿أَحْسَنُ عَمَلًا﴾سره دادې چې ددنیانه زهد اوبې رغبتي وي اواخرت ته رغبت وي. اویاتنه مراد هغه اعمال دې چې موافق دشرع اوسنت وي اوخالص دالله ﷻ درضالپاره وي﴿وَإِنَّا لَجَاعِلُونَ﴾یعنی دادنیا اوددې زینت، اوددې داشین والې به یوه ورځ ختم شي اوداټول څیزونه به فناء شي اودنیابه بوصفامیدان پاتې شي﴿صَعِيدًا﴾ وئیلې کیږي وجه الارض ته او﴿جُرُزًا﴾وئیلې کیږي هغې ته چې څه وونې بوټې ورباندې نوي، ، تردې ځائ پورې داتمهیدوو.

﴿أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحَابَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ كَانُوا مِنْ آيَاتِنَا عَجَبًا ⑨﴾

[1]ګمان کوې ته چې بیشکه غاروالا اورقیم والا وو دنښانو(دقدرت)زمونږه نه عجیبه

[1] جواب شبهه اولی اجمالا بطرق سبعه.

إِذۡ أَوَى ٱلۡفِتۡيَةُ إِلَى ٱلۡكَهۡفِ فَقَالُواْ رَبَّنَآ ءَاتِنَا

(یاد کړه هغه وخت)چې کله مائله شو(لپاره پناه اغستلو) ځوانان غارته پس اوئیل دوئ اې ربه زمونږه راکړې مونږ ته

مِن لَّدُنكَ رَحۡمَةً وَهَيِّئۡ لَنَا مِنۡ أَمۡرِنَا رَشَدًا ۝ فَضَرَبۡنَا

خپل طرف نه رحمت(استقامت)اواسان کړې مونږ ته زمونږ ددې کار(هجرت)نه کامیابی. پس واچوله مونږ پرده دخوب

عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمۡ فِي ٱلۡكَهۡفِ سِنِينَ عَدَدًا ۝ ثُمَّ بَعَثۡنَٰهُمۡ لِنَعۡلَمَ

په غوږونودوئ باندې په غارکښ څوکالونه دشمار. بیارابیدارکړل مونږه دوئ لپاره ددې چې اوښایومونږه

أَيُّ ٱلۡحِزۡبَيۡنِ أَحۡصَىٰ لِمَا لَبِثُوٓاْ أَمَدًا ۝

چې کوم یوددواړو ډلوزیات صحیح شمارکونکې دې دهغوئ دَاوسیدومدت.

﴿أَمۡ حَسِبۡتَ﴾ دادَسورت اوله حصه شروع کیږي په ابتداء کښ دَشبهې اجمالي جواب دې اوبیاتفصیلي جواب ذکرکیږي، او﴿أَمۡ﴾ یاپه معنې دَاستفهام انکاري سره دې چې کفارو دَاصحاب کهف واقعه دَحضورﷺ دَصداقت معیارګرځولې وه چې داډیره عجیبه واقعه ده کچرې حضورﷺ ته دَدې په باره کښ علم وي نودي به صحیح پیغمبروي نو الله ﷻ دَدې په باره کښ اوفرمائیل چې﴿أَمۡ حَسِبۡتَ﴾یعنې داګمان مه کوئ چې دَالله ﷻ دَقدرت دَنشانیونه اصحاب کهف واقعه لویه نشاني ده،بلکه ددې نه هم لوئ لوئ نشانات شته دې لکه نمر، سپوږمۍ اودستورو عجیب اوغریب نظام، دَاسمان اودزمکې تخلیق یاواقعه دَمعراج وغیره شو اویادَاستفهام تقریري په معنې سره دې او﴿حَسِبۡتَ﴾په معنې دَ(علمت) سره دې نومطلب ئې دادې آیاتاته پته ده چې بیشکه اصحاب کهف اورقیم زمونږ دَعجیبه نشاناتونه دې یعنې داپته لګول پکار ده چې داد الله ﷻ دَقدرت عجیب نشاناتونه دې، لیکن غوره خبره داده چې ام پدې مقام کښ ام منقطعه دې په معنې دَ(بل) سره اودا دابطال دکلام لپاره ندې بلکه لپاره دَاضراب، اوانتقال دکلام دې اوپدې سره دکفاردهغه شبهې جواب مقصود دې چې هغوئ به وئیل چې اصحاب کهف هم کارسازاوعالم الغیب وو،ځکه چې په سوو نوکاله اوده وو اوبیاپکښ هم څه

قسم تغیرنوو راغلي نمرورته څه قسم تکلیف نوو ورکړي دَدینه معلومه شوه چې هغوئ ته مافوق الاسباب قدرت تصرف حاصل وو، الله ﷻ دَدوئ داخبره اوشبه په اوه(۷)طریقوسره ردکړه(۱)﴿مِنْ ءَايَتِنَا ﴾یعنی داواقعه دالله ﷻ دقدرت یوه نشانې ده(۲) ﴿عَجَبًا ﴾یعنی مخلوق لپاره عجیبه ده اوددي علاوه نوري هم عجیبه واقعات شته دي(۳)﴿إِذْ أَوَى ٱلْفِتْيَةُ ﴾په غارکښې پناه اغستل دَدوئ په عجز باندې واضح دلیل دي(۴)﴿فَقَالُوا۟ رَبَّنَآ ءَاتِنَا ﴾په غارکښې پناه اغستلونه ورستودوئ دَالله ﷻ نه په ډیري عاجزئ سره په توحیدباندې ثابت قدم پاتي کیدلو. درزق، اودَدشمنانونه دَحفاظت لپاره دعااوغوختله اودَصحیح رهنمائي دعائې اوغوختله چې﴿وَهَيِّئْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا ﴾ (۵)﴿فَضَرَبْنَا عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمْ ﴾یعنی دهغوئ اراده صرف دمه کول وو په غارکښې اومونږورباندې خوب مسلط کړو اوپه سوونو کاله اوده پاتي شولو(۶)﴿ثُمَّ بَعَثْنَٰهُمْ ﴾یعنی بیاپه راویخیدوکښې هم مونږته محتاجه وو، دَدینه هم دهغوئ متصرف کیدلواوکارسازجوړیدلو نفی کیږي(۷)﴿لِنَعْلَمَ أَيُّ ٱلْحِزْبَيْنِ ﴾یعنی هغوئ دَخپلي مدي(مدت) دَخوب نه هم بې خبره وو چاپکښې اوئیل چې﴿لَبِثْنَا يَوْمًا ﴾ اوځنوپکښې اوئیل چې﴿بَعْضَ يَوْمٍ ﴾اوځنوپکښې علم دَدهغي مدت الله ﷻ ته حواله کړو چې﴿رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ ﴾نودوي ټولونه معلومه شوه چې هغوئ ته مافوق الاسباب هیڅ قسم قدرت دَتصرف حاصل نوو اونه هغوئ کارسازوو.

اودغه شانتې پدې آیت کښې تسلي هم حضورﷺ ته ذکرکیږي چې دامعاندین کفارچې ستادشمني کوي اوایمان نه راوړي نو الله ﷻ به دوئ هلاك کړي لکه څرنګه چې دقیانوس ئې په زندګئ دَاصحاب کهف کښې هلاك کړې وو.

﴿أَنَّ أَصْحَٰبَ ٱلْكَهْفِ ﴾ (کهف) وئیلې کیږي لوئ غارته چې وسیع اوفراخ وي اوچې وړوکې وي نوبیاورته غارویلې کیږي ﴿وَٱلرَّقِيمِ﴾په تعیین د(رقیم)کې اختلاف دې اواقوال پکښې تقریبالسو(۱۰)ته رسیدلیدی دَامام بخاري رحمه الله دَصنیع نه داسې معلومیږي چې دهغه په نیزدادواړه جداجدادی، امام بخاري رحمه الله په اصحاب الرقیم ترجمې تحت دَبنې اسرائیلودهغه

دري كسانومشهوره واقعه ذكركړيده چې په لاره روان وو سفرئې كولوچې باران پرې راغې نودوئ په يوغاركښ پناه واغسته اودغارپه خله كښ يولوئ ګټ رااوغورزيدلواودوئ لاره نې بنده كړه،نودوئ كښ هريوكس خپل نيك عمل الله ﷻ ته پيش كړواودهغې په وسيله ئې دعااوكړه نوهغه غارخله ورته الله ﷻ خلاصه كړه اودوئ را اوتلو په هغې كښ يوكس مستاجروبل عفيف اوبل بارالوالدين وو(بخاري)ليكن شراح دبخاري ليكي چې دادبعضوخلكوتوهم دې چې هغوئ دامام بخاري رحمه الله ددې صنيع نه ددواړو والامحمل جداجدافهم كړيدې اودافهم څكه صحيح ندې چې دامام بخاري رحمه الله نظرډيردقيق دې په انعقاد دتراجموكښ،كله كله ديو معمولي مناسبت دوجې نه هم په يوباب كښ حديث ذكركوي.نوممكنه ده چې دامام بخاري رحمه الله په نيزاصحاب الكهف اواصحاب الرقيم دواړه يووي خوجداحديث په اصحاب الرقيم باندې ذكركول ددې وجه نه وي چې په غاركښ دري كسانو والا واقعي اشتراك راغليږي داصحاب الرقيم داصحابوكهف واقعي سره په ژوندي پاتې كيدلوكښ په غارونوكښ،نوددې اشتراك دوجې نه امام بخاري رحمه الله په دواړوباندې عليحده عليحده ابواب قائم كړيدې،اوداتوهم څني خلكوته ددې وجه نه راغليدې چې واقعه دغارنقل كولويوراوي حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه نه دااضافه مروي ده چې(انه سمع النبی ﷺ يذكرالرقيم فقال انطلق ثلاثة فكانوا فی كهف فوقع الجبل علی باب الكهف الخ)(فتح الباری) يعني نبي عليه السلام درقيم.تذكره كوله نواوفرمائيل چې دري كسان روان وو اويوغارته داخل شونودغارپه خولې يوګټ راوغورځيدو(١)ليكن په يوروايت كښ تصريح نيشته پدې باندې چې حضور ﷺ داصحاب الرقيم مصداق دغه دري كسانو والاواقعه متعينه كړيده بلكه روايت مصرح دې پدې چې حضور ﷺ داصحاب الرقيم واقعه بيانه وله نودغه دري كسانوواقعه ئې هم ذكركړه(٢)،اوداهم ممكنه ده چې اصحاب كهف اواصحاب الرقيم دې يووي خوچې په كوم غاركښ اصحاب كهف پناه اغستې وه هم په هغه غاركښ ددغه دري كسانوهم پناه اغستوي، نوديته اشاره كولولپاره حضور ﷺ داصحاب الرقيم په واقعه كښ بيان ددغه دري كسانوداواقعي هم كړې وي. نوغوره خبره داده چې د﴿وَٱلرَّقِيمِ ﴾عطف په﴿أَصۡحَٰبَ ٱلۡكَهۡفِ﴾باندې عطف تفسيري دې. اواصحاب الكهف اواصحاب الرقيم ديوجماعت دوه نومونه دې،لكه چې دامسلك دجمهورودې اوداظاهردې داسلوب دقرآن نه هم. چې د﴿وَٱلرَّقِيمِ﴾ ذكرصرف پدې ځائ كښ په طريقه دعطف

تفسيري سره اوشولواوپه ټول سورت کښې بياچرته هم ذکرنشولکه څرنګې چې اصحاب الکهف لفظ شپږځلي ذکرشويدې، کچري دواړه يونوې نوپکارده چې دَ﴿وَٱلرَّقِيمِ﴾ ذکرخوچرته شوې وي صراحتا يااشارة، اودغه شانتې ورستوايت ﴿نَّحۡنُ نَقُصُّ عَلَيۡكَ نَبَأَهُم﴾چې دانفصيل ددې اجمال دې نوکچرته اصحاب الرقيم چې په اجمال کښې ذکردې غيروې دَاصحاب کهف نه نوپکارده چې تفصيل کښې دهغوئ واقعه ذکرشوې وې لپاره دَموافقت دَاجمال اودَتفصيل

البته دَجمهوروااختلاف صرف په وجه تسميه کښې دې چې دوئ ته اصحاب الرقيم ولې وئيلې کيږي نوپدې کښې زيات مشهوردرې (۳)اقوال دي:

(۱)رقيم نه مرادهغه تختې اوکانړي دي چې په هغې باندې داصحاب کهف نومونه سره ددوئ دَانساب ليکلي شويدي داقول مختاردسعيدبن جبير، امام مجاهد اودَفراء دې(فتح.کبير) نوپدې صورت کښې ﴿وَٱلرَّقِيمِ﴾په معنې دَالمرقوم فيه سره دې(۲) رقيم نوم دهغه وادي دې چې په هغې کښې هغه غردې چې دکوم غرپه غارکښې اصحاب کهف پناه اغستې وه، (طبری ج۸).(۳)رقيم نوم دَاصحاب کهف دَقريې دې،داقول مختار دکعب الاحباردې،يزعم کعب انهاالقرية(طبری ج۸) ددې نه علاوه نوراقوال پکښې هم راغليدي.

﴿كَانُواْ مِنۡ ءَايَٰتِنَا عَجَبًا﴾ عجبا مفعول مطلق دې دَ﴿ءَايَٰتِنَا﴾لپاره په اعتباردَموصوف مقدره سره يعنی (آية عجبا) اوحمل ئې په آية باندې مبالغة دې اوياپکښې مضاف مقدردې يعنی (ذات عجب) ﴿إِذۡ أَوَى ٱلۡفِتۡيَةُ﴾پدې ايت کښې عجزدَ اصحاب کهف ذکرکيږي په هجرت کولوسره غارته.اودعادهغوئ ذکرکيږي اوعامل په "اذ"کښې فعل مقدر"اذکر"دې اومرادپه﴿أَوَى﴾سره ټهکانه نيول دې،او ﴿ٱلۡفِتۡيَةُ﴾جمع تکسير دَفتی ده اوجمع قلته ده اومراد تنه اصحاب کهف دی دَ...سم ظاهرپه ځائ دَاسم ضميرراوړې شولپاره دَاظهاردَدې چې دَدين لپاره هجرت اوپه دين ...ې استقامت داټول په حالت دَجواني کښې وو،بوداګان نوو،

درجوانی توبه کردن شيوه ئ پيغمبريست- وقت پيری ګرګ ظالم ميشود پرهيزګار

﴿فَقَالُوا رَبَّنَا ءَاتِنَا﴾ دا دعوئ دعاده وروستو دَ تِهکانی نیولو نه چې بالله مونږ ته دخپل طرف نه رحمت راکړي اومراد په رحمت سره هدایت، صبر، رزق اودشمنانو نه امن دي ﴿وَهَيِّئْ لَنَا﴾ مراد پدي سره په امراومعامله دهجرت کښې صحیح رهنمائي اومنزل مقصود ته رسول دی. اوابن کثیر رحمه الله فرمائی چې دادعادحسن عاقبت ده چې زمونږ ددي هجرت عاقبت رشد اوهدایت اوګرځوي ﴿فَضَرَبْنَا عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمْ﴾ دابل عجزدَاصحاب کهف ذکرکیږي. چې دوئ په خپل خوب کښې محتاجه وو الله ﷻ ته، داکنایه ده دَدروند اوپوره خوب نه. ځکه چې کمال اودروند خوب هله وي چې په غوږونو سره څه نه اوري، په خلاف دَسترګو نه چې کله کله دخوب دَوجې نه کتل نه کوي خوبیاهم سړي ویخ وي او چې قوت سامعه معطله شي نو خوب خپل حدکمال ته اورسیږي اوددي وجه نه په حدیث کښې داسي راځي،ذلك رجل بال الشيطن فی اذنه (بخاری ج١ كتاب التهجد) اوپدیکښې اشاره ده چې دااوده کول دَجه دَشفقت نه وولکه څرنګې چې موربچي اوده کوي په غوږونو ئې ټپوي. اومفعول دَ ﴿فَضَرَبْنَا﴾ لپاره مقدردي چې حجابادي اوفاء پکښې دَتعقیب لپاره ده. اوپدیکښې اشاره ده دیته چې کوم سړي دَدین خدمت کوي نو الله ﷻ به دَه ته دَخپل طرف نه سکون اوراحت ورکوي، ﴿ثُمَّ بَعَثْنَٰهُمْ﴾ دابل عجزدَاصحاب کهفو ذکرکیږي چې دَطویل مدت دَاوده کولو نه وروستوبیارااویخیدلوکښې مونږته محتاج وو اومرادپه بعث سره دوباره راویخول دي اوهرکله چې خوب په منزله دَمرګ دي اوخاص طوردَاصحاب کهفوخوب خلاف عادت ډیره زیاته مودي پوري یعنی(٣٠٩)کاله وو نوددي وجه په ځائ دَایقظنهم،﴿بَعَثْنَٰهُم﴾ ذکرشواودَدي وجه نه په حدیث کښې دَخوب بیداریدلونه پس دعاداسي منقوله ده الحمدلله الذی احیانا بعدمااماتناواليه النشور، ﴿لِنَعْلَمَ﴾ لام لپاره دَغاية دي چې دَطويل مودي نه پس رابيداره ولوغايت داوو چې مونږه خلکو ته اوښایوچې کوم یوفریق حساب کوي دَخپلي مودي، اومراد په ﴿لِنَعْلَمَ﴾ سره علم دَاظهاردي یعنی نوروخلکوته ښکاره کول، ځکه چې نصوص قطعیه پدي دال دي چې الله ﷻ عالم الغیب دي ﴿أَيُّ ٱلْحِزْبَيْنِ﴾ مراد دَحزبین نه یاهغه دوه ډلې په اصحاب کهفوکښې دي چې دَرابیدارئې نه پس یوې ډلي اوئیل چې ﴿لَبِثْنَا يَوْمًا﴾ اوبلي ډلي اوئیل چې ﴿أَوْ بَعْضَ﴾ اویاورنه مرادیوه ډله

دَاصحاب کهفوده اوبله ډله دهغوئ معاصردَعلاقي دَخلکوده چې هغوئ پدوئ کښې اختلاف کړې وو اودَدينه علاوه نورتوجيهات پکښې هم راغليدي﴿أَحْصَى﴾صيغه دَواحدمذکرغائب ده دَباب افعال نه﴿أَمَدًا﴾مفعول دَ﴿أَحْصَى﴾ لپاره دي يا احصىٰ صيغه داسم تفضيل ده او امداً ورله تميزدې،او﴿أَمَدًا﴾ امام راغب فرمائيلي چې هغې مودي ته وئيلې کيږي چې دهغې لپاره حدوي،يعنى انتها ورله معلومه وي پخلاف دزمان نه چې هغه عام دي په مبدا اوغاية کښې.

**فائده**: پدې مقام کښې څومباحث دي چې مفسرينوذکرکړيدي.(۱)اصحاب کهف څوك وو؟ اودَدوئ واقعه څه ده؟ (۲)داغارپه کوم ځائ کښې واقع دې؟(۳) دَدوئ مدت دَخوب څومره ده؟ اودَدوئ تعداد څومره وو(۴)آيااصحب کهف اوس هم ژوندې دي يانه؟

(۱)دَاصحاب کهفو دَواقعې دوه جهته دي يوجهت ئې هغه دې چې مذکوردې په قرآن مجيدکښې اودويم جهت ئې هغه دې چې تاريخي رواياتوسره يااسرائيلي رواياتوسره ثابت دې چونکه قرآن مجيددَهدايت اونصيحت والاکتاب دې مبشراومنذردې،محض دَتاريخ والاکتاب ندې نوددې وجه نه قرآن مجيددَواقعاتو هغه اجزاذکرکوي چې کوم سره انساني هدايت اوتعليمات متعلق وي،ددې وجه نه په سورة الكهف کښې هم الله ﷻ دَواقعې هغه اجزاء ذکرکوي کوم چې مسئول عنه دَيهوديانووو اوچې په کوم اجزاء دَانسان هدايت اوتعليم ورسره متعلق دې اودَواقعې په ابتداکښې تعليم ورکړوچې دادومره څه عجيبه واقعه نده چې انساني هدايت پدې باندې موقوف کړې شي﴿أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحَٰبَ ٱلْكَهْفِ﴾اوهم داوجه ده چې حضور ﷺ هم داواقعه صحابه رضي الله عنهم ته په اهتمام سره تفصيلانده بيان کړې،باوجود ددې چې دَحضور ﷺ دَبعثت په ذمه دَ ريوکښې يوه ذمه دارې دَاوه چې ويعلمهم الكتب اونه دَحضور ﷺ نه په يوصحيح روايت سره نقل شويده. صاحب دَبحرعلامه ابوحيان اندلسى رحمه الله فرمائى،والرواة مختلفون فى قصصهم وكيف كان اجتماعهم وخروجهم ولم يات فى الحديث الصحيح كيفية ذلك ولافى القرآن(بحر ج۲ ص۹۸) اودَ اسلافوضابطه هم داده چې،ابهموا ماابهمه الله (الاتقان) ليکن متاخرينومفسرينومختلف تاريخي رواياتوسره داواقعه نقل کړيده تفصيلا چې دهغې خلاصه داده.

**واقعه**: داواقعه دَحضرت عيسي عليه السلام داسمان ته دَختلونه دوه نيم(۲۵۰) سوه کاله ورستو څه شوه. چې په روم باندې يوبادشاه چې نوم ئې دقيانوس وو مسلط شو. دابادشاه ډيرظالم

اوبت پرست وو ، څومره نیکان خلك وو هغه ئې قتل کړل اوپه خلکوباندې رعب اچولولپاره ئې دهغوئ جسمونه دښهرپه مختلف چوکونو ، لاروباندې زوړند کړيوو

بادشاه اودده قوم به په کال کښې يوه مذهبي ميله (عرس) هم کوله. يوه ورځ چې بادشاه اودده قوم خپل مذهبي ميلي ته روان شوچې دښارنه بهرمنعقده وه، نو اصحاب کهف ورسره هم لاړل چې دوئ دسلطنت دعمائدو اودآشرافواومشرانوځامن وو ،خوفطري موحدين وو. دوئ چې هلته اوکتل چې ددوئ قوم دبتانوعبادت کوي اودهغوئ په نوم باندې قربانياني کوي نوددوئ ورنه نفرت اوشو،نوپه دوئ کښې يوكس چې نوم دهغه په ځنې رواياتوکښې مکسلمينا . راغليدې جداشو اوديوې اوني دلاندې کيناستلو ، بياورپسې بل هم راغې دريم هم راغې ځلورم هم راغې. اودوئ ټول پدې ځائ کښې جمع شويوبل ئې نه پيژندل،خويوبل سره ئې محبت پيدا شو

دوئ ټول هلته داوني لاندې جمع شوليکن هريوخپل مقصد اوعقيده دبل نه پته وله. چې داسې نه چې څوك پكښې دبادشاه جاسوس نوي اودوئ ته پته هم نوه چې دټولومقصد يودې،آخريوکس پکښې ته اووئيل چې په خدائ قسم! مونږټول چې ددې قوم نه جداشوي يو اودلته راجمع شوي يو ددې څه وجه به ضرور وي؟ هريوکس دې خپل مقصد واضح کړي، نويوکس پکښې ته اوئيل چې په خدائ قسم!څه خوصرف ددې وجه نه جداشوې يم چې ځمايقين دې چې ځمادا قوم چې په کوم دين باندې دې داغلط دين دې، حقداردبندګئ صرف الله ﷻ دې چې دهغه سره څوك هم شريك نيشته دې، اوالله ﷻ هغه ذات دې چې تن تنهائې زمکې، اسمانونه اوټول کائنات پيداکړيدې، بل اوئيل چې څه هم دغسې خيال راجداکړې يمه، بل همدااقرار اوکړو حتی که ټول پدې يوخيال اوپه يوې کلمې موافق شو ، اودايوجماعت جوړشو دوئ دځان لپاره يوه عبادت ګاه جوړه کړه چې په هغې کښې به دوئ خالص دالله ﷻ عبادت کولو ،رو رو ددوئ خبردښهرخلکوته اورسيدلوو اوځنې خلکو بادشاه ته اوئيلو چې نورخلك دالله ﷻ دعبادت نه منع کوي خودزعماء سلطنت اولاد صرف دالله ﷻ عبادت کوي اوستادين نه نفرت کوي،بادشاه ددوئ دحاضرولوحکم اوکړو چې کله حاضرکړې شو نوبادشاه تنه تپوس اوکړو چې تاسودچاعبادت کوئ نودوئ په ډيرهمت اوجرات سره دکلمې توحيداعلان اوکړو چې ﴿رَبُّنَا رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾اوبادشاه ته ئې هم دصحيح عقيدې اودين دعوت ورکړلوبادشاه اولاددوئ دقتل حکم جارې کړو خودځنې درباريانو په مشورې سره بادشاه دوئ ته مهلت ورکړواوددوئ

دَجسم نه ئې قيمتي لباس اووخکلو اودوئ ته ئې اووئيل چې تاسوځوانان يئ ځکه ستاسو په قتل کښ جلدي نه کووم،تاسوته مهلت درکووم چې تاسوپدې خپلې عقيدې باندې سوچ اوکړئ اوداپرېدئ اوخپل اصل دين ته واپس شئ.

دې مهلت دوئ ته دَبادشاه نه تختيدلو موقعه ورکړه اوچې دوئ کله بهرته راووتلو نوخپل مينځ کښ ئې فيصله اوکړه چې دَخپل دين دَحفاظت لپاره به اوتختودوئ دَخپل ځان سره دکورونونه لږې لږې پيسې هم رواغستلې، لاره کښ دوئ سره يوشپونکې ميلاؤشو هغه هم ورسره شو اودهغه سره يوسپې وو چې هغه هم پدوئ پسې روان شو دوئ ډيرکوشش دهغه دَلرې کولو اوکړو خوهغه نه تلو اوځنې رواياتوکښ راځي چې هغه ته الله ﷻ قوت ګويائي ورکړو اودَدوئ نه ئې سوال اوکړو چې تاسومامه واپس کوئ ځه به ستاسوته چوکيداري کووم،دوئ تلل، تلل نوسترې شودَارام په خيال يوغارته ننه وتل نوهلته پدوئ خوب غالب شودوئ په غارکښ دننه اوده شول اوسپې ورته دَغارپه خوله کښ دوه ‹۲›خپې اوګدې کړې اوپه هغې باندې ئې سرکيخودلو اواوده شو اودوئ دغه شانتې اوده پاتې کړې شو درې سوه‹۳۰۰› کاله‹شمسي حساب سره› اويادرې سوه اونه‹۳۰۹›کاله‹قمري حساب سره› بل طرف ته دَمهلت ورځې ختميدلو نه پس بادشاه بيادوئ دَحاضرولوحکم اوکړو، خلکودوئ ډيرتالاش اوکړو خوچاته هم ميلاؤنشو ،بادشاه په بندرګاه اوسرحداتوباندې پهرې سختې کړې خودَدوئ هيڅ پته اونه لګيده اخرکارچې بادشاه مايوسه شونودوئ نومونه،نسب،پتې وغيره ئې شائع کړې‹لکه څرنګه چې نن صباپه اشتهارې ملزم پسې کيږي›اودَانعام اعلان ئې اوکړوبعض مؤرخين وائې چې دَدوئ نومونه،بادشاه نوليکلي بلکه دَبادشاه په خاندان کښ دوه ‹۲›کسان نورمؤمنان وو چې هغوئ خپل ايمان پټولوچې دَيونوم يندروس اودَبل نوم راياش وو هغوئ پدې خيال چې دَاهل ايمان حکومت به راشي نوهغوئ ته لپاره دَعبرت دوئ دَاصحاب کهفو نومونه، نسب خاندان اوټوله واقعه اوليکله اوبيائې دَتانبې په يوصندوق کښ کيخودله اوهغه ئې دفن کړو.

قيانوس الله ﷻ هلاك کړو، صدئ تيريدلې بادشاهان فناء کيدلو اوو اخرکار يو مسلمان بادشاه بيدروس،حکومت راغې،بيدروس، په خپله مسلمان وو ليکن دَده سره يولوئ جماعت حزب اختلاف دکافرانو هم وو چې هغوئ دَده سره په بعث بعدالموت کښ اختلاف کولو، اوهغوئ بيدروس. ته وئيلې وو چې په بعث بعدالموت باندې مونږه ته تسلي بخش نشانې پيش کړکنه مونږه ستادَحکومت نه بغاوت کوو ،بيدروس ،دَالله ﷻ نه دَشپې دعاء اوکړه چې ياالله ماته يوه

داسي نشاني اوښائي چې څه پرې داخلك مطمئن كړم، نوچې صباشونو دَاصحاب كهفو دَبيدارۍ واقعه رونماشوله.

اصحاب كهف چې كله غارته ننوتل نومازيګرې وخت وواوكله چې دَخوب نه راببدار شونوصبائي وخت وو ،دوئ چې خپل ځانونوته اوكتل نوبالكل ټهيك ټهاك وو نوځكه دوئ اوئيل چې ﴿لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ﴾دَبيدارئې نه ورستو دوئ ته لوږه لګيدلې وه نودوئ دايقين وو چې دقيانوس به زمونږ په تالاش كښ وي اوبل طرف ته دوئ سره دَخوراك متبادل بندوبست هم نووبغيردَبازارته دَتللونه،نومشوره ئې اوكړه اوپه مشورې سره ئې يوكس(تمليخا) بازارته اوليږلو ، اونصيحت ئې ورته هم اوكړو چې خپل ځان اوخپل حالت پټ اوساته اوپه بازاركښ چې كوم زيات صفا(نيك)سړې وي نودهغه نه روټئ راوړه،تمليخا چې كله بازارته راغې نوداعلاقه اوخلك ورته ټول نااشناغوندې ښكاره شو ،دَده ورسره څه غرض نوو ،دده مقصد خپلوملګروته طعام اوړل وو نودې يوتنوروالاته لاړاوهغه نه ئې روټئ راواغستله اوپيسې ئې ورته وركړې تنوروالاچې كله دَزړې زمانې پيسې اوكتلې نوحيران شواوبل كس ته ئې اوخودلې هغه بل ته اوهغه بل ته، كيدكيده چې په لږوخت كښ ټول بازارخبرشو ،بادشاه ته خبراورسيدلوچې داسې يوكس دې چې هغه سره دَزړې زمانې خزانه ده، تمليخاچې كله بادشاه ته حاضركړې شونوهغه ورنه دَنوم،نسب اودَعلاقې تپوس اوكړونوده ورته خپل نوم نسب اوښودلو ،ورته ئې اوئيل چې هغه خودرې سوه(۳۰۰)كاله مخكښ هلاك شويدې،نوبياورته تمليخاخپل ټول حقيقت بيان كړو ،اوبادشاه دَسركارې محافظ خانې نه دَدوئ والا تاريخي،كاغذهم رااويستلو اوبادشاه په ټول حقيقت باندې پوهه شو ،چې الله ﷻ څمادعاقبوله كړيده چې دادَبعث بعدالموت لپاره يوه لويه نشانې ده.

هغې نه ورستوبادشاه اودهغه ملګرې دَاصحاب كهفو سره ملاقات ته غارته لاړلو اوټولوسره ئې ملاقات اوكړلواودوئ ډيرخوشحاله شوچې الله ﷻ دقيانوس هلاك كړيدې اودهغه په ځائ دَمسلمانانوحكومت راغليدې،بادشاه دوئ ته شهرته دَتللوپيشكش اوكړو خودوئ معذرت اوكړو چې مونږ پدې غاركښ پدې حالت باندې خوشحاله يو ،اوځادرې ئې په ځان واچولو اوبيااوده شوچې ارواح ئې قبض شو(ابن كثير ،قرطبي،مظهري).

(۲)داغارپه كوم ځائ كښ واقع دې؟ دايوه تاريخي مسئله ده اوپه نصوصوكښ ددې څه ذكرنيشته اوددې وجه نه پديكښ اقوال دَعلمآء ومتعدد راغليدي.

(۱)ځني علماء فرمائی چې داد ترکي په شهرافسوس کښې واقع دې.چې دهغې اسلامي نوم طرسوس دې اوداغرچې په کوم کښې داغاردې دَشهرنه،(۱۵)کلومیټرلرې دې.علامه عینی رحمه الله دې په باره کښې فرمائی چې هورای اکثرالمفسرین اوحضرت مولانامحمدتقی عثماني صاحب فرمائی چې اکثرومسلمانانومفسرینوداقول ځکه اختیارکړیدې چې مسیحي مصادروکښې تقریباپه جزم سره داذکرشویده چې داکهف په افسوس کښې دې.

(۲)ځني مفسرین فرمائی چې داغارپه اندلس کښې غرناطه شهرکښې واقع دې امام قرطبی رحمه الله متعدد اقوال ذکرکړیدی اوپه اخرکښې ئې دَغرناطه قول ذکرکړیدې چې داابن عطیه قول دې اودهغه مشاهده ئې هم ذکرکړیده فرمائی چې:اندلس کښې دغرناطه شهرکښې یوه قریه ده دهغې سره نزدې،یوغاردې چې په هغې کښې څه مړي پراته دی اودوئ سره یودَسپي والاډهانچه هم پرته ده،اکثروجسمونونه غوښه ختم شویده صرف هډوکي دي اوپه ځنوپوري لاتراوسه پوري غوښه هم شته دې اوفرمائی چې پدې باندې صدئ تیرې شوې خوچاته ئې صحیح پته نیشته دې چې داڅوك دې اوخلك دهغوئ په باره کښې داګمان کوي چې دااصحاب کهف دی اوبیادَابن عطیه رحمه الله مشاهده ذکرکوي،چې څه پخپله دَدې غارکتلوته تلې یم، په سنه(۵۰۴) اودَهغوئ والاجسمونو په خپل حالت وو اونزدې ورسره یوجماعت هم وو،اویورومي زماني تعمیرهم دې چې هغې ته رقیم وئیلې کیږي اوبیامخکښې لیکلي چې دَغرناطه په اوچته حصه کښې دَقدیم ښهراثاراونشانات هم موندلي شویدي چې هغه دَرومیانوپه طرزباندې دي،اودې شهرته رقیوس وئیلې کیږي.دَامام ابن عطیه رحمه الله ددې قول نه معلومیږي چې دهغه ترجیح دیته ده،چې په غرناطه کښې واقع دغه غاراوپه هغې کښې پراته جسمونه دَاصحاب کهف دی، لیکن امام قرطبی رحمه الله دَ صنیع نه معلومیږي چې هغه پدې حق کښې ندې البته صاحب بحرپه ډیرپرزوراندازسره غرناطه ته ترجیح ورکړیده اوڅه اثاراوخپل مشاهدات بیانولونه ورستو فرمائی ويترجع كون اهل الكهف بالاندلس لكثرة دين النصارى بهاحتى انهاهى بلادمملكتهم العظمى، بحرج۶ ص۹۸).

(۳)ځني مفسرین فرمائی چې داغارپه شام کښې دي امام قرطبي رحمه الله داقول هم دَابن ابی عطیه رحمه الله نه نقل کړیدې اودَیوغارمشاهده ئې هغه والاذکرکړیده.

(۴)ځني مفسرین فرمائی چې داغاردَفلسطین نه لاندې اوایلة ته قریب واقع دې اوپه بلاد عرب کښې دې،دا قول منسوب دې ابن عباس رضي الله عنه ته،اومفسرینودَې تحت روایت ذکرکړیدې،

چې حضرت عبدالله ابن عباس﷛ فرمائی چې مونږه دحضرت معاویه﷛ سره دروميونو سره جهادته اووتلو، نولاره کښې زمونږه تيريدل دَاصحاب کهفوپه هغه غاراوشو چې دهغې ذکرالله﷯ په قرآن کښې کړيدې حضرت معاويه﷛ اراده اوکړه چې غارته دننه لاړشي او د اصحاب کهفو دَجسمونو مشاهده اوکړي نوحضرت ابن عباس﷛ منعه کړو.اوورته ئې اوفرمائيل چې داسې مکوه، ځکه چې الله﷯ ددې مشاهدې نه هغه هستي منع کړيده چې هغه ستانه ډيرغوره ده يعني حضور ﷺ ځکه چې الله﷯ هغه ته فرمائی ﴿لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا﴾ ليکن حضرت معاويه﷛ دَحضرت ابن عباس﷛ داخبره اونه منله اودَغارکتلولپاره ئې څوکسان اوليږلونوچې څنګه هغوئ غارته داخليدل نو الله﷯ يو د سخته هواراوليږله چې هغوئ ټول ئې دغارنه اويستلو(روح المعانی بحواله ابن ابی حاتم)

دَدينه دامعلوميږي چې دَحضرت ابن عباس﷛ رائې داده چې دَاصحاب کهفو الاغارپه روم کښې واقع دې لکه څنګه چې امام ابن عطية اوابوحيان وئيل ليکن ددې اودَهغوئ کښې فرق دادې چې هغوئ تعين دمقام کړيدې چې لوشه ده اوپدې قول کښې ددې مقام تعين نيشته دې. اګرچې محدثينوپدې اثرمنقوله باندې کلام کړيدې اوصحت ددې مشکوک دې.

(۵) دَماضي قريب محققين علمآء لکه مولاناابوالکلام ازاد،مولاناحفظ الرحمن سيوهاروي﷫ مولاناسيدسليمان ندوي﷫ وغيرهم دَځني تاريخي رواياتوسره دَتورات په ځونسخوسره اواثارکثيره سره داثابته کړيده چې دامذکوره مقام اوغارپه روم کښې موجوده پيټراچې دهغې اسلامي نوم بطراء ووهلته دې چې په مخکښې کتابونوکښې دَهغې نوم راقيم،ياراقمه راغليدې، اودَحضرت مولانامفتي محمدشفيع﷫ رجحان هم ديته دې

(۶) دَاردن ځني محقيقينودَډيرلوئ تحقيق نه داثابته کړيده چې دَاصحاب کهفوداغارپه اردن کښې دَعمان سره نزدې يوغرکښې داغارواقع دې، محقق عالم رفيق وفاالدجانی اوتيسيرظبيان په خپلوخپلوکتابونوکښې ددې لپاره ډيرقرائن اواثارذکرکړيدی محقق العصرحضرت مولانامحمدتقی عثمانی صاحب مدظلهم هم دَدوئ رائې غوره کړيده،ليکن بهتره اواحوط خبره هغه ده چې حضرت مولاناډاکټرشيرعلي شاه صاحب﷫ په خپل تفسير تفسيرسورة الکهف کښې ليکلي ده چې والحق ان امثال هذه الوقائع قدتعددت فی مختلف الازمنة والامکنة، فکلمااشتدالخناق علی الدعاة ورجال الايمان اوواالی الکهف من الکهوف حفاظاعلی عقيدتهم وايمانهم.... فکل ينسب قصتهم

الى ماحدث لرجال بلدهم، واماالکهف المذکورفی القرآن فلم یصرح القرآن ولاالحدیث بموقعه.
تفسيرسورة الکهف ص۲۲) یعنی حقه خبره داده چې دغه شانتي واقعي‌لکه څنګه چې داصحاب کهفوواقعه ده، په مختلفوزمانو اوپه مختلفوعلاقوکښ واقعي شويدې اوکله چې هم ظالمانوپه داعيانودَحق اوپه ايمان والوخلکوباندې به سختي شروع کړه نوهغوئ به دَخپلي عقيدي اودَايمان حفاظت لپاره به ئې په يوغارکښ پناه واغستله.... نوچاته چې په خپل علاقي کښ دغه شانتي غارظاهرشويدې نوهغوئ بس دغي مذکورفی القرآن واقعي ته منسوب کړيدي اوهرچې ده هغه واقعه چې په قرآن کښ مذکوره ده نوپه قرآن کښ دهغي دَموقعي په تعين باندې تصريح نشته اونه په حديث کښ، اودَارائ دَجمهورومفسرينوهم ده لکه دَامام قرطبی پشانته محقق عالم اومفسردَصنيع نه هم معلوميږي چې مختلف اقوال ذکرکولونه ورستويوجانب ته ئې ترجيح نده ورکړي، اوامام ابن کثير رحمه الله فرمائی چې الله تعالیٰ داواقعه مونږته بيان کړه ددي لپاره چې مونږ پدي باندې سوچ اوفکراوکړو(دَعبرت لپاره) اوداخبرئې رانکړو چې داغاردَزمکي په کوم يوشهرکښ واقع دې ځکه چې پدي کښ زمونږه څه فائده نيشته دې اونه څه شرعي مقصدددي سره متعلق دې... اوکچرته زمونږ لپاره پدي کښ يوديني مصلحت وې نوخامخابه الله تعالیٰ مونږته اوخپل رسول ﷺ ته ددي غاررهنمائي کړي وه دَدي وجه نه چې حضور ﷺ ارشاد فرمائيلي دې چې ماندې پريخودلي يوداسي څيز(حکم) چې هغه تاسوجنت ته نزدي کوي، اوجهنم نه مولري کوي مګرضرورماتاسوته دهغي علم درکړيدې.نواحوط اواليق داده چې ددي علم الله تعالیٰ ته اوسپارلې شي

(۳) ددوئ مده دَخوب څومره ده؟ دَدوئ موده دَخوب دَشمسي کال په حساب سره دري سوه(۳۰۰) اوقمري په حساب سره دري سوه (۳۰۹)نهه کاله وه نودَدوئ دَخوب نه بيدارئ کال(سنهٔ۵۵۰) شو، اودَحضور ﷺ ولادت (سنه۵۷۰) کښ شويدې نوګوياچې دَحضور ﷺ دَولادت مبارکه نه محض شل (۲۰)کاله مخکښ داواقعه رونماشويده، اوتعداد دهغوئ اوه(۷) ووَاوپه خنې رواياتوکښ راځي چې اوه(۷) کسان اصل وو اويوورسره په لاره کښ شپونکې ملګرې شوي وو.دابحث عنقريب راروان دې، اودَحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه ددوئ نومونه داسي منقول دې(۱) مکسلمينا(۲)تمليخا(۳)مرطونس(۴) بينونس(۵)وسارينوس(۶) دنوانس (۷)کشفيططنونس دَراعی وو،اودَسپي نوم ئې قطميروو(خازن ج۳ ص۱۲۱) اوطبري دَابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړيدی

چې تول دوئ اته(۸)کسان وو نومونه ئې دادي(۱) محسیمیلنینا(۲) یملیخا(۳) مرطوس(۴) کشوطوش(۵) بیرونس(۶) دینموس(۷) ویطونس(۸) قالوس(طبری ج۸ ص ۱۸۳).

(۴)اصحاب کهف ژوندي دي که مړه؟؟ نوصحیح اوراجح قول دادي چې اصحاب کهفو باندې الله ﷻ موت طاري کړیدې اوهغوئ وفات دي،لکه څرنګه چې تفصیلي واقعه کښې تېرشویدې

| |
|---|
| نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَاَهُمْ بِالْحَقِّ ؕ اِنَّهُمْ فِتْيَةٌ اٰمَنُوْا بِرَبِّهِمْ |
| [1]مونږه بیانوو په تاباندې قصه ددوئ په حق سره بیشکه دا یو څو ځوانان وو چې ایمان ئې راوړی وو په رب خپل باندې. |
| وَزِدْنٰهُمْ هُدًى ۖ وَّرَبَطْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اِذْ قَامُوْا |
| اوزیات کړي وو مونږه ددوئ لره هدایت، اومظبوط کړومونږه زړونه دهغوکله چې اودریدل هغوئ دبادشاه په مخکښې |
| فَقَالُوْا رَبُّنَا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَنْ نَّدْعُوَا مِنْ دُوْنِهٖۤ اِلٰهًا |
| پس اوئیل ئې چې رب زمونږه رب داسمانونو اودزمکې دې هیڅ کله نه بلومونږه سیوا دالله ﷻ نه بل څوك حقدار دعبادت |
| لَّقَدْ قُلْنَاۤ اِذًا شَطَطًا ۞ هٰۤؤُلَآءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ |
| خامخا په تحقیق سره وئیلې به وي مونږه په دغه وخت کښې خبره ډیره دروغ، داقوم زمونږه دوئ نیولي دي سیوا دالله ﷻ نه |
| اٰلِهَةً ؕ لَوْلَا يَاْتُوْنَ عَلَيْهِمْ بِسُلْطٰنٍۭ بَيِّنٍ ؕ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى |
| خدایان نور. ولې نه راوړي دوئ به خپلوخدایانو باندې دلیل ښکاره پس څوك لوئ ظالم دې دهغه چانه چې تړې |
| عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۞ |
| په الله ﷻ باندې دروغ. |

﴿نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ﴾مخکښې ایتونوکښې دشبهې اجمالي جواب وو، اوس تفصیلي جواب ذکرکیږي (قصة) په لغت کښې دچادقدمونو داثارو پیروي کولوته وئیلې کیږي،دلته تنه مراد په تفصیل سره دهغوئ واقعه بیانول دي، اوجمله اسمیه غوره کړې شوه په فعلیې باندې لپاره

(1) جواب شبهه اولی تفصیلا بطرق چهارده

دتاكيد ،ځكه چې جمله اسميه كښې دوام اواستمراروي.اوپدي ځائ كښې تكراراسنادهم دي﴿نَبَأَهُم﴾ پديكښې اشاره ده عظمت دواقعي ته ځكه نبا وئيلې كيږي دلوئ شان والاخبرته﴿بِٱلۡحَقِّ﴾ په معنې دصدق سره دي اوجارومجروريا صفت دې دمصدرمحذوف لپاره اى نقص قصصامتلبسا بالحق، اوياحال دي دضميردنقص نه اويادضميردَ﴿نَبَأَهُم﴾ نه اى نقصه حال كونهامتلبسين بالحق اوياتقريردعبارت داسي دي،نحن نقص نباهم حال كونهم متلبسابالحق.(روح) اوپدي كښې اشاره ده چې دحضورﷺ په دوركښې هم داواقعه بيانيدله ليكن دروغ به ورسره خلط وو ﴿إِنَّهُمۡ فِتۡيَةٌ﴾ داجمع د(فتى) ده لكه چې (صبية) جمع د(صبي) راځي اوابدل دي دضميرد﴿إِنَّهُم﴾نه اوپدي كښې اشاره ده چې دوئ قبول دحق اودظالم بادشاه په مخ كښې كلمه حق وئيل دنوجوانئ په اولي مرحلي كښې وو اودوئ ته ددنياهرقسم لذتونه اوخواهشات ميسروو ليكن پدي عمركښې دوئ خواهشات اوغورځول اوپه دين باندې صبراواستقامت لپاره دغره اوغارژوند اختياركړو اوپه اصحب الكهف سره ملقب شو اوحافظ ابن كثيرؒ فرمائى وهم اقبل للحق واهدى للسبيل من الشيوخ الذين قدعتوا وانغمسوا فى دين الباطل،ولهذا كان اكثرالمستجيبين لله تعالى ولرسوله شبابا(ابن كثيرص۹۳ ج۳)يعنى نوجوانان ډيرښه اوزرقبولونكى دحق دي اوډيرزرهدايت لاري موندونكي وي په نسبت سره هغه بوډاګانوته چې هغوئ سركشي اختياركړي وي اوپه باطل كښې درننوتي وي ﴿ءَامَنُواْ بِرَبِّهِمۡ﴾ پديكښې التفات دي دتكلم نه غيبت ته اودپديكښې اشاره ده چې ددنيا خواهشات پريخودل دځوانئ په عمركښې اواخرت غوره كول دادتربيت رباني،اثروو﴿وَزِدۡنَٰهُمۡ هُدٗى﴾ مراد دزيادت دهدايت نه ثمرات دهدايت دي، يعني داوامروامتثال اوترك دمنهياتو پديكښې ورته ترقي ميلاؤشوه اويامراد هدايت نه يقين دي چې دوئ يقين په اللهﷻ باندې مضبوط شو اويامراد په زيادت سره توفيق دي اعمال صالحواوتثبت دې په خپلې عقيدي باندې،نورجع ددي اقوالوتولوديته ده چې مراد په زيادت دهدايت سره نفس ايمان كښې زيادت ندي پلكه ثمراتودايمان اوتوفيق اوتثبت على الايمان كښې زياتوالى مراددي اودامستلزم ندي زيادت لره په نفس ايمان كښې،﴿وَرَبَطۡنَا عَلَىٰ﴾يعنى چې دوئ په خپل رب ايمان راوړلو نودنيك اعمالوتوفيق وركولوسره سره اللهﷻ دوئ ته ربط قلبي،مرتبه هم وركړه چې دادهدايت په

مراتبوكښ دريمه مرتبه ده چې په مقابله كښ ئې ختم راځي.اوتفصيل ددي مراتبودهدايت اوضلالت په ابتداء دسورت البقره آيت نمبر ختم الله على قلوبهم الخ كښ تيرشويدي اومراد په ﴿وَرَبَطْنَا﴾سره زړونه دهغوئ مضبوط كول اومطمئن كول دي. خكه چې ربط قلبي دهغه قوت معنوي نه عبارت دې چې دسختيواوتكليفونوپه وخت كښ انسان ددي قوت په بركت سره په هغې باندې صبرلرونكې اوپه خپلې عقيدې باندې مطمئن وي اويادهغه كيفيت اطميناني نه عبارت دې چې حاصليږي په وخت دشدائدوكښ لكه څرنګې چې په محسوساتوكښ ديولذيذخوراك نه ورستوچې كوم دسرور كيفيت حاصليږي

﴿إِذْ قَامُوا﴾ (اذقاموا) ظرف متعلق دې د﴿وَرَبَطْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ﴾سره اومرادپه قيام سره ياقيام اولاړواليدې دهغه ظالم بادشاه په مخ كښ، چې كله هغه دوئ رااوغوختلونودوئ دهغه په مخ كښ اودريدلواوپه ډيرجرائت اوبهادرئ سره ئې نعره توحيداوچته كړه،اوبياد دوئ ته دبت پرستې نه اختياروداودجي نه دقتل دهمكي وركړه،اوددوئ دبدنونه ئې عمده لباس اوزيورات اويستلونوالله ﷻ پدې وخت كښ ددوئ زړونه مضبوط كړل اودهغه ددهمكيونه مرعوبه نشو،اوبعض مفسرين فرمائي چې مراد دقيام نه،مضبوط عزم دهجرت ددوئ دې،هركله چې يوسړې ديوكارمضبوط عزم اوكړې نوعرب وائي قام فلان الى كذا چې فلانې سړې پدې كارپسې پاسيدلو،نودلته هم مراد ددوئ مضبوط عزم مراد دې.

﴿رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾چې كله بادشاه دوئ ته اوئيل چې بتانوته سجده اوكړئ نودوئ انكار، اوكړو اودااوئيل چې ﴿رَبُّنَا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾چې زمونږه رب هغه دې چې هغه داسمانونو اوزمكې رب دې نوداتوحيد دربوبيت دې.

﴿لَن نَّدْعُوَا﴾ (لن) دنفي تابيدلپاره دې او﴿إِلَٰهًا﴾نكره ده په سياق دنفي كښ واقع شويده نومفيده ده لپاره دعموم اوشمول اومراد په﴿نَّدْعُوَا﴾سره عبادت دې، مقصد دادې چې مونږ دبل هيڅ چاعبادت نه كوو كه هغه فرشته وي، نبي وي،ياولي وي داتوحيددالوهيت دې،اوتوحيددربوبيت په منزله دوسيلې دې اوتوحيددالوهيت په منزله دغاية اومقصود دې اووسيله مقدمه وي په اوغائي باندې نوددې وجه نه اولاً ذكردتوحيد ربوبيت اوشواوثانيا

دَتوحيد اولوهيت ذكراوشولو﴿لَقَدْ قُلْنَآ إِذًا شَطَطًا﴾لام په﴿لَقَدْ﴾كښې لام موطئه للقسم دې اودلته قسم محذوف دې او﴿إِذًا﴾ حرف جزاء دې نومعلومه شوه چې داجمله جزاء ده اوددې نه مخكښې جمله شرطيه مقدره ده اى لودعونا وعبدنامن دونه الها والله لقدقلنااذا الخ او(شطط) وئيلې كيږي بعد اولرې والې ته دَحق نه اوتوصيف دَقول په شطط سره يامجازفى الحذف دې يعنى قولا ذاشطط اوياحمل ئې مبالغة دې اودوئ په عبادت دَغيرالله باندې قول شطط مرتب كړو ځكه چې عبادت خالي نوي دَاعتراف دَالوهيت دَمعبودنه،چې څوك دَچاعبادت هم كوي نوپه قول اوپه خولې سره به دهغه دَالوهيت اعتراف كوي.

﴿هَٰٓؤُلَآءِ قَوْمُنَا﴾داهم دَهغوئ دَبيان حصه ده چې دَظالم بادشاه مخې ته كړې وو چې زمونږدقوم مشركانوځان لپاره خودساخته معبودان جوړكړيدي چې دهغې عبادت كوي كچرته دامعبودان صحيح اوبرحق وي نودوئ ولې پدې باندې ثبوت اودليل نه پيش كوي﴿هَٰٓؤُلَآءِ﴾مبتداده او﴿قَوْمُنَا﴾ بدل ياعطف بيان دې او ﴿ٱتَّخَذُوا۟ مِن﴾جمله فعليه په محل دَخبركښې ده، اوپه اسم اشاره يعنى﴿هَٰٓؤُلَآءِ﴾سره ذكركولوكښې دَهغوئ دَمعبودانو تحقيرته اشاره ده﴿لَّوْلَا يَأْتُونَ عَلَيْهِم﴾ لولا په معنې دَحرف تخضيض (هلا) سره دې اودامطالبه دَدليل على سبيل العجيزوالانكارده او﴿عَلَيْهِم﴾په تقديردَمضاف سره دې يعنى على الوهيتهم ﴿فَمَنْ أَظْلَمُ﴾ داتتمه دَهغوئ دَبيان ده چې دخدائ سره شريك جوړه ول الله ﷻ باندې افتراء ده اوداډيرلوئ ظلم دې.

﴿وَإِذِ ٱعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ إِلَّا ٱللَّهَ فَأْوُۥٓا۟ إِلَى ٱلْكَهْفِ﴾

اوهركله چې تاسوجداشوئ ددوئ نه اودهغه چانه چې عبادت كوي دوئ سيوا دالله ﷻ نه پس لاړشئ يوغارته

﴿يَنشُرْ لَكُمْ رَبُّكُم مِّن رَّحْمَتِهِۦ وَيُهَيِّئْ لَكُم مِّنْ أَمْرِكُم مِّرْفَقًا ۝١٦﴾

فراخ به كړي لپاره دتاسورب دستاسو درحمت خپل نه اوپيدا(جوړكړي) به كړي لپاره دستاسو ،ستاسوپدې كاركښې ارام(فائدې)

﴿وَتَرَى ٱلشَّمْسَ إِذَا طَلَعَت تَّزَٰوَرُ عَن كَهْفِهِمْ ذَاتَ ٱلْيَمِينِ﴾

اووينې به ته نمرلره (كچرې ته هلته ته وې) چې كله راخيژي ميلان كوي(اړيږي) دغاردوئ نه ښي طرف ته

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا غَرَبَت تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ الشِّمَالِ وَهُمْ فِي فَجْوَةٍ مِّنْهُ ۚ ذَٰلِكَ | | | | | | | | |
| اوكله چې ډوبيږي(غروب كوي)نوپريږدي دوئ چپ(گس) طرف ته اودوئ په ارت ځاى كښې دي دغاړه د | | | | | | | | |
| مِنْ آيَاتِ اللَّهِ ۗ مَن يَهْدِ اللَّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۖ | | | | | | | | |
| دلائلو دقدرت دالله ﷻ نه دي. هغه څوك چې هدايت ورته اوكړي الله ﷻ پس هغه هدايت موندونكى دى | | | | | | | | |
| وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ﴿۱۷﴾ | | | | | | | | |
| اوهغه څوك چې الله ﷻ ئې گمراه كړي پس هيڅ كله به اونه مومې ته لپاره دده دوست لاره خودونكى | | | | | | | | |

﴿وَإِذِ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ﴾ داتفصيل دَ ﴿إِذْ أَوَى الْفِتْيَةُ إِلَى الْكَهْفِ﴾ دې اوداخطاب دهغوئ يوبل ته دې اوداقول ئې په هغه وخت كښې اوكړو چې كله بادشاه دوئ ته مهلت وركړو نودَدوئ رئيس، مكسلمينا،يايمليخا، دوئ ته اوئيل چې كله تاسودَدې مشركانودين پريخودلو اوددوئ نه په دين كښې جداشولئ نواوس دَخپل دين اودځان دَحفاظت لپاره يوغاركښې پناه واخلئ اوپه بدن سره تنه هم جداشئ اوبعض وائې چې داكلام دَالله ﷻ دې يعنى الله ﷻ دوئ ته اوفرمائيل چې تاسوغارته هجرت اوكړئ ليكن داقول ضعيف دې اواعتزال ونيلې كيږي جداكيدلوته كه په زړه سره وي يابدن سره وي﴿وَمَا يَعْبُدُونَ﴾(ما)ياموصوله ده اويامصدريه ده په دواړو صورتونوكښې عطف ئې په ضميرمنصوب متصل يعنى﴿هُم﴾باندې دې اودَاعتزال تحت دې يعنى تاسودَهغوئ نه اودهغوئ دَمعبودانو نه جداشولئ﴿إِلَّا اللَّهَ﴾دااستثناء يامتصله ده كچرته داصحاب كهفوقوم دَبتانو دعبادت سره دَالله ﷻ عبادت هم كولو اوكچري هغوئ الله ﷻ نه پيژندلواوصرف دَبتانوعبادت ئې كولونوبيااستثناء منقطعه ده(بحر)اومدارك وائې چې﴿وَمَا يَعْبُدُونَ إِلَّا اللَّهَ﴾ جمله معترضه ده اوداكلام دَالله ﷻ دې چې اصحاب كهفودَاعتزال وجه ئې بيان كړه، چې دوئ صرف دَالله ﷻ عبادت كولواودبل چاعبادت ئې نه كولو ،اوپدې صورت كښې مانافيه ده اواستثناء مفرغه ده﴿فَأْوُوا إِلَى الْكَهْفِ﴾داجواب دَ (اذا) دې﴿يَنشُرْ لَكُمْ﴾دامتعلق دې

دَ﴿رَبَّنَآ ءَاتِنَا مِن لَّدُنكَ رَحۡمَةً ﴾سره يعنى الله ﷻ به خپل رحمت په تاخوباندې خورکړې اوپدې هجرت په کارکښې دَاسانئ سامان به مهياکړې اوپدې کښې اشاره ده چې مهاجرډپاره په الله ﷻ په ذات باندې توكل اوبهروسه كول پكاردى،﴿مِّرۡفَقًا﴾ غوره قول مطابق (مرفق) بكسرالميم وبفتح الفاء اوبفتح الميم وبكسرالفاء دواړو لغاتو معنې يوه ده منفعت،کامیابی اوارام ته وئیلې کیږي﴿وَتَرَى ٱلشَّمۡسَ ﴾ دادَتفصيل دَ ﴿كَانُواْ مِنۡ ءَايَٰتِنَا عَجَبًا ﴾دې اوحالت دَغار ذکرکیږي، چې الله ﷻ په خپل قدرت سره دوئ ته داسي غارورکړو چې پدوئ باندې نمرنه لګيدلوليكن تازه هوابه ورته هروخت رسيدله اوپه ﴿تَّزَٰوَرُ ﴾سره خطاب هرمخاطب ته اوياحضورﷺ ته دې،تزاور داپه اصل کښې تتزاور وو يوه تاء تخفيفا حذف کړې شويده،او يوطرف ته كيدلوته وئيلې كيږي، يعنى نمرچې كله طلوع اوكړې دَغارپه ښي طرف ته په څنګ باندې دَدوئ نه تيرشي﴿وَإِذَا غَرَبَت تَّقۡرِضُهُمۡ ﴾قرض په معنې دَترك سره دې يعنى نمرچې كله غروب كوي دَغارپه چپ (ګس)طرف ته اوګرځي اوپه غاركښې دننه نه داخليږي، نودَجمهورو په نيزدَايت مقصد دادې چې نمردَطلوع اودَغروب پدواړو وختونوكښې ددوئ نه ډده كوي اوپدوئ باندې نه لګي باوجود ددې چې دوئ دغارپه يوارت ځائ كښې پراته دې ليكن بعض مفسرين فرمائى چې دَ﴿تَّقۡرِضُهُمۡ ﴾ مقصد دادې چې دَغروب په وخت كښې پدوئ باندې نمرلګ وخت دپاره لګي اوبياپه جلدئې سره تنه لرې كيږي.لكه څرنګه چې قرض وركړې شي اوبياپه جلدئې سره او غوختلې شي (بحر) ﴿وَهُمۡ فِي فَجۡوَةٖ مِّنۡهُۚ ﴾ (فجوه) وئيلې كيږي ارت ځائ ته يعنى دوئ دَغارپه ارت ځائ كښې پراته دې چې هلته نمرلګيدل ډيرممكن وي خوالله ﷻ دَدوئ دَبدنودَحفاظت لپاره اودوئ دګرمئ اودَيخنئ نه بچ كولولپاره داسي انتظام كړې دې چې نه خوپه دوئ داسي نمرلګي چې رنګونه يې متغيرشي اونه ئه نمرداسي غائب دې چې دوئ بدبويه شي اويادَيخنئ دَوجي نه په تكليف كښې مبتلا شوي دي(قرطبي) ﴿ذَٰلِكَ مِنۡ ءَايَٰتِ ٱللَّهِۗ ﴾په (ذلك) سره غورقول مطابق اشاره ده﴿تَّزَٰوَرُ﴾ او(قرض) ته په طلوع اوغروب كښې ﴿مَن يَهۡدِ ٱللَّهُ ﴾يعنى دَهدايت اوايمان توفيق وركونكې صرف الله دې،اوالله

توفيق هغه چاته ورکوې چه دحق اوهدايت طلب کونکې وی لکه اصحاب کهف. اومعاندته الله توفيق نه ورکوی لکه قوم داصحاب کهف

| |
|---|
| وَتَحْسَبُهُمْ اَيْقَاظًا وَّهُمْ رُقُوْدٌ ۖ وَّنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ وَذَاتَ الشِّمَالِ ۖ |
| اوته به گمان کوې هغوئ باندې دويخوحالانکې دوئ اوده دي.اوارووواړه وو مونږ دوئ ښي طرف ته اوکس طرف ته |
| وَكَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيْدِ ۚ لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ |
| اوسپي ددوئ غوړونکې دې دواړو ليچو خپلوله په درشل باندې (په غار)کچرې ورښکاره شوې ته په دوئ باندې |
| لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَّلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ⑱ |
| نواوبه گرځې ته ددوئ نه تيخته کونکې اوډك به شې ته ددوئ نه په رعب سره |

﴿وَتَحْسَبُهُمْ﴾ دا متعلق دي د﴿فَضَرَبْنَا عَلٰىٓ اٰذَانِهِمْ﴾ سره پدې کښې داصحاب کهفو په غارکښې دخوب کيفيت بيانيږي اودغه شانتې دغاردرعب والامنظرذکرکيږي يعنی چې کوم وخت کښې هغوئ په غارکښې اوده وو نوکه چاورته کتلې وې نوهغه به په دوئ باندې دويخوگمان کولو .اوالله ﷻ دوئ په يوارخ اوبل ارخ اړل راړولو ، اودَدوئ سپې دغارپه خله کښې خپې مخې ته اوږدې کړي پروت وو اوداغاردومره درعب نه ډك وو چې څوك هم ورته دننه نشوتللې﴿اَيْقَاظًا﴾ جمع ده يقظ ده ويخ ته وئيلې کيږي.اوپه دوئ باندې دويخوگمان کولو سبب څه شې وو؟ نوبعض مفسرين فرمائی چې سبب لپاره دگمان په دوئ باندې دويخوهغه پرانستل دسترگودددوئ وو، چې دوئ اوده وو خوسترگې به ئې کولاوې وې (قرطبی،بحر)اوابن کثير رحمه الله دذئب نه نقل کړيدی، چې دوئ اوده وو خوسترگې به ئې پټې ولې اوپرانستلې لکه دويخ سری پشانتې.ليکن محدثين فرمائی چې داوجه په يوصحيح سندسره نده ثابته نوددې وجه نه داوجه غيرمختاره ده، اوځنې مفسرين فرمائی چې علت ددې گمان لپاره تقليب (اړو راړول) ددوئ وو چې دوئ به کله ښې طرف ته اوختلواوکله چپ (گس)طرف ته.ليکن داوجه لپاره دحسبان وئيل څکه غوره نده چې کچرې داعلت اوسبب لپاره دحسبان وې نوبيکارده چې دامقدم ذکرشوې وې. نوزياته صحيح وجه دگمان هغه داده چې ددوئ جسمونه بالکل تروتازه وو،کپړې ئې صاف ستهره وې چې څه قسم

خيري پرنوو، اونه ئې په بدن باندې څه قسم تکاوټ اوانقباض وو. حکمت پدي کښې دهغوئ دجسمونوحفاظت وو دروستيدلونه﴿وَكَلْبُهُم بَٰسِطٌ﴾مرادتنه سپي دې اوزمرې تنه مرادکول بعيد اوخلاف مشهوراوظاهردی او(باسط) صيغه داسم فاعل ده غوړولوته وئيلې کيږي. اوداهيأت دچوکيدارۍ دې اودسپي پدسي هيأت سره کيناستل لپاره دحفاظت دهغوئ وو. چې څوک انسان ياحيوان دننه داخل نشي، او﴿بِٱلْوَصِيدِ﴾وئيلې کيږي درشل اوخارج دبيت ته. نوپديکښې اشاره ده چې داسپي دغارنه بهروو اوپدي کښې دالله ﷻ حکمت وو ځکه چې حديث کښې راځي انّ الملئكة لاتدخل بيتا فيه كلب اوتصاويرو اودغه شانتې دايت نه داهم معلومه شوه چې دچوکيدارئ لپاره سپي ساتل جائزدي، اوبلاضرورته سپي ساتل سخت ګناه اوناجائزدي اوپه احاديثوکښې ممانعت راغليدې عن ابى هريرةؓ قال قال رسول اللهﷺ من اتخذكلباالاكلب ماشية اوصيدزرع انتقص من اجره كل يوم قيراط (وفى رواية ) قيراطان(متفق عليه) ترجمه:نبيﷺ فرمائي:چاچې داځارو يافصل حفاظت نه علاوه بل څه دپاره سپي اوساتلونوروزانه دهغه داجراوثواب نه يوقيراط ثواب کميږي اوپه بل روايت کښې ددوه قيراطونوذکردې.

قرطبي دابن عطيهؒ نه نقل کړيدې چې هغه اوفرمائيل چې ماته خپل پلارداوئيل چې ماداَبوالفضل جوهريؒ نه واوريدوچې هغه جامع مسجدمصرکښې ووپه سنه(۴۲۹)کښې چې هغه اوفرمائيل چې کوم کس دنيکانوخلکوسره محبت ساتي نودهغوئې دنيکئ حصه ده ته هم ميلاويږي، داصحاب کهفوسپي چې کله خپل محبت اوتعلق دهغوئې سره جوړکړو نوالله ﷻ په قرآن مجيدکښې دهغوئ دسپي تذکره هم دهغوئ سره اوکړه، امام قرطبيؒ فرمائي چې کله دسپي داحال دې چې دصلحاء اواولياء سره محبت اوتعلق ساتلو دوجې نه دالويه مرتبه حاصله وې چې الله ﷻ دده ذکرپه قرآن کښې دهغوئ سره کوي(اوپه تلاوت ئې نيکې ميلاويږي) نوستاځه خيال دې په هغه انسانانوباندې چې مؤمنان دې اوموحدين دې چې محبت ساتي داولياء وصالحينوسره بلکه پدي کښې تسلي ده هغه مؤمنانوته چې عملونه دهغوئ دلويو مراتبو حاصلولونه کوتاه دې.

د حضرت انسؓ نه روايت دې چې فرمائي چې زه دحضورﷺ سره دمسجدنبويﷺ نه راوتلم چې په دروازي کښې يوکس (اعرابى) ميلاؤشو اودحضورﷺ نه ئې تپوس اوکړو يارسول اللهﷺ متى الساعة؟ اې دالله ﷻ رسولهﷺ قيامت به کله وي؟ حضورﷺ ورته اوفرمائيل چې څه

تیاری دې کړیدې(چې داسې تپوس ئې کوي) نوهغه سړې شرمنده غوندې شوبیائې اوئیل چې یارسول اللهﷺ چې ما دَقیامت لپاره تیاري نه په ډیرونفلي مونځونوسره کړیده اونه په ډیرونفلي روژوسره اونه په ډیرو(نفلي) صدقاتوسره کړیده لیکن دَاللهﷻ اورسولﷺ سره محبت ساتم نوحضورﷺ هغه ته ارشاداوفرمایه چې فانت مع من احببت.یعني ته به دَقیامت په ورځ دَهغه چاسره وې چې ته ورسره محبت ساتي حضرت انسؓ اوفرمائیل چې پس ځه محبت ساتم دَاللهﷻ سره دهغه رسولﷺ سره اودَابوبکراوعمرؓ سره.ځه امیدساتم چې ځماحشربه دَهغوئ سره وي اګرچه ځماعمل دَهغوئ دَاعمالو پشانتې ندې.

**فائده:** دَسپي دَاصحاب کهفوسره مماثلت هم نوو.هغې باوجود اللهﷻ دومره لوئ مقام ورکړو.اودَانسان چې دَاولیاء سره مماثلت هم دې اوورسره مشارکت هم وي په عقددَایمان کښې اوکلمې دَاسلام کښې نوچې کله محبت هم راشي نودَده مقام بیاډیرلوئ شي اودَاصحاب کهفو دَسپي په باره کښې داخبره مشهوره ده چې دې به اللهﷻ جنت ته دَانسانې شکل کښې داخله وي.خوداپه حدیث صحیحه سره نده ثابته.

﴿لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ﴾دادهغوئ دَغارحالت بیانیږي اوداهم دَهغوئ یوکرامت وو چې اللهﷻ دَهغوئ غارته داسې رعب ورکړې وو چې څوك ورته هم دننه نشوتللې اوسبب دَرعب کښې دَمفسرینومتعدد اقوال راغلیدي څوك وائې چې سترګې کولاوپاتې کیدل سبب دَرعب وو.څوك وائې چې دَهغوئ ویخته اونوکونه اوږده شوي ووڅوك وائې چې اړخونه به ئې په کثرت سره بدلول رابدلول. اوڅوك وائې چې محل وقوع دَغارداسې وه چې سړې به هلته یریدلو ځکه چې دَابادئ نه لرې په یواوچت غیرابادځائ کښې وو.لیکن داټولې توجیهات خلاف ظاهراوخلاف متبادردي. صحیح خبره داده چې اللهﷻ دَدوئ غاردَرعب نه ډك کړې وو.اوخطاب په ﴿اَطَّلَعْتَ﴾او﴿لَوَلَّيْتَ﴾کښې اګرچې حضورﷺ ته دې لیکن مقصود پدې سره عام انسانان دي نودَحضورﷺ مرعوبه کیدل لازمې ندې ځکه چې اللهﷻ حضورﷺ ته ددې نه لوئ لوئ قدرتونه اوعجائبات ښکاره کړي وو.اوکچرې مقصود بالحکم هم حضورﷺ شي نوبیامرادپدې سره په اعتباردَنفس طبعیت بشریه سره دې یعني نفس طبعیت بشریه چې مرتبه دَلابشرط شئ ده نودهغې په اعتبارسره رعب اوفرارمراددې،اوهرچې دې خطاب حضورﷺ ته مرتبه دَبشرط شئ یعني نبوت دصفت په متصف کیدلوکښې نوپدې حکم سره ندې متصف، ځکه چې پدې مرتبه کښې اللهﷻ

حضورﷺ ته ددي نه هم لوئ لوئ عجائبات اوقدرتونه خودليدې چې دعام انسان لپاره دهغې كتل ناممكن دي(۳)اوياتنه مراداطلاع حاصل پدوئ باندي بغيردأذن اواجازت دالله ﷻ نه ده،نوپدي صورت كښ رعب اوفرارراځي، اوبغيردأذن دالله ﷻ نه حضورﷺ اطلاع نود حاصل كړي اونه ده حضورﷺ نه، دامكنه وه نوددي وجه نه ترتب دجزاء پري نيشته دي

| |
|---|
| وَكَذٰلِكَ بَعَثۡنٰهُمۡ لِيَتَسَآءَلُوۡا بَيۡنَهُمۡ ؕ قَالَ قَآئِلٌ مِّنۡهُمۡ كَمۡ |
| اودغه شان بيداركړل مونږه دوئ لپاره ددي چې تپوسونه اوكړي په خپل مينځ كښ اونيل يوويونكي ددوئ نه چې څومره وخت |
| لَبِثۡتُمۡ ؕ قَالُوۡا لَبِثۡنَا يَوۡمًا اَوۡ بَعۡضَ يَوۡمٍ ؕ قَالُوۡا رَبُّكُمۡ اَعۡلَمُ بِمَا |
| حصارشوئ تاسو دوئ اوئيل حصارشوي يومونږه پوره ورځ يانميګړې ورځ. دوئ اونيل رب ستاسو ښه خبردې په هغې |
| لَبِثۡتُمۡ فَابۡعَثُوۡۤا اَحَدَكُمۡ بِوَرِقِكُمۡ هٰذِهٖۤ اِلَى الۡمَدِيۡنَةِ فَلۡيَنۡظُرۡ اَيُّهَاۤ اَزۡكٰى |
| چې حصارشوئ تاسو پس اوليږئ تاسو يوكس پدې پيسو خپلو سره ښارته. پس اودي ګوري چې كوم يوددوئ نه زيات پاكيزه |
| طَعَامًا فَلۡيَاۡتِكُمۡ بِرِزۡقٍ مِّنۡهُ وَلۡيَتَلَطَّفۡ وَلَا يُشۡعِرَنَّ بِكُمۡ |
| خوراك والادې پس راى وړي تاسوته رزق دهغه نه اونرمي دي كوي اونه دي خبره وي په تاسو باندې |
| اَحَدًا ۝ اِنَّهُمۡ اِنۡ يَّظۡهَرُوۡا عَلَيۡكُمۡ يَرۡجُمُوۡكُمۡ اَوۡ يُعِيۡدُوۡكُمۡ |
| هيڅ څوك.بيشكه دوئ كچري غالب شي په تاسوباندې سنګساربه كړي تاسوبابه مواوګرځوي واپس وي. |
| فِىۡ مِلَّتِهِمۡ وَلَنۡ تُفۡلِحُوۡۤا اِذًا اَبَدًا ۝ |
| خپل دين ته اوهرګزبه كامياب نشئ تاسوپدغه وخت كښ هيڅري هم. |

﴿وَكَذٰلِكَ بَعَثۡنٰهُمۡ﴾ دامتعلق دې په ﴿ثُمَّ بَعَثۡنٰهُمۡ﴾ سره اودهغې تفصيل دې. اوپدي كښ دهغوئ دخوب نه درابيدارولو حالت اوحكمت ذكركيږي چې دوئ ديوبل نه تپوس اوكړې چې څومره موده دوئ خوب كړيدي، نودابه معلومه شي چې اصحب كهف دخپل حالت نه هم خبرنوو.اوكاف په﴿وَكَذٰلِكَ﴾كښ دعامومفسرينو په نيزلپاره دتشبيه دې، مشبه

ایقاظ (رابیدارولو) دَدوئ دي، اومشبه به دغه انامتراوده کول ددوئ دي اووجه دشبه داده چې دواړه حالتونه دال دي په کمال قدرت دَالله ﷻ باندي، نودعامو مفسرینو په مذهب دَایت مقصد دادې چې الله ﷻ ددوئ په صحیح بدن سره بغیردَانقباض دَنفس نه رابیدارولو حالت تشبه ورکوي، دَاوږود خوب باندې اوده کولوحالت سره، چې دادواړه حالته دَالله ﷻ دقدرت لوئ نشانئ دي، یعني څرنګې مونږه دوئ په اوږودخوب سره اوده کړي وو، اوهغه حالت دالله ﷻ په قدرت باندې دال وو، نودغه شانتې دوئ مونږه په صحیح بدن سره رابیدارهم کړل او دحضرت شیخ الشیوخ مولاناحسین علي صاحب رحمه الله په نیز (کاف) لپاره دَبیان کمال دي اودتشبیه لپاره ندي اودایت مقصد دادې چې پدي کښ دَالله ﷻ کمال قدرت بیانیږي چې الله ﷻ فرمائي چې دومره اوږدي مودې نه پس مونږه دوئ صحیح، سالم رابیدارکړل دازمونږه دَقدرت کمال وو اودَهغوئ په تصرف کښ دانوه، اوداتوجیه زیاته الیقه ده ددي مقام سره ﴿لِيَتَسَآءَلُوا﴾ دامتعلق دې په ﴿بَعَثْنَٰهُمْ﴾ پوري اولام دَغوره قول مطابق لپاره دَعاقبت دي اوبعض مفسرین فرمائي چې لام لپاره دَعلت دي اوداحکمت اوعلت دَبعث بیانیږي ﴿قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ﴾ مرادتنه دَهغوئ مشرمکسلمینا دي ﴿كَمْ لَبِثْتُمْ﴾ داسوال دي دَعدد نه چې څومره ورځي تاسوخوب اوکړو؟ اوباعث پدي سوال باندي یادَهغوئ ظاهري حالت بدلیدل وو چې خپل ظاهري حالت ته ئې اوکتلونوهغه بدل بدل وو نوځکه ئې سوال اوکړو، اویاورته لوږه سخته لګیدلې وه نودوئ یقین پیداشو چې دادومره سخته لوږه دَډیروخت دَتیریدلودَوجې نه ده اویادوئ داوقاتو دَمونځ فوت کیدلودګبهراهټ نه داتپوس کړې وو.

﴿قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا﴾ نودوئ دَشمارپه باره کښ دوه ډلي جوړې شوې یوې ډلي تعین اوکړو اوبلي ډلي علم الله ﷻ ته حواله کړو، او﴿أَوْ﴾ لپاره دَشك دي چې پوره ورځ خوخوب کړیدې یانیمه ورځ اووجه داوه چې امارات دَخوب دَدوئ دَسترګونه نوو زائله شوې اودوئ خپل څانونه نووکتلي نوځکه ئې داخبره اوکړه، اویا ﴿أَوْ﴾ لپاره داضراب دي چې اول ئې اوئیل چې پوره ورځ خوخوب کړیدې بیائې اوئیل چې ناپوره ورځ خوندې کړیدې بلکه څه حصه دَورځي خوب موکړیدې. اووجه داده چې دوئ چې کله غارته داخلیدلو نودَورځي اوله حصه وه اوچې کله

دخوب نه رابيدارشو نومازيگر وخت وو.نودروځي اول حصي نه تراخرحصي پورې اکثره ورځ وي اواکثرلپاره حکم دکل وي نوځکه ئې اولاً اوئيل﴿لَبِثْنَا يَوْمًا ﴾اوچې حکم دکل ورته ورنکړې شي نواو په خپل اصل باندې پريخودلې شي نو﴿بَعْضَ يَوْمٍ ﴾دې. اويا﴿أَو ﴾لپاره دتفصيل دې چې ځنوکسانوپکښې اوئيل﴿لَبِثْنَا يَوْمًا ﴾اوځني نورو اوئيل چې﴿بَعْضَ يَوْمٍ ﴾(بحر) اوداجواب ددوئ مبنې وو په ظن غالب باندې، اوپه اجتهادباندې اودادليل دې پدې خبره چې دظن غالب دوجې نه قول کول اوعمل کول جائزدی اوداپه دروغوکښې نه راځي اګرچې امکان دخطاء پکښې موجود وي.

﴿رَبُّكُمْ أَعْلَمُ ﴾دادريمه ډله ده چې دماقبل ددواړو ډلو ردئې په احسن طريقې سره اوکړو چې ځنوئيل﴿لَبِثْنَا يَوْمًا ﴾اوځنو وئيل چې﴿بَعْضَ يَوْمٍ ﴾نودوئ ورته اوئيل چې مودې دخوب نه تاسو نه يئ خبر، الله ﷻ په عالم دې پدې مودې باندې، اوبعض مفسرين فرمائي چې قائلين ددې قول﴿رَبُّكُم أَعْلَمُ ﴾دوئ ټول دي چې اول ئې خپل اقوال ذکرکړو تخمينا اوبيائې علم الله ﷻ ته حواله کړو تحقيقا.

﴿فَٱبْعَثُوٓاْ أَحَدَكُم ﴾هرکله چې دوئ داوږدخوب نه راپاسيدلو نودوئ ته لوږه لګيدلې وه نودمودې دخوب کښې بحث کول ئې پريخودلو اوچې کوم پدې وخت کښې اهم امروو، ددوئ لپاره چې هغه خوراك وو نوهغې ته متوجه شو، او﴿فَٱبْعَثُوٓاْ﴾مرتب دې په مقدرجملې باندې، چې تقديرئ داسې دې، ربکم اعلم بذلك لاطريق لکم الى علمه فخذوا فى شيئ اخرممايهمکم(کشاف)

﴿بِوَرِقِكُمْ هَـٰذِهِۦٓ ﴾مراد تنه هغه دراهم وو چې دوئ غارته راتلو په وخت کښې دخپل ځان سره راغستې وو، اودادليل دې پدې خبره چې اسباب مهياکول حتى الوسع داخلاف دتوکل ندې، ﴿إِلَى ٱلْمَدِينَةِ ﴾مرادتنه هغه معهود شهردې چې دوئ تنه وتلې وو﴿فَلْيَنظُرْ أَيُّهَآ ﴾مرادپه نظرسره بانظربصرې دې اوياتنه نظرقلبې مراددې، اوپدې کښې درې هدايات دهغوئ والاذکرکيږې چې خپل مبعوث ملګرې ته ئې کړې وو، اول هدايت داوو چې﴿فَلْيَنظُرْ﴾ځکه چې دوئ ته پته وه چې پدې شهرکښې ځنې کسان دطواغيتواوبتانوپه نوم باندې ذبحې کوې،اودهغه دذبحې نه خوراك

كول حرام دي،نوځكه ئې ورته اوئيل چې دَمشرك نه خوراك مه راوړه بلكه﴿أَزْكَىٰ﴾يعني چې ذبحه ئې صحيح وي دهغه نه راوړه، نو﴿أَزْكَىٰ﴾په معنې دَاطيب، يعني حلال سره دې اودا معنې زيته اليقه ده دمقام سره اوبعض مفسرينو﴿أَزْكَىٰ﴾په معنې دَارخص سره يعني دَزيات ارزان پوش سره كړيده﴿وَلْيَتَلَطَّفْ﴾دا دويم هدايت دې چې خپل حالت پټه ولولپاره دې دَچاسره چېرچاړنه كوي بلكه په خبرو كښې اومعاملاتوكښې نرمي دې كوي﴿وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا﴾دا دريم هدايت دې يعني خپل حال دې چاته نه ښكاره كوي،يعني كچري ګيرشي نونورملګري دې چاته نه ښائي

**فائده**:ددې ايت كريمه نه يوڅومسائل مستنبط كيږي(۱) كوم مسئلي پته چې انسان ته نوي نودهغې علم الله ﷻ ته مفوض كول ضروري دي(۲) مسافرته زاد سفرانتظام كول ضروري دي(۳) چې په كوم شهركښې دَغيرمسلمو،ياپه كوم هوټل كښې دَحرام خوراك اكثريت وي نوهلته بغيرتحقيق خوراك كول جائزندي(۴) شركت په مال كښې جائزدي(۵) مال مشترك دَتصرف لپاره وكالت هم جائزدې(۶)په مال مشترك سره اغستلې شوي خوراك اودغه شانتي شركت په طعام كښې جائزدې اګرچې مقداردَخوراك مختلف وي څوك زيات خوراك كوي اوڅوك كم (احكام القرآن للجصاص)

﴿إِنَّهُمْ إِن يَظْهَرُوا﴾داعلت دې دَماقبل لپاره او﴿إِن﴾ تعليليه ده يعني تاسونرمي دَخپل ځان دَپټولولپاره ځكه كوئ كچري دوئ خبرشي په تاسوباندې نوتاسوبه رجم كړي اويابه موهغوئ خپل دين ته واړه وي، عام طوردَظهرَپه صلي كښې چې (على) راشي نوپه معنې دَغلبې سره وي، دلته په معنې دَاطلاع سره دَ ﴿يَرْجُمُوكُمْ﴾رجم په معنې حقيقي سره يعني په كاڼو باندې ويشتل سره دې اوداسزابه په هغه دوركښې هرهغه چاته ميلاويده چې دَبادشاه بغاوت اونافرماني به ئې اوكړه (روح)اوبعض مفسرين فرمائي چې مراد درجم نه رجم بالسب يعني سختي كنځلې كول دي چې دادَيومعزز اوشريف لپاره قتل نه هم سخته سزا ده،﴿أَوْ يُعِيدُوكُمْ﴾ مرادتنه اول ځلې داخلول دي اواعاده استعمال په صيرورة كښې داپه كلام عرب كښې ډيركيږي، لكه وئيلې كيږي ماعدت الفعل كذا، چې څه به دې كارته اعاده اونكړم اومرادئې تنه ابتداء دكلام وي(كشاف) اوپه تقديم دَرجم كښې په اعاده باندې اشاره ده ثبات اواستقامت دَهغوئ ته په خپل دين باندې.

﴿وَلَن تُفۡلِحُوٓاْ إِذًا أَبَدًا ﴾اذا حرف جزاء دي اوداجمله جزاء ده لپاره دجملې شرطيي مقدري نوتقديردَعبارت داسې دي ان دخلتم في دينهم ولن تفلحو اذا ابدا اومراد په دخول سره په كفركښې حقيقة دي يعني چې تاسومجبوره كړې شئ اوكفرته داخل شئ حقيقة نولن تفلحوا نوترتب دَجزاء په كفر حقيقةً باندې ده اوهرچه دې فقط تلفظ په كلمه كفرباندې نودَهغې اجازت شته دي اوپه هغې صورت كښې عدم فلاح پرې نه مرتب كيږي، اوبعض مفسرين فرمائي چې تلفظ په كلمه كفرباندې كله كله سبب اوګرځيږي دَاستدراج شيطاني لپاره چې دَعامودنيوي مصلحتنو لپاره انسان په كلمه كفرباندې تلفظ كولوته تياروي چې دازريعه ګرځيږي دَحقيقة كفرلپاره نوددې وجه نه پدې باندې ترتب دَعدم فلاح راغې اويامراددَفلاح نه فلاح تام اوكامله مرادده .توتلفظ بالكفراګرچه په حالت دَاكراه كښې جائزوي ليكن عزيمت اختياره ول اولې وي اوفلاح كامله په هغې باندې مرتبه ده،

| وَكَذَٰلِكَ | أَعۡثَرۡنَا | عَلَيۡهِمۡ | لِيَعۡلَمُوٓاْ | أَنَّ | وَعۡدَ | ٱللَّهِ | حَقّٞ | وَأَنَّ | ٱلسَّاعَةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اودغه شان خبركړل مونږ(خلك)پدوئ باندې لپاره ددې چې پوهه شي چې بيشكه وعده دَالله ﷻ حقه ده اوبيشكه قيامت | | | | | | | | | |
| لَا | رَيۡبَ | فِيهَآ | إِذۡ | يَتَنَٰزَعُونَ | بَيۡنَهُمۡ | أَمۡرَهُمۡ | فَقَالُواْ | | |
| نشته هيڅ شك په هغې كښې كله چې دوئ جګړه كوله په خپل مينځ كښې په باري داصحابوكهفوكښې پس اوئيل هغوئ | | | | | | | | | |
| ٱبۡنُواْ | عَلَيۡهِم | بُنۡيَٰنٗا | رَّبُّهُمۡ | أَعۡلَمُ | بِهِمۡ | قَالَ | ٱلَّذِينَ | غَلَبُواْ | |
| چې جوړكړئ په دوئ باندې يوه ابادي(عمارت)رب ددوئ ښه پوهه دې په دوئ باندې اوئيل هغه كسانوچې زوراوروو | | | | | | | | | |
| عَلَىٰٓ | أَمۡرِهِمۡ | لَنَتَّخِذَنَّ | عَلَيۡهِم | مَّسۡجِدٗا ۝٢١ | | | | | |
| په خپل كارباندې چې خامخاجوړه ووبه مونږه په دوئ باندې جمات(عبادت گاه) | | | | | | | | | |

﴿وَكَذَٰلِكَ أَعۡثَرۡنَا عَلَيۡهِمۡ ﴾پدې كښې دَاصحاب كهفو دَرابيدارولو حكمتونه ذكركيږي چې خلكوته پدې يقين پيدا شي چې قيامت ضرورراځي، اودَقيامت په راتلوكښې څه شك نيشته پدغه زمانه كښې خلك دَبعث بعدالموت په باره كښې دوه فريقين وو ،يوفريق دَدې قائله وو چې هغوسره دَهغه زماني بادشاه هم شامل وو اوبل فريق چې هغودَدې انكاركولو ،نوچې كله داواقعه اوشوه

نومسلمان فريق ډيرخوشحاله شوځکه چې هغوئ ته په خپل موقف اومدعي باندې يوه مشاهده حاصله شوه اوايماني قوت ئې زيات شو اومشركين ئې لاجوابه كړل اوكاف په ﴿وَكَذَٰلِكَ﴾كښې دَجمهوروپه مسلك باندې لپاره دَتشبيه دې اومشبه به دَهغوئ اوده كول وو اوبيادوباره رابيدارول دې اومشبه په هغوئ باندې خلكوته اطلاع وركول دې اووجه دَشبهې حكمت دې يعني لكه څرنګه چې دَهغوئ په اوده كولوكښې اوبيراپاسولوكښې حكمت وو ،نودغه شان دَهغوئي په حالت باندې خلك خبرولوكښې حكمت وو ،چې هغه يقين دې په قيامت باندې، اودحضرت شيخ په نيزباندې كاف دلته هم لپاره دَبيان كمال قدرت دې يعني دازمونږ كمال قدرت وو چې مونږ پدوئ باندې خلك خبركړل، او(عثر)د(عثار)نه دې وئيلې كيږي پرمخې راغورځيدل (په مخ باندې،اوبيا په عرف كښې دَهغې اطلاع لپاره استعماليږي چې هغه بغيردَطلب نه وي يعني ديوكار اطلاع كول نه غواړي اوهغه مشهورشي، اوخلكوته ئې اطلاع اوشي اومفعول اول د﴿أَعْثَرْنَا﴾محذوف دې چې هغه "الناس"دې.

﴿لِيَعْلَمُوٓا أَنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ﴾لام لپاره دَتعليل دې،غوره قول مطابق مراد دَ﴿وَعْدَ ٱللَّهِ﴾نه بعث بعدالموت دَبدنونوسره دَارواحونه دې،اوبعض مفسرين فرمائى چې مراد تنه فلاح دَاصحاب كهفوده نواول مسلك په بناء ضميردَجمع دَ﴿لِيَعْلَمُوٓا﴾راجع دې منكرينو دَبعث ته اودَمسلك ثانى په بناء ضميرراجع دې اصحاب كهفوته﴿إِذْ يَتَنَٰزَعُونَ﴾داظرف دې لپاره د﴿أَعْثَرْنَا﴾اوهغه مقدم ذكركړې شولپاره دَاظهاركمال عنايت، اوياظرف دې لپاره دَ﴿لِيَعْلَمُوٓا﴾ اوياورله عامل مقدردې چې اذكر دې ځكه چې تنازع مخكښې وه دَاعثارنه اومتنازع فيه ياامردَبعث بعدالموت وو اوضميردَ﴿بَيْنَهُمْ﴾ راجع دې كافرانو اومسلمانانوته يعني چې دوئ تنازع كوله په خپل امركښې چې هغه بعث بعدالموت دې اوياضميرراجع دې اصحاب كهفوته يعنى دوئ دَاصحاب كهفوپه امركښې تنازع كوله اوهغه په اصحاب كهفوباندې بناء اوجمات جوړولوكښې تنازع وه،لكه ورستو الله تعالىٰ فرمائى ﴿فَقَالُوا ٱبْنُوا عَلَيْهِم بُنْيَٰنًا﴾ اوځني مفسرين فرمائى چې مراددَې تنازع نه دَهغوئ په ژونداومرګ كښې تنازع ده چې كله هغوئ په دويم ځلې اوده شونوخلكوتنازع جوړه كړه چاوئيل چې مړه دې اوچاوئيل چې ژوندي دې اوڅوك وائې چې

ددي اصحاب كهفوپه حالت كښ تنازع مراد ده چې چاوئيل چې دانيكان صالحان وو اوچاوئيل چې علم ئې الله ﷻ سره دې اومونږ پرې څه حکم نشولګولې اولنئ دواړه توجيهات غوره دي.

﴿فَقَالُواْ ٱبْنُواْ عَلَيْهِم﴾ بناء برقول اول فاء په﴿فَقَالُوا﴾ كښ فصيحيه ده اوتقديرد عبارت دارنګې دې چې فتوفاهم الله تعالى بعدان حصل الغرض من الاعثارفقالوا الخ اوددويم قول په بناء فاء لپاره دتفصيل وعطف ده ماقبل كښ اجمالي منازع ذكراوشو اوپه ﴿فَقَالُواْ ٱبْنُواْ﴾ سره دهغې تفصيل بيانيږي،او ﴿بُنْيَٰنًا﴾ منصوب دې بناء برمفعوليت چې دامفعول به ده د﴿ٱبْنُواْ﴾ لپاره اويامفعول مطلق دې دهغې لپاره اومراد ددې بناء اوتعميرنه دهغوئ حفاظت وو، ددې په ذريعې سره ﴿رَّبُّهُمْ أَعْلَمُ بِهِمْ﴾ داياجمله معترضه ده اوداد متنازعينُ كلام دې چې كله هغوئ داصحاب كهفو په نومونو، نسبونو كښ اوپه تعداد كښ تنازع اوكړه ليكن څه حقيقت ته اونه رسيدلونوعلم ئې الله ﷻ ته حواله كړو اودائې اوئيل چې﴿رَّبُّهُمْ أَعْلَمُ بِهِمْ﴾اوياداكلام دالله ﷻ دې چې پدې متنازعينوباندې رد اوكړو چې كله مجوسيانو اوئيل چې دامجوسيان دي،عيسائيانوئيل چې عيسايان دي وغيره، نو الله ﷻ پدوئ باندې رد اوكړو، چې ددوئ رب په دوئ باندې ښه خبردې،

﴿قَالَ ٱلَّذِينَ غَلَبُواْ﴾ مراددينه يابادشاه اودهغه ملګرې دې اوياتنه اولياء داصحاب كهفودې اوياتنه مراد رؤسآء دهغې شهردى خلاصه دكلام داده چې كوم خلكوته غلبه حاصله وه نوهغوئ دافيصله اوكړه چې مونږه دغارپه خولې كښ يوجومات جوړه وو چې هغه به داصحاب كهفويادګاروي اوپه هغې كښ به خلك دالله ﷻ عبادت كوي اومراد په﴿مَّسْجِدًا﴾سره دهغې امت دمؤمنانو معبد(عبادت خانه) ده.

**فائده** بعضې خلكوپدې ايت سره استدلال كړيدې چې جمات جوړول په قبرونو دنيكانو خلكوداجائزدې، لكه خفاجي ذكركړيدې په حاشيه دبيضاوي كښ، اويادډې زماني څنې مبتدعينوذكركړيدى په خپلو كتابونوكښ،ليكن پدې ايت سره استدلال كول څكه صحيح ندې چې پدې ايت كښ دهغوئ مدحه پدې عمل نده ذكرشوې بلكه په ايت كښ صرف دهغوئ غلبه ...ذكردې اوبياخاص طورابن جرير طبرى رحمه الله فرمائى چې دامطالبه دكفارو وه اودمسلمانانو ...عن ابن عباس رضي الله عنه قوله تعالى قال الذين غلبوا الخ قال يعنى عدوهم (طبرى ج۸ ص۲۰۵) نوكچرې

داعمل دکفاروشي نوپه عدم جوازکښ بياځه تامل نيشته دي. اوکچري داقول دمسلمانو وي نوبياهم پدي سره استدلال کول صحيح ندې ځکه چي شرائع من قبلنا زمونږ لپاره هغه وخت مستدل ګرځيږي چي په هغې باندې انکارنوي واردشوې دجانبه دشارع نه.اوپه جماتونوجوړولوپه قبرونو دصلحاؤباندې نهي اوانکارواردشويدې دجانبه دشارعﷺ نه.چي مفهوم دهغې تواتررسيدلي دې،اګرچي لفظا متواترندې. عن ابن عباسؓ قال قال رسول اللهﷺ لعن الله زائرات القبور والمتخذين عليها المساجدوالسرج(ابوداؤد،ترمذی کتاب الصلوة، نسائی،ابن ماجه يعنی اللهﷻ لعنت وائي په هغه زنانوباندې چي(بې پرده.دسړو سره مخلوط، دقبرونو زيارتونو له ځي،اوپه هغه چاچې په قبرونوباندې جماتونه جوړه وي اوپه قبرونوباندې ډيوي بلوي وي.اودمسلم په روايت کښ دي،الاانّ من کان قبلکم کانوا يتخذون قبور انبياءهم مساجد،الافلاتتخذوا القبورمساجد انی انهاکم عن ذلك(مسلم ج۱)يعنی خبردارچي ستاسونه مخکني امتونوبه دخپلو انبياؤقبرونونه جماتونه جوړول، خبردارتاسوقبرونه جماتونه،مه جوړوئي بيشکه څه تاسو ددينه منع کووم. اودغه شانتي دبخاري اومسلم په روايت کښ دي، لعن الله اليهود والنصاری اتخذوا قبورانبيائهم مساجد(بخاری ج۱ کتاب الجنائز)يعنی اللهﷻ دي په يهودواونصاريٰ باندې لعنت اوفرمائي چي دوئ دخپلوانبياء کرامو قبرونونه جماتونه جوړکړيدی.

دغه شانتي نورډيرروايات چي ذکرکړيدی په تفصيل سره قرطبي اوصاحب دروح المعاني په خپلوتفسيرونوکښ.

**فائده۲**:ددي مذکوره احاديثومطلب دااغستل هم غلط دی چي دمقبري سره نزدي جمات ندی جوړول پکار،ياقريب دقبرسره دمونځ عدم جوازباندې استدلال کول وغيره. بلکه علماء فرمائي چي کچرته يوقبرمنفصل دجمات نه دجمات په چارديوارئې کښ راشي اودهغه قبرتعظيم مقصدنوي نوداجائزدی اوکوم چي داحاديث نه معلوميږي هغه دقبرتعظيم اوقبرته سجدي کول دي نفس مونځ اودهغوئ په قبرونوسره تبرك ناجائزندي ددي وجه نه مدارك مقصدبيانوي چي يصلي فيه المسلمون ويتبرکون بمکانهم(مدارك،مظهری، معارف).

سَيَقُوْلُوْنَ ثَلٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ

قريبه ده چي څوك به وائي دوئ دري کسان دي څلورم ددوئ سپي ددوئ دي اوڅوك به وائي چي دوئ پنځه تنه دي شپږم ددوئ

كَلْبُهُمْ رَجْمًا بِالْغَيْبِ ۚ وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ

سپي ددوئ دي ويشتل کوي په غيبوسره .اوځوك به وائي چې دوئ اوه(٧)کسان دي اواتم(٨)ددوئ سپي ددوئ دي

قُلْ رَّبِّىٓ أَعْلَمُ بِعِدَّتِهِم مَّا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا قَلِيلٌ

نه اوايه رب ځما ښه پوهه دي په شمار(تعداد)ددوئ باندې.نه پوهيږي ددوئ په شمارباندې مګرلږکسان

فَلَا تُمَارِ فِيهِمْ إِلَّا مِرَآءً ظَاهِرًا ۖ وَلَا تَسْتَفْتِ فِيهِم مِّنْهُمْ أَحَدًا ﴿٢٢﴾

بس جګړه(بحث)مه کوه ددوئ په باره کښې مګرجګړه(بحث)سرسري اومه کوه تپوس ددوئ په باره کښې ددي خلکودهيڅ يوتن نه

﴿سَيَقُولُونَ ثَلَٰثَةٌ﴾قائلين ددي قول دَراجح مسلك مطابق اهل كتاب اومسلمانان دي. ځنواهل كتابو(يعقوبيه)دااوئيل چې ددوئ تعداد دري(٣)وو اوڅلورم ورسره سپې وو اوځنواهل كتابو(نسطوريه) دااوئيل چې هغوئي پنځه وو اوشپږم ورسره سپې وو. اومسلمانانو اوئيل چې هغوئي اوه وو اواتم ورسره سپې وو.،داول دوه قولونوسره ﴿رَجْمًا بِالْغَيْبِ﴾اووئيلې شونومعلومه شوه چې هغه صحيح ندى اودريم قول داخل نه کړې شو﴿رَجْمًا بِالْغَيْبِ﴾ ، دلاندې، نومعلومه شوه چه دااقرب الى الصواب دي اوحضرت ابن عباس﷛ دَهغوئ اوه(٧)تعدادباندې جزم کړيدې اواستدلال ئې کړيدې په مخکني ايت سره چه﴿قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ﴾نوپه هغې کښې تپوس کوونکې يو(١)دې.اوجواب ورکوونکی کم ازکم دري(٣) يقيني دی.ځکه چې صيغه دجمع﴿قَالُوا﴾ ذكرشويده. اواقل افراد دَجمع درى(٣)دي اوكوم كسانوچې مودې دخوب والاعلم الله﷯ ته حواله کړې وو نودهغوتعداد هم کم ازکم دري(٣)دي.ځکه چې هغه هم په صيغې دَجمعي سره ذكرشويده.﴿قَالُوا رَبُّكُمْ﴾نوداټول مجموعه اوه شو(مدارك ج٣ ص )او﴿ثَلَٰثَةٌ﴾خبردي دمبتداء محذوفى لپاره يعني هم ثلثة او﴿رَّابِعُهُمْ﴾جمله صفت دَخبردي،اوضميرپه ﴿رَّابِعُهُمْ﴾او﴿كَلْبُهُمْ﴾ دواړو کښې راجع دي﴿ثَلَٰثَةٌ﴾ ته او﴿رَّابِعُهُمْ﴾دَتکميل عددلپاره دې اوهرکله چې مرتبه اوجنس دَسپي غيرور دَدوئ نه اودَدې وجه نه دَهغوئ دَسپي ذکر په هغې اسم سره اوشو چې دال دې په

مرتبي باندې. اوپديکښې اشاره ده چې اصحاب کهف دهرهغې دړې کسانو پشان ندي چې سپي ورسره وي بلکه ددوئ حکم دنورونه جدادې، اوددې وجه الله ﷻ ددوئ دصحبت په برکت سره سپي هم په زمرې دمتبتلين اومعتکفين کښې شمارکړو (روح) ﴿وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ﴾دا دويم فرقې قول دې او﴿وَيَقُولُونَ﴾اګرچه صيغه دمضارع ده چې مشترکه ده بين الحال والاستقبال ليکن دلته تنه مرادصرف استقبال دې په قريني دماقبل ﴿سَيَقُولُونَ﴾سره .ځکه چې داعطف دې په هغې باندې اوهغه خاص وو په مستقبل پورې دوجې ددخول دسين نه نوداهم خاص دې په مستقبل پورې﴿رَجْمًا بِالْغَيْبِ﴾ دامنصوب دې مفعول مطلق دې، دفعل مقدرلپاره يعنی يرجمون رجما بالغيب اويامفعول له دې د﴿وَيَقُولُونَ﴾ لپاره اومرادپه﴿بِالْغَيْبِ﴾ سره خبرغائب يعنی هغه پټ خبرچې دهغې اطلاع دوئ ته نده ورکړې شوې په داسې امرکښې بحث کولوته رجمابالغيب وئيلې کيږي (کشاف)اويامراد درجم نه ظن دې اوپه کلام عرب کښې هربې دليله اوبې سنده خبرې ته رجمابالغيب وئيلې کيږي،لکه څرنګه يوانسان مجهول ځائ په کاڼړوباندې وولي او اطمينان ورته نوې خوپدې اميدوي چې کيداې شي صحيح ځائ باندې اولږي،نودغه شان بې سنده اوبې دليله خبرې هم وي.

﴿وَيَقُولُونَ﴾ددينه هم مراد استقبال دې﴿سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ﴾(ثامنهم) جمله په موضع دصفت کښې ده لپاره دماقبل،ماقبل اقوال کښې عدد اودصفت په مينځ کښې (واو) نوظاهرکړې شوې اوپدې ځائ کښې (واو ذکرشولو)، پدې واوکښې دمفسرينو متعدد اقوال راغليدي(۱)علامه زمخشري پدې جزم کړيدې چې داواو تاکيديه دې،اوواو تاکيديه هغه واو ته وئيلې کيږي چې هغه داخليږي په هغه جملې باندې چې هغه صفت دنکرې لپاره واقع شوې وي، اوياحال واقع شوې وي دمعرفې نه لکه وما اهلکنا من قرية الاّولها کتاب معلوم کښې چې واو دې.

اوديته واو تاکيديه ځکه وائې چې ددې (واو) فائده داده چې دې پدې دلالت کوې چې داموصوف پدې صفت باندې متصف کيدل ياداذوالحال معرفه پدې کيفيت باندې متکيف کيدل امرثابت اومستقردې، اوپديکښې څه قسم تردد اوشك نيشته دې،اوهرکله چې داامرصحيح اوثابت وونودې وجه نه واوپکښې ذکرشواوداخل نه کړې شودرجما بالغيب دلاندې.

(۲)بعض مفسرين فرمائي چې داواوعاطفه دي اومعطوف عليه ورله جمله مقدره ده اودالپاره دَتصديق دَقائلينوددي قول ذکرشويدې تقديردَعبارت داسي دې ويقولون سبعة نعم وثامنهم کلبهم نوداجمله عطف ده په نعم، باندې،اوددي نظيرهغه قول دې چې يوسړې اوائي چې انّ زيداً شاعرا نوته ورته اوائې چې وفقيه نوګويا چې داداسي ده چې تادَده تصديق اوکړو اوداسي دي ورته اوئيل چې نعم هو کذلك وفقيه ايضا.

(۳)بعض مفسرين فرمائي چې پدې (واو)کښ اشاره ده دَمجموعي عددته دَمخکني دواړوقولينونه،چې دَمخکني دواړو قولينونه چې کومه مجموعه حاصليږي هغه مقصودده. چې مخکني قولينوکښ يوقول دَدري(۳)وو اوبل دَپنځه نومجموعه ئې اته(۸) جوړيږي. اودا صحيح عددوو ،نوديته اشاري کولولپاره پدې عددثامنهم باندې واو داخل کړې شو (زادالمسير).

(۴)زجاج اومقاتل اوثعلبي فرمائي چې دا واو استنافيه دې(زادالمسير).

(۵)بعض مفسرين فرمائي چې دا(واو) ثمانيه دې او (واو)ثمانيه اصطلاح دَمتاخرينو نحويانو ده او(واو) ثمانيه هغه (واو) ته وئيلې کيږي چې هغه دَاته(۸)په عددباندې داخليږي،ځکه چې عرب تراوه(۷)پوري شماربغيرد واو نه کوي اوچې په اوه باندې زيات شي نوبياپري واؤ داخله وي لکه التائبون العابدون الحامدون الخ (التوبه ۱۱۲)شوچې په اتم وصف والناهون عن المنکرباندې واو داخل کړې شويدې يادغه شان عسى ربّه ان طلقکن ان يبدله ازواجا خيرا منکن مسلمات الخ(التحريم ۴) شونودلته هم په اتم عددچې وابکاراً دې باندې واو داخل شويدې،دا اصطلاح اګرچې متاخرينو نحويانو قائمه کړيده خوپدې باندې علامه قفال اوابن قيمرحمه الله رد کړيدې، اومنقوضه ده پدې ايت کريمه سره هوالله الذى لااله الّاهو الملك القدوس السلام المؤمن المهيمن العزيزالجبارالمتکبر،چې پديکښ المتکبرباندې واو ندې داخل شوې(کبير) والتفصيل في کتب النحو

﴿قُل رَّبِّيٓ أَعۡلَمُ﴾عددکښ اختلاف نه ورستو اوس پدې جملې سره اشاره ده احسن طريقي ته په داسي مقام کښ،چې هغه اللهﷻ ته علم سپارل دې،حافظ ابن کثيررحمه الله فرمائي چې اللهﷻ اول دواړه قولونه داخل کړل،دَ﴿رَجۡمَۢا بِٱلۡغَيۡبِ﴾ ، دلاندې چې داخوياصحيح ندې اوياکه صحيح وي خودوئ اراده نوه کړي،اودريم قول ئې ذکرشواوسکوت تنه اوکړې شوپديکښ اشاره وه چې داقول في نفسه صحيح دې،خوليکن پدې پسي داجمله﴿قُل رَّبِّيٓ أَعۡلَمُ﴾ذکرشوه نوپدې کښ ئې

دغه احسن طریقي ته اشاره اوکړه اوادب ئې بیان کړو چې په داسې مقام کښې علم الله ﷻ ته حواله کوئ ځکه چې دَداسې مقام په تفصیل کښې ضرورت نیشته.البته چې کوم په صحیح دلیل سره معلوم وي نو دهغې ونیل پکاردي(ابن کثیر ج۳)،﴿مَّا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا قَلِيلٌ﴾حضرت ابن عباس رضی الله عنه عدد داصحاب کهفواوه ذکرکړل اواوفرمائیل ئې چې څه هم دهغه قلیلونه یم چې کوم په صحیح عدد دَدوئ باندې خبردې،﴿فَلَا تُمَارِ فِيهِمْ﴾دا بل ادب ذکرکیږي چې ته دَدوئ سره داصحاب کهفو پدې واقعه کښې دَسرسري بحث نه سیوا زیات بحث مه کوه،اودَسرسري بحث مقصددادې چې دَدوئ سره په تعین دَعدد کښې مناظره مه کوه اوتکذیب ئې مه کوه صرف دَوحې مطابق واقعه ورته بیان کړه، اوپه عدد کښې توقف کوه، ﴿وَلَا تَسْتَفْتِ فِيهِم﴾دا بل ادب ذکرکیږي چې داصحاب کهفو په باري کښې دَاهل کتابونه څه قسم تپوس مه کوه څه چې هغوئ صرف دَخپل اوهامونه خبرې کوي اومستندې نوې اوتاته الله ﷻ دوحې په ذریعې ټوله واقعه بیان کړه،داآیت دلالت کوي چې واقعه داصحاب کهفو په اهل کتابو کښې متداوله وه په زمانه ته دَنزول دَقرآن کښې په مختلف طرق اوپه مختلف تفاصیلو سره خولیکن هغه ټول غیریقیني وو اودروغ ورسره خلط وو،اودغه شان ایت دلالت کوي پدې چې مسلمانانولره جائزندې چې دَخپل دین اویادَهغه څیزچې دهغې ذکر په قرآن اوحدیث کښې موجود وي دغې په باري کښې دَاهل کتابونه استفاده کوي البته په قصصودَاهل کتابو کښې چې عبرت وي ورکښې اومخالف نوې دَقرآن اودَحدیث سره دَهغې نقل اوذکرجائزدې(لقوله عليه السلام حدثوا عن بنی اسرائیل ولاحرج).

| وَلَا تَقُولَنَّ لِشَا۟ىْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ۝ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ |
|---|
| [1]اوهرگزمه وایه په باري دیوکارکښې چې څه کوونکې یم داکارصبامگر(داسې وایه چې) کچرې خوښه شي دالله ﷻ |
| وَاذْكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ وَقُلْ عَسَىٰ أَن يَهْدِيَنِ رَبِّي لِأَقْرَبَ |
| اویاده وه رب خپل هرکله چې هیرکړې ته اواوایه چې قریبه ده چې اوبه ښائي ماته رب څما ډیره نزدې (واضح،یابهتر) |

(1) جمله معترضه

مِنْ هٰذَا رَشَدًا ﴿۲۴﴾ وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلٰثَ مِائَةٍ سِنِيْنَ

ددې ,واقعې,نه په اعتبارد هدايت سره. اوحصارشوي وو دوئ په غارخپل كښې درې سوه كاله‌دشمسي حساب موافق,

وَازْدَادُوا تِسْعًا ﴿۲۵﴾

اوزيات ئې نيركړل نهه كاله‌دقمري حساب موافق,

﴿وَلَا تَقُوْلَنَّ لِشَايْءٍ﴾ داجمله معترضه ده اوپديكښې ددرې(۳) ادابو تعليم وركول مقصود دى اول ادب دا دې چې څه كارپه مستقبل كښې كوي نوهغه دَالله ﷻ دمشيئت سره متعلق كوه

**شان نزول:** هركله چې قريشو دَحضورﷺ نه دَروح، اصحابوكهفو اوذوالقرنين په باره كښې تپوس اوكړو نوحضورﷺ دوئ ته اوفرمائيل چې غدا اخبركم. يعنى صبابه څه تاسوته دَهغوئ متعلق خبردركړم او ان شاء الله ئې نه اوئيل نودهغې دَوجې نه وحې پنځلس(۱۵) ياڅلويښت (۴۰)ورځې بنده شوه،حضورﷺ ډيرپريشانه وو نواخركاروحې راغله اودا ادب بيان كړې شو

تنوين په﴿لِشَايْءٍ﴾ كښې لپاره دَتنكيردې اولام اجليه دې اى لاجل شيئ من الاشياء صغيرا كان اوكبيرا. ﴿إِنِّي فَاعِلٌ ذٰلِكَ﴾ كښې اشاره ده الشئ ته، اومراد په﴿غَدًا﴾ سره مطلقا زمانه مستقبل ده عرفا .اګرچه لغتًا ونيلې كيږې هغه صباته چې دَنن ورځې پسې وي،﴿إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ﴾ دااستثناء دنهى نه ده، اوپه كلام كښې باملابست مقدره ده چې داخله ده په انّ باندې مقصد دايت دادې چې نه دهيڅ يوڅيزپه باره كښې مه وايه چې دابه څه كووم مګر چې متلبس وي په مشيت دَالله ﷻ جوړې يعنى انشاء الله ويونكې وي نوبياوايه، اوبعض مفسرين فرمائى چې مستثنى منه غيرمذكوره ده چې هغه عموم دَاحوال ويا عموم دَاوقاتو دې اى لاتقولن ذلك فى حال من الاحوال الاحال ملابسته بمشية الله تعالى، اوياتقديردَعبارت داسې دې لاتقولن ذلك فى وقت من الاوقات الاوقت ان يشاء الله(فتح القدير) اوبعض مفسرين فرمائى چې استثناء قائمقام ده په ځائ دتابيدباندې.لكه په دې قول دَالله ﷻ كښې ومايكون لناان نعود فيها الاّ ان يّشاء الله(الاعراف:۸۹)

نوعود الی الکفر مشیت دَالله ﷻ ندي نودَدي وجه نه مقصد ئې دادې چې مونږ به همیشه لپاره عود الی الکفر اونکړو ،نو دلته هم دغه تابید مراد دې ای لاتقولنه ابدا (کشاف)

﴿وَاذْكُر رَّبَّكَ﴾ دا دویم ادب دې اوددې جملي څو مطلبونه مفسرینو بیان کړیدی (۱) د احکم دَنسیان بیانیږي چې انشاء الله درنه هیرشي نوچې کله هم درته رایاد شي نو بیائې اوایه (۲) مراد د ذکر نه استغفاردې، یعني چې ان شاء الله درنه هیرشي نوپدې هیریدلو باندې استغفار کوه (۳) بعض فرمائی چې مراد په ذکرسره دَالله ﷻ عذاب یاده ول دي .چې کله ستانه یوحکم هیرشي اوپاتې شي نودَالله ﷻ عذاب یادکړه (۴) بعض فرمائی چې مراد په (اذا نیست) سره (اذا غضبت) دې یعنی چې کله تاغصه درشي نو الله ﷻ یادکړه ، اوله معني زیاته غوره اولائقه ده دَمقام سره

**فائده**: (۱) انشاء الله استثناء ده چې داخلیږي په کلام باندې لپاره درفع دحکم یعنی چې دکوم کلام سره انشاء الله اوئیلې شي نودهغې کول اونه کول دواړه برابروي اوفائده ئې داوي چې پدې سره انسان کاذب نه ګرځیږي په خپله خبره کښې اوددې وجه نه حضرت موسیٰ علیه السلام حضرت خضر علیه السلام ته اوئیل چې ستجدونی ان شآء الله صابرا اوصبرئې اونکړې شو خو کاذب هم اونه ګرځیدو ځکه چې انشاء الله ئې وئیلې وواودَدې وجه نه حدیث شریف کښې دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه مروي دی فرمائی قال رسول الله ﷺ من حلف علی یمین فقال ان شآء الله فلاحنث علیه یعنی چې چاپه یوکارباندې قسم او خوړلو اوانشاء الله ئې اوئیل نودهغې مخالفت کولونه په ده باندې څه ګناه نیشته (۲) دَټولو ائمو پدې اتفاق دې چې کچري ان شاء الله دکلام سره موصولا اوئیلې شو نو دامبطل دَحکم دې .طلاق،نکاح، قسم وغیره پدې سره نه واقع کیږي، کچرته یوسړې خپل بې بې ته اوئیل چې ته په ماباندې طلاقه ئې انشاء الله، نوداطلاق نه واقع کیږي، دغه شانتې نکاح اوقسم شو ،لیکن اختلاف دَائمو په کلام غیرموصولې یعنی منفصل کښې دې، یعني یوسړې دَخپل کلام سره متصلا ان شاء الله اونه وائي بلکه منفصلا اووائي نوآیا دَانشاء الله مغیر للحکم اومبطل دَحکم دې که ندې؟؟ نوپدې کښې اختلاف دې، دَحضرت حسن بصري رحمه الله اودَحضرت طاؤس رحمه الله مسلك دادې چې ترڅوپوري دې پدې مجلس کښې وي نودَده انشاء الله وئیل معتبردې اودابه مغیر للحکم وي.

دَحضرت ابن عباس رضی الله عنه ،حضرت مجاهد رحمه الله ،حضرت سعیدابن جبیر رحمه الله اود حضرت ابو العالیه رحمه الله مسلك دادې چې کچري یوسړې موصولا انشاء الله اونه وئیل نوترکاله پوري

وئيلې شي، كه كال ورستو ورته رايادشي نودې دې انشاء الله اوائي اودجمهورو فقهاؤ مسلك دادې چې كچرې انشاء الله موصولا وو نومغير للحكم دې ګڼي نه دې. دحضرت حسن بصري رحمه الله اودحضرت طاؤس رحمه الله استدلال دحضرت عكرمه روايت سره دې چې فرمائي. قال رسول الله ﷺ والله لاغزون قريشا والله لاغزون قريشا ثم سكت ساعة فقال انشاء الله نوددې معلومه شوه چې اتصال فى الكلام ضروري ندې بلكه وجود دمجلس ضروري دې، ليكن جواب تنه دادې چې داروايت دسماك نه قيس هم نقل كړيدې اوشريك هم نقل كړيدې، دقيس په روايت كښې اګرچه داسي راغليدي چې دوه ځلي حضور ﷺ اوفرمائيل چې والله لاغزون قريشا، ثم سكت ساعة. ليكن دشريك په روايت كښې داسي راغليدي چې حضور ﷺ درې(۳)ځلي اوفرمائيل چې والله لاغزون قريشا، ثم قال فى اخرهن ان شاء الله، نوددې روايت نه معلوميږي چې حضور ﷺ غلي شوې نووبلكه دريم ځلي سره ئې متصلا ان شاء الله وئيلې وو، اوكه په ماقبل كښې ايمان كثيره وو يعنى ډيرقسمونه خوړلي شوي وو خو په اخيركښې انشاء الله اوئيلې شي نودااستثناء به راجع وي ماقبل ټول كلام ته، اوامام جصاص رحمه الله فرمائي چې وهو اولى لماذكرنا، چې دشريك روايت اولې دې دقيس دروايت نه چې كوم مونږ اول ذكركړې وو ليكن دمحدثينوپدې اتفاق دې چې ثقه راوي دې اوشريك ضعيف او زيادت دثقه معتبروي اومخالفت دضعيف دثقه نه منكروي، نوزياته صحيح خبره هغه ده چې ابن كثير رحمه الله نقل كړيده دابن عباس رضي الله عنه نه په حواله دطبراني سره چې فرمائي، هى خاصة برسول الله ﷺ وليس لاحد منا ان يستثنى الافى صلة من يمينه (ابن كثير) والله اعلم. اودحضرت ابن عباس رضي الله عنه اوهغه دمتبيعينو استدلال پدې مذكورايت كريمه سره دې، ليكن دطبراني دروايت نه دامعلومه شوه چې دابن عباس رضي الله عنه مذهب دعاموخلكو په باري كښې داكثرفقهاؤپشان دې. اوانفصال صفت خاص دې په رسول الله ﷺ پورې، اوياد ﴿وَٱذۡكُر رَّبَّكَ﴾ نه مراد انشاء الله وئيل ندې بلكه نفس ذكردالله تعالى دې ځكه چې نسيان دشيطان دطرفه دې اوپه ذكردالله تعالى سره شيطان تښتي، نوسيان هم ورسره ختميږي(ابن كثير) اوددې وجه نه ابن جرير رحمه الله دابن عباس رضي الله عنه ددې قول ولوبعدسنة يعنى كچرې ان شاء الله دچانه هيرشي نوكه كال ورستوورته يادشي ددوائي مقصد دابيان كړيدې چې دانشاء الله، وئيلو دوه فائدې دي.

(۱)تبرك حاصلول دَوجي دَاداکولودَسنت نه(۲) الغاء اوابطال دَحكم دكلام نوكال ورستو وئیلوسره اګرچې سنت به ئې اداشي خوالغاء اوابطال دَحكم ورسره نه راخي دَهغې لپاره كلام سره اتصال دَاستثناء پکاردې(طبری) اودَجمهورو استدلال دَقرآن نه اودَمختلفوروایاتوسره دې

(۱) حضرت ايوبعليه السلام قسم خوړلې وو اوخپلې بي بي ته ئې وئيلې وو چې څه به تاسل(۱۰۰) لختې وهم، نو اللهﷻ دَحنث نه دَبچ كيدلوطريقه ورته اوښودله چې وخذبيدك ضغثا فاضرب به الخ نوكچرته متراخيااستثناء صحيح وې نو ايوبعليه السلام ته به دَهغې حكم کړې شوې وو(۲)دغه شان حديث شريف كښ مذكور دې حضورﷺ ارشاد فرمائى من حلف على يمين فرای غيرها خيرا منهافلياءت الذى وهوخير واليكفرعن يمينه،نوكچرته استثناء صحيح وې نوبيادكفارې ضرورت به نه وو بلكه استثناء به كافي وه(۳)اودغه شان دَعقل تقاضا هم ده چې استثناء دموصولا صحيح شي نه مفصولا ګني لازم به شي خلل په نظام دَزندګئ كښ،عهد ،اقرار، طلاق،عقود به قابل اعتبارپاتي نشي.

**واقعه**: منقول دي چې خليفه منصورته چادَامام ابوحنيفهرحمه الله خلاف چغلي اوکړه چې امام صاحب ستادَنيکه حضرت ابن عباسرضي الله عنه دَقول مخالفت كوي چې وائې انشاء الله به متصلا وئيلې شي اومفصولا اعتبارنه كوي، خليفه حضرت امام ابوحنيفهرحمه الله طلب كړو اوتپوس ئې تنه اوكړو چې ته څمادَنيکه حضرت ابن عباسرضي الله عنه دَقول مخالفت ولې كوي؟ امام صاحبرحمه الله ورته اوفرمائيل چې دهغه قول ستاخلاف ګرځيږي، څکه چې ته دَرعايانه دَوفادارئې اواطاعت بيعت واخلې ليكن هغوئ ستادربارنه وتلونه وروستوانشاء الله اوائې نودَحضرت ابن عباسرضي الله عنه دَفتوې اودَقول مطابق هغه بيعت به قابل اعتبار نشي پاتي، نوخليفه دَامام صاحب قول تسليم کړو ،اوهغه چغلي كوونكې ئې دَخپل دربارنه اوشړلو.

﴿وَقُلْ عَسَىٰٓ أَن يَهْدِيَنِ﴾دَغوره قول مطابق اشاره پدې كښ په ﴿هَـٰذَا﴾سره واقعې دَاصحاب كهفوته ده اودايت مقصددادې چې دوئ ته واقعه دَاصحاب كهفوديرعجيبه ښكارې نودَدې وجه نه دَدې سوال ئې اوكړو نوته ورته اوايه چې قريبه چې څمارب به ماته زيات واضح واقعات اودلائل دَدې واقعې نه اوښائې لكه واقعات اوقصص دَانبياؤسابقينو اودهغوئ دَامتونو،

اوبايه ﴿هَـٰذَا﴾سره اشاره شئ (منسې) هيركړلې شوې ته ده اودَايت مطلب دادې چې كله تاته هغه شئ چې ستانه هيركړې شوي دې يادنه شي نوته اوايه چې څمارب به ماته دَدې هيركړلې شوې

څيزنه زيات غوره اوبهترڅيزبه اوښائي، اوياشاره وخت ته ده چې څمارب به ماته څمادسوال جواب دهغې وخت نه مخکښ اوښائي چې کوم ماتاسوته خودلې وو

﴿وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ﴾دجمهورو دقول مطابق واو استنافيه دي اواخباردي دالله ﷻ اواصل واقعې ته عود دې اومتعلق دې په ﴿فَضَرَبْنَا عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمْ ﴾پورې اودهغې اجمال تفصيل دې اوبعض مفسرين فرمائي چې واوعاطفه دې اوداعطف دې په يقولون باندې. اوداهم قول دې داهل كتابو ،دامروي دې دابن مسعود ﷺ اوابن عباس ﷺ نه

﴿ ثَلَٰثَ مِاْئَةٍ سِنِينَ ﴾پدې كښې دوه قرائته دی یوقرائت دجمهورودې چې هغوئ په ماثة باندې تنوين وائي او سنين منصوب وائي چې دايابدل دې د﴿ثَلَٰثَ مِاْئَةٍ ﴾ نه اوياعطف بيان دې اوتميزندې څكه چې تميزدمائة مفرد اومجروروراځي لكه چې پدې باندې تصريح كړيده نحاتو ،دويم قرائت دحمزه اوكسائي دې چې هغوئ ﴿مِاْئَةٍ ﴾بغيردتنوين نه مضاف وائي سنين ته.اوسنين دهغوئ دمذهب موافق تميزدې د﴿مِاْئَةٍ ﴾ لپاره اوداقاعده چې تميزدمائة مفردوي اكثري ده كلي نده بلكه كله كله تميزجمع راشي په موضع دمفردباندې لكه دلته په ځائې دمفرد راغليده. اودفرآء نه منقول دې چې ځنې عرب سنين يعنى جمع په ځائې دسنة يعنى مفرد استعماله وي اودغه شان دابوعلي الفارسي نه منقول دې چې ددې اعدادو اضافت اګرچې احادوته مشهوردې خوليكن كله كله ئې اضافت جموع ته هم كيږئ البحرالمحيط،فتح القدير)اوسماع مقدمه وي په قياس باندې

﴿وَٱزْدَادُوا تِسْعًا﴾ مرادپه تسعاسره نهه كالونه دي اومختصره جمله اونه وئيلې شوه چې ثلث مائةوتسع سنين بلكه داجمله جداذكركړې شوه،وجه داده چې پدې اسلوب سره ذكركولوكښ حساب شمسي اوقمري دواړوته اشاره كيږي څكه چې اهل كتابوبه حساب دشمسي مطابق كونواوعربوبه دقمري مطابق كولو.

نودري(۳۰۰)سوه كاله په اعتباردشمسي حساب سره دې اودري(۳۰۹)سوه نهه كاله دقمري حساب سره دې،څكه چې دشمسي حساب په سلوكالونوكښ دقمري حساب دري كاله زياتيږي.نوپه درې سوه كالوكښ نهه كاله قمرې حساب سره زياتيږي نوددې وجه

نه﴿وَازۡدَادُوۡا تِسۡعًا﴾جدا راوړي شو، اوعام طورباندې په حرف کښې اکثرکسر کله پوره کیږي چې نصف یادنصف نه زائدوي،اوکله حذف کیږي چې کله دنصف نه کم وي.نودلته هم کسرحذف کړې شویدې ځکه چې فرق پوره نهه(۹)کاله ندې بلکه څه میاشتې اوورځې پرې زائدې دې،ځکه ې شمسي کال تول(۳۶۵)ورځې اوپنځه گهنټې اوپه(۲۹)منټ دې اوقمرې کال تول(۳۵۴)ورځې اته(۸)گهنټې او(۴۸)منټ دې.نوسلانه فرق دشمسي اودقمرې(۱۰)ورځې(۲۱)گهنټې اویو(۱)منټ دې اودسل(۱۰۰)کالوفرق(۱۰۸۷) ورځې (۱۳)گهنټې اوځلورمنټه دې چې ددینه جوړیږي درې(۳)کاله (۲۴)ورځې(۱۱)گهنټې (۱۲)منټه،نوپدې حساب سره ددرې سوه کالوفرق په مینځ دحساب شمسي اوقمرې کښې راځي،نهه(۹)کاله،(۷۳)ورځې(۹)گهنټې او(۴۸)منټه (روح) خودکسراعتبارندې شوې نوځکه ﴿تِسۡعًا﴾ذکرشو.

قُلِ اللّٰهُ اَعۡلَمُ بِمَا لَبِثُوۡا ۚ لَهٗ غَیۡبُ السَّمٰوٰتِ

[1]اوایه ته چې الله ﷻ ښه پوهه دې په هغې مودې چې دوئ پکښې حصارشوې وو [2]خاص الله ﷻ لره دې علم دپټ څیزونودآسمانونو

وَالۡاَرۡضِ ؕ اَبۡصِرۡ بِهٖ وَاَسۡمِعۡ ؕ مَا لَهُمۡ مِّنۡ دُوۡنِهٖ مِنۡ وَّلِیٍّ

اودزمکې څه ښه لیدونکې دې اوڅه ښه اوریدونکې دې.نیشته لپاره ددوئ سیواد الله ﷻ نه څوک مددګار

وَّلَا یُشۡرِكُ فِیۡ حُكۡمِهٖۤ اَحَدًا ۝ وَاتۡلُ مَاۤ اُوۡحِیَ اِلَیۡكَ مِنۡ كِتَابِ رَبِّكَ ۚ

اونه شریکوي الله ﷻ په خپلو اختیاراتوکښې هیڅوک.[3]اولوله بیانه وه ته هغه چې وحي کړي شویده تاته دکتاب درب ستانه

لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ۚ وَلَنۡ تَجِدَ مِنۡ دُوۡنِهٖ مُلۡتَحَدًا ۝

نیشته څوک بدلوونکې دکلماتودهغه لره اوهرگزبه اونه مومې ته سیواددده نه بل ځائ دپناه.

(1) امورمتفرعه اول امرمتفرع

(2) ثمره قصه

(3) دوم امرمتفرع ودلیل وحی

﴿قُلِ ٱللَّهُ أَعْلَمُ﴾ پدي ايت کښې شپږامورمتفرعه ذکرکيږي په واقعي داصحاب کهفو باندې.
: اونه تفريع ده په دې واقعي باندې. چې داصحاب کهفوصحيح مدت الله ﷻ ته معلوم دې او په
ولبث يعنی ﴿وَلَبِثُواْ فِي كَهْفِهِمْ﴾ سره مراد مدت دخوب دهغوئ دې اوپدي لبث سره مراد
بعدالنوم يعنی دخوب دبيداريدلونه ورستوترمرګه پوري وخت دې چې دادخلکونه مجهول
دې، نوجمهورومفسرينوباندې اعتراض نشي کيدې چې کچرې ﴿وَلَبِثُواْ فِي كَهْفِهِمْ﴾ اخبار د الله ﷻ
شي نوبياپدي ايت سره دهغې رد ولي کيږي؟؟ اوځنې مفسرين فرمائي چې دامتعلق دې
د ﴿وَٱزْدَادُواْ تِسْعًا﴾ سره، چې په ﴿تِسْعًا﴾ کښې خلکواختلاف اوکړو چې ځنوئيل چې دتسعانه مراد
نهه ساعات دي، چاوئيل مراد ورنه نهه ورځې دې چاوئيل چې نهه مياشتې مراد دې اوچاوئيل
چې نهه کاله تنه مراد دې، نوالله ﷻ اوفرمائيل چې ﴿قُلِ ٱللَّهُ أَعْلَمُ﴾ ليکن غوره توجيه اولنې ده
او د ﴿تِسْعًا﴾ نه مراد نهه کالونه دې حتما، ځکه چې عددپدي کلام کښې دکالونوبيانيږي نه
دمياشتوغيره. ﴿لَهُۥ غَيْبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ پدي سره ثمره دواقعي داصحاب کهفوذکرکيږي.
داصحاب کهفودډي عجيب اوغريب واقعي دوجي نه مشرکين مکه ته داشبه شوي وه چې
اصحاب کهف غيب دان اومختاردي، الله ﷻ دهغې تفصيلی رد اوفرمايلواوس په اخرکښې
دټولي واقعي ثمره اونتيجه بيانه وي چې غيب دان اومختارکل صرف اوصرف الله ﷻ دې
اوهرچه دي انبياء کرام اواولياء لکه اصحاب کهف نوهغوئ دالله ﷻ نيکان بندګان دی نده چاپه
نفع قادردی اونه ضرر اونه ورته علم غيب ثابت دې، لام په ﴿لَهُۥ﴾ کښې لپاره داختصاص علمي دې
اوتقديم د «له» لپاره دافادي دحصردي، چې داسمان اودزمکي دپټ څيزونوعلم الله ﷻ سره
دې. اوهرکله چې الله ﷻ په پټ څيزونوباندې عالم دې نوپه ښکاره څيزونوباندې په طريق اولي
سره عالم دې نوددينه په ټولومخلوقاتو باندې علم دالله ﷻ ثابت شو ﴿أَبْصِرْ بِهِۦ وَأَسْمِعْ﴾ دا
دواړه صيغي دتعجب دی اوکلام مندرج دې د ﴿قُلْ﴾ دلاندې يعنی قل الله اعلم اوقل ابصربه واسمع
و ﴿بِهِۦ﴾ ضميرراجع دې الله ﷻ ته اوواقع دې په محل درفع کښې ځکه چې دې فاعل دې دفعل
تعجب لپاره. اوباء پکښې زائده ده نوداتعجب دالله ﷻ دطرف نه ندې اومراد پدي تعجب سره

مبالغه ده په اوریدلو او کتلو کښ او پدې سره اشاره مقصود ده چې علم دَ الله ﷻ دممکناتو پېــن بواسطې دَحاسې سره ندې بلکه علم دَ الله ﷻ مطلقا حضوری قدیم دې اودغه شان دا دلیل دې پدې چې استعمال دَصیغو دتعجب په ځنې صفاتو دَ الله ﷻ کښ جائز دې

اویادادواړه صیغې دَامردې اوضمیردَ ﴿بِهِۦ﴾ راجع دې وحې یادین اویاهدایت ته ،قرطبی اوباء پدې صورت کښ هم زائده ده، یعنی ابصروحی الله، یاابصردین الله. یاابصرهدی الله. اومراد په کتلوسره دَزړه کتل مراد دې یعنی خپل ځان نبه پوهه کول، اومراد په ﴿وَأَسْمِعْ﴾ سره نوروخلکوته اورول دې، خواوله توجیه زیاته غوره ده (والتفصیل فی الروح) ﴿مَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ﴾ غوره قول دا دې چې ضمیردجمع راجع دې (اهل السموات والارض) ته اواهل اګرچه صراحت ندې مذکور خوحکمامذکوردې ځکه چې دامدلول دې دَ ﴿لَهُۥ غَيْبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ لپاره. اومراد په ﴿وَلِيٍّ﴾ سره اختیارمند، اوکارسازدې، اویاضمیرراجع دې اصحاب کهفوته اومراد په ﴿وَلِيٍّ﴾ سره محافظ دې ای لم یکن لاصحاب الکهف ولی یتولی حفظهم دون الله(قرطبی) ﴿وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِۦٓ أَحَدًا﴾ مراد په حکم سره قضاء اوقدردې، یعنی الله ﷻ په خپل تصرف اواختیاراوقضاء اوقدرکښ څوک هم ندې شریك کړې اویامراد دَحکم نه علم غیب دې، یعنی الله ﷻ په علم غیب کښ څوک هم ندې شریك کړې، ای لایشرك فی علم غیبه احدا(فتح القدیر) دا ایت دلیل دې په نفی دَعلم غیب عطائې باندې

**فائده**: قصه دَاصحاب کهفوپه ډیرو فوائدو باندې مشتمله ده اوددې دَمعظم نتائجو کښ یو نتیجه داهم ده چې دَدینه معلومیږي چې کرامات دَاولیاء حق دې اودَانکارګنجائش پکښ نیشته، دامسلك دَاهل السنة والجماعت دې اوثابت په قرآن حدیث اوعقل سره، اوصاحب دَشرح عقائدفرمائی والدلیل علی حقیة الکرامات ماتواترعن کثیرمن الصحابة ومن بعدهم بحیث لایمکن انکاره، هرچه دې ثبوت په قرآن سره لکه (۱) واقعه دَمریم ﷺ چې هغې ته به تازه میوه اورزق راتلو .تفصیل ئې په سورة آل عمران کښ تیرشویدې، اودغه (۲) شان واقعه دوزیردَسلیمان ؑ چې اصف بن برخیاوو چې دَبلقیس تخت ئې دَسترګې په رپ کښ راوړې وو(۳) اودغه شان واقعه دَاصحاب کهفوشوه چې (۳۰۰) درې سوه کاله پراته وو پغیردَځه تغیرنه اوهرچې دې احادیث نولکه روایت

مبالغه ده په اوریدلو اوکتلوکښې اوپدې سره اشاره مقصود ده چې علم دالله ﷻ دممکن توپستن پواسطې دحاسې سره ندې بلکه علم دالله ﷻ مطلقا حضوری قدیم دې اودغه شان دادلیل دی پدې چې استعمال دصیغود تعجب په ځنې صفاتو دالله ﷻ کښې جائزدې

اویادادواړه صیغې دامردې اوضمیرد ﴿بِهِۦ﴾ راجع دې وحې یادین اویاهدایت ته .قرطبی اوباء پدې صورت کښې هم زائده ده، یعنی ابصروحی الله، یاابصردین الله. یاابصرهدی الله. اومراد په کتلوسره دزړه کتل مراد دې یعنی خپل ځان بنه پوهه کول.اومراد په ﴿وَأَسْمِعْ﴾ سره نوروخلکونه اورول دې،خواوله توجیه زیاته غوره ده(والتفصیل فی الروح) ﴿مَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ﴾ غوره قول دادی چې ضمیرجمع راجع دې (اهل السموات والارض) ته اواهل اگرچه صراحت ندې مذکور خوحکمامذکوردې ځکه چې دامدلول دې د﴿لَهُۥ غَيْبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ لپاره. اومراد په ﴿وَلِيٍّ﴾ سره اختیارمند، اوکارسازدې، اویاضمیرراجع دې اصحاب کهفوته اومراد په ﴿وَلِيٍّ﴾ سره محافظ دې ای لم یکن لاصحاب الکهف ولی یتولی حفظهم دون الله(قرطبی)﴿وَلَا يُشْرِكُ فِى حُكْمِهِۦٓ أَحَدًا﴾ مرادپه حکم سره قضاء اوقدردې، یعنی الله ﷻ په خپل تصرف اواختیاراوقضاء اوقدرکښې څوك هم ندې شریك کړې اویامراد دحکم نه علم غیب دې، یعنی الله ﷻ په علم غیب کښې څوك هم ندې شریك کړې،ای لایشرك فی علم غیبه احدا(فتح القدیر) داایت دلیل دې په نفی دعلم غیب عطائی باندې.

**فائده**: قصه داصحاب کهفو په ډیرو فوائدو باندې مشتمله ده اوددې دمعظم نتائجو کښې یوه نتیجه داهم ده چې ددینه معلومیږي چې کرامات داولیاء حق دې اوداانکار گنجائش پکښې نیشته، دامسلك داهل اسنة والجماعت دې اوثابت په قرآن حدیث اوعقل سره، اوصاحب دشرح عقائدفرمائی والدلیل علی حقیة الکرامات ماتواترعن کثیرمن الصحابة ومن بعدهم بحیث لایمکن انکاره، هرچه دې ثبوت په قرآن سره لکه (۱)واقعه دمریم ؑ چې هغې ته به تازه میوه اورزق راتلو ،تفصیل ئې په سورة آل عمران کښې تیرشویدې، اودغه (۲)شان واقعه دوزیردسلیمان ؑ چې اصف بن برخیاوو چې دبلقیس تخت ئې دسترگې په رپ کښې راوړې وو(۳)اودغه شان واقعه داصحاب کهفو شوه چې (۳۰۰)درې سوه کاله پراته وو پغیردڅه تغیرنه اوهرچې دې احادیث نولکه روایت

دَحضرت ابوهريرةﷺ چې نقل کړيدي امام بخاريﷺ چې(۱)حديث تکلم فى المهد دي انه قال النبيﷺ لم يتکلم فى المهد الاثلاثة الخ يادغه (۲)شان حديث الغارشونوردغه شان نوراحاديث شو چې تفصيل سره ذکريدى خطيب شربينى په خپل تفسيرکښې(شربينى ج۲ ص۴۰۷)، اوصاحب دَنبراس په خپل کتاب کښې(نبراس ص۴۷۷) من شاء فليطالعهما

﴿وَٱتۡلُ مَآ أُوحِيَ إِلَيۡكَ﴾دابل امرمتفرع دې په واقعې دَاصحاب کهفو باندې چې هغه په کثرت سره تلاوت کول دى دَقرآن مجيدلپاره دَتقرب الى الله. اودغه شان دليل وحى هم ذکرکيږي په دي چې عالم الغيب اومتصرف فى الامورصرف دَاللهﷻ ذات دې اوبل څوک نيشته دې.

او ﴿وَٱتۡلُ﴾يامشتق دې دَ(تلاوت) نه اوياتلونه په معنې دَاتباع سره اوامرلپاره دَايجاد دَفعل ندې بلکه ابقاء دَفعل لپاره دې نوپه اول صورت کښې معنې ئې داده چې لازم تلاوة ذلك على اصحابك چې په خپلو اصحابو باندې دَدي قرآن تلاوت لازم اونيسه(روح) اودويم صورت کښې ئې معنې داده چې پدي وحې باندې عمل کول لازم اونيسه،﴿مِن كِتَابِ رَبِّكَ﴾من بيانيه دې اودابيان دې لپاره دَ﴿مَآ أُوحِيَ﴾ ﴿لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَٰتِهِۦ﴾دَغوره قول مطابق مراد دَ﴿لِكَلِمَٰتِهِۦ﴾نه ټول قران دې، اودَايت مقصد دادې چې دَقرآن کلماتو بدلولو قدرت بغيردَاللهﷻ نه بل چاته ندې حاصل، اوقرآن مجيددَتحريف لفظي اومعنوي دواړونه محفوظ دې، اودَدي ايت تعارض دَسورة النحل ايت نمبر(۱۰۱) واذا بدّلنا اية مکان آية. سره نيشته دې ځکه چې دلته مراد دَمبدل نه محرف يعنى تحريف کوونکې اوتبديلې کوونکې بغيردَاللهﷻ نه مراددې، اوهرچه دې اللهﷻ نوهغه قادرمطلق دې که يوحکم منسوخ کوي يائې برقرارپريدي څوک پرې اعتراض نشي کولې، اوبل جواب دادې چې نسخ جداشئ دې اوتبديلي جداشې دې، بدلول ونيلي کيږي ديته چې يوشې اوبل حکم دَيوعارض دَوجې نه پريخودلې شي اودهغه په ځائې بل اختيارکړې شي، اونسخ عبارت دې دَبيان دَمدت دَانتهاء الحکم نه چې کوم زمونږپه اوهامو کښې ثابت وو دائما، اومطلق تبديلي ته نسخ نه ونيلې کيږي، اوځني مفسرين فرمائى چې مراد دَ﴿لِكَلِمَٰتِهِۦ﴾نه خصوصي طوروعد او وعيددې چې اللهﷻ دَخپلو موحدينو،صالحينوبندګانو سره کومې وعدې کړيدي، او مشرکينو سره کوم وعيدونه دې هغه څوک نشي بدلولې﴿وَلَن تَجِدَ مِن دُونِهِۦ مُلۡتَحَدًا﴾واو تعليليه دې

اوداجمله دَماقبل لپاره علت دې يعني دَالله ﷻ دکلماتو لره څوك بدله وونکې نيشته دې ځکه چې دَالله ﷻ نه علاوه بل دَپناه ځائ نيشته دې، اوپديکښې رددې په شرك فی التصرف باندې

| |
|---|
| وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ |
| [1]اوټينګ کړه خپل ځان دهغه کسانوسره چې بلې(عبادت کوي)درب خپل صبائې اوبيګائې اراده کوي غواړي دوز |
| وَجْهَهٗ وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ ۚ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَلَا تُطِعْ مَنْ |
| ذات رضا دهغه [2]اومه اړه وه سترګې خپلې ددوئ نه چې غواړې ته ځائست د ژوند ددې دنيا[3]اوخبره مه منه دهغه چاچې |
| اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا ۝ |
| غافل کړيدې مونږه زړه دهغه دياد زمونږنه او تابعداري ئې کړيده دخواهش خپل اودې کاردهغه دحدنه تيريدل |
| وَقُلِ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ ۗ فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ وَّمَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ ۚ |
| [4]اواوايه ته چې دا قرآن حق دې دجانبه درب ستاسونه .پس څوك چې غواړي ايمان دې اوړي اوڅوك چې غواړي نوکفردې اوکړي |
| اِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ نَارًا اَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا ۚ وَاِنْ يَّسْتَغِيْثُوْا |
| [5]بيشکه مونږه تيارکړيدې لپاره دظالمانو اورچې چاپيره به وي په دوئ باندې ديوالونه دهغې اوکچرې دوئ فرياد اوکړي دتندې |
| يُغَاثُوْا بِمَآءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِى الْوُجُوْهَ ۚ |
| نوفريادرسي به ئې اوکړې شي په داسې ابوسره چې پشان دويلې کړې شوې ګرمې تانبې به وي چې وريته وي به مخونه ددوئ |

(1) سوم امر متفرع

(2) چهارم امر متفرع

(3) پنجم امر متفرع

(4) ششم امر متفرع

(5) تخويف اخروی

بِئْسَ الشَّرَابُ ۗ وَسَآءَتْ مُرْتَفَقًا ﴿۲۹﴾

ناکاره څکل (اوبه) دي او ډېر بد دي (دوزخ) ځای د استوږنې

﴿وَٱصْبِرْ نَفْسَكَ﴾ دا دريم امر متفرع دي چې کوم خلك سحر او ماښام الله ﷻ ته دعاګانې غواړي او دهغه سره څوك شريك نه جوړه وي نو دهغوی په مجلس کښې کينه او مشرکينو او دنيا پرستو سره مجلسونه مه کوه او هغوی نه جدا شه لکه څرنګه چې اصحاب کهف دهغوی نه جدائي اختيار کړي وه، او مراد په صبرالنفس سره دوام او ثبات دې دهغوی مجالسو کښې شرکت کولو باندې چې ددوی مجلسونو ته ځه او دچا دوجي نه دوی دځان نه مه جدا کوه

﴿مَعَ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ﴾ مراد ددې نه هغه فقراء صحابه دي چې اکثرو اوقاتو کښې به دحضور ﷺ سره ناست وو لکه عمار، صهيب، سلمان، ابن مسعود او بلال ﷺ شو

**شان نزول**: ددې ايت په شان نزول کښې دوه (۲) واقعات مفسرينو ذکر کړيدي. يوه واقعه داده چې دکفار مکه رئيس اميه بن خلف وغيره حضور ﷺ ته راغلو او ورته ئې اوئيل چې کچري ته دافقراء دځپل ځان نه جدا کړي او زمونږ سره ئې په مجلس کښې نه شريکه وي نو مونږ به ستادين قبول کړو او ستادين ته به ترقي ميلاؤشي، نو پدې مشوري باندې الله ﷻ داايت نازل کړو چې ددې کفارو دامشهوره او نه مني او داغريب او فقراء مسلمانان دمجلس نه جدا کول خودرکنار بلکه ددوی مجالس لازم اونيسه (روح)، او دويمه واقعه امام بغوي ﷫ نقل کړيده دحضرت سلمان فارسي ﷜ نه چې عيينه بن حصين فزاري ﷜ داسلام راوړلو نه مخکښې حضور ﷺ ته حاضر شو چې په هغه وخت کښې دحضور ﷺ سره فقراء صحابه کرام ناست وو، چې دهغوی سره کمزوري لباس. او فقيرانه هيئت وو، نو عيينه فزاري ﷜ درخواست اوکړو چې مونږلپاره ستادمجلس نه مانع دغه شان خلك دي داسي کمزوري او فقيرانو خلکو سره مونږ نشو کيناستلې. ياخو دوی دځپل ځان نه مستقل لري کړه او ياکم ازکم زمونږ لپاره جدا مجلس قائم کړه، او دوی لپاره جدا. نو پدې باندې داايت نازل شو، او طبري ﷫ دحضرت عبدالرحمن بن سهل بن حنيف ﷜ او دحضرت قتاده ﷜ او دحضرت سلمان فارسي ﷜ نه نقل کړيدي چې کله داايت نازل شو نو حضور ﷺ بہ سيدو او دغه فقراء صحابه کرام ئې تالاش کړل حتی که چې دوی دجماعت په اخيري حصي کښې

اوموندل چې د الله ﷻ ذکرئې کولو نو حضور ﷺ ارشاداوفرمایه. الحمدلله الذی لم يمتنی حتی امرنی ان اصبرنفسي مع رجال من امتی معکم المحیاومعکم الممات ترجمه:شکردې د الله ﷻ چې ما ته بي مرګ رانکړوتردي چې ماته بې حکم اوکړوچې څه خپل ځان تینګ اوساتم دخپل امت څه کسانوسره،تاسوسره ځماژوندااوتاسوسره ځمامرګ دې(طبری ج۸ ص ۲۱۵) ﴿بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ﴾ د دَدينه یامراد دوام دې په عبادت باندې په اعتبارد عموم داوقاتوسره.ځکه چې دغسې عبارت محاورة استعمالیږي دعموموداوقاتولپاره چې مبدا اومنتهي ذکرشي اومرادتنه کل وقت شي اویاتنه مراد سحراومابنام مخصوص اوقات دی اوتخصیص ددي اوقاتوځکه اوشوچې دااوقات معظم اومقدس دی اوعام طورپرخلك پدي اوقاتوکښ غافل وي دوجي داشتغال بالامورنه.

﴿يُرِيدُونَ وَجْهَهُ﴾ داجمله په موضع دحال کښ ده دفاعل د ﴿يَدْعُونَ﴾ نه یعنی ددوئ عبادت خالص د الله ﷻ درضالپاره وي اوریاء اوشهرت لپاره نوي اونه څه دنیوي اغراضو لپاره وي.

﴿وَلَا تَعْدُ عَيْنَاكَ﴾ داخلورم امرمتفرع دې اومراد په نهي سره نهي ده دحقیر کنړلو دهغوئ نه. اودهغوئ ملګرتیاپریخودل دې یعني ددنیوي منافعولپاره هغوئ حقیرمه کنړه اودهغوئ ملګرتیامه پریږده ﴿تُرِيدُ زِينَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ (ترید)فعل مضارع په موضع دحال کښ ده د﴿عَيْنَاكَ﴾دکاف ضمیرنه. یعنی دوئ پریږدې اورؤساقریش مجالس اختیارکړې داسې مه کوه،نومراد دزینت ددنیانه درؤساؤاومالدارومشرکینومجالس اختیارول دې اوداحکم اګرچې حضور ﷺ ته دې په فرض اومحال سره لیکن مقصود تنه عام امت دې. ځکه چې حضور ﷺ ددې امورونه معصوم اوپاك وو﴿وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا﴾ داپنځم امرمتفرع دې چې دکومو خلکوزړونه د الله ﷻ دذکراویادنه غافل دې اودخپلوخواهشاتواتباع کوي نوته دهغوئ اتباع مه کوه،اونهي په ﴿وَلَا تُطِعْ﴾کښ دتحریم لپاره ده اودادلیل دې پدې چې دفساق اتباع کول حرام دې، اومراد په﴿مَنْ أَغْفَلْنَا﴾سره یاشغل بالدنیادې چې دهغوئ زړونه دنیاسره ډیرمشغول وي ای شغل عن الدین(ابن کثیر)اویاتنه مراد ختم قلب دې، چې ددوئ په زړونوباندې مهردجباریت لګولې شوې دې (قرطبی) اومراد په﴿مَن﴾سره امیه بن خلف دې اونسبت د﴿أَغْفَلْنَا﴾الله ﷻ خپل ځان ته خلقا

وتكوينا كړيدې، اودامذهب دَاهل السنة والجماعت دې اومعتزله چې انسان دَافعال اختيارېو خالق ګڼړي نوهغوئ تاويل کوي چې غافلا عن الذکر بالخذلان اويا ﴿أَغْفَلْنَا﴾ ترجمه کوي وجدناه عافلا عنه (کشاف) اومراد په ﴿ذِكْرِ﴾ سره قرآن، توحيد، تسبيحات وغيره ټول کيدې شي ﴿وَٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ﴾ مراد په "هواء" سره شرك اوبدعت دې ﴿وَكَانَ أَمْرُهُۥ فُرُطًا﴾ يعنى په عقيدې اواعمالوکښ تجاوزکوونکې دې. چې دَالله ﷻ اودَرسول الله ﷺ دلارې اتباع هم نه کوي اومحبت ورسره هم نه ساتي (ابن كثير) ددينه معلومه شوه چې ددوئ دَمتکبرانه سوالونووجه درې څيزونه دې (۱) زړونه دَالله ﷻ دَياد نه غافله کيدل (۲) دنيوې لذتونو اوخواهشاتو کښ غرق کيدل (۳) دَدين په امورو کښ افراط کول ﴿وَقُلِ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ﴾ داشپږم امرمتفرع دې چې خلکوته دااعلان اوکه چې توحيد اوداقرآن چې په دې کښ مسئله توحيداونوراحکامات بيان شويدي دَالله ﷻ دَطرفه په حق سره نازل شويدې ﴿ٱلْحَقُّ﴾ خبردې لپاره دَمبتداء محذوفی چې (هو) دې او ﴿مِن رَّبِّكُمْ﴾ حال مؤکده دې اوياخبربعدالخبردې اويا ﴿ٱلْحَقُّ﴾ مبتداء ده او ﴿مِن رَّبِّكُمْ﴾ ورله خبردې، اومبتداء خبردواړه معرفي دې نومفيدلپاره دَحصردې، نومقصدداشوچې حق صرف اوصرف هغه دې چې دَجانبه دَالله ﷻ نه وي، اومراد په ﴿ٱلْحَقُّ﴾ سره توحيددې لکه چې دامنقول دې دَضحاك رحمه الله نه. اوياتنه مرادقرآن دې اودامنقول دې دَمقاتل نه، ﴿فَمَن شَآءَ فَلْيُؤْمِن﴾ داتهديد اوتخويف بيانيږي چې حق الله ﷻ واضح کړيدې اوس که څوك منې نوخپله فائده ئې ده اوکه انکارکوي نوخپل نقصان ئې دې، الله ﷻ ته فائده اوضرر نشي رسولې، (فاء) لپاره دَترتب ده پماقبل باندې اوامرلپاره دَتهديددې اوتخييراووجوب وغيره لپاره ندې (کبير) اوپديکښ دليل دې پدې چې بنده ته اختيارحاصل دې، مجبورمحض ندې، ﴿إِنَّآ أَعْتَدْنَا﴾ داقرينه ده پدې چې امرلپاره دَتهديددې ﴿أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا﴾ دا تخويف اخروې اوتاکيددې په دغه تهديدکښ او (سردق) ځنې مفسرين فرمائی چې مفرد معرّب دې ځکه چې په کلام عربې کښ پدې وزن مفرد ندې راغلې اوبعض فرمائی چې داجمع ده اومفرد ورله سرادق دې اوبعض فرمائی چې مفرد عربې دې اوپدې وزن مفردات راغليدی لکه قرابص، علابط وغيره شو اوددې متعددې معاني

راغلیدی(۱) فسطاط النار یعنی داور یوه خیمه ده. نودایایوه مخصوصه خیمه ده او یه ددې جهنم تشبیه ورکړې شویده دخیمي سره لکه څرنګه خیمه محاط وي نودغه شان دي او په هم پدوی باندې احاطه کړیوي نودااستعاره تصریحیه ده او احاطه ترشیخیه ده(۲) او بعضي فرمائي چي سرادق هغه باړته وئیلې کیږي چې دخیمي نه ګیرچاپیره وي. نومطلب دادې چې په جهنم کښ به دجهنمیانونه ګیرچاپیره باړلګیدلې وي چې دوئ به دجهنم نه نشي وتلې(۳) بعض فرمائي چي مراد دسرادق نه لوږې دې چې هغې به دجهنمیانونه احاطه کړي وي لکه په سورة المرسلات کښ دي، انطلقوا الی ظل ذی ثلث شعب(۴) حضرت قتادة رحمه الله فرمائي چي دلوږې او اورمجموعي ته سرادق وئیلې کیږي(۵) بحرمحیط دې چې په دنیاکښ احاطه دټولې دنیانه کړیده او په اخرت کښ به دااورسمندر او ګرځي په او په کفاروباندې به محیط وي، وعن یعلی ابن امیة ان رسول الله ﷺ قال ان البحرهومن جهنم ثم تلاتارا احاط بهم سرادقها(ابن کثیر)ترجمه نبي ﷺ فرمایلي دي چې سمندر دجهنم یوه حصه ده، بیابي داآیت تلاوت کړو (۲) څلور(۴) دیوالونه دي دجهنم چې دهردیوال غټ والی(پلنوالی) دڅلویښت کالومزل برابردې، لکه په حدیث دترمذی کښ دي

﴿وَإِن يَسْتَغِيثُواْ﴾ داباب استفعال دې وئیلې کیږي مددطلب کولوته فریاد کولوته، اودافریاد به دوئ دشدت عطش(سختي تندي) دوجي نه به کوي، او بعض فرمائي چې (استغاث) وئیلې کیږي طلب الغیث ته(یعنی باران غوختلوته) یعنی دجهنم مختلف الانواع عذابونو اودسخت ګرمئ دوجي نه به دوئ باران رحمت طلب کړي﴿يُغَاثُواْ بِمَآءٍ﴾ داتهکما وئیلې شویدې مراد تنه عذاب دې او(مهل) وئیلې کیږي هغه ګند اوخیري ته چې دتیلوپه آخرکښ پاتي شي یعنی داسي ګنده او به به ورته پیش کړې شي چې بدمزګي کښ په دتیلو دخیرې پشان وي اودحضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه نه روایت دې چې حضور ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چې انه کعکر الزیت فاذا قرب الیه سقطت فروة وجهه فیه(ترمذی) یعنی دااوبه به دتیلودخیرې پشان وي اوهرکله چې قریب کړې شي(دسخت ګرموالی دوجي نه) دمخ څرمنه به ئې په هغې کښ اوغورځیږي، او ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل دي چې مهل وئیلې کیږي ویلې کړې شوي تانبي ،اوسپني،اوسره،سپین زروته. اومجاهد رحمه الله دمهل تفسیرپه وینو اوزوو دجهنمیانو سره کړیدې،لکه چې په سورة ابراهیم کښ تیرشویدی چې ویسقیٰ من مآء صدید، یتجرعه الخ او بعض فرمائي چې دایو قسم دباران دې ﴿يَشْوِى

﴿ٱلْوُجُوهَ﴾ دا دويم صفت دَهغې ابودې.اول صفت ئې ماقبل کښې تيرشوچې بدمزګې وه اودويم صفت ئې حرارت «سخت ګرموالې»دې يعنی داسې سختې ګرمې اوبه وي چې دګرموالي دوجې نه به ئې مخونه وريته شي «اعاذناالله منهابفضله ومنه وکرمه» ﴿بِئْسَ ٱلشَّرَابُ﴾ مخصوص بالذم محذوف دې چې «مآء» دې اوپدې سره اشاره ده چې اوصاف ذميمه دَدې اوبو ډيرزيات دې لکه ګرموالی شو . بدبوشوه تنده پرې نوره زياتيدل شو ،وغيره چې انسانی عقل ئې ادراک نه قاصردې پدې دنياکښې. ﴿وَسَآءَتْ مُرْتَفَقًا﴾ مراد دَ ﴿مُرْتَفَقًا﴾ نه مقام دې اواصل کښې مرتفق وئيلې کيږي په څنګلې سره تکيه لګولو ته اودا کنايه ده په اطمينان سره کيناستلونه اوپه جهنم کښې به اطمينان نوي. نواطلاق پدې مقام باندې دَ ﴿مُرْتَفَقًا﴾ مشاکلة شويدې ځکه چې ورستو دَجنتيانولپاره دالفظ استعمال شويدې، اوياجهنم ته مرتفق وئيل تهکمادې اوبعض فرمانې چې ارتفاق وئيلې کيږي ديته چې څنګله اودرولې شي اولاس دَځنې لاندې کيخودلی يس شي اودا حالت اوکيفيت دَحزن اودتحسروې، نومطلب داشوچې جهنم ځائ دَغم اوپريشانئ دې(روح).

إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ

[1] بيشکه هغه کسان چې ايمان ئې راوړې دې اوعملونه ئې کړيدی نيک(دسنت برابر) بيشکه مونږه نه برباده وو ثواب دهغه چا چې

أَحْسَنَ عَمَلًا ۝ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ جَنَّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهِمُ ٱلْأَنْهَٰرُ

حلسنه ئې کړې وي عمل ،دغو کسانو لپاره جنتونه دې دهميشه اوسيدلو،چې بهيږي به لاندې دبنګلودهغې نه نهرونه

يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِّن سُندُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ

اجولې به شي دوئ ته په هغې کښې بنګړې دسروزرو اواغوندې به دوئ جامې شنې دنرې ريښمونه اوغتوريښمونه

مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ ۚ نِعْمَ ٱلثَّوَابُ ۚ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا ۝

تکيه به ئې وهلې وي په هغې کښې په پالنګونوباندې ډيره ښه بدله ده(جنت) اوډيرخائسته ځائ دې دستورښي

---

[1] بشارت اخروی

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾پدیکښې بشارت اخروي ذکرکيږي مؤمنانو ته ان حرف مشبه بالفعل دي ﴿ٱلَّذِينَ﴾موصول او﴿ءَامَنُواْ﴾ معطوف عليه او﴿وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ﴾معطوف. دا اسم د ان شو، او ﴿إِنَّا لَا نُضِيعُ﴾توله جمله اسم سره دخبره داخبرشود ان اول لپاره. اورابط منهم دي چې هغه محذوف دي اوپديکښې اشاره ده دېته چې نيك عمل هغه وخت قبول دي چې ايمان ورسره وي اوبلاايمان نيك عمل حبط وي(قرطبي) اوعطف د﴿وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ﴾په﴿ءَامَنُواْ﴾باندې دليل دې پدې چې ايمان اوعمل صالح کښې مغايرت دې، ايمان نفس اذعان اوتصديق قلبي ته وئيلې کيږي ﴿أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ﴾وضع داسم ظاهرده په ځائې دمضمرباندې اوپديکښې اشاره ده چې نيك اعمال مکملات دايمان دي، اومراد داحسن، نه اخلاص دې اودا دې ايت تعارض دحديث عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره نيشته دي چې منقول کړيدې امام بخاري رحمه الله اوغيره چې فوالله ان احدکم او(قال) الرجل ليعمل بعمل اهل النار حتى مايکون بينه وبينها غيرذراع اوقال ذراع فيسبق عليه الکتاب فيعمل بعمل اهل الجنة فيدخلها اوان الرجل ليعمل بعمل اهل الجنة حتى مايکون بينه وبينها غيرذراع او (قال)ذراع فيسبق عليه الکتاب فيعمل بعمل اهل النار فيدخلها(بخاری ج۲ کتاب القدر) ترجمه په خداي ﷻ دې قسم وي چې يوسړې به دجهنميانوعمل کوي تردې پورې چې جهنم اودده په مينځ کښې به ګزيادګزنه کم(په اختلاف روايات)فاصله پاتي شي،نوتقديربه رامخکې شي اودې به دجنتيانوعمل شروع کړي اوجنت ته به داخل شي،اودهغه شان تې يوسړې به جنتيانوو الاعمل کوي تردې پورې چې جنت اودده په مينځ کښې به ګزيادګزنه کم(بنابراختلاف روايات)فاصله پاتي شي نوتقديربه راوړاندې شي نودې به دجهنميانوعمل شروع کړي اورته به داخل شي،دلته خودينه معلوميږي چې يوسړې به نيك عمل کوي کوي په آخرکښې به دده هغه نيك عمل بربادي شي، ځکه چې دحضرت سهل رضي الله عنه په حديث کښې ورسره اضافه راغليده چې مايبدوللناس. چې په ظاهرکښې به خلقوته نيك عمل ښکاري خوحقيقت کښې به نوي ځکه دغه نيك عمل به دې بطور رياء کوي(فتح الباري ج۳ ص۳۲۳) نوځکه به دده اعمال ضائع شي اوجهنم ته په داخل شي، اوځکه ورسره دلته پدې ايت کښې هم ذکرداحسن ورسره اوشولو،اودا نه ضائع کول يعني پدې نيك اعمالوباندې اجر وثواب ورکول دالله ﷻ دطرف نه تفضلا دې په مسلك داهل السنت

والجماعت باندې﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ ﴾ داتفصيل دې په بشارت اخروي کښې او﴿عَدْنٍ ﴾ په اصل کښې ونيلې کيږي اقامت ته اودجنت توصيف په عدن سره ځکه کيږي چې جنت هم مقام داقامت قائمه دې اودحضرت ابن مسعود ﷺ نه مروي دې چې عدن دېو مخصوص جنت نوم دې﴿يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ ﴾ اول (من) ابتدائيه دې اودويم (من) بيانيه دې داذکردلباس دې وروستو دذکردمکان نه، اولباس په دوه قسمه دې(۱)يولباس تستراو(۲)دويم لباس تحلي. نوپه ﴿يُحَلَّوْنَ ﴾ سره لباس تحلي ذکرکيږي، اوپه﴿وَيَلْبَسُونَ﴾سره لباس تسترذکرکيږي. اوتقديم دلباس تحلي په تسترله وجې دتعظيم نه دې، ځکه چې جنتيانوته لباس تحلي وراچونکې يابه پخپله الله ﷻ وي اويابه فرشتې وي په حکم دالله ﷻ سره. اوځکه چې لباس تحلي وراچوونکي بل څوك دي ددې وجه نه ﴿يُحَلَّوْنَ﴾ صيغه دمجهول ذکرشوه په خلاف دلباس تسترنه چې دهغې اچوونکي به په خپله جنتيان وي ددې وجه نه ﴿وَيَلْبَسُونَ﴾صيغه دمعلوم ذکرشوه، اوددې ايت تعارض دايتونو دسورة الدهر وحلوا اساور من فضة(الدهر) اودسورة الحج يحلون فيها من اساور من ذهب ولؤلؤا (الحج) اودسورة فاطر جنت عدن يدخلونها يحلون فيها من اساور من ذهب ولؤلؤ(فاطر) سره نيشته دې(۱) ځکه چې داکالی (اساور) به څني دسرو زرو، څني دسپينوزرو اوځني به دملغلرونه جوړشوې وي، (۲)اوياداچې اصل بنګړي به دسروزرو وي او اوبه به ورته دسپينوزرو ورکړې شوې وي اوپه صفائي کښې به دملغروپشان وي (۳)اوياداچې څني حصه به ئې دسپينو اوځنې به ئې دسروزرو وي اوګل کاري به په يکښې په ملغلروسره شوي وي اودااعتراض هم نه واريديږي پدې مقام کښې چه ﴿أَسَاوِرَ ﴾لائق اومناسب ندي دسروسره بلکه داخودزنانولپاره زينت دې اودسړولپاره ندې،ځکه چې ددې دنيااودهغې خائې په احکاماتو کښې فرق دې لکه څرنګه دېوي علاقې اودبلې علاقې په عرف کښې فرق وي دېوي زمانې اودبلې زمانې دخلکوپه رسم اورواج کښې فرق وي،نودغسې کوم څيزچې دلته عيب دې هغه به هلته حسن،زينت اواعزازبه وي،حضرت شاه ولې الله صاحب فرمائي

احکام آنجاديگراند واحکام اينجاديگراند.

﴿وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا ﴾خضر جمع داخضرده شين ته وئيلي كيږي. اوذكر دخضر حصر ندي خكه چي الله ﷻ فرمائي وفيها ماتشتهيه الانفس وتلذ الاعين الزخرف ۷۱، اوتخصيص ني خكه اوشو چي شين رنګ په ټولورنګونوکښ خائسته دي اونفس ته ورسره سرور اوخوشحالي ميلاويږي.

وقيل ثلاثة مذهبة للحزن المآء،والخضرة،والوجه الحسن(روح)﴿مِّن سُندُسٍ ﴾من بيانيه دي او سندس باريك ريشم ته وئيلي كيږي، او استبرق غټ موټا ريشم ته وئيلي كيږي

﴿مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ ﴾ داكيفيت دجلوس بيانيږي اوارائك جمع داريكة ده هغې پالنګ ته وائي چي دناوي لپاره تيارکړې شوې وي،څلورو طرفونو ته ورته پردي لګيدلي وي. اوداكنايه ده دتنعم اواسائش نه،خکه چي دغسي پالنګونوباندې تکياګاني لګول دمتنعمين نعمت کښ روزلي شوي خلکو کاردې.

**تنبيه:** حقيقة دارائك اوداساور اودسندس اود استبرق وغيره دجنت والا پدي دنياكښ مجهول دي انساني فهم دهغې ادراك نه قاصر دي اوددنيا والا پالنګونو اوبنګړو اوريشم سره مشابهت صرف په لفظ کښ دې نه په حقيقت کښ.

وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا رَّجُلَيْنِ جَعَلْنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيْنِ مِنْ أَعْنَابٍ

[1]اوبيان کړه ته دوئ ته يومثال ددوه سړو چي ورکړي وو مونږه يوددوئ ته دوه باغونه دانګورو

وَحَفَفْنَاهُمَا بِنَخْلٍ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمَا زَرْعًا ﴿٣٢﴾ كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ

اوبيټ کړي وو مونږه هغه دواړه په کجورو سره اوپيداکړي وومونږه په مينځ دهغې کښ فصل.دي دواړو باغونو

آتَتْ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِم مِّنْهُ شَيْئًا ۚ وَفَجَّرْنَا خِلَالَهُمَا نَهَرًا ﴿٣٣﴾

ورکولې ميوي خپلي اونه به ئي کمولودهغې نه څه شي اوروان کړي وو مونږه په مينځ دهغې دواړوکښ يونهر

وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ ۚ فَقَالَ لِصَاحِبِهِ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَنَا أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا

اووه لپاره دده نورآمدني ،پس اوئيل ده ملګري خپل ته چي ده خبري اره ولي دهغه سره چي څه زيات يم ستانه په اعتباردمال سره

[1] بيان طرق ثلاثه براى اصلاح منكرين طبقه اولى.

| |
|---|
| وَّاَعَزُّ نَفَرًا ﴿۳۴﴾ وَدَخَلَ جَنَّتَهٗ وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ ۚ قَالَ مَآ اَظُنُّ |
| اوغالب يم په اعتبار دډلي سره، اوورننوتلو دئ باغ خپل ته حال داچي دئ ظلم كوونكي وو په خپل خان باندي وئيل ئې چي څه نه كوم |
| اَنْ تَبِيْدَ هٰذِهٖٓ اَبَدًا ﴿۳۵﴾ وَّمَآ اَظُنُّ السَّاعَةَ قَآئِمَةً ۙ وَّلَئِنْ رُّدِدْتُّ اِلٰى رَبِّيْ |
| ګمان چي هلاك به شي دا باغ چرته. اونه كوم څه ګمان په قيامت چي قائم (واقع به شي اوكه چرته اوګرځولي شوم څښتن تلي شو مېرب خپل |
| لَاَجِدَنَّ خَيْرًا مِّنْهَا مُنْقَلَبًا ﴿۳۶﴾ قَالَ لَهٗ صَاحِبُهٗ وَهُوَ يُحَاوِرُهٗٓ |
| ته نوخامخابه اوموم څه غوره ددي باغ نه ځائ دورتللو. اووئيل ده ته ملګري خپل حال داچي هغه ده له جواب وركولو |
| اَكَفَرْتَ بِالَّذِيْ خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ سَوّٰىكَ رَجُلًا ﴿۳۷﴾ |
| آيانه كفركوي دهغه ذات سره چي پيداكړي ئې ته دخاورونه بيادنطفي نه بيائې برابركړي ته سړي |
| لٰكِنَّا۠ هُوَ اللّٰهُ رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِرَبِّيْٓ اَحَدًا ﴿۳۸﴾ |
| ليكن څهوايم، چي الله ﷻ رب څمادي اونه شريك كوم څه دخپل رب سره هيڅ څوك |

﴿وَاضْرِبْ لَهُمْ﴾ دا اول امرمصلح ذكركيږي اوواقعه بيانيږي لپاره دَاصلاح دمنكرينو چي هغوئې دنيوي شان وشوكت اومال، دولت دَوجي نه حق سره تكراو كوي اودنيوي مال متاع باندي فخركوي

بعض مفسرين فرمائي چي داايت دَقبيلي دَتمثيل محض نه، دي اووجود خارجي دَدي واقعي لپاره نيشته دي، اودا صرف دَافهام اوتوضيح لپاره بيانيږي، اوبعض مفسرين فرمائي چي داتمثيل دي دَحالت دَعيينه بن حصين اودهغه دَملګرو اودَحالت دَسلمان فارسي رضي الله عنه اودهغه دَملګرو دَبنى اسرائيلو كښ دَدوه (۲) رونړودَحالت سره،چي په هغوكښ يومسلمان وو لړنوم دهغه يهودا اوياتمليخاوو، اوبل كافروو اونوم دهغه فرطوس، فطروس ياقطفروو چي دادواړه رونړه وو دَپلارپه وراثت كښ دواړوته (۸۰۰۰)اته زره ديناره اورسيدلو. دواړو په خپل مينځ كښ تقسيم كړل اوخپله خپله حصه ئې واغستله، كافرخان له په زرو دينارباندي يوعظيم الشان باغ واغستلو. نوهغه مسلمان (۱۰۰۰)زرديناره صدقه كړل اودعا ئې اوكړه چي ياالله ﷻ څما

ورور په زرو دیناروباندې زمکه واغستله اوڅه ستانه په جنت کښې زمکه غواړم. هغه کافرپه زرو دینارو باندې ځان له کوراوبنګله جوړه کړه نودې مسلمان زر دیناره صدقه کړل اودعائې اوکړه چې یاالله ﷻ څه ستانه په جنت کښې بنګله غواړم، هغه کافرزردیناره خرچ کړل اوځان له ئې واده اوکړو. نومسلمان زر(۱۰۰۰)دیناره دَالله ﷻ په لاره کښې صدقه کړل اودعائې اوکړه چې یاالله ﷻ څه ستانه سوال کووم چې ته ځمانکاح دَجنت دَحورو سره اوکړې. هغه کافربیازر(۱۰۰۰)دیناره خرج کړل ځان له ئې دکوراسباب خادمان.غلامان وینځې واغستلې. نومسلمان زر(۱۰۰۰)دیناره دَالله ﷻ په نوم صدقه کړې اودعائې اوکړه چې یاالله ﷻ څه ستانه په جنت کښې اسباب اوخادمان وغیره غواړم.

هرکله چې دې مسلمان خپل ټول مال دَالله ﷻ په لارې کښې صدقه کړل نوڅه وخت ورستو دته څه حاجت پیش شو ،نوخیال ئې اوکړو چې خپل ورورپسې به لاړشم چې کیدې شي چې دهغه نه ماته څه،شئ میلاوشي،نودې دهغه په لاره کښې کیناستو ،نوچې کله دغه کافر ورور دَخپلونوکرانو سره په لاره کښې تیریدلو نوخپل ورورئې اوپیژندلو تپوس ترې نه اوکړو هغه ورته اوئیل چې ځما څه حاجت پیښ شویدې تاته،نوهغه کافرورته اوئیل چې ماوتاته خویوشان پیسې میلاؤ شوي وې نوتاخپلې پیسې څه کړې، هغه ورته خپله دَصدقاتوواقعه بیان کړه. نوهغه کافرته دَخپلوباغونو ،مال، دولت اودَنوکرانو ،خادمانو ذکراوکړو . اوپه ځنې روایاتوکښې دې چې دې کافرهغه مسلمان دلاس نه اونیسو اوخپل باغونوکښې ئې ورته چکر ورکړو خپل اولاد ،مال وغیره ئې ورته اخودلو اودیرپه فخراوغرور سره ئې ورته اوئیل چې﴿أَنَا۠ أَكۡثَرُ مِنكَ مَالٗا وَأَعَزُّ نَفَرٗا﴾نودې مسلمان ورور ورته دَاسلام تعلیم اوتلقین اوکړو ،اودَقیامت نه ئې اویرولولیکن هغه کافر ورته جواب کښې اوئیل چې﴿وَمَآ أَظُنُّ ٱلسَّاعَةَ﴾چې اول خوڅه داګمان نه کووم چې قیامت به راشي اوکچرته قیامت راهم شي نوبیابه هم ځماانجام ښه وي، اوهغه غریب مسلمان ئې هسې اوشړلو ،نو الله ﷻ عذاب رااولیږو دَهغه کافر مغرور باغات اوهرڅه ئې ورله تباه کړل. اوبعض مفسرین فرمائي چې مصداق دَ﴿رَّجُلَيۡنِ﴾ دوه(۲)کسان (رونړه) دَمکي اوسیدونکي دي چې قبیله بنی مخزوم سره ئې تعلق لرلویومسلمان وو چې هغه دَام المؤمنین حضرت ام سلمة ﷺ اولنې خاوند حضرت ابوسلمة ﷺ عبدالله بن عبدالاسود دې اودویم کافر چې دهغه نوم اسود بن

عبدالاسود بن عبدياليل وو﴿وَٱضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا ﴾ (مثلا) مفعول به دي د اضرب لپاره او ﴿رَّجُلَيْنِ﴾ورنه بدل دي اوعبارت په حذف دمضاف سره دي اى حال رجلين اويا ﴿رَّجُلَيْنِ﴾ مفعول ثاني دي د﴿وَٱضْرِبْ﴾ لپاره چې دامتضمن دي معني دجعل لره اوضميرد﴿لَهُم﴾راجع دي مؤمنانوته، اوداهم ممكنه ده چې دواړو ته (مؤمنانوكافرانو)راجع شي﴿مِنْ أَعْنَٰبٍ﴾ پديكښ اشاره ده كثرت دميوو ته اودهغې انواعو متعددوته.دا اول صفت ددغي باغ دي.

﴿وَحَفَفْنَٰهُمَا بِنَخْلٍ﴾دادويم صفت دهغې باغ دي چې هيڅ يوځاې هم ددي باغ بيكاره نه وو چې په مينځ كښ فصلونه اومختلف قسم ميوي وي،اوګيرچاپيره تنه كهجوري اوميوي وي ﴿وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمَا ﴾دا دريم صفت دي اوپديكښ اشاره ده وسعت ددغي باغ ته. اوحسن نظم اوخائست دباغ ته، ﴿ كِلْتَا ٱلْجَنَّتَيْنِ ﴾دا څلورم صفت ددغي باغ دي عام طورباندې باغونه يوكال ميوه زياته اونيسي نوپه بل كال كمه وركوي، خوددې باغ نوعيت دنورو باغونونه بدل وو، هركال به ئې ميوه زياته وركوله اوكموالى به ئې پكښ نه راويستلو. لفظ د﴿كِلْتَا﴾ اودغه شان كلا دبصريانو دمذهب موافق مفرددي خومعنىً تثنيه دي اواستعمال ئې بغيرداضافت تثنيي نه ،نه كيږي. اوسيبويه وائي چې كلتا په اصل كښ كلوى وو الف لپاره دتانيث دي اوواو بدل كړې شوپه تاء سره، نوكلتاشو اوبعض نحويان لكه ابوعمرو نحوي فرمائى چې تاء داصل كلمي نه نده بلكه تاء ملحقه ده لپاره دفرق دكلا سره اوفراء وائي چې كلتا تثنيه مؤنث دكل ده په اخيركښ الف دتثنيي زائد كړې شو، اولام تخفيفا ساكن كړې شونوكلتا تنه جوړشو، خوراجح مذهب دبصريانو دې نوددي وجه نه ورستو ضميرپه﴿ءَاتَتْ﴾ كښ مفرد مؤنث ورته راجع شو، ﴿أُكُلَهَا﴾جمع داكل ده دمفرد اوجمع فرق په سكون دكاف اوپه ضمې دكاف سره دي،اول مفرد اوثانى جمع ده، ﴿وَفَجَّرْنَا﴾ دا پنځم صفت ددي باغ دي چې ددي باغ په مينځ كښ يوعظيم الشان نهر هم وو چې هغې دباغ په حسن كښ نورهم زياتوالې كړې وو، اوپه باغ كښ دكوهې ضرورت ئې ختم كړې وو. واو و﴿وَفَجَّرْنَا﴾ كښ دمطلق جمع لپاره دې نولهذا دا اعتراض نه راديږي چې تفجيردنهر مقدم وي په اعطاء دثمرباندې عقلا ،نولهذا دلته كښ هم مقدم كول پكاروو اونكته په تاخيردتفجيركښ

داده چې دا تفجیر یو مستقل نعمت وو، او باغونو دَ دي نه بغیرهم فصل میوي ورکولي لکه چې به سورة البقرة ایت نمبر(۲۷۵) کښې دي. فان لم یصبها وابل فطلّ(روح)﴿وَكَانَ لَهُۥ ثَمَرٌ﴾ دا عطف دې په ماقبل﴿جَعَلْنَا﴾باندې او مراد په﴿ثَمَر﴾ سره نور قسم اموال دي ځکه چې عطف تقاضه دَ مغایرت کوي، نو پدې کښې اشاره ده چې دَده لپاره نور ډیراموال وو او دآمدنې ذرائع ډیروو او په څنې قرائتونو کښې ثمر بضم الثاء دې چې هغه وئیلې کیږي اموال کثیره ته. نو په اول (بفتح الثاء) صورت کښې دا کنایه ده دَ اموال کثیره نه او په دویم (بضم الثاء) صورت کښې خپله وضعي معنې ئې اموال کثیره ده﴿فَقَالَ لِصَٰحِبِهِۦ﴾فاء لپاره دَتفریع ده، ماقبل کښې دکافرو الامال او باغونه او دهغې حسن ترتیب وغیره ذکرشو اوس دهغه تکبراو غرور بیانیږي چې هغه په غریب مسلمان باندې په خپل کثرت مال او اولاد سره فخراو غرور کولو﴿وَهُوَ يُحَاوِرُهُۥٓ﴾واو حالیه دې او دا جمله حال واقع شوې ده دَضمیردَ﴿فَقَالَ﴾ نه، او ضمیر په﴿يُحَاوِرُهُۥ﴾کښې راجع دې کافرته او "یحاور" باب مفاعله دې وئیلې کیږي مراجعت دکلام ته نومقصد دادې چې دې کافربه هغه مسلمان سره جګړه او مخاصمت کولو په شرك بالله او په انکاربالبعث سره او په خپل مال او کثرت اولاد سره په مسلمان باندې فخراو غرور کولو (بحر).

او بعض مفسرین فرمائي چې دا حال دې دَ﴿لِصَٰحِبِهِۦ﴾ نه، یعني هغه مسلمان به ورته وعظ، نصیحت کولو او ده به فخراو غرور کولو﴿أَنَا۠ أَكْثَرُ مِنكَ﴾ دا سبب دَتکبراو غرور دَمالدار ذکرکیږي، او اکثراسم تفضیل دې، او مراد په﴿وَأَعَزُّ نَفَرًا﴾سره یا خدمتګاران او نوکران دي او یاتنه اولاد مراددي، او دې احتمال ته ترجیح ورکړې شوې ده ځکه چې ورستو دَفقیرمسلمان قول ددې په مقابل کښې ذکرکیږي نو هغې کښې ذکردې،﴿إِن تَرَنِ أَنَا۠ أَقَلَّ مِنكَ مَالًا وَوَلَدًا﴾نو معلومه شوه چې دلته هم په﴿نَفَرًا﴾سره مراد اولاد دی﴿وَدَخَلَ جَنَّتَهُۥ﴾ دا کلام په تقدیردَعبارت سره دې (ای مع صاحبه) ورسره مقدردې او اضافت دَجنت، ه، ضمیرته لپاره دَاستغراق دې او مراد دَجنت نه ټول هغه مال او څیزونه دي چې هغه به ورنه فائده اغستله، برابره خبره که هغه یو باغ وو یادوه(۲)یازیات یادَباغونو نه علاوه نوراسباب وو، او جنت مفرد ذکرکولو کښې اشاره ده دیته چې

کافرلپاره جنت صرف دا دنیا اودَدي اسباب دي اونورجنت ورله نیشته دي کشاف. کبیر. اوياجنت ددي وجه نه مفرد ذکرشوچې دکافرداقول اوفخراوغرور اول باغ ته دداخلیدلو په وخت کښې کړې وو ځکه چې دواړه باغونوته په يوځل داخلیدل ممکن ندي. نودې چې څنګه اول باغ ته داخل شو اودَهغې حسن اومال ئې اوکتلو نوپه غرورکښې مبتلاشو (بحر) اوياددې وجه نه مفرد ذکرشوچې دادواړه باغونه يوبل سره متصل وو اودَدواړو لپاره جداريعني ديوال يووو. لکه دَسدې نه نقل کړې شويدي چې دَدي باغونوپه مينځ کښې يونهروو اوديوال دَدواړو يووو. نو(جنتين) ورته پدي اعتبارسره وئيلې شويدې چې نهرتقسيم کړې وو اوجنت ورته پدي اعتبارسره وئيلې شويدې چې ديوال ئې يووو(روح)﴿وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ﴾داياجمله معترضه ده چې واقع شويده دَدوه (۲) کلامينودکافر په مينځ کښې لپاره دَتنبيه دَدي خبري چې په مال باندې غرور اوتکبردې کفرته اورسولو چې هغه په حقيقت کښې په خپل ځان ظلم کول دي. اوياجمله حاليه ده اوحال واقع شويده دَضميرفاعل دَ ﴿دَخَلَ﴾نه. ﴿قَالَ مَآ أَظُنُّ﴾داجمله مستانفه ده واقع شويده په سوال دَسائل کښې چې ګوياسائل سوال کولوچې دَه پدي وخت کښې څه وئيل نوجواب اوشوچې﴿مَآ أَظُنُّ أَن تَبِيدَ﴾ (ان) مصدريه دې او﴿تَبِيدَ﴾دَباد بيد نه وئيلې کيږي هلاکت ته. اودَ﴿أَبَدًا﴾ نه مراد حيات ابدي ندې ځکه چې دکفاروهم داعقيده نده چې انسان(بشخصه) به هميشه لپاره ژوندې وي اوچرته به هم نه مرکيږي.بلکه ددې نه مراد دادې چې دانعمتونه به يواويده زمانه ځماسره وي،نو﴿أَبَدًا﴾نه مرادطول مکث اوحيات دې اوياتنه مراد حيات ابدي دې خوداقول په لسان حالي سره دې نه په لسان قالی سره. ځکه چې دَهغوئې حالت اواعمال. اوتکبرپدي دلالت کولوچې ګوياچې دَده يقين اوعقيده داوه چې په ده باندې قطعا مرګ نه راځي لکه چې داحالت دَاکثرو اغنياؤدې. (کشاف) ﴿وَمَآ أَظُنُّ ٱلسَّاعَةَ﴾دازيادت دَهغه دې په کفراوطغياني کښې چې منکراوګرځيدلودَبعث نه﴿قَآئِمَةً﴾مرادتنه تحقق دَقيامت دې. ﴿وَلَئِن رُّدِدتُّ﴾پدي کښې خپل کرامت اوعزت ثابتوي چې کچري بالفرض قيامت راهم شي لکه څنګه چې نه ګمان کوي نوبيابه هم ځماانجام ښه وي، اوهلته به هم ماته دَعيش وعشرت زندګي نصيب وي. اوامام رازي رحمه الله فرمائي چې پدي غلط فهمئ کښې واقع کيدلوسبب داوو چې ده دا ګمان

وو چې په دنیاکښې مال میلاویدل داده استحقاق ذاتې دې او دا استحقاق به بعد الموت هم باقي وي، نوځکه به دَده خیال وو چې اخرت کښې به هم ځما انجام ښه وي. حالانکه دنیا کښې اکثر دَمال کثرت لپاره دَاستدراج وي (کبیر) ﴿مِّنْهَا﴾ ضمیر راجع دې باغ ته ای خیرا من هذه الجنة. او بعض قراتونو کښې ضمیر دَتثنیې راغلیدې ﴿مُنقَلَبًا﴾ دا ظرف مکان دې یعنی ځائ دَ واپسۍ. او دا منصوب دې بنابر تمیز ﴿قَالَ لَهُۥ صَاحِبُهُۥ﴾ دا دَمشرك په جواب کښې دَموحد رورد کلام ذکر کیږي او خپل مشرك رورته وعظ او نصیحت کوي او دهغه دهري خبري جواب په طریقې دَلف نشر غیر مرتب ورکوي، ﴿أَكَفَرْتَ بِٱلَّذِى﴾ دا ازجراو توبیخ دې په شرك باندې. او استفهام انکاري دې او دا په جواب دَهغه قول دکافر کښې دې چې هغه وئیلې وو چې ﴿وَمَآ أَظُنُّ ٱلسَّاعَةَ﴾ او په دیکښې اشاره ده چې منکر دَبعث او شك کوونکې دَبعث کافر دې، او دا اعتراض نه واریدیږي چې دې خو منکر دَبعث نه نوو ځکه چې دَه وئیلې وو چې ﴿وَلَئِن رُّدِدتُّ إِلَىٰ رَبِّى﴾ دا قول دَهغه دلیل دې پدې چې دې مُقر دَبعث وو، (۱) ځکه چې دَده دا مذکوره کلام بطور شك دې ځکه چې دا جمله شرطیه ده او جمله شرطیه دال ده په تردد باندې او ایمان شرعي داعتقاد جازمه نه عبارت دې (۲) او دغه شان دَده دا کلام علی سبیل الفرض دې نه علی سبیل التیقن دې (۳) او دغه شان دا کلام مذکوره دال دې په نفس معرفت باندې او نفس معرفت مستلزم ندې ایمان لره، ځکه ډیر عارفین منکرین دَاخرت وي او اعتمادئې په خپل اموالو باندې وي (۴) او یا مراد دکفرنه پدې ایت کښې کفر او انکار دې دَتوحید دَالله ﷻ نه ځکه چې دې مشرك وو لکه چې دَده خپل اعتراف مخکښې ذکر کیږي چې ﴿يَٰلَيْتَنِى لَمْ أُشْرِكْ بِرَبِّىٓ أَحَدًا﴾ نو مراد دَ ﴿أَكَفَرْتَ﴾ نه اشرکت دې (روح) ﴿خَلَقَكَ مِن تُرَابٍ﴾ دا دلیل عقلي دې په بعث باندې، چې هغه ذات چې ته ئې اوّلا دَخاورونه پیدا کړې ئې نوهغه په اعادي دَستا باندې هم قادردې او دَانسان دَپیدائش لپاره سبب بعیده تراب یعنی خاوره ده ځکه چې ابو البشر حضرت ادم ؑ دَخاورونه پیدا کړې شوې وو، او دغه شان نطفه جوړیږي دَوینې نه او وینې لپاره سبب غذا ګرځیږي او غذا انسانې دَخاورونه پیدا کیږي، نوددې وجه نه دا قول دَمؤمن چې ﴿خَلَقَكَ مِن تُرَابٍ﴾ صحیح دې ﴿ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ﴾ (ثم) لپاره دَتراخي زماني دې، ځکه چې دَخاورونه غذا حاصله

شي دَهغې نه وينه جوړه شي اوبيادَويني نه نطفه جوړيږي اودانطفه سبب قريبه دې دانسان دَتخليق لپاره، ﴿ثُمَّ سَوَّىٰكَ رَجُلًا ﴾سوّي باب تفعيل نه دې دَدي استعمال په دوه ۲ معانيو کښې کيږي، کله په معنې دَبرابرولو سره راځي. چې دائې اصلي وضعي معنې ده اوکله استعماليږي په معنې دَخلق او ايجاد کښې، لکه ونفس وَماسوّاها(الشمس:۷) قانون يدي لفظ کښې دادې چې کله دې متصل ذکرشي دَخلق سره نومراد به دَده نه هم خلق وي په کامل اواتم طريقي سره. بغيرداَفراط اوتفريط نه، نودلته تنه مراد دامعنې ده چې ته ئې برابرسړې پيداکړې ئې او﴿رَجُلا ﴾يامنصوب دې بناء يدي چې حال واقع شويدي دکاف ضميرنه، اويامفعول ثاني دې دَ﴿سَوَّىٰكَ﴾لپاره نومقصد دادې چې هغه ذات چې ته ئې دَيوحالت نه بل حالت ته اوديوطورنه بل طورته منتقل کړې. نوهغه يدي قادردې چې تادَخاورونه دوباره راپاڅوي، اودَبعث نه انکارکول اويادهغې په وقوع کښې شك کول دَالله ﷻ دَقدرت نه انکاراويايه هغې کښې شك کول دي اوپه ذکردَ"رجلا" کښې اشاره ده تذکيرته په نعمت دَرجليت سره چې رجليت دَالله ﷻ يونعمت دې﴿لَّٰكِنَّا۠ هُوَ ٱللَّهُ رَبِّي ﴾دااقرار اواظهارتوحيددې دَمؤمن دَطرف نه، اودااستدراك دې دَماقبل﴿أَكَفَرْتَ ﴾نه يعنى ته خوکفر کوې په توحيدباندې ليکن څه چې يم نوڅه دَالله ﷻ دَوحدانيت اوربوبيت اقرارکوم، او﴿لَّٰكِنَّا﴾ صيغه دَواحد ده جمع نده، اودامرکب دې دَ"لکن انا" نه همزه دَ"انا"نه حذف کړې شوه اونون په،نون کښې مدغم کړې شو. اوپه اخيرکښې الف ليکلې کيږي اووئيلې کيږي نه، اودَدي جملې ترکيب داسې دې چې انا مبتداء اول، هوضميرشان مبتداء ثاني،اواسم الله ﷻ مبتداء ثالث، او﴿رَبِّي ﴾ خبردَمبتداثالثې لپاره، مبتدا خبردا جمله اسميه خبرشولپاره دَمبتداء ثاني، مبتداثاني اوخبرداجمله اسميه بياخبرشو دَمبتدا اولې لپاره،اوبعض مفسرين فرمائي چې تقديردَعبارت داسې دې، لکن انااقول، نودلته لفظ دَاقول مقدردې،نوترکيب به ئې داسې وي چې انامبتدا او اقول فعل فاعل هوضميرشان مبتدا،اواسم الله ﷻ مبتداثاني او﴿رَبِّي ﴾ ورله خبر،مبتدا سره دَخبره داجمله اسميه خبرشولپاره دَمبتدا،اومبتداء ثاني سره دَخبرنه دامقوله شوه لپاره دَقول،قول سره دَمقولې نه خبرشولپاره دَمبتداء اول ﴿وَلَآ أُشْرِكُ بِرَبِّيٓ ﴾پديکښې تعريض دې خپل رورمشرك طرف

ته. نو دا جمله دال ده پدي چې دې مشرك وو. او بعض مفسرين د دې جملې مقصد دا سي بيانه وي چې خه، دَالله ﷻ سره په اعطاء کښې شرك نه کووم. که غناوي او که فقر دا نبول د الله ﷻ د طرف نه دي پدي تصرفاتو کښې څوك دَالله ﷻ سره شريك نيشته دې. او دا هم ممکنه ده چې مراد په شرك سره نفس کفر شي، ځکه چې کله کله ذکر دَ شرك اوشي او مراد تنه مطلق کفر وي لکه انّ الله لايغفر ان يشرك به الخ (روح).

| وَلَوْلَآ اِذْ دَخَلْتَ جَنَّتَكَ قُلْتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ ۙ لَا قُوَّةَ |
|---|
| او ولې نو ې ته چې کله ننوتلې خپل باغ ته چې ونيلي دي وې چې هغه (کيږي) چې او غواړي الله ﷻ نيشته قوت دهيڅ کار |
| اِلَّا بِاللّٰهِ ۚ اِنْ تَرَنِ اَنَا اَقَلَّ مِنْكَ مَالًا وَّوَلَدًا ۝ فَعَسٰى رَبِّيْٓ |
| مگر په توفيق دالله ﷻ سره دې اگر که وينې ته ما کم خپل ځان نه په اعتبار د مال او اولاد سره. نو اميد دې چې رب ځما |
| اَنْ يُّؤْتِيَنِ خَيْرًا مِّنْ جَنَّتِكَ وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَآءِ فَتُصْبِحَ صَعِيْدًا |
| به راکړي ماته غوره د باغ ستانه او را اوبه ليږي په باغ ستا باندې عذاب د بره طرف نه نو اوبه گرځي دا باغ ميدان |
| زَلَقًا ۝ اَوْ يُصْبِحَ مَآؤُهَا غَوْرًا فَلَنْ تَسْتَطِيْعَ لَهٗ طَلَبًا ۝ وَاُحِيْطَ |
| خوېه هموار او يا به شي اوبه ددې اوچې نو هرگز به ته طاقت اونه لرې دهغې د رانبکاره کولو او را اگير کړې شو په عذاب سره |
| بِثَمَرِهٖ فَاَصْبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلٰى مَآ اَنْفَقَ فِيْهَا |
| مالونه دهغه پس او گرځيدلو دې چې مخل ني ورغوي لاسونه، خپل په هغه مال باندې چې خرچ کړې ني وو پدي باغ کښې |
| وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَيَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ لَمْ اُشْرِكْ بِرَبِّيْٓ اَحَدًا ۝ |
| او هغه باغ راغور ځيدلې وو په چتونو خپلو باندې او ونيل ده چې هائ افسوس دې مالره نه مې وي گرځولې شريك د رب خپل هيڅ څوك |
| وَلَمْ تَكُنْ لَّهٗ فِئَةٌ يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَمَا كَانَ مُنْتَصِرًا ۝ |
| اونه وه لپاره دده څه ډله چې مددني کړي وي دده سيوا دَالله ﷻ نه اونه وو دې بدله اخستونکې |

هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلّٰهِ الْحَقِّ هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ عُقْبًا ⊙

يدي وخت كښې اختيار يوالله ﷻ حق لره دې هغه غوره دې بدلې والاوغوره نتيجه وركوونكي دى

﴿وَلَوْلَآ إِذْ دَخَلْتَ﴾ دَمشرك اندازخپل باغ ته دَداخليدلوپه وخت كښې ډيرمتكبرانه وو نومسلمان ورور ورته نصيحت اوكړو چې كله خپل باغ ته داخليږې نودَالله ﷻ شكريه اداكوه. څكه چې هرڅه دَالله ﷻ په مشيت اوارادې سره كيږي ﴿وَلَوْلَا﴾ حرف تحضيض دې داخل دې په قنتُ باندې حروف تحضيض كښې قانون دادې چې كله هم داخل شي په ماضي باندې نودابه لپاره دَزجر اوتوبيخ وي (لباب) او ﴿إِذْ دَخَلْتَ﴾ په محل دَنصب ياپه محل دَجركښې واقع دې اومتعلق دې دَ ﴿قُلْتَ﴾ سره، اوهركله چې ظروف په منزله دَمحارمودې اوتوسع ده پكښې نودې وجه نه تقديم ئې په عامل اومحضض باندې جائزدې، اوپه تقديم كښې اشاره ده ديته چې داالفاظ ﴿مَا شَآءَ اللّٰهُ﴾ فوراوئيل پكار دې بغيردڅه تاخيرنه دَهرنعمت په وخت كښې (روح) ﴿مَا شَآءَ اللّٰهُ﴾ (ما) پدې كلام كښې ياشرطيه ده په معنې دَا . شئ سره ده په محل دَنصب كښې واقع ده اومنصوبه ده په (شاء) سره او (شاء الله) شرط دې اوجزاورله محذوفه ده تقدير دَعبارت داسې دې اى شئ شآء الله كان يعنى څه شي چې الله ﷻ اوغواړي نوهغه كيږي كه مالدارې وي يافقيري وي اوڅه چې پدې باغ كښې دي دَالله ﷻ په مشيت سره دي كه الله ﷻ اوغواړي باقې به ئې پريدي اوكه اوغواړي خراب به ئې كړي اوياما موصوله ده په محل دَرفع كښې ده اوداجمله يعنى موصول سره دَصلې نه يامبتداء ده اوخبرئې محذوف دې، تقديرئې داسې دې ماشآء الله كائن اوياخبردې اومبتداء ئې محذوف دې اى الامرماشاء الله اودَتولورجعه يوې معنې ته ده، چې هرڅه دَالله ﷻ په مشيت سره كيږي ﴿لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ﴾ پديكښې اعتراف دَخپل عجزدې چې دَانسان په طاقت اوقوت اوتصرف كښې هيڅ نيشته هرڅه دَالله ﷻ په قوت اوتصرف كښې دي.

دَحضرت انس رضي الله عنه نه مروى دي چې فرمائى قال رسول الله ﷺ ماانعم الله تعالى على عبدنعمة فى اهل اومال اوولد فيقول ماشاء الله لاقوة الاّ بالله الاّدفع الله تعالى عنه كل آفة حتى تاتيه منيته وقراء ولولا

اذدخلت الخ ترجمه حضورﷺ ارشاد اوفرمایه چې الله ﷻ په خپل یوبنده باندې دهغه دَاهل مال اواولادپه باره کښ چې کوم یونعمت یې پرې کړې وي چې هغه په هغې نعمت.باندې ماشاء الله الخ اوائې نوضرور الله ﷻ دهغې نعمت نه هرقسم تکلیف لرې کوي حتی چې ده ته مرګ راشي،اوحضورﷺ داایت ولولا اذدخلت الخ تلاوت کړو داحدیث اګرچې ضعیف دې لکه څرنګه حافظ ابن کثیرفرمائیلې دي لیکن حافظ ابن حجر عسقلانيؒ په المطالب العالیة کښ دَحضرت انسؓ نه په څه زیادت سره په سندصحیح سره نقل کړیدې

دَحضرت انسؓ نه داهم منقول دي چې فرمائی چې څوك دچا مال اوګوري اوهغه ورته ښه ښکاره شي اودې ماشاء الله اووائي نوده مال ته به چرته هم تکلیف اونه رسیږي اودَحضرت ابوهریرةؓ نه مروي دي چې حضورﷺ ارشاد اوفرمائیلو چې اې ابوهریرة آیا څه تاته دَجنت دَخزانونه یوه خزانه چې لاندې دَعرش نه،ده اونه ښایم.فرمائی چې ماورته اوئیل چې څامورٌ،پلارپه تاقربان وي ضرورا وښایه،نوحضورﷺ ارشاد اوفرمائیلوچې ته لاحول ولاقوة الابالله وایه، دَځني اسلافوپه باره کښ نقل دې چې هغوئې په خپلې دروازې باندې داکلمات لیکلې وو ،اودَروایاتو دَمجموعې نه دامعلومیږي چې څوك یونعمت اوګوري دَده لپاره وي یادَبل چاوي نوداکلمات وئیل مستحب دي اودَنظربد دلګیدلو نه دَدفعې لپاره مجربه نسخه ده

﴿إِن تَرَنِ أَنَا۠ ﴾داهغه کافردَهغې خبرې په جواب کښ دې چې وئیلوچې﴿أَنَا أَقَلَّ مِنكَ مَالاً وَوَلَدًا ﴾﴿إن﴾ حرف شرط دې ﴿تَرَنِ﴾فعل شرط دې چې په اصل کښ "ترنی" وو او﴿أَنَا﴾ ضمیرتاکیددَضمیر منصوب متصل لپاره دې چې په "ترنی" کښ دي، او﴿أَقَل ﴾یامفعول ثانی دې دَ﴿تَرَنِ﴾ لپاره کچرې مراد دَترن نه رؤیت علمی وي.لکه چې داظاهره ده اویا﴿أَقَل﴾حال دې دَضمیرمنصوب یعنی مفعول دَ"ترن" نه او﴿مَالاً وَوَلَدًا ﴾تمیزدې دَ﴿أَقَل﴾ نه او﴿فَعَسَىٰ رَبِّيٓ ﴾قائمقام دَجزاء دې اواصل جزامحذوفه ده چې فلاباس دې نوتقدیردَعبارت داسې دې ان ترن کذلك فلاباس. یعنی که څه دَمال او اولاد په اعتبارسره ستانه کمزورې یم نوڅه پرواه نیشته دې الله ﷻ به ماته ددې باغونونه بهترباغ به راکړي اوبعض مفسرین فرمائی چې ﴿فَعَسَىٰ رَبِّيٓ ﴾جمله جزاء ده اومقصد دادې که چرې څه ستانه کمزورې یم نوڅه دَالله ﷻ نه امیدلرم چې هغه به

څمافقرپه غني بدل کړي ماته به جنت راکړي. اوستانه به خپل نعمت سلب کړي اوستا داباغونه به ختم کړي(روح)﴿وَيُرۡسِلَ عَلَيۡهَا حُسۡبَانٗا﴾ حسبان(۱)مصدردي دَ غفران.اوبطلان پشان.په معنې دَحساب اومحسوب يعنى مقدرسره نومرادتنه هغه عذاب دي چې دَالله ﷻ دَطرف نه مقدردي چې هغه حکم دې په تخريب دَباغ سره، اوياتنه دګناهونو برابرعذاب مراددي. اويادلته کښې مضاف مقدردې دَقبيلې دَمجازفى الحذف نه دې(اې عذاب الحساب) يعنى چې کوم عملونه دوئ کړيدي دَهغې دَحساب موافق عذاب ورته رااوليږي

(۲) اوياحسبان جمع ده اومفرد ئې حسبانة راځي. وئيلې کيږي هغه کانړوته چې دَاسمان نه نازليږي اويااورته اوياتندرته وئيلې کيږي، اودَحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه مقول دي چې مطلق عذاب چې اسمان نه نازليږي هغې ته حسبان وئيلې کيږي اوابن کثير رحمه الله فرمائى چې ددينه مراد سخت طوفاني باران دي چې فصلونه اووونې دَ ويخ نه رااوباسي﴿فَتُصۡبِحَ صَعِيدٗا﴾صعيد وئيلې کيږي وجه الارض ته يعنى ستاداباغ خالي زمکه پاتي شي ميوي او ونې به ورنه ختمې شي. او﴿زَلَقًا﴾ تاکيددي لپاره دَ ﴿صَعِيدٗا﴾اوزلق وئيلې کيږي خويه ځائي ته چې خپې پرې نه ټينګيږي اوغوره خبره داده چې مراد دزلق بلکه مراد تنه دادې چې پدې کښې به هيڅ قسم فصل اوبوټي وغيره پاتي نشي نو مقصد دادې چې دابه بدترين زمکه اوګرځيږي ورستو دَدينه چې نافع ترين زمکه ده (قرطبى) نودايوقسم دعذاب ذکرشو چې عذاب سماوي دي.

﴿أَوۡ يُصۡبِحَ مَآؤُهَا غَوۡرٗا﴾ دادويمه نوعه دَعذاب ذکرکيږي چې افت اوعذاب ارضيه دي او (او) په ﴿أَوۡ يُصۡبِحَ﴾کښې لپاره دَتنويع اومانعة الخلو دې، ندې لپاره دَمانعة الجمع،او﴿ غَوۡرٗا ﴾ په معنې دَغائرا سره دې يعني دا اوبه به الله ﷻ په زمکه کښې دننه کړي اواوچې به ئې کړي﴿فَلَن تَسۡتَطِيعَ لَهُۥ طَلَبٗا ﴾ضميرپه (له) کښې راجع دې غائر(اوچ شوو) اوبوته، اومرادپه نفي دَاستطاعت دطلب سره نفي دَ استطاعت دوصول اورسيدلو دې يعنى ته به هغې اوبوته دَرسيدلوطاقت هم نه لرې. اونفي دَاستطاعت دَطلب ځکه اوشوه چې داسې اوبوته رسيدل ناممکن دې اوعاقل سړې دناممکناتو طلب هم نه کوي او داولاد هلاکت ذکر اونشو حالانکه هغه په خپل اولادباندې هم فخرکوو لکه څرنګه چې په مال کولو،حضرت تهانوي رحمه الله فرمائى چې وجه داده چې مال

دهلاکت نه پس د اولاد کثرت وبال جان اوذریعه دعذاب اوګرځي نوددې وجه نه اولاد هلاك نکړې شو

**فائده** دامذکوره کلام دمسلمان اخبار بطور کشف وو او کشف او کرامات داولیاء الله حق دې اویا داجمله دعائیه ده معنې اوصورتا اخبار دې لکه رضی الله عنهم ورضوا عنه

﴿وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِۦ﴾ پدیکښې ذکر دعذاب الهی دې اودا ماخوذ دې د احاط العدو نه کله چې ځوك ددښمن په ګیرې کښې راشي اوهغه پرې غلبه حاصله کړي او په عرف کښې مستعملیږي په عموم دعذاب کښې، چې مکمل عذاب پرې راغې اوټول مال ئې ورله هلاك کړو (قرطبی)

﴿فَأَصۡبَحَ﴾ فاء دتعقیب ده دایا په معنې د صار سره دې اویا په معنې د سحر په وخت کښې داخلیدلو سره دې، نودا به بیاقرینه وي پدې چې داعذاب دشپې په یوه حصه کښې راغلې وو. ﴿يُقَلِّبُ كَفَّيۡهِ﴾ دا کنایه ده دحسرت اوندامت نه ځکه چې دندامت اوحسرت په وخت کښې انسان خپل لاسونه مروړي اودافعلي حسرت وو اووروستو په ﴿يَٰلَيۡتَنِي لَمۡ أُشۡرِكۡ﴾ سره حسرت قولی ذکرکیږي اوتقدیم دحسرت قولی په فعلي باندې ځکه اوشو چې اشاره راشي دهشت دعذاب ته چې داعذاب ډیرسخت وو او چې پدې سره دده نه قوت ګویائې سلب شو اوصرف لاسونه ئې په اول وهلت کښې مروړل اوروستو بیاګویاشو ﴿وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا﴾ مراد دعروش نه هغه ځائې دې چې دانګورپه بوټې کښې ددانولپاره جوړشوې وي

﴿وَيَقُولُ يَٰلَيۡتَنِي لَمۡ أُشۡرِكۡ﴾ دا قرینه ده پدې چې دې مشرك وو اوپدیکښې اشاره ده سبب دعذاب ته، اوداندامت ددې مشرك په خپل شرك باندې بطورتوبه وو دشرك نه اوکه مجرد حسرت اوندامت وو په تلف کیدلودمال باندې؟؟ دمفسرینو نه دواړه اقوال راغلیدي خومحققینومفسرینو لکه علامه آلوسي رحمه الله وغیره دیته ترجیح ورکړیده چې دا تاسف اوتحسر په زوال اودتلف کیدلودنعمت باندې وو اوداندامت په خپل کفراومعصیت باندې نه وو. اوتوبه هغه ندامت ته وئیلې کیږي چې په هغې کښې بیا ګناهونو ته عود نه کولو باندې عزم وي، اودلته دده ندامت اورغبت الی التوحید وو خوصرف دطلب ددنیالپاره وو (کبیر) اودغه شان مجرد ندامت په کفرباندې ایمان ندې چې څوپورې ضروریات دشرعي ئې تسلیم کړي نوي

مدارك اوكشاف ليكلي چې يجوز ان يكون توبة من الشرك وندما على ماكان منه ودخولا في الايمان(مدارك،كشاف)ترجمه كيدلې شي چې دادشرك نه توبه وي اوپه هغې ندامت ددې اوداسلام قبلول وي، ليكن ظاهر دقرآن دهغه دايمان نه ساكت دې اوددوئ خبره ظاهردسباق سره مناسبه نده چې﴿وَلَمْ تَكُن لَّهُۥ﴾دې اوكه څوك اشكال اوكړي چې ظاهردايت معارض دې دايت دسورة الزخرف. ولولا ان يكون الناس امة واحدة لجعلنالمن يكفربالرحمن لبيوتهم سقفا من فضة ومعارج الخ(زخرف۳۳) سره اودغه شان دحديث سره چې حضورﷺ ارشاد اوفرمائيلوچې خص البلاء بالانبيآء ثم الامثل فالامثل(ترمذى)يعني اكثراوزيات تكليفونه په انبياوو رازي اوبياچې څوك څومره دهغوئ مشابه وي هغه راځي. نوددې ايت مذكوره نه معلوميږي چې زوال دنعمت دنيالپاره ذريعه دهغه كفروو دنورو مذكوره ايتونو اواحاديثونه معلوميږي چې ازمائش اوتكاليف اكثرپه مؤمنانو باندې واقع كيږي؟؟ جواب دادې چې دسورة الزخرف په ايت كښې دكافرلپاره كومونعمتونو دنياذكردې هغه استدراجًا دې،اودانجام په اعتبارسره الله ﷻ بياپه هغه باندې په مختلف طريقوسره عذاب راليږي چې دنيوي اوديني دواړو،نعمتونو نه محروم پاتې شي اومؤمن باندې تكاليف راتلل په طورازمائش وي،چې په هغې ازمائش كښې مؤمن ته سكون بلكه لذت ميلاويږي، اوديني نعمتونوكښې ورته ترقي حاصليږي لكه څرنگه يوسړې چې خوراك كښې چكنى استعماله وي چې په هغې سره لذت هم حاصله وي اوهضم ورسره هم برابريږي(والله اعلم)

﴿وَلَمْ تَكُن لَّهُۥ﴾مشرك په خپل خاندانې جمعيت اوقوت باندې نازوو، اوكوم معبودان باطله چې هغه متصرف اوكارسازكنړلونودتكليف په وخت كښې يوهم پكاررانغلل،اودالله ﷻ عذاب نې ورنه نې دفع نه كړو﴿لَّهُۥ﴾ خبردكان دې او﴿فِئَةٌ﴾ورله اسم دې اوتقديم دخبرپه اسم باندې لپاره داختصاص دعجزاوذلت دې په هغه پورې، اومرادپه﴿فِئَةٌ﴾سره دهغه خاندان اولاد اونوكران دي چې هغه پرې فخركولو﴿يَنصُرُونَهُۥ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ داجمله په محل دصفت كښې واقع ده اوددې مقصد داندې چې دالله ﷻ نه علاوه بل چا دده مدد اونكړو بلكه دايت مقصد دادې چې څوك دده په مددباندې قادرنوو، اوالله ﷻ دده په مددباندې قادر ووليكن دحكمت دوجه نه ئې دهغه مدد اونكړو .(مدارك) ﴿وَمَا كَانَ مُنتَصِرًا﴾ددې نه مراد دهغه په خپل قوت سره بچ كيدل دې،يعنى نه ئې

قوم اوخاندان دَالله ﷻ دَعذاب نه بچ کړو اونه په خپل قوت سره بچ شو. اوبعض مفسرين فرمائي چې داول نه مراد دنيوي عذاب وو اودَدې نه مراد عذاب اخروي دې چې دَعذاب اخروي نه هم بچ نه شو(بحر) ﴿هُنَالِكَ ٱلْوَلَٰيَةُ﴾پديکښې اثبات دتوحيدفی التصرف دې چې ددې واقعي نه معلومه شوه چې ټول اختيارات اوتصرفات دَالله ﷻ په قبضه اوقدرت کښې دی﴿هُنَالِكَ﴾ظرف دی اوعامل کښې ئې اختلاف دې. بعض فرمائي چې عامل پديکښې ﴿وَلَمْ تَكُن لَّهُۥ﴾دې اوددې تعلق دَماقبل سره دې، يعني دَدې عذاب په وخت کښې دده امداد اونکړې شو نومعلومه شوه چې قدرت مالك صرف الله ﷻ دې اوياعامل پديکښې ورستو﴿ٱلْوَلَٰيَةُ﴾ دې اوپه ظروفو کښې توسع ده نوددې وجه نه دوئ په خپل عامل باندې مقدم کيږي،نو اصل عبارت داسي دې الولاية لله الحق هنالک. اومراد تنه دَقيامت ورځ ده(قرطبی) اوولاية په کسري دَواو اوپه فتحي دَواو سره وئيلې کيږي سلطنت اوقدرت ته، اوزمخشري فرمائي چې په فتحي دَواو سره نصرت ته وئيلې کيږي نومقصد دادي چې پدسي شدائدوکښې مدد اونصرت دَالله ﷻ دَطرف نه وي(مدارك) اوپه کسري سره وئيلې کيږي سلطنت اوبادشاهي ته﴿هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا﴾ کلمه دَخير پدې مقام کښې صفتي ده اوتفصيلي نده ځکه چې دَالله ﷻ سره څوك په نفس ثواب ورکولوکښې شريك نيشته، اوصاحب دَ جلالين فرمائي چې خير په خپلې معنې يعنی تفضيلي دې، اوکلام يعنی نسبت غيرته په فرض سره دې چې کچري بالفرض بل څوك ثواب ورکوونکې موجود وي نوبياهم دهغه نه الله ﷻ بهترثواب ورکوونکې دې

وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ أَنزَلْنَٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ

[1]اوبيان کړه دوئ ته مثال د ژوند ددنيا په شان دهغه اوبو چې رااوورو مونږه دطرفه داسمان نه پس گنړرااوخيژي

بِهِۦ نَبَاتُ الْأَرْضِ فَأَصْبَحَ هَشِيمًا تَذْرُوهُ الرِّيَٰحُ ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ

په هغې سره بوټي دزمکي پس شي بيادړي چې الوځوي هغې لره بادونه. اودي الله ﷻ په هرڅيزباندي

---

(1) طريقه ثانيه براى اصلاح منكرين

مُقْتَدِرًا ﴿۴۵﴾ اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ

قدرت لرونكي،مال اواولاد خائست دژوند ددنيادي اوباقي پاتې كيدونكي نيك عملونه غوره دي

عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا ﴿۴۶﴾

په نيزدرب ستا په بدلي كښې اوغوره دي په اميدكښې

﴿وَاضْرِبْ لَهُم﴾ دادويم امر مصلح دَمنكرينولپاره ذكركيږي چې دنيا قابل فخرڅيزندې دافانې كيدونكي څيزدې صرف دنيوي زينت دې او اصل څيزاوباقې پاتې كيدونكي څيزاعمال دي اوضميردَجمع راجع دې هغومنكرينو اومتفخرينوته چې دَدنيا په زندګئ اودنيوي مال ومتاع باندې فخركولو ﴿مَّثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ مفعول اول دې دَ(اضرب) لپاره يعنى دَدنيا والازندګي صفت اوحالت په يومثال سره ورته بيان كړه ﴿كَمَآءٍ اَنزَلْنٰهُ﴾ (كمآء) ياخبردې دَمبتداء محذوفي لپاره اې هو كمآء اويامفعول ثانى دې لپاره دَ ﴿وَاضْرِبْ﴾ كچرې اضرب په معنې دَصيّرسره شي، اويامتعلق دې په معنې مصدري پورې ا . اضرب لهم ضربا كمآ الخ اودابيان دَمثال دې، اوحاصل دَمثال دادې چې لكه څرنګه چې يوه زمكه وي په هغې باندې باران اوشي ګنړاومختلف بوټي را اوخيژي اوبياځه وخت ورستواوچ شي اوذري، ذري شي اوهواګانې والوځي اوخالي ميدان پاتې شي،نودغه شان حالت دَ دنيادَزندګئ اوپه هغې باندې دَفخركوونكوهم دې، چې دوئ دَدنيا په نعمة باندې فخركوي اودهغې په خوړوالې اوشين والي باندې مغروره دې نو اچانك پدوئ باندې مرګ راشي اوهرڅه ورنه پاتې شي، اودا تمثيل دې چې پدې كښې دَيومركب حالت تشبيه دَمركب څيزدَمركب حالت سره وركړې شويده،مشبه به هغه مركب كيفيت دې چې منتزع دې دَمجموعي دباران.شنواوګنړوبوټو ، اوبيادَدغي بوټو اوچيدلو اوبيادَهواګانوپه ذريعې سره يوطرف اوبل طرف ته منتشركيدلونه، اومشبه هغه كيفيت دې چې منتزع دې دَمجموعي دَروح اوبدن انساني ونهغې دَنشونما اوانساني فخر اوغرور اوبيافانې كيدلونه.

حضرت شاه عبدالقادردَدي ايت په تطبيق كښې فرمائى چې څرنګه باران دَاسمان دَطرف نه راوريږي،نودغه شان روح انساني دَاسمان نه راغليدې اوڅرنګه چې په باران سره زمكه راژوندئ كيږي دغه شان بدن انساني په روح سره ژوندې كيږي، چې دي هم دَخاوري نه جوړدې، اوبيا په

دَهغې په نتيجې کښې بوټې رازرغون شي اوسرسبزه پيداشي نودغه شان دروح په نتيجې کښې انسان ورځ په ورځ ترقي کوي، حتى که چې دې حدکمال ته اورسيږي. دده لپاره مال. اولاد. اودوستان جوړشي اودې په هغې باندې اعتماداوکړي نومرګ پرې راشي اودې دهرڅه نه لاس اووينځي اووجه دشبهې ظاهره ده.

﴿فَأَصۡبَحَ هَشِيمٗا﴾ «اصبح» په معنې د«صار» سره دې اوبعض مفسرين فرمائي چې ددې نه مراد عذاب راتلل دي په وخت دسحرکښې. اوعذاب الهی اکثرپه وخت دصبا کښې راځي. او «هَشِيمًا» په وزن دفعيل سره په معنې دمفعول سره دې ونيلې کيږي چې وچ کړې شي اوذرې ذرې شي﴿مُّقۡتَدِرًا﴾ دامبالغه ده په قدرت کښې په معنې دکامل القدرة سره﴿ٱلۡمَالُ وَٱلۡبَنُونَ﴾ پماقبل ايت کښې ذکرشوچې دنياسريع الزوال ده اوقابل فخرڅيزنده. نوپدې ايت کښې دهغې دوه(۲) متاع دنيوي اواسباورد بيانيږي چې عام طورپرمتکبرين په هغې باندې فخراوغرور کوي. چې هغه مال اواولاد دې، اوصورت دقياس په نمط داقترانی سره داسې دې چې مال اواولاد زينت دحياة دنيوي دي، اوکوم څيزچې زينت دحياة دنيوي دې هغه سريع الزوال اوانقضاء وي، نونتيجه داشوه چې مال اواولاد سريع الزوال والانقضاء دي، اوداشکل اول دې بديهي الانتاج دي اودانتيجه به بياصغرئ شي اوکبرئ به ورسره ضم کړې شي، چې مال او اولاد سريع الزوال دې. اوکوم څيزچې سريع الزوال وي قابل دفخرنوي، نومعلومه شوه چې مال اواولاد قابل فخرڅيزونه ندي،نوددينه دامعلومه شوه چې کوم کس په مال او اولاد يادَدنيا په نورو څيزونوباندې فخرکوي هغه احمق وي.﴿ وَٱلۡبَٰقِيَٰتُ ٱلصَّٰلِحَٰتُ ﴾هرکله مال اولاد قابل توجه فخرڅيزونه ندي نوقابل توجه څيزڅه شئ دې نواوفرمائيل چې باقيات صٰلحٰت قابل توجه دی. اودَدې په تفسيرکښې دمفسرينو نه ډيراقوال راغليدی، بعض مفسرين فرمائی چې دَدينه مراد تسبيح، تحميد . تهليل،تکبير اولاحول ولاقوة الخ دي، دَحضرت ابوسعيدالخدريﷺ نه روايت دې چې حضورﷺ ارشاد اوفرمائيلو «استكثروا من الباقيات الصالحات قيل وماهن يارسول اللهﷺ قال التكبيروالتهليل والتسبيح والتحميد ولاحول ولاقوة الابالله «درالمنثور،طبری» دَحضرت ابی درداءﷺ نه فرمائی چې قال رسول اللهﷺ سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اكبرولاحول ولاقوة الابالله هن الباقيات الصلحت، وهن يحططن الخطايا كماتحط الشجرة ورقها وهن من كنوزالجنة«درالمنثور»ترجمه

سبحان الله، الحمد لله، لااله الاالله والله ولاحول ولاقوة الابالله دا باقیات صالحات دي. اوداګناهونه داسې غورزوي لکه څرنګه چې ونه پاڼې غورزوي. اوداجنت خزانونه نه دي. اودغه شان دحضرت انس، حضرت عثمان، حضرت عائشه، حضرت ابن عباس اودنورصحابه کرام اوتابعینو نه دغه شان روایات منقول دي، چې امام سیوطي اوطبري په خپلو تفاسیروکښې نقل کړیدي.

(۲)اوبعض مفسرین فرمائی چې ددینه مراد پنځه وخته مونځونه دی، داقول دحضرت سعیدبن جبیر، ابن عباس اودحضرت ابراهیم نخعي اودحضرت ابی میسره نه منقول دي(۳) اوبعض فرمائی چې ددینه مراد الکلام الطیب یعنی خائسته خبري دي خوزیات(۴) بهتر قول دادي چې ددینه مراد هرعمل صالح دي که قولا وي اوکه فعلا وي څکه چې هرنیک عمل هغه دخپل عمل کوونکي لپاره اخرت ته باقي وي اوپه هغې باندې ده ته بدله اواجرمیلاویږي. (طبری)

اوباقي په ډیرورواياتوکښې چې داراغلیدی چې ددینه مراد سبحن الله، والحمد لله الخ دي اویامونځ وغیره دهغې نه مراد دانده چې ټول باقیات صالحات دادی اویاباقیات صالحات صرف دادی اونورنیشته دي بلکه مراد دهغې نه داده چې دا امورهم په باقیات صالحاتو کښې داخل دی.

﴿خَيۡرٌ عِندَ رَبِّكَ ثَوَابٗا وَخَيۡرٌ أَمَلٗا﴾ خیر اسم تفضیل دي مفضل علیه ورله اعمال فانیه اوامورفانیه دي لکه اموال اواولاد وغیره شو څکه چې دمال اواولاد امیدونه به بربادشي اودنیک اعمالو امیدونه اواجرونه به باقي وي اوکارآمدبه وي اویاورله مفضل علیه هغه دي چې کوم دوئ کمال وواویااسم تفضیل په معنې صفتي سره دي زیادت علی الغیرپکښې ندي معتبرلکه اصحب الجنة خیر مستقرا واحسن مقیلا(فرقان: ۲۴) قرطبي.

| وَيَوۡمَ نُسَيِّرُ ٱلۡجِبَالَ وَتَرَى ٱلۡأَرۡضَ بَارِزَةٗ ۙ وَحَشَرۡنَٰهُمۡ |
|---|
| او یادکړه هغه ورځ چې روان به کړو مونږ غرونه اووینې به ته دازمکه هموارمیدان اوراجمع به کړو مونږ دوئ |

---

1 طریقه ثالثه برای اصلاح منکرین

فَلَمۡ نُغَادِرۡ مِنۡهُمۡ اَحَدًا ﴿۴۷﴾ وَعُرِضُوۡا عَلٰى رَبِّكَ صَفًّا

پس پرې به نږدو مونږ ددوئ نه هيڅوك، او پيش به كړې شي دوئ په رب دستا باندې صفونه صفونه او به وئيلى سي چې

لَقَدۡ جِئۡتُمُوۡنَا كَمَا خَلَقۡنٰكُمۡ اَوَّلَ مَرَّةٍ ۢ بَلۡ زَعَمۡتُمۡ

په تحقيق راغلئ تاسو مونږ ته (په هغه حالت سره) لكه چې څنګه پيدا كړي وئ مونږ تاسو اول ځلي. بلكه ګمان كولو تاسو

اَلَّنۡ نَّجۡعَلَ لَكُمۡ مَّوۡعِدًا ﴿۴۸﴾ وَوُضِعَ الۡكِتٰبُ فَتَرَى الۡمُجۡرِمِيۡنَ

چې هرګز به مونږ مقرر نه كړو ستاسو لپاره ځائ دوعدې(قيامت)اوكيخودلې به شي عملنامې نووينې به نه مجرمانو(ا)

مُشۡفِقِيۡنَ مِمَّا فِيۡهِ وَيَقُوۡلُوۡنَ يٰوَيۡلَتَنَا مَالِ هٰذَا الۡكِتٰبِ لَا يُغَادِرُ

چې ويريږي به دهغې نه چې پدې كښې وي او وائي به هائې افسوس دې مونږ لره څه وجه ده ددې كتاب چې ندې پريخودلې

صَغِيۡرَةً وَّلَا كَبِيۡرَةً اِلَّاۤ اَحۡصٰىهَا ۚ وَوَجَدُوۡا مَا عَمِلُوۡا حَاضِرًا ؕ وَلَا يَظۡلِمُ رَبُّكَ اَحَدًا ﴿۴۹﴾

وړوكي ګناه اونه غټ ګناه مګر راګير كړيدي ټول اواوبه مومي دوئ خپل عملونه حاضراوظلم نه كوي رب ستا په هيڅ چاباندې

﴿وَيَوۡمَ نُسَيِّرُ الۡجِبَالَ﴾ دادريم(۳) امر مصلح دې چې دَدنيا لپاره دين مه پريږدئ كوم خلك چې دنيا دَخاطره دين پريږدي نودادنيا به دَهغه لپاره په اخرت كښې ذريعه ددردناك عذاب وي. او ﴿وَيَوۡمَ﴾ منصوب دې په فعل مقدراذكرسره اومراد په ﴿نُسَيِّرُ﴾ يعنې چلولوسره غرونه دَويخ نه رااوباسل دي، چې دَقيامت په ورځ به داغرونه دَخپل ځايونونه رااويستلې شي اوپه هوابه كړې شي اوبعض مفسرين فرمائي چې دَدينه مراد افناء(فناءكول) ده مجازا، ځكه چې تسيير سبب دې دَافناء، اودَدې ايت تعارض دَسورة الواقعة دَايت (نمبر ۲) (فكانت هبآء منبثا) سره اودَايت دَسورة المزمل وكانت الجبال كثيبا مهيلا(مزمل: ۱۴) سره نيشته دې ځكه چې په هغې ايتونوكښې اول احوال ذكردى اوپدې مذكوره ايت كښې اخرې حالت مذكوردې، علمآء فرمائي چې وقوع قيامت كښې به غرونه اول دَشكو، ډيرئې جوړ شي اوبيابه ذرې ذرې شي اوپه هوا كښې به والوځي اوبيابه هغه ذرې هم فناء شي ﴿وَتَرَى الۡاَرۡضَ﴾ خطاب هر يو كس چې صلاحيت دكتلو پكښې وي هغه ته دې

اومراد په﴿بَارِزَةً﴾سره دادي چې كومه حصه دزمكي په غرونوسره اوونوسره پټه وه هغه به ظاهره شي لكه په بل ځائي كښ فرمائی (لاترى فيها عوجا ولاامتا)﴿وَحَشَرْنَٰهُمْ﴾تعبيرتنه په صيغي دماضي سره اوشولوجه دتيقن نه. اوعلامه زمخشري فرمائی چې ﴿وَحَشَرْنَٰهُمْ﴾صيغه دماضي ذكركولوكښ اشاره ده ديته چې حشردانسانانوبه اول وي اودهغې نه ورستوبه بياتيسير دغرونووي اوبيابه دهغې دوجي نه بروز دزمكي وي. لكه چې داتقاضادصيغودمضارع ده چې ﴿نُسَيِّرُ﴾او﴿وَتَرَى﴾ذكرشويدي ليكن داقول څكه صحيح ندې چې تسييردغرونو اودعماراتو دابه په نفخه اولې كښ وي، اوحشربه په نفخه ثانيه سره وي. اودغه شان ورستو نوري صيغي هم دماضي ذكركيږي چې﴿وَعُرِضُوا﴾،﴿وَوُضِعَ ٱلْكِتَٰبُ﴾، ﴿وَوَجَدُوا﴾. دې نوبياخوپكارده چې عرض اووضع دكتاب اودخپلواعمالوثمره ټول دې دتسييراوبروز نه مقدم شي،﴿فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ أَحَدًا﴾ (غادريغادر) باب مفاعله نه لپاره دمبالغي اومجردئې راځي، دباب ضرب يضرب نه. وئيلې كيږي، پريخودلو(ترك) ته اووعدي نه پوره كولوته هم غدرددې وجه نه وئيلې كيږي چې په هغې كښ هم ترك ايفاء وي، او﴿أَحَدًا﴾نكره ده په سياق دنفي كښ واقعه شويده نومفيده دعموم ده نومقصد دادې چې څوك به هم نشي پريخودلې كه غټ كه وړوكې وي،پيغمبروي كه امتې وي.اميروي كه غريب وي،﴿وَعُرِضُوا عَلَىٰ رَبِّكَ﴾پدې كښ كيفية دعرض ذكركيږي ورستو دذكر دحشرنه. اومراد دعرض نه پيش كيدل اوحاضريدل دې دالله جل جلاله قضا اوفيصلې ته. صفا داحال دې د﴿وَعُرِضُوا﴾دضميرنه، او﴿صَفًّا﴾ياپه معنې د ظاهرسره دې چې داټول مخلوق به الله جل جلاله ته صف بسته يعنى ظاهرولاړوي. اودديته (صَفْصَف) هم دې چې وئيلې كيږي صحراته څكه چې هغه هم ظاهروي وې اوبوټې پكښ نوي، اويامراد دصف نه،صفوف يعنى جمع ده لكه يخرجكم طفلا غافر ۶۷نه مراد (اطفالا) دې، اودقيامت په ورځ به دهرچاخان ته جداجدا صفونه وي، دانبياء كرامو،دملائكو. اودصديقينو. شهداء اوصالحينو خان خان نه صفونه وي چې ديوصف و لا فارغ شي نوبيابه بل صف والاوراندي شي(كبير) اوبعض فرمائی چې مراد دصف نه جميع دی. وفي الحديث عن معاذ بن جبل رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم قال ان الله تعالى ينادى يوم القيمه ياعبادى انا الله لا

اله الاانا ارحم الراحمين واحكم الحكمين واسرع الحاسبين احضروا حجتكم ويسروا جوابا فانكم مسئولون محاسبون يا ملائكتى اقيموا عبادى صفوفا على اطراف انامل اقدامهم للحساب (روح بحواله ابن منده) وفى الحديث الصحيح يجمع الله تعالى الاولين والاخرين فى صعيد واحد صفوفا يسمعهم الداعى وينفذهم البصر الحديث (بخارى).

﴿لَّقَدْ جِئْتُمُونَا ﴾دامعمول دَقلنا محذوف لپاره دې او ﴿كَمَا خَلَقْنَٰكُمْ ﴾صفت دې دمصدر محذوف لپاره، تقدير دَعبارت داسې دې اى مجيئا مثل مجيئ خلقكم اوّل مرّة (بحر) يعنى څرنګه چې تاسو اول پيدائش وو برېنډ، غيرمختون نودغه شان به ستاسو حشرهم وي ددنيا زينتونه به ختم شي. وفى الحديث عن عائشة ﷺ قالت سمعت رسول الله ﷺ يقول يحشرالناس يوم القيمة حفاة عراة غرلا، قلت يارسول الله ﷺ الرجال والنسآء ينظربعضهم الى بعض قال ﷺ ياعائشة الامراشدمن ان ينظرالى بعض (مسلم) ترجمه: حضرت عائشه ﷺ چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چې دقيامت په ورځ به خلق خپې ابله، برېنډ، اوپه داسې حالت چې سنت شوي به نوي (غيرمختون) رااوچت کړې شي، نوماورته اوويل: اې دالله ﷺ رسوله! ښځې اوسړي به يوبل ته نه ګوري نونبي ﷺ اوفرمائيل: اې عائشه! چې هغه به دومره سختي وي چې خلق به يوبل نه غافله وي اوددې ايت اودَمذکوره حديث تعارض دَحضرت ابوسعيد خدري ﷺ نه روايت سره نيشته دې چې په هغې کښ دي چې کله دَحضرت ابوسعيد خدري ﷺ ته وفات قريب راغې نو نوي کپړې ئې اوغوختلې او فرمائيل ئې چې ما دَرسول الله ﷺ نه اوريدلى دى چې حضور ﷺ ارشاد اوفرمائيلوچې کومو کپړو کښ انسان مړشي نوپه هغې کښ به پاڅولې شي (١) ځکه چې دهغې نه مراد ثياب عمل (دعمل والاکپړې) مراد دى اوپه عمل باندې دثياب اطلاق په قرآن کښ شويدې ولباس التقو ذلك خير. اوحضرت ابوسعيد خدرى ﷺ دَحديث په ظاهر اوباطن دواړوباندې عمل کولو لپاره نوې کپړې طلب کړې وې خوليکن دغه شان يوروايت دَحضرت معاذبن جبل ﷺ په باره کښ هم راغليدې چې هغه خپلې مورته دنوې کپړوکفن واچولواو اوئ فرمائيل چې مړوته په ښه کپړوکښ کفن ورکوئ ځکه چې هغوئ پدغه کپړوکښ پاڅولې شي (فتح الباري. کتاب الرقاق)، اودغه شان يوروايت دَحضرت عمر ﷺ نه هم مروى دې، نوددې وجه نه بعض محدثينو داجواب کړيدې چې د (٢) بعضوخلکو حشربه عارياکيږي اودَبعضوبه دکپړوسره کيږي (٣)، اولابه حشرعاريا اوورستو به بيا کپړې واچولې شي لکه چې دادَظاهرحديث تقاضاهم ده (٤)، اويابه خروج عن القبور دَهغه

کېږو سره وي چې په کوموکښې دفن شويدي اوبيابه ورنه ابتداء دَحشرکښې کېږي لرې کړې شي. نواحاديث دكېږو محمول دې په بعث باندې اوحديث دَعاريامحمول دې په حشرباندې(۵) اوپ احاديث دَثياب والا محمول دې په شهداء باندې اوعاريا والامحمول دې په غيرشهداء باندې ﴿بَلْ زَعَمْتُمْ﴾ (بل) لپاره دَاضراب دي اودامبالغه ده په توبيخ کښې او "موعدا" ظرف زمان دې مرادتنه قيامت دې. ﴿وَوُضِعَ ٱلْكِتَٰبُ﴾داعطف دې په ﴿وَعُرِضُوا﴾باندې اوپديکښې تخويف اخروي او دَقيامت يوبل حالت ذکرکيږي چې عمل نامې به کيخودلې شي نومجرمين به ډيرافسوس اوکړې او اوبه وائي چې داڅرنګه عملنامې دې چې نه ئې زمونږه وړوکې جرم پريخې دې اونه غټ.

اومراد په ﴿ٱلْكِتَٰبُ﴾سره کتب اوصحائف دَاعمالو دې نوپدې دواړو تقديرينومراد په وضع سره ياايخودل دې په ميزان کښې اويا ايخودل دې په لاسونودَمخلوقاتو کښې نومؤمنانوته به په ښي لاس کښې عمل نامې ورکړې شي اوجهنميانوته به ګس(چپ)لاس کښې. اوالف لام پکښې لپاره دَجنس دې چې اطلاق ئې په قليل اوکثيرټولوباندې کيږي. اوياالف لام دَاستغراق دې مرادتنه جميع صحائف دَاعمالودي، اوبعض مفسرين فرمائي چې دَټول انسانانو والاعمل نامې به په يوږجسترا ويوکتاب کښې جمع کړې شي اوبيابه هغه کتاب په مينځ کښې کيخودلې شي لپاره دَمحاسبې دَمخلوقاتو ، نوپدې تقديرمراد په وضع سره ابراز اوظاهره ول دی.

﴿يَٰوَيْلَتَنَا﴾ويل په معنې دَهلاکت سره دې نودوئ به په دغه وخت کښې خاص هلاکت ته اوازکوي دَوجې دَحسرت اوافسوس نه ځکه چې ددوئ به يقين وي چې پدې سخت ساعت کښې ويل اوهلاکت دَدوئ ملګرې دې. نوګوياچې ددوئ دَاواز مطلب به داوي چې ياهلاك اقبل فهذا اوانك(روح) اوبعض مفسرين فرمائي چې ددې مقصد دادې چې دوئ به تمنادَمرګ کوي ځکه چې د دوئ به يقين وي چې اوس ددې دردناك عذاب نه دَخلاصې بل صورت نيشته دې لکه په سورة النبا، کښې ذکردې چې ويقول الکفريليتنى کنت ترابا. اوبعض فرمائي چې دَخپلې بې قرارئ اظهاراوپه دوئ باندې نازل شوې مصيبت نه نورخلك خبرولو لپاره به دا اوازکوي

﴿مَالِ هَٰذَا ٱلْكِتَٰبِ﴾استفهام تعجبي دې په معنې داى شئ سره دې اوصاحب دَنظم الدرر فرمائي چې په ﴿مَالِ هَٰذَا﴾کښې لام مجروره منفصل ذکرشويدې پديکښې اشاره ده چې کله

مجرمين خپل عملنامې اوګوري نودوي برګيراهې اوډ ويرې وجه نه به خبرې سمې نشي کولې الفاظ به جدا جدا واني. ﴿لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةً﴾ دا کنايه ده داحاطې دجميع ګناهونو نه چې نه ئې وړوکې ګناه پريخيدې اونه غټ ګناه اوباقې فرق پماېين دګناه صغيره اوکبيره کښې په سورة النسآء ايت نمبر (۳۱) کښې تفصيل سره ذکرشويدې من شاء فليطالع ثمه. ﴿وَوَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا﴾ يعنې چې کوم عملونه ئې په دنياکښې کړيدی هغه به په عملنامو کښې ثبت وي. ﴿وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ اَحَدًا﴾ يعنې چې کوم عمل ئې نوې کړې نوهغه به ليکلې شوې هم نوي. اوچې کوم ئې کړې وي هغه به پاتې شوي نوي. غيرمستحق دعذاب ته به عذاب نه ميلاويږي. اونه بل څوک دبل چا په جرم کښې به ګرفتارکيږي. اوداد الله ﷻ عدل دې، اوداعدل دالله ﷻ سنت دې اووجوب ئې په الله ﷻ نيشته دې.

| |
|---|
| وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ |
| [1] اوريادکړه هغه وختچې اوئيل مونږه فرشتوته چې سجده اوکړئ آدم ؑ ته پس سجده اوکړه دوئ مګرابليس اونکړه |
| كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ ؕ اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗٓ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِيْ |
| وودې دپيريانونه پس نافرمانې ئې اوکړه دحکم درب خپل نه. آيانو نيسئ تاسودې اواولاد دده لره دوستان سيوا خه نه |
| وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ ؕ بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ بَدَلًا ۞ مَآ اَشْهَدْتُّهُمْ خَلْقَ السَّمٰوٰتِ |
| اوحالانکه دوئ ستاسودشمنان دي بددې شيطان دظالمانولپاره په بدل دالله ﷻ کښې ندې حاضرکړې ماددوئ پيدائش داسمانونو |
| وَالْاَرْضِ وَلَا خَلْقَ اَنْفُسِهِمْ ۖ وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّيْنَ عَضُدًا ۞ |
| اوزمکوته اونه پيدائش دخانونودوئ ته اونه يم څه نيوونکې ګمراه کوونکولره مددګاردخان لپاره |

﴿وَاِذْ قُلْنَا﴾ دا دسورت حصه ثاني شروع کيږي اودادويم شبهې جواب دې. شبهه داکيدله چې دعوې دتوحيد څکه صحيح نده چې اولياء کرام ته اوجناتو ته اختيار دتصرف في الامور حاصل

(1) جواب شبهه ثانيه

دي اودغه شان ځني غيبوخبرو هغوئ ته پته لګي. لکه چې دهغوئ استعانت اوغوختلي شي نوامدادکوي، يادغه شان داولياء کرامو دمزارات نه ونې کټ کولود وچې نه هغوئ هغه سړي نه ضرر اونقصان رسوي.اودغه شان دنذرانو ورکولودخوب په ذريعه حکم کوي نوددينه معلومه شوه چې هغوئ ته هم تصرف اوعلم غيب حاصل دي.دجواب خلاصه داده چې اولياء کرامو نه ددي بدعاتو اوخرافاتو پته هم نه لګي بلکه هغوئې به دقيامت په ورځ قسمونه خوري چې(اناکنا عن عبادتکم لغفلين) نوددي وجه نه داټول دستاسو ازلي دشمن ابليس شرارت دي چې هغه په مختلفو طريقو سره ستاسو دګمراه کولوکوشش کوي. نوستاسو خپل دشمن اودهغه دذريت سره دوستي کوئ اودهغه حکم منئ اودتوحيدنه انکار کوئ اوددي ايت تفسيرپه سورة البقره کښې تيرشويدي﴿كَانَ مِنَ ٱلْجِنِّ﴾غوره قول مطابق داجمله مستانفه ده چې واقع شويده په سوال دسائل کښې ګوياچې سائل سوال کولو چې ماله لم يسجد؟ چې ده ولې سجد اونکړه؟ جواب اوشوچې ﴿كَانَ مِنَ ٱلْجِنِّ﴾داايت صريح دي پدې کښې چې ابليس دجناتو نه وو. اوپه جماعت دملائکوکښې به پاتې کيدلو. اودملائکو دجنس نه نوو، اوبعض مفسرينو رائې داده چې دې نوع دملائکونه وو. او﴿كَانَ مِنَ ٱلْجِنِّ﴾ کښې په ده باندې(۱) اطلاق دجن لغوى دې ځکه چې جن ماخوذدې د اجتنان نه وئيلي کيږي پټ ته، نوملائکه هم پدې معنې سره جنات دي(۲)اويامرادپه ﴿مِنَ ٱلْجِنِّ﴾سره دادې چې دې خازن الجنة وو لکه چې دامروى دى دابن مسعودﷺ نه.(۳) اوياکان په معنې دصارسره دې. ۱ صارمن الجن. ليکن داټول توجيهات ضعيف اوکمزورې دي(۱) ځکه چې په اعتباردلغت سره اګرچې جن پټ ته وئيلي کيږي. ليکن په حسب د عرف دامختص دې په جناتوپوري، لکه لفظ د دابه چې په اعتبار دلغت سره وئيلي کيږي کل ما يدب على الارض ته.ليکن په عرف کښې سره اطلاق ئې کيږي په ذات قوائم الاربع باندې.(۲) اودا تاويل کول چې﴿مِنَ ٱلْجِنِّ﴾نه مراد خازن الجنة دې داهم باطل دې ځکه چې پدې مقام کښې ﴿كَانَ مِنَ ٱلْجِنِّ﴾تعليل دې دترک سجود لپاره چې ده سجده ځکه اونکړه چې دې جنى وو، اوکچرې مراد د﴿كَانَ مِنَ ٱلْجِنِّ﴾نه داشي چې دې خازن الجنة وو نوتعليل نه صحيح کيږي.(۳) اوداتاويل کول چې کان په معنې دصارسره دې داهم صحيح ندې ځکه چې کان په معنې د صارسره وئيل

تاویل دي په خلاف ظاهر اوخلاف ظاهرته رجوع کول دضرورت په وخت کښ وي. اوبلاضرورته خلاف ظاهر مراد کول غیرصحیح دي اوهرچي دې دليل پدي چي دې دجنس دملائکو نه نوو ،بلکه دنوع دجناتونه وو.نوپدي باندې دلائل کثیره دی(۱) اول دليل دادې چې ددوئ دواړو په ماده خلقت کښ فرق دي.ماده دملائکو نور دې اوماده دابليس او شيطان نار دي لکه په روايت دزهري کښ چي نقل کړيدي دحضرت عائشه ﷺ نه فرمائی عن رسول الله ﷺ انه قال خلقت الملائکة من نور وخلق الجان من مارج من نار اودغه شان په ډيروايتونو کښ ماده دجن نار ذکرشويده(۲) دويم دليل دادې چې دابليس لپاره ذريت او اولاد دي لکه الله ﷻ فرمائی ﴿أَفَتَتَّخِذُونَهُ وَذُرِّيَّتَهُ أَوْلِيَآءَ ﴾اودملائکو لپاره اولاد اوذريت نشته دي

(۳)دريم دليل دادې چې ملائك معصوم دی دګناهونونه لکه الله ﷻ فرمائی لايعصون الله ماامرهم، اوابليس خوکافردي.(۴) اوڅلورم دليل دادې چې ملائك رسولان اوقاصدان دی دالله ﷻ لکه الله ﷻ فرمائی جاعل الملئکة رسلا(فاطر:۱) اوابليس خوقاصد نه بلکه دالله ﷻ دشمن دي(۵) پنځم دليل دادې چې الله ﷻ فرمائی بل کانوا يعبدون الجن(سورة السباء:۴۱) پديکښ جنات جدا نوع خودلي شويده(۲) اوشپږم دليل چې بالکل صريح هغه دامذکوره ايت دې چې ﴿كَانَ مِنَ ٱلْجِنِّ ﴾.اوباقي دااعتراض کول چې هرکله دې په جنس دملائکو کښ ندي داخل نودي ماموربالسجود هم نوو ځکه چې امرسجدي ملائکوته شوي وو، وغيره اعتراضونو جوابونه په سورة البقرة کښ تيرشويدی.

﴿فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِۦٓ ﴾فاء لپاره دسببيت ده اوفسق په معنی دخروج سره دي اودا ماخوذدې ددې قول دعربونه چې هغوئي وائي فسقت الرطبة عن قشرها ا خروجها منه، نومطلب دايت داشو چې په سبب دکيدلو دده جني دي اوتلوداطاعت دالله ﷻ نه اوسيبويه فرمائی چې فسق په خپلې معنې سره دي چې فجر دې ای اتاه الفسق،ځکه چې کله الله ﷻ ده ته امرسجدي اوکړو نوده انکار اوکړو نوداعصيان اونافرماني سبب دفسق اوګرځيدلو(زاد المسير).

﴿أَفَتَتَّخِذُونَهُ وَذُرِّيَّتَهُ ﴾استفهام لپاره دانکاراوتعجب دي،اوفاء لپاره دتعقيب ده ای عقيب علمکم لصدور تلك القبائح عنه تتخذونه الخ(ابوسعود) وذريته مراد دذريت نه يااتباع دابليس دی

او اطلاق پرې دذريت مجازاً دې، اويامراد دذريت نه حقيقة اولادې لكه چې منقول دې دامام مجاهد رحمه الله نه چې دابليس حقيقة اولاد اوذريت دې. چې ديونوم «زلنبور»دې چې دې په بازارونوكښې گرځي اودابليس جهنډه ورسره وي.

دويم نوم«ثبر»دې چې دې صاحب المصائب دې، ددريم نوم«اعور»دې چې دې خلك په زناباندې برانگيخته كوي، دڅلورم نوم«مسوط»دې چې هغه په خلكو ددروغوخبرې مشهوره وي. اودبل نوم «داسم»دې چې دې دهغه سړي سره كورته ننه وځي چې هغه په خپل اهل اوكوروالوباندې سلام وانه چوي، اودهغه سره په خوراك كښې شريك كيږي چې كله بسم الله اونه وائي اودغه شان نورهم دې لكه«ولهان» او«خنز،هفاف» وغيره شو چې تفصيل ئې ذكركړيدې طبرى اومظهري اوخازن اوداقول دجمهورومفسرينو دې.

﴿أَوْلِيَآءَ﴾مرادتنه متبعين اواطاعت كوونكي دشيطان دى.يعنى تاسو شيطان اودهغه ذريت سره دوستانه كوئ چې دهغه خبره منئ اودهغه اطاعت كوئ﴿مِن دُونِي ﴾ مقصد دانه دې چې څماسره ئې په عبادت كښې شريك كړئ اوځمانه بغيرصرف دهغه عبادت مه كوئ بلكه مقصد دادې چې څما نه تجاوزهغه ته مه كوئ دامعنې داستبدال ده نومعنې د ﴿مِن دُونِي ﴾داده چې مجاوزين عنى اليهم، اوددې وجه نه مفسرينو معنې داسې كړيده تستبدلونهم بى فتطيعونهم بدل طاعتى(روح، ابى سعود) ﴿وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ ﴾ضمير دجمع مذكرغائب راجع دې ابليس اودهغه ذريت ته اوداجمله حال واقع ده دماقبل نه يعنى تاسوئې په دوستانه سره نيسئ حالانكه هغوئې ستاسودښمنان دې. نودښمن سره دوستي كول ډيره عجيبه غوندې خبره اوهركله چې لفظ د ﴿عَدُو﴾ اسم جنس وو نودې وجه نه مفرد راوړې شو.

﴿بِئْسَ لِلظَّٰلِمِينَ بَدَلاً ﴾مراد دظالمانونه هرهغه څوك دى چې اطاعت اوخبره منې دشياطينو گرچې صدق دظلم په خپلو افرادو باندې متفاوت دې ځكه چې داكلي مشكك دې، او﴿بَدَلا﴾ منصوب دې تميز واقع شويدې د﴿بِئْسَ﴾ نه اوفاعل دده ضميرمستقره دې چې «هو»دې، اومخصوص بالذم محذوف دې چې ابليس اودهغه ذريت دې، اى بئس البدل من الله ابليس(كشاف)

﴿مَّآ أَشْهَدتُّهُمْ ﴾داعلت دي د ماقبل لپاره چې ابليس اودهغه ذريت چې تاسونې عبادت کوئ اودوستي ورسره کوئ آيادزمکي اواسمانانودپيدائش په وخت کښ يا پخپله دهغوئ دپيدائش په وخت کښ دوئ سره مونږه مشوره کړي وه يامونږه دوئ دخان سره پديکښ شريك وو؟ ونه الله ﷻ ددوئ مدد ته محتاج دي، نوتاسو څرنګه هغوئ په عبادت کښ دالله ﷻ سره شريکوئ .ضميرد مفعول راجع دي ابليس اودهغه ذريت ته اومراد په اشهاد سره حضور دهغوئ دي لپاره د مشوري يعنى دوئ مونږه دمشوري لپاره نوو حاضرکړي چې آيا مونږه دا تخليق اوکړو کنه؟ يعنى دوئ سره مومشوره نه وه کړي، (قرطبى) ﴿وَلَا خَلْقَ أَنفُسِهِمْ ﴾داعطف دي پماقبل خلق باندي مرادپدي سره نفى دمشوري ده په تخليق دځنو نورونه، چې مونږه دبعض مخلوقاتو په پيدائش کښ په دوئ کښ دبعضوسره مشوره هم نده کړي.لکه څرنګه چې(فاقتلوا انفسكم کښ مراد انفسكم نه بعضكم بعضاً مراد دي، اوامام رازي رحمه الله فرمائى چې ضمير «هُم» مفعول راجع دي کفاروته چې هغوئ دحضور ﷺ نه مطالبه کړي وه چې داغريب مسلمانان دخپل مجلس نه لري کړه کنې مونږه ايمان نه راوړو چې هغوئ مذکوردي په ﴿بِئْسَ لِلظَّٰلِمِينَ بَدَلًا ﴾کښ. اوايت مقصد دادي چې دوئ ته يعنى دي کفاروته څه خصوصيت اوفوقيت ندي حاصل چې دوئ مطالبه کوي چې داغريب مسلمانان دي دحضور ﷺ مجلس ته نه راځي کچري مونږ دوئ حاضرکړي وي دمخلوقاتو دپيدائش پوخت کښ يامودوئ نه مشوره اوڅه مدد غوختلي وي نوبيابه خودوئ ته فوقيت حاصل وي ليکن داسي خومونږه ندي کړي، نودوئ هم دنورو مخلوقاتو پشان دي﴿وَمَا كُنتُ مُتَّخِذَ ٱلْمُضِلِّينَ ﴾ مراد دمضلين نه ابليس اودهغه ذريت دي.اووضع داسم ظاهرپه موضع دمضمر باندي لپاره داظهاردمذمت دهغوئ دي، چې دوئ متصف دي حقيقة په وصف دضلالت سره.اوقيد د﴿ٱلْمُضِلِّينَ ﴾ احترازي ندي بلکه اتفاقي دي اوددوئ دذم لپاره راوړي شويدي او الله ﷻ دهيڅ چانه هم مدد ندي اغستلي، نه ده هادين نه اونه دمضلين نه.او﴿عَضُدًا ﴾ په اصل کښ متږبازو، ته وئيلي کيږي، مرادتنه معين اومددګادي، او﴿عَضُدًا ﴾جمع ذکرنشوځکه چې دانکره ده په سياق دنفي کښ واقع شويده نومفيدده لپاره دعموم ده، اولپاره درعايت درؤس

دایتونو چې په اول کښې هم مفرد دې نو په اخیرکښې هم مفرد ذکرشولې ره درعایت د حرد ول سره. اوبعض مفسرین فرمائی چې جمع ځکه ذکرنشوه چې اشاره راشي دیته چې عدم صلاحیت داعتضاد اوامداد کښې دوئ جمیع په منزله دواحد دې.چې لکه څرنګه واحد اوبوکښې صلاحیت دامداد داللهﷻ نشته دې نودغه شان په جمیع اوټولوکښې نیشته دې نوخلاصه دایت داشود چې کله دوئ ځمامددګاران ندې په تخلیق کښې بلکه دخپل ځان په تخلیق کښې نې هم څه قسم دخل اوکردارنیشته دې نوځنګه تاسو ددوئ عبادت کوئ. (مدارك) اوعلامه زمخشري یوبل احتمال هم ذکرکړیدې چې (کنت) په فتحې سره دې یعني مخاطب صیغه ده اوپدیکښې خطاب دې حضورﷺ ته چې ددې کفارونه امداد مه اخله ددوئ نه امداد اغستل ستالپاره صحیح ندې اوصاحب دروح المعانی فرمائی چې په دې تقدیرددې ایت نه بعض ائمه ؤاستدلال کړیدې چې دکافرنه مددطلب کول جائزندې.اود دې تفصیل دادې چې کافرنه په امور دینیه کښې مدد اغستل دائمو په نیزیوه مختلف فیه مسئله ده. لکه دهغوئ نه په جهادمع الکفاریاقتال مع البغی کښې مددغوختل جائزدې که ندې. خولیکن په اموردنیوې کښې دهغوئ نه مدد غوختل بالاتفاق جائزدې.برابره خبره ده که هغه امداد په ممتهن امرکښې وي لکه دهغوئ کنیفه(عبادت خانه) ورانه ول یاغیرممتهن وي لکه منبراومحراب اوکپړې جوړول شو

| وَيَوْمَ | يَقُولُ | نَادُوا | شُرَكَاءِيَ | الَّذِينَ | زَعَمْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|

[1]او یادکړه هغه، ورځ چې اوبه وائي(اللهﷻ) اوازاوکړئ هغه شریکانوخماته چې ګمان کولوتاسو(په هغوئ باندې د شریکانو)

| فَدَعَوْهُمْ | فَلَمْ | يَسْتَجِيبُوا | لَهُمْ | وَجَعَلْنَا | بَيْنَهُمْ | مَوْبِقًا ﴿٥٢﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|

پس دوئ به ورته اواز وکړي نو وربه نکړي جواب هغوئ دوئ ته اوبه ګرځوو مونږه په مینځ ددوئ کښې ځائ دتباهی

| وَرَاَ | الْمُجْرِمُونَ | النَّارَ | فَظَنُّوا | اَنَّهُمْ | مُوَاقِعُوهَا | وَلَمْ | يَجِدُوا | عَنْهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

اوبه وینې مجرمان اورلره نو یقین به نې راشي چې بیشکه دوئ پریوتونکې دې په دې کښې اونه به مومي دهغې نه ځائ لاره

---

[1]: تخویف اخروی

مَصۡرِفًا ۝ وَلَقَدۡ صَرَّفۡنَا فِيۡ هٰذَا الۡقُرۡاٰنِ لِلنَّاسِ مِنۡ كُلِّ مَثَلٍ ؕ وَكَانَ الۡاِنۡسَانُ

داوړیدلو،نجات،[2]اوپه تحقیق سره باربار بیان کړیدي مونږه پدي قرآن کښ خلکو ته دهر قسم بیان نه اودی انسان

اَكۡثَرَ شَيۡءٍ جَدَلًا ۝

زیات دهرڅیزنه په جګړي کښ

﴿وَيَوۡمَ يَقُولُ﴾پدي کښ تخویف اخروي ذکرکیږي چې قیامت په ورځ به الله ﷻ مشرکینو ته تبکیتًا حکم اوکړي چې دخپل امداد لپاره هغه خوك را اوغواړئ چې ځماسره موشريك جوړکړي وو نومشرکین به هغوئ ته ډیراوازونه اودامداد درخواست په ورته اوکړي خوهغوئي به ورته څه قسم جواب نه ورکوي اوټول به په جهنم کښ جمع کړې شي، ﴿وَيَوۡمَ﴾منصوب دي اومتعلق دې فعل مقدرپوري چې اذکردي اواضافت دشرکاء ﴿ي﴾ دمتکلم ته مبنی دې په زعم دهغوئ باندي ندې حقیقة اومرادپه ﴿شُرَكَآءِيَ﴾سره غوره قول مطابق بتان دی اوګمراه متبوعين دی اوملائك اوانبیآء هم مراد کيدې شي اوامرپه﴿نَادُوا﴾ لپاره دتبکيت دې،﴿فَلَمۡ يَسۡتَجِيبُوا لَهُمۡ﴾مراد داستجابت نه نصرت دې چې نصرت به يي اونکړي نولهذا ددې ايت تعارض دسورة یونس ايت وقال شركآئهم ماكنتم ايانا تعبدون﴿۸۲﴾ سره نيشته دې ځکه چې دلته نفی داجابت کامله يعني نصرت ده اوهلته کښ اثبات دمطلق اجابت دې يعنى نفس جواب ورکول دې

﴿وَجَعَلۡنَا بَيۡنَهُمۡ مَوۡبِقًا﴾ موبق صيغه دظرف مكان ده په معني دځائ دهلاکت اومرادتنه اوردجهنم دی، داقول دابن عباس رضی الله عنه اوفراء وغیره دې.

اوحضرت عبدالله بن عمرو اوابن عربی وغیره فرمائی چې موبق په معني دحاجزسره دې،ابن عربی فرمائی كل حاجزبين شيئين فهو موبق﴿فتح القدير﴾ نوپه دې تقديربياموبق نه مراد دجهنم هغه کنده ده چې په هغې کښ ويني زوي وي نو الله ﷻ به ددې په ذريعي سره داهل الضلالة اواهل الهدي په مينځ کښ تفريق اوجدائ راولي﴿زاد المسير﴾ نوکچري "شركائي" نه مراد مطلقا شركاء

---

[2] زجر

شي كه انبياء وي كه ملائك وغيره وي نوبيادَموبق نه دامعني مرادكول اولي دي. اوكه په شرك
سره مراد دَانبياء وملائكواودَاولياء نه علاوه بتان اوگمراه متبعين مرادشي نوبيااوله معني
زياته اولئ ده، ﴿وَرَءَا ٱلْمُجْرِمُونَ﴾ داهم تخويف اخروى دي او وضع داسم ظاهرپه ځائ
دمضمرلپاره دتصريح ده په جرمونوددوئ باندې اوتصريح ده په سبب باندې ددخول ددوئ جهنم
ته، اومراد په رؤيت سره رؤيت بصرى دي اوپه حديث دابى سعيدخدري رضي الله عنه كښې دى چې
حضورﷺ اوفرمائيل چې ددوئ ليدل دجهنم به دڅلويښت كالو دمسافت باندې وي. عن ابى
سعيد رضي الله عنه عن رسول اللهﷺ انه قال ان الكافريرى جهنم فيظن انها مواقعته من مسيرة اربعين سنة(طبرى
ج۸ ص۳۴۱)، ﴿فَظَنُّوٓا﴾ظن په معنې ديقين سره دي اى فايقنوا(كشاف) اوياظن په خپلي معنې سره
دي اودايت مقصددادې چې دڅلويښت كالو دمسافت برابرلري نه چې كله دوئ جهنم اوگوري
اودهغې اواز اوغصه واوري نودوئ به په هغه وخت كښې داگمان كوي چې اوس اوس بغيردڅه
مهلته اوتاخيره مونږ پدې كښې غورزيدونكى يو(ابن كثير)اودې معنې اواحتمال ته ترجيح
وركړيده امام رازي رحمه الله. ﴿وَلَمْ يَجِدُواْ عَنْهَا مَصْرِفًا﴾واو حاليه دي اومصرف ياصيغه
دمصدرميمي ده په معنې دواپس كيدلوسره اوياصيغه دظرف مكان ده ځائې دواپس كيدلو.
يعني دوئ ته به څه دامن پناه والاځائې به نه ميلاويږي اوفرشتې به ئې جهنم،ته راكاږي. اللهم
اعذنامنها).

﴿وَلَقَدْ صَرَّفْنَا﴾ پديكښې زجرذكركيږي ﴿صَرَّفْنَا﴾باب تفعيل دي تقاضا دتكرار كوي
اومرادتنه مختلف طريقوسره مضامين بيانول دي لكه وعدوعيدوغيره شو اوبعض فرمائى چې
مرادتنه نزول دقرآن دي نجمانجما،﴿لِلنَّاسِ﴾مرادتنه ټول انسانان دى اوجنات تابع دانسانانودى
نوځكه دهغې ذكراونشو،اومن په﴿مِن كُلِّ مَثَلٍ﴾كښې زائددې، اوياتبعيضيه دي اومراد په كلّ
سره كل كلي جنسي دي نومعنې به ئې داسي شي چې بعضي دهرجنس نه (روح) اومراد په﴿مَثَلٍ﴾
سره يامشهوره معنې ده چې مثالونه دى چې الله تعالى دانسانانودهدايت لپاره په قرآن مجيد كښې
ذكركړيدى لكه واضرب لهم مثلا الرجلين وغيره شو، اوياتنه مراد مضامين دى،اوداعبارت ورسره
مقدردې چې فلم يقبلوه ولم يتركوا المجادلة الباطلة،يعني دوئ قبول نه كړواوبلاوجه اودليله مناظره

بازي يې پرې نخوده. اوپدې باندې دلالت مابعد جمله کوي چې ﴿وَكَانَ ٱلْإِنسَـٰنُ أَكْثَرَ شَىْءٍ جَدَلًا﴾ "جدلا" منصوب دې بنابرتميزرفع دابهام کرېده د اکثر نه اومراد په ﴿ٱلْإِنسَـٰنُ﴾ سره څوک وائي چې نضربن حارث دې چې هغه خصومت اوجهګړه کوله پدې قرآن کښې. اوڅوک وائي چې ابی بن خلف تنه مراددې اوزجاج نه منقول دی چې مراد په ﴿ٱلْإِنسَـٰنُ﴾ سره انسان کافردې ځکه چې جدال په باطل سره دکافرکاردې لکه الله ﷻ فرمائی چې ويجٰدل الذين كفروا بالبٰطل اوپه ددې درې واړو احتمالاتوپه تقديرمرادبه دجدل نه جدال باطل وي

ليکن غوره قول دادې چې مراد په ﴿ٱلْإِنسَـٰنُ﴾ سره مطلق انسان دې لکه په روايت دبخاری ج۲ کښې دحضرت علي رضی الله عنه نه مروي دی ان رسول الله ﷺ طرقه وفاطمة بنت رسول الله ﷺ ليلة، فقال الاتصليان فقلت يارسول الله ﷺ انماانفسنا بيدالله فاذا شاء ان يبعثنا بعثنا. فانصرف حين قلت ذلك ولم يرجع الى شيئا ثم سمعته وهومولي يضرب فخذه وهويقول وكان الانسان اكثرشيئ جدلا ترجمه:يعني يوشپه نبي ﷺ دوئ خواله راغي اواويې فرمايل:چې تاسومونځ نه کوئ؟نوماورته اووې چې زمونږځانونه دالله تعالې په قبضه قدرت کښې دي.چې کله هغه زمونږراپاسول اوغواړي نومونږراپاسو،کله چې مادااووې نونبي ﷺ واپس شواوماله هيڅ جواب رانکړو،اوخپل ورون يې وهلواودآيت يې لوستلو﴿وَكَانَ ٱلْإِنسَـٰنُ أَكْثَرَ شَىْءٍ جَدَلًا﴾

وَمَا مَنَعَ ٱلنَّاسَ أَن يُؤْمِنُوٓا۟ إِذْ جَآءَهُمُ ٱلْهُدَىٰ وَيَسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّهُمْ

[1]اوندې منع کړې خلکولره ددينه چې ايمان راوړي هرکله چې راغې دوئ ته هدايت اوچې بخنه اوغواړي درب خپل نه

إِلَّآ أَن تَأْتِيَهُمْ سُنَّةُ ٱلْأَوَّلِينَ أَوْ يَأْتِيَهُمُ ٱلْعَذَابُ قُبُلًا ﴿٥٥﴾

مګرانتظارکولو، ددې خبرې چې راشي دوئ ته طريقه (عذاب) دپخوانوخلکواوياراشي دوئ ته عذاب مخامخ

[1] زجرمع تخويف اخروی

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ وَيُجَادِلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

اونه ليږو مونږه رسولان مګرزيري وركوونكي اوېره وركوونكي[1] اوجګړه كوي هغه كسان چې كفران دي[2]

بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ وَاتَّخَذُوْا اٰيٰتِيْ وَمَآ

په باطلو(شبهاتو)سره لپاره ددې چې اونړه وي پدې سره حق اونيولې دي دوئ ايتونه زما اوهغه چې

اُنْذِرُوْا هُزُوًا ۝

دوئ له ېرې ېره وركړې شوي ده توقي

﴿وَمَا مَنَعَ النَّاسَ﴾دازجرمع تخويف اخروي ذكركيږي،مانافيه ده اوپه ﴿النَّاس﴾سره مرادمشركين مكه دي﴿أَن يُؤْمِنُوٓا ﴾ان مصدريه ده په محل دنصب كښې واقع شويده اوددې نه مخكښې من مقدردې اى من ايمانهم بالله تعالى (روح)اوپدې سره اشاره ده توحيدنه منلوته. ﴿إِذْ جَآءَهُمُ الْهُدَىٰ﴾دامتعلق دي په منع پوري اوپه "الهدى "سره مراد قرآن مجيداوحضورﷺ دي. اوپه دوئ باندې اطلاق د"هدى" مبالغة دې خكه چې دوئ سراسردهدايت ذريعي دي﴿وَيَسْتَغْفِرُوا﴾داعطف دي په ﴿أَن يُؤْمِنُوٓا ﴾باندې اومراد پدې سره توبه ويستل دې دشرك نه اواضافه داستغفاربعد ايمان نه يالپاره دتعميم ده چې ايمان اواستغفار دواړه پكاردى ضريبني اويا پدې كښې اشاره ده چې ايمان سره داستغفارنه اكمل وي په نسبت سره فقط ايمان نه. خكه چې استغفار دافع دعذاب اوقهرالهې دې.لكه اللهﷻ فرمائي چې وماكان الله معذبهم وهم يستغفرون. اويالپاره دتاكيدده چې هغه ايمان چې سره داستغفارنه وي نو هغه پاك وي دمخالطت دنفاق نه.﴿إِلَّآ أَن تَأْتِيَهُمْ ﴾استثناء مفرغه ده اوداجمله په تاويل دمصدر،مفرد سره فاعل دي د﴿مَنَعَ﴾لپاره. اوداكلام په حذف دمضاف سره دې چې هغه لفظ د"طلب"دي يا"انتظار"دي اومراد

[1] جواب سوال مقدر
[2] جر

په ﴿سُنَّةُ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ سره عذاب استیصالی دې چې ټول هلاك شي. لكه څنګه چې د تېرشوو قومونو حال وو، او اضافت د ﴿سُنَّةُ﴾ ﴿ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ ته مجازاً دې څكه چې داسنت د الله ﷻ وو چې كله به تیرقومونو تكذیب زیات كړو نو د الله ﷻ د طرف نه به به یا عذاب استیصالی رانللو. لیكن داسنت د الله ﷻ جاري وو په دوئ باندې نو څكه ئې اضافت دوئ ته اوشولو. ﴿أَوۡ يَأۡتِيَهُمُ ٱلۡعَذَابُ قُبُلًا﴾ قبل په ضمې د قاف او باء سره مخامخ ته هم وئیلې كیږي او فجاءة (ناساپي) ته هم وئیلې كیږي نو مطلب به ئې داسې شي چې یا راشي دوئ ته عذاب مخامخ. اچانك. نو بیا به دوئ ایمان راوړي. او یا قبل جمع د قبیل ده وئیلې كیږي داسې متفرق ته چې په یوبل پسې وي نو مراد ته پې دړې عذابونه دي (معانی القرآن للفرآء)، او امام رازی فرمائی چې قبیل، وئیلې كیږي، انواعو ته نو معنې ئې داده چې دوئ ته مختلف الانواع عذابونه راشي. او (او) په ﴿أَوۡ يَأۡتِيَهُمُ﴾ كښې یا په معنې د واو سره دې چې هغه د مطلق جمع لپاره راځي، او یا لپاره د تنویع دې. او بعض فرمائی چې او تبعیضیه دې. ای ان بعضهم يقع به هذا (زادالمسير) اوكه څوك اعتراض اوكړي چې هركله مراد په ﴿سُنَّةُ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ سره عذاب وو نو دوباره په ﴿أَوۡ يَأۡتِيَهُمُ ٱلۡعَذَابُ﴾ ذكركولو څه فائده ده؟ نو جواب دادې چې ﴿سُنَّةُ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾، افاده د عذاب مبهم كړې وه او په ﴿أَوۡ يَأۡتِيَهُمُ﴾ سره تعین د نوع د هغې عذاب مبهمه كیږي

**فائده:** په ظاهركښې د دې ایت تعارض معلومیږي د ایت د سورة الاسراء سره، څكه چې هلته په حصر سره د ایمان راوړلو لپاره مانع وصف بشریت وو د رسول لپاره لكه چې په ایت نمبر (۹۴) ومامنع الناس ان يؤمنوا اذجآءهم الهدىٰ الاان قالواابعث الله بشراً رسولاً. كښې واضح تصریح ده، او پدې مذكوره ایت كښې د ایمان راوړلو لپاره مانع په حصر سره انتظار هلاكت او عذاب ته ذكرشولو. نو لهذا په دواړو ایتونو كښې تعارض دې، خو علمآء فرمائی چې تعارض نیشته دې، څكه چې مانع په دوه قسمه دې (۱) مانع حقیقي (۲) مانع عادي، مانع حقیقي هغې ته وئیلې كیږي چې په هغې كښې شئ ممنوع ارتكاب محال وي او تخلف د مانع نه نشي راتللې او مانع عادي هغې ته وئیلې كیږي چې په هغې اتیان شئ ممنوعه ته محال نوي او تخلف د مانع نه راتلې شي. نو په سورة الاسراء ایت (نمبر ۹۴) كښې ذكر د مانع عادي وو او پدې ایت كښې ذكر د مانع حقیقي دې او د دې وجه

نه ډيروخلكو چې ابتداء كافروو نورسالت به ئې دبشرسره منافي كنړلو اوداورله مانع وو دا سلام لپاره خودهغې باوجود ايمان ئې راوړې وو ،اوپه كوموخلكو باندې فيصله دالله ﷻ دعدم ايمان شويده نوهغوئې دعذاب استيصالى انتظاركوي اوداوائې چې ﴿ان كان هذاهوالحق من عندك فامطر علينا حجارة من السمآء﴾ الخ.

اوكه څوك اعتراض اوكړي چې هركله انتظار دهلاك مانع وولپاره ددوئ دايمان نه نوپكاروه چې انتظارمقدم وي په عدم ايمان باندې .اوحالانكه ددوئ ايمان نه راوړل مقدم دې.په انتظارباندې نوجواب تنه دادې چې انتظارمانع دايمان سابق لپاره ندې بلكه انتظارمانع دهغې ايمان لپاره دې چې هغه دانتظارنه ورستومتحقق كيږي. چې هغه عدم ايمان مرتبه دختم ده اوياجواب دادې چې داتنزيل داستحقاق دې په منزله دطلب باندې.لكه يوسړې خپل خادم.نوكر. بچې ته اوائې چې كله هغه نافرماني اوكړې. ته وهل غواړې. حالانكه هغه وهل غوختلي نوې اوطلب ئې دوهلونوي كړې خوچونكه هغه په سبب دعصيان سره مستحق دوهلو ګرځيږي نودغه استحقاق په منزله دطلب نازل كړې شو. نودلته هم داسي ده.نوګوياچې اصل عبارت داسي دې.مامنعهم من ذلك الااستحقاق الهلاك الدنيوى اوالعذاب الاخرة(روح).

﴿وَمَا نُرْسِلُ﴾ پدي ايت كښ حكمت دارسال درسل ذكركيږي، اودَيوسوال مقدرجواب ذكركيږي، چې مشركينوبه وئيل حضورﷺ ته،ته مونږباندې عذاب ولې نه راولي حالانكه مونږه ستاخبره اوحكم نه منو؟ نوجواب تنه اوشولو چې انبياء كرام راليږلي شوي دي لپاره ددفعيې دعذاب چې خلكوته په ايمان راوړلوسره خوشخبري وركړې اوپه نه راوړلوسره ئې دالله ﷻ دعذاب نه اويره وي اودمنكرينودشبهاتو جوابونه وركړي چې اتمام حجت اوشي اوكه بياهم څوك اونه مني نوعذاب به پرالله ﷻ دطرف نه راځي ﴿إِلَّا مُبَشِّرِينَ﴾ داجمله حال واقع شويده دماقبل نه.

﴿وَيُجَادِلُ الَّذِينَ﴾ دازجردې په مجادلينو باندې.يعنى دوئ باطل شبهې پيش كوي اودحق دړوكولوكوشش كوي، اومختلف قسم تعنتي سوالات كوي اوباء په ﴿بِالْبَاطِلِ﴾ كښ سببيه ده اومراد په دې سره غلط دلائل اوشبهات اواعتراضونه كول دي لكه دوئ به وئيل ﴿لوشآء الله لانزل ملئكة﴾ ﴿مال هذا الرسول ياكلوا الطعام ويمشى فى الاسواق﴾ وغيره شو اواتصاف دجدال په باطل سره لپاره دبيان دمذموم منه دې ﴿لِيُدْحِضُوا﴾ داماخوذ دې د﴿ادحاض القدم﴾ نه دقدم خويدلوته وئيلې

کیږي. او ضمیر په ﴿بِهٖ﴾ کښې راجع دې جدال ته ای لیزیلوا ویبطلوا بالجدال ﴿الْحَقَّ﴾ او مراد په حق سره هغه احکامات او شرائع دي چې انبیاء کرام راوړي وو ﴿وَاتَّخَذُوْۤا اٰیٰتِیْ﴾ مراد په آیاتي سره معجزات دي که هغه قولاً دي لکه قرآن مجید او یا فعلاً دي لکه نور معجزات شو. او مراد په ﴿وَمَاۤ اُنْذِرُوْا﴾ سره اخبار ددي نزول دعذاب متوقعه نه که دنیوي وي یا اخروي. او ما په ﴿وَمَاۤ اُنْذِرُوْا﴾ کښې یا مصدریه ده په معنی د انذارهم سره دي او (واو) بمعنی مع دي ای واتخذوا ایتی مع انذارهم الخ او یا ما موصوله ده او انذروا جمله ورله صله ده او عائد په صلې کښې د ضمیر دې محذوف دې ای ما انذروه (کشاف) او ﴿هُزُوًا﴾ په معنې د مَهْزُوًّا سره دې. او یا حمل ئې مبالغة دې

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ فَاَعْرَضَ عَنْهَا وَنَسِيَ

[1] او څوک نوی ظالم دی دهغه چانه چې ورته یادکړې شي آیتونه درب خپل نو مخ واړه وي دې دهغې نه او هیرکړي

مَا قَدَّمَتْ يَدٰهُ ؕ اِنَّا جَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ

هغه عملونه چې مخکښې لیږلي دي لاسونو دده بیشکه مونږه ګرځولیدي په زړونو ددوئ باندې پردې دېوهې د قرآن نه

وَفِيْۤ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ؕ وَاِنْ تَدْعُهُمْ اِلَى الْهُدٰى فَلَنْ يَّهْتَدُوْۤا اِذًا

او په غوږونو ددوئ کښې دروند والي دې او که ته رابولې دوئ سمي لارې ته نو هرګز لاره نه مومي دوئ په دغه وخت کښې

اَبَدًا ۝ وَرَبُّكَ الْغَفُوْرُ ذُو الرَّحْمَةِ ؕ لَوْ يُؤَاخِذُهُمْ بِمَا كَسَبُوْا

هېڅرې او رب ستا ډیر بخښونکې دې رحمت والا دې کچرې نیولې ئې دوئ په سبب دهغه عملونو چې دوئ کړیدي

لَعَجَّلَ لَهُمُ الْعَذَابَ ؕ بَلْ لَّهُمْ مَّوْعِدٌ لَّنْ يَّجِدُوْا مِنْ دُوْنِهٖ

نو ذر به ئې راليږلې وي دوئ ته عذاب بلکه شته دې لپاره ددوئ ځائې دوعدې چې هرګز به او نه مومي دوئ بغیر دهغې نه

مَوْئِلًا ﴿٥٨﴾ وَتِلْكَ الْقُرَىٰ أَهْلَكْنَاهُمْ لَمَّا ظَلَمُوا وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِم مَّوْعِدًا ﴿٥٩﴾

بل ځاى دپناه، اوداد كلوخلك هلاك كړل مونږه هركله چې ظلم ئې اوكړواومقرركړې وومونږه لپاره دهلاكت ددوى يووخت مقرر

﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن﴾ داهم زجردې په اعراض كوونكوباندې دقرآن نه چې دقرآن تلاوت اورېدلونه مخونه واړه وي اوپه تيرشوي ګناهونوباندې توبه نه اوباسي. او استفهام انكارې دې ﴿بِآيَاتِ رَبِّهِ﴾ مرادپه ايتونوسره قرآن مجيد دې اوددې وجه نه ورستو ﴿أَن يَفْقَهُوهُ﴾ كښې ضميرورته دمفرد مذكرراجع شويدې، اوبعض مفسرين فرمائي چې مرادتنه جنس ايات دې كه قرآن وي يانورمعجزات. ﴿فَأَعْرَضَ عَنْهَا﴾ پديكښې اشاره ده چې دقرآن مجيدپه ايتونوكښې سوچ. فكر اوتدبرنه كول اعراض دې دقرآن نه ﴿وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ﴾ مرادتنه اعمال اوافعال سيئه دې «ابن كثير» اومراد په نسيان سره عدم تفكردې په عاقبت اوانجام ددې كښې اويامراد په نسيان سره ترك توبه ده «قرطبي».

﴿إِنَّا جَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً﴾ داجمله مستانفه ده واقع ده په سوال دسائل كښې ګوياچې سائل سوال اوكړو چې ماعلة الاعراض والنسيان؟ نوجواب اوشوچې علت داعراض لپاره دادې چې ﴿إِنَّا جَعَلْنَا﴾ اكنة جمع ده كنان ده پردوته وئيلې كيږي. اوتنوين لپاره دتعظيم دې، اومراد په دې سره مرتبه د«طبع اوختم» ده اودانتيجه داعراض ددوئ ده لكه څرنګه دزهرخوړونكې باندې نتيجه اواثردمرګ مرتب كيږي نودغه شان په اعراض كوونكې باندې نتيجه دختم اوطبع مرتب كيږي چې دا پمنزله دموت معنوي دې، اوپدې كښې څه دليل دجبريه لپاره نيشته دې او «ان» په ﴿أَن يَفْقَهُوهُ﴾ كښې مصدريه دې ﴿وَفِي آذَانِهِمْ﴾ داعطف دې په ﴿عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ﴾ باندې او ﴿وَقْرًا﴾ وئيلې كيږي بوج ته نومراد تنه دادې چې ددوئ غوږونه په سماع قبول سره حق نه اورې ﴿وَإِن تَدْعُهُمْ﴾ داشرط دې او ﴿فَلَن يَهْتَدُوا﴾ ورله جزاء ده. اوجزاء مرتبه وي په شرط باندې، نوپه ظاهركښې اشكال كيږي چې دعوت دحضور ﷺ خوذريعه دعدم هدايت لپاره نه ګرځيږي اودحضور ﷺ په دعوت الى الاسلام باندې ترتب دانتفاء دايمان اوهدايت نه كيږي نوڅرنګه به

دلته ﴿فَلَن يَهۡتَدُوٓاْ ﴾ مترتب په ماقبل ﴿وَإِن تَدۡعُهُمۡ ﴾ باندې صحيح شي؟ نوجواب دادې چې دا انشاء نده حقيقة بلكه دا اخبار دې دمستقبل نه اوپيشنگوئي ده اوجواب دې دسوال تقديري لپاره چې گويا چې حضور ﷺ ددوئ په ايمان باندې ډېرحرص دوجې نه تپوس اوكړو چې مالی لاادعوهم؟ نو الله ﷻ ورته اوفرمائيل كچرې ته دوئ دعوت هم وركړې خودوئ ته هدايت نه ميلاويږي ځكه چې الله ﷻ ددوئ په زړونو باندې مهرد جباريت تثبت كړيدې.(طبری) اود ﴿إِذًا ﴾ لپاره مضاف اليه جمله مقدره ده يعنی چې پدغه وخت كښې چې كله ددوئ په غوږونو باندې بوج اوغوږخولې شي اوپه زړونو باندې پردې راوستلې شي نوبيادوئ ته هدايت نه ميلاويږي. اوتقيد په ﴿أَبَدًا﴾ سره مبالغه ده په نفي دهدايت كښې دهغوئې نه ﴿وَرَبُّكَ ٱلۡغَفُورُ ﴾ پدې ايت كښې هم زجرذكركيږي هغه خلكوته چې دالله ﷻ دصفت مغفرت اورحمت نه غلط مطلب اخلي اوپه گناهونو باندې جرائت كوي پدې خيال چې الله ﷻ غفور اورحيم دې ليكن داخيال نه كوي چې دبداعمالو په سبب دالله ﷻ قهر اوغضب هم نازليږي چې بيادهغې نه ئې څوك خلاصولې نشي ﴿وَرَبُّكَ ﴾ مبتداء ده او ﴿ٱلۡغَفُورُ ﴾ او ﴿ذُو ٱلرَّحۡمَةِ ﴾ ورله خبربعدالخبردې اوصفت دمغفرت په صيغې دمبالغې سره ذكرشو اوصفت درحمت دمبالغې سره نشوذكروجه داده چې مذكورپدې مقام كښې عدم مواخذه ده فی الحال ددوئ په لوئې لوئې جرمونو باندې اوپدې لوئې جرمونو باندې عدم مواخذه ددوئ مغفرت عظيمه دې اوصفت درحمت دالله ﷻ پدې دنياكښې عام دې پدوئ باندې خوتام ندې ځكه كچرې تام شي پدوئ باندې نودوئ به ايمان راوړې وو اوعذاب نه به بچ شوې وې مكمل. اگرچه رحمت دالله ﷻ ته سبقت حاصل دې په غضب باندې(روح بحواله خفاجی)

﴿لَوۡ يُؤَاخِذُهُم ﴾ دا استشهاد دې لپاره دترك مواخذې اودمغفرت چې داهل مكه دلوئ جرمونو باوجود ددوئ په مواخذه كښې جلتې اوتعجيل الله ﷻ ندې كړې اوكچرې الله ﷻ دوئ سره دمغفرت والامعامله نوې كړې اودوئ ته ئې مهلت نوې وركړې نوپه عذاب كښې به ئې جلتې كړيوه په دنياكښې به ئې فوري عذاب راوستې وو اودوئ ټول به ئې هلاك كړې وو او(ما)په ﴿بِمَا كَسَبُواْ ﴾كښې يامصدريه ده ای بكسبهم اويا موصوله ده موعد صيغه دظرف زمان يعنی وخت

؛وعدي اومرادورنه عذاب دي يادنيوي لكه يوم البدركښ ددوئ قتل اوذلت شوې وو
ي‌نوردغه شان فتوحات شو. اوياتنه دمرګ والا ساعت اووخت مراددي. اوياتنه داخرت
و‌الاعذاب مراد دي.اوبعض مفسرين فرمائي چې موعلصيغه دظرف مكان ده مراد تنه جهنم دي
﴿مِن دُونِهِۦ﴾ ضميرراجع دې "موعد"ته او"موئل" وئيلي كيږي ځائي دپناه ته اوپدي كښ مبالغه
مقصودده په عدم نجات كښ چې دنيوي عذاب نه دېچ كيدلواودخلاصي ګنجائش ممكن وي
ـكن عذاب اخروي نه دېچ كيدلو هيڅ صورت به نوي(اللهم اعذنامنهابفضلك وبمنك امين).
﴿وَتِلْكَ ٱلْقُرَىٰٓ﴾ پدي كښ تخويف دنيوي دې. چې دغه كلي چې تاسو كښ دهغوئي واقعات
مشهوراومعروف دي دخپلو ګناهونو په سبب هلاك شويدي. او﴿وَتِلْكَ﴾ سره اشاره محسوس ته
ده ځكه چې هغوئي خوهلاك شوي ووبلكه معهود فى الذهن ته ده. اوقري نه مخكښ مضاف
مقدردي چې اهل دې اومرادتنه عاد.ثمود.قوم لوط وغيره دي. اوهركله چې ددوئ حالات
اوواقعات پدوئ كښ مشهوراومعروف وو نودكمال معلوميت دوجي نه نازل كړو په منزله
دمحسوس نو ځكه ورته اشاره په﴿وَتِلْكَ﴾ سره ورته اوشوه﴿لَمَّا ظَلَمُواْ﴾ مرادتنه كفردي اومفعول
د﴿ظَلَمُوا﴾حذف كړې شويدې لپاره دتعميم دظلم چې ددوئ ظلم په هرڅيزكښ وو. اوداتعليل
وسبب دې لپاره داهلاك دهغوئي ﴿وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِم﴾مهلك په معني داهلاك سره دې اوياصيغه
دظرف ده اى وقت هلاكهم.او﴿مَّوْعِدًا﴾ هم ياظرف زمان دې يعنى دهرقوم دهلاك كولولپاره يوه
ـنه معلومه ده اويامصدردي په معني دوعدي سره اوپدي كښ اهل مكه ته تعليم وركول دي
دهغوني ته تخويف دې چې څرنګه دغي قومونوظلم اوكړواودخپلو بدو عملونونه واپس
ـنو اللهﷻ ددوئ دهلاكت لپاره يوه ورځ اونيټه مقرره كړي وه چې كله هغه نيټه راغله
و اللهﷻ هلاك كړل دغه شان ستاسونيټه چې راشي نوتاسوبه هم هلاك شئ

وَإِذْ قَالَ مُوسٰى لِفَتٰهُ لَآ أَبْرَحُ حَتّٰى أَبْلُغَ

[1] اويادكړه هغه وخت چې اوئيل موسىٰ خادم خپل ته چې څه به هميشه روان يم ترڅو چې اورسيږم

مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ أَوْ أَمْضِيَ حُقُبًا ﴿۶۰﴾ فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ

ځائ دجمع كيدلو ددوه درياب‌ونو ته اويا به تيره شي ډيره زمانه.پس هركله چې اورسيدل دوئ دواړه ځئ دجمع كيدلو

بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوتَهُمَا فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا ﴿۶۱﴾

ددوه درياب‌ونو ته نو هيركړلو دوئ دواړو مهي خپل پس اونيوله (مهي‌ئي) لاره خپله په درياب كښې په شانته د سورنگ.

فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتٰهُ آتِنَا غَدَآءَنَا لَقَدْ

پس هركله چې دوئ تيرشو (دهغې ځائ نه) اوئيل (موسىٰ) خپل خادم ته رواړه مونږته ناشته زمونږه په تحقيق سره

لَقِينَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا ﴿۶۲﴾

رسيدلې دې مونږته ددې سفرنه ستړې والې

﴿وَإِذْ قَالَ مُوسٰى﴾ دا د سورت دريمه حصه شروع كيږي اوپدې كښې هم ديوشبهې جواب دې چې حضرت خضر عليه السلام ته ځني اموزغيبيه خودل ددې علامه ده چې حضرت خضر عليه السلام غيب دان او عالم الغيب وو نو لهذا عالم الغيب صرف الله جل جلاله ذات ته وئيل صحيح نشو .نو ددې جواب اوشو چې حضرت خضر عليه السلام عبد وو لكه چې الله جل جلاله فرمائي ﴿فَوَجَدَا عَبْدًا﴾ او عبد محتاجه وي الله جل جلاله ته او تصرف اختيار ورته نوي حاصل، او هغه ته دځني امورو تكوينيه علم لدنى وركړې شوې وو .او تپول امور خارقه للعادت په حكم دالله جل جلاله سره كړي وو لكه چې هغه خپله اقراركړې ووچې ﴿وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي﴾ او حضور ﷺ فرمائي چې حضرت خضر عليه السلام موسىٰ عليه السلام ته اوفرمائيل چې (انّ لي علما لاينبغي لك ان تعلمه وان لك علما لاينبغي لي ان اعلمه) (الحديث) يعني ماسره داسې علم دې چې هغې زده كړه تاسره مناسب نده او تاسره چې كوم علم دې هغې زدكړه

(1) جواب ازشبهه ثالثه

سره مناسب نده. نوحضرت خضر علیه السلام دخپلي عاجزني اوخني اموزو په باري کښې دالاعلمني اظهارهم اوکړو. بلکه حديث کښې راځي چې کله دوئي په کشتۍ کښې کښناستلونو يو مرغي راغله چې دسمندرنه ئي په خپله خوله کښې اوبه راوغستلې نوحضرت خضر علیه السلام موسى علیه السلام ته وئيل چې والله ماعلمي وعلمك في جنب علم الله الاكمااخذ هذا الطائربمنقاره من البحر الحديث يعني خما اوستاعلم دالله تعالى علم په مقابله کښې دومره دې څومره چې ددې مرغې په خوله کښې اوبونسبت سمندرسره دې. اودا قول دخضر علیه السلام صرف لپاره داقرارعجزوو کنې دبندګنوعلم نسبت دالله تعالى دعلم سره دقطرې اودسمندرهم ندې ځکه چې قطره متناهي ده اوسمندرهم متناهي دې نوهلته دمتناهي نسبت متناهي ته دې اوعلم دالله تعالى غيرمتناهي دې اوعلم دانبياء کرامو متناهي دې نودلته دمتناهي نسبت دغيرمتناهي سره دې

اومراد د ﴿مُوسَىٰ﴾ نه موسى بن عمران بن قاهث بن لاوي بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام دې اومرادپه ﴿لِفَتَىٰهُ﴾ سره دهغه خادم حضرت يوشع بن نون بن افراثيم بن يوسف بن يعقوب علیه السلام دې. اواطلاق په هغه باندې د "فتى" تاديبادې اوددې وجه نه خپل خادم.نوکرياغلام نه فتى وئيل مستحب اومسنون دې لکه حديث کښې راځي چې حضور ﷺ ارشاد اوفرمائيلوچې (لايقل احدكم عبدى ولامتي وليقل فتاى وفتاتي) (مسلم) اوپه ځني رواياتوکښې راځي چې حضرت يوشع علیه السلام دحضرت موسى علیه السلام خوره ئي ووبحر) اوکوم وخت کښې چې دې خادم وو نوهغه وخت کښې ورته نبوت نوو ميلاؤاوبيادحضرت موسى علیه السلام دوفات نه پس ورته نبوت ورکړې شو

**فائده** پدې ايت کښې دليل دې په جواز داستعانت باندې دخادم نه اوپه امورو شرعيه کښې استعانت دغير نه سنت دانبياؤ دې.

﴿لَآ أَبْرَحُ﴾ ابرح دافعال ناقصه نه دې اوخبرئې محذوف دې چې اسيردې اوقرينه په حذف دخبرباندې داقول دالله تعالى دې چې ﴿أَبْلُغَ مَجْمَعَ ٱلْبَحْرَيْنِ﴾ ځکه چې بلوغ مجمع البحرين ته غايه ده اودتقاضا دهغه فعل کوي چې کوم فعل لپاره داغايه ګرځيدليدې نوهغه سيردې اودغه شان قرينه حاليه هم پدې باندې موجوده ده چې دلته اسير مقدردې ځکه چې داحالت دسفروو.مدارك.

اوامام بخاری رحمه الله پدې واقعي باندې باب منعقدکړيدې په کتاب العلم کښې اومقصد ئې دادې

چې علم لپاره خروج اوطلب دعلم لپاره کوشش اومشقت برداشت کول پکاردي اوکه یوځای کښې علم حاصل نشي نوبل ځای ته ورپسې تلل پکاردی اګرچې په سمندرکښې ورپسې سفرکول وي

﴿مَجْمَعَ ٱلْبَحْرَيْنِ﴾ موسیٰ علیه السلام ته دوحې په ذریعې خودلې شوي وه چې کله هغه تپوس اوکړو:

ای رب این؟ اې ربه هغه کوم ځای کښې دې نو الله جل جلاله ورته اوفرمائیل چې بمجمع البحرین یعنی په مجمع البحرین کښې دې مجمع ظرف مکان صیغه ده یعنی ددوه بحرونو میلاودو والا ځای اوپه تعیین دمجمع البحرین کښې ډیراقوال راغلیدي منجمله دهغې نه دادی چې(۱) بعض فرمائی مراد ددینه بحرفارس اوبحرروم دمیلاویدو والاځای دې. داقول دحضرت قتادة رحمه الله نه مروي دې اوددې قول په اعتبارمراد به دمجمع نه قرب اتصال وي ځکه چې بحیره فارس اوروم یوبل سره میلاویږي نه بلکه قریب تیریږي(۲) بعض فرمائی چې دامقام په خرطوم(سوډان)کښې واقع دې چې هلته ددریائې نیل دوه شاخونه یوبل سره میلاویږي چې نیل ابیض اونیل ازرق دې. اودې احتمال ته ځنې مفسرینو ترجیح ورکړیده چې داواقعه دسفرپه هغه وخت کښې پیښه شوي وه چې کله موسیٰ علیه السلام په مصرکښې قیام فرماوو(۳)بعض فرمائی چې مراد په دې سره مقام طنجه دې اوطنجه په اسپین کښې دجبل الطارق سره قریب واقع دې اودیته مضیق جبل طارق هم وئیلې کیږي اوپه دغې مقام کښې بحرابیض المتوسط اوبحرمحیط اطلسي میلاویږي اوددینه علاوه نوراقوال هم راغلیدي خوچونکه قرآن اوحدیث کښې تعیین ندې کړې شوې اوپه تعیین کښې څه حکم شرعي ندې متعلق نوددې وجه په اثبات دتعیین کښې وخت صرف کول ندې پکار. اونه بالجزم یومقام متعین کیدې شي بلکه مفسرینودآثاراوقرآئن دوجې نه متعدد مقامات بیان کړیدی اوځنې مفسرینودخپل مزاج مطابق ځنواحتمالاتو ته ترجیح ورکړیده. خوبهرحال مقصود دادې چې حضرت موسیٰ علیه السلام دحضرت خضر علیه السلام نه دعلم دحصول لپاره سفراوکړو.

﴿أَوْ أَمْضِيَ حُقُبًا﴾ حقب مفرد دې اوجمع ئې احقب اواحقاب راځي. ابن عباس رضی الله عنه نه دحقب په باري کښې مروي دي چې ددې اطلاق په مطلق زمانې باندې کیږي او حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه اودحضرت ابوهریرة رضی الله عنه فرمائی چې دحقب اطلاق په اتیا(۸۰) کالو باندې کیږي. اودحضرت حسن بصري رحمه الله مروي دي چې حقب اویا(۷۰)کالوباندې اطلاق کیږي. خوغوره خبره داده چې پدې ځای کښې دحقب نه مراد ډیره زمانه ده اوپدیکښې اشاره ده دحضرت موسیٰ علیه السلام عزم ته په حصول دعلم باندې. چې دخپل سفرلپاره ئې دوه غائې ذکرکړي چې یوه بلوغ اورسیدل مجمع

البحرين ته دې اوملاقات دحضرت خضر ﷺ سره دې اويابوه اوږده زمانه سير اوسفر كول دې او ﴿أو﴾ لپاره داحد الامرين دې (روح) اوبعض مفسرين فرمائي چې ﴿أو﴾ په معنې د الا سره دې اوددې نه ورستو ان ناصبه مقدردې اواستثناء مفرغه ده نومقصد دادې چې خه هميشه لپاره به سفركوم حتى چې مجمع البحرين ته اورسيږم مګرداچې دومره سفراوكړم چې مي يقين راشي چې اوس خپل مقصود نشم حاصلولې

**فائده** (۱) ددينه ايت نه معلومه شوه چې دطلب علم لپاره عزم اومشقت برداشت كول ضروري دي اوسفرلپاره دعلم عظيم عبادت دې اګرچې ديوې كلمي لپاره ولې نوي؟ اوددې وجه نه امام شعبي رحمه الله نه مروى دې چې فرمائي (لوان رجلا سافرمن اقصى الشام الى اقصى اليمن ليسمع كلمة مارايت ان سفره ضاع) اوحضرت والدصاحب به دلته اشعارفرمائيلو چې دست ازطلب نه دارم تاكاملم برآيد من رسدبجانان ياجان زتن برآيد

(۲) ددې ايت نه داهم معلوميږي چې داستفادى علمى لپاره څه انتهاء نيشته دې حتى كه انبياء كرام ﷺ دكمال علم باوجودمزيدعلم ته محتاجه وو اودغه شان واقعات دصحابه كرامو ﷺ اودتابعينو نه هم مروى دى. حضرت جابربن عبدالله ﷺ ديوحديث اوريدلولپاره دحضرت عبدالله بن انيس ﷺ ته شام ته تللې وو اوديوې مياشتي سفرئې كړې وو.اودغه شان دحضرت قيس بن كثير رحمه الله نه مروى دې په ترمذى شريف باب فضل العلم كښ چې فرمائي: كنت جالسا مع ابى الدرداء فى مسجد دمشق وجاءه رجل فقال ياابالدرداء انى جئتك من مدينة رسول الله ﷺ لحديث بلغنى انك تحدثه عن رسول الله ﷺ ماجئت لحاجة الخ يعني څه ابوالدرداء ﷺ دمشق په جماعت كښې ناست وم چې يوسړې راغې اواويل يي اې ابوالدرداء! څه دمدينې نه صرف ديوحديث داوريدلودپاره راغلې يم بل هيڅ حاجت مي نشته چې هغه مي هم دي سفر نه مقصودوي.

(۳) ددې ايت نه داهم معلوميږي چې څوك دسفر اراده كوي نوپكارده چې خان له دې رفيق سفراوګوري اويواځي سفردى نكوي.اوپه احاديثوكښ دځني اسفاريواځي كولونه منع هم راغليده

### قصه موسى ﷺ اوخضر ﷺ :

امام بخاري رحمه الله اومسلم رحمه الله دحضرت ابن عباس ﷺ نه نقل كړيدې چې هغه دحضرت ابى بن كعب ﷺ نه روايت نقل كړيدې چې حضور ﷺ اوفرمائيل چې يوځلې حضرت موسى ﷺ بني

اسرائيلو ته وعظ او نصيحت اوكړو حتى كه چې دخلكو دسترګو نه اوښكې رواني شوې او زړونه ئې نرم شولو. يو كس ورته تپوس اوكړو چې دزمكې په مخ ستا نه لوئي عالم بل څوك شته دې؟ نو موسى عليه السلام اوفرمائيل چې نه ،اوداجواب اګرچې فى نفسه صحيح وو خكه چې پيغمبر ﷺ هغه اعلم الناس وي خو چونكه دپيغمبر ﷺ دشان اود مقربينو سره داجواب مناسب نه وو نو دخپل شان سره غير مناسب جواب وركولو دچې نه، دالله جل جلاله دعتاب لاندې راغې. نو ورته اووئيلې شو هاؤستانه لوئي عالم شته دې. موسى عليه السلام تپوس اوكړو چې اې ربه! په كوم ځائې كښې دې؟ نو الله جل جلاله ورته اوفرمائيل چې په مجمع البحرين كښې دې. حضرت موسى عليه السلام هغه ته د رسيدلو لپاره يوه نښاني طلب كړه. نو الله جل جلاله ورته اوفرمائيل چې يو مهې به ټوكرئ كښې دخپل ځان سره واخله او كوم ځائې كښې چې دامهې ژوندې شو نو هلته به هغه موجودوي. حضرت موسى عليه السلام به ټوكرئ كښې مړمهې دځان سره واغستلو او خپل خادم حضرت يوشع عليه السلام ته ئې اوفرمائيل چې كله هم دامهې ژوندې شي نو ماته خبر راكړه اودواړه روان شو حتى كه چې دوئ دواړه يوځائې ته اورسيدلو چې هلته يو كانړې اوشګه اواوبه وې حضرت موسى عليه السلام آرام اوفرمائيلو اواوده شو .نو په دغه دوران كښې اچانك مهې حركت اوكړو اوژوندې شو او سمندر ته ئې توپ كړل اوپه كوم ځائې كښې چې اوبوته ننوتلو نو هلته كښې يوسرنګ غوندې جوړشو. حضرت يوشع عليه السلام دځان سره اوئيل چې حضرت موسى عليه السلام به پخپله راپاسې اوځه ئې نه راويښوم اوچې كله خپله راويښ شي نو بيابه ورته اوايم. كله چې موسى عليه السلام راويښ شو نو يوشع عليه السلام نه واقعه هيره شوې وه اوپه سفرروان شو حتى كه چې دوئ كافي سفراوكړو نو حضرت موسى عليه السلام خپل خادم ته اوفرمائيل چې ﴿ءَاتِنَا غَدَآءَنَا ﴾چې داخوراك راكړه چې اوخورو پدې سفركښې ستومانتياراته ډيره اورسيدله، حضرت موسى عليه السلام تر كوم وخته پورې خپل منزل ته نوو رسيدلې نو ستړې كيدلو نه، اوكله چې په خپل منزل مقصودتيرشولو نو بيا اورته ستومانتيااورسيدله.نو حضرت يوشع عليه السلام ته واقعه رايادده شوله اواوئيل ئې چې كوم كانړې سره مونږه ارام كړې وو نو مهې خو هلته ژوندې شوې وو او ځمانه داخبره هيره شوې وه او شيطان ځمانه هيره كړې وه او مهې په سمندركښې عجيبه لاره هم جوړه كړې وه. نو موسى عليه السلام ورته اوفرمائيل چې داخو زمونږ منزل مقصود وو اودواړه واپس دخپل قدمونو په نښانانو باندې واپس شول حتى كه چې هغې ځائې ته را اورسيدل نو هلته ورته حضرت خضر عليه السلام ميلاؤشو چې خپل ځان ئې په كپړو كښې پټ كړې وو .حضرت موسى عليه السلام ورته سلام اوكړو .نو هغه دخپل مخ نه

څادرلري کړو اواوئيل ئې چې دزمکي نه سلام داځرنګه؟ اوتپوس ئې اوکړو چې ته څوك ئې؟ موسیٰ ﷺ ورته اوفرمائيل چې څه موسیٰ ﷺ يم.هغه تنه تپوس اوکړو چې دبني اسرائيلو الاموسیٰ؟ موسیٰ ﷺ اوفرمائيل هاؤ. هغه بياتپوس اوکړو چې ته ځرنګه راغلي موسیٰ ﷺ ورته اوفرمائيل چې ددې لپاره راغلې يمه چې کوم علم تاته درکړې شوې دې چې هغې نه ماته هم تعليم راکړې. هغه ورته اوفرمائيل چې اې موسیٰ ﷺ ستالپاره داکافي نده چې تورات درسره دې اووحي درته راځي، بيشکه ماته چې کوم علم راکړې شويدې هغې نه ته نشې واقف کيدلې. اوکوم علم چې تاته درکړې شويدې هغه ځما لپاره مناسب ندې اواې موسیٰ ﷺ ستانه به صبراونه کړې شي، نوحضرت موسیٰ ﷺ اوفرمائيلوچې انشاء الله څه به صبرکوم نوهغه ورته اوئيل که چرې ته ځمااتباع کول غواړې نوځمانه په دڅه کارپه باره کښې تپوس نه کوې چې داکاردې ولې داسې اوکړو، ترڅو پورې چې مادرته نوې وئيلې نوره قصه بيا به تفصيل سره په اَيتونو کښې ذکرکيږي.

**فائده** ددې صحيح حديث نه داهم معلومه شوه چې پدې ايت کښې مراد دَ موسیٰ ﷺ نه مشهورموسی بن عمران دې، اوموسیٰ بن ميشابن يوسف بن يعقوب ندې مراد لکه ځرنګه چې قول کړې وو پدې باندې نوف البکالی لکه چې په صحيح حديث کښې دي چې سعيدبن جبير رحمه الله فرمائی چې ماحضرت ابن عباس ﷺ ته عرض اوکړو چې نوف البکالی خيال دادې چې خضر ﷺ ته سفرحضرت موسیٰ بن عمران نووکړې بلکه هغه بل موسی وو نوحضرت ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چې کذب عدوالله اوبيائې دامذکوره حديث بيان کړو،اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه دهغه په باره کښې عدو الله الفاظ استعمالول تغليظا اوتشديدا اوپه حالت دغصې کښې وو،ورنه حضرت نوف البکالی صادق مسلمان اوتابعی وو اوهغه داقول (چې پدې ايت کښې موسیٰ نه مراد موسیٰ بن عمران ندې بلکه بل موسیٰ يعني موسیٰ بن ميشا دې) څکه کړې وو چې دې اول يهودی وو اوديهوديانو په کتابونو کښې اوپه هغوئ کښې دامشهوره وه چې حضرت موسیٰ بن عمران ﷺ حضرت خضر ﷺ ته سفر نوو کړې څکه چې يهوديانوبه داڅېره ډيربعيده کنړه چې حضرت موسیٰ ﷺ بن عمران دعلم حاصلولولپاره په بل چا پسې سفراوکړي نونوف البکالی هم دهغوئې نه متاثره شوې وو اوداقول مذکورئې کړې وو اوکله چې دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه حديث مذکوره واوريد دهغې نه ورستو بيانوف بکالی نه خپل قول باندې اقرارندې راغلې. والله اعلم بالصواب.

﴿فَلَمَّا بَلَغَا ﴾فاء فصيحيه ده ددينه مخکښې کلام محذوف دې ای فذهبا يمشيان الی مجمع البحرين فلمابلغا اومجمع البحرين.نه حسی دريابونه مراددی چې داقول راجح دې اوضميردتثنيې په﴿بَيْنِهِمَا﴾ کښې راجع دې بحرين ته﴿نَسِيَا حُوتَهُمَا ﴾ دامهي الله ﷻ ددوئ لپاره نشانی ګرځولې وه دتعيين دمقام خضر.اونسبت دنسيان دواړوته يعنی موسیٰ ؑ اويوشع ؑ ته شويدې اګرچې نسيان صرف ديوشع نه راغلي ووځکه چې موسیٰ ؑ اوده وو خودانسبت دنسيان په اعتبار دحالت دحوت سره دې اولفظ دحال يعنی مضاف مقدردې ای نسياحال حوتهما اګرچې حالت ددواړو يوبل نه مختلف دې هغه حالت دنسيان چې نسبت حضرت موسیٰ ؑ ته کيږې هغه حالت دتفقد اودتذکردې يعنی هغه نه داهيرشو چې دماهي په باره کښې دحضرت يوشع نه تپوس اوکړو چې ماهي موجوددې اوکه ندې موجود؟ اوحضرت يوشع ؑ نه هغه حالت يادول حضرت موسیٰ ؑ ته چې کوم هغه کتلي وو هيرشو، اوبعض مفسرين فرمائی چې اصل ناسي صرف يوشع وو اونسبت دواړوته ځکه اوشوچې حضرت موسیٰ ؑ دهغه سره مصاحب وو اوکله کله فعل اګرچې ديوکس نه صادرشي خونسبت پوره جماعت ته اوشي دوجې دمصاحبت نه لکه داقول دالله ﷻ دې،يخرج منهما اللؤلؤ والمرجان. اوحالانکه ملغلرې صرف دمالح نه راځي نه دغبرنه . ﴿فَٱتَّخَذَ سَبِيلَهُۥ ﴾فاء فصيحيه ده اوددينه مخکښې جمله مقدره ده تقديردعبارت داسې دې فحيي وسقط فی البحرفاتخذ الخ (روح)مهي ژوندې شو اودالله ﷻ په حکم سره په سمندرکښې ننوتولو اوپه کوم ځائې کښې چې مهي ننوتلې وو نوهلته کښې دسورنګ په شکل يودرې(طاق) جوړشو . اوداماهي مشوې يعنی وريت کړې شوې وو، اوپه څنې رواياتوکښې دې چې ددينه دوئ نيم خوړلې وو اوپدې کښې اشاره ده په قدرت دالله ﷻ ته په بعث بعدالموت باندې. اوپه سبب دژوندې کيدلودماهي څني رواياتوکښې داسې راځي چې وفی اصل الصخرة عين يقال لها الحياة لايصيب من مآئها شئ الاحيی فاصاب الحوت من مآء تلك العين قال فتحرك وانسل من المکتل فدخل البحر بخاری ج۲ کتاب التفسير ص۶۹۰، يعني چينه په ويخ کښې آب حيات چينه وه،چې په هغې به څه شي هم لګيدلو هغه به ژوندې کيدو.نوپه دې مهي باندې هم دَ هغې اوبه لګيدلې نوژوندې شو.ليکن علامه الوسي رحمه الله پدې سبب اعتراض کړيدې چې په رواياتوکښې راځي چې حضرت يوشع ؑ ددې چينې نه اوبه څکلې وې اواودس ئې پرې هم کړې وو اوباوجود

...دي چې هغه خوهمیشه لپاره ژوندې پاتې نشو نولهذا داصحيح نده. (روح ج۱۴ ص۳۱۵) اقول چې په الفاظو دحديث كښې فكركولونه ورستودامذكوره اعتراض ختميدلې شي خكه چې دحديث الفاظ داسي دي لايصيب من مائها شئ الاحی چې كچرته يوحيوان مړوو اوهغه ته دااوبه اورسيدلې نوهغه به ژوندې كيدلو اودامقصد ندې چې كه يوژوندې هغه اوبه اوڅكې نوهغه به همیشه لپاره ژوندې وي(والله اعلم بالصواب) اوسرب په نيزداكثراهل لغت سرنګ ته وئيلې كيږي. نوچې به كوم ځائې كښې ماهې تلې ووپه سمندركښې نوهلته يوسرنګ پشان لاره جوړه شوې وه لكه په صحيح حديث كښې دي، انّ الله تعالى امسك عن الحوت جريع المآء فصارعليه مثل الطاق(بخاری.مسلم)﴿فَلَمَّا جَاوَزَا﴾لماظرفيه دې په معنې دحين سره متضمن دې معنې دشرط ته، او ﴿قَالَ لِفَتَىٰهُ﴾جمله ورله جواب دې، حضرت موسى عليه السلام دمهې ژوندې كيدلو وخت كښې اوده وو. اوحضرت يوشع عليه السلام داواقعه اوكتله خوحضرت موسى عليه السلام پاخول ئې مناسب اونه ګڼړل اوځان سره ئې اوئيل چې ورستوپه ورته واقعه بيان كړم اوكله چې موسى عليه السلام راويخ شونويوشع عليه السلام نه هيرشوې وو، اوداګرچې ډيره عجيبه واقعه وه اودعاموخلكونه داسې واقعې نه هيريږي خوحضرت يوشع عليه السلام چونكه موسى عليه السلام سره به هروخت وو. اوداسې خرق للعادة.واقعات به ئې ډيرليدل نوددې وجه نه ورنه هيرشو. اودوئ يوه شپه اويوه ورځ مزيدسفراوكړو لكه چې په صحيح حديث كښې ذكردې، اودادليل دې په نفې دعلم غيب دحضرت موسى عليه السلام نه﴿ءَاتِنَا غَدَآءَنَا﴾غداء وئيلې كيږي هغه خوراك ته چې دورځې په اوله حصې كښې كيږي اودادليل دې په عجزدحضرت موسى عليه السلام باندې چې محتاج وو خوراك ته﴿لَقَدْ لَقِينَا مِن سَفَرِنَا هَٰذَا﴾مشاراليه د"هذا" هغه سفردې چې دارام نه اودصخرې نه ورستووو. اوپه حديث صحيح كښې راغليدې چې لم يجدموسىٰ شيئامن النصب حتى جاوزالمكان الذى امربه(بخاری. مسلم) دې كښې لطيفه اشاره ده چې كوم سفرلپاره دحصول دمقصدوي نوپه هغې كښې احساس دستړتياكم وي اوكوم سفر چې بلامقصده وي نوپه هغې كښې ستړتيازياته وي(۱) اوددې ايت نه ...هم ثابتيږي چې دتكليف او الم اظهار كول جائزدي اومنافي درضا بالقضاء ندې اونه مخالف ...دتسليم للقضاء سره اوددې وجه نه حضورﷺ هم دحضرت ابراهيم په وفات باندې دتكليف ...ظهار كړې وو چې اوفرمائيل ئې وانابفراقك ياابراهيم لمحزونون.(۲) اودغه شان ددې ايت نه داهم

معلومه شوه چي دلويږي په وخت کښ خوراك غوختل جائزدي ۳ اودغه شان ددي ايت نه داهم
معلومه شوه چي خدمت اغستل دشاګرد اودخادم نه اوځان لپاره توشه سفر اغستل جائزدي
اوخلاف توکل ندي

قَالَ اَرَءَيْتَ اِذْ اَوَيْنَآ اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ وَمَآ اَنْسٰىنِيْهُ

اوئيل هغه خبرشه نه کله چي مونږ ځاي دارام اونيولو ګټ نه نو بيشکه ماهير کړيدي مهي اوندي هيرکړي څه نه هغه

اِلَّا الشَّيْطٰنُ اَنْ اَذْكُرَهٗ ۚ وَاتَّخَذَ سَبِيْلَهٗ فِي الْبَحْرِ ۖ عَجَبًا ۝ قَالَ

مګرشيطان چي يادکړي مي وي هغه تاته، اواونيوله هغه لاره خپله په درياب کښ عجيبه. اوئيل موسى عليه السلام

ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ ۖ فَارْتَدَّا عَلٰٓى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا ۝

داهغه (ځاي) ووچي مونږه طلب کولو پس واپس روان شودواړه په نخود قدمونو خپلو تلاش کول ئي بلوه

فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَآ اٰتَيْنٰهُ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا وَعَلَّمْنٰهُ

پس او موندلودوئ يوبنده دبندګېنوزمونږنه چي ورکړي وو مونږه هغه ته نبوت دخپل طرف نه اوخودلي وومونږه هغه ته

مِنْ لَّدُنَّا عِلْمًا ۝

دخپل طرف نه خاص علم.

«قَالَ أَرَءَيْتَ» داجمله مستانفه ده ګوياچي سائل سوال اوکړو چي کله موسى عليه السلام خوراك طلب کړونويوشع عليه السلام ورته څه اوئيل اومراد په رؤيت سره معرفت تام دي اومشاهده کامله ده اوپه استفهام سره تعجب دموسى عليه السلام مقصود وو اوداسي قسم جمله په عرف کښ دتعجب لپاره استعماليږي. لکه چي مونږه په پښتوکښ وايو اودااوګوره وغيره. اومفعول ددي لپاره محذوف دي دوجي دلالت نه په هغه باندي دمابعد کلام چي هغه نسيان دي اوزمخشري رحمه الله فرمائي چي «أَرَءَيْتَ» په معني د اخبرني سره دي اودااستخبار يعني استفهام دي ديوشع عليه السلام دموسى عليه السلام نه اومقصد دکلام دادي چي کله موسى عليه السلام ديوشع نه ناشته. طلب کړه نوهغه نه دمهي دژوندي کيدلوهغه تېوله واقعه رايادۀ شوه نوحيران اوپريشان شو نودموسى عليه السلام نه ئې

تپوس شروع کړو، چې ته ماپوهه کړه چې په ماباندې داپریشاني اوحیرانګي ولې راغله چې کله مونږ ارام کولوهغه صخرې سره؟ (کشاف)نودصاحب کشاف دقول مطابق فاء ﴿فَإِنِّي نَسِيتُ﴾ کښې سببيه ده ليکن صاحب دبحرعلامه ابوحيان ردکړيدې پدې توجيه باندې اوفرمائي چې کله هم ﴿أَرَءَيْتَ﴾ په معنې داخبرني سره وي نوهلته کښې دوه امرين ضروري دي (۱)يوداچې اسم مستخبرعنه يعنی مستفهم عنه به ددې سره وي. اواسم مستفهم عنه دلته موجودندې. (۲) اودويم داچې هغه جمله چې دهغې نه وروستواستفهام راځي نوهغه به هم موجوده وي اوحالانکه دادواړه شرائط پدې ځائې کښې مفقود وي اوبياداخفش نه قاعده نقل کړيده چې کله هم د ارايت نه وروستو داسې جمله چې مصدّره وي په فاء سره راشي. اواستفهام اواسم منصوب نوې نوارايت به په معنې دتنبه(يعنی خبرشه) يا (أمّا)سره وي. نودلته هم داپه معنې دتنبّه سره دې يا امّاسره دې اوفاء په

﴿فَإِنِّي نَسِيتُ﴾ کښې په جواب ددې کښې راغليده، اوذکردصخرې اوشواودمجمع البحرين اونشو لپاره دزيادت تعيين دمکان ځکه چې مجمع البحرين وسيع مکان وو

﴿فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ﴾ مخکښې دالله ﷻ په کلام کښې نسبت دنسيان دواړوته شوې وو اودلته حضرت يوشع ﷺ نسبت دنسيان صرف خپل ځان ته اوکړو اوموسیٰ ﷺ ئې ځان سره شريک نکړو دوجې دادب نه. اويوشع ﷺ تصريح په حوت باندې اوکړه اوغداء ئې ذکرنکړه لپاره دسروراوخوشحالئ دموسیٰ ﷺ ځکه چې په فقداو ورکيدلودماهي کښې حصول دمقصدوو.

﴿وَمَآ أَنسَىٰنِيهُ﴾ دااعتذاراوعذرپيش کول دې دحضرت يوشع ﷺ اونسيان يوامرطبعي دې خوځنې امورطبيعه منسوب کيږي شيطان ته ځکه چې شيطان سبب ګرځي دصدوردهغې لپاره لکه تثاؤب (ارګې کول) نسبت شويدې شيطان ته ځکه چې په انسان باندې غفلت راولي اودهغې په نتيجه کښې تثاؤب راځي نودغه شان دلته هم نسبت دنسيان شيطان ته شويدې سببا اودغه شان نسبت دحيض اواستحاضې رکض دشيطان ته هم تسببيا اواستعارة دې کمصرح به المحدثون .امام رازي رحمه الله فرمائي چې پدې نسيان کښې الله ﷻ تنبيه تعليم ورکول مقصود وو حضرت موسیٰ ﷺ ته. ځکه چې موسیٰ ﷺ خپل علم لوئې کنړلې وو نو الله ﷻ دهغه دخادم دژبې نه علم بديهي زائل کړو لپاره دتعليم ددې چې علم بغيردتوفيق اوتعليم دالله ﷻ

نه نه حاصليږي اوبغير د حفاظت د الله جل جلاله نه په ذهن او حافظې کښې نه حاصليږي. او ﴿أَنْ أَذْكُرَهُ﴾ بدل اشتمال دې د ضمير بارز د (انسنيه) نه (روح).

﴿وَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ﴾ غوره قول دادې چې دا جمله د تتمه د کلام د يوشع عليه السلام نه ده او ضمير د ﴿وَاتَّخَذَ﴾ راجع دې حوت (ماهي) ته اوبعض مفسرين فرمائي دا کلام د الله جل جلاله دې او د يوشع عليه السلام او د موسى عليه السلام د کلام په مينځ کښې جمله معترضه ده او د دې دواړو توجيهاتو په بناء ﴿عَجَبًا﴾ مفعول ثاني دې د ﴿وَاتَّخَذَ﴾ لپاره اوبعض فرمائي چې د يوشع عليه السلام کلام ﴿فِي الْبَحْرِ﴾ باندې پوره شو. او ﴿عَجَبًا﴾ کلام د حضرت موسى عليه السلام دې او دا مفعول مطلق دې د فعل محذوف عجبت لپاره اى قال عجبت من هذا عجبا (بيضاوي) اوبعض فرمائي چې (عجبا) استيناف دې د يوشع عليه السلام او اصل کلام ئې په ﴿فِي الْبَحْرِ﴾ باندې پوره کړو اوبيائې اوفرمائيل عجبا لهذا الامر (قرطبي).

﴿قَالَ ذَٰلِكَ﴾ مشار اليه د ذلك واقعه د ژوندي کيدلو د مهي او په سمندر کښې تلل دي او ﴿نَبْغِ﴾ په اصل کښې نبغيه دې خو عائد د موصول محذوف دې يعني زمونږ د منزل مقصود علامت خو دغه وو.

او ﴿قَصَصًا﴾ يا مفعول مطلق دې د فعل محذوف لپاره اى يقصان قصصا او يا مصدر په معني د اسم فاعل سره حال دې د ﴿فَارْتَدَّا﴾ د ضمير نه اى فارتدا حال کونهم مقتصين على اثارهما او په دې کښې اشاره ده چې استاذ ده دې د خپلو شاګردانو عذر قبلولو او هغوئ سره دې د نرمئ معامله کوي

﴿فَوَجَدَا عَبْدًا﴾ حضرت موسى عليه السلام او يوشع عليه السلام دواړه واپس لاړل مجمع البحرين ته او رسيدل نو حضرت خضر عليه السلام تکيه لګولي په کپړه کښې ئې ځان رانغختلې وو. موسى عليه السلام پرې سلام اوکړو نو هغه سلام جواب ورکړو او حيران شو او وئې ويل انى بارضك السلام؟ چې دا طريقه د سلام د زمکې نه څنګه اوشوله ځکه چې په هغې ځائ کښې د سلام طريقه دا نوه. نو موسى عليه السلام خپل تعارف اوکړو. او د لته د خضر عليه السلام لپاره وصف عبديت ذکر شو لو پدې کښې

اشاره ده چې هغه بنده وو اومحتاجه وو الله ﷻ ته. اوتنوين په ﴿عَبۡدٗا﴾ كښې لپاره دتعظيم دې اوپه نوم دحضرت خضر عليه السلام كښې اختلاف دې امام مجاهد رحمه الله نه منقول دې چې دهغه نوم اليسع بن ملكان بن فالغ بن عابربن شالخ بن ارفحشذبن سام بن نوح عليه السلام دې اومقاتل رحمه الله نه مروي دې چې نوم دخضر عليه السلام بليابن ملكان الخ دې اوبعضودبليا په ځائې ايليا وئيلې دې اودكعب رحمه الله نه مروي دې چې دهغه نوم خضرون بن عماييل وواوداولاد داسحاق عليه السلام نه وو(عمدة القاري) اوددېنه علاوه نورهم ډيراقوال پكښې راغليدي چې حافظ ابن حجر اوعلامه عيني په تفصيل سره ذكركړيدى اوخضرلقب دهغه وو اوده ته خضرددې وجه نه وئيلې كيږي چې دې دزمكي په كومې حصي باندې كيناستلو اوبيابه پاسيدلو نو هغه ځائې به شين كيدلو ،لكه چې په حديث صحيح كښې ذكردې لانه جلس على فروة بيضآء فاذاهى تهتز من خلفه خضراء(بخارى)
اوبعض فرمائى چې چهره مباركه ئې تروتازه اوخائسته ده اودزماني په پيدائش كښې هم ډيراقوال دى څوك وائې چې دحضرت ادم عليه السلام صلبي اولادنه وو اوڅوك وائې چې اولاد ديافث نه وو اوذوالقرنين وزيروو څوك وائې چې دحضرت ابراهيم عليه السلام په عهدكښې پيداشوي وو اوداهل بابل كښې دهغه سړى بچې وو چې په حضرت ابراهيم عليه السلام باندې ايمان راوړې وو اودهغه سره ئې هجرت كړې وو اوڅوك وائې چې دحضرت الياس عليه السلام ورور وو اوددې علاوه نورهم ډيراقوال دى ليكن حقه خبره داده چې داټول محض احتمالات دى اوپه تعيين باندې څه دليل يقيني نيشته اونه ورسره څه حكم شرعي متعلق دې.

دغه شان دحضرت خضر عليه السلام په نبوت كښې هم اختلاف دې چې دې نبي وو كه صرف ولي؟ نوراجع مسلك دادې چې حضرت خضر عليه السلام نبى وو.(۱)ځكه چې دده په باري كښې الله ﷻ فرمائى ﴿ءَاتَيۡنَٰهُ رَحۡمَةٗ﴾اورحمت اطلاق په نبوت باندې په ډيرومواضعو كښې شويدې لكه اهم يقسمون رحمة ربّك(الزخرف:۳۲) وماكنت ترجو ان يّلقىٰ اليك الكتٰب الّارحمة من ربك(القصص: ۸۶)نوپدې مواضعوكښې مراد درحمت نه نبوت دې اګرچې هررحمت نبوت نوي اوهرنبوت رحمت وي(۲)بل ددې وجه نه چې دهغه په باري كښې الله ﷻ فرمائى ﴿وَعَلَّمۡنَٰهُ مِن لَّدُنَّا عِلۡمٗا﴾ چې دهغه علم بغيردواسطي دبشرنه دې. اوكم علم چې بغيردواسطي دبشرنه وي هغه وحي وي اوهغه كس نبي وي، اګرچې علوم ضروريه هم بغيردواسطي دبشرنه وي. خوحضرت

خضر علیه السلام نه مطلقا علوم که بدیهي دي یانظري دنیوي دي اوکه دیني ټول ورته بغیرد واسطي دبشرنه الله جل جلاله ورته ورکړیدي اوداصفت دنبي وي.(۳) بل ددې وجه نه چې موسی علیه السلام ده ته عرض اوکړو چې

﴿هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰٓ أَن تُعَلِّمَنِ﴾ اونبي اورسول دغیرنبي اوغیررسول نه علم نه حاصله وي اونه ورته په علم کښې محتاجه وي اونه غیرنبي دنبي نه اوچتیدلې شي (۴) بل ددې وجه نه چې حضرت خضر علیه السلام دخپلوټولوامورو په باري کښې دااوفرمائیلوچې ﴿ وَمَا فَعَلْتُهُۥ عَنْ أَمْرِى ﴾چې داامورثلاثه کشتئ خرابول، قتل دنفس، دیوال صحیح کول صرف اوصرف په حکم دالله جل جلاله سره وواودخپل ځان نه مې ندې کړې اونه دیونبي اورسول پواسطي سره مې کړیدي، اودومره یقیني اوجزمي خبره اوکار صرف نبي کولې شي اوبل څوك نشي کولې.(۵) اودغه شان دهغه اظهارترفع په موسی علیه السلام باندې اودموسی علیه السلام اظهارتواضع دهغه په مخکښې هم دلالت کوي چې هغه نبي دې لکه الله جل جلاله فرمائي ﴿وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَىٰ مَا لَمْ تُحِطْ بِهِۦ خُبْرًا﴾ اوموسی علیه السلام ورته عرض اوکړو

﴿وَلَآ أَعْصِى لَكَ أَمْرًا﴾ (۶) اودغه شان تنوین په "عبدا" کښې اواضافت د "عباد" ضمیرمتکلم ته هم مؤیدات دنبوت دهغه لپاره دي

اوحافظ ابن حجر رحمه الله روایت نقل کړیدې چې کله موسی علیه السلام په خضر علیه السلام باندې سلام واچولو نوهغه ورته جواب داسې ورکړوچې وعلیك السلام یاموسیٰ، نوموسی علیه السلام نه تپوس اوکړو چې تاته څنګه پته اولګیده چې څه موسی علیه السلام یم ؟ نوحضرت خضر علیه السلام ورته جواب ورکړو چې ادراني بک الذي ادراک بي(فتح الباری ج۸ ص ۴۱۷) داروایت اګرچې معارض دې دنورو صحیحوروایاتوسره خوکچرې تطبیق اوکړې شي اوتاویل اوکړې شي نوداهم صریح دلیل دې په نبوت دهغه باندې

اوبعض فرمائي چې حضرت خضر علیه السلام ولي وو.اوپه رحمت سره رزق حلال عدم احتیاج مخلوقاتوته. اوطول حیاة وغیره اراده کوي اوپه ﴿وَعَلَّمْنَٰهُ﴾سره علم لدنی چې حاصلیږي بغیرد کسب نه اویوکرامت وي هغه مرادکوي اودغه شان دموسی علیه السلام په هغه پسې تلل اودهغه نه دزده کړې کوشش کول اګرچه دهغه په فضیلت باندې دلالت کوي خودا فضیلت جزئي دې

خوليکن راجحه خبره داده چې هغه نبي وو اوداتاويلات مذکوره تکلفات دی اويوضعيف قول دماوردی نه دامنقول دې چې دې فرشته وه ليکن داضعيف بلکه اضعف دې

اوځني خلکو دېرپه جراءت سره داخبره کړيده چې حضرت خضر عليه السلام ولي وو اومرتبه دولي اوچته ده دمرتبې دنبي نه بلکه بعض جهالوداهم وئيلي دي چې دااحکام شرعيه صرف دانبياؤ اودعاموخلکولپاره دی اوهرچه اولياء اواهل الخصوص دی هغه محتاجه ندي نصوصوته.ځکه چې دهغوئي قلوب داکدارونه پاك وي.اوهغوئي ته براه راست علوم الهيه منکشف اوواضح وي اواستدلال ئې کړيدې پدې واقعي سره چې حضرت موسی عليه السلام نبي وو اوخضر عليه السلام ولي وو اونبي په ولي پسې سفرکړيدې اوهغه واقعات چه حضرت خضر عليه السلام په خپل سفرکښ کړي وو چه په ظاهرکښ مخالف وو دشريعت نه اوحضرت موسی عليه السلام برداشت نه کړلوخوحضرت خضر عليه السلام لپاره جائزوو ليکن امام قرطبی رحمه الله فرمائی چه داسي قول کول زندقيت اوکفردې

قال شيخنا رحمه الله وهذاالقول زندقة وکفريقتل قائله ولايستتاب. يعني داسي عقيدې ساتونکې زنديق اوکافردی اوداسي کلام کوونکې به قتل کولې شي، اودهغه توبه هم نه قبليږي(قرطبی ج۵ ص۳۳۴). اوتفسير مدارك ليکي چه تفضيل ثابتول دولي په نبی باندې اوقياس پدې واقعي باندې کول قياس مع الفارق دې ځکه چه حضرت خضر عليه السلام نبی وو، پدې قول کول چه ولي افضل دې دنبی نه کفردې(مدارك ج۲)والتفصيل فی القرطبی

اودغه شان اختلاف په حيات دخضر عليه السلام کښ دې چه دې اوس هم ژوندې دې اوکه وفات دې؟؟ مسلك دصوفياءو دادې چه هغه اوس هم ژوندې دې اوخوراك اوڅښاك کوي دنيکانو، صلحاؤسره ملاقاتونه هم کوي اوديته ميلان کړيدې امام قرطبی رحمه الله هم حافظ ابن حجر رحمه الله په مختلفواسانيدوسره دحضرت انس رضی الله عنه نه روايت نقل کړيدې اودعمروبن عوف عن ابيه عن جده سره نقل کړيدی چې په هغې کښ دخضر عليه السلام سره دهغوئ دمکالمي وغيره تذکره ده ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله په هغې ټولواسانيدوباندې ردکړيدې بلکه ځني پکښ موضوعی دي(الاصابة ج۲ ص۲۵۸ حرف الخآء)

اودغه شان حديث دتعزيت چه منقول دې دحضرت انس رضی الله عنه نه چه نقل کړيدې امام بيهقي وغيره چه فرمائی .لماقبض رسول الله ﷺ احدق به اصحابه فبکوا حوله واجتمعوا فدخل رجل اصهب اللحية جسيم صبيح فتخطی رقابهم وبکی ثم التفت اليهم فقال ان فی الله عزآء من کل مصيبة وعوضا من کل فائت وخلفامن کل هالك فالی الله فانيبوا واليه فارغبوا فانما المصاب من لم يجبرالثواب وانصرف. فقال

بعضهم لبعض تعرفون الرجل؟ فقال ابوبکرو علی نعم هذا اخورسول الله ﷺ الخفی. اوداحدیث په مختلفو اسانیدو سره مروی دي حافظ ابن حجر رحمه الله په تفصیل سره ټول نقل کړیدي خو هغه هم ضعیف دي، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی وجمیع ماورد فی حیاته لایصح منه شیئ(الاصابة ج۲ ص۲۵۳) اودغه شان حافظ رحمه الله ډیرو صلحاؤ واقعات ملاقات دخضر سره هم نقل کړیدی

اواکثرو محدثینو او جمهورمسلك دادي چه حضرت خضر علیه السلام وفات شویدي اودټولونه قوي اومضبوط دلیل ددوئ هغه حدیث دي چي نقل کړیدي امام بخاری وغیره په کتاب العلم باب السمرفی العلم کښ دحضرت ابن عمر رضی الله عنه نه فرمائی. صلی لنارسول الله ﷺ العشآء فی اخرحیاته فلماسلم قام فقال ارایتکم لیلتکم هذه فان علی راس مائة سنة منها لایبقی ممن هوعلی ظهرالارض احد(بخاری) یعني دشپي نه پس چي ټل کاله پوره شي نوپه مخ زمکه چي څومره ژوندي دي دې کښي به یوهم نوي پاتي،اودغه شان استدلال کوي په آیت دقرآن سره چي الله تعالی فرمائی،وماجعلنالبشرمن قبلك الخلد(الانبیاء۳۴)اودغه شان استدلال کوي په ایت دسورة آل عمران سره"واذ اخذالله میثاق النبین لمااتیتکم من کتاب وحکمة الخ چي دهرنبي نه الله تعالی وعده اغستي ده کچري آخرالزمان ﷺ ستاپه زمانه کښ راغې اوته ژوندې وې نوته به دهغه اتباع کوي اودهغه نصرت اوامداد به کوي نوکچري خضر علیه السلام ژوندې وې نوپکارده چي حضور ﷺ ته دبیعت لپاره حاضرشوې وې، اودهغه سره په غزواتوکښ حاضرشوې وې اودهغه نصرت اوامداد ئي کړې وې،حالانکه دهغه بیعت اونصرت اوشرکت په غزواتوکښ ندې منقول،اوپدې باب کښ سخت رد امام ابن تیمیه رحمه الله اوقاضي ابویعلی رحمه الله کړیدې اوپه مختلفودلائلو سره ئې ثابته کړیده چې خضر علیه السلام وفات دې اوبعیده نده هغه خبره اوحل چې منقول دې دبعض صلحاؤ اسلافو اواکابرونه، چې حضرت خضر علیه السلام اوالیاس علیه السلام دواړه وفات دې خودالله تعالی دطرف نه ددوئ روحونوته داسي قوت اوطاقت ورکړې شویدې چې دوئ لباس دجسم اچوې اودخلکوسره ملاقات اوخبري کوي،اودابوروحاني قوت دې چې الله تعالی خپلوبعضونیکانوبندګانوته ورکړې لکه واقعه دتکلم بعدالموت دربیع بن خراش رحمه الله یادمسعودبن حراش رحمه الله شوه(طبقات ابن سعد ،تهذیب الکمال،عیني)

﴿ءَاتَيۡنَٰهُ رَحۡمَةً﴾ مرادپه رحمت سره نبوت دي﴿ وَعَلَّمۡنَٰهُ مِن لَّدُنَّا عِلۡمٗا﴾ مرادپه علماسره مخصوص علم دې چې دهغې په کنه باندې څوك نه پوهیږي چې هغه علم الغیوب اواخباردي

دمغيباتونه يعنی وحې مراده ده، اوتخصيص فهم کيږي دلفظ د﴿لَّدُنَّا﴾نه هم اودتقديم د﴿لَّدُنَّا﴾په ﴿عِلْمًا﴾باندې دددينه هم.

| |
|---|
| قَالَ لَهٗ مُوْسٰى هَلْ اَتَّبِعُكَ عَلٰٓى اَنْ تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ |
| اوئيل هغه ته موسى ﷺ چې آيا اجازت دې چې څه تابع شم ستا په دې شرط چې تعليم به راکوي ته ماته دهغې نه چې خودلې شويدی |
| رُشْدًا ﴿۶۶﴾ قَالَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿۶۷﴾ وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلٰى مَا |
| تاته دهدايت خبرې، خضر ﷺ اوئيل بيشکه ته طاقت نه لرې څماسره دصبر کولو. اوته به څرنګه صبراوکړې په هغې باندې |
| لَمْ تُحِطْ بِهٖ خُبْرًا ﴿۶۸﴾ قَالَ سَتَجِدُنِيْٓ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ |
| چې احاطه پرې نوې کړې تاپه اعتباردعلم سره، موسى ﷺ اوئيل چې زرده اوبه مومې ته ما لره که اوغواړي الله ﷻ |
| صَابِرًا وَّلَآ اَعْصِيْ لَكَ اَمْرًا ﴿۶۹﴾ قَالَ فَاِنِ اتَّبَعْتَنِيْ فَلَا تَسْئَلْنِيْ |
| صبرکونکې اونافرمانې به نه کوم ستادهيڅ حکم، خضر ﷺ اوئيل پس که ته څمااتباع کوې نو تپوس مه کوه څمانه |
| عَنْ شَيْءٍ حَتّٰٓى اُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا ﴿۷۰﴾ |
| دهيڅ څيزپه باري کښې تر دې چې څه په خپله بيان کړم تاته دهغې ذکر(حکمت) |

﴿قَالَ لَهٗ مُوسَىٰ ﴾دا استيناف بياني دې چې ګويا چې سائل سوال کولو چې ددوئ په مينځ کښې څه خبرې اوشولې؟ نوجواب اوشوچې قال الخ اوپد يکښې اشاره ده چې طالب ته پکاردې چې داستاد نه دې اجازت طلب کوي اودهغه اتباع دِکوي

﴿عَلَىٰٓ أَن تُعَلِّمَنِ ﴾على لپاره د شرط دې يعنی څه ستااتباع بشرط ددې چې ته به ماته تعليم راکوې کولې شم؟ اوداصوليانوقانون وضع کړيدې چې على کله کله په داسې کلام کښې مستعمل کيږي چې مابعد دماقبل لپاره شرط وي لکه يبايعنك على ان لايشركن الخ اووضع د على حقيقة دشرط لپاره ده اوکنه ده؟ نوپد يکښې دنحويانو اوفقهاؤ اختلاف دې

﴿مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا﴾من تبعیضیه دې اودلته مجاز فی الحذف دې ای علما ذارشد اومرادپدې سره هغه علم دې چې انسان پرې هدایت مومي اوخیرته رسیدل پرې کیږي اوپدیکښې اشاره ده چې انسان دې طلب دعلم په هروخت کښې کوي اګرچه دې دعلم یولوئې حدته رسیدلې وي اودغه شان پدې کښې اشاره ده چې انسان دې دځان نه اعلم ته اظهارتواضع کوي اوکه څوك اشکال اوکړي چې رسول خواعلم وي په خپله زمانه کښې نوڅرنګه به دې دبل چانه علم حاصل کړي، نوعلامه زمخشري رحمه الله ددینه جواب کړیدې چې نبی اورسول اعلم وي په نسبت سره غیرنبی ته اونبی دبل نبی نه علم حاصلولې شي اوعلامه آلوسي رحمه الله فرمائی چې نبی اورسول اعلم وي خوپه عقائداوهغه امورو کښې چې هغه دده دشریعت سره متعلق وي نه مطلقا. اوددې وجه نه حضورﷺ صحابوؓ ته ته ارشاداوفرمائیلوچې انتم اعلم باموردنیاکم.

## فائده: موسیٰ علیه السلام اعلم وو یاخضر؟؟

ظاهردنص نه معلومیږي چې حضرت خضر علیه السلام اعلم وو ، اودغه شان دحدیث دالفاظونه په ظاهرکښې داسې معلومیږي چې «بلی عبدنا خضریا ان لی عبدا بمجمع البحرین هواعلم منك» دې،ددې وجه نه بعضواهل علم ذهاب کړیدې اعلمیت دخضرته اوځنې اهل علم ذهاب کړیدې اعلمیت دموسیٰ علیه السلام ته،لیکن راجحه خبره پدیکښې هغه ده چې صاحب دروح المعانی کړیده چې حضرت موسیٰ علیه السلام اعلم وو دخضر علیه السلام نه من وجه اوحضرت خضر علیه السلام اعلم وو دموسیٰ علیه السلام ه من وجه، حضرت موسیٰ علیه السلام ته علم حقیقت چې مسمي دې په علم باطن اوعلم لدني سره حاصل وو خولیکن حضرت خضر علیه السلام ورنه پدې اعلم وو. اوحضرت خضر علیه السلام نه علم شریعت چې مسمي کیږي په علم ظاهرسره حاصل وولیکن حضرت موسیٰ علیه السلام ورنه پدې کښې اعلم وو. نوهریودبل نه من وجه اعلم وو، اودبلی عبدناخضر،مقصدداندې چې هغه من کل الوجوه اعلم دې بلکه مرادتنه په بعض علوموکښې اعلمیت دې خوهرکله چې داکلام «بلی عبدنا اویاان لی عبدا الخ» خارج وو په مخرج دعتاب اوتادیب کښې نوددې وجه نه ظاهراً په عموم کښې پریخودلې شو. اوداخبره علامه ابن حاجب په امالی القرآن کښې دومانریهم من آیة الاهي اکبرمن اختهاپه ضمن کښې کړیده چې دظاهرداپت نه معلومیږي چې هره روستوورکیدونکې معجزه به

دسابقې معجزې نه به اکبره وه اوحالانکه خنې سابقه معجزې به روستونومعجزونه به اکبرې وي نوهغه فرمائی چې اکبریت من وجه مراددې.چې هره یوه معجزه به دبلې نه به من وجه اکبره وه

﴿قَالَ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ﴾حضرت خضر عليه السلام ډیراوکدکلام ذکرکړو. انَّ حرف تحقیق ئې ذکرکړو. لنْ ئې راوړو چې هغه نفي دتاکیدلپاره راځي.نفي داستطاعت ئې اوکړه او صبرا نکره راوړې شوه چې عموم فائده کوي. اودادومره مؤکدکلام حضرت خضر عليه السلام ځکه ذکرکړوچې هغه ته علم وو پدې چې حضرت موسی عليه السلام مرسل اونبی دې صاحب شریعت اوکتاب دې نوشان دنبی دادې چې هغه په ظاهرکښ خلاف شریعت کاراوګورې نوهغه ئې نه شي برداشت کولې.

﴿وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَىٰ﴾داتعلیل دې دماقبل لپاره چې انسان دکوم څیزعلم نه لري نوپه هغې باندې صبر هم نشي کولې. او﴿خُبْرًا﴾مفعول مطلق دې د﴿لَمْ تُحِطْ﴾ لپاره من غیرلفظه اویاتمیز محول اومنقول عن الفاعل دې اي ممالم يحط به خبرك‌بحر»﴿قَالَ سَتَجِدُنِيٓ﴾داوعده ده دموسی عليه السلام چې معلقه ئ کړه په مشیت دالله تعالی پوري اودا انشاء الله دابطال دکلام لپاره ندې بلکه اظهارتواضع لپاره دې چې ځماعزم خودصبردې خوکله کله انسان دیوشي عزم اوکړي اوهغه مراد دالله تعالی نوي نوانسان خپل عزم پوره نه کړې شي

﴿وَلَآ أَعْصِي لَكَ أَمْرًا﴾،داتخصیص بعدالتعمیم دې ځکه چې مفهوم دصبرځرنګه شامل دې صبرعلی الطاعات اوصبرعلی الشدائدته فدغه شان شامل دې صبرمن العصیان ته هم نوداتاکیدلپاره ذکرشو اوپدیکښ اشاره ده چې شاګردلپاره دخپل استاذنافرمانې کول بلاامرشرعي جائزندي.

**فائده** دااشکال نه واردیږي چې حضرت موسی عليه السلام دنافرمانې نه کولووعده اوکړه اوبیائې صبراونکړو اووعده ئې پوره نکړه اوخلاف وعده کول خوګناه دې؟ځکه چې وعده خلافي هغې ته وئیلې کیږي چې وعدي کولوپه وخت کښ دنه پوره کولونیت ئې کړې وي، اوورستوورته دپوره کیدلونه څه شرعي مانع هم نوي موجود نودیته خلاف عهداووعده وئیلې کیږي، اوکچري دپوره کولوعزم ئې وو خوڅه مانع دوجي نه پوره نکړې شوه نوداګناه نده،اویاجواب دادې چې خلف وعده کښ شرط دادې چې التزام دامرواجب وي اوپه ترک سره دې بل چاته ضرر اونقصان

رسی. او کچرته التزام دامرواجب نوو او په ترك سره ئې بل کس ته نقصان نه رسیدلو نوبیا هغې ته خلف وعد نه وئیلې کیږي لکه څرنګه چې دلته دي

﴿قَالَ فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي﴾ دا شرائط دي دحضرت خضر علیه السلام دطرف نه او پدیکښې اشاره ده چې استاذ په شاګرد باندې مناسب شرطونه لګولې شي، او فاء ﴿فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي﴾ کښې لپاره دتفریع د په شرط مقدرباندې تقدیرد عبارت داسې دې ان عزمت علی الصبرفان اتبعتنی الخ ﴿فَلَا تَسْأَلْنِي﴾ فاء جزائیه ده او پدیکښې ادب دې دشاګرد لپاره چې دخبرې په مینځ کښې را دانګل ندې پکار ﴿حَتَّىٰ أُحْدِثَ﴾ حتی لپاره دغائې دې، ندې لپاره دتعلیل یعنی ترڅو پورې چې ماتاته دهغې حکمت نوې بیان کړې په خپله نو ته دهغې نه مخکښې تپوس مه کوه. او بعض مفسرین فرمائی چې دا لپاره دتابید دترك سوال لپاره دې چې ته بالکل سواله مه کوه حکمت دهغې کار څه به تاته پخپله بیانه ووم. او بعض فرمائی چې حتی تعلیلیه ده یعنی ته تپوسونه مه کوه څکه چې حکمت به تاته پخپله ذکر کړم. لیکن اول قول غوره دې.

| فَانْطَلَقَا ـ حَتّٰى إِذَا رَكِبَا فِي السَّفِينَةِ خَرَقَهَا ط قَالَ |
|---|
| [1] پس روان شودواړه تردې چې دواړه سواره شو په کشتئ کښې نوسوري کړه خضر علیه السلام کشتئ، موسی علیه السلام اوئیل |
| أَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا ج لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا ۝ قَالَ |
| آیا سورئ کړه تا کشتئ چې غرق کړې سواره ددې په تحقیق سره راتلل دې او کړل تا کار دیر لوئ ته. اوئیل خضر علیه السلام |
| أَلَمْ أَقُلْ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ۝ قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِي بِمَا |
| آیا نو وئیلی ماتاته چې بیشکه ته هرګز طاقت نه لرې څما سره دصبر موسی علیه السلام اوئیل مه نیسه ته ما لره په هغې |

[1] سفر وواقعه اولی.

| نَسِيْتُ وَلَا تُرْهِقْنِيْ مِنْ اَمْرِيْ عُسْرًا ۞ فَانْطَلَقَا ٭ حَتّٰى اِذَا لَقِيَا غُلٰمًا |
|---|
| چې ماپه هیره سره اوکړو اومه اچوه په ماباندې دکار ځمانه تنګسيا [2] پس روان شو دواړه ترڅو چې مخامخ شول يو هلك نه |
| فَقَتَلَهٗ ۙ قَالَ اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً ۢ بِغَيْرِ نَفْسٍ |
| نوقتل ئې كړوهغه(خضر العَلِيْهِ) اوئيل موسىٰ العَلِيْهِ آياقتل كړوتايونفس پاك بې دبدلې دبل نفس نه |
| لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُّكْرًا ۞ |
| په تحقيق سره تاراتلل اوكړو كارډيربدته |

﴿فَانْطَلَقَا﴾دادهغوئې دسفرعلمي ذكردې اواوله واقعه ده دهغوئې دسفرچې دملاقات اوخبرونه پس دوئ په ساحل دسمندرباندې،سفرشروع كړو نويوه كشتئ راغله نودوئ ورسره خبره اوكړه دسوريدلو،نوهغوئې خضرالعَلِيْهِ اوپيژندلونوبغيردكرائې اغستلونه ئې سواركړل،نوحضرت خضرالعَلِيْهِ دكشتئ نه يوه تخته اوويستله اوپدې ځائې كښې صيغه دتثنيئ استعمال شويده اګرچې دوئ درې(۳)كسان ووخوچونكه حضرت يوشع العَلِيْهِ تابع وو نوددې وجه نه دهغه ذكراستقلالا اونشواوپديكښې اشاره ده چې شاګرد دې داكابروپه مخكښې خاموشي اختياره وي اوخپل ځان دى اصل نه ګنړې اوبعض مفسرين فرمائي چې حضرت موسىٰ العَلِيْهِ حضرت يوشع العَلِيْهِ واپس اوليږودحضرت هارون العَلِيْهِ دمعاونت اوامدادلپاره،خوداقول ضعيف دې اوقول بلادليل دې ځكه چې په ځني رواياتوكښې راځي چې كله موسىٰ العَلِيْهِ په حضرت خضرالعَلِيْهِ باندې اعتراض اوكړو نوحضرت يوشع العَلِيْهِ ورته خپل عهدچې دخضرالعَلِيْهِ سره ئې كړې وويادكړو(فتح الباري) اودغه شان په صحيح حديث كښې صيغې دجمعي استعمال شويدې چې داقول دحضورﷺ دې فمرت سفينة فكلموهم ان يحملوهم فعرفوا الخضر فحملوه بغير نول(بخارى ومسلم).

اوځني مفسرينو پدې ځائې كښې اسرائيليات ذكركړيدې اوليكلي دې چې حضرت يوشع العَلِيْهِ دحضرت موسىٰ العَلِيْهِ داجازت نه بغيرآب حيات ځكلي وې نوحضرت موسىٰ العَلِيْهِ

---

[2] سفرو واقعه دوم.

دغصې نه سمندرته اوغورځولو اودقيامت پورې به دسمندرپه چپو کښې ژوندې وي داقول مخالف ،
دې دنصوصونه اوموضوعي اوغلط دې اوالف لام په ﴿ٱلسَّفِينَةِ﴾ کښې لپاره دتعريف جنسي دې.
﴿خَرَقَهَا﴾ کله چې کشتئ دسمندر مينځ ته شوه نوحضرت خضر عليه السلام په تيرسره دکشتئ نه تخته
ماته کړه خودحضرت خضر عليه السلام معجزه وه چې کشتئ ته اوبه نه راختلې ﴿لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا﴾ حضرت
موسیٰ ته داکاردخضر عليه السلام په ظاهرکښې غيرشرعي ښکاره شونوځکه ئې پرې اعتراض اوکړو
چې هم حملونابغيرنول الخ يعني دوئ مونږکرايه هم وانخسته اوته ورسره داسې سلوک
کوې.حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائی چې لام په ﴿لِتُغْرِقَ﴾ کښې لام العاقبة دې،چې عاقبت اوانجام
دتختئ ماتولودادې چې ددې اهل به هلاك شي اولام تعليليه ندې ځکه چې پديکښې سوء ادب دې
ليکن صاحب دروح المعاني فرمائی چې لام تعليليه هم صحيح دې،بلکه انسب دې دمقام سره
ځکه چې استفهام لپاره دانکاردې، او ﴿لِتُغْرِقَ﴾ علت لپاره دانکاردې. ﴿لَقَدْ جِئْتَ شَيْـًٔا إِمْرًا﴾
(امراً) په معنې د(منکربد)سره دې اوتنوين لپاره دتعظيم دې،يعنی تادېربدکارسره (خلاف شرع)
راتګ اوکړو.اوقتاده رحمه الله نه د ﴿إِمْرًا﴾ تفسيرپه عجباسره منقول دې چې داکاردېرنااشنااوکړو،
اومخشري اوامام رازي وغيره مفسرين فرمائی چې ﴿إِمْرًا﴾ ماخوذدې د"امرالامر" نه چې کله څوك
يوغټه واقعه اوحادثه اوکړي چې دهغې توقع ورنه نه کيږي اونه ئې څه سبب معلوم وي نوعرب
دهغې لپاره لفظ دامر استعماله وي،نومعنې به ئې داشي چې تاپه يوديرغټ کارسره راتګ
اوکړو. ﴿قَالَ أَلَمْ أَقُلْ﴾ دادحضرت خضر عليه السلام دطرف نه موسیٰ عليه السلام ته شرط يادول دې، ﴿قَالَ
لَا تُؤَاخِذْنِي﴾ دااعتذاراوعذرپيش کيدل دې دحضرت موسیٰ عليه السلام دطرف نه په نسيان
سره.اوموسیٰ عليه السلام داسې اونه وئيل چې انی نسيت بلکه اضافه ئې د ﴿قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِي﴾ اوکړه
چې داابلغ ده په اعتذارکښې ځکه چې دحضرت خضر عليه السلام خواته هم نسيان يو امرمحقق
وو.اوما په ﴿بِمَا نَسِيتُ﴾ کښې يامصدريه ده اوباء صله ده دمواخذې لپاره،ای لاتواخذني بنسياني
وصيتك في ترك السوال(روح) اويا باء سببيه ده اونسيان اګرچه سبب قريب دمؤاخذې لپاره خو ندې

بلکه سبب قریب لپاره دمواخذې سوال کول اوعمل نه کول ووپه وصیت باندې لیکن سبب بعیدې اوپدیکښې اشاره ده چې په انبیاء کراموباندې دمقتضې بشریت دوجې نه په هغه امورو کښې چې تعلق دامورشرعیو سره نوي نونسیان پرې طاري کیدلې شو .اوپه اموردوحې کښې انبیاء کراموباندې نسیان قطعا نه راتلو .اودغه شان پدیکښې اشاره ده چې په نسیان باندې مواخذه اوګناه نیشته﴿وَلَا تُرْهِقْنِي﴾ پدې کښې اشاره ده چې استاذته عذرقبلول پکاردي اوکله کله تسامح هم پکارده او ﴿مِنْ أَمْرِي﴾نه مراد یانسیان دې اویامتابعت اوشاګردي ده

﴿فَانْطَلَقَا﴾دادویمه واقعه ده چې کله دوئ ددریاب نه پوري لاړل نوڅه نوجوانان ئې اوکتل چې لوبې ئې کولې نوخضر عليه السلام په هغوئې کښې یوکس زاونیسلواوقتل ئې کړونوحضرت موسی عليه السلام برداشت نه کړې شوه اوبیاپرې اعتراض اوکړو چې یوبیګناه کس دې قتل کړوداخوتادیرید کاراوکړو اوفاء په﴿فَانْطَلَقَا﴾کښې فصیحیه ده اوتقدیردعبارت داسي دې چې فقبل عذره فخرجامن السفینة فانطلقا الخ

﴿إِذَا لَقِيَا غُلَامًا﴾ نوم دهغه نوجوان جیسور یاحیسوریاحیسون وو اوپه صحیح حدیث کښې دې چې ده دنورو هلکانوسره لوبې کولې اودې په هغوئولوکښې خائسته اوپاك وو ،نوحضرت خضر عليه السلام دې رااونیولوقتل ئې کړو اوپه کیفیت دقتل کولوکښې روایات متعدد راغلیدی،دبخاری شریف په یوروایت کښې راغلیدی الله اخذبراسه من اعلاه فاقتلعه بیده چې سرئې ورله په لاس سره دختې نه رااویستلواوپه ځنې روایاتوکښې راغلیدي چې دې ئې سملولواوبیائې په چاړې سره ذبح کړو

اوپه ځنې روایاتوکښې داسي ذکردې چې دده سرئې دیوال له رواچولو ،اوڅوك وائي چې په سرئې ورله په کانړې باندې اویشتلو اوعلماؤددې تولوروایاتوکښې تطبیق داسي کړې دې چې دیوال په یوکانړې باندې ئې اول اویشتلواوبیائې په زمکه باندې رااوغورزولواوبیائې ذبح کړواوبیائې ورنه سرپه لاس سره جدا کړو(فتح،قرطبی،روح)

مسلك دجمهورو په دې غلام كښ دادې چې دې نابالغ وو دليل دادې چې دده لپاره لفظ دغلام استعمال شويدې اوغلام اطلاق په صغيركيږي لكه څرنګه چې اطلاق دجارية په صغيرې باندې كيږي

اودغه شان دده لپاره صفت د﴿زَكِيَّة﴾راغليدې چې داهم دليل دې په عدم بلوغ دهغه باندې،

اودغه شان دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه هم د﴿زَكِيَّة﴾ تفسيرپه صغيرة سره نقل كړې شوې دې اوبعض علماء فرمائى چې دې بالغ وو دليل دادې چې وئيلې شويدې "بغيرنفس" نوكچرې صبي وې نودصبي قتل قصاصا نيشته دې نوبيابه بغيرنفس قيدضرورت نوو اودابه نوې ذكرشوې،

خو ددينه علامه كرماني رحمه الله اونووي رحمه الله جواب كړيدې چې قيدد بغيرنفس تاكيدلپاره دې چې قتل ددې صبي بالكل ناحق وو،لكه په يقتلون النبين بغيرحق، كښ قيددبغيرحق تاكيدلپاره دې اوياجواب دادې چې دموسى عليه السلام په شريعت كښ په نابالغ باندې هم قصاص وو

لكه امام بيهقي فرمائى چې زمونږ په شريعت كښ هم ابتداء قصاص على الصبي وو خوبياورستومنسوخ شولو ،دويم دليل دادې چې ورستوخضر عليه السلام دهغه په باره كښ داسې فرمائيلې دې

﴿طُغْيَـٰنًا وَكُفْرًا﴾نوهغه ته نسبت دطغياني اوكفرشويدې اوماشوم نابالغ كافرنوې ليكن جواب ددينه هم ممكن دې چې نسبت دكفرده ته په تاويل دمايؤل اليه.سره دې ځكه چې حضرت خضر عليه السلام نبى وودامورباطنيه، نوالله تعالى ده ته ددې ماشوم دكفراطلاع وركړه لكه څرنګه چې

دغاصب اوظالم بادشاه اطلاع اولاوركړې وه ليكن راجحه خبره هغه ده چې امام طحاوي رحمه الله نه نقل كړې شويده چې داغلام دعمرپه اعتبارسره نابالغ وو خودعقل اوپوهې په اعتبارسره بالغ وو.

﴿قَالَ أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً﴾دااعتراض دې دموسى عليه السلام په خضر عليه السلام باندې قصدا اول اعتراض نسياناوو اوپه ځنې قراءتوكښ "زاكية"راغليدې، بعض علماء فرمائى چې زكية اوزاكية كښ فرق نيشته دې اوبعض مفسرين فرمائى چې زاكية وئيلې كيږي هغه ته چې بالكل ئې گناه نوې كړې اوزكية هغه ته وئيلې كيږي چې گناه ئې كړې وي اوبيائې توبه ويستلې وې اومراد په ﴿بِغَيْرِ نَفْسٍ﴾سره دادې چې ده بل څوك هم ندې قتل كړې ځكه جوازدقتل ديونفس لپاره موجوديدل دايو امردې ددرې امورونه چې"(۱)زنا دمحصن ده(۲)قتل دنفس دې(۳)اوارتداددې.

﴿لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُكْرًا﴾هركله چې قتل دنفس سخت جرم دې اوفسادئې ظاهردې نوځكه پدې ځائې كښ لفظ د﴿نُكْرًا﴾ذكرشو ځكه چې داهم ابلغ دې په انكاركښ د﴿إِمْرًا﴾، نه ځكه چې ﴿نُكْرًا﴾استعمال په هغه بدكاركښ كيږي چې دهغې نقصان ډيروي اوښكاره وي چې تدارك ئې نشي كيدلې، په خلاف د"امرا"نه چې دهغې استعمال په هغه بدكاركښ كيږي چې نقصان ئې كم وي اوتدارك ئې كيدلې شي نوقتل النفس تدارك نشي كيدلې نوځكه دلته نكرا استعمال اوشو،په خلاف دكشتئ دتخته اوباسلونه چې دهغې تدارك كيدلې شي نوددې وجه نه هلته كښ

﴿إِمْرًا﴾ استعمال شو .اوبعض مفسرينو بالعکس خبره کړيده چې ﴿إِمْرًا﴾ سخت دي د ﴿نُكْرًا﴾ اودکشتئ دورانولو په صورت کښ اغراق دډيروکسانووو نوهغه جرم ډيرسخت وو دقتل ديونفس نه نوځکه هلته کښ ﴿إِمْرًا﴾ اودلته ﴿نُكْرًا﴾ استعمال شو

قَالَ أَ لَمْ أَقُلْ لَّكَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿۷۵﴾ قَالَ

اوئيل خضر عليه السلام چې آيا مانوو وئيلې تاته چې بيشکه ته هرگز طاقت نه لرې خماسره دصبرکولو. اوئيل موسى عليه السلام

إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِيْ قَدْ بَلَغْتَ

کچرې ماتپوس اوکړو ستانه په باره ديوکارکښې پس ددې نه پس مه ملگرې کوه ته مالره په تحقيق سره اوبه رسې ته

مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا ﴿۷۶﴾ فَانْطَلَقَا حَتّٰى إِذَا أَتَيَا أَهْلَ قَرْيَةِ اسْتَطْعَمَا أَهْلَهَا

خما دطرف نه عذرته. پس روان شول دواړه تردې چې کله راغلل يوکلې والوته نوخوراک ئې اوغوختلو داوسيدونکودغې نه

فَأَبَوْا أَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ أَنْ يَّنْقَضَّ

نو انکاراوکړو هغوئ چې ميلمستيا ورکړي دوئ دواړوته پس اوموندلو دوئ په هغه کلي کښې يوديوال نزدې وو چې پريوتلې وئ

فَأَقَامَهٗ قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا ﴿۷۷﴾

نونيغ کړوهغه ديوال .موسى عليه السلام ورته اوئيل کچرته ستاخوښه وې نواغستې به دې وې په دې باندې مزدوري

﴿قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَّكَ﴾ دا دحضرت خضر عليه السلام دطرف نه بياعهد ياده ول دې او اضافه ﴿لَّكَ﴾ لپاره دتاکيددې اوترقې ده په غصې کښې څکه چې دادويم اعتراض قصداووه جانبه دموسى عليه السلام نه ﴿قَالَ إِن سَأَلْتُكَ﴾ داشرط لگول دې دموسى عليه السلام اواعتراف دې پدې چې کچرته په دريم ځلې هم ماصبراونکړونوبيابه عذرختم وي اوته مادخپل مصاحبت اوسفرنه جدا کړه. اوپه حديث شريف کښې راځي حضور ﷺ ارشاد اوفرمائيلوچې الله تعالى دې رحم اوکړي په موسى عليه السلام باندې کچرته ده صبرکړې وې داشرط ﴿إِن سَأَلْتُكَ﴾ نوې لگولې نوموږ به نورعجائبات هم اوريدلې وو اوپه ځنې رواياتوکښې راځي چې حضرت موسى عليه السلام دخپل ملگرې دخضر عليه السلام نه حيا اوکړه نوځکه ئې دا شرط اولگولو ابوداود.

﴿قَدْ بَلَغْتَ مِن لَّدُنِّي﴾ پدې کښې اشاره ده چې دوه ځلې پورې دانسان عذرقبلولې شي

﴿فَانطَلَقَا حَتَّىٰٓ ﴾دادریمه واقعه دهغوئ ذکرکیږي چې دوئ روان وو حتی چې یو کلي ته راغلل اودوئ اوږې شوې وو نودکلي خلکونه ئې خوراك طلب کړوخوهغوئې ورته انکاراوکړو. هلته دوئ یودیوال اوکتلوچې کوږ شوې وو اوغورزیدلوته نژدې وو حضرت خضرعليه السلام هغه دیوال بغیرداجرت اومزدورئې نه صحیح کړلو، حضرت موسیٰ عليه السلام ورته اوئیل کچرې تاددوئ نه څه مزدوري اغستې وې نومونږ به پرې ځان ته دخوراك بندوبست کړې وې، نوحضرت خضرعليه السلام ورته اوئیل چې بس اوس ځمااوستا دجدائې وخت راغلیدې

﴿أَهْلَ قَرْيَةٍ ﴾ په تعیین دقریې کښې ډیراقوال دي څوك وائي چې ددینه مراد انطاکیه، ده څوك وائي چې عراق کښې دبصرې سره نژدې ابله قریه ده، څوك وائي چې دفلسطین یوه عظیمه قریه ناصره تنه مراده ده، څوك وائي چې داردن یوه قریه ایله ورنه مراد ده ددینه علاوه نوراقوال هم راغلیدي خوپه تعیین باندې څه قوي دلیل نیشته دې اولفظ د اهل کښې اشاره ده چې دې کلې ته راتلل دددوئ دخلکوسره ملاقات وو اوصرف پدې لاره باندې تیریدل نوو مقصود.

﴿اسْتَطْعَمَآ أَهْلَهَا ﴾سین اوتاء لپاره دطلب دي یعنی طلب دطعام ئې اوکړو اومرادپدې سره طلب دضیافت دې،خودلته پرې اطلاق دطعام اوکړې شو اوورستو ورباندې اطلاق دضیافت کیږي پدې کښې اشاره ده چې یوقسم خوراك چې نسبت اوکړې شي سائل اوخوراك کوونکي ته نوطعام ورته وئیلې کیږي اوهم دغه خوراك چې نسبت ئې اوکړې شي مسئول اوکوروالاته نوضیافت ورته وئیلې کیږي، اووضع داسم ظاهرپه ځائې دمضمرباندې(استطعمااهلها) په ځائې داستطعماهم راوړې شولپاره دي چې پدې کښې دهغوئې په بخل اوبدسلوك باندې تصریح ده چې حضرت خضرعليه السلام اوموسیٰ عليه السلام ددې قریې داهل نه طعام طلب کړې وو اوداجانب یادمسافرئینونه ئې نوو طلب کړې اوددې قریې اهل ورته انکاراوکړو،حالانکه داقریه وه اومصرنوو چې پکښې څوك مسافروې بلکه ټول ددغې ځائ خلك وو،اودغه شان په شهرکښې سرائې وغیره وي اوپه قریوکښې داسهولت نوي بلکه هلته خلك دمسافرو انتظامات په کورونوکښې کوي اودغه شان دقریوخلك دشهرې خلکوپه نسبت مهمان نوازوي خودددې قریې خلك ډیربخیلان وو اوددې وجه نه په یوروایت کښې داسې راغلیدې چې حتی اذااتيا قرية لئاما

فامالى المجالس فاستطعمااهلها(نسائ . ) اوپدې كښ دليل دې چې مسافرلپاره خوراك طلب كول داهل قريه نه جائزدي.

﴿فَأَبَوْاْ أَن يُضَيِّفُوهُمَا ﴾مقصد پدي سره هم پوره كيدي شوچې وئيلې شوي فليضيّفوهما خواضافه د﴿فَأَبَوْا﴾ لپاره دبخل ظاهره ولو اودهغوئ دسپکوالي ظاهره ولولپاره اوشولو

**فائده**: علامه آلوسي رحمه الله رد كړيدي پدي مقام كښ په هغه واقعاتوباندې چې امام رازي رحمه الله وغيره نقل كړيدي چې كله داايت نازل شونودغه قريې خلك ډيراوشرميدلواونادم شو اوحضور ﷺ ته ئې ډيرسره زرپيش كړل اودرخواست ئې اوكړو چې باء د﴿فَأَبَوْا﴾په تاء سره بدله كړه، خوحضور ﷺ انكاراوكړو، اوبعضو داواقعه حضرت علي رضي الله عنه ته منسوب كړيده ليكن ددې واقعې په صحت باندې څه دليل نيشته دې اونه دقريې په تعيين باندې څه دليل شته دې

**فائده۲**: بعض خلكوپدي ايت سره استدلال كړيدې په جوازدسوال باندې لكه صاحب :مقامات وئيلې دې- فان رددت فمالى الرد منقصة، على قدرد موسىٰ والخضرقبل. حالانكه حرمت دسوال بلاضرورته په حديث سره ثابت دې. اوعلامه قرطبي رحمه الله فرمائي چې داسي قول كول لوبې دې ددين سره (قرطبي ج۵ ص۳۲۳)

﴿يُرِيدُ أَن يَنقَضَّ ﴾انقضاض دباب انفعال نه وئيلې كيږي سقوط بسرعة ته اوبعض علمآء فرمائي چې داباب افعلال دې لكه احمّرچې داحمرارنه راځې په معنې دصارذاحمرة سره اواسنادارادې جدارته كول يادقبيلې دمجازمرسل نه دې، علاقه پكښ ده سببيت ده څكه چې اراده كوونكې قريب وي فعل ته نواراده سبب دقربت ده نودغه شان قريب السقوط څيزته نسبت دارادې كيږي، اودغه شان مجازات عرب په خپلومحاوراتوكښ په كثرت سره استعماله وي. لكه وائې دارى تنظرالى دارفلان نسبت دنظركولودارته مجازادې، اومجازراوړل په كلام كښ دايوه شعبه ده دفصاحت اوبلاغت اوددې وجه نه قرآن مجيدكښ هم مجازات استعمال شويدي.

اواقول دجمهوررودې اوامام ابواسحاق اسفرائي اودهغه متبعين منكردې داستعمالاتودمجازنه په قرآن كښ څكه چې دادليل دې دعجزتعالى الله عن ذلك علوا كبيرا، خوليكن دادوئ وهم دې والتفصيل فى القرطبي والروح وغيره) اويااسناد دارادې جدارته استعارة اوتشبيها دې چې

قرب السقوط مشابه کړې شويدې دَارادي سره څکه چې په دواړوکښې ميل وي ﴿فَأَقَامَهُۥ﴾ يعنی هغه ديوال سيده کړو اوپه کيفية دسيدوکولوکښې مختلف اقوال دي څوك وائي چې ستنه (عمود) ئې ورته اودروله اوڅوك وائي چې ديوال ئې وران کړو اوبيائې جوړکړو .ليکن غوره توجيه هغه ده چې دابن عباس رضي الله عنه نه مروي ده چې حضرت خضر عليه السلام خپل لاس په ديوال باندې راخکلو . نوهغه بالکل سيده شو، اودا په حديث دابي بن کعب رضي الله عنه کښې هم راغليدې.

﴿قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ﴾ داعتراض دموسیٰ عليه السلام دې چې مونږته دخوراك ضرورت دې اودوئ زمونږ دضيافت کولونه انکارهم اوکړو نوتاورسره ولې دااحسان اوکړو چې بغيرداجرت نه دې ديوال ورله جوړکړو بلکه دضرورت په بناء باندې به دې ورنه اجرت اغستلې وو .نودا ايت دليل دې په جوازداجرت باندې اوپه کسب دمعيشت باندې اوبعض مفسرين فرمائی چې داتعريض وو دموسیٰ عليه السلام په خضر عليه السلام باندې چې هرکله ته دديوالونوپه جوړولوباندې پوهيدلې نوابتداء به دې داديوال جوړکړې وو اواجرت به دې اغستلې وو اومونږ به پرې څان ته طعام اخستلې وو، اودوئ نه به موخوراك نوې طلب کړې.

**فائده**: بعض مفسرينو (لکه ابن الجوزي اوثعلبي وغيره شو) لطيفه ذکرکړيده چې کشتئ سورئ کيدل اودوئ بچ کيدل دَاداسې وولکه موسیٰ عليه السلام چې موريه صندوق کښې اچولې وو اوپه درياب کښې ئې لاهو کړې وو، اومعامله دقتل دغلام داسې وه لکه چې حضرت موسیٰ عليه السلام قبطي قتل کړې وو، اومعامله دديوال جوړولوبلا اجرت داسې وه لکه چې حضرت موسیٰ عليه السلام دحضرت شعيب عليه السلام لونړوله بغيرداجرت نه څاروي اوبه کړې وو ،خودحضرت موسیٰ عليه السلام نه خپل واقعات هيرشوي وو .کچرې يادوې ورته نوبيابه ئې په حضرت خضر عليه السلام باندې اعتراض نوې کړې خوليکن محققينوپدې مناسبت باندې ردکړيدې، اولاخودانده ثابته چې حضرت موسیٰ عليه السلام نه خپل واقعات هيرشوي وو اوثانيا ددې واقعاتوپه مينځ کښې ډيرلوئې فرق دې، څکه خرق دسفينه اختياري وو،اوپه صندوق کښې بنده ول اوپه درياب کښې لاهوکول دموسیٰ عليه السلام په حق کښې اضطراري اوغيراختياري وو، دغه شان قتل دقبطي دموسیٰ عليه السلام نه خطاء وو اوقتل دغلام دخضر عليه السلام نه عمداوو، دغه شان اوبه کول دڅاروو داپه سفردهجرت کښې ووچې په هغې کښې حضرت موسیٰ عليه السلام خپل څان نصرت غيبية ته حواله کړې وو اوپه هغه وخت کښې هغه ته دخوراك ضرورت هم نوو، اودحضرت شعيب عليه السلام لونړه قابل رحم وکرم

اواحسان هم وي. اوداسفر دخضر عليه السلام سره سفرعلمي ووچې په هغې کښې خپل مشقت دفع کول پکاروو، اودوئ خوراك ته محتاج هم وو اوبیا دهغې کلي دخلکو رویه هم دوئ سره ښه نوه. نوددې واقعاتو په خپل مینځ کښې څه مناسبت نیشته دې والله اعلم بالصواب. امام قرطبي پدې مقام کښې تفصیلي بحث کړیدې په ثبوت دکراماتو داولیاء کښې. اوعلامات دولي ئې ذکرکړیدې چې دابحث قابل دید دې

| قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ وَبَيْنِكَ سَاُنَبِّئُكَ بِتَاْوِيْلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ |
|---|
| خضر عليه السلام اونیل چې داجدائي ده په مینځ خما اوپه مینځ ستاکښې زرده جې خبربه درکړم تاته په حقیقت دهغې چې طاقت نه لروتا |
| عَّلَيْهِ صَبْرًا ۝ اَمَّا السَّفِيْنَةُ فَكَانَتْ لِمَسٰكِيْنَ يَعْمَلُوْنَ فِي الْبَحْرِ |
| په هغې باندې دصبرکولو.[1] هرچې هغه کشتئ ده نو وه هغه لپاره دعاجزانو(غریبانانو) چې مزدوري به ئې کوله په دریاب کښې |
| فَاَرَدْتُّ اَنْ اَعِيْبَهَا وَكَانَ وَرَآءَهُمْ مَّلِكٌ يَّاْخُذُ كُلَّ |
| پس اراده اوکړه ما ددې چه عیب جنه کړم داکشتئ اوڅکه چه وو ددوئ مخې نه بادشاد چې نیوله ئې هره روغه. |
| سَفِيْنَةٍ غَصْبًا ۝ وَاَمَّا الْغُلٰمُ فَكَانَ اَبَوٰهُ مُؤْمِنَيْنِ فَخَشِيْنَآ اَنْ يُّرْهِقَهُمَا |
| کشتئ په زورزبردستئ.[1] اوهرچه هغه هلك وو نوووموږ پلاردهغه مؤمنان پس اویریدلوموږه ددې نه چې اوبه غورزوي دې دواړو لره |
| طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۝ فَاَرَدْنَآ اَنْ يُّبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكٰوةً |
| په سرکشئ اوکفرکښې نو اوغوختله موږه چې بدل به ورکړې دوئ ته رب ددوئ غوره دده نه په پاکئ کښې |
| وَّاَقْرَبَ رُحْمًا ۝ |
| اوډیرنږدې په مهربانئ کولوکښې. |

1. بیان حکمت واقعه اولی.
1. بیان حکمت واقعه ثانیه.

﴿قَالَ هَـٰذَا فِرَاقُ بَيْنِى﴾مشار اليه دهذا انكار او اعتراض ثالث دي او دا قول دخضر عليه السلام دهغې شرط موافق دي چې حضرت موسى عليه السلام په ځان باندې ضروري كړې وو . او تكرار د بين اوشو او دا سي اونوئيلې شو چې "هذافراق بيننا" لپاره دتاكيد اوعلامه زمخشري رحمه الله فرمائي چې مشاراليه دهذا لپاره فراق دې او دا متصور او معهود فى الذهن وو پدې قول سره چې﴿إِن سَأَلْتُكَ عَن شَىْءٍ﴾ دې لكه چې وئيلې كيږي، هذا اخوك نوپدې كښې اشاره په هذا سره داخ نه علاوه بل څيزته نده(كشاف) ﴿سَأُنَبِّئُكَ بِتَأْوِيلِ﴾تاويل وئيلې كيږي ردّ الشئ الى مآله ته اودلته نه هم مراد مال اوعاقبت دي او"ما"په معنې د"الذي" سره عبارت دي دهغه افعالونه چې صادرشوې وو دحضرت خضر عليه السلام نه او﴿لَمْ تَسْتَطِع﴾داجمله صله ده دموصول اوموصول لپاره صله عدم استطاعت دموسى عليه السلام راوړې شواوداسي اونه وئيلې شو چې "مافعلت" يا"مارايت"ځكه چې پديكښې تعريض دې په موسى عليه السلام باندې چې تادصبرطاقت نه لروځكه ځما اوستا رفاقت نورنه كيږي اوپديكښې اشاره ده چې داعتراض په صورت كښې په انسان باندې جواب وركول ضروري دي﴿أَمَّا ٱلسَّفِينَةُ﴾ دادا ولې واقعي حكم بيانيږي چې حضرت خضر عليه السلام اوفرمائيلو چې دكشتئ مالكان ډيرغريبانان وو اودهغوئ ذريعه معاش صرف دايوه كشتئ وه اوذوئ ته مخكښې يوبادشاه وقت ډيرظالم وو نوم دهغه حيسون وو(قرطبى)هغه به هره صحيح كشتئ رانيوله اوغصب كوله ئې نوماپدې كښې عيب پيدا كړو ددې لپاره چې بادشاه ئې غصب نكړي﴿أَمَّا﴾حرف تفصيل دې اوالف لام په ﴿ٱلسَّفِينَةُ﴾كښې عهدخارجي دې﴿فَكَانَتْ لِمَسَـٰكِينَ﴾مساكين جمع دمسكين ده ضعيف عاجزته وئيلې كيږي، علامه آلوسي فرمائي چې اطلاق دمسكين په هرهغه چاباندې كيږي چې عاجزه وي يادمال په اعتبارسره يادبدن په اعتبارسره اودوئ ته مساكين په دې اعتبارسره وئيلې شويدې چې دوئ لس(١٠)رونړه وو نوپنځه پكښې شل(معذوره) وو اوپنځوبه كاركولو نودوئ ټولوته مساكين وئيل داموالوپه اعتبارسره وئيل تغليبادې، اوعام مفسرين دافرمائي چې دوئ ته مساكين پدې اعتبارسره دې اوامام شافعي رحمه الله پدې ايت سره استدلال كړيدې چې فقيراشدوي په احتياج كښې دمسكين نه ځكه چې مسكين هغه ته وئيلې كيږي چې هغه سره مال وي خونصاب ته نوي رسيدلې اوفقيرهغه ته وئيلې كيږي چې هغه سره

بالكل مال نه وي. پدې ځائ كښې پدغې كسانو باندې اطلاق دمسكين شويدې حالانكه دوئ سره كشتئ وه اودوئ دهغې مالكان وو اوپدې سره به هغوئ معاش ځان ته پيداكولو. ليكن علامه آلوسي رحمه الله فرمائي چې پدې واقعې سره استدلال كول ضعيف دې(۱) وخوددې وجه نه چې مسكين هرعاجزته ونيلې كيږي برابره خبره كه دې دمال په اعتبارسره عاجزوي يادبدن په اعتبارسره.(۲) اوداهم ممكنه ده چې لام په ﴿لِمَسَٰكِينَ﴾ كښې لپاره داختصاص وي اوندې وي لپاره دملك اوداكشتئ دې هغوئ عارية يااجارة اغستې وي دبل چانه(۳) اويااطلاق دمسكين په دوئ باندې دترحمًا وي اګرچې په حقيقت كښې دوئ فقراء وو. يعنى مال ورسره وو چې هغه ته فقيرونيلې كيږي(عند الاحناف) خوليكن پدوئ باندې دمسكين اطلاق(چې هغه عندالاحناف هغه چاته ونيلې كيږي چې بالكل مال ورسره نوي)ترحما شويدې.

﴿يَعْمَلُونَ فِي ٱلْبَحْرِ﴾نسبت دعمل ټولوته كول ياتغليبا دې اوياعمل دوكلآء په منزله دعمل دموكلينو دې.﴿فَأَرَدتُّ﴾حضرت خضر عليه السلام خپل فعل يعنى خرق السفينة په لفظ دارادې سره ذكركړو اوداسې ئې اونوئيل چې فاعبتها لپاره داشارې دېته چې څمامقصدصرف كشتئ عيب داره كول وو اواغراق مقصدمې نوو.وكان وراءهم لفظ دوراء داضدادونه دې اطلاق ئې په مخكښې ورستو. دواړوباندې كيږي دلته تنه مراد امام يعنى مخكښې دې اوداسبب اوعلت دې دعيب داركولو دكشتئ لپاره چې كشتئ مې ځكه عيب داره كړه چې غاصب بادشاه هره صحيح كشتئ غصب كوله اودلته تقديم دمسبب راغليدې په سبب باندې حالانكه سبب مقدم وي په مسبب باندې، نوداتقديم عنايةً دې، اودغه شان پديكښې اشاره ده (په تقديم دمسبب كښې)چې اخراق دسفيني لپاره صرف خوف دغصب سبب نووبلكه هغه مالكان مساكين هم وونوهركله چې اوغصب اومسكنت سببين وو دفعل لپاره نومسكنت ئې مقدم كړو په غصب باندې لپاره دعنايت ځكه چې دااقوي سبب وو، (كشاف) اومراد په﴿كُلَّ سَفِينَةٍ﴾(سفينه صالحة) يعنى هره روغه كشتئ مراد ده، پدې ايت كښې تعليم دې په رضاء بالقضاء باندې دتكليف زده خلكولپاره چې ددوئ تكليف دبل لوئ تكليف نه دبچ كيدلوذريعه ګرځيږي.اودغه شان پدې كښې اشاره ده چې ددېرې فائدې لپاره لږنقصان برداشت كول پكاردې. اولوئې ضررنه ځان بچ كولولپاره وړوكې ضرر برداشت كول پكاردې.﴿وَأَمَّا ٱلْغُلَٰمُ﴾دادويمې واقعې حكم بيانوئ چې قتل دغلام دې چې

هغه غلام ماخکه قتل کړو چې هغه طبعا بدکرداره وو او کافروو اودهغه والدين مؤمنان صالحان وو. نومونږ سره داخطره وه چې دی به خپلو والدينو ته تکليف رسوي اوهغوئ به په کفرباندې مجبوره کړي،نوماځکه دده دقتل اراده اوکړه اوددې په بدله کښې به الله جَلَّ جَلَالُهُ هغوئ ته بهترين ولدورکړي چې هغه به دين داره هم وي اوپه هغوئ باندې به شفقت کوونکې هم وي او صاحب دمدارك ددې غلام نوم حسين ذکرکړيدې. اوپه يوشاذقرائت کښې امّاالغلام فکان کافرا راغليدې. اوددې وجه نه بعض مفسرين فرمائي چې داغلام بالغ وو. ځکه صبي نه متصف کيږي په کفراوايمان سره اوضحاك رحمه الله وغيره نه منقول دي چې ده په نقصانات کول اوموروپلار ته به ئې تکليف ورکولو اوبعض فرمائي چې ده به ډاکې کولې اوموراوپلارته به ئې قسم خوړلو چې داځما خپل دي اوموروپلاربه دده دطرف نه مدافعت کولو. اودده په خبره به ئې اعتبارکولو. او﴿وَأَمَّا﴾ حرف تفصيل دي﴿ٱلْغُلَٰمُ﴾ مبتداء ده او﴿فكان﴾ ناقصه دي﴿أَبَوَاهُ﴾اسم دي او﴿مُؤْمِنَيْنِ﴾ ورله خبردي اوپه يوقرائت کښې ابواه مؤمنان راغليدي نوپه هغې تقديرکان کښې ضميردي چې راجع دي غلام ته اوياضميرشان دي چې اسم دې دکان اوجمله يعنی ابواه مؤمنان ورله په موضع دخبرکښې ده. ﴿فخشينا ان يرهقهما﴾ الخ داسبب دقتل دغلام بيانيږي چې پده باندې مهرلګولې شوېدې اودې کچرته ژوندې پاتي شوې وې نودخپلو والدينو لپاره سبب دکفرګرځيدلو نوددې وجه نه ماهغه قتل کړو. اودحضرت خضر عليه السلام داخشيت محض عقلي نوو بلکه دوحې په ذريعې سره ورته علم ورکړې شوې وو اوکچرې څوك اشکال اوکړي چې هرکله دخضر عليه السلام غلام قتل کول په ذريعې دوحې سره وو نوبياولې هغه داسې اوئيل چې﴿فَخَشِينَآ أَن يُرْهِقَهُمَا﴾ځکه چې خشيت خوپه هغه مواضعو کښې وي چې دهغې خلاف واقع کيدلې شي اودوحې په ذريعې سره حاصل شوې علم کښې خلاف واقع کيدل نه وي؟ نوجواب تنه دادې چې خشيت راجع دې تعديې دکفروالدينو دهغه ته. اوخشيت په قتل دهغه کښې ندې مراد ابن جرير طبری رحمه الله فرمائي چې خشيت په معنې دعلم سره دې ځکه چې عرب خشيت اوخوف نه علم يقيني دهغې معنې مرادکوي چې دهغې ادراك په حواسوسره نشي کيدلې والخشية والخوف توجههماالعرب الى معنى الظن وتوجه هذه الحروف الى معنى العلم بالشئ الذى يدرك من غيرجهة الحس والعيان،طبری ج۸ ص۲۷۲،اوزمخشری فرمائي چې داهم ممکنه ده چې خشينادې کرهنا په معنې کښې وي ځکه

چې عرب خوف اوخشیت الفاظ په کراهت کښې په کثرت سره استعماله وي. ﴿طغيانا وكفرا﴾ ،مراد پدې سره یاطغیاني اوکفردغلام مرادده اوعلت دې دقتل دهغه لپاره اویاطغیاني اوکفردوالدینو دهغه مرادده.عطف دکفرپه طغیان باندې لپاره دتقبیح دامردهغه دې. اویاپه طغیانا ،سره اشاره ده خلط کیدلودایمان دهغوئ دګناهونوسره اولا. په کفرا سره زائله کیدلودایمان دهغوئ ته ثانیا اویاعطف تفسیري دې اومراد په کفراسره کفردون کفر،مراد دې[1]

﴿فَأَرَدْنَآ أَن يُبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا﴾ دادواړه صیغې یعنې﴿فَخَشِينَا﴾ او﴿فَأَرَدْنَا﴾دجمعې ذکرشولې بعض مفسرینووجه دابیان کړیده چې په قتل دغلام کښې دحضرت موسی ﷺ دطرف نکیرنه سخت وو نوددې وجه نه حضرت خضر ﷺ په بیان دحکمت کښې صیغې دجمعې ذکرکړې چې

[1] اوکه څوك اشکال اوکړي چې علم تابع دی دمعلوم اوصحت دعلم موقوف دی په تحقق خارجی دمعلوم باندې چې معلوم په خارج کښې موجودوي نواوس کچرته دالله ﷻ په علم کښې داخبره وي چې دی به کفراوطغیانی کوي اوموروپلاربه هم په کفرباندې مجبوره وي نوپکارده چې په خارج کښ هم دامتحقق شوی وی. اوحالانکه کفردهغه اومجبوره وڼ دهغه خپل مورا وپلارپه په کفرباندې ندی موجود شوی نولازم شو عدم صحت دعلم دالله ﷻ تعالی الله عن ذلك علوا کبیرا

نوجواب ددینه داکړی شویدی چې داقانون مذکوره چې علم تابع دمعلوم وي الخ دادممکناتولپاره دی اوپه الله ﷻ کښې معامله برعکس ده هلته معلوم تابع دعلم وي خولیکن داجواب کمزوری دی یوددې وجه نه چې په تخصیص دعلم دواجب تعالی باندې دقانون مذکوره څه دلیل نیشته دی. اودویم ددې وجه نه که تابع علم شي یامعلوم په هرتقدیر مطابقت اوموافقت بین العلم والمعلوم ضروری دی. اوهرکله چې معلوم په خارج کښې موجودندی نومطابقت به څرنګه راشي.نوددې وجه نه صحیح جواب دادی چې دامذکوره کلام حقیقت کښې جمله شرطیه ده اوحکم په شرطیئ کښې بین المقدم والتالی دی اوحکم صرف په تالی (جزا) کښې نوي کماهومذهب اهل العربیة اوصدق دشرطیئ (متصلي) مبنی دی په صدق دلزوم باندې یعنی مقدم اوتالی کښې علاقه دلزوم صحیح وه نوقضیه شرطیه به صحیح وي اوکچرته علاقه دلزوم کاذبه وه نوقضیه شرطیه به هم کاذبه وي، اوصدق دشرطیئ موقوف ندی په تحقق بالفعل دمقدم یادتالی باندې. بلکه کچرته وجود دمقدم یادتالی محال هم وي نوبیاهم صدق دشرطیئ راځي.لکه لوکان فیهماالهة الاالله لفسدتا ، نومقدم چې الهه دی محال دی اوبیاهم داقضیه صادقه ده اودغه شان لوکان زیدحمارا لکان ناهقا هم صادقه ده.نولهذا داکلام مذکوره جمله شرطیه ده اوبه علم دالله ﷻ کښې داخبره چې دی به کفراوطغیانی کوي وغیره . داپدې شرط سره وو کچرته دی بالغ شي نوکافربه وي اوخپل والدین به هم په کفرمجبوره کړیو لیکن هغه دبلوغ نه مخکښې قتل کړی شو . اوپدې مقام کښې دااشکال نه واردیږي چې داکلام مذکوره یعنی کچرته دی بالغ شوی وی نوکافربه وی خوقضیه شرطیه متصله لزومیه ده اولزوم مقصد ، دادی چې مقدم علت وي دتالي لپاره اویامقدم اوتالی دواړه معلولین وي دعلت اخره ثالثه لپاره اودلته خودادواړه محال دی نوڅرنګه به لزوم راشي ځکه چې جواب تنه په دی طریقي سره ممکن دی چې دلته دادواړه معلولین دی دعلت ثالثه چې هغه علم آزی دالله ﷻ دی اوهغه ورله دادی چې داکلام فخشینا الخ دخضر ﷺ حاکي دی دعلم ازلي دالله ﷻ نه اوعلم ازلی دالله ﷻ لپاره په ازل کښې معلومات هم شته دی په وجوداجمالی سره نوهلته کښې مطابقت راغلیدی اوفخشینا الخ صرف حکایت دی دهغې نه

داهم دلالت کوي په اظهاراوپه ارادي دقوت باندې. اونسبت دابدال يعنی بدل ورکولو صرف الله ﷻ ته اوشو ځکه چې عوض ورکول داصرف اوصرف دتصرفاتو دالله ﷻ نه دي﴿زَكَوٰةً وَأَقْرَبَ رُحْمًا﴾ .زکوة منصوب دې بنابرتميز اوزکوة وئيلې کيږي صفاته يعنی دې به دګناهونو اوداخلاق رذيله نه به پاك وي،اورُحْمًا په سکون دحا اوپه ضمي دحاء دواړوسره راغليدې اوالف پکښې دتانيث لپاره دي يعنی دې به دموراوپلار ډيرفرمانبرداروي اوپه هغوئ به ډيررحم کوونکې وي اواقرب اګرچه اسم تفضيل دې خومعنې ئې دمبالغې ده ځکه چه په اول ولدکښې رحم بالکل نوو. بعض علماء فرمائی چې دهغې ولدپه بدله کښې الله ﷻ هغې موروپلارته بل ولدورکړو چې هغه مسلمان وو .ابن جريرطبری رحمه الله فرمائی چه کله خضر عليه السلام داهلك قتل کولونوموردهغه حامله وه نوبيائې يومسلمان بچې پيداشو.ليکن دجمهورقول دادې چې ددې مقتول ولدپه بدله کښې الله ﷻ دوئ ته لورورکړه چې دهغې سره يونبي نکاح اوکړو اوبيادهغې دبطن هم نبي پيداشواوبعض علمآء فرمائی چې دهغې په نسل کښې دولس(۱۲)انبياء کرام اوبعض فرمائی چې اويا(۷۰)انبياء کرام پيداشويدي

| |
|---|
| وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَٰمَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِي الْمَدِينَةِ وَكَانَ تَحْتَهُۥ كَنزٌ لَّهُمَا |
| [1]اوهرچه هغه ديوال وونوو ددوه هلكانويتيمانو په هغې ښاركښې اووه لاندې دهغې نه خزانه ددې دواړو |
| وَكَانَ أَبُوهُمَا صَٰلِحًا فَأَرَادَ رَبُّكَ أَن يَبْلُغَا أَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنزَهُمَا |
| اووپلارددوئ نيك سړې پس اوغوښتله رب ستاچې اورسيږي دوئ دواړه ځوانئ خپلې ته اوراوباسي به خزانه خپله |
| رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ وَمَا فَعَلْتُهُۥ عَنْ أَمْرِي ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا |
| دوجې درحمت درب ستانه اوندې کړې ماداكارپه خپل اختيارسره دادې حقيقت دهغې چې طاقت نه لرلوبا په هغې باندې دصبركولو |

﴿وَأَمَّا الْجِدَارُ﴾دادريمې واقعې حکمت بيانيږي چې دغه ديوال ددوه يتيمانو وو چې دهغوئ پلار ډيرنيك وو اوددې ديوال دلاندې دهغوئ خزانه دفن وه چې دوئ ته دپلارنه په ميراث کښې

---

[1] بيان حکمت واقعه ثالثه

پاتې شوي وه اوددې کلي خلك بيكاره وو كچرته ديوال غورزيدلې وي اودغه خزانه ښکاره شوې وې نوددغې علاقې خلکوبه لوټ کړې وه ،نوددې وجه نه الله ﷻ دااوغوختله چې دادواړه ماشومان غټ شي اوخپله خزانه په خپل استعمال کښې راوړي نوددې وجه نه ماته حکم اوکړې شو ددیوال دجوړه ولو.

﴿فَكَانَ لِغُلَامَيْنِ يَتِيمَيْنِ﴾راجحه خبره داده چې دادواړه نابالغه وواونومونه ددوئ احرم اوصريم منقول دي﴿وَكَانَ تَحْتَهُ كَنزٌ لَّهُمَا﴾. په كنزكښې اقوال متعدد راغليدي يوقول دادې چې پدې سره مراد سره اوسپين زردي، اوداقول مرفوعا نقل کړيدې حضرت ابودرداء رضي الله عنه دحضور ﷺ نه . دويم قول دادې چې داتختئ وي دسروزرو اوپدې باندې دبسم الله الرحمن الرحيم نه ورستو دابوڅوکلمات ليکلې شوي وو(۱)تعجب دې په هغه چاچې تقديرباندې يقين وي اوبياهم غمژن وي(۲)تعجب دې په هغه چاچې دررزق په ميلاويدو باندې يقين وي اوبياهم ځان ستړې کوي(۳)تعجب دې په هغه چاپه مرګ باندې يقين وي اوبياهم بې غمه خوشحاله ګرځي.(۴)تعجب دې په هغه چاچې په حساب کتاب باندې يقين وي اوبياهم غافله وي(۵) تعجب دې په هغه چاچې په زوال ددنياباندې يقين وي اوبياهم پرې مطمئن وي(۶) لااله الاالله محمدرسول الله اوبعض فرمائي چې پدې سره مطلق اموال مراددي. اويوقول دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه داهم مروي دې چې مراد پدې سره خزانه دعلم ده، ليکن داقول ضعيف دې.

فراء قانون بيان کړيدې چې کنزکله بغيرداضافت نه يعنى مفردراوړلې کيږي اوكله سره داضافت نه ذکرکولې شي نوچې په کوم ځائ کښې مفرد ذکرکړې شوي وو نومراد تنه مال مدفونه ئې، اوچې په کوم ځائ کښې په اضافت سره ذکرکړې شي نومراد به تنه کثرت اوعظمت دمضاف اليه وي لکه چې وئيلې کيږي کنزالعلم کنزالفهم، نودلته هم مفرد ذکرکړې شويدې نوځکه مال مدفونه تنه مراددي﴿وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا﴾. ظاهره داده چې مراددااب نه دهغوئ خپل پلارمراد دې چې نوم دهغه کاشح ذکرکړې شويدې اودمور نوم ئې دهنا نقل کړې شويدې اوبعض فرمائي چې مراد اب نه دهغوئ اوومې(۷)پيړئ نيکه دې اوځوك وائي چې دلسمې(۱۰)پيړئ نيکه تنه مراددې، ليکن اول قول راجح اوظاهردې چې دغه خزانه دددوئ خپل پلاردفن کړې وه اوداشکال چې مال دفن کول باندې خوشديدوعيد راغليدې(والذين يكنزون الذهب والفضة ولاينفقونها فى سبيل الله فبشرهم بعذاب اليم(التوبة ۳۴)) نوڅرنګه دې صالح وو؟ داځکه نه وارديږي چې مراد په دي

وعيد سره هغه خلك دي چې هغوئ په خپل مالونو كښې دالله ﷻ حقوق يعني زكوة نه اداكوي. ځكه چې دابن عباس رضی الله عنه اوابن عمر رضی الله عنه نه منقول دي چې دكوم مال نه زكوة اداكړې شي نو هغه كنز نه دې اګرچه هغه مال مدفون وي اوكوم مال نه چې زكوة ادانكړې شي نو هغه كنز دې يعني چې په كوم كنزباندې چې وعيدوارد شويدې نو ممكنه ده چې دوئ دخپل مال نه زكوة اداكړې وي. اويا په هغوئ باندې زكوة نووفرض كړې شوې.

**فائده**: پدې ايت كښې دليل دې چې دوالدينونيكان چوړېدل داولاد دجان اومال دحفاظت ذريعه ګرځيږي يوروايت كښې دي چې الله ﷻ دخپل نيك بنده تراوه (۷) نسلونو پورې حفاظت فرمائي (قرطبي ج۵ص ۳۳۳).

محمدبن منكدرفرمائي چې الله ﷻ دخپل يونيك بنده دوجې نه دهغه داولاد اوداولاد اولاد (نسبو) اودټولې علاقې حفاظت فرمائي، امام قرطبي رحمه الله واقعه نقل كړيده چې حضرت علامه شبلي رحمه الله به فرمائيل چې ځه ددې شهراوپوره علاقې لپاره ذريعه دامن يم. نوچې كله هغه وفات شواودفن كړې شو نوكفارديلم په دريائ دجله باندې راپورې وتل اوبغداد باندې ئې قبضه اوكړه نوخلكوبه وئيل چې په مونږباندې دوه (۲) مصيبتونه نازل شو (۱) مرګ دشبلي (۲) اوقبضه كيدل دبغداد (قرطبي ج۵ ص ۳۲۲).

دغه شان پدې ايت كښې اشاره ده چې خلك دې دعلماء اودصلحاؤاولادباندې دشفقت كوي اودهغوئ دِرعايت كوي.

**فائده (۲)**: بعض معاصرومفسرينوپدې ځائ كښې ليكلي دي (بعض مبتدعين ددې نه استدلال كوي چې ددې ايت نه وسيله ثابته شوه، جواب دادې چې پدېكښې وسيله شركيه اوبدعيه نه ثابتيږي، بلكه دمسئلې شرعي په وجه سره ددوئ دمال حفاظت اوكړې شو اودېته وسيله وئيل جهالت دې .هان الله ﷻ كله دېوصالح په وجې سره دهغه په اولادباندې اودهغه په تابعدارئ كوونكوباندې رحم اوبركت كوي، ليكن په بادې النظركښې داكلام ډيرضعيف دې په وجوه سره من جمله دهغې نه دادې (۱) چې سوق دكلام اګرچه دثبوت اوجواز دوسيلې لپاره ندې شوې ليكن په اشارة النص سره وسيله ددې ايت نه ثابتيږي چې هركله دېوصالح بنده دوجې نه دهغه داولاد اوخاندان وغيره حفاظت الله ﷻ كوي خوبلاتوسل نوپه توسل سره به په طريقه اولي كيږي (۲) بل ددې وجه نه چې ﴿صَالِحًا﴾ پدې ځائ كښې خبرد ﴿وَكَانَ﴾ دې ليكن تخصيص ذكري ددې وصف په

منزله دعلت دي دحفاظت داموال دهغوئ لپاره اوداداسي دې لکه چې وئيلې کيږي اکرمت زيدا عالما ای لاجل علمه نوددې نه معلومه شوه چې ددې يتيمانودمال حفاظت دصالح پلارپه برکت سره وو.

﴿فَأَرَادَ رَبُّكَ﴾اضافت درب موسیٰ عليه السلام ته کول تشريفا دي ﴿أَن يَبْلُغَآ أَشُدَّهُمَا﴾اشدجمع دشدة ده اوبعض فرمائی چې داجمع ده خومفردورله من لفظه نيشته دې اوددې اطلاق کيږي دامام ابوحنيفه رحمه الله په قول پنځويشت کالوعمرباندې.چه داعمردانسانې عقل دکمال عمردې ځکه چه په دومره عمرکښې انسان نيکه جوړيدل ممکن دې اوعلامه جوهرې فرمائی چې داشداطلاق داتلسونه ترديرېشت(۳۰)کالوعمرباندې کيږي اوبعض علماء فرمائی چې مرتبه داشديت په خلوېښت کالوعمرکښې حاصليږي،لکه چې الله تعالیٰ فرمائی حتی اذابلغ اشده وبلغ اربعين سنة﴿وَيَسْتَخْرِجَا﴾ استخراج په معنې داخراج سره دې س اوتاء لپاره دمبالغې دې اومفسرين فرمائی چې دې يتيمانوته علم نووېدې کنزباندې اوددوئ لپاره يووصې وو خوپدې وخت کښې غائب وو، او﴿رَحْمَةً﴾ مفعول له دې﴿وَمَا فَعَلْتُهُ﴾دادشبهې اصل جواب دې چې ما پدې درې واقعاتوکښې چې څه هم کړيدې نوپه خپل اختيارمې ندې کړې اونه راته څه علم غيب حاصل وو بلکه دالله تعالیٰ په حکم باندې مې کړيدې ﴿ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ﴾مشاراليه دذلك لپاره مذکورواقعات دی او﴿تَسْطِع﴾ په اصل کښې تستطع وو يوه تادتخفيفا حذف کړې شوه. اوپه تخفيف ددې ځائ اوکړې شواوپه ايت نمبر(۷۸)کښې تاء تخفيفا نو'ها'حذف کړې شوې ددې وجه نه چې داپه دويم ځلې ذکرکيږي نودې مکررشواوتکرارسره تخفيف مناسب دې نوځکه دلته تاء حذف کړې شوه.

**فائده**: حضرت خضر عليه السلام دکشتئ په واقعې کښې داسې اوفرمائيل چې﴿فَأَرَدتُّ أَنْ أَعِيبَهَا﴾ نسبت دارادې ځان ته ئې صرف کړيدې، اوپه واقعې دقتلدغلام کښې﴿فَأَرَدْنَا﴾وئيلې دې يعنې الله تعالیٰ اوخپل ځان دواړوته ئې نسبت کړيدې، اوپه واقعې دديوال کښې نسبت ئې صرف دالله تعالیٰ ته کړيدې ددې څه حکمت دې؟ نوغوره توجيه داده چه پديکښې هغه کمال ادب ملحوظ کړيدې ځکه چې کشتئ عيب داره کول فقط شروو ظاهرا نودکمال ادب تقاضاداده چې دشرنسبت الله تعالیٰ

ته اونكړي شي لکه حضرت ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل چې **واذا مرضت فهو يشفين،** نو هركله چې مرض شروو اوشفا خيروو نو ابراهيم عليه السلام نسبت دمرض خپل ځان ته اوكړو اونسبت دشفائي الله جل جلاله ته اوكړو .اوپه اقامت دجداركښې فقط خيروو.اودشرجانب پكښې نوو نوددې وجه نه دهغې نسبت فقط الله جل جلاله ته اوكړو .اوپه قتل دغلام كښې يوجانب دشروو چې قتل دې اوبل جهت پكښې دخيروو چې هغه ددغه مقتول غلام په بدلې كښې صالح اولاد وركول وو نودامشتركه بين الخيروالشروه نوددې وجه نسبت ئې هم په طريقې داشتراك سره اوكړواوضميردجمعي متكلم راوړې شو.

| |
|---|
| وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنْ ذِى الْقَرْنَيْنِ قُلْ سَاَتْلُوْا عَلَيْكُمْ مِّنْهُ |
| [1] اوتپوس كوي دوئ ستانه په باره دذوالقرنين كښې ته اوايه چې زرده چې بيان به كړم په تاسوباندې د(واقعي) دهغه نه |
| ذِكْرًا ﴿۸۳﴾ اِنَّا مَكَّنَّا لَهٗ فِى الْاَرْضِ وَاٰتَيْنٰهُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا ﴿۸۴﴾ |
| څه خبرې دنصيحت بيشكه مونږه طاقت وركړې ووده ته په زمكه كښې اووركړې وومونږه ده ته دهرقسم نه سامان دضرورت |
| فَاَتْبَعَ سَبَبًا ﴿۸۵﴾ حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَغْرُبُ |
| پس روان شودې په يوې لارې(يعنى مغرب)ترڅو چې اورسيدلوځائ دپناه كيدلو دنمرته نواوموندلو ده نمرچې پناه كيدلو |
| فِيْ عَيْنٍ حَمِئَةٍ وَّوَجَدَ عِنْدَهَا قَوْمًا ۬ قُلْنَا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ اِمَّآ اَنْ تُعَذِّبَ |
| په يوې چينې(درياب)توره كښې اواوموندلونې دهغې سره يوقوم(كافر)اوئيل مونږه چې اې ذوالقرنين ياخوعذاب وركړه دوئ ته |
| وَاِمَّآ اَنْ تَتَّخِذَ فِيْهِمْ حُسْنًا ﴿۸۶﴾ |
| اوياداچه اونيسه ته ددوئ په باره كښې يوه ښه لار |

﴿وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنْ ذِى الْقَرْنَيْنِ﴾ دادسورت څلورمه حصه ذكر كيږي اودڅلورمې شبهې جواب كيږي.چې شبهه داكيدله چې ذوالقرنين سره ډيرلوئ طاقت وو اوهغه متصرف فى الاموروو نودتوحيدعوي كول غلط دي، نوجواب راغې چې ذوالقرنين محتاجه وو اوكوم طاقت چې

[1] جواب ازشبهه رابعه

ورکړي شوهغه هُم دالله ﷻ دطرف نه وو اودظاهري اسباب ماتحت وو اوددغې ظاهري اسبابوباوجود په ځني امورو کښ محتاجه وو، اودخلکو نه ئې دامداددرخواست کړې وو لکه چې په ایت(نمبر۹۵)کښ دي، اودغه شان په ځنو لغاتو باندې هم نه پوهیدلو لکه ایت(نمبر۹۳)کښ دي

**تعارف**: قرآن مجید کښ دذوالقرنین تعارف صرف دومره حدپورې ذکرشوېدې چې دې یونیک اوصالح،عادل بادشاه وو په ټوله دنیاباندې بادشاهي کړې وه مشرق.مغرب. اوجانب شمال سفرئې کړې وو، په جانب شمال کښ یوقوم چې یاجوج ماجوج ورته وئیلې کیږي هغوئ په یودرې کښ داوسپنې ددیوال په ذریعې سره بندکړیدې اودهغې علاقې خلکو ته ئې دهغوئ دشرنه حفاظت ورکړیدې. اوددینه علاوه دهغه نوم،سلسله نسب،دهغه زمانه وغیره غیرضروري مباحث دي چې قرآن اوحدیث صحیح کښ دهغې نه بحث ندې کړې شوې، اونه یوانسان ددغې معلوماتو مکلف دې. البته ځني تاریخي روایاتو اودقرآنونه ځني مفسرینو دهغه اصل نوم.نسب. زمانه وغیره تعین کړیدې، دده په نوم کښ متعدد اقوال راغلیدې راجحه داده چې دده نوم اسکندروو، خوداسکندرپه نوم باندې هم ډیربادشاهان تیرشویدې. دټولونه اخیرکښ داسکندرپه نوم چې کوم بادشاه تیرشویدې هغه کافروو چې دهغه نوم اسکندربن فیلیس المقدوني الیوناني وو ارسطاطالیس چې مشهورپه ارسطو دې دهغه وزیروو اوهغه اسکندریه شهرپه خپل نوم باندې ابادکړې وو اودهغه جنګ د دارا بادشاه سره شوې وو اوهغه ئې قتل کړې وو اوفارس وغیره ممالك ئې فتح کړې وو اودهغه تاریخ باندې دفارسي یوکتاب اسکندرنامه لیکلې شویده، اوکوم اسکندرذوالقرنین چې قرآن کښ مذکوردې دهغه په نبوت کښ اختلاف دې اوپه نیك صالح مسلمان کیدلوکښ اتفاق دې، اوددوئ دواړوپه مینځ کښ تقریبادوه زره(۲۰۰۰)کاله فرق دې، یعنی مسلمان اسکندردکافرنه دوه (۲۰۰۰)زره کاله اول تیرشویدې، اودهغه وزیرحضرت خضر ؈ وو.

**وجه تسمیه**: ده ته ذوالقرنین ولې وائي؟ نوپدیکښ هم متعدداقوال راغلیدې، راجح پکښ دادي(۱)چې دې دوه عظیم سلطنتونوفارس،اوروم بادشاه وو(۲)یاقرنین نه مراد ښکرې دې اوداکنایه ده دشوکت اودبدبې نه(۳) یاقرنین نه مراد قرني الارض،یعنی مشرق اومغرب دې ځکه چې ده دمشرق نه ترمغربه پورې علاقې قبضه کړې وې(۴)یادده دوه(۲) زلفان وو پمنزله دقرن چې په اوګوباندې به ئې پراته وو(۵) دده په سرکښ یوطرف ته اوبل طرف ته دزخم دوه(۲)نشانونه وو اودهغې په باره کښ حضرت ابی الطفیل ﷺ دحضرت علی ﷺ نه داوجه نقل کړیده چې

ذوالقرنين خپل قوم دالله جل جلاله ددين دعوت ورکړونوقوم دې په سرباندې اويشتلونو،
مړشوالله جل جلاله بياژوندې کړو نوبيائې دعوت ورکړونوهغوئ بيااويشتلو دسرپه بل طرف باندې
اومړشونوددې وجه نه ده ته ذوالقرنين وئيلې کيږي(٦)اويا ددې وجه نه چې ده ته علم ظاهر او باطن
دواړه ورکړې شوې وو(٧)اويادې وجه نه چې ده په ابتداء کښې خوب ليدلې وو چې مادنمر دواړه
طرفونه نيولي دي(٨) اويادې وجه نه چې دده مدت دحيات دوه(٢) قرنه يعنى صدئ وه(٩)
اويادې وجه نه چې الله جل جلاله ده ته بطورکرامت يامعجزه دوه (٢)نشانې سپين اوتوروزکړې وې
چې کله به تکه توره شپه به وه خوچې ده به هغه سپينه نښه رااويستله نوټوله علاقه به دورځې
پشان رڼاشوله اوکه په سپيني ورځې کښې به ئې توره نښه راويستله نوتوره تياره به شوه(تاريخ
الخميس) (١٠)اويادې وجه نه چې دې دسپين اوتورو دواړو اقوامومالك وو.اوددينه علاوه
نورهم ډيراقوال مفسرينوذکرکړيدې.

**دده زمانه کومه وه؟** نواکثرمفسرينو دده زمانه دحضرت ابراهيم عليه السلام دورخودليدې،
چنانچه ابن کثير رحمه الله پدې جزم کړيدې چې ده دحضرت ابراهيم عليه السلام سره يوځائ طواف کړې
وو، اوبعض فرمائى چې دده اول ځلې ملاقات دحضرت ابراهيم عليه السلام سره په بيت المقدس کښې
شوې وو،اوپه هغه ئې سلام کړې وو اوپه حضرت ابراهيم عليه السلام باندې ايمان راوړې وو،بعض
علماء فرمائى چې دده زمانه دحضرت ابراهيم عليه السلام نه ورستودحضرت دانيال عليه السلام دورکښې
وو،چې تقريبا(٥٠٠ ق م) زمانه وه،اودده دوفات اوپه مدفن کښې هم اختلاف دې حافظ ابن
کثير رحمه الله په البدايه کښې داسې ليکلي دې،چې کله ده ياجوج ماجوج بندکړل اودچين علاقه تبت
وغيره ئې قبضه کړه نوواپس بغدادته راغې اوبيمارشو اويوه مياشت ورستوبياوفات شو اوځوك
وائې چې په روم کښې وفات شويدې(والله اعلم) اوپه ځنې رواياتوکښې راغليدې چې څلورکسان
دې چې هغوئ په ټولې دنيابادشاهې کړيده، دوه(٢)مؤمنان وو سليمان آوذوالقرنين اودوه
کافرو نمرود اوبخت نصر،اودده په نبوت کښې اختلاف دې راجحه داده چې دې نبى نوو بلکه
نيك صالح بادشاه وو اوکوم خلك چې دده دنبوت قائل دى نواستدلال کړيدې هغوئ په
ايت(نمبر٨٦) ﴿قُلْنَا يَٰذَا ٱلْقَرْنَيْنِ﴾سره چې الله جل جلاله ده ته خطاب کړيدې په وحې سره، ليکن جواب
تنه ممکن دې چې کيدې شي چې داخطاب په واسطه دخضر عليه السلام دې چې هغه دده وزيروو.

﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ﴾واو عاطفه دې اوداقصه عطف ده په قصې دموسى‌عليه السلام باندې اومناسبت ددې دواړو واقعاتوپه خپل مينځ کښ دادې چې دحضرت موسى‌عليه السلام واقعه په رحلاتودعلم باندې مشتمله وه اوذوالقرنين واقعه په رحلاتو دجهاد باندې مشتمله ده اودغه شان دموسى‌عليه السلام په واقعې کښ ددرې(۳)امورو ذکروو اواخيرې امراقامت دجدار وو نود ذوالقرنين په واقعه کښ درې(۳) امور ذکرذکردې اواخيرې امرسدسکندرې مذکوردې. اودغه شان حضرت موسى‌عليه السلام دعلم انتهاء ته رسيدلې وو په انسانانوکښ اوحضرت ذوالقرنين دعمل انتهاء ته رسيدلې وو په انسانانوکښ .اودغوره قول مطابق تپوس کوونکې قريش مکه ووپه مشوره ديهوديانوسره، اوسبب ددې سوال داووچې دهغه تاريخ(ذوالقرنين تاريخ) اوواقعه دخلکونه هيره شوې وه، نوددې وجه نه ددې صحيح جواب ورکول دحضورﷺ دنبوت دليل وو اوصيغه دمضارع ذکرکولوکښ اشاره ده استحضاردصورة ذهنيه ددې واقعې ته چې تيره شوې وه په زمانې ماضيه کښ.

﴿عَن ذِى ٱلْقَرْنَيْنِ﴾عبارت په جذف دمضاف سره دې اى عن خبرذى القرنين،ځکه چې تپوس ذات اوحقيقت دذوالقرنين نه وو، بلکه دهغه دواقعې نه وو،﴿قُلْ سَأَتْلُوا۟﴾سين لپاره دتاکيددې چې دلالت کوې په تحقق دفعل باندې، اولپاره داحضاردسامعينووې اوضميرمجروره د منه دغوره قول مطابق راجع دې ذوالقرنين ته اوبعض وائې چې راجع دې الله‌جل جلاله ته او من تبعيضيه ده اوپديکښ اشاره ده چې قرآن مجيددهغه ضرورې واقعات بيان کريدې اوټول حالات ئې دهغه ندې ذکرکړې اوکچرته ضميرراجع شي الله‌جل جلاله ته نوبيابه من ابتدائيه وي.چې داواقعه بيانول دالله‌جل جلاله نه دې يعنى دهغه په توفيق سره دې او ﴿ذِكْرًا﴾نه مراد واقعات دهغه دې اوپه﴿ذِكْرًا﴾سره اشاره ده چې واقعات قرآنيه محض تاريخې ندې اونه قرآن مجيدغيرضرورې واقعات ذکرکوې بلکه واقعات دقرآن لپاره دتذکيراونصيحت دې اوقرآن هغه امورذکرکوې چې په هغې سره انسان ته عبرت اونصيحت حاصليږې﴿إِنَّا مَكَّنَّا لَهُۥ﴾تمکين متعدي کيږې بالواسطه هم اوبلاواسطه هم وئيلې کيږې قدرت اوبادشاهې اوغلبې ته، اونسبت ئې ضمير دمتکلم ته کولوکښ اشاره ده چې ده ته قدرت اوغلبه ورکول دالله‌جل جلاله دطرف نه وو، اوبعض مفسرين فرمائى چې داتمکين فى الارض په سبب دنبوت سره وواودې نبى وو خوليکن دااحتمال

غیرراجح دي﴿وَءَاتَيْنَٰهُ مِن كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا﴾ سبب په لغت کښ وئیلې کیږي رسئ ته اوبیا په استعارې باندې اغستلې شویده دهرهغه څیزلپاره چې په هغې سره رسیدل کیږي مقصودته.نوددې اطلاق په علم قدرت. اوآلات حرب په ټولوباندې کیږي. او(من) په﴿مِن كُلِّ شَيْءٍ﴾ کښ بیانیه دې اودلته کښ مضاف مقدردې ای من اسباب کل شیئ اوکل لپاره داستغراق حقیقي ندي بلکه استغراق اضافی لپاره دې او اضافت دکل شیئ ته لپاره داستغراق حقیقې ندې،بلکه عرفی دې یعنی چې کوم اسبابو اووسائلوته دې محتاجه وو دملکونوپه فتح کولوکښ اوددشمنان په ختمولوکښ وغیره هغه ټول ورته ورکړې شوي وو.اوپدیکښ اشاره ده چې دهغه فتوحات اوبادشاهي وغیره ماتحت الاسباب وو اوداسبابو استعمالولوته محتاجه وو.

﴿فَأَتْبَعَ سَبَبًا﴾فاء فصیحیه ده تقدیردعبارت داسي دې اراد بلوغ المغرب فاتبع سببا اودسبب اطلاق په لارې باندې هم کیږي ځکه چې داهم منزل مقصود ته درسیدلو ذریعه ده نومعنې ئې داده چې دې روان شوپه یوې لارې باندې حتی چې مغرب ته اورسیدلواویادسبب نه مراد ذرائع دسفردې نومعنې ئې داده چې ده اسباب استعمال ئې شروع کړو دمغرب په طرف تللولپاره اوابتداء ئې دمغرب نه ځکه اوکړه چې هغه ورته قریب وو اوددلالت نه کوي په تفضیل دمغرب باندې په نوروجهاتوباندې﴿حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ﴾مغرب صیغه دظرف مکان ده په معنې دځائې دغروب شمس اودلته تنه مراد انتهاء اواخردزمکې دې په جانب دمغرب کښ اومرادتنه اخري مقام دغروب شمس ندې ځکه چې غروب دشمس ممکن ندې په سمندرکښ﴿وَجَدَهَا تَغْرُبُ﴾ وجداطلاق کله په موندلوباندې کیږي یعنی استعمالیږي په معنې دوجود خارجي سره نوپدې معنې سره شیئ معلوم دنفس الامر اوواقعې سره مطابقت ضروري دې. اوکله په معنې داحساس سره راځي یعنی محسوس کول اومشاهده کولوسره راځي نوپدې معنې په اعتبارسره دشیئ مرئې مطابقت دنفس الامرسره ضروري ندې، نودلته هم دادویمه معنې مراده یعنی ذوالقرنین داسي محسوسه کړه چې گویادې په تور دریاب کښ پټیږي اگرچه حقیقة اوپه نفس الامرکښ داسي نده خکه چې نمرخودزمکي نه په څوچنده سره غټ دې نوپه یودریاب کښ څرنگه غروب اوکړي﴿فِى عَيْنٍ حَمِئَةٍ﴾ عین اگرچه چشمې(چینې)ته وئیلې کیږي خومرادتنه سمندردې

او ﴿حَمِئَةٍ﴾ماخوذدې دحمئت البير .نه چې کله په کوهې کښې توري ختې رااوخي. اوحمل دحمئة په عين باندې صحيح ندې ځکه چې چشمه دختونوي نوددې وجه نه دلته ذات لفظ مقدردې اې ذات حماءة (روح)اوپه خنې قراءتوکښې حامية راغليدې يعنى ګرمه چينه.ددې ايت مقصددادې چې ذوالقرنين داسې ځائ ته اورسيدلوچې هلته اوبه وي اوسمندروو اومخکښې نوره ابادې نوه اوده داسې محسوسه کړه چې ګويا داشمس پدې اوبوسمندرکښې غروب کوي اودااحساس په نسبت سره مواضعوته مختلف دې، چې په کوم ځائ کښې غرونه وي نوهلته داسې محسوس کيږي چې دانمردغره نه شاطرف ته غروب کوي اوپه ځنې مواضعوکښې لکه صحرا وغيره شوهلته داسې محسوس کيږي چې ګويا دانمرپه شګوکښې غروب کوي وغيره نودغه شان ذوالقرنين داسې مقام ته اورسيدلوچې هلته نوره ابادې نوه اونه مخکښې دې تللې شو نوده داسې محسوس کړه چې ګوياچې دانمرپدې اوبوکښې غروب کوي اوهرکله چې دې دسمندرپه کنارې باندې وو چې ده ته ترلرې حدپورې پلندئ ښکارې دې نوددې وجه نه ﴿حَمِئَةٍ﴾قيدورسره ذکرشو

**دامقام اوځائې کوم يووو؟** نوداتحديداوتعيين کول مشکل دې. ځکه چې قرآن کښې الله ﷻ صرف دومره ذکرکړيدې چې دې يومقام ته اورسيدلوچې هلته ډيرې اوبه، وې اوورسره ګيرچاپيره ختې(پلندئې) هم وې، چې هغې ته حماء وئيلې کيږي، ددې نه زيات دمقام تصريح په قرآن کښې ياپه احاديثوکښې نيشته دې البته ځنې مفسرينودقرائنوپه بنيادامکان په درجې کښې دتعين کوشش کړيدې، نوبعض مفسرين دافرمائى چې دامقام بحراسود، دې ځکه چې دهغې اوبه توري دې اوداسې معلوميږي چې خته پکښې اوداذوالقرنين شمالى مغرب ته طرف واقع وو اوداعلاقه ګروزنى اويوګوسلاوبه ده اودې ته بحراسودوائى چنانچه مولانا عبدالماجد درياابادى رحمه الله پدې جزم کړيدې اودغه شان نورمعاصرومفسرينو هم ذکرکړيدې. ليکن داخبره ځکه محل نظرده چې بحراسود هغه بحيره ده اوبحرندې اومفسرينو ليکلې دې چې دې بحرته رسيدلې وو اودويم ددې وجه نه چې مفسرينوتصريح کړيده چې دې کوم ځائې ته رسيدلې ووو نودهغې نه مخکښې نوره ابادې نوه اواوچه زمکه هم نوه چې دې تللې وې.اوبحيره اسودنه مخکښې نورې اباديانې شته دې اواوچه زمکه هم شته دې. نودقرائنومذکورونه دامعلوميږي چې دې بحراوقيانوس شمالى ته رسيدلې وي چې داد مغرب طرف باندې هم واقع وو، اودهغې نه مخکښې اوچه زمکه هم

نیشته دي، چې دایوه حصه دبحرمحیط ده اوصاحب دفتح القدیرلیکي، لان من وراء هذه النهایة بحرالمحیط وهولایمکن المضی فیه(فتح) اوپه کوموقراتونوکښ چې حامیة یعنی ګرمي اوبه راغلیدې نودهغې توجیه هم داسي ممکنه ده چې دبحرتقسیم دوه(۲)اقساموته دې یوبحرمنجمد اوبل غیرمنجمد . غیرمنجمد هغه دې چې دهغه لپاره لهرونه(چپې) وي اودیته دوئ ګرم سمندراوګرمي اوبه هم وائې نوکوم سمندرچې(۲۰، ۲۲)نه پورته خط باندې واقع دې نوپه هغې کښ لهرونه نیشته دې، اوهغه منجمددې اوددینه لاندې هغه غیرمنجمددې اودیته ګرم سمندروائې(والله اعلم)

﴿وَوَجَدَ عِندَهَا قَوْمًا﴾یعنی په ساحل دبحرباندې یوقوم ابادوو، دلته ﴿وَجَد﴾معنې اولې کښې استعمال دې اودغه قوم کافروو لکه دراتلونکې جملې نه معلومیږي﴿إِمَّآ أَن تُعَذِّبَ﴾ده اوقاضي بیضاوي فرمائی چې ددوئ لباس دسباع څرمنې وو اوددوئ خوراك دسمندرحیوانات وو﴿قُلْنَا يَٰذَا ٱلْقَرْنَيْنِ﴾جمهورپه نیزداخطاب په ذریعه دنبي سره دې، اودکوموحضراتوپه نیزچې ذوالقرنین نبی دې نوهغوئ په نیزخطاب بالذات هغه ته دې﴿إِمَّآ أَن تُعَذِّبَ﴾ ذوالقرنین ته دالله ﷻ دطرف نه اختیارمیلاؤشو ددغې قوم په بارې کښ چې یائې قتل کړه اویائې پرې احسان اوکړه اوژوندې ئې پریده، اودااختیارپه اصلح الامرین کښ اجتهاد لپاره وو، چې کوم امرتاته اصلح ښکاره شي نوهغه اختیارکړه لکه پدې قول دالله ﷻ کښ هم مذکوردې، فامامنابعدالخ اومراد په تعذیب سره قتل دهغوئ دې، اوپه﴿حُسْنًا﴾سره مراد ژوندې پریخودل دې بغیردفدئې یاسره دفدیې نه،اوحضرت تهانوي رحمه الله توجیه داده چې مراد د(تعذب) نه بغیرددعوت نه جهادکول دهغوئ سره اودحسنا نه مرادپس ددعوت ورکولونه جهادکول دې اوددې نه معلومیږي چې دې قوم ته یوځل دعوت رسیدلې ووبلکه ځنې روایاتونه معلومیږي چې په دوئ کښ ځنې کسان اوس هم مسلمانان دې لکه حدیث دخروج دیاجوج ماجوج کښ راځي چې کله الله ﷻ ددوئ دخروج اراده اوکړي نودوئ به انشاء الله اووائې اودغه شان علامه عیني دمقاتل نه نقل کړیدي یحفرون الیه فی کل یوم فیعالجون حتی یولدفیهم رجل مسلم فاذا غدوا الیه قال لهم المسلم قولوا باسم الله فیعالجونه حتی یترکونه رقیقا

كفشر البيض ويرى ضوء الشمس فيقول المسلم قولوا بسم الله غدا نرجع انشاء الله تعالى فنفحته (عيني ج١٥ ص٢٣٨).

قَالَ اَمَّا مَنْ ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهٗ ثُمَّ يُرَدُّ

اوئيل ده چې هرهغه څوك چې په ظلم (شرك) باندې پاتې شونوزرده چې عذاب به ورکړو مونږه ده ته بيابه بيس کړی سي

اِلٰى رَبِّهٖ فَيُعَذِّبُهٗ عَذَابًا نُّكْرًا ﴿٨٧﴾ وَاَمَّا مَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهٗ

خپل رب ته نو عذاب به ورکړي ده ته سخت عذاب اوهرچاچې ايمان راوړو اوعمل ئې اوکړو نيك موافق دسنت. پس لپاره دده

جَزَآءَ ۨالْحُسْنٰى وَسَنَقُوْلُ لَهٗ مِنْ اَمْرِنَا يُسْرًا ﴿٨٨﴾ ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٩﴾

بدله ده خائسته جنت دې، اوخامخا اوبه وايومونږه ده ته دکار ددين زمونږه اسان. بيا روان شودې په بله لار

حَتّٰۤى اِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلٰى قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَلْ

ترهغې چې کله اورسيدلودې ځائ دختلودنمرته اوئې ليدلودانمرچې راختلوبه داسې قوم باندې چې نوۀ گرځولې مونږه

لَّهُمْ مِّنْ دُوْنِهَا سِتْرًا ﴿٩٠﴾ كَذٰلِكَ ؕ وَقَدْ اَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ

لپاره دوئ دنمرمخې ته هيڅ پرده. داکارهمدارنگې وو اوبه تحقيق سره احاطه کړې وه مونږه په هغې څيزونو باندې چې دده سره وو

خُبْرًا ﴿٩١﴾ ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٩٢﴾ حَتّٰۤى اِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمَا

به اعتبار دعلم سره. بيا روان شوپه بله لار ترهغې پورې چې اورسيدلومينځ ددوو غرونو ته اوموندلوئې شاته دهغونه

قَوْمًا ۙ لَّا يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ قَوْلًا ﴿٩٣﴾

يو داسې قوم چې نوونږدې چې پوهه شوې وې په خبروده باندې

﴿قَالَ أَمَّا مَن ظَلَمَ﴾ دا دذو القرنين جواب دې پس دتخيير ميلا ويدلو نه چې کوم کس ددعوت توحيد نه پس هم په خپل کفر اوشرك باندې قائم وي نوهغه ته به سزا ورکړم، او اخرت کښې به الله هم سخته سزا ورکړې. مراد په ظلم سره شرك دې خکه چې دټولو نه لوئ ظلم شرك دې، او

نعذبه نه مراد قتل کول دي دهغوئ اومضارع صيغه راوړل اوبيا په ابتداء کښي ﴿فَسَوْفَ﴾ راوړل. اشاره ده ديته چې حضرت ذوالقرنين هغوئ ته سزا ورکولوکښ جلتي نده کړي. بلکه بار بار ئې ورته دعوت ورکړو ﴿وَأَمَّا مَنْ ءَامَنَ﴾ يعنی چاچې خمادعوت قبول کړو او ايمان ئې راوړو اوتوحيد ئې اومنلو اودايمان دمقتضي مطابق نيك عمل ئې اوکړو. نوهغه ته به ډيرښه بدله ورکړې شي ﴿فَلَهُۥ جَزَآءً ٱلْحُسْنَىٰ﴾. جزاء يامنصوب دې لکه چې داقراءت داکثرودې اويامرفوع دې کچري منصوب شي نودي يامصدرپه موضع دحال کښ واقع شويدې،دالحسنى نه نوتقديردعبارت داسي دې فله الحسنى حال كونها جزاء اوياحال دې دضميرمجروره د(له) نه اوجزاء په معنې دمجزيا سره دې اى فله الحسنى حال كونه مجزيا، اويامفعول مطلق دې دفعل مقدرلپاره چې يجزى جزاء دې اويامنصوب دې بنابرتميزاوکچري مرفوع شي نودې مبتداء دې او ﴿ٱلْحُسْنَىٰ﴾ ورله خبردې اوبعض فرمائی چې داپه اضافت سره دې.يعنی جزاء مضاف اوالحسنى مضاف اليه اواضافت بياني دې اومراد په الحسنى سره دغوره قول مطابق جنت دې، ځکه چې ددنيوي انعامانوپه مقابله کښ ډيربهتردې (بحر) ﴿وَسَنَقُولُ لَهُۥ﴾يعنی دنياکښ به په ده باندې سخت احکامات نشي کيخودلې چې دده دطاقت نه باهروي، بلکه احکامات دشرعي ټول اسان دې، (بحر) اوحمل د ﴿يُسْرًا﴾ په امرباندې يامبالغة دې اوياپه حذف سره دې ا ذايسر ﴿ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا﴾ دابل سفردهغه ذکرکيږي چې دې دمشرق په طرف روان شولو ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ﴾ مطلع په فتحه دلام اوپه کسرې دلام سره دواړه قراته راغليدي يامصدرميمي دې اوياظرف مکان دې، که مصدرميمي شي نولفظ دمکان به بيادلته مقدروي، اودمطلع الشمس نه مراد عين مشرق ته رسيدل ندي ځکه چې هغې ته درسيدلوامکان نيشته دې، بلکه داسي ځائ ته رسيدل مراددې چې مطلع شمس ته نزدې علاقه وه اومشرق طرف ته ابادې ختموه ﴿وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلَىٰ قَوْمٍ﴾ داقوم يووحشي قوم وو ،اواکثر مفسرينورائ داده چې دازنج يعنی دسوډانيانويونسل وو چې درنګ نه توروو غټې شونډئ يې وې.اوبعض فرمائی چې دهند دنسل نه وو چې دمکران اوسيدونکې وو ﴿لَّمْ نَجْعَل لَّهُم﴾ پديکښ دهغوئ وحشيت طرف ته اشاره ده چې داقوم دتهذيب

نه هم ډيرلري وو اودوحشيانو اودځناوروپشان زندګي ئې تيروله.نه ورسره کپړي وي نه ئې کورونه وو بلکه په غارونو کښې به ئې ديخنئ اوګرمئ اودباران نه پناه اغستله ﴿سِتۡرًا﴾وئيلې کيږي هرهغه څيزته چې هغه پټوونکي وي اوپه هغي سره سړې پټيږي. نودلته تنه مرادهرهغه څيزونه دي چې په هغې سره دګرمئ اويخنئ وغيره نه بچ کيږي. نوداشامل دي غرونه ته.ونوبوټونه. کپړوته اوکورونه ته،نودذې وجه نه مفسرين فرمائی چې دوئ په داسي علاقه کښې آبادوو چې هلته نه غرونه وو نه بوټې وو. اونه دوئ سره کپړي وي او نه ئې کورونه وو اوپه غارونوکښې به پراته وو اودوئ بالکل په خط استواء پراته وو اوددوئ زندګي دحيواناتو پشان وه کپړي به هم ورسره نوي﴿كَذَٰلِكَ﴾غوره قول دادې چې مشاراليه د ذلك هغه حکم دې چې کوم ئې په مغرب کښې کړې وو.يعنی ذوالقرنين په مشرق کښې اهل مشرق سره هم هغه سلوك اوکړو چې کوم سلوك ئې دمغرب والوسره کړې وو. اوبعض مفسرين فرمائی چې كذلك کښې «ك» لپاره دبيان کمال دي اوداجمله لپاره دتاکيداودتحقيق دي اومقصددادې چې دذوالقرنين واقعه هم دغه شان ده لکه څنګه چې مونږه بيان کړه.

﴿وَقَدۡ أَحَطۡنَا بِمَا﴾عام مفسرين فرمائی چې پديکښې دذوالقرنين وسعت حکومت اوکثرت دفوج اوجنګي آلاتو ته اشاره ده. چې دهغه حکومت وسعت اوجنګي الات اوفوج دومره زيات وو چې دهغې علم فقط مونږته دې اوبل چاته دهغې څه اندازه نه لږي، ليکن حضرت الشيخ رحمه الله فرمائی چې پدي کښې دهغه دالوهيت نفی ته اشاره ده چې زمونږعلم دهغه په ټول سازوسامان، فوج لشکر، اوجنګي الاتوباندې حاوي دې، داټول څيزونه مونږهغه ته ورکړي وو اوزمونږ په حکم اوارادې سره هغه پدې څيزونوکښې متصرف وو اوخپل قدرت ورته نووحاصل

﴿ثُمَّ أَتۡبَعَ﴾ دادذوالقرنين دريم سفراومهم ذکرکيږي !ودادريم سفرکوم طرف ته وو؟ قرآن اوحديث کښې ددې تعين ندې کړې شوې خومفسرينودقرائنوپه بنياد داوئيلې دي چې داسفرجانب شمال ته ووځکه چې قديم ابادياني به شمال طرف ته وي اوخلك به زياده ترهلته پاتې کيدل اوداسفرئې دمطلع الشمس يعنی دمشرقې طرف نه شروع کړې وو﴿بَيۡنَ ٱلسَّدَّيۡنِ﴾بين په غالب احوالوکښې منصوب دې.خوچونکه دې دظروف متصرفه نه دې نوددې وجه نه کله پې رفع کله نصب اوکله پې جرراشي خودلته منصوب دې بناء برمفعوليت چې دې مفعول به واقع شويدې

دبلغ لپاره (كشاف)سد وئيلي كيږي هرهغه څيزته چې هغه حائل اوركاوټ وي دبل څيزلپاره .دلته تنه مراد غرونه دي او اطلاق پدي غرونوباندې دسدين مجاورة دي ګويا چې دا دياجوج اوماجوج دبندش لپاره يوقدرتي ديوالونه وو .اواكثراهل علم فرمائي چې سدپه فتحې سره اوسدپه ضمې سره ددواړومعني يوه ده.اوبعض فرمائي چې پدي كښ فرق دې سُدَّ په ضمې سره وئيلي كيږي هغه حاجزته چې په سترګوكتلي كيږي. اوسدپه فتحې سره هغه ته وئيلي كيږي چې په سترګونه كتلي كيږي. قال ابن اسحق الاول ماراته عيناك والثاني مالاتريانه(روح المعاني) اوبعض فرمائي چې په فتحې سره وئيلي كيږي هغه حاجزته چې هغه صرف په خلق دالله ﷻ سره وي اودانسان سعې لره پكښ دخل نوي.اوپه ضمې سره وئيلي كيږي هغې ته چې دانسانې سعې لره پكښ دخل وي ﴿وَجَدَ مِن دُونِهِمَا﴾(دون) په معنې د وراء (شاته) سره دي، اواكثرفرمائي چې په معنې دامام (مخې ته)سره دي اوداحتمال راجح دې ځكه چې شاته ددرې نه ياجوج ماجوج وو بهرتقديرمقصد دايت دادې چې ددې درې اوغرونوسره قريب يوقوم وو چې هغوئ په خبروهم نه پوهيدلو . ځكه چې ژبه ئې بدله وه اوفطانت پكښ هم نووچې په قرائنوسره پوهه شوې وې،اولايكادون يفقهون، اكثرو مفسرينورائ داده چې پديكښ نفي دمطلق فهم دكلام ته اشاره ده چې داقوم دذوالقرنين اودهغه داتباعوپه خبروباندې بالكل نه پوهيدلو اوهغوئ به په اشاروپوهه كولولكه څرنګه چې كوڼ سرې وي، (كشاف) اوبعض مفسرين فرمائي چې پديكښ اشاره ده چې هغوئ به دذوالقرنين په خبرو باندې پوهيدل خوپه تكليف سره اودسوچ اوفكركولونه ورستوبه ددوئ په ذهن كښ به خبره راغله اوذوالقرنين به هغوئ پوهه كولوځكه چې نفي دكاد دلالت كوي په وجود دڅيزباندې په تعسرسره، ليكن دااول ضعيف دې ځكه چې نفي دكادكله كله دتاكيدنفي لپاره هم راځي چې مرادتنه عدم امكان دمدخول ثابتول وي،كماهوالظاهر. اودويم قرائت دمزيدونه دې چې﴿يُفْقِهُونَ﴾په ضمې دې)سره دباب افعال نه دې نومعنې ئې داده چې دوئ بل څوك نشوپوهه كولې په خپلوخبروباندې اوداقوم دترك نه وو،اوداوه قسمه وو يوهغه ووچې په بحرخذرباندې وو هغوئ ته كاسپين وئيلي كيدلو، اودويم كاليشاسره نزدې وو چې هغوئ ته كوليشي وئيلي كيدلو.

**قَالُوا يَٰذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ**

اوئيل دوئ چې اې ذوالقرنين بيشكه ياجوج ماجوج ورانې كوونكي دي په ملك كښ پس آيا راجمع كرومونږه تالره

خَرْجًا عَلٰٓى اَنْ تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴿۹۴﴾ قَالَ مَا مَكَّنِّيْ

خرڅه پدې چې جوړ کړې ته په مینځ زمونږ او په مینځ ددوئ کښې دیوال هغه اونیل چې هغه مال چې طاقت راکړیدې ماته

فِيْهِ رَبِّيْ خَيْرٌ فَاَعِيْنُوْنِيْ بِقُوَّةٍ اَجْعَلْ بَيْنَكُمْ

په هغې کښې دتصرف کولو رب ځما ډیرغوره دې. نو امداد اوکړئ تاسو ځما په قوت«دسړو» سره جوړبه کړم ځه په مینځ دستاسو

وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ﴿۹۵﴾ اٰتُوْنِيْ زُبَرَ الْحَدِيْدِ حَتّٰٓى اِذَا سَاوٰى بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ

او په مینځ ددوئ کښې یو بند«دیوال». راوړئ ماته ټکړې داوسپنوتردې چې برابرئې کړلې په مینځ دسرونودغرونو کښې

قَالَ انْفُخُوْا ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَعَلَهٗ نَارًا ۙ قَالَ اٰتُوْنِيْٓ

ده اونیل چې ښه ئې اوپوکئ تردې پورې چې اوګرځولوئې دادیوال«پشانته» داور نو اونیل ئې چې «اوس» راوړئ ماته

اُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ﴿۹۶﴾

چې واړوم پدې باندې تانبه ویلې کړې شوې

﴿قَالُوا﴾ داخبره ورته ودوئ پو اسطې دترجمان سره کړې وه او نسبت ئې دوئ ته مجازا شویدې اوداهم ممکنه ده چې دوئ دذوالقرنین ته بالذات وئیلې وي بناء پدې چې ذوالقرنین ددوئ په خبروباندې پوهیدلو او دوئ په خپلو خبرو پوهه کولې شو اودافهام اوتفهیم دې داخل وي دالله ﷻ ددې قول تحت چې واتيناه من كل شئ سببا، دې ځکه چې افهام اوتفهیم هم هغه اشیاؤنه دې چې ذوالقرنین ورته په فتوحات حاصلولوکښې محتاجه وواوبعض فرمائی چې داپه اشاروسره وو،اوتعبیرتنه په قول سره مجازا دې.

﴿اِنَّ يَأْجُوجَ﴾ ددې قوم اوملك اودیاجوج ماجوج دملك په مینځ کښې دوه(۲) غټ غرونه وو، چې په هغې باندې راختل یاجوج ماجوج ته مشکل وو خو په مینځ کښې یوه دره وه چې هغه خلاصه وه،نوهغوئ به راتلل پدې درې په لارې باندې، اوددې قوم فصلونه حیوانات وغیره به ئې هلاك کول اوچې کله به ئې فصلونه وغیره اونه موندل نوخلك به ئې قتل کولو ،نوددې وجه نه دې قوم ذوالقرنین ته درخواست اوکړوچې ته زمونږ اوددوئ په مینځ کښې زمونږ دحفاظت لپاره

يومضبوط ديوال اوکړه. اوپدي چې کومه خرچه راځي هغه به زمونږه اداکړو اګرچه نه زمونږنه دټیکس په صورت کښې اخلي. ﴿يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ﴾ دا په وزن ديفعُول اومفعُول سره دې. بعض علماء فرمائي چې دااسمين عربي دې. ماخوذدي داجيج النارنه دکثرت تعداد دوجې نه داور شغلو سره اوداوربسرکوسره تشبيه ورکړې شويده.اوياماخوذدې دآج الظليم نه په معنې دسرعت سره. اوبعض فرمائي چې دادواړه اسمين عجمي دي اوغيرمنصرف دي له وجې دعلميت اوتانيت نه اويادوجې ده علميت اودعجمه نه.ځکه چې دادواړه نومونه دي دقبيلو لپاره

ياجوج ماجوج دغوره قول اودجمهورو دقول مطابق قبيلې دي دبني ادم .اوداولاد ديافث بن نوح العَلَيْكَلا نه دي. حضرت قتادة رحمه الله فرمائي چې دوئ دوه ويشت (۲۲) قبائل وو. پدوئ کښې يوويشت (۲۱) قبائل ذوالقرنين دديوال دشاته بندکړل چې هغه وحشي قبائل وو اويوه قبيله ئې پريخودله چې هغې ته ترک وئيلې کيږي، بعض مفسرينوددوئ په باره کښې اوددوئ داوصافو په باره کښې عجيب اوغريب اقوال نقل کړيدي، مثلا بعض وائي چې ددوئ قديوه وليشت دي بعض فرمائي چې يوګزددوئ قدونه دي.بعض فرمائي چې د دوئ قدونه (۱۲۰)ګزاوږده دي بعضو (۱۳۰)ګزاوږدوالی وئيلې دي اوهم دومره ئې پلنوالی هم ذکرکړيدي، اودامام بغوي رحمه الله نه داهم منقول دي چې ددوئ غوږونه دومره غټ دي چې غوږاوغوږه وي اوپه هغې سملې اوبل غوږ دڅان دپاسه واچي اوواغوندي ئې اوداسي نوراقوال پکښې هم راغليدي.ليکن داټول اقوال اسرائيليات دي.صاحب دبحرفرمائي وقداختلف فى عددهم وصفاقم ولم يصح فى ذلك شيئ(بحر) يعنى ددوئ په تعداد اوصفات کښې اختلاف کړې شويدې ليکن پدې سلسلې کښې صحيح روايت ندې راغلې په احاديثوکښې دياجوج ماجوج چې کوم ذکرشويدې هغه صرف ددوئ په کثرت باندې دلالت کوي اوددوئ خروج قرب قيامت علامت بيان کړې شويدې.امام بخارى دياجوج متعلق صرف دوه(۲)احاديث ذکرکړيدي چې په هغې کښې يوحديث دهغوئ په لوئ شرباندې دلالت کوي وعن زينب ابنة جحش رضي الله عنها ان النبى ﷺ دخل عليهافزعا يقول لااله الاالله ويل للعرب، من شرقداقترب فتح اليوم من ردم ياجوج وماجوج مثل هذه. وحلق باصبعيه الابهام والتى تليها. قالت زينب ابنة جحش رضي الله عنها فقلت يارسول الله ﷺ اهلك وفيناالصلحون. قال نعم اذاكثرالخبث(البخارى. كتاب احاديث الانبياء) ترجمه ام المؤمنين حضرت زينب بنت جحش رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چې بيشکه حضورﷺ يوځلې ځماکورته راغې په حالت دګبهراهټ کښې چې دائې وئيل لااله الاالله هلاکت دې

دغربو دهغه شرنه چې نزدې راغليدې. خلاص کړې شو نن ورځ ددیوال دياجوج ماجوج نه دومره سورې. اوحضورﷺ ابهاما(قچنئ) گوته اوورسره نزدې گوته میلاؤکړه اوحلقه ئې تنه جوړه کړه. حضرت زينب بنت جحشؓ فرمائي چې ماعرض اوکړو چې يارسول اللهﷺ آيامونږ به هلاك کيږو حالانکه مونږه کښې په نيکان خلك هم موجودوي، حضورﷺ اوفرمائيلو هاؤ چې گناهونه(زناگانې) زياتې شي

اوسد سکندرې کښې سورې کيدل کنايه ده دکمزورې کيدلو دهغې ديوال نه. اوبعض فرمائي چې په حقيقت باندې محمول دې، اودورستوايت﴿وَمَا ٱسۡتَطَٰعُواْ لَهُۥ نَقۡبٗا﴾. سره دحديث تعارض ځکه نيشته دې چې دهغې نه مراد په هغه وخت کښې نقب مراددې، اويادنقب نه مرادهغه سورې دې چې هغه دننه اوبهرپورې راپورې دواړو ته وې، اوپه حديث کښې صرف يو طرف ته سورې کول مراددې. اويا(ردم) مذکورفی الحديث کنايه ده دشيوعواوظهوردفتنونه، اوداحديث امام ترمذی اومسنداحمدوغيره کښې په مختلفوسندونوسره اوپه مختلف متنونوسره ذکرشويدې. بهرحال مقصد ددې حديث دادې چې حضورﷺ دياجوج ماجوج شره يولوئ شراوښودلو. اودويم روايت دحضرت ابوسعيد خدریؓ نه منقول دې چې هغه داسې دې، عن ابی سعيدالخدریؓ عن النبیﷺ قال يقول الله تبارك وتعالی ياادم فيقول لبيك وسعديك والخيرفی يديك، فيقول اخرج بعث النارقال ومابعث النار؟ قال من كل الف تسعمائة وتسعة وتسعين فعنده يشيب الصغيروتضع كل ذات حمل حملها وترى الناس سكارى وماهم بسكارى ولكن عذاب الله شديد، قالوا يارسول الله واين ذلك الواحد؟ قال ابشروا فان منكم رجلا ومن ياجوج وماجوج الفا الخ (البخاری: كتاب احاديث الانبياء).

ترجمه: حضرت ابوسعيدخدريؓ دحضورﷺ نه ارشاد نقل کړيدې چې حضورﷺ ارشاد اوفرمائيلو چې اللهﷻ به حضرت ادمؑ ته اواز اوکړي چې اې آدم! حضرت ادمؑ به جواب ورکړي چې حاضريم ټول خيرونه ستاپه قدرت کښې دې، نواللهﷻ به ورته اوفرمائي چې دخپل ذريت نه (جماعت داوراوباسه، نوآدمؑ به عرض اوکړي چې(يااللهﷻ ، څومره جماعت داور والادې. اللهﷻ به ورته اوفرمائي چې په هرزرو(۱۰۰۰)کښې نهه سوه نهه نوي کسان داوردې اويو کس دجنت دې،حضورﷺ اوفرمائيلو ، چې دابه هغه وخت وي چې يوماشوم چې به ددهشت اويرې نه بوډاشي، اوهرحمل والاځيزبه خپل حمل اوغورزوي. اووينه به ته(اې مخاطبه) خلکولره بې هوشه خوليکن هغوئ به څه نشي وجه نه بيهوشه نوي ليکن داللهﷻ عذاب

ډیرسخت دي نوصحابه کرام عرض اوکړو چې یارسول اللهﷺ دایوبه څوك وي؟ حضورﷺ ورته اوفرمائیل چې تاسوزیرې قبول کړئ دستاسو نه به یوکس وي اودیاجوج ماجوج نه به زر(۱۰۰۰)کسان وي الخ نوپدي حدیث کښې دهغوئ دتعداد کثرت ته اشاره ده. اودټولونه جامع حدیث پدي سلسلي کښې دحضرت ابونواس بن سمعانؓ نه مروي دي چې امام مسلم نقل کړیدي په خپل صحیح کښې. چې په هغې کښې ددجال تذکره ده. اوپه هغې حدیث کښې دي. چې حضرت عیسیٰ علیه السلام به دجال په باب لد سره قتل کړي. بیابه الله جل جلاله حضرت عیسیٰ علیه السلام ته وحي رااولیږي چې ځه اوس خپل هغه مخلوقات بهرته رااوباسم چې دهغوسره دجنګ طاقت څوك هم نه لري،ته ځمابندګان کوه طورته دځان سره دحفاظت په غرض بوځه.حضرت عیسیٰ علیه السلام به تعمیل حکم اوکړي اویاجوج ماجوج به دهراوچتي غونډئ نه به راکوزیږي اوخوریږي به، اودهغوئ اول جماعت چې کله په بحیره طبریه(بحرمردار)باندې راشي نوټولي اوبه به اوڅکي نوچې کله ددوئ دویم جماعت بحیره طبریه ته راشي(نوهغوئ به صرف هلته کښې لوندوالی اوګوري اواوبه به نوي) نوهغوئ به وائي چې دلته هم په یوزمانه کښې اوبه موجودي وي الخ اوپه ځني روایاتوکښې راغلیدي چې هغوئ به یوي غونډئ ته اوخیژي اواسمان ته به غشي ولي الله جل جلاله به ورته په خپل قدرت سره دغشي سرونه سره رنګ کښې به واپس کوي نودوئ به وائي چې مونږدزمکي والامخلوق ختم کړو اوس داسمان والاهم ختموو اومستدرك حاکم کښې دحضرت عبدالله بن عمرؓ نه روایت دي چې حضورﷺ ارشاد اوفرمائیلوچې الله جل جلاله ټول انسانان لس(۱۰)حصي کړیدي، پدوئ کښې نهه حصي یاجوج ماجوج د ي اویوه حصه انسانان دي(روح بحواله مستدرك) نوددي روایاتونه معلومه شوه(۱)چې یاجوج ماجوج دنوع بني ادم نه دي،(۲)اودغه شان دادتنه هم معلومه شوه چې دهغوئ تعداد دعاموانسانانو په نسبت ډیرزیات دي(۳)اودغه شان دهغوئ شراوفتنه به هم دعظیموفتنونه، به وي(۴)اودهغوئ خروج دعلامات کبرې دقیامت نه ده(۵)، اودهغوئ خروج به پس دنزول دعیسیٰ علیه السلام اومهدي اوظهورددجال نه به وي. نولهذا قول دهغوخلکوباطل دي چې هغوئ وائي چې یاجوج ماجوج دمخلوقاتوکښې دبني ادم نوعي نه علاوه یوه بله نوعه ده، اویاداچې دحضرت ادم علیه السلام نه احتلام په صورت کښې نطفه دخاورو سره خلط شوي وه دهغې نه داپیداکړې شویدي، لکه چې دا قول منسوب دي کعب احبارته. اودغه شان قول دهغو خلکو هم باطل دي چې وائي چې یاجوج ماجوج تاتاریان دي یادچین اویادروس خلك یاجوج اوماجوج دي،نوکچرته مقصد ددې قول داوي چې فتنه تاتاریه

مشابه وه دفتنودياجوج ماجوج سره اوپدي اعتبارپه هغوئ باندې اطلاق مجازي دياجوج ماجوج خوصحيح كيږي، خوكچرته مقصد ددغې خلكوپدوباندې اطلاق حقيقة وي نودانصوصو نه مخالفه ده اودغه شان دروس اوچين خلكوته پدي اعتبارسره ياجوج ماجوج وئيل چې دوئ به دهغوملګرتياكوي نودصحت امكان شته دې خوحقيقة پدوئ باندې دياجوج ماجوج اطلاق كول غيرصحيح دې علامه آلوسي رحمه الله په روح المعانى كښ فرمائى ولعمرى ان ذلك الزعم من الضلالة بمكان، وان كان بين ياجوج وماجوج واولئك الكفرة مشابهة تامة لاتخفى على الواقفين(روح) (والتفصيل فى القرطبى، وروح المعاني، وفي البداية والنهايه لابن كثير).

﴿مُفۡسِدُونَ﴾مراد دَفساد دخلكو خوراك اودهغوئ قتل اودهغوئ فصلونوته نقصان رسول دي،(كشاف) ﴿فَهَلۡ نَجۡعَلُ لَكَ خَرۡجًا ﴾(خَرج اوخَراج) دواړه په يوي معنې سره دي.لكه نول اونوال، اوبعض فرمائى چې خرج مصدردې اوخراج اسم دې دهغه لپاره چې كوم دزمكې نه رااوځي، اوفاء لپاره دتفريع ده اودا تفريع ده په صورت دعرض اودرخواست كښ دهغوئ په فسادباندې چې مونږ به تاله څه چنده جمع كړو اوته زمونږ اودياجوج اوماجوج په مينځ كښ ديوال اوكړه.

﴿سَدًّا﴾مرادتنه حاجزاوركاوټ دې، (روح) ﴿قَالَ مَا مَكَّنِّي ﴾داد ذوالقرنين جواب دې چې ماته ددولت اواجرت ضرورت نيشته دې كوم دولت چې الله جل جلاله ماته راكړيدې هغه څما لپاره پوره دې تاسوځماصرف افرادي قوت سره امداد اوكړئ څه په خپل خرچ سره يومضبوط ديوال جوړوم. ﴿فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ ﴾پديكښ هم دذوالقرنين نفى دالوهيت ته اشاره ده چې ديوال جوړولوكښ محتاجه وو﴿رَدۡمًا﴾ ، ردم وئيلې كيږي مضبوط ديوال ته اودادسد نه غټ وي، حاجزا حصينا موثقا والردم اكبرمن السد(مدارك) اوپديكښ اشاره ده چې ديانت داراوصالح بادشاه درعيت مال بلاضرورت نه اخلي.

**فائده**: ددي ايت نه معلوميږي چې درعيت دتحفظ لپاره اجرت اومحصول اغستل جائزدي اودغه شان ددې ايت نه داهم معلومه شوه چې اجرت لكه څرنګه چې مال سره صحيح كيږي نودغه شان په محنت اومزدوري سره هم صحيح كيږي چې ديته اجرت بدنيه وئيلې كيږي، اودغه شان مفسرين فرمائى چې پدي ايت كښ دليل دې په جيلونوجوړلواودفساد

کوونکوپه جیل کولوباندې.اودغه شان حکمران ته تعلیم دې چې دخپل رعیت خیال ساتي اودهغوئ دجان اومال تحفظ دې کوي.

﴿ءَاتُونِي زُبَرَ ٱلْحَدِيدِ﴾ (زُبَر) جمع ده دزبرة.وئيلې کيږي ټکړوته مرادتنه داوسپنې ټکړې دې يعنى داوسپنوخښتې،بعض مفسرين فرمائى چې ذوالقرنين بنيادونه دومره اوکنستل چې لاندې اوبه څرګندې شوې اوبيائې هغه بنيادونه دغټوغټوکاڼونه اودتانبې نه ډك کړل اوپاڅه ئې پرې داوسپنې ديوال اوکړو چې په مينځ کښې لرګي اوکوئله ئې کيخودله.چې کله ديوال دغرونو سرونوسره برابرشو نوبيائې اور ورله ورکړو حتى چې لرګي اوکوئله اوسوزيدله اوديوال داورپشان سورشونوبيائې حکم اوکړو چې اوس ماته ويلې کړې شوې تانبه راوړئ نوخلکو ورله راوړه هغه ئې په ديوال باندې چې توئې کړه نولرګي اوکوئله خوسوزې ليدلې وه اوتانبې دهغې ځائ اونيولولکه چې سيمټ چې په ديوال کښې اولګې.

﴿حَتَّىٰٓ إِذَا سَاوَىٰ﴾داغايه دمحذوف لپاره ده ا فاتوه اياها فاخذيني شيئا فشيئا حتى الخ يعنى خلکوورله ټول سامان اوسپنې وغيره راجمع کړل نوده به يوه يوه ښخته لګوله حتى که چې دغرونوسرونوسره ئې برابرکړو، ﴿بَيْنَ ٱلصَّدَفَيْنِ﴾صدف دتصادف نه دې مخامخ ته وئيلې کيږي، يعنى داوسپنوبلاکونوسره ئې يوبل ته مخامخ ديوالونه ئې ډك کړل اوسرونه ئې يوبل سره برابرکړل. ﴿قَالَ ٱنفُخُواْ﴾په مينځ کښې چې کوم لرګي اوکوئله ئې ورکړې وه نوهغې ته ئې اورورکړو اوبيائې عمّالويعنى مزدورانوته اوئيل چې دااور ښه بل کړئ يعنى ښه پوکې ورله ورکړئ چې ښه بل شي. ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا جَعَلَهُۥ نَارًا﴾داغايه هم لپاره دمحذوف ده اوپه کلام کښې تقديردې، اى فنفخوا حتى اذا جعله نارا(بحر) او﴿جَعَلَهُۥ نَارًا﴾دقبيلې دتشبيه بليغ نه دې، اى اذاجعله كالنار، اووجه دشبې حرارت اوهيئت دې، اوضميرمرفوع دجعل راجع دې ذوالقرنين ته.اواواګرچې هغه نووبل کړې بلکه عمالوبل کړې وو، ليکن نسبت هغه اصالة دې ځکه چې هغه آمريعنى امرکوونکې وو. ﴿أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا﴾ دقطرنه مراد ويلې کړې شوې تانبه ده او﴿قِطْرًا﴾دباب دتنازع الفعلين، نه دې چې پده کښې ﴿أُفْرِغْ﴾او﴿ءَاتُونِي﴾.تنازع کړيده اوعمل ورکړې شويدې فعل ثانى يعنى افرغ ته چې افرغه ندې وئيلې شوې اودامذهب دبصرينو دې

او استدلال ئې پدې ايت اودغه شان نورو ايتونو سره کړيدې په اعمال کښې فعل ثاني ته په وخت دتنازع کښې.

**فائده**: داسد سکندری کوم ځائ کښې واقع دې؟؟ نوپدې سلسلې کښې ډيراقوال راغليدی (۱) دجمهورومسلك دادې چې داغيرمعلوم دې اګرچه موجود دې په خارج کښې اوعدم مشاهده مستلزم نده عدم دوجود له، اوپه تعيين باندې څه نص اودليل يقيني نشته دې، اوډيرې موجودات خارجيه داسې دي چې انسان ته دهغې په وجودباندې اطلاع نوې ورکړې شوې. لکه چې وئيلې کيږي چې په جنوب امريکه کښې يوه حصه دزمکې داسې ده چې په هغې باندې مارغه هم دتيريدلو طاقت نه لري، اودغه شان مروي دې چې دکوه قاف نه شاته څه داسې مخلوقات اوسيږي چې علم ئې بغيرالله ﷻ نه چاته هم نيشته معجمه البلدان، اودغه شان امريکه هم ورستو دريافت شويده، نودغه شان الله ﷻ ياجوج ماجوج هم دانسان نه پټ کړيدې اوددوئ دمکان په باره کښې عامو انسانانو ته علم ندې ورکړې. اوبعض مفسرينو داثارو اوقرائنو په بنيادد تعيين کوشش کړيدې، مشهورمورخ ابن خلدون رحمه الله ديته ترجيح ورکړيده چې داسد سکندري دکوه قاف سره واقع دې چې دهلنه ددوه قبائل اباددې چې هغوته قنجاق اوچرکس وئيلې کيږي اوددې قبائلو دشاته ياجوج ماجوج دې اوددواړو په مينځ کښې داسد سکندرې واقع دې، اوواثق بالله چې عباسي خليفه وو هغه خوب اوکتلو چې داسدکولاؤ شويدې نوډيرګبراؤشو اويوترجمان ئې دتفتيش لپاره اوليږلونوهغه واپس راغې نوددې سدحالات اواوصاف ئې بيان کړل بعض مفسرينو ديته ترجيح ورکړيده چې داسدبخارا نه (۱۵۰) ميل لرې جنوب مشرق کښې دربند. نوم علاقې کښې واقع دې چې دهغې عرض البلد شمالا (۳۸) درجې باندې دې اوطول البلد شرقا (۲۷) درجې باندې دې. بعضو ديوال چين ته سدسکندري وئيلې دي. ددې نه علاوه نوراقوال هم پکښې راغليدی. ليکن غوره خبره هغه ده چې حضرت شاه انورشاه کشميري رحمه الله فرمائيلې ده چې دهغې خلاصه داده چې په مختلف زمانوکښې دمختلفو مفسدينو اودشرپسندونه دحفاظت لپاره ديوالونه جوړکړې شويدې لکه (۱) ديوال چين چې په چين کښې واقع دې، (۱۵۰۰) ميله اوږد دې. (۲) دويم بخارا اوترمذ په مينځ کښې واقع دې په دربند کښې (۳) دريم په روس کښې په داغستان کښې واقع دې چې دهغې نوم هم دربند دې. اودا په باب الابواب سره مشهوردې

(۴)خلورم په روس کښې په کاکیشاکښې واقع دې چې داپه قفقازیاکوه قاف په سد سره مشهوردې. پدې تولوکښې حضرت شاه صاحب رحمه الله دې اخري ته یعنی کوه قاف والاسد ته ترجیح ورکړیده. اوبعض مفسرینوکاکیشادربندکښې واقع سدته ترجیح ورکړیده(والله اعلم بالصواب)

فَمَا اسْطَاعُوٓا اَنْ يَّظْهَرُوْهُ وَمَا اسْتَطَاعُوْا لَهٗ نَقْبًا ﴿۹۷﴾ قَالَ

پس دوئ طاقت نه لري چې رااوخیژي پدې دیوال اونه طاقت لري دهغې دسوري کولو اوئیل هغه

هٰذَا رَحْمَةٌ مِّنْ رَّبِّيْ ۚ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّيْ جَعَلَهٗ دَكَّآءَ ۚ وَكَانَ

داخاص رحمت دې دطرفه درب ځمانه پس هرکله چې راشي وعده درب ځمااوبه گرځوي دادیوال ریزه ریزه اوده

وَعْدُ رَبِّيْ حَقًّا ﴿۹۸﴾ وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَّمُوْجُ فِيْ بَعْضٍ

وعده درب ځما یقیني(صحیح).اوپرې به ږدو بعضې ددوئ په دغه ورځ چې ننوځي به په بعضونوروکښې

وَّنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَجَمَعْنٰهُمْ جَمْعًا ﴿۹۹﴾ وَّعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكٰفِرِيْنَ

اوپوکې به اوکړې شي په شپیلئ کښې اوراجمع به کړومونږ دوئ په جمع کولوسره،اوراښکاره به کړومونږه جهنم پدغه ورځ کافرانو ته

عَرْضَا ﴿۱۰۰﴾ الَّذِيْنَ كَانَتْ اَعْيُنُهُمْ فِيْ غِطَآءٍ عَنْ ذِكْرِيْ وَكَانُوْا لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَمْعًا ﴿۱۰۱﴾

ښه ښکاره.داهغه کسان دې چې وې سترگې ددوئ په پردوکښې دذکرځمانه اووو دوئ چې طاقت ئې نه لرلو حق داوریدلو

﴿فَمَا اسْطَاعُوْا﴾اسطاعوا په اصل کښې "استطاعوا" وو،تاء تخفیفا حذف کړې شویده اوډ

﴿أَن يَظْهَرُوهُ﴾نه مراد پدې دیوال باندې راختل دې چې دادیوال خویه اوډیراوچت دې ددې وجه نه هغوئ په دې دیوال باندې نشي راختلې. بعض مفسرین فرمائی چې ددې دیوال اوچتوالی(۲۰۰)دوه سوه گزه دې اوڅوك وائي چې(۱۸۰)گزدې او﴿نَقْبًا﴾نه مراد دادې چې پدې دیوال کښې هغوئ سورې(سوراخ)نشي کولې ځکه چې ډیرمضبوط دې﴿قَالَ هٰذَا رَحْمَةٌ﴾دې عظیم الشان دیوال جوړولونه ورستوذوالقرنین داقول اوکړو چې دادیوال اوماته پدې باندې

تمكين اوقدرت راکول خالص دالله ﷻ رحمت اوفضل دې. په﴿هَـٰذَا﴾سره اشاره ده هغې سدته،اويا تمكين اوقدرت ته پدې ديوال باندې ؛ د﴿فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّى ﴾ مرادتنه قرب قيامت دې چې هغه وقت خروج دياجوج ماجوج دې.

**فائده:** سدسكندرې په قيام كښې اختلاف دې چې داتراوسه پورې قائم دې اوكنه دې؟ نوپدې سلسلې كښې څه نص قطعي نيشته دې اګرچې پدې باندې نصوص قطعيه قائم دې چې خروج دياجوج ماجوج به قريب دقيامت سره وي اوپس دخروج دجال اونزول عيسې عليه السلام نه وي خوليكن په سدسكندرې ترننه ورځې پورې په قيام باندې څه دليل قطعي نيشته دې. بعض مفسرينو﴿فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّى ﴾ سره استدلال کړيدې خوداايت هم محتمل دې. قطعي ندې. ځكه چې د﴿وَعْدُ رَبِّى ﴾ نه مراد خروج دياجوج ماجوج هم مرادكيدې شي اوقيامت هم مرادكيدې شي لكه چې داتيرشويدې. اوهغه حديث چې كوم امام ترمذي رحمه الله وغيره نقل کړيدې چې ياجوج ماجوج روزانه داديوال سورې كوي،كنې،حتى كه چې دوئ دنمرشعاګاني اووينې نودوئ اووائې چې نن واپس شئ اودانوربه صباكولاؤكو، نودوئ چې بياصباراشي نوهغه ديوال نورهم زيات سخت کړې شوې وي حتى كه چې دوئ تريومدې پورې داسې كوي نوكله چې الله ﷻ ددوئ دخروج اراده اوکړې نودوئ كښې هغه يوكس اووائې چې ځئ اوس لاړشئ اونوربه انشآء الله صباكونو، نوددې انشاء الله وئيلوپه بركت سره چې دوئ سحرراځي نوهغه ديوال هغه شانتې وي چې دوئ څرنګه پريخودلې وو نودوئ به هغه پاتې ديوال هم اونړه وي اوبهرته رااوځي الخ.دې حديث ته حافظ ابن كثيرمعلول وئيلې دې فرمائي چې«اسناده جيدقوی ولكن متنه فی رفعه نكارة»اووجه دنكارت ئې داذكرکړيده چې دظاهردايت سره ئې تعارض دې اوفرمائي چې ممكنه ده چې داقول دې دكعب احباروي اوهغه ځنې اسرائيلې روايات نقل كوي. ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله په اسنادصحيحه سره چې په هغې كښې دځنې سندرجال دبخاري دې اومرفوع الى النبي ﷺ ئې نقل کړيدې. نوراجحه خبره داده چې دامذكوره حديث صحيح دې اودايت سره تعارض نيشته دې لكه لړمخكښې داخبره مونړه دبل حديث په ضمن كښې ثابته کړيده.خوپدې حديث كښې داتصريح نيشته دې چې داديوال سورې كول به اودوئ خروج به متصل وي اودغه شان په حديث كښې داتصريح هم نيشته چې دياجوج ماجوج ټول قبائل ددې ديوال داشاته دې

سمکنه ده چې يوه قبيله دې دهغوئي نه ديوال دشاته وي اوديوال دې سوري کړي شوې وي اونورقبائل دې په نورو لاروباندې راشي
خلاصه داده چې سدسکندرې ترقرب قيامت پوري قائم کيدلوباندې نص قطعي نيشته دې.
اگرچې احتمالات راجحه دادي چې ددې انهدام به قريب القيمة وي چې کوم وخت کښې هغوئ رااوځي په هغه وخت کښې به وي(والله اعلم بالصواب).

﴿وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ ﴾غوره خبره داده چې ضميرراجع دې خلائقوته او﴿يَوْمَئِذٍ﴾ نه مراد ورځ دقيامت ده اوداتخويف اخروې دې دهغه خلکولپاره چې دتوحيدنه ئې ځان لونړکړيې دې.
اوبعض مفسرين فرمائی ضميرراجع دې ياجوج ماجوج ته او﴿يَوْمَئِذٍ﴾ نه مراد دهغوئ دخروج والا ورځ ده. ﴿يَمُوجُ فِي بَعْضٍ ﴾موج ونيلې کيږي چپووهلو ته مرادتنه دلته اضطراب اوپريشانې ده مجازا يعنی چې کله دالله ﷻ وعده دقيامت راشي نوداخلك به ډيرمضطرب اوپريشانه وي.
اوډيرې پريشانئ دوجې نه به يوبل کښې ننوځي﴿وَنُفِخَ فِي الصُّورِ ﴾ مرادتنه نفخه ثانيه ده ځکه چې دمابعدجملې﴿وَعَرَضْنَا﴾سره ډيرمناسب دې.﴿وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ ﴾مراد عرض نه ابتداء جهنم ښکاره کول دې کافرانوته اوداښکاره کول لپاره دسختئ اوددوئ دپريشانئ لپاره به وي وفی الحديث يؤتى بجهنم لهاسبعون الف زمام مع کل زمام سبعون الف ملك يجرونها(مسلم).

﴿الَّذِينَ كَانَتْ ﴾اسم موصول داصفت ذامه دکافرانودې اوسبب دعذاب دهغوئ دې اوداکنايه ده دشدت انصراف اواعراض دهغوئ نه دقبول حق نه(کبير) تعبيرددينه په ماضي استمرارې سره اوشواشاره ده ديته چې ددوئ اعراض على سبيل الاستمراروو،اومراد په ﴿ذِكْرِي﴾سره توحيددې اوداهم ممکنه ده چې قرآن ترينه مرادشي﴿وَكَانُوا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا ﴾دلته داسي اونه ونيلې شو چې (کانوا اصما)، حالانکه دازيات مختصردې. لپاره ددې چې مبالغه راشي په انتفاء دسمع يعنی اوريدلو کښې دهغوئ نه. ځکه چې کونړسړې کله کله واوري اوداوريدلو طاقت پکښې وي چې کله ورته په چيغه سره اوازاوکړې شي، اوددوئ داسي دې چې بالکل طاقت هم داوريدلو نه لري (کشاف).

| اَفَحَسِبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنْ يَّتَّخِذُوْا عِبَادِيْ مِنْ دُوْنِيْٓ اَوْلِيَاۤءَ ؕ اِنَّآ اَعْتَدْنَا |
|---|
| [1]آیاگمان کوي هغه کسان چې کفرئې کړیدې چې اونیسي دوئ بندګان ځماسیواځمانه مدد ګاران. بیشکه تیار کړیدې مونږه |
| جَهَنَّمَ لِلْكٰفِرِيْنَ نُزُلًا ۝ قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْاَخْسَرِيْنَ اَعْمَالًا ۝ اَلَّذِيْنَ |
| جهنم کافرانولره میلمستیا. اوایه ته آیاخبردرکړم تاسوته په باره دډیرتاوان موندونکو په اعمالوکښې. داهغه کسان دي |
| ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ يُحْسِنُوْنَ صُنْعًا ۝ |
| چې ضائع دي،عبث دي عملونه دَدوئ په ژونددنیاکښې اودوئ ګمان کوي چې بیشکه دوئ ښائسته عمل کوي دي. |
| اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ وَلِقَآئِهٖ فَحَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيْمُ |
| داهغه کسان دي چې کفرئې کړیدې په ایتونودرب خپل باندې اوپه ملاقات دده سره پس برباددي عملونه ددوئ نواونه دروو مونږه |
| لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا ۝ ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوْا |
| لپاره د دوئ دقیامت په ورځ تول(دعمل). دا(چې ذکرشو) بدله ددوئ جهنم دې په سبب ددې چې دوئ کفرکړیدې |
| وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَرُسُلِيْ هُزُوًا ۝ |
| اونیولې ئې وو ایاتونه ځمااورسولان ځماپه توقوسره. |

﴿أَفَحَسِبَ ٱلَّذِينَ ﴾دسورت خاتمه ده پدې کښې تخویف اخروي دې، اودا اولې شبهې په جواب باندې بالذات اوددویمې شبهې په جواب باندې بالتبع تفریع ده، چې کله داللهﷻ نیک بندګان اصحاب کهف وغیره متصرف اوکارسازندي نوشیطانان چې کفارئې عبادت،کوي په طریق اولې سره کارسازندي،اواستفهام لپاره دتوبیخ دې (ابوالسعود)او﴿ٱلَّذِينَ﴾موصول قائمقام دې دمفعولینود﴿أَفَحَسِبَ﴾نواصل عبارت داسې دې ای افحسبو هم انهم یتخذونهم اولیآء من

[1] تخویف اخروی متفرع برجواب اولی بالذات وبرثانیه بالتبع

دوني(ابو سعود)اوبعض فرمائي چې موصول مفعول اول دې اومفعول ثاني محذوف دې چې هغه نافعًا دي اى افحسبوا اتخاذهم نافعالهم(ابو السعود)، اوجواب داستفهام محذوف دې چې كلاً بل هم اعدآء هم يتبرؤون منهما(زاد المسير) نومقصد دايت داشوچې كافران دي داګمان نه كوي چې مونږبه دالله ﷻ نه علاوه دهغه دمخلوقاتوعبادت كوو اوهغوئ به مونږته نفع راكړي داګمان دهرګزنه كوي بلكه دغه معبودان به ددوئ دشمنان اوګرځي اوددوئ نه به دبراءت اعلان كوي. ﴿عِبَادِي مِن دُونِيٓ﴾مراد په عبادسره بقول حضرت ابن عباس رضي الله عنه شياطين دي،اواكثرمفسرين فرمائي چې مرادتنه عام معبودان دي كه شياطين وي يابتان اويا ملائكه اويا انبياء اواوليآء وي.﴿إِنَّآ أَعۡتَدۡنَا جَهَنَّمَ﴾داتخويف دي وضع داسم ظاهرپه ځائ دضميراوشوله لپاره داشاري دي خبري ته چې دااعتداد جهنم په سبب دكفرددوئ سره دي، او﴿نُزُلًا﴾ وئيلي كيږي ميلمستياته. اوبعض فرمائي چې هرهغه څيزته وئيلي كيږي چې هغه دميلمه لپاره تيارشوي وي هغه كه مكان وي ياخوراك وي، والنزل موضع النزول والنزل ايضا مايقدم للضيف ويهياء له وللقادم من الطعام(بحر) اودلته دواړه معني صحيح كيديې شي اوبعض فرمائي چې﴿نُزُلًا﴾جمع دنازل ده اومنصوب دي بناء برحاليت ليكن اول احتمال زيات راجح دي، اوجهنم اودهغي سزاګانوته نزل وئيل تهكمادي.﴿قُلۡ هَلۡ﴾داخطاب دي كفاروته په واسطه دحضور ﷺ اوعلامه آلوسي رحمه الله فرمائي چې كله استفهام حمل كړې شي په استيذان باندې نوپه هغې كښې اشاره وي تهكم ته. او﴿أَعۡمَٰلًا﴾ منصوب دي بنابرتميز اوقانون په تميزكښې دادې چې كله دې جنس وي نومفرد به وي وجوبا لكه چې دكافيې عبارت دې فيفرد ان كان جنسا، نوعمل خومصدرجنس دې نوقانون مطابق مفرد راوړل پكاروو. خودلته جمع ځكه راوړې شوه چې دعمل لپاره انواع مختلفه دي اوكله چې دتميزنه انواع قصدكړې شي نوبياجمع كيدلې شي اودلته هم انواع تنه قصدكړې شويدې چې هغه متعددې اهل كتاب يهود .نصارې وغيره دي

﴿ٱلَّذِينَ ضَلَّ﴾ادهغوئ دبدانجام بيان دي. چې دامشركين اومبتدعين دخپلوعملونوپه باره كښې داخيال كوي چې مونږبه عملونه كوو حالانكه ددوئ داعملونه عبث اوضائع دي او

﴿ٱلَّذِينَ﴾دا جمله يامحلا مجروره ده بناء بربدليت چې دابدل دې د﴿بِٱلۡأَخۡسَرِينَ﴾نه اويامنصوب ده په فعل مقدرسره چې اخص دې اويامرفوع ده اوخبرواقع شويده دمبتداء محذوفي لپاره چې هم دې او﴿ضَلَّ﴾ په معنې دبطل سره دې او ﴿فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا﴾متعلق دې په سعې پوري اوندې متعلق په ضلّ پوري، ځکه چې بطلان دسعې دهغوئ دامختصه نده په ژوندددنياپوري فقط بلکه دنيااواخرت دواړوکښې ددوئ سعې عبثه ده، اوددې په مصداق کښې اختلاف دې چې ددينه څوك مراددې، (۱)دحضرت سعدبن ابی وقاص﷛ نه مروي دې چې ددينه مراديهود اونصارا دې لکه چې په روايت دبخاري(ج۲ ص۶۹)کښې راغليدې، ځکه چې دوئ به خپل ځانونه په حق باندې کڼل اودخپل دين موافق به ئې عمل کولو حالانکه ددوئ اديان منسوخ وو، (۲)دحضرت علي﷛ نه يوروايت دا ددې چې ددينه رهبان اواصحاب الصوامع(تارك الدنيا خانقاه نشين راهب)مراددې، (۳)اوروايت تنه دادې چې ددينه خوارج مراددې اونوراقوال هم پکښې راغليدې. ليکن حقه خبره داده چې داټول اقوال محمول دې په تمثيل باندې نه په حصرباندې،اومراد دينه هرهغه څوك دې چې عمل کوي داسلام اودسنت نه مخالفي طريقي سره .اويارياکاروي،يابدعتې وي(بحر).

﴿وَهُمۡ يَحۡسَبُونَ﴾داجمله حال ده دفاعل د﴿ضَلَّ﴾ نه، او﴿يَحۡسَبُونَ﴾ داحسن نه دې ونيلې کيږي، عبادت اوعمل کول په هغې طريقي سره چې هغه لائقه وي، اوداپه حقيقت کښې حسن وصفي دې خومستلزم دې حسن ذاتي لره، يعنی د ﴿يُحۡسِنُونَ صُنۡعًا﴾، نه مراد صرف صحيح طريقه نده بلکه ددينه مرادصحت دنفس اعمالودې، يعنی ددوئ عقيده داده چې مونږکوم عملونه کوو داباالکل صحيح عمل دې،﴿أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾دادويم ځلې مکررذکرشولپاره دتاکيداولپاره داشاري ديته چې دوئ دشقاوت اودبدبختئ انتهاء ته رسيدليدې، اومرادپه ،﴿وَلِقَآئِهِۦ﴾ سره بعث بعد الموت دې.

﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمۡ﴾ضميرراجع دې موصوفينوته په صفات مذکوره سره، چې کوم خلك دتوحيد اوقيامت نه منکردي نوددوئ لپاره به وزن هم نشي اودره ولې. اومراد پدې سره ددوئ بې قدري اوبې عزتي اظهار دې چې قيامت په ورځ به ددوئ هيڅ قدراوعزت نوي لکه چې په حديث

دبخاري ج ۲ كښې دي عن ابى هريرةؓ عن رسول اللهﷺ قال انه لياتى الرجل العظيم السمين يوم القيمة لايزن عندالله جناح بعوضة،وقال اقرؤا ان شئتم فلانقيم لهم يوم القيمة وزنا ترجمه حضرت ابوهريرةؓ نه روايت دي چې دحضورﷺ نه ئې نقل كړيدي چې حضورﷺ ارشاد اوفرمائيلو چې رابه وستلې شي دقيامت په ورځ يوغټ سورب سړې. اود اللهﷻ په نيزد هغه قدر دماشي دوزر برابربه هم نوي. او اوئې فرمائيل كچرته غواړئ تاسو دليل نودا ايت تلاوت كړئ. فلانقيم لهم الخ اوبعض مفسرينودايت دظاهرنه استدلال كړيدې چې اعمال دكفارو به وزن نشي كيدلې ليكن دجمهورو رائ داده چې وزن داعمالوبه دهرچاكيږي،مسلمان وي كه كافروي. په دليل ددې قول داللهﷻ والوزن يومئذ الحق فمن ثقلت موازينه فاولئك هم المفلحون، ومن خفت موازينه الخ نودا ايت عام دې مسلمان اوكافرددواړو وزن داعمالوته شامل دې. اودغه شان اللهﷻ فرمائى ونضع الموازين القسط ليوم القيمة لخ اودغه شان بل ځائ كښې اللهﷻ فرمائى ومن خفت موازينه فاولئك الذين خسروا انفسهم فى جهنم خلدون(سورة المؤمنون:۱۰۳) اودغه شان بل ځائ كښې اللهﷻ فرمائى وامامن خفت موازينه فامه هاوية(القارعة) نودا ايتونوصريح دې چې وزن به داعمالودكفاروهم كيږي اودايت نه جواب دادې چې(۱)داكنايه ده دبې قدرئ نه(۲)اويامراد دنفى دوزن نه وزن نافع دې.(۱)
فلانقيم لهم يوم القيمة وزنانافعا،(۳)اويامرادپه نفى سره مطلقانده، بلكه نفى دمثل ده يعنى نفى دهغه وزن ده چې هغه پشان داعمال صالحووي، يعنى هغه وزن به ددوئ داعمالوپاره به نشي قائم كولې چې هغه دنيك اعمالوپاره وي، اوممكن دې تطبيق پدې طريقې سره چې ځنې كسان دكافروبهٔ بغيردوزن نه اوحساب نه به جهنم ته داخله ولې شي، لكه څرنګه ځنې كسان دمؤمنانوبغيرد حساب نه جنت ته به داخليږي(والله اعلم)
اووزن به څه شي والاكيږي؟؟ نوپدې كښې درې اقوال داهل سنت والجماعت نه راغليدي يوداچې وزن به صاحب عمل كيږي لكه چې پدې حديث مذكوركښې چې دي اودغه شان به هغه حديث كښې چې كوم نقل كړيدې امام محمدؒ چې حضورﷺ دعبدالله ابن مسعودؓ په باري كښې اوفرمائيلوچې اتعجبين من دقة ساقيه والذى نفسى بيده لهمافى الميزان اثقل من احد ترجمه:تاسو دده پنډوپوري خاندئ.قسم د په خداي چې داپه تله كښې دأحدغرنه هم درني دي،اودويم قول دادې چې وزن به دصحائف داعمالوبه كيږي لكه چې په حديث دبطاقه كښې راغليدې چې نقل كړيدې امام ترمذيؒ وغيره. اودريم قول دجمهورو علماء دې چې وزن به دنفس اعمالوبه كيږي.چې

نيك اعمالو ته به يو خائسته صورت ورکړې شي او بد اعمالو ته به بيكاره صورت ورکړې شي. لكه چې دامضمون په ډيرو احاديثو كښې راغليدي اوپيدي هم الله ﷻ قادردي چې بغير دصورت وركولو نه دنفس اعمالو وزن اوكړي، اوتطبيق پدي درې اقوالو كښې ممكن دي.چې دقيامت په ورځ دې خنې اشخاصو وزن اوكړې شي. اودخنې خلكو دصحائفو وزن اوكړې شي اودخنې خلكو داعمالو وزن اوكړې شي(والتفصيل فى كتب الاحاديث والعقائد) اودا ايت صريح رددې په مذهب دمعتزلو باندې چې هغوئ انكاركړيدې دوزن داعمالو نه.چې اعمال اعراض دي او په عالم مشاهد كښې داعراضو وزن نشي كيدلې، ليكن ددوئ داقياس،قياس مع الفارق دې.اومستلزم دې ترددلره بلكه انكارلره دقدرت دالله ﷻ نه. اوجديد تحقيقاتو،ددوئ دانظريه هم غلطه ثابته كړه،بلكه حرارت اوبرودت مقدارمعلومول شو، دغه شان هوا وغيره وزن اومقدارمعلومول شو.وغيرذلك ﴿ذَٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ﴾داوه اسباب بيانيږي دترك اقامت دوزن. لپاره ددوئ.چې ددوئ لپاره به وزن ولي نه قائميږي.ځكه چې يوخودوئ شرك كولو، اودويم داچې دالله ﷻ ايتونو اورسولانوپوري به ئې توقي كولې،نوپه﴿ذَٰلِكَ﴾سره اشاره ده ترك اقامت وزن ته.اوذلك پدي تقدير مبتداده﴿جَزَآؤُهُم﴾ ورله خبردې، او﴿جَهَنَّمُ﴾ ورله خبربعدالخبردې اوبعض مفسرين فرمائي چې په﴿ذَٰلِكَ﴾سره اشاره مذكورافرادوته ده،نوپدي تقدير﴿جَزَآؤُهُم﴾ مبتداده او﴿جَهَنَّمُ﴾ ورله خبردې، اوبعض مفسرين فرمائي چې ذلك نه مخكښې الامرلفظ مقدردې اودامتعلق دې دماقبل سره يعنى فلانقيم لهم يوم القيمة وزنا الامرذلك، او﴿جَزَآؤُهُم﴾ مبتداده او﴿جَهَنَّمُ﴾ ورله خبردې اوځلورم تركيب پكښې داسي راغليدې چې ﴿ذَٰلِكَ﴾ مبتداده ﴿جَزَآؤُهُم﴾ خبردې، او﴿جَهَنَّمُ﴾ ورله عطف بيان دې،ددينه علاوه نوراقوال پكښې هم راغليدې ﴿بِمَا كَفَرُواْ ﴾ باء سببيه ده اومامصدريه ده اوپه﴿وَٱتَّخَذُوٓاْ ءَايَٰتِى ﴾كښې اشاره ده ددوئ ترقي ته په كفركښې،چې دوئ صرف په كفرباندې اكتفاء اونكړه بلكه دالله ﷻ داحكاماتو اودانبياء كرامو مذاق هم كولو

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ

[1]بیشکه هغه کسان چې ایمان ئې راوړیدې اوعملونه ئې کړیدي نیک (موافق د سنت) وي به ددوئ لپاره جنتونه دفردوس

نُزُلًا ﴿١٠٧﴾ خَالِدِينَ فِيهَا لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا ﴿١٠٨﴾ قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ

میلمستیا ترا لپاره همیشه به وي دوئ په هغې کښې نه به غواړي دهغې نه بل ځائ ته بدلیدل.[2] او ایه ته کچرې شي دا دریابونه

مِدَادًا لِكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَنْ تَنْفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي

سیاهي لپاره دلیکلو دکلماتو درب ځما نو ضرور ختم بشي دریابونه مخکښې ددینه چې خلاصي (پوره) شي کلمات درب ځما

وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا ﴿١٠٩﴾ قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُوحَى إِلَيَّ

اګرکه راوړو مونږه په مثل دده بل (دریاب) مددګار او ایه ته چې بیشکه څه سړي (بنده) یم ستاسو پشان چې وحې کولې شي ما ته

أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ فَمَنْ كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا

چې بیشکه حقدار دبندګئ ستاسو معبود یو دې پس څوک چې لري امید د ملاقات (پیش کیدلو) درب خپل پس عمل دې کوي

وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا ﴿١١٠﴾ ع

نیک (موافق د سنت) او شریک دې نه جوړه وي په بندګئ درب خپل کښې هیڅ څوک

﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ دا بشارت اخروي دې ﴿كَانَتْ لَهُمْ﴾ صیغه دماضي یا لپاره داشاري دتحقق اوتیقن ته ده اویا مراد تنه تقرر فی علم الله دې، او ﴿جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ﴾ نه مصطلح شرعې جنت الفردوس، مراد دې چې دهغې صفت په حدیث کښې داسې مذکور دې، عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا سالتم الله فاسئلوه الفردوس فانه وسط الجنة واعلى الجنة وفوقه عرش الرحمن ومنها تفجر انهار الجنة (متفق علیه).

---

(1) بشارت اخروی.

(2) متفرع برجواب ثالث بالذات وبررابع بالتبع.

ترجمه: حضرت ابی هریره ﷺ نه روایت دې فرمائي چې حضور ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چې کله تاسو دالله ﷻ نه سوال اودعاء دجنت کوئ نوجنت الفردوس ورنه غواړئ. چې داپه ټولوکښې بهتراواوچت جنت دې ددې دپاسه دالله ﷻ عرش دې، اوددينه دجنت نهرونه جاري کيږي، اوحضرت کعب نه مروي دې چې دجنت الفردوس نه اعلی اواوچت جنت بل نيشته دې اوپديکښې به امربالمعروف اونهي عن المنکرکوونکي به وي، اوپه يوروايت کښې داهم راغليدې چې ان اهل الفردوس ليسمعون اطيط العرش چې دَجنت الفردوس والابه دعرش جړه قاري(اوازونه)به هم اوري.اودغه شان نورډيراحاديث دې چې هغه دلالت کوي چې جنت الفردوس يومخصوص جنت دې اوهغې کښې به مخصوص جنتيان وي. نوکه مرادبه ايت کښې دمخصوص جنت شي دجنت الفردوس نه نوبيابه په﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ﴾کښې موصول دعهدلپاره وي اوپدي سره به مراد مخصوص مؤمنان وي ليکن اکثرعلمآء فرمائي چې مراد په جنت فردوس سره مطلق جنت دې اومخصوص جنت تنه ندې مراد اواضافت دجنات فردوس ته بياني دې.اوفردوس معنې دانګورپه باغ سره هم شويده والعرب تسمی البستان الذی فيه الکرم فردوسا(زاد المسير)اوډيرو ونوواوالاباغ ته هم فردوس وئيلې کيږيو نومعنې به ئې داشي چې ددوئ لپاره باغونه دجنت دې. داترجمه غوره کړيده حضرت شيخ الهند رحمه الله اوحضرت تهانوي رحمه الله هم داتوجيه غوره کړيده حضرت تهانوي رحمه الله دجنات الفردوس ترجمه کړيده په (بہشت کے باغ) سره اوفرمائي چې اشار الی ان المراد بالفردوس المعنی الشرعي لکن لابمعنی درجة الخاصة العليا﴿نُزُلًا﴾حال دې دجنات نه، اوجنت ته نزل، وئيل په اعتباردثماريعنی دهغې دميوو په اعتبارسره دې، نوعبارت په حذف دمضاف سره دې نوپه اصل کښې داسي دې، هم ثمارجنّات الفردوس نزلا، اوداهم ممکنه ده چې حمل د﴿نُزُلًا﴾ په جنات باندې علی سبل المبالغة وي.

**فائده**: بعض اهل علم نه مروي دې چې جنت اودهغې نعمتونوته نزل وئيلې شويدې نوپديکښې اشاره ده چې مقصود اعظم اولوئ نعمت دجنتې لپاره هغه جنت اودهغې ميوې ندې. بلکه لوئ نعمت اومقصود اصلي ديدارالهي دې(اللهم شرفنا منهاآمين) اوجنت په منزله ديوانتظارګاه ده.

﴿لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا ﴾حولا مجرد په معنې مزيدوتحولاسره دې، اوتحول وئيلې کيږي ديوحالت نه بل حالت اړيدل، اويامفعول مطلق دې دفعل مقدرلپاره اوماخوذدې دحال من مکانه حولا .نه

بهرتقدیرمطلب دایت دادي چې جنتیان به په جنت کښ په یوحالت وي.بیماري. مرګ.بل څه تکلیف به ورته نه راځي،لکه په حدیث دمسلم شریف کښ دي چې منادي به اعلان اوکړي. یااهل الجنة ان لکم ان تصحوا فلاتمرضوا ابدا وان لکم ان تعیشوا فلاتموتوا ابدا وان لکم ان تشبوا فلاتهرموا ابدا وان لکم ان تقیموا فلاتظعنوا ابدا(مسلم) ترجمه:اې اهل جنت!تاسو به همیشه تندرسته وئ.کله به هم بیمارې نه ګئ،تاسو به همیشه ژوندي وئ،مرکیږئ به نه.اودلته به همیشه دپاره اوسیږئ.بل خواته به نه زئ(اللهم ارزقنا بفضلك وكرمك وجودك).

اوداهم ممکنه ده چې دتحول مقصد داشي چې دوئ جنت پریږدي اوبل طرف ته راغب شي یااوچتې رتبې ته راغب شي ځکه چې کوم جنتي ته جنت ورکړې شوې وي نوهغه ته به دهغې نه بل عمده شې نه ښکاریږي. نوطلب دتحول کولوپه هغه وخت کښ وي چې ده ته بل ځائ عمده اوبهترښکاره شي،اوداجمله ﴿لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلاً﴾ ځکه ذکرشوه چې په دنیاکښ کله کله،دیوسړي ډیربهترکوراومکان وي خودده پکښ طبعیت نه لګي اودې ورسره موافق نوي نوبیادبل کوراومکان کوشش کوي،نوجنت به داسي نوي په هغې کښ به جنتي دبل جنت خواهش نه لري،ددې وجه نه صاحب دبحرفرمائی،قال بعض المفسرین تمام النعمة انهم لایتمنون التحول لانهم لوتمنوا التحول عنها لتنقص النعم علیهم(بحر.

﴿قُل لَّوْ كَانَ ٱلْبَحْرُ﴾داپه شبهې ثالثې په جواب باندې بالذات اودشبهې رابعي په جواب باندې بالتبع تفریع ده، اودالله ﷻ دمعلوماتووسعت ذکردې پکښ. یعنی کچرته دالله ﷻ دمعلوماتولیکلولپاره ددنیاټول سمندرونه سیاهي جوړه شي، نوداسمندرونه به ختم شي خودالله ﷻ معلومات به پوره نکړې اودهغې احاطه به اونکړې شي. نومعلومه شوه چې دبندګانو. علم متناهي دې اوعلم دالله ﷻ غیرمتناهي دې نوانبیاء کرام علیهم السلام او اولیآؤته صرف دومره علم ورکړې شویدې څومره چې دالله ﷻ مرضې وه، نوثابته شوه چې انبیاء کرام اواولیاء غیب دان ندي اوکارساز اومتصرف ندي،اوالف لام په البحرکښ جنسي دې نومراد د﴿ٱلْبَحْرُ﴾نه جنس بحردې

او﴿لِّكَلِمَٰتِ رَبِّى﴾نه مراد معلومات اوحکمتونه دالله ﷻ دي﴿لَنَفِدَ ٱلْبَحْرُ﴾ځکه چې دامتناهي دي﴿قَبْلَ أَن تَنفَدَ﴾ ځکه چې معلومات دالله ﷻ غیرمتناهي دي. نومتناهي دغیرمتناهي احاطه

نشي كولې، اود ﴿قَبْلَ أَن تَنفَدَ﴾، معنې دانده چې داسمندرونه مخکښې ختم شي اوکلمات دالله ﷻ ورستوختم شي، ځکه چې (قبل) دلته په معنې د(غير)يا(دون) سره دې. لکه صاحب دجمل فرمائی چې قبل هنابمعنی غيراوبمعنی دون(جمل) نولهذا دااعتراض نه واردیږي چې ظاهردنص دلالت کوي په تناهې دمعلومات بارې تعالی باندې﴿وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا﴾ جواب دلومحذوف دې يعنی لنفديعنی کچرته نورسمندونه هم دمددلپاره روارې شي نوهغه به هم ختم شي

**فائده:** (۱) بعض اهل علم نه مروي دې چې که څومره مخلوقات دي هغه متناهې دې اوپه هغې فناراځي، ځکه چې الله ﷻ فرمائی، انّاكلّ شيئ خلقناه بقدر، اوکوم شې چې دقبيلې دمخلوقاتو نه ندې نوهغه غيرمتناهې وي اودهغه لپاره ختميدل نوي نوددې ايت نه معلومه شوه چې کلمات دالله ﷻ دقبيلې دمخلوقاتونه،ندې اوکلام نفسي دالله ﷻ قديم غيرمخلوق دې ځکه چې داهم نه ختميږي اونه فناء کيږي.

**فائده:** (۲) حضرت ابن عباس ﷺ ته يوکس خپل شکايت اوکړوچې څه اراده اوکړم چې دشپې به دعبادت لپاره پاځم، خوپه ماباندې خوب غالب شي اوراويخ نشم، نوحضرت ابن عباس ﷺ ورته اوفرمائيلوچې کوم وخت هم ستادپاسيدلو اراده وي نوداوده کيدلوپه وخت کښې دامذکوره ايت،قل لوکان تراخيردسورت پوري تلاوت کړه نوالله ﷻ به تاپه مقرره وخت باندې راپاسوي(قرطبی ج۵ ص۳۵۹).

﴿قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠﴾پدي ايت کښې نفی دعلم غيب ده په ذريعه داعلان دحضور ﷺ سره چې څه غيب دان اوکارسازنه يم، بلکه ستاسوپشان بشريم اوالله ﷻ دطرف نه نبوت رتبه راته راکړې شويده﴿إِنَّمَا﴾ داداواتودحصرنه دې اومقصدپدي سره حضور ﷺ ته وصف بشريت ثابتول دې، اوداقصردصفت دې په موصوف کښې اوقصرقلب دې،ځکه چې دکفاروعقيده داوه چې پيغمبر ﷺ بشرنشي کيدلې، وصف نبوت اوبشريت به ئې په خپل مينځ کښې متنافی کنړل. لکه نن صباهم دځنې فرقوداعقيده چې حضور ﷺ ته نوروائې اودعقيدې دبشريت قائل ندې،اومثلکم تاکيدلپاره دې يعنی چې څه بشريم ستاسوپشان. اومماثلت (اشتراك فی النوع) ته وئيلې کيږي، يعنی څه هم

ستاسو سره پدي نوع دبشريت كښ، شريك يم او ﴿يُوحَىٰٓ إِلَيَّ﴾ مابه الامتياز دي چې ځما او ستاسو په مينځ كښ امتياز، دادي چې ماته وحې كيږي اوتاسوته وحي نه كيږي ﴿أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمْ﴾ دا دټول سورت خلاصه ده

﴿فَمَن كَانَ يَرْجُواْ﴾ داتفريع ده پماقبل باندې، اوترغيب دې نيك اعمالوته اونفى دشرك فى العبادة ده، او ﴿يَرْجُوا﴾ درجاء نه دې طمع ته وئيلې كيږي، اوكله كله په معنې دخوف سره هم راځي. اوپدې كښ اشاره ده چې مؤمن دالله تعالى درحمت اميد اودعذاب نه خوف ساتې اومشهوره خبره ده چې الايمان بين الرجآء والخوف،

اوپه حديث دابن ماجه كښ دي، انّ النبىﷺ دخل على شاب وهوفى الموت فقال كيف تجدك؟ فقال والله يارسول اللهﷺ انى ارجو الله واخاف ذنوبى فقال رسول اللهﷺ لايجتمعان فى قلب عبدفى مثل هذا الموطن الااعطاه الله مايرجو وامنه ممايخاف(ابن ماجه)

ترجمه: بيشكه داخل شوحضورﷺ په يونوجوان باندې چې هغه مبتلاؤپه حالت دمرګ باندې(ځنكندن) نوحضورﷺ تنه تپوس اوكړوچې ستا(اندروني)څه كيفيت دې؟ هغه عرض اوكړوچې ځمادې په خداي تعالى قسم وي يارسول اللهﷺ څه دالله تعالى نه درحمت اميدساتم اودخپلوګناهونوپه باره كښ تنه يريږم نوحضورﷺ ورته ارشاداوفرمائيلوچې نه جمع كيږي ديوبنده په زړه كښ دغه شان حالت مګرالله تعالى ده ته هغه څيزوركوي چې دكوم دې اميدساتې اودهغې نه ئې په امن كوي چې دكوم نه دې يره كوي

اومرادپه ﴿لِقَآءَ﴾ سره دغوره قول مطابق رويت دالله تعالى دې، ځكه چې لقاء، حقيقت دې په رؤيت كښ، اوبعض فرمائى چې مرادتنه دالله تعالى په مخ كښ اودريدل دې اوكچرته .رجآء،په معنې دخوف سره شي نوبيابه دلته لفظ دسوء مقدروي اى من خاف سوء لقاء ربه (روح)،

﴿فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا﴾ داتفريع ده په رجاء باندې چې رجا دلقاء لپاره نيك عمل پكاردي. اودالله تعالى نه دخوف علامه داره چې نفس نيك اعمالوطرف ته راغب شي اودګناهونونه ئې نفرت پيداشي

﴿وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِۦٓ﴾شرك کلي مشکك دې صدق ئې په خپلوافرادو باندې على السويه ندې په څنې افرادوباندې اولې اواقوې اوپه څنوباندې غيراولې اوضعيف دې وغيره اومحدثين نه تعبيرکوي په شرك دون شرك سره،نوشرك په دوه قسم دې يوشرك خفى دې اوبل شرك جلې. دشرك خفى اطلاق په احاديثوکښې په ريا،سمعت اوشهرت باندې شويدې.اودشرك جلې اطلاق دالله ﷻ سره په ذات ياصفاتوکښې شريك جوړه ولوباندې شويدې. اوبعض خلکوآيت خاص کړيدې په شرك جلې پورې،

ليکن علامه آلوسي رحمه الله فرمائى چې تقديم دامرياطاعاتواواعمالوصالحوباندې قرينه ده پدې چې نهى دشرك نه پدې مقام کښې عام دې خواه که شرك جلي وي ياخفي. اوفرمائي ويدخل فى العموم قراءة القرآن للموتى بالاجرة فلاثواب فيها للميت ولاللقارى اصلا(روح) چې پدې عموم کښې هغه قرآن خواني اوقرآن ختمونه چې دمړولپاره کيږي په اجرت سره هغه پکښې هم شامل دې. پس ثواب نه ميلاويږي مړي ته اونه ختم کوونکي ته.اوپه ډيرواحاديثوکښې دشرك خفى نه دځپل ځان بچ کولوحکم راغليدې، وعن سعيدبن فضالة رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول اذا جمع الله تبارك وتعالى الناس ليوم لاريب فيه نادى منادى من كان يشرك فى عمل عمله لله فليطلب ثواب منه فان الله تعالى اغنى الشركآء عن الشرك(رواه الترمذى).

ترجمه: دحضرت سعيدبن فضالع رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چې مادرسول الله ﷺ نه واوريدلوچې هغه اوفرمائيلوچې کله الله ﷻ مخلوقات په داسي ورځې چې په هغې کښې شك نيشته (قيامت په ورځ) راجمع کړي يواوازکوونکې به اوازاوکړي چې چاپه خپل عمل کښې دالله ﷻ سره څوك شريك ګرځولي وي نوهغه دې دهغه شريك نه اجرطلب کړي پس الله ﷻ ډيرغني دې دشريکانو دشرك نه،

اوپه روايت دابوسعيدخدري رضي الله عنه کښې دې چې حضور ﷺ ارشاداوفرمائيلو.الااخبركم بماهواخوف عليكم من المسيح عندى قال قلنا: بلى قال الشرك الخفى ان يقوم الرجل يصلى لمكان الرجل(ابن كثير) چې آياځه تاسوته خبردرنکړم دهغې نه چې څه په تاسوباندې دهغې خطره دمسيح دجال دفتني نه هم زياته محسوسه وم، راوي وايي چې مونږه اوئيل چې هاؤاوښايه،حضور ﷺ اوفرمائيلوچې هغه شرك خفى دې چې مونځ کوي يوسړې لپاره دبل سړې يعنى هغه ته

دښودلولپاره «رياء» لپاره مونځ كوي. نور ډيراحاديث دي چې ابن كثيروغيره په تفصيل سره ذكركړيدي

اودَسورت اختتام په نفی دَشرك سره اوشو اودَسورت په ابتداء كښ مسئله توحيد ذكرشوې وه چې﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ چې دَټول كائنات مالك خالق كارسازمتصرف الله ﷻ دې. حمداوصفاتودالوهيت مستحق صرف هغه دې، اودسورت په اخيركښ ذكرشوچې عمل صرف الله ﷻ لپاره پكاردې، اودَالله ﷻ سره ثوك شريكول ندې پكار.

تم تفسيرسورة الكهف بحمدالله وبمنته.

| رکوع | سورة مريم مكية | آيتونه |
|---|---|---|
| ۶ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۹۸ |
| | خاص په نوم د الله سره چه بيحده مهربان او ډير رحم کوونکې دې شروع کوم | |

**رقمها حسب التسلسل (۱۹) وحسب النزول (۴۴)**

**تفسيرسورة مريم**:سورة مريم مكي سورة دې دترتيب نزولي په اعتبارسره څلورڅلويښتم نمبرسورت دې اوترتيب قرآني په اعتبارسره نولسم(۱۹)نمبرسورت دې. سورت الفاطرنه ورستو اوسورت طٰه نه مخکښ نازل شويدې. زمانه دنزول ئې دهجرت دحبشې نه مخکښ ده اوپه (۹۸) اياتونوپه شپږرکوعاتو،په اوه سودوه شپيته(۷۶۲)کلماتواودرې زره اته سوه (۳۸۰۰) حروفوباندې مشتمل دې.

**ربط**:(۱)ربط اسمی دماقبل سورت سره دادې چه په سورة الكهف کښې داصحاب کهفودربط قلبي ذکروو،اوپدې سورة کښې دحضرت مريم اودنورو انبياء کرامو عليهم السلام دربط قلبي ذکردې. (۲)اودغه شان ماقبل سورة مشتمل ووپه قصې عجيبه داصحاب کهف،دحضرت موسی عليه السلام اوخضر عليه السلام اوذوالنون باندې نودغه شان داسورة هم مشتمل دې په قصصوعجائبوباندې. يحيى عليه السلام پيدائش اودحضرت عيسى عليه السلام پيدائش په غيرداب نه.

**ربط مضمونی**: ربط مضمونی دماقبل سره په څوجوه سره دې(۱)په سورة الكهف کښې دڅوشبهاتوجوابونه ذکراوشولواوپه سورت مريم کښې دباقی شبهاتوجوابونه ذکرکيږی. نوګوياکه سورت مريم دسورت کهف لپاره په منزله دتتمی دې(۲)په سورة کهف کښې نفی دعلم غيب اورد دشرك ووپه اثبات دعجزسره دعبادوصالحينولپاره اوپه سورت مريم کښې رد دشرك دې په اثبات دعبديت سره(۳)په سورت کهف کښې اثبات دنبوت.اثبات دمعاد اوذکرجزا اوسزاوو اوپه سورت مريم کښې هم دامضامين بيانيږی(۴)په سورة الكهف کښې ذکردَ وينذرالذين قالوا اتخذالله ولدا شو.اودسورة مريم په اخيرکښې دهغې تفصيل ذکرکيږی «فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ »(۵)

دسورة کهف په اخیرکښ دحضورﷺ درسالت ذکروو نودغه شان ددې سورت په اخیرکښ هم دځنې انبياءعليه السلام ذکردې.

**خلاصه** دمضامینوپه اعتبارسره سورة مریم دوه(۲)حصوته منقسم دې. اوله حصه دایت نمبر(۱ نه ترایت نمبر(۶۵)﴿هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا﴾پورې ده،اودویمه حصه ددې ځائ نه تراخیرپورې ده. په اولی حصی کښ دمشرکینودیوڅوشبهاتوجوابونه ذکرکیږی.

**اوله شبهه** دحضرت زکریاعليه السلام په باره کښ وه چه دحضرت زکریاعليه السلام په آخرعمرکښ بچې پیداکیدل ددې خبرې دلیل دې چه هغه ته یوقوت اوطاقت مافوق البشریت حاصل ووه تصرفاتو،چه څه ئې غوختل نوهغه ئې کولې شو، ددې شبهې جواب ذکرکیږې دایت نمبرانه ترایت نمبر۱۵ پورې،چه دحضرت زکریاعليه السلام بچې پیداکیدل امرخارق للعادت په حکم دالله تعالی سره وو،اوهغه دالله جل جلاله نه سوال کړې وو دبچې لپاره.

**دویمه شبهه** دحضرت مریمﷺ اودحضرت عیسیعليه السلام په باره کښ وه، چه حضرت مریم ته بې موسمه میوې راتلل،مافوق الاسباب بچې پیداکیدل،اودحضرت عیسیعليه السلام مړی ژوندی کول وغیره مافوق البشریت قدرت اوطاقت وو،نومعلومه شوه چه هغوئی ته قدرت اوتصرف حاصل وو.

دایت نمبر(۱۲)﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَٰبِ مَرْيَمَ﴾نه ترایت نمبر(۴۰)﴿وَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ﴾پورې ددې شبهې تفصیلی جواب ذکرکیږی،چې حضرت مریمﷺ په خپله اللهجل جلاله ته عاجزی کوله اوخلاف عادت بچې پیداکیدل اللهجل جلاله مخلوقاتوته دخپل دقدرت نشانې ښکاره کوله،اوحضرت عیسیعليه السلام هم صاف اعلان کړې ووچه،انّ الله ربّی وربّکم فاعبدوه.

**دریمه شبهه** دحضرت ابراهیمعليه السلام متعلق وه،چه حضرت ابراهیمعليه السلام اللهجل جلاله ته دومره قریب اونزدې ووچه اللهجل جلاله ورته قدرت دتصرف په مخلوقاتوکښ ورکړې وو،دایت نمبر(۴۱)﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَٰبِ إِبْرَٰهِيمَ﴾نه ترایت نمبر(۵۰)﴿لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا﴾پورې ددې شبهې تفصیل جواب ذکرکیږی چه حضرت ابراهیمعليه السلام ددې معبودان باطله مخالف وو،اودهغې خلاف ئې اوازاوچت کړې وو،اوبیا په ایت نمبر(۵۱)،﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَٰبِ مُوسَىٰٓ﴾نه ترایت نمبر(۵۸)﴿خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا﴾پورې دحضرت موسیعليه السلام،هارونعليه السلام، اسماعیلعليه السلام،

ادريس ﷺ ذكركيږي چه دوئي هم الله ﷻ ته محتاجه وو، اوكارساز اومتصرف نه وو اودغه شان اجمالي طورباندې دټولو انبياء كرامونه دغه دعوىٰ رانقل كيږي، په ايت نمبر(۵۹) ﴿فَخَلَفَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ﴾ كښې دېوسوال جواب ذكركيږي، سوال داكيدلوچې كله دټولوانبياءكرامومدعى توحيدوو اوهغوئى خلكوته دتوحيد حكم اوتعليم وركولونوبيادهغوئى عبادت ولې اوكړې شو اوغلط اديان څنګه پيدا شو، نوپه ايت مذكوره كښې ورنه جواب اوشوچه داناخلف خلكوپيدا كړي علماء سوء خلكوته داغلطه عقيده اوښودله، اوهغوئى ته ئې دشرك تعليم وركړواوبيادايت نمبر(۶۰) ﴿إِلَّا مَن تَابَ﴾ نه ترايت نمبر(۶۳) من كانَ تقيّاپورې، دنيكانو خلكو صفات اوهغوئى ته بشارت ذكركيږي اوپه ايت نمبر(۶۴) ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ﴾ كښې دفرشتوپه باره كښې دېوې شبهې جواب ذكركيږي، چې فرشتوته الله ﷻ قدرت دتصرف وركړيدې چې اسمانونوته خيژې راكوزيږي، نوپه ايت مذكوره كښې ددې جواب اوكړې شوچه ددوئ اسمان ته ختل اوزمكې ته راكوځيدل دالله ﷻ په حكم سره دې، اودوئ دالله ﷻ محكوم دې، اوپه ايت نمبر(۶۵) ﴿رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ كښې بطورثمره داصل دعوى ذكردې.

**دسورت دويمه حصه**: دايت نمبر(۶۶) نه دسورت دويمه حصه شروع كيږي، پدې حصې كښې شپږ(۶) زجرونه، درې(۳) شكوې، څلور(۴) ځلې تخويف اخروى، دوه(۲) ځلې تخويف دنيوى اوڅلور (۴) پكښې بشارتونه ذكركيږي، اودغه شان رد دشفاعت قهريه هم پكښې كيږي.

تفصيل ئې دادې چه په ايت نمبر(۶۶) ﴿وَيَقُولُ ٱلۡإِنسَٰنُ﴾ كښې شكوې ذكركيږي په ايت نمبر(۶۷) ﴿أَوَلَا يَذۡكُرُ ٱلۡإِنسَٰنُ﴾ كښې جواب شكوى سره دزجرنه ذكركيږي، دايت نمبر(۶۸) ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَحۡشُرَنَّهُمۡ﴾ نه ترايت نمبر(۷۱) ﴿مَّقۡضِيًّا﴾ پورې تخويف اخروى ذكركيږي، په ايت نمبر(۷۲) ﴿ثُمَّ نُنَجِّي ٱلَّذِينَ﴾ كښې بشارت ذكركيږي، په ايت نمبر(۷۳) ﴿وَإِذَا تُتۡلَىٰ﴾ كښې زجرذكركيږي، په ايت نمبر(۷۴، ۷۵) ﴿وَكَمۡ أَهۡلَكۡنَا قَبۡلَهُم﴾ نه تر واضعف جندا پورې تخويف دنيوى ذكركيږي، په ايت نمبر(۷۶) ﴿وَيَزِيدُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ﴾ كښې بشارت بيانيږي په ايت نمبر(۷۷) نه

تا (۸۰) ﴿أَفَرَءَيْتَ﴾ نه تر ﴿وَيَأْتِينَا فَرْدًا﴾ پورې شکوې سره دتخويف اخروی نه ذکرکيږي. په ايت نمبر (۸۱) ﴿وَٱتَّخَذُوا﴾ کښې زجردې. او په ايت نمبر (۸۲) ﴿كَلَّا ۚ سَيَكْفُرُونَ﴾ کښې تخويف اخروی دې. په ايت نمبر (۸۳، ۸۴) ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّآ﴾ تر ﴿نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا﴾ پورې زجرذکرکيږي. په ايت نمبر (۸۵) ﴿يَوْمَ نَحْشُرُ ٱلْمُتَّقِينَ﴾ کښې بشارت اخروی ذکرکيږي. په ايت نمبر (۸۶) ﴿وَنَسُوقُ ٱلْمُجْرِمِينَ﴾ تخويف اخروی ذکرکيږي، په ايت نمبر (۸۷) ﴿لَّا يَمْلِكُونَ ٱلشَّفَٰعَةَ﴾ کښې رددې په شفاعت قهريه باندې. دايت نمبر (۸۸) نه تر (۹۲) ﴿وَقَالُوا ٱتَّخَذَ ٱلرَّحْمَٰنُ﴾ نه تر ﴿أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا﴾ پورې شکوې مع جواب شکوی اوزجرذکرکيږي او په ايت نمبر (۹۳، ۹۴، ۹۵) ﴿إِن كُلُّ﴾ نه تر ﴿فَرْدًا﴾ پورې دعوی دسورت بيانيږي، په ايت نمبر (۹۶) ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ﴾ کښې بشارت دې. په ايت نمبر (۹۷) ﴿فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ﴾ کښې ترغيب الى القرآن ذکرکيږي او په اخيری ايت نمبر (۹۸) ﴿وَكَمْ أَهْلَكْنَا﴾ کښې تخويف دنيوی ذکرکيږي.

كٓهيعٓصٓ ﴿۱﴾ ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُۥ زَكَرِيَّآ ﴿۲﴾

الله ﷻ عالم دې په مراد خپل سره ددينه [1] داياداشت د رحمت درب ستادې په بنده خپل باندې چې زکريا ﷺ دې

إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥ نِدَآءً خَفِيًّا ﴿۳﴾ قَالَ رَبِّ إِنِّى وَهَنَ ٱلْعَظْمُ مِنِّى وَٱشْتَعَلَ ٱلرَّأْسُ

کله چې اواز اوکړو دده رب خپل ته اواز پټ. اوئيل ده اې ربه خما بيشکه کمزوری شويدې هډوکې خما اوشغلې وهی سرخما

شَيْبًا وَلَمْ أَكُنۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ﴿۴﴾

له جهته دبوډاوالی نه. اونه يم خه ستانه دعاغوختلو په وجه اې ربه خما محرومه

﴿كٓهيعٓصٓ﴾ داحروف مقطعات دی چې په مرادباندې عالم الله ﷻ دې، او دحضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی چې داثناء ده دالله ﷻ دطرف نه په خپل ذات باندې نودکاف معنی ده

[1] حصه اول سورت جواب ازشبه اول متعلق بزکريا.

كاف لخلقهِ هاَء معنى ده هادٍ لعباده، ياء معنى ده يدُهٗ فوق ايديهم،عين معنى ده عالم بهم. صاد معنى ده صادق في وعدهِ يعنى الله ﷻ دَخپلو مخلوقاتو لپاره كافي دي،هادي دي دَخپلو بندگانو لره قادردي په هغوئى عالم دي په هغوئى اورشتوني دي په پوره كولو دَوعدو خپلو كښې.

اودحضرت علي رضي الله عنه نه مروى دى چې دَااسم دي دَاسماؤ دَالله ﷻ نه قرطبى، اوبعض فرمائى چې دانوم دي دَ قرآن، اوبعض فرمائى چې نوم دي دسورت ﴿ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ﴾ دادَ اولى شبهې جواب دي چې په باره دَحضرت زكريا عليه السلام كښې وه،اوپدې تولې واقعې كښې دَحضرت زكريا عليه السلام عجز،ثابتول مقصوددى، چې حضرت زكريا عليه السلام ته دَخدائى قدرت اوتصرف حاصل نوو ،بلكه هغه عبدوو چه الله ﷻ پرې خپل رحمت كړې وو ،الله ﷻ ته محتاجه ووځكه ئې دعاكړې وه اوضعف اوبوډاولى پرې راغلې وو،خوف اوخطره ئې محسوسه كړې وه دَموالي(تربرانو) نه محتاجه ووبچي(وارث)ته محتاجه وودَبچې په پيدائش كښې علامى ته وغيره،نوداټولى علامې دَعجزدې،دَدې ايت مختلف تركيبونه شويدى(۱)اول تركيب دادې چې ﴿كٓهٰيٰعٓصٓ﴾مبتداده او﴿ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ﴾ ورله خبردې،ليكن پدې باندې قرطبى رد كړيدې

(۲)دويم تركيب دادې چه ﴿ذِكْرُ﴾خبردې دَمبتدا محذوف لپاره،چې هذا دې نوهذا مبتداء ذكرخبرمضاف﴿رَحْمَتِ﴾ مضاف اليه، مضاف﴿رَبِّكَ﴾ مضااليه، مضاف كَ ضميرمجرورمضاف اليه اواضافت د﴿رَحْمَتِ﴾رب ته دَقبيلى دَاضافت دَمصدرنه دې فاعل ته.او ﴿عَبْدَهٗ﴾مبدل منه او ﴿زَكَرِيَّا﴾ورله بدل مبدل منه سره دَبدل دامفعول دې درحمت لپاره اودامجموعه ټوله دَذكرلپاره مضاف اليه شوه،اومضاف سره دَمضاف اليه نه خبرشودَمبتدا لپاره.

(۳)اوبعض مفسرين فرمائى چې ﴿رَحْمَتِ رَبِّكَ﴾دامبتداده اوخبرورله مقدر دې چې فيماسيتلى عليكم دې اودَدينه علاوه نورتركيبونه هم شويدى.

﴿إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ﴾ظرف متعلق دې په رحمت پورې داعجزذكركيږي دَحضرت زكريا عليه السلام په دعاسره.او﴿نِدَاءً﴾مفعول مطلق دې دَ"نادى" لپاره او ﴿خَفِيًّا﴾ياپه هغه معنى سره دې چې ضددَجهردې يعنى په رو اوآهسته آوازسره ئې دعااوكړه.اوپه آهسته آوازسره دعاكول اقرب الى

الاجابت وی اومحفوظ وي دَريانه،اوزياته اليقه وي دَاخلاص سره،اوبعض فرمائی چې چونکه دادعا دَ يودنيوي امرلپاره وه اودَخپل قوم اوموالی دَملامت کولونه دَبچ کيدلولپاره ئې په پټه اوکړه. (قرطبی) غوره اوراجح توجيه داده چې ﴿خَفِيًّا﴾په معنی دَمستورا عن الناس سره دې يعنی دَخلکونه ئې په پټه اوکړه چې په شپه کښې دَتهجدوپه وخت ئې دعا کړې وه اودامطلب اغستل ضعيف دې چه په آهسته اوازسره ئې اوکړه دَدوه(٢)وجهونه:(١)دلته لفظ دَنداء ذکرشويدې اونداء په جهرسره آوازته وئيلې کيږی(٢)بل ځائ کښې(په سورة ال عمران) کښې دَحضرت زکريا عليه السلام دَدعااجابت وخت مونځ ذکرکړيدې فنادته الملئكة وهو قائم يصلى فى المحراب الخ نومعلومه شوه چې دادعا هم په حالت دَمونځ کښې کړې وه اوپه خپل محراب کښې وو،نوددينه معلومه شوه﴿خَفِيًّا﴾پمعنی دَمستورا عن الناس سره دې،اوپدې وخت کښې دَده(زکريا عليه السلام)عمردَغوره قول مطابق شپږ شلې(١٢٠)کاله وو،اوبعض فرمائی چې(٩٩)بعض فرمائی چې(٩٢)بعض فرمائی(٦٠. ٧٠. يا٧٥)وغيره وو.

﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي﴾داجمله تفسيردې دَنداء لپاره اورب په اصل کښې "ياربِّ" دې اوپدې کښې دَحضرت زکريا عليه السلام دَدعا کيفيت ذکرکيږي چې حضرت زکريا عليه السلام په خپلې دعاکښې توسل کړيدې په خپل دوه(٢) جسمانی کمزوريوسره،يوداچه هډوکی ئې کمزوري دي،دويم داچې دَبوډاوالي دَوجې نه ئې دَسرويخته سپين شويدي،اودادليل دې په عجزدَهغه باندې اونسبت دَ،وهن،عظم يعنی هډوکوته ځکه اوشولوچې هډوکي دَبدن لپاره په منزله دَدعائم (ستنو،ستن)دي،چې کله په هډوکوکښې ضعف ظاهرشي نوپه ټول بدن کښې بياضعف ظاهريږي،اودَدې وجه نه چې په بدن کښې دټولونه اقوی اوسخت اجزاء هډوکي دي نوهرکله چې په هډوکښې ضعف راشي نوپه نوربدن کښې په طريق اولی سره ضعف راځی او﴿ٱلْعَظْمُ﴾ اسم جنس دې اطلاق ئې په قليل اوکثيرټولوباندې کيږی اوجمع رانوړې شوه ځکه چې دهغې اطلاق په کل افرادوباندې کيږی،بيابه مطلب داوشما دَبدن ټول هډوکي ضعيف شويدي اوممکنه ده چې دَحضرت زکريا عليه السلام ټول هډوکي نووضعيف شوي لکه چې داظاهره هم ده.

﴿وَٱشْتَعَلَ ٱلرَّأْسُ﴾داکلام محمول دې په استعاراتوباندې، تشبيه دَويختوسپين والي اوپه سر کښې دَخوريدوورکړې شويده دَاوردَلمبې سره،اوبيااضافت دَاشتعال کړې شويدې محل

دَويختوته چې هغه سردې،چې دافاعل گرځولې شوېدې د اشتعل لپاره او ﴿شَيۡبًا﴾ورنه تميزواقع شويدې اوتميزمحول عن الفاعل په حقيقت كښ فاعل وی.نوګویاچې اصل فعل ﴿شَيۡبًا﴾دې، اونسبت دَاشتعال سرته مجازادې،اوداجمله دزیادت ترحم لپاره ده ځکه چې سپین ويخته ډيرقابل رحم وې اوالله ﷻ تنه هم حیاکوی کماورد فی الحدیث.نودایت مقصدداده چې بدن مې هم كمزورې دې اوويخته مې تول داسې سپين دی لکه دَاورلمبې﴿وَلَمۡ أَكُنۢ بِدُعَآئِكَ﴾ داتوسل دې په عادت مستمره دَفضل دَالله ﷻ سره چې ستاعادت دادې چې ځمادعاقبولوې دَدې نه مخکښ دې هم قبوله کړیده څه دې نامراده کړې نه یم،او باء په ﴿بِدُعَآئِكَ﴾کښ سببيه ده او﴿كان﴾ ناقصه دې اوضميرچې تعبيرورنه "انا"سره كيږی ورله اسم او﴿شَقِيًّا﴾ورله خبردې، اومنفې دې په﴿وَلَمۡ﴾ سره نولهذا مرادتنه زمانه تيره شوې ده،اودعاء مصدردې اواضافت ئې "ك"ضميرته شويدې چې هغه ورله مفعول دې،ای لم اكن بدعائی اياك شقيا ای لم نخيب دعائی اذا دعوتك(قرطبی) اوداهم جائزه ده چې "ك" ضميرفاعل دَمصدرشی اومفعول ئې محذوف شی اوتقديردَعبارت داسی شی چې لم اكن بدعالك اياى شقيا،يعنی چې کله هم تاماته دَايمان دعوت راکړیدې نوځه بدبخته شوې نه یم چې ایمان مې پریخې وی بلکه مادَایمان دعوت قبول کړیدې نودَایمان په برکت سره ځمادعاقبوله کړې،لیکن اوّله توجیه ډیره غوره ده.

| وَإِنِّي خِفۡتُ ٱلۡمَوَٰلِيَ مِن وَرَآءِي وَكَانَتِ ٱمۡرَأَتِي عَاقِرٗا فَهَبۡ |
|---|
| اوبیشکه څه یریږم دتربورانونه(په باري ددين كښ) ورستودَمرګ ځپل نه اوده ښځه ځمابې اولاده(شنډه) پس راوبخې |
| لِي مِن لَّدُنكَ وَلِيّٗا ۝٥ يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنۡ ءَالِ يَعۡقُوبَۖ وَٱجۡعَلۡهُ |
| ماله دَځپل طرف نه يووا رث. چې وارث شي (دَدين)ځمااووارث شي(دَدين) دَاولاد دَيعقوب ﷺ او وګرځوئې دې |
| رَبِّ رَضِيّٗا ۝٦ يَٰزَكَرِيَّآ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَٰمٍ ٱسۡمُهُۥ يَحۡيَىٰ |
| اې ربه ځما غوره کړې شوې،اې زکریا ﷺ بیشکه مونږه زیرې درکووتاته په يوهلك سره چې نوم دَهغه يحيٰی دې، |

لَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا ۝ قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ

ندي ګرځولي مونږه ده لره مخکښې ددینه همنام. ووېل زکریا چې اې ربه څنګه به څه طریقې سره به څماځنې زوی

وَّكَانَتِ امْرَاَتِيْ عَاقِرًا وَّقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا ۝

او حاصل دا دي چه دده ښځه څماشنډه او په تحقیق سره رسیدلی یم څه د بوډاوالي نه اخیري حد ته

﴿وَاِنِّيْ خِفْتُ﴾ دا هم توسل دي په ذکر د احتیاج خپل سره. چې څه ولد ته محتاجه یم. ځکه چې څماخپل خپلوان ددی اهل ندی چې د دین څماد مرګ نه پس سنبال کړی نو مراد په ﴿الْمَوَالِيَ﴾ سره خپلوان او تربوران دحضرت زکریا علیه السلام دی او هغوئ بې دینه وو نوحضرت زکریا علیه السلام داخطره محسوسه کړه چې هغوئ به دادین خراب کړی او پدیکښې به رد وبدل او کړی. (مدارك) او مراد په ﴿مِنْ وَّرَآءِيْ﴾ سره من بعد موتی. دي او جار، مجرور متعلق دي په محذوف پورې اوندي متعلق په خفت پورې تقدیر دعبارت داسې دي. ای خفت فعل الموالی من بعدی الخ.

﴿وَكَانَتِ امْرَاَتِيْ﴾ پدیکښې اشاره ده نیشتوالی داسباب ظاهریوته. نوم دهغې کوروالا. اشاع بنت فاقود بن میل وو. چې خوروه دحنة بنت فاقود چې هغه د مریم بی بی موروه. او عمر داشاع په ده وخت کښې عمر (۹۲) کاله وو. او ﴿عَاقِرًا﴾ صفت دمؤنث او مذکر دواړو واقع کیږی هغه چاته وئیلې کیږی چې اولادئې نه کیږی که بوډاوي که غیربوډاوي او دلته ﴿عَاقِرًا﴾ په معنی د معقورة سره دي تفصیل ئې په آل عمران ایت نمبر (۴۰) کښې تیرشویدي ﴿فَهَبْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ﴾ دامقصود بالدعا او بالنداء دي چې څه هم کمزوری یم بوډا یم او کوروالامې هم عقیمه (شنډه) ده دهغې باوجود ته په ولدورکولو باندې قادرئې نو ماته بچې راکړې، نو مراد د ﴿وَلِيًّا﴾ نه صلبی ولد او بچې دي.

﴿يَّرِثُنِيْ وَيَرِثُ مِنْ﴾ دا دواړه په رفع سره صفتین دی د ﴿وَلِيًّا﴾ لپاره. او په کوم قرائت کښې چې په جزم سره راغلیدي بناء پدې چې جوابین دي د ﴿اِذْ نَادٰى﴾ لپاره نو هغه ضعیف دي او مراد په وارثت سره وراثت ددین دي په نیزد اهل السنة والجماعت. او استدلال دشیعه ګانو پدې آیت سره لپاره

ددي چې په اموال دَانبياء کرامو ﷺ کښې وراثت جاري کیږي.نولهذا حضرت فاطمة ﷺ دَحضور ﷺ دَمال مستحقه وه اوهغه ده میراث نه محرومول ظلم وو .باطل دي ۱۰ یوددې وجه نه چې حضور ﷺ ارشاددي.اُنامعشرالانبیآء لانورث ماترکنا صدقة(رواه البخاري)نوپدي حديث کښې دَټولوانبياء کرامو په باره کښې دي چې.لانورث.چې انبياء کرام ﷺ میراث نه پریدی بلکه کچرته مال ئې پاتې شي نوهغه به صدقه وي.اوداحديث مؤيدباجماع الصحابة ﷺ دي.۲.اودغه شان روايت نقل کړيدي امام ابوداؤد په کتاب العلم کښې چې انّ العلماء ورثة الانبياء.لم يورثوا دينارا ولادرهما ورثوا العلم الخ(ابوداؤد)داروايت.هم صريح دي پدې چې انبياء کرام ددينار اودراهم وراثت نه پريدي. بلکه دَهغوئ وراثت په دين کښې دي اوداروايت اګرچه صحيح لذاته خوندي ليکن صحيح لغيره دي.ځکه چې ددي مدارپه حفص بن سليمان باندې دي اوهغه متکلم فيه دي خوليکن په طرق متعددسره مروي دي، نوددي وجه نه حسن لذاته اوصحيح لغيره مرتبې ته رسيږي.اوددي وجه نه امام نووي ﷺ ددي حديث په باره کښې فرمائي انه ضعيف وان کان صحيحا اوداروايت په خپله دَشيعه ګانولوئی امام محمدبن يعقوب کليني په خپل جامع کښې دامام جعفرصادق ﷺ نه پدي الفاظونقل کړيدي.عن ابي عبدالله جعفرالصادق ﷺ انه قال ان العلمآء ورثة الانبياء وذلك ان الانبيآء لم يورثوا درهما ولادينارا وانماورثوا احاديث من احاديثهم فمن اخذبشئ منهافقداخذبحظ وافر، اوپديکښې په حصرسره(انما ورثوا)ذکرشويدي چې دَانبياء کراموميراث په علم اواحاديثوکښې وي،اوپه مال،دنياکښې نوي(۳)اودغه شان سياق دَايت هم دلالت کوي چې دلته دميراث نه مراد په علم اودين کښې ميراث مراددي. ځکه چې ايت داسې دي .﴿يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنْ ءَالِ يَعْقُوبَ﴾چې پدې کښې دَټول ال يعقوب دَميراث ذکردي نوکچرته ميراث نه مراد مال کښې ميراث مرادشي نوحضرت يحيى ﷺ به څرنګه دَټول آل يعقوب ميراث اغستلو .دابالکل ممکنه نده

اودايت په تاويل کښې داسې قول کول چې ((يرثني مالا ويرث من آل يعقوب النبوة والحكمة)) لکه چې دامنقول دی دَحضرت حسن بصري ﷺ وغيره نه نواولا خوددي په اتصال کښې کلام دي اوثانيا داقول مترو ک اومهجوردي ځکه چې مخالف دي دصحيح حديث نه.اوامام قرطبي ﷺ

فرمائی چې وكل قول يخالف قول النبي ﷺ فهومدفوع مهجور (قرطبی) چې هرقول چې مخالف وی دَقول دَحضور ﷺ سره نوهغه به مدفوع اومهجوروی.

(۴) اودغه شان قرینه عقلیه هم پدې موجوده ده چې پدې ځائ کښې دَمیراث نه مراد، دینې میراث دې نه دنیوې، ځکه چې حدیث کښې دې چې حضرت زکریا علیه السلام نجاروو یعنی ترکاڼی به ئی کوله اوهغه به ئی هم دَقوت لایموت په درجې کښې وه ورنه اکثراوقات به ئی په عبادت کښې تیرولو، نودَیوعام انسان اومسلمان په باره کښې داګمان نشی کیدلی چې هغه سره یوه روپئ یادوه روپئ وې اوپه اخیری عمرکښې صرف دَبچې دعا ددې لپاره کوی چې ځمادا یوه روپئ ځما میراث خورو ته پاتی نشی نودَجلیل القدر پیغمبرپه شان کښې دَداسی بخل تصوربه څرنګه کیدیشي.

اوکه څوك اعتراض اوکړی چې وراثت حقیقت دې په انتقال دَمال کښې اواستعمال ئی په اخذ دَعلم کښې مجازدې، ځکه چې کله هم وراثت لفظ خالی عن القرآئن وی نومتبادرالی الفهم دَمال والا معنیٰ ده اوداقرینه ده چې اوله معنیٰ ئی حقیقی ده اوبلاضرورت مجازته ارتکاب کول جائزندی؟

جواب دادې لفظ وراثت مشترك دې په اشتراك معنوی سره وراثت دَعلم، منصب اومال ټولوکښې، اوهرچه دې اختصاص ئی په مال پورې دادَقبیلې دَمنقولات عرفیونه دې لکه دابَّة چې لغت کښې کل مایدب علی الارض ته وئیلی کیږی خولیکن په عرف عام کښې استعمال ئی په ذات قوائم الاربع پورې خاص کړې شویدې، اوکچرته تسلیم کړو داخبره چې استعمال دَمیراث لپاره دَعلم مجازدې نوبیادامجازمتعارف دې چې دااولی دې دَحقیقت نه اوخاص طورپه قرآن کښې استعمال دَمیراث دَعلم لپاره شویدې لکه ثم اورثنا الكتب الذين الخ دغه شان ان الذين اورثوا الكتب، دغه شان داقول دَالله تعالیٰ فخلف من بعدهم خلفٌ ورثوا الكتب الخ شو.

اوپه مال کښې استعمال ئی ډیرکم دې اوپه قرائنوسره دې، مزیدتحقیق علامه آلوسی رحمه الله په روح المعانی کښې کړیدې.

﴿وَٱجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا ﴾رضی په معنیٰ دَمرضیاسره دې، یعنی دې په اخلاقواوافعالوکښې بهترین اوګرځوی، اویاپه معنیٰ دَراضیاسره دې چې دې ستاپه قدراوقضاباندې راضي وي، اوکه څوك اشکال اوکړی چې پیغمبر ﷺ خووي معصوم نوبیادَدې جملې ضرورت څه وو؟

نوجواب دادې چې داجمله په حقيقت کښې تاکيددې دَماقبل لپاره نودآيت مقصد دادې چې ده ته دانبياء کرامو والا اعلیٰ اخلاق اوصفات ورکړې يعني پيغمبرئې اوګرځوی، (فتح القدير).

﴿يَٰزَكَرِيَّآ إِنَّا﴾ پدې کښې ذکرد استجابت ددعا دَحضرت زکريا عليه السلام دې اودلته عبارت مقدردې نوتقديردَعبارت داسې دې، فاستجاب الله له دُعائه فقال يازکريا الخ اوپه مينځ دَبشارت اوولادت بچي کښې صرف يوه مياشت فرق وو، اوغوره قول دادې چې دابشارت اوخطاب پواسطه دَفرشتي سره وو، لکه په سورة ال عمران کښې فنادته الملئکة الخ ﴿ٱسۡمُهُۥ يَحۡيَىٰ﴾ تعيين دَنوم دَتاکيددَوعدې لپاره، اودَحضرت يحيیٰ عليه السلام شرافت لپاره دې اويحيیٰ لفظ عربی اودَمضارع ده په اصل کښې ده "يُحيیٰ دينَ الله" اوداجمله علم واقع شويده اوپه کلام عرب کښې ددې نظيرډيردې لکه يعمر، يموت وغيره شو اويالفظ عجمی دې (تفصيل ئې عمران کښې تيرشويدې).

﴿لَمۡ نَجۡعَل لَّهُۥ مِن قَبۡلُ سَمِيّٗا﴾، "سَمِيّ" په معنیٰ دَهم نام" سره دې، نومقصدد آيت دادې چې دَدينه مخکښې دَيحيیٰ نوم دَچاهم نوو، بچې هم عظيم اونوم ئې هم عظيم، اوعلامه زمخشری فرمائي چې پديکښې دليل دې پدې چې خائسته اوصحيح نوم ايخودل دَخاندانی شرافت تقاضه ده اواهل علم سره زيات مناسب ده (کشاف).

اويا ﴿سَمِيّٗا﴾ په معنی دَشبيه اونظيرسره دې لکه چې په دې سورت کښې روستوراځی، هل تعلم له سميا، چې مونږ دَده شبيه اونظيرندې پيداکړې

اودانفی دَمماثل په څه کښې ده؟ (۱) نوحضرت تهانوی رحمه الله فرمائي چې داپه خاص اوصافو کښې ده چې دې ولدته به څه خاص اوصاف مونږه ورکړو چې هغه اوصاف به په هغې درجې کښې بل چاته نوې ورکړې شوی مثلًا دَخشيت الهی خاص درجې والا رقت قلب وغيره اودافضيلت جزئی قادح ندې دَمرتبې دَنوروانبياء کرامو عليهم السلام لره، اوامام رازی رحمه الله فرمائي چې دَدينه مراد هغه اوصاف دي چې په سورة عمران کښې ذکردی چې "سيّداً وحَصُوراً" دې اوداجمله په جواب دَهغې جملی کښې ده چې حضرت زکريا عليه السلام اوفرمائيلوچې ﴿وَٱجۡعَلۡهُ رَبِّ رَضِيّٗا﴾ نوګوياچې داغاية رضاده (۲) بعض فرمائي چې هرولدلپاره نوم خپل والدين وغيره ايږدی خوورستودَپيداکيدلونه اوحضرت يحيیٰ عليه السلام خصوصيت داووچې قبل الولادة دَده نوم الله تعالیٰ ايخودلی وو نوګوياچې پدې خاصيت کښې دَده څوک

مثل په تيره شوي زمانه کښې نيشته۴، اوبعض فرماني چې دده پلار حضرت زکريا عليه السلام بوډا او وامورئي بوډئی اوعاقره وه نو ددغه شان والدينونه بچې پيدا کيدل ډير نادر دي نو پدې وصف کښې نفي دَمثل مراد ده. اوددينه علاوه نور اقوال پکښې هم راغليدي ﴿قَالَ رَبِّ أَنَّىٰ﴾ دا جمله مستانفه ده ګويا چې سائل سوال اوکړو چې فماذا قال عليه السلام حينئذ؟ نوجواب اوشوچې قال الخ او﴿أَنَّىٰ﴾ په معنی دکيف سره دې اودا سوال دَحضرت زکريا عليه السلام په باره دکيفيت کښې دی چې دا بچې پيدا کيدل به په کومې طريقې سره وي آيا مونږ به دوباره ځوانان کيږو يا به نوی واده کوم يا به پدې حالت کښې يو؟ نولهذا داسوال دَحضرت زکريا عليه السلام لپاره دَانکار يا استبعاد نو و. او دا هم ممکنه ده چې ﴿أَنَّىٰ﴾ په معنیٰ دَمِنْ اَينَ سره شي او مقصود تنه انکار او استبعاد شي فقط صورة لپاره دَتکرار دَبشارت چې په دويم ځلې بيا دا بشارت ورته واوره ولی شي اودَخوشحالئ په موقعو کښې داسې کلام شائع او کثير دي ﴿يَكُونُ لِي غُلَامٌ﴾ ،" کان" يا تامه ده او﴿غُلَامٌ﴾ ئې فاعل دې او يا" کان" ناقصه دې اوغلام ئې اسم دې اوخبرئې يا ﴿أَنَّىٰ﴾ دې چې مقدم دې او يا خبر ورله ﴿لِي﴾ جار مجرور سره دَمتعلقه دې

﴿وَكَانَتِ امْرَأَتِي﴾ دا دوه مانعه دَولادت ذکر کوی چې کور والا مې هم شنډه ده او په خپله هم بوډا يم. او دا جمله په تقدير دَقد ، سره حال واقع شويده دضمير متکلم نه اودغه شان. ﴿وَقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ﴾ هم حال واقع شويده دَضمير متکلم نه اودا دواړه جملې دَتاکيد دَتعجب يا استبعاد لپاره دې او ﴿عِتِيًّا﴾ دَعتی يعتو نه دې وئيلې کيږی سرکشی او انتهاء ته، دلته تنه مراد دَبوډا والی اخری حد ته رسيدل دی.

قَالَ كَذَٰلِكَ ۚ قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ وَقَدْ خَلَقْتُكَ

اوئيل الله ﷻ: همدغه شان به بې تاسو، وئيلې دی رب ستا چې دا کار په ما باندې اسان دې او په تحقيق سره ما پيدا کړې وې نه

مِنْ قَبْلُ وَلَمْ تَكُ شَيْئًا ﴿٩﴾ قَالَ رَبِّ اجْعَل لِّي آيَةً ۚ قَالَ آيَتُكَ

مخکښې دده نه، اونوې نه هيڅ څيز. اوئيل ده اې ربه ځما اوګرځوه ماله يوه نښه اوئيل الله ﷻ چې نښه ستا داده

أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا ۝ فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ

چې خبري به نشي کولی ته دخلکوسره دري شپې حال داچه روغ به ئې. پس را اووتلويه قوم خيل باندي

مِنَ الْمِحْرَابِ فَاَوْحٰۤى اِلَيْهِمْ اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا ۝ يٰيَحْيٰى

دعبادت خاني نه پس اشاره ئې اوکړه دوئ ته چې تسبيح وائی صبائی اوبيگائی اونيل مونږه. اي يحيى عليه السلام

خُذِ الْكِتٰبَ بِقُوَّةٍ ؕ وَاٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا ۝ وَّحَنَانًا مِّنْ لَّدُنَّا وَزَكٰوةً

نيسه ته کتاب په کلکه سره اوورکړې وه مونږه دده ته پوهه ددين په وړوکوالي کښ. اوترس کول په مخلوقاتو د طرفه زمونږنه او پاکوالی

وَكَانَ تَقِيًّا ۝ وَّبَرًّا ۢ بِوَالِدَيْهِ وَلَمْ يَكُنْ جَبَّارًا عَصِيًّا ۝ وَسَلٰمٌ عَلَيْهِ

اووو دي تقوى دار. او احسان کوونکی دمورپلار سره اونوظلم کوونکی په خلکو اونافرمانه. او سلامتيا ده په ده باندي

يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوْتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ۝

په کومه ورځ چې دي پيداکړې شو اوپه کومه ورځ چې مرکولې شي اوپه کومه ورځ چې دوباره ژوندي کړې شي

﴿قَالَ كَذٰلِكَ﴾ داجواب دي دجانبه دالله تعالیٰ نه چې خبره هم دغه شان ده چې ته اوستا بي بي په هم پدغه حالت باندي به يئ اوداګرچه دتعجب خبره ده ستالپاره خو الله تعالیٰ باندي ډيراسانه ده او الله تعالیٰ به درنه بچې پيداکړي.

﴿كَذٰلِكَ﴾ په محل درفعي کښې دي اوخبردي دمبتدا مقدر لپاره په اصل کښې داسي دي الامر كذلك اويامبتداء "انتما" دي يعني "انتماكذلك" اوبعض علماء فرمائی چې داپه محل دنصب کښې دي اومفعول مطلق دي د ﴿قَالَ﴾ لپاره په اعتباردموصوف مقدره سره، اى قال قولا مثل ذلك.

اوپه ﴿كَذٰلِكَ﴾ سره اشاره ده يو امرمبهم ته چې تفسيرئې په ، ﴿هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ﴾ سره شويدي لکه په وقضينا اليه ذلك الامر ، کښې مشار اليه دذلك امرمبهم دي چې تفسيرئې انّ دابرهولآء الخ سره شويدي ﴿وَقَدْ خَلَقْتُكَ مِنْ قَبْلُ﴾ مضاف اليه دقبل لپاره ﴿يَحْيٰى﴾ ده اى قبل يحيى ﴿وَلَمْ تَكُ شَيْئًا﴾ مرادتنه معدوم دي اوپدې سره اهل السنة والجماعت استدلال کړيدي چې معدوم شئ نوی

اومرادیدې سره ابتدائی تخلیق دبشردې. ځکه چې په هغه وخت کښې انسان معدوم محض وو،اوداسې اونوئیلی شووقدخلقت اباك ولم تك شيئا لپاره دتاکیددحجت اولپاره دتوضیح دقیاس،چې ادم عليه السلام نوموجود نواولادئی خوبالکل معدوم محض وو اوته هم معدوم محض وی نوالله تعالى دومره عظیم قدرت والادې چې انسان له ئی دخاورو نه وجود ورکړو صورت ئی ورله ورکړو اوموجود ئی کړو نوپدیکښې څه قسم استبعاد اوتعجب نیشته دې چې ستالپاره به ولدستانه پیدا کړي،اوبعض مفسرین فرمائی چې مرادیدې سره تخلیق په طریق دتوالد اوانتقال سره دې،نومقصددادې چې ته موجود نوی نوالله تعالى په طریقی معتادې سره دخپلوالدینونه مختلف اطواروته منتقل کیدلونه پس پیدا کړی نودغه شان به الله تعالى ستاولدهم دنیاته راولی

﴿قَالَ رَبِّ ٱجۡعَل لِّيٓ﴾دادرخواست دې دحضرت زکریا عليه السلام دیوی نشانی په حمل دخپلی بی بی باندې،اودادرخواست ئی لپاره داستعجال بالتبشیرو اولپاره دشکر ادا کولووو دابتداء دزمانی دعلوق نه ترانتهاء دزمانی دولادت پورې اوچونکه حمل اوعلوق لپاره قرینه ظاهره بندش دحیض وی اودحضرت زکریا عليه السلام بي بي دکبرسنی(بوډئی والی)دوجې نه آیسه ګرځیدلی وه یعنی ماهواری ورته نه راتلله،نوددې وجه نه حضرت زکریا عليه السلام دشکراداکولولپاره دابتدائی زمانی دعلوق لپاره قرینه اوعلامه اوغوختله،﴿قَالَ ءَايَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ ٱلنَّاسَ﴾هرکله چې حضرت زکریا عليه السلام نشاني طلب کوله لپاره دزیارت شکر، نوالله تعالى دطرف نه ورته نشاني هم داسې میلاؤشوه چې هغه معینه اومددګاره وه په زیارت دشکرکولوکښې چې هغه دانسانانوسره خبری نه کول وو،اوصرف دالله تعالى ذکرکولوباندې استطاعت اوقدرت وو، اوغوره قول دادې چې ﴿أَلَّا تُكَلِّمَ ٱلنَّاسَ﴾ نفي ده چې ته به دخبروطاقت نه لری دخلکوسره، اوبعض فرمائي چې دانهي ده دخبروکولونه دخلکوسره اومقصد دادې چې ته درې ورځې دخلکوسره خبری مه کوه،نوګویا چې داروژه شوه دخبرونه،اودادهغوئی په دین کښې جائزوو، لکه ورستو دحضرت مریم عليها السلام په واقعی کښې هم دی چې﴿إِنِّي نَذَرۡتُ لِلرَّحۡمَٰنِ صَوۡمٗا﴾..

﴿ثَلَٰثَ لَيَالٖ﴾په سورة آل عمران کښې ایت نمبر(۴۱)کښې لفظ دایام ذکرشوې ووهغه قصه اوداواقعه یوه ده،نوهلته کښې اکتفاء شوې ده په ذکردورځوباندې اګرچه لیال یعنی شپې ورسره هم مراد وی، اودلته اکتفاء اوشوله په لیال باندې اګرچه ایام ورسره هم مراددی،اودااکتفاء په

عرف کښې شائع ده البته هلته دَايام ذکراوشواودلته دَلیال ذکراوشواوبالعکس اونشونکته داده چې سورة مريم په اعتبارد نزول سره مقدم دې ځکه چې مکی دې اوشپه هم مقدمه ده په ورځې باندې طبعا اوسورة آل عمران مدنی دې مؤخردې اوورځ هم مؤخره ده طبعا په شپې باندې،نوددې وجه نه مقدم طبعی ذکردَمقدم نزولی سره اوشولواومؤخرطبعی ذکردَمؤخرنزولی سره اوشولو، اوهرکله په لاس باندې اشاره دَشپې نه ښکاريږي بلکه دَورځې په وخت کښې ښکاريږي نودَدې وجه نه په سورة آل عمران کښې ورسره،الاَ رمزا هم ذکرشوې وو او ﴿سَوِيًّا﴾نه مراد دادې چې ته به بالکل تهيك ټاك وې اوداخبرې نه کول به دَوجې دَمرض نه نوی بلکه په طريقې دَاعجازسره به وی چې صحيح سالم به وی خلکوسره به خبری نشی کولی اودَالله ﷻ ذکربه کولی شی (ابو السعود).

﴿فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ﴾نودغه شان اوشوله چې کله وقت مقرره راغی نوحضرت زکريا عليه السلام په خبروکولوباندې قادرنوو اوخلك ورته په انتظارناست وو نودې دَخپلې کمرې اومحراب(خانقاه) نه راووتلو اوخلکوته ئې په اشارې باندې اوئيل چې تاسوخپل مونځونه کوئ، نومرادپه﴿ٱلْمِحْرَابِ﴾سره هغه اوچته کمره ده چې حضرت زکريا عليه السلام به پکښې عبادت کولو اومحراب صيغه دَاسم ظرف ده يعنی ځائ دَجنګ کولواوچونکه دامقام هم دَشيطان سره دَجنګ کولو والادې نوځکه ورته محراب وئيلې کيږی

اومرادپه ﴿فَأَوْحَىٰٓ إِلَيْهِمْ﴾ سره معنی لغوی ده يعنی اشاره کولواوپه ال عمران کښې تنه تعبيرپه ،الّارمزا،سره شويدې اوداشاره ياپه لاس سره وه اوياپه شوندوسره وه، اوامام مجاهد رحمه الله فرمائی چې مرادتنه کتابت دې،يعنی هغوئ ته ئې اوليکلو، ليکن اوله معنی زياته راجحه ده.

﴿أَن سَبِّحُوا۟﴾"ان" تفسيريه دې او﴿سَبِّحُوا۟﴾نه په نيزدَاکثراهل علم مراد مونځ دې، ځکه چې مونځ مشتمل دې په تسبيح باندې،او﴿بُكْرَةً وَعَشِيًّا﴾نه دَسحراومازيګرمونځونه مراددې، اوبعض علمآء فرمائی چې دَ﴿سَبِّحُوا۟﴾نه مراد مطلق دَالله ﷻ ذکراوتسبيح دې اوهرکله چې حضرت زکريا عليه السلام ماموروو په ذکردَالله ﷻ باندې نوهغه خپل قوم ته هم داحکم اوکړو ،(روح) اوپه﴿بُكْرَةً وَعَشِيًّا﴾سره مراد کل اوقات دی اوتخصيص ددې دوه اوقاتو دَافضيلت دَوجې نه

دي ﴿يَٰيَحْيَىٰ خُذِ ٱلْكِتَٰبَ﴾ دلته عبارت مقدر دي تقديرئې دا سې دي. فلما ولد يحيى وكبروبلغ السن الذى يومرفيه قال الله له الخ (بحر)يعنى چې كله حضرت يحيى الطَّيِّلا پيدا شو او غټ شو او دعمر هغه حدته اورسيدلى وو چې په هغې كښ حكم كولى شي چانه نوپه هغې وخت كښ ورته الله ﷻ اوفرمائيلوچې،يايحيى الخ اوالف لام په ﴿ٱلْكِتَٰبَ﴾ كښ عهدى دې مراد تنه توراة دې. او ﴿بِقُوَّةٍ﴾ سره اشاره ده پوراپورا عمل كولوته﴿وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْحُكْمَ صَبِيًّا﴾. دااول وصف دحضرت يحيى الطَّيِّلا ذكركيږى، چې وړوكوالي په حالت كښ ورته دَدين پوهه وركړې شوې وه. اود ﴿ٱلْحُكْمَ﴾ډير معانى ذكركړې شويدى،غوره معنى داده چې حكم نه مراد فهم اوپوهه دَدين ده په يومرفوع روايت كښ دَابن عباس الطَّيِّلا نه مروى دې چې حضرت يحيى الطَّيِّلا ته يوځلى هلكانو اوئيل راځه چې لوبى اوكړو نوهغه ورته اوئيل چې آيامونږ دَلوبولپاره پيدا كړې شوى يو؟ راځئ چې مونځ اوكړو اوابن عباس ﷺ نه داهم مردوى دې چې كوم بچي دَبلوغ نه مخكښ قرآن مجيد اوئيلو نوهغه هم پدې صفت كښ داخل شو، عن ابن عباس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من قرا القرآن قبل ان يحتلم فهوممن اوتى الحكم صبيا(مستدرك حاكم).

اوبعض مفسرين فرمائى چې ﴿ٱلْحُكْمَ﴾نه مرادنبوت دې اودَحضرت يحيى الطَّيِّلا اودَحضرت عيسى الطَّيِّلا خصوصيت دادې چې دوئ ته په وړوكوالى كښ قبل البلوغ نبوت ميلاؤشويدې نورو انبياء كراموته به نبوت دَځلويښت كالونه پس ميلاويدلو﴿وَحَنَانًا مِّن لَّدُنَّا﴾پديكښ بل وصف دَحضرت يحيى الطَّيِّلا والاذكركيږى اوداعطف دې په﴿ٱلْحُكْمَ﴾ باندې. دامشتق دې دَحنين نه وئيلى كيږى بى حده اشتياق ته اوداچاپه فراق كښ جزع ته اوبيااستعماليږې دَرحمت په معنى كښ. يعنى دَيحيى الطَّيِّلا په زړه كښ الله ﷻ دَانسانانوسره شفقت اورحم كولوجذبه پيدا كړه، ﴿وَزَكَوٰةً﴾دادريم وصف دې،مراد تنه بركت اودَبنه اخلاقووالإكيدل دى﴿وَكَانَ تَقِيًّا﴾څلورم وصف دې،چې نه ئې ګناه كړې وو اونه دګناه اراده ورته راغلى وه﴿وَبَرًّۢا بِوَٰلِدَيْهِ﴾ داپنځم وصف دې يعنى دَموراوپلار دواړو سره احسان كوونكى وو.ماقبل صفت ﴿وَحَنَانًا﴾.نسبت عامو خلكوته وو

اودا وصف ئی خاص دي﴿وَلَمۡ يَكُن ﴾داشپږم وصف دي. او﴿جَبَّارًا﴾ او﴿عَصِيًّا﴾ صيغې دمبالغې دی خودلته مراد مبالغه په نفي کښې ده نه نفي دمبالغې ده نو اعتراض نه واردیږی چې که ډیرجبار او عاصي نو لیکن لږ لږ به وو.﴿وَسَلَٰمٌ عَلَيۡهِ ﴾پدې ايت کښې نوردرې اوصاف دحضرت يحيی علیه السلام ذکرکیږی،اومراد په ﴿وَسَلَٰمٌ﴾سره امن اوسلامتیاده﴿يَوۡمَ وُلِدَ ﴾ دابتدائی ورځ وی دانسان په دنیاکښې اوشیطان بچې نه تکلیف رسول غواړی﴿وَيَوۡمَ يَمُوتُ ﴾ ددنیااخیری ورځ اودقبراوعالم برزخ اوله ورځ وی اوانسان دقبردعذاب اودهغې دمخلوقاتو اودخپل خپلوانودفراق نه وحشت محسوسه وي﴿وَيَوۡمَ يُبۡعَثُ حَيًّا ﴾ دعالم اخرت اوله.ورځ وي دقیامت سخت هولناك منظروي دجهنم عذاب خوف اوخطره وي اوهرکله چې انسان په دې درې احوالوکښې ډیرضعیف وي اومحتاجه وي امدادته اوچې پدې درې احوالوکښې ورته امن اوسلامتیاحاصله شي نوپه نورواحوالوکښې به طریق اولی حاصلیږي نو ددې وجه نه ددې درې احوالوتخصیص اوکړې شو.اوبعض مفسرین فرمائی چې مراد دسلام نه تحیة متعارفه یعنی معروف اومشهورسلام مراددې یعنې په دغې درې حالاتوکښې په ده باندې دالله جل جلاله دجانب نه بطورتشریف اوتکریم سلام به کوی لیکن اول قول زیات راجح اوغوره دې

وَٱذۡكُرۡ فِي ٱلۡكِتَٰبِ مَرۡيَمَ إِذِ ٱنتَبَذَتۡ مِنۡ أَهۡلِهَا مَكَانٗا شَرۡقِيّٗا ﴿١٦﴾

اوبیان کړه ته په کتاب(قرآن) کښې واقعه دمریم علیها السلام[1] کله چې یوطرف ته شوه داهل خپل نه یومکان دنمر خانه طرف ته

فَٱتَّخَذَتۡ مِن دُونِهِمۡ حِجَابٗا فَأَرۡسَلۡنَآ إِلَيۡهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا

پس اونیوله ددوئ نه (بچ کیدلو دپاره)پرده نو اولیږلومونږ هغې ته روح(جبرئیل) دخپل طرف نه.پس اختیارئې کړو شکل هغې ته

بَشَرٗا سَوِيّٗا ﴿١٧﴾ قَالَتۡ إِنِّيٓ أَعُوذُ بِٱلرَّحۡمَٰنِ مِنكَ إِن كُنتَ تَقِيّٗا ﴿١٨﴾

دسړی خانسته. اونیل دې چې بیشکه زه پناه نیسم په رحمن سره دستانه.کچرته ئی ته یریدونکې د الله جل جلاله نه ما ته څه مه وايه

[1] جواب ازشبه ثانیه متعلق بمریم شبه ازنصاری

| |
|---|
| قَالَ اِنَّمَآ اَنَا رَسُوْلُ رَبِّكِ ۖ لِاَهَبَ لَكِ غُلٰمًا زَكِيًّا ۝ قَالَتْ |
| هغه اوئيل چې بيشکه ځه رالیږلی شوې يم دَطرفه دَرب ستانه چې درکړم تاله ځوئ پاکيزه.اوئيل هغې څرنګ |
| اَنّٰى يَكُوْنُ لِىْ غُلٰمٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِىْ بَشَرٌ وَّلَمْ اَكُ بَغِيًّا ۝ |
| به وي مالره بچي او لاس ندي لګولي ځماسره هيڅ يوبنده اونه يمه ځه بدکاره. |

﴿وَاذْكُرْ فِى الْكِتٰبِ﴾ دادويمي شبهي جواب دي چې دَحضرت مريم اودَحضرت عيسىٰ عليه السلام په باري کښ کيدله چې حضرت مريم عليها السلام ته بي موسمه ميوي راتلل، مافوق الاسباب بچې پيداکيدل،اودَحضرت عيسىٰ عليه السلام مړي ژوندي کول اونورډيرعجيبه اونااشناامورظاهريدل پدي دليل دې چې دوئ متصرف اوحاجت روادې، نوپدي رکوع کښ ددغي شبهي تفصيلي جواب ذکرکيږي، چې دَحضرت مريم عليها السلام پناه طلب کول په الله تعالىٰ سره حضرت جبرئيل عليه السلام نه پيژندل، دَبچي پيداکيدل اودَهغې درد اوتکليف محسوسول، دَمرګ تمناکول اونذرروژه نيول دا ټول دلائل دَعجزدهغې دي، اوحضرت عيسىٰ عليه السلام په خپله خپل عجزبيان کړيدې اوخپل ځان ته ئي عبديت ثابت کړيدې،اوخپل ځان په باره کښ ئي فرمائيلي دي چې ځه نبي يم ماموريم په عباداتو، اوپه سلامتياکښ الله تعالىٰ ته محتاجه يم،اوپه ډيرصراحت سره ئي اعلان کړيدي چې ﴿وَاِنَّ اللّٰهَ رَبِّىْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ﴾ نوداټول پدي دليل دې چې حضرت عيسىٰ عليه السلام ته تصرف کامله حاصل نوو.

﴿فِى الْكِتٰبِ﴾ نه مراد قرآن دي﴿اِذِ انْتَبَذَتْ﴾ دامشتق دې دَنبذ نه اونبذ(مجرد) وئيلی کيږی رمی اوغورځولوته او(مزيد)باب افتعال نه وئيلی کيږی اعتزال عن الناس ته يعني دَخلکونه ځان ته يوطرف ته کيدلوته وئيلی کيږي اودابدل اشتمال دي دَماقبل "مريم"نه نولهذا مقصود ذکردَحضرت مريم نه دې بلکه مقصود اصلي ذکردَهغي وقت دې چې داعجيب اوغريب واقعه پکښ رونماشوې وه (کشاف) او﴿مِنْ اَهْلِهَا﴾ داجارمجرور متعلق دی په﴿اِذِ انْتَبَذَتْ﴾ پوري،اواهل نه مراد هغه خلك دی چې هلته يعني په مسجداقصیٰ کښ موجودوو،او﴿مَكَانًا

﴿شَرۡقِيّٗا﴾نه جانب شرقی دَبيت المقدس مراددې (ابن کثير) اوبعض فرمائی چې جانب شرقي دهغې دکور مراددې.

اونصب دَ﴿مَكَانٗا﴾ کښې اختلاف دې بعض فرمائی چې دامنصوب دې بنابرظرفيت اوبعض فرمائی چې دامفعول به دې دَ﴿إِذِ ٱنتَبَذَتۡ﴾ لپاره، او﴿ٱنتَبَذَتۡ﴾متضمن دې معنٰی دَاتيان لره، ليکن غوره قول دادې چې مکانا مفعول به دې دَفعل مقدرلپاره، نواصل کښې داسي دې، واتت مکانا شرقيا(ابو السعود).

اوجانب شرقي ته راتلل دَڅه لپاره وو؟ نوبعض فرمائی چې دَغسل لپاره وو چې کله ديته حيض رغي نوبيادَطهارت حاصلولولپاره دَخپل کورنه لري يوشرقي جانب ته لاړه اوبعض فرمائی چې غسل طهارت لپاره نوه تللي بلکه خپل سروينځلواو،مونزکولولپاره تلی وه، اوبعض فرمائی چې تږی شوي وه نودَاوبوڅکلولپاره تلی وه، ليکن غوره خبره داده چې داجانب شرقي ته دَعبادت لپاره راغلي وه څکه چې دابه په مسجد اقصیٰ کښې پاتي کيدله اوهلته کښې به نورعابدين هم وو، نودادَخلکونه جداشوه اوپه جانب شرقي کښې ئی عبادت شروع کړلو،اوابن عباس رضي الله عنه نه منقول دی چې نصاری چې دَجانب شرقي تعظيم کوي نودهغې وجه هم داده، ليکن دادَعيسيانويوبدعت دې څکه چې دَحضرت مريم عليها السلام جانب شرقي ته جداکيدل محض اتفاقي وو، دَجانب شرقي دَتعظيم په بنياد نه وو.

بهرحال: دَعبادت لپاره، يادکورنه لري جانب شرقي ته دَغسل کولولپاره لاړه،نوپه هغي ځائ ورته حضرت جبرئيل عليه السلام دَالله تعالیٰ په حکم سره دَيوخائسته انسان په صورت کښې ظاهرشو لکه چې الله تعالیٰ فرمائي ﴿فَأَرۡسَلۡنَآ إِلَيۡهَا رُوحَنَا﴾نه مراد حضرت جبرئيل عليه السلام دې اوبعض مفسرين فرمائی چې روح نه مراد دَحضرت عيسی عليه السلام روح دې چې انسانی صورت کښې حضرت مريم عليها السلام راغلی وو،ليکن داقول ضعيف دې حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائی وهذا فی غاية الغرابة والنكارة وكانه اسرائيلى(ابن كثير).

﴿فَتَمَثَّلَ لَهَا﴾تمثل وئيلی کيږی تشکل ته يعني دَبل چاشکل اوصورت اختياره ول، نوحضرت جبرائيل عليه السلام حضرت مريم عليها السلام ته په يوخائسته شکل اوصورت انساني کښې ظاهرشو،اوپه شکل انساني کښې ظاهريدلو وجه داوه چې حضرت مريم عليها السلام ګبهراؤنشي اودهغه په

خبرو باندي پوهه شي اوکچري حضرت جبرئيل عليه السلام په صورت دملك اوفرشتي كنبې راغلى وي نوبيا به حضرت مريم عليها السلام كبهراؤشوي هم وه اودهغه په خبروباندي به پوهه شوي هم نوه (كبير).

اوبعض فرمائى چې پدي تمثل كنبې دحضرت مريم عليها السلام دعفت اوپاكدامنئ په باره كنبې ازمائش اوامتحان اغستل وو.چې حضرت جبرئيل عليه السلام په يوحسين صورت كنبې راغى خوحضرت مريم عليها السلام ورنه تعوذ اوپناه اوغوختله نومعلومه شوه چې دادپاكدامنئ په اعلى معيارباندي فائقه ده (كشاف).

**فائده** ددي ايت نه معلومه شوه چې ملائكوته الله جل جلاله قوت وركړيدي چې انساني شكل باندي متشكل كيدي شي اوكه څوك اعتراض اوكړي چې دحضرت جبرئيل عليه السلام جسد خوډيرلوئ دي نوڅنگه به ديووړوكي انسان په صورت كنبې راشي؟ نوجواب تنه دادي(۱) (عندالمتقدمين)چې دحضرت جبرئيل عليه السلام راتلل په شكل انساني سره ثابت دي په نصوص قطعيه سره نو ئهذا تسليم اوايمان پري راوړل ضروري دى اوكيفيت ئى مفوض دي الله جل جلاله چې الله جل جلاله ته ئى صحيح علم دي (۲)امام رازي فرمائى چې دحضرت جبرئيل عليه السلام لپاره دوه قسمه اجزاء دي. اجزاء اصليه اواجزاء فاضله. نواجزاء اصليه دحضرت جبرئيل عليه السلام ډيركم دى اواجزاء فاضله ئى ډيرزيات دى نوكله چې حضرت جبرئيل عليه السلام په صورت دانسان كنبې راځي نواجزاء اصليه ورسره وي فقط اواجزا فاضله ورسره نوي اواجزاء فاضله چرته لاړشي نوبعض علماء فرمائى چې اجزاء فاضله فناء كيږي شي دامذهب دامام الحرمين دي اوبعض علماء فرمائى چې فناء كولى نشي بلكه هسي ورنه جداكړې شي اوبياورته اولگولى شي.

(۳)حافظ ابن حجر رحمه الله دخپل استادپه حوالي سره فرمائى چې حضرت جبرئيل عليه السلام په خپل اصل حالت كنبې راځي خوالله جل جلاله حضرت جبرئيل عليه السلام ته داقوت وركړيدي چې هغه خپل خان رااونغاړي چې كله په صورت دانسان كنبې راځي، اوچې كله اوغواړي چې خپل اصلي حالت ته واپس شي نورانغختي اجزاء دوباره كولاؤكړي، اوددي مثال داسي دي لكه مالوچ،چې كله اوسپړولى شي نوډيربنكاريږي اوچې كله راټول كړې شي اوامنډلى شي نوبياوړوكي شي، خودابحث په هغه صورت كنبې دي چې راتږ دحضرت جبرئيل عليه السلام روح مع الجسدوى. اوكه چرته راتږدحضرت جبرئيل عليه السلام صرف دروح په اعتبارسره وي لكه چې ديته ذهاب كړيدي بعض محدثينو نوبياخوپكښې بالكل څه بحث اواشكال نيشته دي.

﴿قَالَتۡ إِنِّيٓ أَعُوذُ ﴾دا استعاذه دَمريمعليها السلام ده په رحمن سره، نومعلومه شوه چې حضرت مريمعليها السلام محتاجه وه الله جل جلاله ته﴿إِن كُنتَ تَقِيًّا ﴾ ،دَدې لپاره جزاء مقدره ده چې په هغې باندې سياق دكلام دلالت كړيدې نوتقديردَعبارت داسې دې ان كنت تقيافانى عائذة به منك.اوياجواب ورله. "فلاتعرض لى" دې چې كچرې متقي ئي او الله جل جلاله نه خوف كوونكې ئي نوماته څه مه وايه

كه څوك اعتراض اوكړي چې استعاذه خودَفاجرنه پكاروي،نوځنګه حضرت مريمعليها السلام ﴿إِن كُنتَ تَقِيًّا ﴾. اوئيلو. نوجواب دادې چې ،﴿إِن كُنتَ تَقِيًّا ﴾ شرط لپاره دَاستعاذى ندې بلكه داشرط دې لپاره مكافئة اومنع لپاره خوهركله چې تقوى، مؤثره وه په منع دَغلط اقدام اوفعل كښې نوددې وجه نه ئې داصورتا شرط اوګرځولو ،اوددې مثل داقول دَالله جل جلاله دې چې: وذروا مابقى من الرّبٰوا ان كنتم مؤمنين(البقرة نه ٢٧).

اوبعض فرمائى چې ﴿إِن كُنتَ تَقِيًّا ﴾ ،شرط دې او ﴿أَعُوذُ بِٱلرَّحۡمَٰنِ ﴾ورله جزاء مقدم ده اوكلام محمول دې په مبالغى باندې،يعني ته كچرې نيك اومتقي ئې نوځه په الله جل جلاله سره ستانه پناه نيسم، اوكچرته فاجرئى نوبياخوپه طريق اولى سره پناه نيسم،اوداقول كول چې تقى نوم دَيونيك سړى وو اوحضرت مريمعليها السلام په جبرئيلعليه السلام باندې ګمان دَهغه اوكړو.ياتقى نوم ديوبدكارسړى ووچې په ښځوپسې به ګرځيدلو اوحضرت مريمعليها السلام په حضرت جبرئيلعليه السلام باندې دَهغه ګمان اوكړو اواستعاذه ئې طلب كړه، داضعيف دې.

﴿قَالَ إِنَّمَآ أَنَا۠ رَسُولُ ﴾هركله چې جبرئيلعليه السلام دهغې خوف اوكتلونوخپل تعارف ئې ورته اوكړو چې په كوم رب سره ته پناه نيسې نوځه دَهغه طرف نه راليږلى شوې يم﴿لِأَهَبَ لَكِ ﴾ داحكمت اوسبب دَارسال دې چې ددې لپاره الله جل جلاله راليږلى يم چې تاته بچې دركړم.اوپه ﴿لِأَهَبَ لَكِ ﴾كښې يااسناد مجازى دې، چې حضرت جبرئيلعليه السلام دَولد وركولونسبت خپل ځان ته كړيدې دانسبت مجازا دې ځكه چې حضرت جبرئيلعليه السلام سبب ګرځيدلى وو دَولد لپاره په نفخ سره اويامجازفى الحذف دې په تقديردَقول سره نواصل عبارت داسې دې چې اى ربك الذى قال ارسلت هذا الملك لاهب لك(روح) اوددې تائيدپه قرآءت دَابوعمرو اونافع سره شويدې چې په هغې

كښ دَ ﴿لِأَهَبَ لَكِ ﴾په ځائ ليهب لك راغليدى، بهرتقديردَدې ايت نه دَاهل بدعت استدلال باطل دې چې فرشته هم بچې ورکولى شي،بلکه اولاد ورکوونکي فقط دَالله ﷻ ذات دې بل څوك نشي کيدلى.﴿قَالَتْ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي ﴾داقول دَحضرت مريمؑ بطورتعجب دې اوداتعجب دَوجې دَاستبعاد دَقدرت دَالله ﷻ نه ندې، چې حضرت مريمؑ دَالله ﷻ دَقدرت نه دابعيده کنړه له چې ديته بغيردَيوبشرېدَنزديکت نه بچې ورکړي بلکه داتعجب په اعتبار دَعادت سره دې، څکه چې عادت پدې جاري دې چې بچې بغيردَنزديکت دَسړي نه نه کيږي،اگرچه خلاف عادت باندې الله ﷻ قادردې،اويا﴿أَنَّىٰ﴾په معنى دکيف سره دې،اوداسوال دکيفيت اودَوجي دې چې آياڅه به واده کووم يابه بغيردَواده کولونه به بچې پيداکيږي، ليکن اوله توجيه غوره ده.

﴿وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ ﴾داوجه دَتعجب ده چې بچې کيدل دَيوزنانه ياخوپه حلال اوشرعي طريقي سره وي چې نکاح ئى شوي وي اوخاوندورسره جماع اوکړي اوبچي پيداشي اوياپه حرام اوناجائزطريقي سره وي چې يوه زنانه بدکاره وي اودَبدکارئ په نتيجي کښ بچې اوشي اودادواړه دلته مفقود دي،نو﴿وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ﴾ نه مرادجماع ده په حلال طريقي سره او﴿وَلَمْ أَكُ بَغِيًّا ﴾نه مراد زناده، اوبعض مفسرين فرمائى چې﴿وَلَمْ يَمْسَسْنِي﴾نه مراد مطلق جماع ده خواه که په طريقي شرعي سره وي ياغيرشرعي طريقي سره وي،او﴿وَلَمْ أَكُ بَغِيًّا ﴾ دَتاکيددتنزيه لپاره دې، اولفظ دَبغى ياپه زون دَفعول دې په اصل کښ "بَغُوىٌ" وو،"واو" ساکن دَ "ياء"سره جمع شونودَقانون مرمى مطابق واوپه "ياء" سره بدل کړې شواوياءپه ياء کښ مدغم کړې شوه او"ياء" مناسبت دوجهي نه ماقبل ضميرپه کسره سره بدل کړيشوه،نوبغىٌ تنه جوړشو اوياپه وزن دَفعيل سره دې نوفقط ادغام پکښ شويدې اوابدال پکښ نيشته دې اوفعيل بمعنى الفاعل دې اوداصفت دَمؤنث واقع شويدې اوپديکښ اگرچې تاء لړيږى خودلته ورسره لحوق تاء ندې شوې څکه چې دې په معنىٰ دَفعول سره دې لپاره دَمبالغي، اوپه فعول کښ مذکراومؤنث دواړه برابروى اوتاء دَمؤنث ورسره نه زياتيږي نودغه شان دلته هم تاء زائده نشوه.

| قَالَ | كَذٰلِكِ | قَالَ | رَبُّكِ | هُوَ | عَلَيَّ | هَيِّنٌ | وَلِنَجْعَلَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

وئيل هغه چې دغسې به يې (لکه چې دی اوئيل) وئيلی دی رب ستاچې داکارپه ماباندې اسان دې اوګرځوودی هلك لره

| اٰيَةً لِّلنَّاسِ | وَرَحْمَةً مِّنَّا | وَكَانَ اَمْرًا مَّقْضِيًّا ﴿۲۱﴾ | فَحَمَلَتْهُ |
|---|---|---|---|

نښه دقدرت دپاره دخلکو، اورحمت دطرفه زمونږ نه، اودې داکارفيصله کړې شوې. پس حامله شوه داپه بچې سره

| فَانْتَبَذَتْ بِهٖ مَكَانًا قَصِيًّا ﴿۲۲﴾ | فَاَجَآءَهَا الْمَخَاضُ اِلٰى جِذْعِ النَّخْلَةِ |
|---|---|

ځنګ ته شوه سره دغې حمل يوداسې ځائ ته چې لرې وو (دخلکونه)، نومجبوره کړه هغه درد دپيدائش يوې تنې ته دکجورې

| قَالَتْ يٰلَيْتَنِيْ مِتُّ قَبْلَ هٰذَا وَكُنْتُ نَسْيًا مَّنْسِيًّا ﴿۲۳﴾ |
|---|

وئيل هغې هائې افسوس! چې مړه وې خه مخکښ ددې نه، اووې خه هيره تيره .

﴿قَالَ كَذٰلِكِ﴾ دا جواب دې دفرشتې چې ستارب دا فرمائي چې څنګه اوس ئې هم دغه حالت کښې به بچې پيدا کيږي (بغيردمس بشرنه) اوداماته اسان دې، ﴿وَلِنَجْعَلَهٗٓ اٰيَةً لِّلنَّاسِ﴾ دا يا علت دې دمعلل اوفعل محذوف لپاره چې نخلقه د . اى نخلقه لنجعله آية للناس (قرطبى) اويا عطف دې په تعليل باندې چې هغه مضمردې نوپه اصل کښې داسې دې لنبين به قدرتنا ولنجعله اية (مدارك) اوددې په حذف باندې ﴿هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ﴾ دلالت کوي، نودايت مقصدداشو، چې الله ﷻ فرمائي چې داکارماته اسان دې لپاره ددې چې پدې سره خه دخپل قدرت اظهاراوکړم اودې به وګرځوم دخپل قدرت يونشانی دخلکولپاره ﴿وَرَحْمَةً مِّنَّا﴾ مرادترنه نبوت دې ﴿وَكَانَ اَمْرًا﴾ ظاهره داده چې داتتمه دهغه کلام جبرئيل عليه السلام ده چې مريم عليها السلام ته ئې کړې وو، چې ستابچې پيداکيدل دالله ﷻ په علم کښې واقع دې، اوپه لوح محفوظ کښې ليکلي شويدي، اوامام رازي رحمه الله فرمائي چې ددې جملې په اضافې سره مقصود حضرت مريم عليها السلام ته تسلي ورکول وو، چې دابچې بغيرد پلارنه پيداکيدل معلوم دعلم دالله ﷻ دې اوکوم څيزچې معلوم دعلم الله ﷻ شي نودهغې خلاف واقع کيدل ممتنع وي نووقوع واجب شو، اوهرکله چې وقوع ئې واجب شونوتاسف اوحزن بلافائدې شو نوددې وجه نه ته حزن مه کوه (۲) اوداهم ممکنه

ده چې د اخبار د الله ﷻ شي حضور ﷺ ته، چې د حضرت عيسى عليه السلام بغير د اب نه پيدا کيدل مقدر وو او د الله ﷻ اټله فيصله وه (ابن کثير).

﴿فَحَمَلَتْهُ ﴾ فاء فصيحيه ده ددينه مخکښې عبارت مقدردې اى فاطمانت الى قوله عليه السلام فدنامنها فنفخ فى جيب درعها فوصلت النفخة الى بطنها فحملت (کشاف) يعنى حضرت مريم عليها السلام د فرشتې په خبرى باندې مطمئن شوله او فرشتې (جبرئيل عليه السلام) دهغې دکرتې په ګريوان کښې پوکړلو، او هغه پوکى دَهغې ګيډى ته اورسيدلو نو هغه حامله شوه، او پدې وخت کښې ددې عمر څومره وو؟ نو پديکښې اقوال متعدد راغليدى، بعض فرمائى چې لس (۱۰) کاله عمر وو، بعضونه دولس کاله بعضونه ديارلس (۱۳) کاله او بعضونه څوارلس کاله منقول دى. او امام مجاهد رحمه الله او حضرت وهب بن منبه رحمه الله نه مروى دى چې حضرت مريم عليها السلام عمر پنځلس (۱۵) کاله وو (بحر). ﴿فَٱنتَبَذَتۡ بِهِۦ ﴾ نو هر کله چې حضرت مريم عليها السلام حمل محسوس کړو نو د کور کلي نه لرى دَشرم او د پيغور دَخوف نه يو طرف ته لاړه، او حضرت وهب بن منبه رحمه الله نه منقول دى چې حضرت مريم عليها السلام بيت اللحم ته لاړه چې دَبيت المقدس نه څلور ميله لرې دې (قرطبى). او بهٰ کښې باء دَمصاحبت لپاره ده اي مصحوبة به اى اعتزلت وهو فى بطنها (بحر) او يا باد سببية ده ﴿فَأَجَآءَهَا ٱلۡمَخَاضُ ﴾، ﴿فَأَجَآءَ﴾ ماضى دَباب افعال ده دَجآء نه او همزه لپاره دَتعدية ده، او علامه زمخشرى او نور جمهور مفسرين ددې قائل دى چې دَاجاء معنى صرف راوستل ندى بلکه يو کس مجبور کړې شي او په زبردستئ سره راوستلى شي نو په هغې ځائ کښې استعمال دَاجاء کيږي، لکه عرب دَهغى کس په باره کښې چې ډير مجبور شي او چاته راشي نو داسي وائى، شرّما اجاءك الى محة عرقوب، نو لهذا دايت مقصد دادې چې حضرت مريم عليها السلام دَولادت دَدرد نه مجبوره شوه نو دغې مجبورئى دَوني يوي ستې ته راوستله، او په مدت دَحمل دهغې کښې اختلاف شويدې بعض مفسرين فرمائى چې حمل او ولادت کښې وخت ډير کم وو ځکه چې دلته ﴿فَحَمَلَتۡهُ﴾، ﴿فَٱنتَبَذَتۡ﴾، او ﴿فَأَجَآءَهَا ﴾ کښې فاء راغليده چې دا دلالت کوي په تعقيب مع الوصل يعني تراخي بلامهلت باندې. نو معلومه شوه چې دَنفخ نه پس متصل ظهور دَحمل شويدې او بيا زر او فورا ولادت شويدې او دَدې وجه نه دځنو مفسرينو نه منقول دي چې دَحمل ظهور او ولادت داټول په يو ساعت کښې شويدې او بعض فرمائى چې داټول په درې ساعاتو کښې شويدې، ليکن دَابن عباس رضي الله عنه نه مروي

دی چې حمل دې ممتد وولکه څنګه چې دعاموزنانووی، نو دابن عباس ﷺ په نیزمدت دحمل نهه میاشتی وو اودحضرت عطاء اوابوالعالیه اودضحاك قول دادې چې اوه (۷) میاشتی وو. اودبعضونه شپږ میاشتي هم راغلیدی علامه آلوسي رحمه الله دحضرت ابن عباس ﷺ قول ته ترجیح ورکړیده.

﴿إِلَىٰ جِذْعِ ٱلنَّخْلَةِ﴾ دکجوری تنی(ستی) ته راتلل لپاره دتکیه وهلووو، لکه چې عام طورزنانه پدي وخت کښې تکیه وهلوته محتاجه وي، اودامقام دبیت اللحم وو ﴿قَالَتْ يَٰلَيْتَنِى﴾ پدي باندې شبه واردیږی چې حضرت مریم ﷺ تمنا دمرګ ولي اوکړه حالانکه تمنا دمرګ جائز نده، اوحضرت مریم ﷺ ته جبرئیل ﷺ اطمینان هم ورکړې وو؟

(۱) جواب دتنه دادې چې تمنادمرګ هغه جائزه نده چې دیوه دنیاوي تکلیف دوجې نه وي، لکه په حدیث شریف کښې راغلي چې لایتمنین احدکم الموت لضررنزل به الخ (رواه مسلم) اودحضرت مریم ﷺ تمنادمرګ ده وجي دخوف دطعن وو په خپلي دینداري باندې چې خماپه دینداري باندې به طعن اولګي، اودایوه دیني فتنه ده اودديني فتني دوجي نه تمنادموت جائزه ده.

(۲) دویم جواب دادې چې دحضرت مریم ﷺ تمنادي وجه نه وه چې خمادوجي نه به خلك په ګناهونو کښې مبتلاشي څکه چې خلك به په ماباندې تهمت اوبهتان لګوي نودادې خوف دوجي نه حضرت مریم ﷺ تمنادمرګ اوکړه.

(۳) دریم بعض داجواب کړیدې چې دحضرت مریم ﷺ دخولي نه داالفاظ بی اختیاره وتلی وو اومذموم هغه دي چې په قصد اواراده سره وي.

(۴) اوداهم ممکنه ده چې دبني اسرائیلوپه دین کښې دي تمنادمرګ جائزه وي، لیکن اول دوه جوابونه زیات غوره دی.

﴿وَكُنتُ نَسْيًا مَّنسِيًّا﴾ (نسیٌ) په فتح دنون اوپه کسري دنون دواړوسره راغلي، لغت کښې دنیلی کیږي هیرکړې شوي څیزته اوعرف عام کښې نسیٌ اطلاق په هرهغه څیزباندې کیږي چې هغه قابل التفات اوتوجه والانوي، معمولی څیزوی، کخرقة الطمث (دحیض کپړا) (روح).

اوبعض نحویان فرمائی چې نَسیٌ، ماخوذ دی دنسات اللّبن، چې کله په لږوپیوکښې ډیراوبه واچولی شي اودپیووجود ختم شي اوپه اوبوکښې سپین والی وي، نوګویاچې دي تمنااوکړه چې کاش څه هم

دَهغو پیو پشان دَخلقو زړونو نه وتلی وی چې نه کتلی کیږي اونه ئې دَاوبونه جدا والی راځي بحر.
لیکن اول احتمال زیات غوره دي او اضافه دَمنسیًا ځکه اوکړې شوه چې دَمعنٰی عرفي احتمال باقي پاتي نشي

| فَنَادٰىهَا | مِنْ | تَحْتِهَآ | اَلَّا | تَحْزَنِيْ | قَدْ | جَعَلَ | رَبُّكِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پس اواز ورکړو دي ته | (جبرئيل عليه السلام) دَلاندي | ځائ دَهغې | نه | چې مه خفه کيږه | بيشکه | پيدا کړيده | ستا رب |
| تَحْتَكِ | سَرِيًّا ﴿۲۴﴾ | وَهُزِّيْٓ | اِلَيْكِ | بِجِذْعِ | النَّخْلَةِ | تُسٰقِطْ | عَلَيْكِ |
| په لاندي ځائ کښ | ستانه روانه چينه ، | او وخوزوه | خپل ځان | ته | تنه دکجوري | چې را غورځوي | به په تا باندي |
| رُطَبًا جَنِيًّا ﴿۲۵﴾ | فَكُلِيْ وَاشْرَبِيْ | وَقَرِّيْ عَيْنًا | فَاِمَّا تَرَيِنَّ | مِنَ الْبَشَرِ | اَحَدًا | فَقُوْلِيْٓ | |
| کجوري تازه انرولی | شوي نو خوره او څکه | ته او يخي لره سترګي (په بچي سره) | پس کچري اوليدلو | تا دانسانانو نه | څوک | نو اوايه | |
| اِنِّيْ نَذَرْتُ لِلرَّحْمٰنِ صَوْمًا فَلَنْ اُكَلِّمَ الْيَوْمَ اِنْسِيًّا ﴿۲۶﴾ | | | | | | | |
| چې بيشکه ما منخته کړيده دَرحمان دپاره روژې دَچپوالي نو هرګز خبري نه کوم نن ورځ دَهيڅ انسان سره | | | | | | | |

﴿فَنَادٰىهَا مِن تَحْتِهَآ ﴾ دَغوره قول مطابق ضمير دَ﴿فَنَادٰىهَا﴾ راجع دې جبرئيل عليه السلام ته او ﴿مِن تَحْتِهَآ ﴾ کښ ها ضمير راجع دې مريم عليها السلام ته، نو دَايت مقصد دادې چې کله حضرت مريم عليها السلام ته دَولادت تکليف شروع شو نو حضرت جبرئيل عليه السلام په دغه وخت کښ يو لاندي ځائ ته منتقل شو او حضرت مريم عليها السلام په يو ،اوچت ځائ باندي وه نو حضرت جبرئيل عليه السلام ورته دَلاندي ځائ نه آواز اوکړو چې ته مه غمژنه کيږه اوبعض علمآء فرمائی چې ﴿فَنَادٰىهَا﴾ کښ فاء فصيحيه ده او فاعل دَ﴿فَنَادٰىهَا﴾ لپاره حضرت عيسى عليه السلام دې نو تقدير دَکلام داسې دې فولدت غلاماً فانطقه الله تعالى حين الولادة فناداها المولود من تحتها الخ (روح) او ﴿تَحْتِهَآ ﴾ ضمير راجع دې حضرت مريم عليها السلام ته، ليکن اول احتمال غوره دې، ﴿اَلَّا تَحْزَنِيْ ﴾ الاّ مرکب دې دَانْ او لاَ نه او ان مفسرة دې يعني ته مه پريشانه کيږه په خوراک څکاک نيشتوالی باندي اويادَخلکو دَملامتئ دَخوف نه ﴿سَرِيًّا ﴾ غوره قول دادې چې سَرِيّ وړوکی نهرته وئيلی کيږی، لکه چې په يو روايت کښ راغليدلی سئل النبي ﷺ عن السرى

قال هوالجدول، دا روایت اګرچه مرفوعاً ضعیف دې لیکن موقوفاً صحیح دې اورجال ئې دَشروط دَمسلم باندې دی لکه چې امام حاکم په مستدرك کښې ذکرکړیدې. حضرت عباس رضي الله عنه نه منقول دی چې داوړوکی نهرقریب وو دکهجوری سره اوددې اوبه اوچې شوې وې نو الله تعالی دَحضرت عیسی علیه السلام په برکت سره دوباره جاري کړې، اوبعض فرمائی چې دامشتق دې دَسُرُوَ نه شریف اوسردارته وئیلی کیږي اومرادتنه حضرت عیسی علیه السلام دې ﴿وَهُزِّيٓ إِلَيۡكِ﴾(هز)وئیلی کیږي خوځولوته، اودلته تنه مراد ځان طرف راښنده ول دی نوځکه متعدي شوپه الی سره او ﴿إِلَيۡكِ﴾ نه مراد الی جهتك دې ﴿بِجِذۡعِ ٱلنَّخۡلَةِ﴾ باء زائده ده لپاره دَتاکیدراغلیده، ﴿تُسَٰقِطۡ عَلَيۡكِ﴾ په دیکښې نهه۹، قراته دی علامه زمخشري په کشاف کښې نقل کړیدي غوره داده چې داپه اصل کښې تتساقط وو. یوه تاء تخفیفا حذف کړې شوه اوفاعل دَتساقط لپاره نخله دې اوداجواب امردې یعني دَهزی امرلپاره جواب واقع شویدې دَدې وجه نه مجزوم دې ﴿رُطَبًا جَنِيًّا﴾ دا منصوب دې بناء برمفعولیت، چې دامفعول واقع شویدې دَ"تساقط" لپاره، اویامفعول واقع شویدې دَ"هزی" لپاره اویامنصوب دې بنابرتمیز، او ﴿جَنِيًّا﴾ فعیل په معنی دَمفعول سره دې یعني چې قابل دَدې وي چې سړی ئې وانړه وي راټولي ئې کړي، اوبعض فرمائی چې فعیل بمعنی الفاعل دې، وئیلی کیږي بخوکهجوروته، یعني هغه کهجوري چې هغه دَشوکولوقابلي وي، اوتخصیص دَرطب ځکه اوشو چې دادَبچي دَپیدائش په وخت کښې دَزنانولپاره ډیربهتروي لکه چې دَعمروبن میمون رحمه الله نه مروي دی فرمائی، مامن شيئ خيرٌ للنفسآء من التمروالرطب ثم تلاهذه الاية الكريمة(ابن كثير)اودغه شان پدیکښې اشاره ده دیته چې کوم ذات دَیخنۍ په موسم کښې دَاوچې کهجوري اوني نه تازه کهجوري ورکولی شي نوهغه ذات پدې هم قادردې چې بغیردَپلارنه بچې پیدا کړی.

**فائده:** (۱) علماء فرمائی چې حضرت مریم علیها السلام لپاره الله تعالی بې موسمه میوې پیدا کړې، خودَ خوراك لپاره ئې ورته حکم اوکړو چې ځان طرف ته ئې راوښنده وه. بغیردَخوزولونه الله تعالی ورته میوې ورنکړې نوپدیکښې اشاره ده چې په تحصیل دَرزق کښې سعی کول پکاردي اودَرزق لپاره سعي اوکوشش کول خلاف دَتوکل ندي.

**فائده** (۲) حضرت جبرئیل علیه السلام دَحضرت مریم علیها السلام سره مخاطبه اوخبري کول. دَ جونهرجاري کیدل دَاوچې تنې نه تازه کجوري راپیدا کیدل داټول دَحضرت مریم علیها السلام کرامات وو

﴿فَكُلِى وَٱشْرَبِى ﴾هركله چې حضرت مريمﷺ ته دوه قسمه پریشانئ وي، يوه جسماني اوبله روحاني، نوجسماني مضرت اوپریشانئ دفعي لپاره ورته حکم اوشوچې﴿فَكُلِى وَٱشْرَبِى ﴾ اوروحانی مضرت اوپریشانئ ددفعي لپاره ورته حکم اوشوچې﴿وَقَرِّى عَيْنًا ﴾ اوكه څوك اشکال اوکړی چې روحانی الم اوتکلیف ډیرسخت وي په نسبت سره جسمانی ته، ځکه چې الم دروح اقوى وي دالم اودرد دجسم نه لکه امام رازيﷺ فرمائی چې یوشاة(پسه)اوګي کړې شي اوبیاورته واخه اوپانړي کیخودلی شي اوورسره نزدي،ذئب(لیوه) اوتړلی شي نوهغه اوګي پسه ډیري اوخوف دوجې نه واخوته نه نزدي کیږي اوکچرته دغه اوګی پسه ته خپه ماته کړې شي اوبیاورته وهاخه نزدي کړې شي نودجسماني درد اوتکلیف باوجود داپسه ځان وخوته رسوي اوهغه خوري نومعلومه شوه چې روحاني اذيت سخت وي دجسمانی نه نوپکارده چې دفع دمضرت روحاني مقدم کړیشوې وه په دفع دمضرت جسماني؟(١) امام رازيﷺ تنه جواب کړیدې چې مضرت روحاني دحضرت مريمﷺ کم ووپه نسبت دمضرت جسمانی سره،ځکه چې ددي مضرت روحاني اظهارحضرت مريمﷺ یوځلی اول هم کړې ووچې﴿قَالَتْ أَنَّىٰ يَكُونُ لِى غُلَٰمٌ ﴾ اوپه هغه ځائ کښ ورته دحضرت جبرئيلﷺ دطرف نه ورته تسلي هم میلاؤشوي وه،په خلاف دمضرت جسمانی نه چې دهغې په باري کښ ورته اول تسلي نوه میلاؤشوې، نوځکه دفعیه دمضرت جسمانی مقدم کړې شوه په روحانی باندې(٢) اوداهم ممکنه ده چې دفعیه دمضرت روحانی محتاجه وه تفصیل ته اوجسمانی محتاجه نوه تفصیل ته،نوځکه جسمانی مقدمه کړې شوه په دفعیی روحانی باندې.

او﴿وَقَرِّى عَيْنًا ﴾کنایه ده دخوشحالئ نه،اوقری ماخوذدې د"قرنة" وئیلی کیږي یخوالی ته،نو دخوشحالئ والااوخکي یخي وي اودپریشانئ والاګرمي وي، اوددي وجه نه محبوب ته قرة العين وئیلی کیږي اوغیرمحبوب څیزته، سخنة العين، وئیلی کیږي اوبعض فرمائی چې داماخوذدې دقرارنه اوکنایه دخوشحالئ نه ځکه ده چې کله سترګي یوخائسته منظراوګوري نواودریږي اوقراراونیسي نومطلب دآیت دادې چې په حضرت عیسیﷺ سره خوشحاله شه، اوخپلي سترګي پی یخه وه اوبعض مفسرین فرمائی چې داکنایه ده دخوب نه، ځکه چې څوك

پریشانه وي نو دهغه سترګي قرار نه نیسي او خوب ورته نه راځي، نو دآیت مطلب دادې چې نه اوده شه لیکن اول احتمال زیات غوره دې.

**فائده**: الله ﷻ دتسلی دآسبابو په ذکرکښ دڅولونه اول ذکر دآوبو اوکړو، اوکله چې دآستعمال نوبت اومرحله راغله نوبیائی ترتیب بدل کړو او اول حکم ئی دخوراك اوکړو .ددې نکته علامه آلوسي رحمه الله دابیان کړیده چې دانسان عادت دادې چې دآوبو اهتمام دخوراك نه اول کوي، یعني اوبه اول په دسترخوان باندې ایږدی اوبیاخاص طورباندې چې خوراك هم داسي وي چې دهغې دَ وجه نه تنده لګي نوباخوخامخادآوبو اهتمام کوي. لیکن په استعمال کښ ترتیب داوي عام طور چې اول خوراك کوي اوبیاڅکاك کوي(روح).

﴿فَإِمَّا تَرَيِنَّ﴾ داتفصیل دې ددفع مضرت روحاني، اوغوره توجیه داده چې داهم دحضرت جبرئیل علیه السلام کلام دې چې حضرت مریم علیها السلام ته ئی دطعن نه دبچ کیدلو طریقه اوخودله، چې خپل بچې واخله اوکورته ځه اوکچرته په لاره کښ تاسره څوك میلاؤشي اودبچي په باره کښ درنه تپوس اوکړي نوته ورته اوایه چې مانن ورځ دچپوالی روژې نذرمنلې دې.

﴿فَقُولِيٓ إِنِّي﴾ جواب دې د﴿فَإِمَّا تَرَيِنَّ﴾ لپاره، او﴿صَوْمًا﴾ نه مراد روژه دچپوالی ده، والذی علیه جمهورالمفسرین ان الصوم ههنا الصمت(فتح القدیر) اوواددبنی اسرائیلوپه دین کښ عبادت وو، اوددې وجه نه الله ﷻ حضرت زکریا علیه السلام هم درې ورځوپورې دخبرونه منع کړې وو، اوزمونږ په دین کښ دامنسوخه کړې شویدې، وهذا منسوخ بماروی عن النبی ﷺ انه نهی عن الصمت یوم الی اللیل(احکام القرآن للجصاص) اوداهم ممکنه ده چې د ﴿صَوْمًا﴾ نه دې مراد صوم حقیقی شي اود بنی اسرائیلو په دین کښ په حالت دروژی کښ دمفطرات ثلاثو(خوراك، څكاك، جماع)نه احترازسره دخبرو کولونه هم احترازضروری وو یعنی دهغوئ په دین کښ په روژه کښ چې څرنګه خوراك، څكاك اوجماع جائزه نوه نودغه شان خبری کول هم جائزنوو .(مدارك، اوزمونږ په شریعت کښ داهم منسوخ دې اوخبري کول جائزبلکه ضروری دی، وروی عن ابی بکر رضی الله عنه انه دخل علی امراءة قدنذرت ان لاتتکلم فقال رضی الله عنه ان الاسلام هدم هذا فتکلمی(روح) .

﴿فَلَنْ أُكَلِّمَ ٱلْيَوْمَ﴾ که څوك اعتراض اوکړی چې داخومبطل دې دعمل اودنذردهغې لپاره، ځکه چې دی نذرمنلی وودچپوالی اوکله چې ئی قوم ته دخپل نذراخباراوکړو نوچپ پاتی

نشوه،نولهذا ایفاء دَنذرئی اونه کړه،نوبعضو تنه جواب(۱)دا کړیدې چې داخبرورکول دنذرنه مستثنی وو،یعني چې دې نذرمنلی ووچې دابه دانسان سره خبرې نه کوي بغیردَدې اخبارنه. (روح) (۲)اوبعض فرمائی چې نذردَدې اخبارنه پس شروع شوې وو نوګویاچې داکلام په اخیرې وقت کښې هغې کړیدې اودَدینه بعد وجوب دَنذرراغلیدې (مدارك) (۳)اوبعض فرمائی چې دومره قدري کلام کول دهغې لپاره جائزکړې شوې وو، من جانب الله. (۴)اوبعض فرمائی چې داټول کلام حضرت مریمؑ په اشاري سره کړیدې اوپه اشاري باندې کله کله مجازا اطلاق دَقول کیږي،اوپدې باندې دلیل داورستوکلام فاشارت الیه هم دې.

| |
|---|
| فَاَتَتۡ بِهٖ قَوۡمَهَا تَحۡمِلُهٗ ؕ قَالُوۡا يٰمَرۡيَمُ لَقَدۡ جِئۡتِ شَيۡـًٔا |
| پس راغله دادَبچې سره خپل قوم ته چې په غیږکښې یې رااوچت کړې وو،دوئ اوئیل،اې مریم: یقینًا تاراتلل اوکړل په کار |
| فَرِيًّا ۝ يٰۤاُخۡتَ هٰرُوۡنَ مَا كَانَ اَبُوۡكِ امۡرَاَ سَوۡءٍ وَّمَا كَانَتۡ اُمُّكِ بَغِيًّا ۝ |
| ډیرناآشناسره.اې خوردَهارون نوو پلارستا سړې ناکاره اونه مورستا بدکاره |
| فَاَشَارَتۡ اِلَيۡهِ ؕ قَالُوۡا كَيۡفَ نُكَلِّمُ مَنۡ كَانَ فِى الۡمَهۡدِ صَبِيًّا ۝ |
| پس اشاره اوکړه دې بچي طرف ته اوئیل هغوئ چې څرنګه مونږ خبرې اوکړو دَهغه چاسره چې دې په غیږ کښې وروکې بچې |
| قَالَ اِنِّىۡ عَبۡدُ اللّٰهِ ؕ اٰتٰٮنِىَ الۡكِتٰبَ وَجَعَلَنِىۡ نَبِيًّا ۝ وَّجَعَلَنِىۡ |
| اوئیل دَمبچې) بیشکه څه دَ اللهﷻ بنده یم راکوي به ماته کتاب اوجوړه وي به ماپیغمبراوجوړه وي به ما |
| مُبٰرَكًا اَيۡنَ مَا كُنۡتُ وَاَوۡصٰنِىۡ بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ مَا دُمۡتُ حَيًّا ۝ |
| فائده مندهرځائ چې یم څه اوحکم به کوي ماته دَمانځه اودزکوة ترڅوپورې چې یمه څه ژوندې |

﴿فَاَتَتۡ بِهٖ قَوۡمَهَا ﴾نوهرکله چې حضرت مریمؑ مطمئنه شوه نوحضرت عیسیؑ ئې په غیږ راواغستلواوقوم ته راغله اوقوم ته داراتګ څومره وخت ورستووو.قرآن اوحدیث کښې دَدې تعین ندې راغلی، خوبعض مفسرینودَقرائنوپه بنیاد دافرمائی چې داراتګ څلویښت(۴۰)ورزې روستووو دَولادت نه،چې کله ددې نفاس ختم شو،اوبعض فرمائی چې فورا یوساعت دَولادت نه

ـــ خپل قوم ته راغله، نوباء په به کښې يادَصاحبت لپاره ده اويادَتعدية لپاره ده او ﴿تَحۡمِلُهُۥ﴾ جمله حال واقع شويده دَضميردَمريم نه﴿قَالُواْ يَٰمَرۡيَمُ﴾هركله چې حضرت مريمﷺ كورته راورسيدله نوهغوئ پري اولادېرغصه اوكړه اوپه ځنوروايا توكښې راځي چې كله قوم دَحضرت مريمﷺ سره په غيږ كښې بچي اوكتلونوپه ژړاشو ځكه چې داخاندان ډيرپاك وو اونيكان وو، نوهغوئ پري انكاراوكړو ورته ئې اوئيل﴿لَقَدۡ جِئۡتِ شَيۡـٔٗا فَرِيّٗا﴾ ،فَرِیٌّ وئيلی كيږی عظيم ته اوبعض فرمائی چې "فَرِیٌّ" عجيب اونادرته وئيلی كيږی،يعنی تاخوداسي عجيبه حركت اوكړو چې دَدينه مخكښې دی نووكړې.

﴿يَٰٓأُخۡتَ هَٰرُونَ﴾دَهارون نه مراد مشهوراومعروف پيغمبرحضرت هارونؑ ندي مراد،ځكه چې دهغه اودَدي واقعي په مينځ كښې دزرو(۱۰۰۰)نه زيات كالونه تيرشوی وو،بلكه دَدينه مراد دَهغې زمانی يونيك سړی ووچې مسمٰی ووپه هارون سره،لكه په روايت دَمسلم كښې دي چې حضرت مغيره بن شعبهﷺ فرمائی چې كله څه حضورﷺ نجران ته اوليږلم،نوچې څه هلته اورسيدم نواهل نجران ماته اوئيل چې تاسوپه قرآن كښې داايت لولئ چې﴿يَٰٓأُخۡتَ هَٰرُونَ﴾ اوحالانكه دَحضرت موسیؑ زمانه دَحضرت عيسیؑ نه ډيره مخكښې ده،نوځنگه به مريم دَهارونؑ خورشي،فرمائی چې ماددي خبری تپوس دَرسول اللهﷺ نه اوكړونورسول اللهﷺ اوفرمائيلوچې هغې خلكوبه خپل نومونه دَانبياء كرامو عليهم السلام اودَمخكينونيكانو خلكوپه نوموباندي ايخودل(رواه مسلم)نومقصددادې چې دَدينه حضرت هارونؑ ندې مراد بلكه يونيك سړی وو چې مسمی ووپه هارون سره هغه مراددې، بعض مفسرين فرمائی چې دغه هارون دَحضرت مريمﷺ علاتی رور وو، اوبعض فرمائی چې رورئی نوو بلكه هغه نيك وو اوحضرت مريمﷺ هم ډيره عابده اوزاهده وه، نودَمريمﷺ ته دهغه اخت اوخورونيل تشبيها دی يعنی دَډيرعبادت اوزهداوتقوی دَوجي نه خلكو هغې ته دَهارون خوراوئيلولكه چې فضول خرچي كوونكوته دَشيطانانورورنړه وئيلی شويدی پدې قول دَاللهﷻ كښې. انّ المبذّرين كانوا اخوان الشياطين(بنی اسرائيل).

﴿مَا كَانَ أَبُوكِ﴾ دا تقريردي دَماقبل زجرچي ﴿لَقَدْ جِئْتِ شَيْئًا فَرِيًّا﴾ دي اوپديکښې اشاره ده چې اصول نيك وي يعنی مور، پلار نيکان وی نو اولادئی هم غالبا نيکان ئی اودغه شان پديکښې اشاره ده چې دَنيکانو دَاولادنه دَبد کارئ اوګناه صدور ډيرقبيح وي

﴿فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ﴾ هرکله چې حضرت مريم ﷺ نذرمنلی وو دَخبرونه کولو اوحضرت جبرئيل ﷺ ديته بشارت هم ورکړې ووچې ستادابچې به دَغيرۍ په زمانی کښې به خبرې کوی لکه چې په سورة ال عمران کښې دی، ويكلم الناس في المهدو كهلا، نوځکه حضرت مريم ﷺ حضرت عيسی ﷺ طرف ته اشاره اوکړه چې دَدي واقعي حقيقت تاسودَده نه معلوم کړئ.

﴿قَالُوا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَن كَانَ﴾ استفهام لپاره دَانکاردې اويالپاره دَتعجب دې، په يوروايت کښې دي چې کله حضرت مريم ﷺ بچي ته اشاره اوکړه چې دَده نه تپوس اوکړئ نوخلك ورته نورپه غصه کښې شواوورته ئي اوئيل چې يوخودې جرم اوکړو اوبل په مونږ پورې توقي هم کوې. په ظاهردَايت باندې اشکال کيږي چې ﴿كَانَ﴾ خودلالت په ماضي باندې کوي، نودَايت مقصد داشوچې، کوم کس په زمانه ماضي کښې په غيږکښې وړوکی بچې وونودهغه سره څرنګه خبرې اوکړو، اوداخومحل دَتعجب اوانکارندې، لکه چې ظاهره ده، جواب تنه مفسرينو په متعدد وجوه سره کړيدې.

(۱) امام ابوعبيدة فرمائی چې ﴿كَانَ﴾ زائده دې دَمجرد تاکيدلپاره، راغليدې (۲) بعض فرمائی چې ﴿كَانَ﴾ په معنی دَوجود اوحدوث سره دې لکه پدې قول دَالله ﷻ کښې راغليدی، وان كان ذوعسرة، نوپدې قول په بناء كان، تامه دې، ليکن پدې دواړو توجيهاتوباندې ابن الانباری ردکړيدې هرچه دې کان ، زائده، نوهغه فرمائی کچرته کان، زائده وي نوبيابه ئی ﴿صَبِيًّا﴾ ته نصب نوی ورکړې، اودغه شان کچرې کان تامه وي نوهغه مستغني وی دَخبرنه نوبيابه ئی ﴿صَبِيًّا﴾ ته نصب نوی ورکړې.

(۳) قرطبی رحمه الله فرمائی چې زياته صحيح خبره داده چې ﴿كَانَ﴾ په معنی دَيکن سره دې يعنی ماضي په معنی دَمستقبل سره ده اوداجمله ﴿مَن كَانَ فِي الْمَهْدِ﴾ په معنی دَجزاء مقدمي

سره ده، او ﴿كَيْفَ نُكَلِّمُ﴾، شرط مؤخردې نوتقديردكلام به داسي شي چې﴿كَيْفَ نُكَلِّمُ مَن كَانَ فِي ٱلْمَهْدِ صَبِيًّا﴾ (۴) اوبعض مفسرين فرمائي چې كَانَ لپاره ددوام اواستمرار راغليدې (۵) اوعلامه زمخشري رحمه الله تنه داجواب كړيدې چې دااعتراض به په هغه وخت كښ واريدې دې كچري، كان دَماضي بعيدلپاره وي فقط، اوحقيقت داسي ندې بلكه كان وضع كړې شويدې لپاره دَدلالت په ايقاع دَمضمون دَجملي په زمانه ماضيه مبهمه كښ، كه هغه قريبه وي اوكه بعيده ده، نودَدي جواب په اعتبارسره ﴿مَن كَانَ﴾كښ من موصوله دې، عيسى عليه السلام تنه مراددې(۲)اوبل جواب تنه زمخشري رحمه الله داسي كړيدې چې﴿كَيْفَ نُكَلِّمُ﴾ حكايت دې دَحال ماضيه نه، او﴿مَن﴾ موصوفه نه دې، اومطلب به داشي، چې څنګه مونږخبرې اوكړويوداسي كس سره چې دده نه مخكښ څومره كسان په دې صفت سره متصف وونودَهغوئ سره مونږه خبري ندي كړى نودده سره به څنګه اوكړو(كشاف) او﴿فِي ٱلْمَهْدِ﴾ وئيلى كيږي ځانګوته، دلته تنه مراد دَمورغيږده.

﴿قَالَ إِنِّي عَبْدُ ٱللَّهِ﴾دا جمله مستانفه ده په جواب دَسوال كښ واقع شويده چې دَماقبل نه واقعي نه پيداكيدلو، ګوياچې سائل سوال اوكړو چې بياڅه اوشو؟ نوجواب اوكړې شو چې هغۀ اوئيل، ﴿إِنِّي عَبْدُ ٱللَّهِ﴾ او حضرت عيسى عليه السلام دَټولونه رومبئ خبره هغه اعتراف دَعبودية وو الله تعالى لره اوبيادهغې نه ورستو خپل نورلس صفتونه اوحالات ئې ذكركړو، چې په هغې كښ رددې په نصارى اويهودوباندې، اوغوره قول دادې چې حضرت عيسى عليه السلام په وړوكوالئ كښ داخبري صرف كړي وې اوپه وړوكوالئ كښ بيانوري خبري ندي كړي، اوپدې اولي جملي كښ رد دې په عيسايانوباندې.

﴿ءَاتَىٰنِيَ ٱلْكِتَٰبَ﴾غوره قول دادې چې مراد په ﴿ٱلْكِتَٰبَ﴾سره انجيل دې اوماضي په معنى دَمستقبل سره ده، اودغه شان ﴿وَجَعَلَنِي نَبِيًّا﴾هم دې چې ماضي په معنى دَمستقبل سره ده اوذكردَماضي لپاره دَتيقن دې، اوقرطبي رحمه الله فرمائي چې ماضي په خپلي معنى سره دې،

او ﴿ءَاتَنِىَ﴾ او ﴿وَجَعَلَنِى﴾ .مقصد دادي چې ځما لپاره دکتاب اونبوت میلاویدو فیصله په ازل کښې شویده

﴿وَجَعَلَنِى مُبَارَكًا﴾ مبارك په معنی دنفع سره دي اوحضرت عیسی‌الطیلا کښې هرقسم نفع موجوده ده،هم دنیوی اوهم دیني، دنیوی نفع داده چې اکمه اوابرص به ئی به حکم دالله‌ﷻ سره تهیك کولو. اودیني نفع داوه چې خلکوته به ئی دالله‌ﷻ دطرف نه خیرته دعوت ورکولواودبدونه به ئی منع کولو ،اوبعض فرمائي چې مبارك، ماخوذدي دبروك البعیرنه (داوښ کیناستل) اوداکنایه ده د ثابت قدمئ نه په دین کښې، المعنی جعلنی ثابتا فی دین الله(فتح القدیر).

﴿أَيْنَ مَا كُنتُ﴾شرط دي اوجزاء ئی محذوفه ده، چې هغه جعلنی مبارکا ده چې په هغې باندې دې اول ﴿وَجَعَلَنِى﴾دلالت کړیدي اودانده جائزه چې داشرط مؤخرشي، او﴿وَجَعَلَنِى مُبَارَكًا﴾ ورله جزاء مقدمه شي،ځکه چې ﴿أَيْنَ مَا﴾کښې این شرطیه دې ځکه چې استفهامیه کیدل ظاهرالبطلان دې او نوردي وجه نه هغه جزاء ددي لپاره نشي جوړیدلی، ﴿وَأَوْصَنِى﴾مرادتنه حکم مؤکددي﴿بِالصَّلَوٰةِ﴾ مراد تنه مونځ دې اویادعاءده﴿وَالزَّكَوٰةِ﴾،دزکوة دوه معنې مرادکړې شویدي، یاتنه مراد فرائض مالیه یعنی زکوة مالي دې خوپه شرط دوجود مال سره، یعنی کچرته ځماسره مال وي نوماته حکم راکړې شوې دې چې مابه په هغې کښې زکوة ویستلواویاداحکم دحضرت عیسی‌الطیلا امت ته وو ،اوحضرت عیسی‌الطیلا ته حکم درسولوددې حکم شوې وو نوپه اصل کښې داسي دې، اوصانی بان امرکم بالصلوة والزکوة(مدارك) اویادزکوة معنی دلته تزکیه دنفس ده یعنی خپله عقیده،اعمال اواخلاق دګناهونو اودشرك نه پاك ساتل دي.

﴿مَا دُمْتُ حَيًّا﴾پدیکښې اشاره ده چې مدة اوزمانه دتکالیفوشرعیوهغه مدت حیات دنیوی دې، یعنی ترڅوپوري چې انسان ژوندې وي نومکلف وي،اوچې کله مړشي نوتکلیف شرعي ورنه رفع شي، خوددي مقصد داندې چې ددنیوی زندګی دختمیدلونه پس څوك هم عبادت نشي کولی،ځکه چې په صحیح حدیث کښې دحضرت موسی‌الطیلا نه مونځ کول ثابت، دی پس دوفات نه، اګرچې مکلف نوؤ.

وَبَرًّا بِوَالِدَتِي ۫ وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا شَقِيًّا ﴿۳۲﴾ وَالسَّلٰمُ عَلَيَّ

او جوړه وی به ما احسان کوونکی د مور سره او نه یم ګرځولي خه سرکش (متکبر) او بدبخته. او سلامتیا ده (د الله د طرف نه) په ما باندې

يَوْمَ وُلِدْتُّ وَيَوْمَ اَمُوْتُ وَيَوْمَ اُبْعَثُ حَيًّا ﴿۳۳﴾

په هغه ورځ چې خه پیدا کړې شوم او په هغه ورځ چې خه مړ کیږم او په هغه ورځ چې خه دوباره راژوندې کړې شم

ذٰلِكَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ ۚ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِيْ فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ ﴿۳۴﴾ مَا كَانَ لِلّٰهِ

دا شان والا عیسی بن مریم دې (وایم خه) وینا ریښتونی هغه چه دوئ (یهود نصارئ) پکښې شک کوي، نده مناسب الله ﷻ سره

اَنْ يَّتَّخِذَ مِنْ وَّلَدٍ ۙ سُبْحٰنَهٗ ۭ اِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ

چې او نیسي هیڅ یو بچې پاکي ده الله ﷻ لره ددې نه، کله چې اراده او کړي د یو کار پس صرف دا ورته او ائی هغه ته او شه

فَيَكُوْنُ ﴿۳۵﴾ وَاِنَّ اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ۭ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿۳۶﴾

نو هغه اوشي، او بیشکه الله ﷻ رب خما او رب ستاسو دې، پس بندګي کوئ د هغه، دا لاره برابره نیغه.

﴿وَبَرًّا بِوَالِدَتِي ﴾ دا عطف دې په ﴿مُبٰرَكًا﴾ باندې او بر په معنی د بار سره دې او بعض فرمائی چې داعطف دې په ﴿بِالصَّلٰوةِ ﴾ باندې او د﴿ وَاَوْصٰنِيْ﴾ تحت واقع شویدې، یعنی اوصٰنی برًا بوالدتی، یعنی ماته دا حکم شویدې چې خه دخپلې مور سره ښه سلوك کوم، او امام رازی رحمه الله فرمائی چې پدې کښې اشاره ده تنزیه د حضرت مریم علیها السلام ته ځکه چې حضرت عیسٰی علیه السلام رسول وو او رسول معصوم وي او حضرت عیسی علیه السلام ماموروو په تعظیم د مور خپل، کچرته هغه پاکه او معصومه نوي بلکه بدکاره وي نو د بدکاري زنانه تعظیم جائزندې نو رسول او پیغمبر به دهغې تعظیم نه کولو.

﴿وَلَمْ يَجْعَلْنِيْ جَبَّارًا شَقِيًّا ﴾ جبار وئیلی کیږي هغه چاته چې د تکبر د وجې نه په ځان باندې د چا حق نه مني، (فتح) او شقيْ وئیلی کیږي، نامراد ته د خیر نه او د مور پلار نافرمان ته ﴿وَالسَّلٰمُ عَلَيَّ ﴾ بدیکښې د حضرت عیسی علیه السلام عجز ذکر کیږي په دري حالاتو کښې چې حضرت عیسٰی علیه السلام په

دغي دري حالاتو کښ دَالله ﷻ سلامتیاته محتاجه وو. اوبعض مفسرین فرمائی چې الف لام په ﴿وَٱلسَّلَٰمُ﴾ کښ دَعهد لپاره دې اومعهود پدي سره هغه سلام دې کوم چې په یحیی علیه السلام باندې وو اوعلامه زمخشري رحمه الله فرمائی چې الف لام جنسی دې اوپدي سره تعریض مقصود دې دَلعنت په یهودیانوباندې ځکه چې کله حضرت عیسی علیه السلام دااوفرمائیلوچې جنسي سلام مختص دې په ماپوري نوپدې سره اشاره اوکړه ددې ضدچې هغه لعنت دې مختص دې په تاسوپوري، ځکه چې دامقام مقام دَعناددې اوپدغه شان مقام، کښ چې یووصف مختص شي په یوفردپوري نوضددهغې وصف مختص ګرځي په شخص مخالف پوري. اودَدې نظیرداقول دَالله ﷻ دې والسّلام علی من اتّبع الهدی، نوچې کله جنس سلامتیا مختص شوه په متبعینود هدایت پوري نوضدددې چې عذاب دې مختص شوپه مخ ګرځونکي دهدایت نه اوتکذیب کوونکوپوري چې انّ العذاب علی من کذّب وتولّی، اوداتوجیه غوره ده اوداسلام اګرچه حضرت عیسی علیه السلام په خپله په خپل ځان باندې وئیلی دې خوپه حقیقت کښ دَطرفه دَالله ﷻ نه دې.

﴿ذَٰلِكَ عِيسَى ٱبۡنُ مَرۡيَمَ﴾ دادوه ایتونه بطورجملي معترضي ذکرکیږي اوپه ﴿ذَٰلِكَ﴾ سره اشاره ده متصف پدغي اوصافومذکورو سره. اوپه ﴿ذَٰلِكَ﴾ سره اشاره اګرچه محسوس مشهد بالبصرته کیږي اوحضرت عیسی علیه السلام محسوس مشهد بالبصر اګرچه ندې خوپه اوصافوسره ئې کمال وضاحت حاصل شونونازل کړې شوپه منزله دَمحسوس باندې نوځکه په ذلك سره ورته اشاره اوشوه، اوبیااشاره بعیده راوړی شوه لپاره ددې چې دلالت اوکړي په بعدرتبی اوپه علودَشان دهغه باندې، او ﴿ذَٰلِكَ﴾ مبتدا ده ﴿عِيسَى﴾ ورله خبردې او ﴿ٱبۡنُ مَرۡيَمَ﴾ ورله یاصفت دې اوداقول غوره هم دې اویاخبربعدالخبردې اویابدل اویاعطف بیان دې اوپدې کښ رد مقصود دې په نصاری باندې.

﴿قَوۡلَ ٱلۡحَقِّ﴾ قول. په نصب سره هم راغلیدې اوپه رفع سره هم هرچه دې په نصب سره نودامصدردې چې تاکیدئی کړیدې دَمضمون دَجملې ماقبلې اواقول ورته مقدردې او ﴿ٱلۡحَقِّ﴾ په معنی دَصدق سره دې اواضافت دَقول حق ته دَقبیلی دَاضافت دَموصوف دې خپل صفت ته. نومقصد دَآیت دادې چې داواقعات اواخبارچې حضرت عیسی علیه السلام دَمریم علیها السلام نه بغیردَ اب

نه پيداشويدي وغيره ريښتونى واقعات دى اويامنصوب دې بناء برمدح،اوهرچې دې په رفعي سره نوياداخبردې دَمبتداء محذوفي لپاره چې هغه هو دې اواضافت بياني دې اى هوقول الحق.
اوياصفت دې دَعيسى لپاره اوقول نه مراد كلمه ده اوالحق نه مراد الله ﷻ دې﴿ ٱلَّذِى فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴾چې نصارى ورته ابن الله وئيل اويهوديانوورته ساحروغيره وئيل.
﴿مَا كَانَ لِلَّهِ ﴾دازجردې دَنصارىٰ وو لپاره چې هغوئ الله ﷻ ته نسبت دَولد كولو، من ولَد من زائددې دَاستغراق دَنفي لپاره دې﴿سُبْحَـٰنَهُۥٓ ﴾دادليل دې په نفي دَاتخاذدَولد باندې، چې اتخاذ دَولد مستلزم دې نقص لره په واجب تعالى كښ ځكه چې په اتخاذدولد سره لازميږي تماثل چې مستلزم دې زيادت دَوجود لره په واجب تعالى كښ،دغه شان لازميږي تكافؤ،دغه شان لازميږي امكان دَواجب تعالى، امرمركب اوامرمنفصل كيدل دَالله ﷻ اوداټول نقصانات دى په الله ﷻ كښ اوالله ﷻ دَدې نه منزه دې﴿إِذَا قَضَىٰٓ أَمْرًا ﴾داتعليل دې دَعدم اتخاذدَولدلپاره په بلې وجې سره، چې اتخاذدَولد خوعلامه دَاحتياج ده اوالله ﷻ كښ احتياج نيشته دې، امام رازى رحمه الله دلته تفصيلى بحث چيړليدې چې دهغې خلاصه حضرت والدمحترم نورالله مرقده وبردمضجعه په سورة بقره په ايت نمبر(۱۱۷)كښ په مختصرليكن په ډيرجامع اندازسره پيش كړيده.
﴿ وَإِنَّ ٱللَّهَ رَبِّى﴾ظاهره داده چې داتتمه دَه دكلام دعيسى عليه السلام اوداجمله عطف ده په ﴿إِنِّى عَبْدُ ٱللَّهِ ﴾باندې اودَقال ماتحت ده اوهركله چې داكلام دَوړوكوالئ په حالت كښ نوو نودَدې وجې نه دَهغې مخكښ كلام نه جداذكركړې شواوپه مينځ كښ دوه(۲) ايتونه دَجملې معترضې سره ذكركړې شو،اوبعض مفسرين فرمائى چې دلته كښ لفظ دَ(قل)مقدردې اوداخطاب دې حضور ﷺ ته اى قل يامحمد ﷺ انّ الله الخ(روح) ﴿هَـٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴾ په هذا سره اشاره ده ماقبل مذكورته،چې هغه توحيد اوربوبيت دې دَالله ﷻ چې صرف دَالله ﷻ عبادت كول اودَالله ﷻ دَربوبيت اقراركول بالكل برابره لاره ده.

فَٱخْتَلَفَ ٱلْأَحْزَابُ مِنۢ بَيْنِهِمْ ۖ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن مَّشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿٣٧﴾

بيااختلاف اوكړو دلوپه خپل مينځ كښ، پس هلاكت دې هغه كسانولره چې كفرئى كړيدې دَحاضرئ دَورځې لوئ نه

| |
|---|
| اَسْمِعْ بِهِمْ وَاَبْصِرْ يَوْمَ يَاْتُوْنَنَا لٰكِنِ الظّٰلِمُوْنَ الْيَوْمَ فِيْ ضَلٰلٍ |
| څه ښه اوريدونکی به وي اوڅه ښه ليدونکی به وي،په هغه ورځ چې پيش به شي دوئ مونږ ته ليکن ظالمان نن ورځ په ګمراهئ |
| مُّبِيْنٍ ﴿۳۸﴾ وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ اِذْ قُضِيَ الْاَمْرُ ۘ وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ وَّهُمْ |
| ښکاره کښې دي اواويره وه دوئ دَورځې دَافسوس نه کله چې فيصله کړې شي کارونه اودوئ(اوس) په غفلت کښې دی اودوئ |
| لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۳۹﴾ اِنَّا نَحْنُ نَرِثُ الْاَرْضَ وَمَنْ عَلَيْهَا وَاِلَيْنَا يُرْجَعُوْنَ ﴿۴۰﴾ |
| ايمان نه راوړي بيشکه مونږ(حقيقي) مالکان يو دَزمکې اودهغې څه چې پدې زمکه باندې دی،اوخاص مونږ ته به دوئ راګرځولی شي |

﴿فَاخْتَلَفَ الْاَحْزَابُ﴾ دا دَيو سوال جواب دې،سوال دا کيدو چې کله حضرت عيسى عليه السلام په وړوکوالئ کښې اعلان اوکړو چې ﴿اِنِّيْ عَبْدُ اللّٰهِ﴾ نوبيا هغه ته ولې خدائی اوئيلو شو؟ نوجواب اوشو چې دَحضرت عيسىٰ عليه السلام دَرفع الى السمآء نه بعد په نصارىٰ ؤکښې مختلف ډلې جوړې شوې،(۱)يوغټه ډله پکښې نسطوريه وه چې هغوئ دا قول اوکړو چې حضرت عيسى عليه السلام ابن الله(دَالله بچې)دې(۲)دويمه ملکانيه وه چې هغوئ دَدې قائل شوچې خدايان دري دی اودريم پکښې حضرت عيسى عليه السلام دې (۳)اودريم يعقوبيه وه چې هغوئ دَدې قائل وو چې حضرت عيسى عليه السلام بعينه خدائ دې، زمکې ته راکوزشوې وو،په صورت دَعيسى عليه السلام کښې اوبيادوباره اسمان ته اوختلو(قرطبى) اويادَاحزاب نه مراد مسلمانان، يهوديان اوعيسايان دي، عيسايانو دَحضرت عيسى عليه السلام په باري کښې افراط اوکړو،بعينه خدائی، يادريم خدائی اويائی ورته دَخدائ بچې ورته اوئيلو اويهوديانو تفريط اوکړو چې(العياذبالله) ولدالزناء نسبت ئې ورته اوکړو.اومسلمانانو اعتدال اوصحيح قول اوکړو چې حضرت عيسىٰ عليه السلام دَالله تعالىٰ بنده اورسول دې.

﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ﴾ دا تخويف اخروي دې اومرادتنه يهود اودَنصارىٰ ؤفرقې دي،او ﴿فَوَيْلٌ﴾ جمله اسميه په ځائ دَجملې فعليې راوړې شويده لپاره دَدوام اواستمرار، او﴿مَّشْهَدِ﴾ يامصدرميمی دې اوياظرف زمان، ياظرف مکان دې اويامشهد په معنی دَشهادت سره دې يعنی

چې په کومه ورځ ددوئ په کفراوفسق باندې ملائك انبياء کرام اودَدوئ خپل اعضاء گواهي ورکړي

﴿أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ﴾ داهم تخويف مع الزجرذکرکيږي او﴿أَسْمِعْ﴾او﴿وَأَبْصِرْ﴾دواړه صيغې دَتعجب دي اوتعجب په مبالغې دَاوريدلواوکتلودَدوئ باند دې اوپه کلام دَالله ﷻ کښې تعجب دَتعجيب لپاره وي نوګويا چې داتعجيب دې په تيزوالى قوت دَاوريدلواوکتلو دَدوئ کښې. (روح)
اوياتعجب لپاره ددې دې چې دَدوئ حالت اودغه مقام به قابل دَتعجب وى دَممکناتولپاره، يعنى په دنياکښې کاڼه لانده وو اوپه اخرت کښې به په ښې طريقې سره اورى نودالائقه دَدې ده چې تعجب پرى اوکړې شي.

﴿وَأَنذِرْهُمْ﴾پدې کښې هم تخويف اخروى دې، او ﴿يَوْمَ ٱلْحَسْرَةِ﴾دَقيامت نوم دې اويوم الحسرة ورته ځکه ونيلى کيږي چې منکرين به په دغې ورځې به ډيرافسوس کوى، اوقاضى بيضاوى رحمه الله فرمائى چې قيامت په ورځ به بدکاراونيکوکارهرسړى به افسوس کوى، بدکاربه په خپلې بدکارئ باندې اونيکوکاربه په خپلوکمونيکوباندې به افسوس کوى، لکه چې په روايت دَحضرت معاذ رضي الله عنه کښې دَرسول الله ﷺ نه منقول دى چې اهل جنت ته به په جنت کښې دَهيڅ ځيز، افسوس اوقلق نوى سيوادهغه ساعت نه چې بغيردَالله ﷻ دذکرنه تيرشوې وي(طبرى) اودَ ﴿إِذْ قُضِىَ ٱلْأَمْرُ﴾نه مراد حساب کتاب ختميدل اودَهغې نه فراغت دې،

او﴿إِذْ قُضِىَ ٱلْأَمْرُ﴾ يابدل دې دَ ﴿يَوْمَ ٱلْحَسْرَةِ﴾ نه اويامتعلق دې په فعل مقدرپورې چې يتحسّرون دې اى يتحسرون اذقضى الخ ﴿إِنَّا نَحْنُ نَرِثُ﴾پديکښې اثبات دَتصرف دَالله ﷻ دې چې په نفخه اولى سره به داټول نظام عالم الله ﷻ ختم کړي،مخ په زمکې باندې چه څومره څيزونه دي ټول به فناء کړي، دَالله ﷻ نه علاوه هيڅ څوك به باقي نوي، ظاهرا باطنا بلا شرکت غيرى ملکيت اوتصرف به الله ﷻ شي لکه څرنګه دَيو مورث په مرګ سره دَهغه اموال وغيره وارث ته پاتې شي، دغه شان چې کوم ظاهرى اومجازي تصرف ددې زمکې انسان ته ميلاؤدې په نفخه اولى سره به داهم ختم شي اوبيابه په نفخه ثانيه سره دوباره مخلوقات ژوندي کړې شي اودَالله ﷻ عدالت ته به ئې پيشي کيږي.

وَاذۡكُرۡ فِى الۡكِتٰبِ اِبۡرٰهِيۡمَ ؕ اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيۡقًا نَّبِيًّا ۝٤١ اِذۡ قَالَ

[1] اوبیان کړه ته په کتاب دالله ﷻ کښې واقعه دابراهیم علیه السلام بیشکه دی ډیر رښتنی وو پیغمبر وو. کله چې اونیل ده

لِاَبِيۡهِ يٰۤاَبَتِ لِمَ تَعۡبُدُ مَا لَا يَسۡمَعُ وَلَا يُبۡصِرُ وَلَا يُغۡنِىۡ عَنۡكَ

خپل پلارته اې پلاره څما په څه دلیل ته عبادت کوې دهغه چاچه نه اوري اونه ویني (څه خیز) اونه لري کولی شي ستانه تکلیف

شَيۡـــًٔا ۝٤٢ يٰۤاَبَتِ اِنِّىۡ قَدۡ جَآءَنِىۡ مِنَ الۡعِلۡمِ مَا لَمۡ يَاۡتِكَ فَاتَّبِعۡنِىۡۤ

دهیڅ خیز. اې پلاره څما! بیشکه راغلیدې ماته دوحی نه هغه چې ندې راغلی تاته نوتابعداري اوکړه څما

اَهۡدِكَ صِرَاطًا سَوِيًّا ۝٤٣ يٰۤاَبَتِ لَا تَعۡبُدِ الشَّيۡطٰنَ ؕ اِنَّ الشَّيۡطٰنَ كَانَ لِلرَّحۡمٰنِ عَصِيًّا ۝٤٤

اوبه ښایم تاته لاره سمه (نیغه) اې پلاره څما بندګی مه کوه دشیطان بیشکه شیطان دې، درحمان نه نافرمانه

يٰۤاَبَتِ اِنِّىۡۤ اَخَافُ اَنۡ يَّمَسَّكَ عَذَابٌ مِّنَ الرَّحۡمٰنِ فَتَكُوۡنَ لِلشَّيۡطٰنِ وَلِيًّا ۝٤٥

اې پلاره څما! بیشکه څه یریږم پدې چې اوبه رسیږي تاته عذاب دطرفه درحمن نه پس شې به ته د شیطان ملګرې

﴿وَاذۡكُرۡ فِى الۡكِتٰبِ اِبۡرٰهِيۡمَ ؕ﴾ دادریم شبهې جواب دې چې دابراهیم علیه السلام متعلق وه، دحضرت ابراهیم علیه السلام متعلق مشرکینو، یهودو اونصاری ډېرلوداخیال وو چې دهٔ ته قدرت دتصرف حاصل وو څکه چې دې دالله ﷻ ډیرمقرب وو، اوهم ددې وجه نه مشرکین مکه دحضرت ابراهیم علیه السلام صورت په کعبې کښې کیخودلی وو اوپه لاس کښې ئې ورله ازلام ورکړي وو، پدې خیال چې دې دانسانانوپه قسمت اوتقدیرکښې تصرف لري نوجواب ئې اوشوچې حضرت ابراهیم علیه السلام دانبیاکرامو علیهم السلام جدامجددې اوهغه پخپله خپل پلارته دتوحید دعوت ورکړې وو، اودشرك دوجې نه ئې دخپل پلارنه برائت کړې وو اوالله ﷻ ته عاجزي اوسوال کوونکي وو، نوڅرنګه به هغه معبودلوبګرځي، اومراد په ﴿الۡكِتٰبِ﴾ سره قرآن دې، اوپدیکښې اشاره ده چې واقعات دابراهیم علیه السلام دالله ﷻ دکتاب موافق بیانول ضروري دي.

(1) شبه ثالثه ازیهود ونصاری، ومشرکین عرب متعلق بابراهیم علیه السلام.

﴿إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا ﴾صديق صيغه دَمبالغي ده لکه ضحيك، نطيق وغيره لغوى معنى په اعتبارسره وئيلى کيږي ډيرريښتونى، ته چې په زندګئ کښې ئى کله هم دروغ نوي وئيلى. الصديق من كثرمنه الصدق وقيل بل يقال لايكذب قط(راغب) اوپه اصطلاح اوعرف کښې ئى اطلاق په صحت دَاعتقاد قول،فعل په ټولوباندې کيږي، اوصديقيت کلي مشکك دې دټولونه اعلى اواقوى مرتبه هغه ده چې مرادف ده دَرسالت اونبوت سره اودَټولونه ادنى مرتبه هغه ده چې دَهغې په انتفاء سره انتفاء دَايمان راځي اودغه شان کذب هم دې چې اعلى مرتبه ئى مرادفه ده دکفرسره اومنافي ده دَايمان سره اولاندې درجې ئى منافي دَايمان سره ندې اوامام بخاري تنه تعبيرپه کفردون کفرسره کړې دې،دَدې وجه نه دَحديث مفهوم دې چې مؤمن دروغژن نشي کيدې. نوددې نه دامعلومه شوه چې دَنبي اوصديق په مينځ کښې نسبت دَعموم خصوص مطلق دې هرنبي صديق وي اوهرصديق ضروري نده چې نبي شي اودَدې وجه نه حضرت مريمﷺ ته وصف دَصديقيت په قرآن کښې ثابت دې چې وامه صدّيقة ليکن هغه نبي نوه عندالجمهور، او﴿نَّبِيًّا﴾ ذکرکول ورستو دَ﴿صِدِّيقًا ﴾نه داتخصيص بعدالتعميم دې اوبعض فرمائي چې صديق ورته وئيلى شويدي قبل الوحى او نبيا ورته بعدالوحى وئيلى شويدي،اوداجمله يعني ﴿إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا ﴾ جمله معترضه ده په مابين دَبدل اومبدل منه کښې چې﴿إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ ﴾دې.

**فائده**: که څوك اشکال اوکړي چې په حديث کښې حضرت ابراهيمﷺ نه ددروغ صادريدلو ثبوت راغليدې لکه حديث کښې دى، لم يكذب ابراهيمﷺ الاّ ثلاث كذبات ثنتين منهن فى ذات الله عزوجل الخ(بخارى كتاب الانبياء).

نودَصديق کيدلوباوجود ارتکاب دکذب څرنګه اوشولو؟ نوجواب دادې چې دَثلث کذبات، نه مراد فى الحقيقت دروغ ندي مراد ،بلکه دَهغې نه مراد توريه ده چې مخاطبين چې کوم مقصد دَحضرت ابراهيمﷺ دکلام نه فهم کړي وو نوهغه دَحضرت ابراهيمﷺ په اعتبارسره خلاف واقعه وو،ليکن دَحضرت ابراهيمﷺ کلام اومقصددنوو،بله معنىٰ وه،چې هغه دَنفس الامرسره موافق وه، اودَضرورت په بناء باندې دَدې جوازدَاحاديثونه ثابت دې، خوهرکله چې داتوريه دَحضرت ابراهيمﷺ دَبلندرتبې په اعتبارسره خلاف اولى وه نودَحسنات الابرار سيئات

المقربين، قانون مطابق اطلاق پري دكذب اوشولو، باقي تفصيل به انشاء الله په سورة الانبياء كښې راشي.

﴿إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ﴾ په دې كښې بيان دَدعوت دې دَحضرت ابراهيم عليه السلام خپل پلارته اودا بدل واقع شويدې دَابراهيم نه اوپلار دَابراهيم عليه السلام تارح وو چې لقب ئې ازر وو، تفصيل ئې په سورة انعام كښې تيرشويدې، اوتاء په ياابت كښې عوض دَياء متكلم نه راغليده. په اصل كښې وو ياابي وو اودَدې وجه نه ياابتي، وئيل جائزندي ځكه چې لازميږي جمع په مابين دَعوض اومعوض منه كښې﴿لِمَ تَعْبُدُ﴾ حضرت ابراهيم عليه السلام دَدعوت توحيد ابتداء په طلب دَدليل اوعلت سره اوكړه په عبادت دَغيرالله باندې اودَمعبودان باطلوبطلان ئې په صورت دَانتفاء دهغې درې(۳)صفاتو كښې بيان كړو چې هغه په معبود برحق كښې ضروري دي،چې سمع ده بصردې اوحاجت روائي ده، اودادرې(۳)صفات په منزله دَعلت دې دَعبادت دَيومعبودلپاره.اوپدې باندې هرعقل سليم والامتفق دې اوددعوت دااسلوب اوطريقه ډيربهتره ده اونرمه ده دَهغې نه چې ورته ئې وئيلي وي چې ته گمراه ئې وغيره، اواستفهام لپاره دَانكاراوتوبيخ دې اودَ ﴿لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ﴾ لپاره مفعول به يامقدره دې اويامحذوف دې په حذف دَنسيامنسياسره چې "شَيْئًا"، دې.﴿وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْئًا﴾ "شيئا" يامفعول مطلق دې اويامفعول به دې﴿يَٰٓأَبَتِ إِنِّي قَدْ﴾ داحضرت ابراهيم عليه السلام علت ذكركړو خپل پلارته دَخپلې اتباع لپاره،اوتقديم دَعلت اودليل اوشو په اتباع باندې لپاره دَدفع دَتوهم دَبې ادبئ چې څوك داتوهم اونه كړي چې دَابراهيم عليه السلام خپل پلارته حكم كول چې ته ځمااتباع اوكړه داخوبې ادبي ده؟ نوځكه اول دليل ذكرشواوبياحكم دَاتباع اوكړو،اودَ﴿قَدْ جَآءَنِي مِنَ ٱلْعِلْمِ﴾نه مراد وحي ده اوحضرت ابراهيم عليه السلام خپل ځان ته عالم اوپلارته جاهل اونوئيلو،بلكه خپل ځان ته ئې ثبوت دَوحي اوكړو اوپلارنه ئې دَوحي راتلل نفي كړل،لپاره دَرفق اونرمئ په دعوت كښې﴿أَهْدِكَ صِرَٰطًا﴾په دې كښې اشاره ده چې په اتباع دَپيغمبر عليه السلام سره صراط مستقيم ته رسيدل كيږي﴿يَٰٓأَبَتِ لَا تَعْبُدِ ٱلشَّيْطَٰنَ﴾عبادت په معنى دَاطاعت سره دې اودَشيطان اطاعت په حقيقت كښې دهغه عبادت كول دى،(قرطبي).

﴿إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ كَانَ ﴾داعلت دَنهی دې، اووضع دَاسم ظاهرپه ځایٔ دَمضمرباندې لپاره دَوير وضاحت اوتقريرده، او﴿عَصِيّٗا﴾فعيل په معنی دَعاصيا يعنی اسم فاعل سره دې اودَشيطان په ټولواوصافوکښ صرف وصف دَعصيان ذکرکولوکښ اشاره ده چې معصيت دګناهونو جړ اوبنياددې کماوردفی الحديث(بيضاوی).

﴿يَٰٓأَبَتِ إِنِّيٓ أَخَافُ ﴾داتخويف اخروي دي اوبل علت دې دَنهي دَاتباع دَشيطان نه، اوغوره قول دادې چې "اخاف" په خپلې معنی سره دې ځکه چې حضرت ابراهيم عليه السلام ته دَخپل پلاردَخاتمي علم نوو چې دې به په حالت دکفرکښ مړکيږي يابه ايمان راوړي اوځکه ئی ورته نصيحتونه هم کول﴿فَتَكُونَ لِلشَّيۡطَٰنِ وَلِيّٗا ﴾ ، ولياً، نه مراد ولايت اودوستي حقيقتانه ده مراد لقوله تعالى الاخلآء يومئذبعضهم لبعض عدو الخ(زخرف: ۶۷)بلکه مرادتنه شراکت دې په عذاب اولعنت کښ چې په سبب دَدوستئ دَشيطان سره راځي ای قريناً فی النار(قرطبي) اوياولي په معنی دَقريب سره دې ای تكون للشيطان قريباً منه فی النار(فتح) اوبعض فرمائی چې ولی په معنی دَتالي يعنی تابع سره دې.

| |
|---|
| قَالَ أَرَاغِبٌ أَنتَ عَنۡ ءَالِهَتِي يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُۖ لَئِن لَّمۡ تَنتَهِ لَأَرۡجُمَنَّكَۖ |
| اوئيل ئی پلارآيامخ ګرځوی ته دَخدايانوځمانه اې ابراهيم! کچرته منع نه شولې ته نوخامخابه دې په کاڼړو اوولم |
| وَٱهۡجُرۡنِي مَلِيّٗا ۝٤٦ قَالَ سَلَٰمٌ عَلَيۡكَۖ سَأَسۡتَغۡفِرُ لَكَ |
| اولرې شه ځمانه روغ(ياډيره موده) اوئيل ابراهيم عليه السلام سلام دَجدايئ دې په تا،زرده دعادَبخنی به اوغواړم زه ستادپاره |
| رَبِّيٓۖ إِنَّهُۥ كَانَ بِي حَفِيّٗا ۝٤٧ وَأَعۡتَزِلُكُمۡ وَمَا تَدۡعُونَ |
| دَرب خپل نه بيشکه هغه په ماباندې ډيرمهربانه دې،اوځه جداکيږم ستاسونه اودَهغي بتانونه چې تاسونی عبادت کویٔ |
| مِن دُونِ ٱللَّهِ وَأَدۡعُواْ رَبِّي عَسَىٰٓ أَلَّآ أَكُونَ بِدُعَآءِ |
| سيوا دَالله تعالى نه اوځه عبادت کوم (دعاغواړم)دَرب خپل اميددې چې نه به شمه ځه په عبادت(غوښتنی) |

رَبِّيْ شَقِيًّا ۞ فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۙ وَهَبْنَا

د رب خپل باندې محرومه پس هركله چه جدا شو دَ دوئ نه او دَهغونه چه دوئ ئې عبادت كولو ماسيوا دَ الله ﷻ نه اوور كړو مونږه

لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا ۞ وَوَهَبْنَا لَهُمْ مِّنْ رَّحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا

ده ته اسحاق او يعقوب او هريو مونږ گرځولي وو نبي او اوور كړو مونږه دوئ ته دِ يرِ دَ خيرنو خپلونه. او گرځولي وو مونږ

لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا ۞

دوئ لره ذكر خير (نيك) اوچت.

﴿قَالَ أَرَاغِبٌ﴾ دا دَ حضرت ابراهيم ؑ نه دَ پلار دَ طرفه دهمكئ آميز جواب دې، دَ حضرت ابراهيم ؑ دَ نصائحو په مقابلې كښ دَ پلار دَ طرف نه دَ جواب انداز او اسلوب ډير سخت دې. دَ حضرت ابراهيم ؑ هر نصيحت شروع په ﴿يَٰٓأَبَتِ﴾ سره شويده، او دَ پلار دَ طرف نه دَ يابُنَيَّ په ځائ دَ نوم تصريح اوكړې شوه چې دا دلالت كوي په غلظت '. په غصي باندې او هركله چې دَ ابراهيم ؑ دَ پلار اعتقاد پدې جوړ شوې وو چې دا بتان قابل دَ عبادت دې او دَ دوئ دَ عبادت نه اعراض كول مناسب ندي نو دَ دې وجه نه ئې جواب په صورت دَ استفهام تعجبي او انكاري كښ ذكر كړو، او دَ رغبت په صلې كښ چې 'عن' راشي نو په معنى دَ اعراض او ترك سره وي، والرغبة عن الشئ تركه عمدا (بحر) او علامه زمخشري فرمائي چې ﴿أَرَاغِبٌ﴾ خبر مقدم دې او ﴿أَنتَ﴾ مبتدا مؤخر دې او تقديم دَ خبر دَ اهتمام شان لپاره دې چې دا ځما معبودان داسې دې چې د دوئ نه اعراض او نفرت قطعا ندې پكار، ليكن غوره خبره داده چې ﴿أَرَاغِبٌ﴾ صيغه دَ اسم فاعل ده، او دَ اسم فاعل دَ عمل لپاره يو شرط دا دې چې اعتماد به ئې راغلى وي په شپږ ځيزونو كښ په يو ځيز باندې چې په هغې كښ حرف استفهام هم دې، نو چونكه دلته هم دَ اسم فاعل نه مخكښ حرف استفهام راغلى دې چې دده اعتماد په هغه دې نو دَ دې وجه نه، انت ورله فاعل شو، او اضافت دَ الهة. يا دَ متكلم او شوپديكښ اشاره ده مبالغي دَ تعظيم ته دهغه دَ خپلو معبودان باطلو سره، او صيغه دَ جمعي ذكر شوه نو پديكښ اشاره ده ديته چې دَ حضرت ابراهيم ؑ پلار به ډيرو آلهو عبادت كولو.

﴿لَأَرْجُمَنَّكَ﴾ داجواب شرط اوقسم دې، اورجم نه مراد يارجم باللسان، يعنى كنځل كول دي اويارجم بالحجارة،سنګسارکول دي، يعني څه به تاته سخت كنځل اوكړم اويابه دې سنګسارکړم،اوياتنه مرادسخت ضرب اووهل دی ﴿وَٱهْجُرْنِي مَلِيًّا﴾ واو عاطفة ده اوداجمله عطف ده په معطوف عليه مقدرباندې چې فاحذرنی، دې چې دلالت پرې كړيدې، لارجمنك، ځكه چې ﴿لَأَرْجُمَنَّكَ﴾ دتهديدلپاره دي، او﴿مَلِيًّا﴾په معنی دسالماسره دې، يعنی تاته به ځمادطرف نه تكليف اورسي ښه به داوي چې ته ځمانه روغ لري شي اوبل طرف ته لاړشي (قرطبی) نوپدې صورت کښې مليا،منصوب دې بناء برحاليت اوبعض فرمائی چې ﴿مَلِيًّا﴾معنی ده دهرا طويلا يعنی اوږده زمانه ياهميشه لپاره، نوپدي صورت کښې بيادې منصوب دې بناء برظرفيت. قال ﴿قَالَ سَلَٰمٌ عَلَيْكَ﴾داسلام دَ تحيه ندي عندالجمهورچې هغه ممنوع دې په كافرباندې،بلكه داسلام يالپاره دمتاركت اومفارقت يعني دجدائی دې اومطلب ئی دادې چې بس ځما اوستاپه مينځ کښې په خيراوسلامتياسره جداكيدل دي لكه چې په سورة القصص ايت نمبر(۵۵)کښې دی لنا اعمالناولكم اعمالكم سلم عليكم الخ(قصص: ۵۵) اوهم داطريقه داهل حلم اودنيكانوده دجاهلانوسره،اودادليل دې پدې چې كله ناصح ته دمنصوح له،دجانبه دهمكئ اوسخت الفاظ استعمال شي نودې نصيحت پريخودلی شي اوياسلام دمسالمت اودامن دې، مطلب دادې چې ستادطرف نه اګرچه دهمكئ دي خوځمادطرف نه تاته امن اوسلامتياده ځكه چې په ابراهيمعليه السلام باندې قتال فرض نوو،خواوله توجيه زياته غوره ده پدليل دورستني ايت﴿وَأَعْتَزِلُكُمْ﴾ سره﴿سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيٓ﴾ بعض مفسرين فرمائی چې دلته داستغفارنه مراد دعاكول دي دهدايت اودتوفيق دايمان چې څه به دالله تعالی نه ستالپاره دعاغواړم چې تاته هدايت اوكړې اوتيرشوي ګناهونه درته معاف كړې، (روح) اواستغفارپدې معنیٰ سره دكافرلپاره غوښتل جائزدې، ترڅوپوري چې دهغه خاتمه په كفر باندې يقينی شوي نوي،اوكه دهغه خاتمه على الكفريقيني شي يعني يوپيغمبرته دوحي په ذريعه پته لګيدلي وي نوبيادهغه كافرلپاره هم دامذكوره دعاغوښتل جائزندي ځكه چې داطلب دمحال دې، ليكن پدې توجيه اشكال واردېږي چې سورة الممتحنه، کښې الله تعالی دحضرت ابراهيمعليه السلام داتباع حكم كړې دې اودهغه

استغفارلپاره دَخپل پلاردائی تنه مستثنی کړیدې چې ددې اتباع مه کوئ، الاّ قول ابراهیم لابیه لاستغفرنّ لك، نوکچرته استغفارپدغي مذکوره معنی سره وي نو استثناء به ئی ولي کیدله ځکه چې دااستغفارخودَمشرك لپاره جائزبلکه مستحسن دې، نوددې وجه نه غوره خبره داده چې استغفارپه خپلې معنی سره دې، اودااستغفاردَابراهیم علیه السلام قبل العلم وو، اوتفصیل ئی په سورة التوبة ایت نمبر(۱۴۴)کښې تیرشویدې.

**فائده:** کافرباندې ابتداء په سلام سره کول جائزدی یاجائزندی، مسلك دَجمهورودادې چې په کافرباندې ابتدبالسلام جائزه نده، ځکه چې په صحیح حدیث کښې راغلیدی چې رسول الله ﷺ ارشادفرمائی، لاتبدؤوا الیهود والنصاری بالسلام فاذا لقیتم احدهم فی الطریق فاضطروه الی اضیقه(مسلم) اوحضرت سفیان بن عیینه رحمه الله دَجوازقائل دې چې په کافرباندې ابتداء په سلام سره کولی شي اواستدلال ئې کړیدې په ظاهردَدې ایت سره چې﴿سَلَٰمٌ عَلَيۡكَ﴾دې اودغه شان استدلال ئی کړیدې په هغې روایت سره چې مروي دې دَحضرت اسامه رضی الله عنه نه اوذکرکړیدې امام بخاری په متعدد مواضعوکښې، په کتاب التفسیرکښې په باب قوله ولتسمعن من الذین الخ کښې اودغه شان په کتاب الاستیذان، باب التسلیم فی مجلس فیه اخلاط من المسلمین والمشرکین په هغې طویل حدیث کښې دی، فاذا فی المجلس اخلاط من المسلمین والمشرکین وعبدة الاوثان والیهود والمسلمین.........فسلم رسول الله ﷺ علیهم الخ (رواه البخاری ج۲ ص۹۲۶)لیکن مذهب دَجمهورو راجح اوغوره دې اوهرچه دې استدلال دَحضرت سفیان بن عیینه رحمه الله په ایت سره نوهغه ځکه ضعیف دې چې ایت مذکوره محتمل دې دَمتعددو معانیواوغوره داده چې دلته دَسلام نه مراد سلام دَمتارکت اوودیعت دې، لکه ورستو ایت پري قرینه ده اوپه تقدیردَتسلیم سره جواب دادې چې شرائع من قبلنا زمونږ لپاره حجت هله ګرځي چې نهي پري نوي وارده شوي اوحالانکه دلته نهي وارده ده، لکه حدیث مذکوره اودغه شان نوراحادیث شو،اوهرچه دې حدیث نوعلامه عینی، کرمانی، وغیره فرمائی چې چونکه دامجلس مشتمل ووپه مسلمانانواوکافروباندې نوممکنه ده چې رسول الله ﷺ په سلام سره نیت فقط دَمسلمانانوکړې وي اودکافرو نیت ئی دنوي کړې اوداهم ممکنه ده چې داپه ابتدا دَاسلام کښې وو اوورستوبیاداحکم دَجواز منسوخ شوې وي لکه چې دامعلومیږي ظاهردَحدیث نه چې، وذلك قبل وقعة بدرچې دَرسول الله ﷺ دکفارو پدې مجلس باندې تیریدل اوسلام اچول وغیره دَجنګ بدرنه مخکښې وو، اوامام قرطبی رحمه الله تطبیق کړیدې چې احادیث دَنهي محمول

دې په عموم باندې اوحديث دَاسامهؓ محمول دې په خصوص باندې چې بلاضرورت سلام اچول جائزندی په کافرباندې خوکچرته څه، حاجت چاته پيښ شي نوبياجوازشته دې،باقي تفصيل په قرطبي اوطبري کښې دې(من شآء فليطالع ثمه).

﴿وَأَعْتَزِلُكُمْ﴾دا عطف دې په﴿سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ ﴾باندې چې تاته څمادَطرف نه سلام اوځه ستانه اوستادَمعبودانونه بس جدائی اختياره وم اودلته په اعتزال سره مراد هجرت کول دی، حضرت ابراهيمؑ ارض مقدسه يعني شام ته بياهجرت اوکړو(مدارك) ﴿وَأَدْعُواْ رَبِّى ﴾ددعانه مراد ياعبادت دې اوياتنه مراد دعائ استغفارده دَخپل پلارلپاره، اوياتنه مراد مطلق دعاده، لکه په سورة الشعراء کښې ده، رب هب لى حكما والحقنى بالصلحين، اوياتنه مراد دعاده دَطلب دَاولاد والالکه په سورة الصافات کښې دي، رب هب لى من الصلحين، ﴿بِدُعَآءِ رَبِّى شَقِيًّا ﴾پديکښې اشاره ده چې دَالله تعالی نه غوښتونکی په خساره اونقصان کښې نوي اودَرب العلمين ،درنه نامراده واپس کيدل نشته، په خلاف دَمخلوقاتونه چې دهغوئ نه په غوښتنه کښې ذلت هم دې اونامرادي هم شته.

﴿فَلَمَّا ٱعْتَزَلَهُمْ ﴾هرکله چې حضرت ابراهيمؑ خالص دَالله تعالی لپاره خپل خپلوان پريخودل نودهغې په بدله کښې ورله الله تعالی معزز اوپيغمبران اولادورکړل، اوذکردَاسحٰقؑ اودَيعقوبؑ ځکه اوشوچې دَحضرت اسمعيلؑ ذکرلږورستومستقلا کيږي اويادَدي وجه نه چې دَحضرت اسحقؑ اويعقوبؑ په نسل کښې دَانبياء کرامو تعداد ډيروو اودوئ اصل وو دَانبياء کرامو ؑ لپاره.

﴿وَوَهَبْنَا لَهُم مِّن رَّحْمَتِنَا ﴾مراد درحمت نه بعض فرمائی چه نبوت دې، بعض فرمائی چې کتابونه، دي ليکن غوره خبره داده چې مرادتنه هرقسم خيردې، دنيوي وي اوکه ديني وی،(روح) ﴿وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ ﴾دَلسان، نه مراد هغه کلمات اوالفاظ دي چې دژبې نه اداکيږي، نودَلسان صدق نه مراد هغه خبري دي چې په هغې باندې فخرکيږي اوتعريف ئې پرې کيږي اوحضرت ابراهيمؑ شخصيت ټولوقومونوته مسلم دې اوپه هرقوم کښې تاابدده هغه

ذکرخیر کیږي. دلسان اضافت صدق ته او بیا دلسان لپاره صفت علیّا . ذکر کولو کښې اشاره ده دېته چې د دوئ چې کوم تعریف او ثناء کیږي دې دهغوئ مستحق دي

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مُوسٰى ۚ إِنَّهُ كَانَ مُخْلَصًا وَّكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا ﴿٥١﴾

[1] اوبیان کړه ته په دې کتاب کښې واقعه د موسیٰ علیه السلام بیشکه هغه پاك ساتلې شوې وو . او وو رسول نبي

وَنَادَيْنٰهُ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ الْاَيْمَنِ وَقَرَّبْنٰهُ نَجِيًّا ﴿٥٢﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗ مِنْ رَّحْمَتِنَا

او اواز ورکړو مونږ هغه ته د ښي طرف د طورنه او نزدې کړې وو مونږه راز دار . او ورکړو له مونږه ده ته د وجې د رحمت خپل نه

اَخَاهُ هٰرُوْنَ نَبِيًّا ﴿٥٣﴾ وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِسْمٰعِيْلَ ۚ اِنَّهُ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَكَانَ

ورور د ده هارون علیه السلام نبي . او بیان کړه په دې کتاب کښې حالت د اسمٰعیل علیه السلام بیشکه دې وو رشتنې لوظ والا او وو دې

رَسُوْلًا نَّبِيًّا ﴿٥٤﴾ وَكَانَ يَاْمُرُ اَهْلَهٗ بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ ۪ وَكَانَ عِنْدَ رَبِّهٖ

رسول نبي، او وو دې چې حکم به ئې کولو خپل اهل (متبعینو) ته د مانځه او زکوة اداکولو او وو دې په نیز د رب خپل

مَرْضِيًّا ﴿٥٥﴾ وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِدْرِيْسَ ۚ اِنَّهُ كَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا ﴿٥٦﴾

غوره کړې شوې، اوبیان کړه ته په دې کتاب کښې حالت د ادریس علیه السلام بیشکه چې دې وو ډیر رشتنې نبي

وَّرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ﴿٥٧﴾

او پورته کړې وو مونږه دې مرتبې اوچتې ته.

﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مُوسٰى﴾ د دريو (۳) انبياء کرامو علیهم السلام تفصيلي واقعات بيانولونه پس د دريو (۳) انبياء کرامو علیهم السلام واقعات په اختصار سره بيانيږي چې موسیٰ علیه السلام اسمعيل علیه السلام او ادريس علیه السلام دی چې دوئ هم الله تعالیٰ ته محتاجه او عاجزې کوونکي وو ﴿اِنَّهٗ كَانَ مُخْلَصًا﴾ مخلص معنی داده چې غوره کړې شوي او خالص کړې شوي د الله تعالیٰ د عبادت لپاره او د شرك

(1) جواب شبهه متعلق به باقی انبیاء کرام علیهم السلام.

اوګناهونو نه پاك ساتلي شوي، اوپه يوقرائت کښې په کسري دَلام سره مخلصًا راغليدى چې صيغه دَاسم فاعل ده نومعنٰى ئى داده چې دې خالص کوونکې وو الله ﷻ لره خپل عبادت. (جلالين،قرطبي).

﴿أَخَاهُ هَٰرُونَ نَبِيًّا﴾ ظاهراشکال وارديږي چې مرتبه دَرسالت افضله ده دَمرتبې دَنبوت نه ځکه چې هررسول نبي خامخاوي په خلاف دنبي نه، چې ضروري نده چې هرنبي دِرسول وي. نوذکردرسول نه پس ذکردَنبي عبث دې؟ بعضوتنه جواب کړيدې پدې شان چې دلته نبي ماخوذدې دَنبوة نه په معنٰى دَرفعت اوعلوسره دې نومطلب دادې چې. دې دَالله ﷻ عالي مرتبه رسول وو يعني په ډيرو انبياء کراموپه ډيرو مخلوقاتوباندې ده ته الله ﷻ بلندي اواوچته مرتبه ورکړي وه.(روح)،(۲)اوبعض فرمائى چې دَرسول اونبي دواړونه لغوي معنى مرادده اوشرعي معنٰى تنه نده مراد ،اوپه دواړو کښې فرق نسبتي دې، رسول يعني مرسل وو دَجانبه دَالله ﷻ نه. اونبي يعني خبرداری ورکوونکی وو مخلوقاتو ، نورسول ووپه نسبت سره الله ﷻ ته اونبي وو په نسبت سره مخلوقاتو ته.(۳)اوبعض فرمائى چې نبي عام دې اورسول خاص دې اوعام طورباندې عام دَخاص نه مخکښې ذکرکيږي خودلته،دَعام قانون نه خلاف اوکړې شو اوذکردَعام بعدالخاص اوشو لپاره درعايت دَفواصلو ،لکه چې څرنګه په سورة طه ايت نمبر(۷۰)برب هارون وموسىٰ کښې دَفواصلو دَرعايت لپاره تقديم دَهارون عليه السلام شويدې په موسى عليه السلام باندې (تفسيرنيشاپوري).

﴿وَنَٰدَيْنَٰهُ مِن جَانِبِ ٱلطُّورِ﴾ طورنه مراد کوه طوردې چې دَمصراومدين په مينځ کښې واقع دې. اونوم دهغه په بعض رواياتو کښې،زبير،راغليدې. او ﴿ٱلْأَيْمَنِ﴾ صفت دَجانب لپاره دې اوايمن دَيمين نه دې چې مقابل دَيساردې اوداجانب ايمن، په اعتباردَموسى عليه السلام سره دې. ځکه چې دَغرلپاره يمين اوشمال بنفسه نوي. نودَايت مقصددادې چې کله حضرت موسىٰ عليه السلام دمدين نه مصر ته روان شونوپه کوه طورکښې دَيوي ونى نه ورته اواز اوشو اوهغه اونه دموسى عليه السلام جانب يمين کښې واقعه وه،اوبعض فرمائى چې ايمن دَيمن نه دې په معنٰى دبرکت سره.اوداصفت دې دَطورلپاره﴿وَقَرَّبْنَٰهُ نَجِيًّا﴾ اقربيت په اعتباردَمرتبې مراددې چې دېته تقريب تشريف اواکرام وئيلى کيږي،اوداتمثيل دې چې حالت دَموسى عليه السلام مشابه کړې شويدې دحالت دهغه چاسره چې دَبادشاه سره نزدې ناست وي اوبادشاه ورسره دَرازخبري کوي اوحضرت

سعيدبن جبيرؓ دابن عباسؓ نه نقل کړيدي چې داقربت په اعتبارد مکان اومنزلت سره دي، چې موسیٰ الله ﷻ خپل ځان ته دمکان په اعتبارسره قريب کړو حتی که چې حضرت موسیٰ دهغه قلمونوآوازهم واوريدو چې په کوموسره تورات ليکلی کيدلو .عن سعيدبن جبيرؓ عن ابن عباسؓ قال ادنی حتی سمع صريف الاقلام(طبری ج۸ ص ۳۵۱) اوددي ايت نوره تشريح به په سورة طه کښې راشي(انشاء الله).

﴿وَوَهَبْنَا لَهُۥ مِن رَّحْمَتِنَآ﴾من ياتعليليه دي ای من اجل رحمتنا اوياتبعيضيه دي او﴿هَٰرُونَ﴾عطف بيان دي او﴿نَبِيًّا﴾حال دي دهارون نه اوپه کلام مقيد کښې عام طورباندې مقصود قيدوي،نوددي وجه نبيادامقصود اوموهوب دي اوذات اوشخصيت دهارون موهوب ندې ځکه چې حضرت هارون دعمر په اعتبارسره دموسیٰ نه مشروو .اوتخصيص ددې موهوب(يعني دحضرت هارون نبي جوړيدل) حضرت موسیٰ پوري اوشو .اوداسې اوئيلی شو چې﴿وَوَهَبْنَا لَهُۥ﴾،خالص دده لپاره مونږه حضرت هارون نبي جوړکړو .داځکه چې حضرت موسیٰ دده په باره کښې دعاکړې وه چې، واجعل لی وزيرا من اهلی،هارون اخی(طه:۲۹، ۳۰).

﴿وَٱذْكُرْ فِى ٱلْكِتَٰبِ إِسْمَٰعِيلَ﴾داد حضرت اسمعيل اثبات دعبديت کيږي﴿إِنَّهُۥ كَانَ صَادِقَ ٱلْوَعْدِ﴾ صدق اوايفاء دوعدي دهرپيغمبرشان اوصفت دې خوهرکله چې داوصف خصوصي اوامتيازي وو په اسمعيل کښې ددي وجه نه د هغه سره خصوصاذکرشو، اوحضرت اسمعيل که دالله ﷻ سره وعده کړې وه يادانسانانوسره نودهغې دپوره کولواهتمام به ئې په ډيرکلکه سره کولو.خپل پلارحضرت ابراهيم سره ئې وعده اوکړه چې، ستجدنی ان شآء الله من الصبرين،اوبيائې خپل ځان بلاچون چرا قربانئ ته پيش کړو .اودغه شان په روايت دابوداود کښې دی چې، حضرت اسمعيل ديوکس سره وعده کړې وه چې ترڅوپوري ته نوي راغلی نوځه به پدې ځائې کښې وم، نوهغه سړي نه خيره هيره شوه اودري ورځ ورستوورته ياده شونوچه راغی نوحضرت اسمعيل په خپل ځائې باندې ناست وو .اوپه

خني رواياتو کښې يوه شپه اويوه ورځ راغليدی.(ابوداود کتاب الادب باب في العدة، طبری ج۸ ص ۳۵۲، ۳۵۱).

﴿وَكَانَ رَسُولاً﴾حضرت اسمعيل عليه السلام ته امت نوې ورکړې شوې وو اونه ورته نوې شريعت ورکړې شوې وو.ليکن کوموخلقوطرف ته دې مبعوث شوې اوليږلی شوې ووهغواعتبارسره دادين نوی وو.نودَدي وجه نه رسول ورته اوئيلی شو﴿وَكَانَ يَأْمُرُ﴾يعني حضرت ابراهيم عليه السلام دَالله تعالىٰ دومره فرمانبرداروو چې خپل اهل ته به ئی هم مالي، بدني،قولي عباداتوتلقين کولو.اومرادپه اهل سره ياخپل اهل وعيال دې. اويا تنه قوم جرهم اوياتنه ټول امت دهغه مراد دې. اوپه صلوة اوزکوة سره مراد عبادات بدنيه اوماليه دی اوبعض فرمائی چې په زکوة سره مرادتزکيه دَنفس ده.

﴿وَٱذْكُرْ فِى ٱلْكِتَٰبِ إِدْرِيسَ﴾دَادحضرت ادريس عليه السلام اثبات دَعجزاوعبديت کيږي اکثرعلماء فرمائی چې ادريس عليه السلام دَپلارنوم اخنوخ وو اودې نيکه وودَحضرت نوح عليه السلام لکه چې امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب کښې فرمائی، وهو جدّ ابی نوح عليه السلام ويقال جدّ نوح عليه السلام بلکه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې بعض علمآء پدي اجماع نقل کړيده، اوپه قرآن مجيد کښې دده ذکردَابراهيم عليه السلام نه ورستوکيدل مستلزم ندي چې زمانه هم دده ورستوده لکه داتوهم کړيدې بعض معاصرمفسرينو ، ځکه چې بعديت ذکري مستلزم ندې بعديت زماني لره.لفظ دَادريس کښې اختلاف دې بعض فرمائی چې دالفظ عربی دې ماخوذدې دَدراسة نه اوده ته ادريس ځکه وئيلی کيدوچې ده دَالله تعالىٰ دکتاب درس ډيرکولو ، ليکن پدي توجيه اشکال کيږي چې لفظ ادريس چې کله مشتق شي دَدراسة نه اولفظ عربي شي نوبياخودې غيرمنصرف کيدل صحيح ندي ځکه چې عجميت پکښې نشته.اوحالانکه دې غيرمنصرف دې له وجې دَعلميت اوعجميت نه، نودَدي وجه نه اولی خبره داده چې دالفظ عجمي دې اوبعض علمآء فرمائی چې لفظ ادريس عليه السلام دَتوافق اللغتين دَقبيلی نه دې، چې عربئ کښې هم وئيلی کيږي کثيرالدرس،ته اوپه بله ژبه کښې هم دغه معنی ده،حضرت ادريس عليه السلام دَعلم نجوم اوحساب موجددې،دټولونه اول هغه په قلم سره، خط ليکلی دې، اوګنډلي شوي جامي ئي اچولي وې.

﴿وَرَفَعۡنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ﴾دمكان علياً ،نه مراد شرف نبوت اودالله ﷻ خواته نزديكت اوقربت دي، بعض علماء فرمائي چې رفع الى السمآء تنه مرادده چې الله ﷻ په څلورم اسمان كښ ده ته ټهكانه وركړيده،اوحضور ﷺ دمعراج په شپه ورسره ملاقات كړې وو.باقي دحضرت ادريس عليه السلام جنت ته تلل ياهلته وفات كيدل داټول واقعات اسرائيليات دي لكه چې ېدې تصريح كړيده حافظ ابن كثير رحمه الله.

| |
|---|
| أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ مِنْ ذُرِّيَّةِ آدَمَ وَمِمَّنْ |
| [1]داهغه كسان دي چې انعام كړې وو الله ﷻ په دوئ باندې دانبياؤنه څنې داولاد ادم عليه السلام نه دي اوځني داولاده دهغه چنه |
| حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ وَمِنْ ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْرَائِيلَ وَمِمَّنْ |
| چې سواره كړې مونږه سره دنوح عليه السلام نه اوځنې داولاد دابراهيم عليه السلام اويعقوب عليه السلام نه وو اودهغه خلكونه |
| هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا |
| چې مونږ ورته هدايت كړې وو اومونږ غوره كړې وو، هركله چې لوستلې شو پدوئ باندې ايتونه درحمٰن نوغورځيدل به دوئ |
| سُجَّدًا وَبُكِيًّا ﴿٥٨﴾ فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ |
| سجده كوونكي اوژړاكونكي [2]پس راغلل ددوئ نه ورستوناأهله نائبان چې بردباداني كړومونځ اوروان شودنفس په خواهشاتوپسې |
| فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ﴿٥٩﴾ إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ |
| نوزرده چې مخامخ به شي(سزا)دسركشئ ته. مگرهغه څوك چه توبه ئې اويستله اوايمان ئې راوړواوعمل ئې اوكړو |
| صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ شَيْئًا ﴿٦٠﴾ جَنَّاتِ عَدْنٍ |
| نيك(موافق دسنتہ)نو دغه كسان به داخليږي جنت ته اوظلم به نه كيږي پدوئ باندې هيڅ قدر ، جنتونه دهميشه اوسيدلو |

(1) داايت تمام مذكورين انبياء كراو عليهم السلام سره متعلق دى، اوذكردشپږواوصافو لپاره دنفي الوهيت.
(2) جواب دسوال مقدر

الَّتِي وَعَدَ الرَّحْمٰنُ عِبَادَهُ بِالْغَيْبِ ۚ إِنَّهُ كَانَ وَعْدُهُ مَأْتِيًّا ﴿۶۱﴾

هغه چي وعده کړيده رحمان د بندګانو خپلو سره چي نه ئ دی ليدلي داجنتونه. بيشکه ده وعده د الله ﷻ راتلونکي پوره کيدونکي

﴿﴾ پدي ايت کښ دعوئ د سورت يعني د انبياء کرامو عجزبيانيږي اودهغوئ نفي د الوهيت کيږي په شپږو (۶) طريقوسره (۱) ﴿أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم﴾ چي الله ﷻ پدوئ باندې انعام کړې وو (۲) ﴿مِن ذُرِّيَّةِ ءَادَمَ﴾ آدم چي دوئ اولاد د حضرت ادم ﷺ وو (۳) ﴿هَدَيْنَا﴾ چي مونږه دوئ ته د توحيد لاره خودلي وه (۴) ﴿وَاجْتَبَيْنَا﴾ چي مونږه دوئ ته لوئي مرتبي ورکړي وي (۵) ﴿إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا﴾ چي کله په دوئ باندې د الله ﷻ اياتونه تلاوت کړې شي نو اظهار عجزلپاره به سجدهٔ ته لاړلو (۶) ﴿وَبُكِيًّا﴾ يعني د الله ﷻ د خوف د وجي نه به ئې ژړل، نو دوئ به څرنګه متصرف اوکارساز اوګرځي.

﴿أُولَٰئِكَ﴾ اشاره ده عام مفسرين فرمائي چي د ده مشاراليه پدي سورت کښ، مذکورانبياء کرام دی. د حضرت زکريا ﷺ نه ترحضرت ادريس ﷺ پوري، اواشاره بعيده د دوئ بعدرتبې لپاره راوړی شوه، ليکن حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائي چي مشاراليه جنس انبياء کرام دی خود جنس په ځائ ذکر د اشخاصواوشو ﴿أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم﴾ مرادتنه هرقسم نعمتونه دی که ديني دی اويادنيوي ﴿مِنَ النَّبِيِّينَ﴾ من بيانيه دې اودابيان دې د موصول يعني ﴿الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ﴾ ځکه چي تول انبياء کرام منعم عليهم دی ﴿مِن ذُرِّيَّةِ ءَادَمَ﴾ دامن تبعيضيه دې، اومصداق ددې حضرت ادريس ﷺ دې فقط، ځکه چي هغه ادم ﷺ ته قريب وو، اوبعض فرمائي چي ﴿مِن ذُرِّيَّةِ ءَادَمَ﴾ دابدل دې د ﴿مِنَ النَّبِيِّينَ﴾ نه په اعادې د حرف جرسره نوپدي اعتبارسره بيا من بيانيه دې، نه تبعيضيه، نومطلب به ئې داشي چي د منعم عليهم د ذريه د ادم ﷺ، نه دي ليکن اوله توجيه زياته غوره ده ځکه چي ذريت د ادم ﷺ عام دې اومنعم عليهم پکښ خاص دې، نوکچرته دابدل شي نو د قانون مطابق چي بدل مقصود بالحکم وی، نوکل ذريت د ادم په منعم عليهم

اوګرځي﴿وَمِمَّنۡ حَمَلۡنَا مَعَ نُوحٍ﴾ داعطف دې په﴿ءَادَمَ﴾باندې اود﴿وَمِن ذُرِّيَّةِ﴾ ماتحت دې.اى ومن ذرية من حملناهم معه عليه السلام(روح) اومصداق دَدې حضرت ابراهيم عليه السلام دې ځکه چې هغه بالاجماع دَاولاد دَسام بن نوح عليه السلام نه وو ،اوپديکښې اشاره ده نعم دنيويو ته﴿وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبۡرَٰهِيمَ﴾ مرادتنه حضرت اسماعيل عليه السلام ،اسحاق،اويعقوب عليه السلام دى.﴿وَإِسۡرَٰٓءِيلَ﴾مرادتنه موسى عليه السلام ،هارون عليه السلام ، زکريا عليه السلام ، يحيى عليه السلام اوعيسى عليه السلام وغيره دى اوپديکښې اشاره ده نعم دينيه ته،اودادليل دې پدې چې دَلور اولادهم په ذريت کښې داخل دې﴿وَمِمَّنۡ هَدَيۡنَا﴾ داعطف دې په﴿مِن ذُرِّيَّةِ ءَادَمَ﴾باندې اوغوره قول مطابق من دلته هم دَتبعيض لپاره دې مرادپه هدايت سره هدايت الى الاسلام والتوحيددې﴿وَٱجۡتَبَيۡنَآ﴾ مرادتنه اعطاء دَنبوت ده هغوئ ته﴿خَرُّواْ سُجَّدٗا وَبُكِيّٗا﴾ دااخباردې دهغوئ دَخشوع اوخوف خداوندى ته﴿وَبُكِيّٗا﴾ صيغه جمع اسم فاعل ده مفرد باکي دې اوپدې ځائ کښې دادعاغوختل مستحب دى اللّهم اجعلنى من عبادك المنعم عليهم المهدين الساجدين لك الباكين عندتلاوة اياتك.

﴿فَخَلَفَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ﴾دادَيوسوال جواب دې، سوال داکيدلوچې کله قول انبياء کرام پدې متفق وو چې متصرف اوکارسازصرف الله ﷻ دې اوصحيح لاره دَتوحيدده نوبياخرنګه خلکودوئ ته متصرف اوئيلو اوشرک ئې اوکړو،نوجواب تنه اوشوچې دَانبياء کرامو عليهم السلام نه ورستودَهغوئ صحيح دين غلطواوناکاره خلکوبربادکړلو ،هغوئ دَالله ﷻ نه علاوه دَمعبودان باطله عبادت شروع کړو، مونځونه ئې ضائع کړل اودَخپلوخواهشاتواتباع ئې اوکړه او"خلف" په سکون دَلام سره وئيلى کيږي نالائق اوبدجانشين ته اوپه فتحې دَلام سره وئيلى کيږي صحيح اونيک جانشين ته.﴿أَضَاعُواْ ٱلصَّلَوٰةَ﴾هرکله چې مونځ بنياد اوستنه دَدين ده نوددې ضياع مستلزمه ده عرفا ضياع دَنورټول دين لره،اودَدې وجه نه حضرت عمر رضي الله عنه ارشاداوفرمائيلوچې ومن ضيعها فهو لماسواها اضيع،نوپدې بنياد خاص طورذکردَضياع دَمونځ اوشو اوضياع دَمونځ شامله ده پريخودلودَمونځ ته،دغه شان تعديل نه کولوته په ارکانوکښې اودغه شان مؤخرکولودَمونځ ته اوقات مکروهوته وغيره،اوبعض فرمائى چې دلته دَصلوة نه مراد دعاده، اوتضييع ددعا مقصد

دادې چې دوئ د الله ﷻ نه علاونه بل چاته حاجت روا اوئيل اودهغه نه دعااوغوختل﴿وَٱتَّبَعُواْ ٱلشَّهَوَٰتِ﴾ يعني چې کوم کارددوئ نفساني خواهش وو بس هغه به ئي کولو دحلال اوحرام امتيازنو لکه شراب څکل، زناکول وغيره﴿فَسَوۡفَ يَلۡقَوۡنَ غَيًّا﴾ .غيَّ يوه کنده ده په جهنم کښې اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې ددې کندې نه دجهنم نورې حصې هم پناه غواړي.اوبعض فرمائي چې مرادتنه خسران اونقصان دې اوبعضوتنه شرمرادکړيدې، اودزجاج نه منقول دي چې دغی نه مراد ضلالت اوګمراهي ده اوعبارت په حذف دمضاف سره دې اوجزاء الغی اودامعنی زياته مناسبه ده﴿إِلَّا مَن تَابَ﴾ پدې څوايتونوکښې بشارت اخروي ذکرکيږي،اودغه شان پدې ايت کښې اوصاف دمؤمنين هم بيانيږي اواشتثناء يامنقطعه ده«عندالزجاج» اويامتصله ده لکه چې داظاهره هم ده اودغه شان غوره خبره داده چې مستثنٰی داتول کلام ده يعني ﴿مَن﴾موصول او﴿تَابَ﴾ سره دمعطوفاتو نه ورله صله ده، نوداټوله مبتداء مستثنیٰ ده ځکه چې په وعيدسابقه کښې مؤمن فاسق«تارك الصلوة وغيره» هم داخل دې، اګرچه په سزاکښې ئی فرق شته دې، اودَدې وجه نه بعض مفسرين فرمائي چې﴿تَابَ﴾مقابل دې د﴿أَضَاعُواْ ٱلصَّلَوٰةَ﴾چې داضاعت صلوة نه توبه اوباسي اوصحت دتوبې لپاره يوشرط داهم دې چې دکوم حکم تضييع ئي کړې وي نودهغې قضابه راوړي، نوددې وجه نه لفظ دتاب ذکرشواوصرف داقامت الصلوة، ذکراونشواواتباع دشهواتو سره کله کله انسان کفراختيارکړي نودهغې لپاره ذکردَ ﴿وَءَامَنَ﴾اوشواوکله هسې فسق اوفجوروکښې اوپه بدعاتوکښې مبتلاشي نودهغې لپاره ذکردَ ﴿وَعَمِلَ صَٰلِحٗا﴾اوشو، چې خپل نفساني خواهشات پريدي اودسنت موافق عمل شروع کړي«والله اعلم».

﴿فَأُوْلَٰٓئِكَ يَدۡخُلُونَ ٱلۡجَنَّةَ﴾مراد ددخول نه دخول کامل اودخول اولي دې، نه مطلق دخول، نوداايت مستدل نه ګرځي دمعتزلولپاره چې عمل شرط ګرځوي ددخول جنت لپاره اومرتکب دګناه کبيره مخلدفی النارګنړي اویاالف لام په الجنة کښې دعهدلپاره دې اومعهود پدې سره جنات عدن دې چې تفسيرئی په دې دويم آيات کښې راځي،اوهغې ته ددخول لپاره نيك اعمال شرط دی﴿جَنَّٰتِ عَدۡنٍ﴾داپه نصب سره دې اونصب ئی تابع دجردې،نودابه بدل البعض شي

دا ﴿يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ﴾ نه څکه چې مطلق جنت په جنات عدن باندې مشتمل دې دقبیلی د اشتمال دکل نه په جزء باندې ،اوعدن علم دې د اقامة لپاره اویاعلم دې دزمکي د جنت لپاره

﴿وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ عِبَادَهُ بِالْغَيْبِ﴾ داجمله صفت دې د ماقبل جنّت عدن نه او اضافت د عبد ؤ ضمیرته لپاره دعهددې،اومعهود پدې سره مؤمنین، تائبین دی ای اللتی یدخلها التائبون من ذنوبهم(ابن کثیر) (۱)او باء په بالغیب کښ یاد ملابست لپاره ده اوداجمله په موضع د حال کښ ده د ﴿الَّتِي﴾ نه اویاد ﴿عِبَادَهُ﴾ نه اوغیب بمعنی الفاعل یعني د غائب په معنی سره دې نوتقدیر د عبارت ئی دارنګی شو ، ای وعدها ایاهم متلبسة اومتلبسین، بالغیب ای غائبة عنهم غیرحاضرة اوغائبین عنها لایرونها(روح) یعني الله ﷻ د خپلو ، بندګانوسره د جنت وعده کړیده حال دادې چې د اجنت غائب دې،یعني حاضراومخامخ ندې اویاحال دادې چې بندګانو کښ چې دوئ غائب دي یعني داجنت نه ویني،(۲) اویاباء سببیه ده اومرادتنه ایمان دې په هغه مغیباتو باندې چې ذکرئی په حدیث جبرئیل کښ شویدې (۳)اوبعض فرمائی چې داباء صله ده د ﴿عِبَادَهُ﴾ لپاره اومراد په غیب سره پټ یعنی سر دې، نومطلب د ایت دادې چې عبادت کوي د الله ﷻ په پټه یعني ریاء کاري نه کوي، وعدالرحمن للذین یکونون عبادابالغیب ای الذین یعبدونه فی السربخلاف المنافقین فانهم یعبدونه فی الظاهرولایعبدونه فی السر(کبیر).

﴿إِنَّهُ﴾ضمیریاراجع دې ﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ته اویاضمیرشان دې﴿كَانَ وَعْدُهُ﴾وعدپه معنی د موعود سره دې چې هغه جنت دې﴿مَأْتِيًّا﴾داياصيغه د ظرف ده يعنی ځائ د راتللو ،اومراد تنه جنت دې یعني جنتیان به جنت ته ضرورداخلیږي،اویاصیغه داسم مفعول ده بمعنی الفاعل،یعني الله تعالی وعده ضرورراتلونکی ده،اود دوارو مقصدیودې، څکه چې کوم ځیزتاته راځي نوته به ورته هم ځې، لکه څرنګه چې د عربومحاوره ده، اتت علیٰ خمسون سنة واتیت علی خمسین سنة چې په ماباندې پنځوس کاله تیرشویاځه به پنځوس کالوتیرشوم،د دوارو یك یومقصددې(ابن کثیر).

**لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا إِلَّا سَلَامًا ۖ وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً**

نه به اوري دوئ په هغې کښ بی فائدې خبري لیکن اوري به سلامونه اووي به د دوئ لپاره رزق د دوئ په هغې کښ صباني

| |
|---|
| وَعَشِيًّا ﴿٦٢﴾ تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا ﴿٦٣﴾ |
| او بیگائې «او به وئیلی شي دوئ ته» داهغه جنت دې چې ورکوو مونږه دبندګانو خپلونه هغه چاته چه وي پرهيزګار |
| وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ ۖ لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا |
| [1] «او وائي ملائك»نه نازليږو مونږه مګرپه حکم د رب ستاسره دَهغه په اختيار کښ دي هغه څه چې زمونږنه مخکښ دي |
| وَمَا خَلْفَنَا وَمَا بَيْنَ ذَٰلِكَ ۚ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴿٦٤﴾ رَبُّ السَّمَاوَاتِ |
| اوهغه څه چې زمونږ نه ورستودي اوهغه چې په مينځ ددې کښ دي اوندې رب ستابې خبره. [2] رب د اسمانونو |
| وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهِ ۚ هَلْ |
| اودزمکې دې اودهغه څه چې په مينځ ددې کښ دي پس بندګي کوه خاص دهغه اوځان کلك لره بندګئ دهغه ته. آيا |
| تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ﴿٦٥﴾ وَيَقُولُ الْإِنسَانُ أَإِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا ﴿٦٦﴾ |
| پيژنې ته هغه لره همنامي [1] اووائي انسان کافر آیاهرکله چې څه مرشم نوخامخابه عنقريب څه راويستلې کيږم ژوندې؟ |

﴿لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا﴾ لغو وئيلی کيږي هرهغه کلام ته چې دَفائدې نه، خالي وي اوباطل وي.(قرطبي) اوابن عباس رضي الله عنه نه مروي دی چې هرهغه کلام چې دَالله تعالى دَذکرنه خالي وي هغه لغودي، نو دَدې وجه نه دَايت التزامي معنى داشوه چې دَجنتيانو کلام به په جنت کښ دَالله تعالى تسبيح اوتحميدوي (قرطبي) ﴿إِلَّا سَلَامًا﴾ استثناء منقطعه ده اوسلام ياپه معنى مشهوري اومعروفي سره دې اومرادتنه دَجنتيانو په يوبل باندې سلام اچول اودَملائکوسلام اودَالله تعالى سلام اچول دي په جنتيانوباندې اويادَسلام نه مراد کلام سالم دې دَعيب اونقصان نه،چې جنتيان به په جنت کښ دَعيب اونقصان نه خالي کلام اوري محبوبي خبري به اوري اوداسي خبري به نه

---

[1] جواب ازشبه متعلق بملائك.

[2] دعوی سورت.

[1] دويمه حصه دَسورت داشکوی ده.

اوري چې دوئ ته پرې تکليف رسيږي (روح) اوبعض فرمائي چې استثناء متصله ده اوداکلام دَقبيلی دَتاکيدالمدح بمايشبه الذم دَقبيلی نه دې.

﴿وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا﴾ مرادتنه يادوام دې لکه چې داکنايه معروفه ده اويا تنه مراد مقدرادَشپې اوورځې دې ځکه چې په جنت کښې به شپه نوې خودَشپې اوورځې مقداربه په ځنې اثاروسره پيژندلی کيږي، لکه چې په يوروايت کښې دَحسن بصری رحمه الله ومبسره نه مرسلا مروي دې چې يوکس راغی عرض ئې اوکړو:يارسول الله ﷺ هل في الجنة من ليل؟ چې ای دَالله رسول آيا په جنت کښې به شپه وي؟ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيلوچې نه، بلکه هلته به دَنوروالا يوچمك اوپړق به وي،دَسحربه په مانبام باندې اودَمانبام به په سحرباندې توارد اوپيش کيدل به وي فقط،اودَالله تعالیٰ دَطرف نه په هغه اوقاتوکښې چې دوئ به پکښې مونځونه کول عجيب عجيب تحفې به راځي اودغې اوقاتوکښې به فرشتې په دوئ سلامونه وائی(روح بحواله النوادرلحکيم الترمذی)اودغه شان نوراثار هم دې لکه طبري وغيره په تفصيل سره ذکرکړيدي.

﴿تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي﴾دَدينه مخکښې يُقال لهم، محذوف دې، اواشاره ده په ﴿تِلْكَ﴾ سره دَبُعدرتبې لپاره ده،يعنی قيامت په ورځ به مؤمنانوته اوئيلی شي چې داعظيم الشان جنت دَهغه خلکولپاره دې چې خپل ځان ئې دَشرك نه بچ کړيدې﴿نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا﴾ جنت ته ميراث وئيلې شويدې(۱)چې داکنايه دَه دَاعطاء اوتمليك نه، خولفظ دَميراث دَدې وجه نه اختيارکړې شو چې چونکه وراثت دَملکيت اودَاستحقاق قوې ذريعه ده ځکه چې نه مورث دافسخ کولی شي اونه ئې دَوارث نه واپس اغستلوڅه امکان وي، اونه داردکولی شي اونه دَدې اسقاط ممکن دې(۲)اوياورته ميراث دَدې وجه نه وئيلی شويدی چې جنت کښې ځنی منازل اومکانات به جنتيانوته داسې هم ميلاويږي چې هغه به په واقع کښې دَجهنميانولپاره وو کچرته هغوئ کفرنوې کړې، خوچې هغوئ کفراوکړو نوالله تعالیٰ جهنم ته بوتللونودَهغوئ والامکانات اومنازل جنتيانوته به ميلاوُشي اودامضمون په يوصحيح حديث کښې هم راغليدی چې دَحضرت ابوهريرة رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلوچې په تاسوکښې دَهريوکس لپاره دوه(۲)کورونه دي(۱)يوکورپه جنت کښې اويوکورپه جهنم کښې اوکله چې يوکس دَمړکيدلونه پس جهنم ته لاړشي نودَهغه دَجنت والاکوروارث اهل جنت شي اودامطلب دې دَالله تعالیٰ دَقول چې

اولئك هم الوارثون(رواه البيهقی)ليکن داتوجيه ضعيفه ده ځکه چې ظاهردَحديث پدي دلالت کوي چې موروث بعض منازل دَجنت دی اونظم دَقرآن دال دې په موروث دکل جنت باندي(٣)اوداهم ممکنه ده چې جنت ته ميراث وئيل تشبيهاً وي لکه څرنګه چې يوسړی مړشي اومال موروث چې هغه ثمره ددې ميت ده ورثاؤ ته پاتي شي،نودغه شان جنت ثمره دَاعمالوده نوقيامت کښ به ذات دَعمل ختم شي اودهغې ثمره چې جنت دې هغه په پاتي وي اوعمل کوونکي ته به ميلاؤشي.(۴)اوداهم ممکنه ده چې تشبيه پديکښ وي چې څرنګه په مال موروث کښ دَوارث دکسب دَخل نوي، صرف قرابت دَميت دَوجې نه ده ته مال ميلاويږي،دغه شان دخول جنت هم دې چې پديکښ دَانسان کسب لره دخل نيشته،محض په فضل دَالله ﷻ سره وي، الاّ ان يتغمّدنى الله بفضله(الحديث)اوهرچه دې اعمال نوهغه اسباب بعيده دي دخول جنت لپاره،په منزله دَقرابت دې لپاره دَفضل الهی ﷻ نواعتراض نه وارديږي په تلك الجنّة الّتى اورثتموها بماكنتم تعملون، سره(۵) اوداهم ممکنه ده چې جنت ته، وراثت په اعتباردَسکنی اولي سره وئيلي شوي وي،چې حضرت ادم ﷺ اولاً جنت ته داخل کړې شوې وو،اوبياشيطان دَهغه دَخروج لپاره سبب اوګرځيدلو، نومسکن ابائی دَانسان هغه جنت دې نونيك اعمالوسره به انسان دغه وراثت ګټي، اوبداعمال اوکفراوشرك حاجب دې دغې وراثت لپاره،اوپديکښ غيّرت ورکول دي انسان ته په نيك اعمالوباندي،چې غيرت مندانسان هغه دې چې دَخپل پلار، نيکه ميراث اوګټي،اوجنت دَستاسونيکه ميراث دې په نيك اعمالوسره ګټلی کيږي(والله اعلم) اودَدينه علاوه بعض محدثينونورتوجيهات هم کړيدي.

﴿مَن كَانَ تَقِيًّا﴾داسبب دَاستحقاق دې دخول جنت ته، او تقیٰ نه يالغوی معنی مرادده يعني خان بچ کوونکی دَشرك نه، من كان تقياعن الشرك(مدارك) اوياتنه اصطلاحی اوعرفی معنی مرادده اوهرکله چې په مسلك دَاحنافوباندې په نصوصوکښ اعتباردَمفهوم مخالف ندې معتبرنودَدي وجه نه داايات ساکت اوخاموش دې دغيرمتقی يعنی دَصاحب الكبائرنه چې هغه به جنت ته داخليږي اويانه؟ اودَ نورو نوصوصونه داثابته ده چې صاحب الكبائربه جنت داخليږي اګرچې که دخول اولی نوي، امام رازی رحمه الله باوجود دَدي چې شافعي المسلك دې پدي مقام کښ دَاعتراض نه بچ کيدلونه ئي ترجيح دَاحنافومسلك ته ورکړيده فرمائی، والجواب: الاية تدل على ان المتقى يدخلها وليس فيها دلالة على ان غيرالمتقى لايدخلها(كبير ج٢١ ص ٥٥).

﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ﴾ دادَفرشتومتعلق دَيوي شبهي جواب دې چې شبه داكيده چې فرشتي دَاسمانونونه زمكي ته راكوزيږي اوبياخيژي نومعلومه شوه چې دوئ ته دَتصرف قدرت حاصل دې، نوجواب تنه اوشو پدي ايت سره حاصل دَجواب دادې چې فرشتي دَالله ﷻ عاجزاودَهغه دَحكم پابندمخلوق دې، دَالله ﷻ په حكم سره راكوزيږي اوخيژي. الله ﷻ حكم نه محتاجه دې، دَهغه دَحكم نه بغيرزمكي ته نشي راتلى نوځرنگه متصرف شو؟

**ربط**: دَدي ايت دَماقبل سره څه ربط دې؟ ځكه چې په ظاهركښ ربط نه معلوميږي ځكه چې ماقبل ايت كښ دَمتقينوحالت اخروي ذكرشواواوس دَحضرت جبرئيل عليه السلام نزول بيانيږي نوپه ظاهركښ ربط نه ښكاري؟ (۱) بعضى مفسرينودَربط لپاره داسي قول كړيدې چې دلته دَنزول نه دَحضرت جبرئيل عليه السلام نزول ندې مراد بلكه نزول دَمتقيانو مراددې جنت ته،نوداا خباردې دَاهل جنت نه يعنى چې كله هغوئ جنت ته داخليږي نودابه وائى چې ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ﴾ داقول دثعلبى وغيره نه منقول دې، ليكن داقول ضعيف دې، ځكه چې مخالف دې دَاحاديثو صحيحونه، ځكه چې په احاديثوصحيحوكښ داواردى چې دلته دَنزول نه مراد دَحضرت جبرئيل عليه السلام نزول دې، ځكه چې داايات دَحضور ﷺ دَهغې قول په جواب كښ نازل شوچې حضرت جبرئيل عليه السلام ته ئې اوفرمائيلوچې، مايمنعك ان تزورنا اكثرمماتزورنا (البخارى) نودَدي قول په جواب كښ داايات نازل شو، نودَدي وجه نه دَااخباردَاهل جنت دَقول نه گرځول بعيددى،(۲)دَنقاش رحمه الله اودَځني اهل علم نه دامنقول دى چې داايت، متصل دې دَ، انما انارسول ربك الخ سره، اوهغه هم كلام دَجبرئيل عليه السلام وو، اوداهم دَهغه كلام دې، ليكن دَدي توجيه ضعف اواستبعاد هم ظاهردې.

(۳)بعض اهل علم فرمائى چې داايت په منزله دَدليل اوعلت دې دَماقبل لپاره چې دامابقل ټول كلام صحيح اوصادق دې ځكه چې داكلام حضرت جبرئيل عليه السلام دَالله ﷻ په امراوحكم سره نازل كړيدې(۴)حضرت علامه مولانا شبيراحمدعثمانى رحمه الله ددې ربط په مختلف طريقوسره بيان كړيدې،(الف)فرمائى چې په ماقبل ايت كښ دَدي ذكراوشوچې دَجنت وارث اتقياء دى. نوپدي ايت كښ دَدي ذكركيږي چې،تقوى اوخوف دهغې ذات نه پكارده چې دهغه په قبضي كښ زمكى، اسمانونه، اوزمان اومكان دې اودهغه دَحكم اواجازت نه بغيربوه لويه فرشته وزرنشي رپه ولى، (ب)دغه شان په ماقبل ايت كښ ذكراوشوچې جنت ته به متقين ځي، پدي ايت كښ

نمونه دَاطاعت بيانيږي چې كه څوك جنت وارث،جوړيدل غواړي نودَفرشتو غوندي دَالله ﷻ دَحكم مطيع اومنقاد دشي،(ج)دغه شان په ماقبل ايتونوكښ دَانبياء كرامو ﷺ تذكري اوبيامتقيانوته بشارت دَجنت وركړې شونواوس پدي ايت كښ اشارةً دابيانيږي چې دَالله ﷻ نيك بندگان به ضرورجنت ته داخليږي خودَهرڅه لپاره يووخت مقرردې، نوجنت ته داخليدل هم په وقت مقرره سره دي.

**شان نزول** په روايت دبخاري(ج۲ كتاب التفسير) كښ دَدي ايت شان نزول دَحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه داسي منقول دی چې حضور ﷺ حضرت جبرئيل عليه السلام ته اوفرمائيلو چې مايمنعك ان تزورنا اكثرمماتزورنا، نودا ايت نازل شو ، اوبعض مفسرينوطبری وغيره داسي نقل كړيدی چې كله مشركينودَرسول الله ﷺ نه دَاصحاب كهف، روح اوذوالقرنين په باره كښ تپوس اوكړو نوحضور ﷺ ورته اوفرمائيلو چې صبا به څه جواب دركړم اوانشاء الله، ئې هيرشو ، نووحي كښ تاخيراوشو څه وخت ورستوچې وحي نازله شوه نوحضور ﷺ دَحضرت جبرئيل عليه السلام نه دَ دومره وخت نه راتللووجه اوپوښتله نودا ايت نازل شوچې ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ ﴾اوتنزل باب تفعل دې، باب تفعل كله په معنى دَافعال سره راځي اوكله په معنى دَتفعيل سره،اوكله په خپلي معنى سره وي نوكچرته باب افعال په معنى سره شي نومعنى به ئې نزول دفعةً واحدةً شي،اوكه په خپلي معنى سره شي نومعنى به ئې نزول على الاطلاق شي اوكه په معنى دَتفعيل سره شي نومعنى به ئې نزول احياناًشي،نودلته دادريمه معنى زياته اليقه اومناسبه ده،اوغوره قول دادې، چې﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ ﴾ داحكايت دې دَكلام جبرئيل عليه السلام نه﴿لَهُ﴾تقديم دَجارمجروردَحصراواختصاص لپاره دې،اودا په منزله دَدليل دې دَماقبل لپاره چې مونږه دَالله ﷻ دَحكم نه بغيرنشوراتللی څكه چې﴿لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا ﴾.

﴿مَا بَيْنَ أَيْدِينَا ﴾بعضومفسرينودَدينه ازمنه مراد كړيدی.چې دَ﴿أَيْدِينَا ﴾ نه مراد زمانه مستقبل ده نه﴿وَمَا خَلْفَنَا ﴾ مراد زمانه ماضی ده﴿وَمَا بَيْنَ ذَٰلِكَ ﴾ نه مراد زمانه حال ده وبعضوتنه اماكن مراد كړيدي چې دَ ﴿مَا بَيْنَ أَيْدِينَا ﴾نه مراد دنيااواحوال دَدنيادی. او ﴿وَمَا

خَلْفَنَا ﴾نه مراد آخرت اوهغي احوال دي. اودَ﴿وَمَا بَيْنَ ذَٰلِكَ ﴾ نه مراد حالات ددوو ۲ نفخويه مينځ کښ مراددي، ليکن غوره قول دادي چې دَدينه مراد عام شي، که اماکن وي اوکه ازمنه وي. اوتعميم زيات اليق دې دَسباق اوسياق دکلام سره، نودَايت مقصدداشو، چې دَالله ﷻ په قبضه قدرت اوتصرف کښ دی هرڅه که زمان دې که مکان نونه مونږه په يوه زمانه اونه په يومکان کښ دهغه دَاجازت نه بغيرنشوراتلی، (روح).

﴿وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴾ نسيٌ په معنٰی دَغفلت اوبي خبرئ سره دې، يعني ستارب دَهيڅ څيزنه بي خبره ندې هرڅه دَالله ﷻ په علم کښ دي (مدارك) اوبعض فرمائی چې دا په معنٰی دَتارکاً سره دې،نودَايت مطلب دادې چې ستارب تاپريدي اوستاطرف ته مونږ بالکل نه رازو اوسلسله دَوحي ستانه ختم کړي داسي نده، بلکه تاخيردَوحي مبني دې په حکمت باندې،چې دهغې نه الله ﷻ واقف دې﴿رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾دلائل ذکرکولو اودَشبهاتو،جوابونوورکولونه بعد، اوس دعوی دَسورت ذکرکيږي،چې دَاسمانونواودَزمکي اودټول کائنات مالك صرف اوصرف الله ﷻ دې نولهذا عبادت هم دهغه پکاردې﴿فَٱعۡبُدۡهُ﴾ فاء دَترتب لپاره ده يعني چې هرکله دَاسمان اودَزمکي اودکل کائنات رب الله ﷻ دې نوعبادت هم دَهغه کوه، اوعبادت نه مراد توحيددې، ای وحده لذلك (قرطبی) ﴿وَٱصۡطَبِرۡ ﴾داامردې دَباب افتعال نه،باب افتعال فاء کلمې په مقابله کښې صاد راغی،نودَقانون صرفي مطابق تاء په طاء سره بدله شوه،اومراد تنه استقامت دې په عبادت باندې،اوصبراگرچه متعدي کيږي په علی سره لکه په سورة طه کښ. واصطبرعليها، خودلته متعدی شو په لام سره اوپه صله کښ ئی لام راغی،وجه داده چې صبرپدي مقام کښ متضمن دې معنی دَثبات لره، اوعبادت ئی ورله په منزله دَمقارن(ملګری)سره ګرځولی شويدې نودَدي وجه نه دده په صله کښ لام راوړی شو اونظيردَدي دادې چې يوسړی محارب جنګ کوونکی) ته اوائی اصطبرلقرنك اوپدي کښ اشاره ده چې په عبادت سره به تکاليف اومشقتو به راځي خودهغې دَوجي نه سستي نده پکاربلکه ثابت قدمي په عبادت باندې پکارده. (کبير) اوبعض مفسرين فرمائی چې لام په ﴿لِعِبَٰدَتِهِۦ﴾ کښ لام اجليه دې اومفعول به دَ﴿وَٱصۡطَبِرۡ

﴾مصبورعليه محذوفه ده، نوتقديردَعبارت داسي دې. واصطبرعلى المشاق لاجل عبادة الخلاّق(مدارك).

﴿هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا﴾ سمي: په اصل کښې شريك فى الاسم ته وئيلى کيږي(همنام)، خوهرکله چې شريك فى الاسم تقاضه دَمماثلت کوي نودَدې وجه مراد تنه مماثل اوپه الوهيت اوعبادت کښې شريك مراددې، اواستفهام لپاره دَانکاردې.

**فائده**: دَايت دَعبادة النص نه دامعلوميږي چې دَالله ﷻ اسمآء مطلقا دَچالپاره، نوم کرځول جائزندى، خوعلماؤپدې کښې تفصيل کړيدې چې مختصره خلاصه ئى داده، چې په لفظ دَالله ﷻ کښې اتفاق دې چې دادَچالپاره علم نشي کرځيدې اونه ئى دَالله ﷻ نه علاوه په بل چااطلاق جائزدې اوپه لفظ دَرحيم کښې اتفاق دې چې اطلاق ئى په غيرالله ﷻ باندې جائزدې. اوپه لفظ دَرحمن کښې اختلاف دې، عندالبعض اطلاق ئى په غيرالله باندې مطلقاناجائزدې لکه داقول دَابن مالك رحمه الله وغيره دې، اواستدلال ئې کړيدې پدې قول دَالله ﷻ سره قل ادعو الله اوادعوا الرحمن الخ،طرزاستدلال ئى دادې چې رحمٰن هم دَلفظ الله ﷻ پشان دَالله ﷻ لپاره علم دې نوځکه ئى اطلاق په غيرالله جائزندې، اوبعض محققينوعلمآؤفرق کړيدې په مينځ دَمعرف باللام اوغيرمعرف باللام کښې، چې ناجائزپه غيرالله باندې هغه اطلاق دَالرحمٰن يعنى معرف باللام دې اودَنکري په صورت کښې يعني غيرمعرف باللام په صورت کښې دَرحمٰن اطلاق په غيرالله جائزدې چنانچه دَعلامه سبکي قول په شامي کښې داسي ذکرشويدې والحق ان المنع شرعي لالغوى وان المخصوص به تعالى المعرف(شامى ج۱ ص۵) اودينه اشاره معلوميږي دَحافظ ابن کثير رحمه الله په قول کښې چې هغه فرمائى عن ابن عباس رضي الله عنهما ليس احديسمى الرحمن غيره تبارك وتعالى(ابن کثير) چې دَعدم جوازاطلاق په صورت دَمعرف باللام کښې دې نه مطلقا (والله اعلم بالصواب).

﴿وَيَقُولُ ٱلْإِنسَـٰنُ﴾ دَدې ځائ نه دَسورت دويمه حصه شروع کيږي چې پدې کښې څو شکوې، زجرونه، تخويفونه اوبشارتونه ذکرکيږي چې تفصيل ئى مخکښې تيرشويدې.نوپدې ايت کښې شکوى ذکرکيږي چې دانادان انسان داسوال کوي چې دَمرګ نه ورستوبه څه دوباره څرنګه ژوندي کيږم؟ اوالف لام په﴿ٱلْإِنسَـٰنُ﴾کښې ياجنسى دې اوپديکښې مجازفى الطرف شويدې چې ذکردکل اومرادتنه بعض دې، اويامجازفى الاسناد دې چې نسبت دَماصدرعن البعض. کل افرادوته

شويدې له وجه دَرضاء دَتولو کفارو پدې قول باندې اويا الف لام دَعهد لپاره دې او معهود پدې سره يا جماعت دکفارو دې اويا معهود پدې سره شخص معين دې چې هغه ابی بن خلف دې. په روايت کښې دی چې ابی بن خلف يو زوړ وروست شوی هډوکی راوغستلو او په لاس کښې ئی ټکړې ټکړې کړو او بيائې اوئيل چې،زعم محمدﷺ اناانبعث بعدالموت، چې دَمحمّدﷺ داخيال دې چې مونږ به دَمرګ نه ورستو بيا ژوندي کيږو، نو دهغه په باره کښې الله جَلّ جلالُهٗ دا ايت نازل کړو (قرطبی)

﴿أَءِذَا مَا مِتُّ﴾ استفهام لپاره دَانکار دې او ﴿أَءِذَا﴾ ظرفيه دې متعلق دې په فعل مقدر پورې چې 'اخرج' دې او په مذکور مابعد اخرج پورې ندې متعلق ځکه چې په هغه باندې لام داخل شويدې او دخول دَلام مانع دې دَماقبل کښې دَعمل کولو نه،اوبعض علماؤ توسط دَسوف هم په مانعينو کښې شمار کړيدې

﴿لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا﴾ لام په 'لَسُوفَ' کښې دَمجرد تاکيد لپاره دې. لام دَابتداء ندې، ځکه چې لام دَابتداء چې په مضارع داخل شي نو معنٰی دَمضارع خاصه شي په حال پورې نو بيائې جمع دَسوف سره جائز نوي، او دلته چې ئې جمع راغليده نو معلومه شوه چې دا لام دَتاکيد لپاره دې (والتفصيل فی الکشاف).

اَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنْسَانُ أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ يَكُ شَيْئًا ﴿٦٧﴾

آيا[1] فکر نه کوي داانسان چې بيشکه مونږ پيداکړې وو دې وړاندې دَدېنه، او نوو دې هيڅ شي[2]

فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيَاطِينَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ

نو قسم دې په رب ستا باندې چې ضرور به يو ځائ کوو مونږ دوئ او شيطانان بيا به ضرور حاضره وومونږ دوئ

حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا ﴿٦٨﴾ ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ

چاپيره دَجهنم نه په زنګونانو باندې پراته. بيا به راوکاګومونږ دَهرډلې نه هر هغه کس دَدوئ نه چې ډير سخت وو

---

(1) جواب شکوی

(2) تخويف اخروی

| عَلَى الرَّحْمٰنِ عِتِيًّا ﴿٦٩﴾ ثُمَّ لَنَحْنُ اَعْلَمُ بِالَّذِيْنَ هُمْ اَوْلٰى بِهَا صِلِيًّا ﴿٧٠﴾ |
|---|
| په رحمان باندې په نافرمانئ کښې بيامونږ بنه خبريو په هغه کسانوچې هغوئ بنه حقداردي جهنم ته دَداخليدلو |
| وَاِنْ مِّنْكُمْ اِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلٰى رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴿٧١﴾ |
| او(قسم دی) نيشته ستاسونه څوك مګرورځي به جهنم ته.ده ستاپه رب باندې(داخبره) يقيني فيصله کړې شوي |
| ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَّنَذَرُ الظّٰلِمِيْنَ فِيْهَا جِثِيًّا ﴿٧٢﴾ |
| بيابه مونږبچ کړو هغه کسان چې ځان ئې ساتلې وو دَشرك نه اوپرېږدوبه ظالمان په هغې کښې په زنګونوباندې پراته |

﴿أَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنسَانُ﴾داجواب دَشکوه دې، چې داانسان پدې هم نه پوهيږي اوسوچ نه کوي چې دې هيڅ هم نوو ،معدوم وو مونږ پيداکړو اووجودته موراويستلو ،نو اعاده ثانيه اهونه اواسانه ده دَايجاد اول نه اودغه شان دليل الله ﷻ په سورة يسين ايت نمبر(۷۹) سورة الروم ايت نمبر(۲۷)سورة اعراف ايت نمبر(۲۹)کښې هم ذکرکوي،اومراد په ذکرسره پدې ځائ کښې فکرکول دي. ځکه چې ذکرپه خپلې معنی سره هلته وي چې اول عمل حاصل وي اوبياهيرشي،او استفهام لپاره دَتوبيخ دې اوپه من قبل سره هغه حالت دې چې دې پرې اوس دې يعني حالت بقاء. اوبعض فرمائي چې دَمن قبل. نه مراد دَدي قول کولونه مخکښې حالت دې.

﴿فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ﴾داتخويف اخروی دې،اوداقسم دَالله ﷻ په خپل ذات باندې اومضاف کړيدې رسول الله ﷺ ته لپاره دَتشريف اوتفخيم شان. او"واو" په ﴿وَالشَّيَاطِينَ﴾کښې ياالپاره دَعطف دې اوياپه معنی دَمعَ سره دې اومراد دَشياطينونه عام دې که انسي وي ياجني، چې په دنيا کښې دکومو انسانانو دوئ اتباع کړيده،او دوئ ګمراه کړيدي اوياجنات دې ټول به ميدان حشرته راويستلی شي،هم ضميردجمع دې، او ﴿وَالشَّيَاطِينَ﴾هم جمع دې نولهذا دَايت مطلب دادې چې هرکافربه دَشيطان سره په هتکړوکښې راوستلی شي (قرطبي و کشاف).

﴿ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ﴾په "ثمّ" کښې اشاره ده چې دَحشرنه ورستوکافي مدت پوري به خلك دَجهنم نه ګيرچاپيره به وي، او ﴿جِثِيًّا﴾ياجمع ده دَ"جاثية" وئيلی کيږي په زنګون باندې پروت اوناست

کس ته. او دادَ دېرهيبت اورعب دَوجي نه کوي، امام رازي رحمه الله فرمائي چې قيامت په ورځ به هرسړی پدي حالت کښې وي لکه چې الله تعالیٰ فرمائي وتریٰ کلّ امّة جاثية. خودکافرېدي حالت باندې کيدل به لپاره دَذلت دَهغه وي اودَمسلمانانوبه داحالت دَعادت جاريه دَوجي نه وي چې دَخلکوعادت پدي جاري دې چې په وخت دَمطالبي دَبادشاه کښې دَبادشاه دَرعب دَوجي نه دکيناستلوداصورت اختياره وي اوحسن بصری رحمه الله نه مروي دي چې داصورت اختياره ول به دَځاې دَتنګوالي دَوجي نه وي (قرطبی) اويا ﴿جِثِيًّا﴾ جمع دَجثوةٌ ده اوجثوة وئيلی کيږي جماعت ته، داقول دَحضرت ابن عباس رضي الله عنه دي.

﴿ثُمَّ لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ﴾ نزع وئيلی کيږي اخراج ته په سختئ سره اوشيعة دَباب ضرب يضرب نه په معنٰی دَخوريدلو اودېريدلوسره دې، اومرادتنه، اتباع اوفرقې اوجماعتونه دي، اودآيت مقصددادې چې الله تعالیٰ به اولاً ټول دَجهنم نه ګيرچاپيره راجمع کړي بيابه مسلمانان الله تعالیٰ جنت ته داخل کړي اوپه کفاروکښې چې کوم سرکش کفاردي هغه به الله تعالیٰ دَعذاب عظيم لپاره خاص کړي اوهغوئ به اولاًجهنم ته اوغورځوي،اوبيابه ورپسي، بالترتيب نوراغورځوي، نودَ ﴿أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى ٱلرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا﴾ نه مراد هغه سرکش کفاردی چې په ګناهونوباندې ئی جراءت کولو،اوياتنه مراد رؤسادي اودَهغوئ جرم ځکه زيات سخت دې چې دَهغوئ تقليد کړې شويدې، نوضال هم دي اومضل هم دي،او﴿عِتِيًّا﴾منصوب دې بناء پرتميزچې دې تميزدې دَ﴿أَيُّهُمْ أَشَدُّ﴾ جملي نه،اودَ﴿أَيُّهُم﴾ترکيب دَمشکل مقاماتونه دي اوپديکښې دَنحويانولوئی اختلاف دې(۱)مسلك دَجمهورو اودَسيبويه دادې چې ای اسم موصول دې اودامبنی دې ځکه چې صدردَصلي ئی محذوف دې اوکله چې هم دَای صلي صدرحذف کړې شي نودې به مبنی وي(عندالسيبويه) نودې مبنی دې په ضمي سره اګرچه دې په محل دَنصب کښې واقع دې اومفعول به دې دَ﴿لَنَنزِعَنَّ﴾ لپاره،نوسيبويه ترکيب داسي کوي چې﴿لَنَنزِعَنَّ﴾ ، فعل،فاعل ﴿أَيُّهُم﴾، اسم موصول مبنی برضم،منصوب محلاً مفعول به،او ﴿أَشَدُّ عَلَى﴾خبردې دَمبتدا محذوفي لپاره، چې هو ،دې نومبتدا سره دَخبرنه صله شوه دَموصول.

(۲) دویم مذهب دَخلیل دې چې هغه فرمائی چې حرکت دَدې حرکت اعرابیه دې او ﴿أَيُّهُم﴾ مرفوع دې بنابرابدائیت، او ایٌ استفهامیه دې او ﴿أَشَد﴾ ورله خبردې، تقدیردَعبارت عند الخلیل داسې دې، لننزعن من کل، شیعةٍ الذین یقال فیهم ایهم اشدالخ

(۳) دریم مذهب دَفراء دې چې هغه فرمائی چې ﴿أَيُّهُم﴾ منصوب دې اوداجمله مفعول به واقع شویده دَ﴿لَنَنزِعَنَّ﴾ لپاره.

(۴) څلورم مذهب دَاخفش دې هغه فرمائی چې من په ﴿مِن كُلِّ شِيعَةٍ﴾ کښې زائد دې، او داجمله مفعول به ده دَ ﴿لَنَنزِعَنَّ﴾ لپاره، او ﴿أَيُّهُم﴾ داجمله مستانفه ده چې واقع شویده په سوال دَسائل کښې، اومرفوع ده بناء برابتدائیت نوتقدیردَعبارت (عندالاخفش) داسې دې، ثم لننزعن من کل شیعة، نوسائل سوال اوکړو چې من هم نوجواب ئې اوکړې شو، ایهم اشدّ الخ دَدینه علاوه نورمذاهب هم دی (تفصیل لپاره بحرملاحظه کړئ).

﴿ثُمَّ لَنَحْنُ أَعْلَمُ﴾ ثم پدې ځائ کښې دَتعقیب ذکری لپاره ده، اوتعقیب زمانی یارتبی لپاره نده چې اعتراض اوکړې شي چې ظاهردَایت نه دامعلومیږي چې دخول دَجهنمیانوبه جهنم ته اول وي اودهغې نه ورستوبه بیاالله ﷻ ته علم حاصلیږي، بلکه دَایت مطلب دادې چې بیاداهم اوره چې جهنم ته داخلیدل به هسې نوي بلکه مونږ ته ښه علم دې چې مستحق دَجهنم څوک دې، اوپدوئ کښې به دَتولونه اول جهنم ته څوک داخلیږي، اواسم تفضیل یعني ،﴿أَعْلَم﴾ یاپه معنی دَمبالغې یعنی علیم سره دې، اویاتفضیل په اعتباردَعملنامې لیکونکي فرشتو (کراماً کاتبین) سره دې، چې کراما کاتبین به دَاعمالونه دامعلوم کړي چې سعیدڅوک دې اوشقي څوک دې؟ خواصل علم په تولواحوالوپه سرائرو اوعلانیوباندې الله ﷻ دې.

﴿وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا﴾ قرطبی فرمائی چې واو متضمن دې معنی دَقسم لره اوداقسم دې دَجانبه دَالله ﷻ نه پدې چې دَهرانسان ورود (داخلیدل) به جهنم ته خامخاکیږي اودلیل پدې چې داقسم دې هغه حدیث دې چې نقل کړیدې امام بخاري رحمه الله په کتاب الجنائز کښې (باب فضل من مات له ولده فاحتسب) چې روایت دې دَحضرت ابوهریرة رضي الله عنه نه چې رسول الله ﷺ ارشاد

اوفرمانيلولايموت لاحد من المسلمين ثلاثة من الولدفتمسه النارالاتحلة القسم. چې بوكس دمسلمانانونه داسي ندې چې دَهغه دري بچي(دوړوكوالئ كښ)مړه شي اوبيادې جهنم ته لاړ شي(داسي نشي كيدې، مگرصرف اوصرف دَقسم حلال ولولپاره(به څي، يعني چې كوم قسم الله ﷻ كړيدې نوصرف دهغې دَپوره كيدلولپاره به څي(قرطبی).

ورود: كله په معنٰى دَدخول سره رازي،كله په معنٰى دَاطلاع سره راځي اوكله په معنٰى دَعبورسره راځي اوبياپه ﴿مِنكُمْ ﴾كښ دوه (۲)احتمالات دى يودا چې خطاب صرف كافرانوته شي، اودويم داچې خطاب عام شي،كافرانو اومسلمانانودواړوته شي،نوكچرته خطاب كافرانوته شي نوبياورود په معنٰى دَدخول سره دې اوپه ﴿ثُمَّ نُنَجِّي ﴾كښ ثم لپاره دَتعقيب ذكرى ده.اوكه خطاب عام شي مسلمانانواوكافرانوټولوته نوبيايواحتمال دادې چې وُرُود په معنٰى ددخول سره شي نومؤمن اوكافربه الله ﷻ جهنم ته داخل كړي خومؤمن لپاره به جهنم،برداوَسلاما، شي اوكافرلپاره به گرم وي اوهغه ته به عذاب ميلاويږي، اوداتوجيه راجحه ده يودَمذكوره حديث دَوجې نه چې لايموت لاحدمن المسلمين الخ اوبل دَهغې حديث دَوجې نه چې نقل كړيدې حكيم ترمذي رحمه الله دَابوسميه رحمه الله نه چې هغه فرمائی، اختلفنافی الورود فقال بعضنا لايدخلها مؤمن وقال اخر:يدخلونها جميعا ثم ينجي الله الذين اتقوا فلقيت جابربن عبدالله رضي الله عنه فذكرت له فقال: واهوى باصبعه الى اذنيه صمتا ان لم اكن سمعت رسول الله ﷺ يقول لايبقى برولافاجر الا دخلها فتكون على المؤمن بردًا وسلامًا كماكانت على ابراهيم عليه السلام الخ(قرطبی وغيره بحواله حكيم) نودَدې احاديثونه معلومه شوه چې دكافراومسلمان دواړو دخول به جهنم ته كيږي اوبيابه الله ﷻ مؤمنانوته نجات وركړي لكه ورستوايت كښ چې دی اوفوائد دَدې ورود اوبياخروج دادی چې(۱)پديكښ سروراوخوشحالئ به مقصود وي دَمؤمنانوچې كله هغوئ اوگوري چې مونږ الله ﷻ ددې سخت عذاب نه خلاص كړي يواومونږ ته ئې نجات راكړيدې(۲) اودغه شان پدې كښ به مزيدتكليف وركول مقصودوي اهل النارته چې دوئ اوگوري چې ددوئ مخالفين مؤمنانوته الله ﷻ نجات وركړو نودوئ به ډيرخفه شي.(۳)اودغه شان پدې كښ به مقصود مزيدالتذاذ اوخونداغستل دې وي دَنعمتونو دَجنت نه څكه چې كله دوئ دَجهنم عذاب اوگوري اودهغې سختئ معاينه كړي نودَهغې نه ورستوبه دَجنت نعمتونه ډيرلذت اوخود به وركوي،

كماقال الشاعر: وبضدها تتبين الاشيآء اونورهم فوائددي چې امام رازيرحمه الله په خپل تفسيركښ ذكركړيدى.

دويم احتمال دادې چې ورود په معنى دعبورسره دې،داتوجيه دحضرت حسن بصريرحمه الله نه منقول ده مقصد دايت دادې چې هريوكس به په پل صراط باندې تيريږي. اوپه روايت كښ دى چې پل صراط دجهنم دپاسه دې اوجنت الله جل جلاله دپل صراط دپاسه پيداكړيدې. نوكافراومشرك به دپل صراط نه لاندې جهنم ته اوغورزيږي اومتقيانوته به الله جل جلاله نجات وركړي،مدارك وبيضاوي.

دريم احتمال دادې چې ورود په معنى داطلاع سره دې چې جهنم به دقيامت په ورځ موضع دحساب سره به قريب وي، نوپه حالت دحساب كښ به ئې ټول اوګوري،كافران دي كه مؤمنان اوبيابه الله جل جلاله مؤمنانوته نجات وركړي ولصاحب المظهرى فى هذا المقام تحقيق انيق من شاء فيطالعه ثمه.

﴿كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا﴾معتزله پدې سره استدلال كوي چې كافرانواوفاسقانوته عذاب وركول واجب دي په الله جل جلاله باندې،ځكه چې على په وجوب اوحتم په لزوم دلالت كوي نومعلومه شوه چې په الله جل جلاله باندې وجوب شته دې، اهل سنت والجماعت نه جواب داكوي چې هركله الله جل جلاله يو امرفيصله اوكړي نودهغې خلاف واقع كيدل ممكن ندي نودائي قائمقام اوګرځولودوجوب، نه داچه داعين واجب دې.

﴿ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ﴾ثم يادتعقيب زماني لپاره دې كچرته دورود نه مراد دخول شي اوياد تعقيب ذكري لپاره دې كچرته ورود په معنى دعبورشي اوپدې كښ سبب دنجات دجهنم اوذريعه ددخول دجنت ته ذكركيږيو چې هغه تقوى ده.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ

[1]اوكله چې اولوستلې شي په دوئ باندې ايتونه زمونږ واضح بيان والا وائي هغه كسان چې كفرئي كړيدې هغه كسانوته

---

[1] شكوى

اٰمَنُوْٓا ۙ اَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِيًّا ﴿۷۳﴾ وَكَمْ اَهْلَكْنَا

چې ايمان ئې راوړيدي ،چې كوم يو ددي دواړو ډلونه ښه ځائ والا دې اوخائسته مجلس والا دې [2]اوډيرهلاك كړيدي موږ

قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَحْسَنُ اَثَاثًا وَّرِءْيًا ﴿۷۴﴾ قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلٰلَةِ

وراندې ددوئ نه قومونه ديوزماني چې هغوئ خائسته سامان والاوواوشكل والا [1]ورته اوايه خوك چې وي په ګمراهئ كښ

فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمٰنُ مَدًّا ۚ حَتّٰٓى اِذَا رَاَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ اِمَّا الْعَذَابَ

نومهلت به وركړي هغه ته رحمان مهلت ددي ،چې كله اويني دوئ هغه چې دوئ سره ئې وعده كيږي ياعذاب دنيوى

وَاِمَّا السَّاعَةَ ۗ فَسَيَعْلَمُوْنَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضْعَفُ جُنْدًا ﴿۷۵﴾ وَيَزِيْدُ اللّٰهُ

اوياقيامت نوزرده چې پوهه به شي چې خوك دي ډيربدځائ والا اوډيركمزوري لښكروالا . اوزياته وي الله ﷻ

الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى ۗ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا

هغه كسانولره چې هدايت موندونكي دي نورهدايت اوباقي پاتي كيدونكي نيك عملونه ډيرغوره دي په نيزدرب ستاپه بدله كښ

وَّخَيْرٌ مَّرَدًّا ﴿۷۶﴾

اوډيرغوره دي په اعتباردځائ دورګرځيدلوسره.

﴿وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ﴾ داشكوه ده يعني چې كله دقرآن ايتونه پدوئ باندې لوستلى شي نودوئ ازروئ تكبر داوائي چې مسلمانانوته پدي قرآن سره څه حاصل شو؟ زمونږه محفلونه څومره خائسته اوشان وشوكت والادي اومسلمانان دفقراوغربت زندګي تيره وي، اولام په ﴿لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا﴾ كښې لام التبليغ دې لكه په وقال لهم نبيهم كښې لام تبليغ دې.

---

(2) تخويف دنيوي اوجواب شكوى.

(1) زجر

﴿خَيۡرٌ مَّقَامًا﴾ مقام يااسم ظرف دي په معنى دځائ دااقامت سره اويامصدرميمى دي په معنى دقيام سره او ﴿نَدِيًّا﴾ په معنى دمجلس سره دي ﴿وَكَمۡ أَهۡلَكۡنَا قَبۡلَهُم مِّن قَرۡنٍ﴾ دا تخويف دنيوي دي. چې ددي دنياپه شان وشوكت باندې مغرورخلكوته داهم سوچ كول پكاردي چې مونږه ددوئ نه زيات مال ودولت والاخلك. شان وشوكت والا امتونه هلاك كړي دى. اوقرن وئيلى كيږي امت اوجماعت ته ﴿هُمۡ أَحۡسَنُ أَثَٰثًا﴾. اثاث. سامان دكورته وئيلى كيږي وهومتاع البيت من الفرش والثياب وغيرهما (روح) اوكله كله ئې اطلاق په مطلق مال باندې هم كيږي ﴿وَرِءۡيًا﴾ وئيلى كيږي منظراوشكل وصورت ته. يعنى دډيرخائسته منظروالاوو. اوداكنايه ده په نازاونعم كښې دكيدلونه. اوپه يوقرائت كښې بغيردهمزي نه "ريًا". راغليدې په معنى دسيرابي سره. ددوارومقصديودي

﴿قُلۡ مَن كَانَ﴾ داجواب شكوه اوزجردې، چې كوم خلك ددنياپه مال دمتاع باندې تكبركوي. اوايمان نه اعراض كوي الله ﷻ دغه شان خلكوته ډهيل اومهلت وركوي تردي چې دوعدي مطابق يادوئ ته په دنياكښې عذاب راشي اويابه قيامت قائم شي اودكفرپه حالت كښې به دالله ﷻ سره ملاقات اوكړي نوبيابه ورته پته اولگى چې دچاتهكانه بنه ده اودچامجلس كمزورى اوضعيف دې

﴿فَلۡيَمۡدُدۡ لَهُ﴾ داامربمعنى الخبردې. يعنى الله ﷻ دغه شان سركش ته مهلت وركوي اوصيغه دامرراوړى شوه چې پدي كښې اشاره ده ديته چې بتقاضائى حكمت دالله ﷻ سره مناسب داده چې دوئ ته مهلت وركړي، لپاره ددي چې عذرونه ئې ختم شي، لكه چې په سورة فاطرايت نمبر(٣٧) كښې دى، اولم نعمركم مايتذكرفيه مـن تـذكراځ نودالله ﷻ دطرف نه په دنياكښې دوئ ته ترقي وركول دليل دحقانيت ندې بلكه استدراج دې، اودغه شان ذكرالله ﷻ په سورة آل عمران ايت نمبر(١٧٨) كښې هم فرمائى، اويا امرپه معنى ددعاسره دي ﴿إِمَّا ٱلۡعَذَابَ وَإِمَّا ٱلسَّاعَةَ﴾ داتفصيل دې د﴿مَا يُوعَدُونَ﴾ په طريقي دمانعة الخلوسره، اود﴿إِمَّا ٱلۡعَذَابَ﴾ نه مراد عذاب دنيوي نيدكول، قتل كيدل، اوپه حالت دنزعه كښې سزاوركول مراددې، اود﴿وَإِمَّا ٱلسَّاعَةَ﴾ نه مراد

دَقیامت عذاب اویاپس دَمرګ نه عذاب مراددې، ځکه چې په اصطلاح دَشرع کښ دَقیامت اطلاق کله کله په مرګ نه پس زندګئ باندې هم کیږي کما في الحدیث، من مات فقدقامت علیه القیامة، ﴿فَسَيَعۡلَمُونَ مَنۡ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا﴾دا جواب دَشرط دې اوغایه ده دَحتیٰ لپاره یعنی دَعذاب وخته پوري دوئ ته مهلت وي خوچې دَعذاب وخت شروع شي نوبیا مهلت ختم شي. نوپدي وخت کښ به دوئ پوهه شي ﴿مَنۡ هُوَ شَرٌّ﴾ داپه مقابله دَ﴿وَأَضۡعَفُ جُندًا﴾ کښ دې ﴿وَأَحۡسَنُ نَدِيًّا﴾ داپه مقابله دَاحسن ندیًا کښ دې.

﴿وَيَزِيدُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ٱهۡتَدَوۡاْ﴾دا بشارت دې چې الله ﷻ په خپل توفیق سره مؤمنانو ته په ایمان باندې ثبات او استقامت ورکوي، لکه څرنګه چې کافرانو ته ئې استدراج اومهلت ورکولو ، اودَهغوئ کفر اوسرکشي به زیاتیدله، نو دامقابل دَ ﴿فَلۡيَمۡدُدۡ﴾دې، نو دَایت مطلب، دادې چې کفاروته مال دولت کښ ترقي دادهغوئ دَحقانیت دلیل ندې اودَمؤمنانو ناداري دَهغوئ دَباطل کیدلو دلیل ندې بلکه دنیوی عیش وعشرت سره الله ﷻ کفاروته په کفر او طغیاني کښ ترقي ورکوي اوپه ناداریٔ، فقر وفاقي سره مؤمنانو مراتب بلند کوي.

﴿وَٱلۡبَٰقِيَٰتُ ٱلصَّٰلِحَٰتُ﴾دَدې تفسیر په سورة الکهف کښ، تیر شویدې، چې نیک اولاد ، نیک اعمال، تسبیحات وغیره داباقي پاتي کیدونکي څیزونه دي، اوپه اخرت کښ به اجر اوبدله دَدې میلاویږي، او﴿خَيۡرٌ عِندَ رَبِّكَ﴾کښ خیر اګرچه اسم تفضیل دې خودلته تفضیل فی نفسه مراددې اوتفضیل علی الغیر ندې مراد ﴿وَخَيۡرٌ مَّرَدًّا﴾مرد اسم ظرف دې یعنی ځائ دَواپس کیدلو مراد تنه جنت دې، په سورة الکهف کښ خیر املا، وئیلی شوي وو، اودلته﴿مَّرَدًّا﴾ اوئیلی شو .وجه داده چې هلته داکلام دهغه سړي په جواب کښ ذکرشوې وو چې مال اولاد ئې ذریعه دَنفعې دائمي ګرځولو ، اوپدې باندې ئې سهارا وه، اودلته په مقابله دَ ﴿شَرٌّ مَّكَانًا﴾کښ ذکر شویدې نوځکه ورسره ﴿مَّرَدًّا﴾ذکرشو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَفَرَءَيْتَ | الَّذِي | كَفَرَ | بِآيَاتِنَا | وَقَالَ | لَأُوتَيَنَّ | مَالًا |

آیا نه خبرئې په حال دهغه کس باندې چې کفرئې کړیدې په آیتونوزمونږ باندې اووائي چې خامخا به راکولی سي مانه مال

وَوَلَدًا ﴿٧٧﴾ أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿٧٨﴾ كَلَّا ۚ سَنَكْتُبُ

اواولاد، آیا دې خبر دې په غیب باندې اوکه یانې اخستې ده درحمن نه وعده دنجات، هرگزداسې نده،ضرور موږه لیکو

مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ﴿٧٩﴾ وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا

هغه خبرې چې دې وائي اوزیاته وو ده لره دعذاب نه په زیاتولوسره. اووابخلومونږ دده نه هغه چې دې وائي اوراځي به موږ ته

فَرْدًا ﴿٨٠﴾ وَاتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لِّيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا ﴿٨١﴾

یك یواځې [1]اونیولي دې دوئ سیوادالله ﷻ نه حقداران دبندگئ ددې لپاره چې شي ددوئ دپاره مددگاران

كَلَّا ۚ سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴿٨٢﴾

هرگزنشي کیدې زرده چې انکاربه اوکړي دبندگئ ددوئ نه.اوشي به پدوئ باندې دشمنی کوونکی

﴿أَفَرَءَيْتَ الَّذِي ﴾داشکوه مع التخویف دې. دآیت شان نزول امام بخاری رحمه الله اونور محدثینوداسې نقل کړیدې چې حضرت خباب بن ارت ﷺ فرمائی چې څه لوهار (آهنگر) وم، نوماعاص بن وائل ته څه څیز(توره)جوړکړي وه چې دهغې پیسې دهغه په ذمې څماقرض وې نوماتنه مطالبه اوکړه چې څماپیسې راکړه نوهغه اونیل چې لاوالله لااقضینك حتی تکفرَ بمحمّدٍ ﷺ .یعنی هغه وخته پورې څه ستاحق تاته نه درکوم ترڅوپورې چې تاپه محمد ﷺ سره کفرنوي کړې،حضرت خباب ﷺ فرمائی چې ماورته جواب کښ اونیل چې څه هرگزکفرنه کوم اگرچه ته مړشې اوبیاژوندې کړې شې، نوعاص اونیل چې آیاڅه به مړکیږم اوبیا به ژوندې کیږم؟ خباب ﷺ فرمائی چې ماورته اونیل چې هاؤ، نوده اونیل چې کله څه دوباره ژوندې شم نوهلته به

1. شکوی مع تخویف اخروی

1 زجر

هم څمااولاد او اموال وي نو بيابه ئې هلته درله،درکړم. نو الله ﷻ دا ايت نازل کړو ۔او ﴿أَفَرَءَيْتَ﴾ په معنى دَاخبرَ سره دې،ځکه چې رؤيت دَاشياؤذريعه دَعلم ده اوخبرورکول ورسره صحيح وي نوځکه رايت په معنى دَاخبرسره راځي. اوفاء يادَتعقيب ذکري لپاره ده لکه چې داظاهره ده او استفهام مجازاعبارت دي دَامرنه په بيانولودواقعي سره.اومقصد دايت دادي چې دکفارو سابقه حالات ذکرکولونه ورستوبيادوئ ته واقعه دَدي کافرهم ذکرکړه. اى اذكرحديثه عقيب حديث اولئك(مدارك) اويافاء عاطفه ده اومعطوف عليه ورله مقدردي. اى انظرت فرايت الذى كفر الخ(روح) يعنى آياته نه ګوري چې بياخبرشي په حالت دَهغه کس چې کفرئ کړيدې الخ او استفهام لپاره دَتعجيب دي، يعنى دَده داجرائت شنيعه قابل تعجب دي﴿مَالاً وَوَلَدًا﴾لام موطئه للقسم دي. يعنى څمادقسم وي چه ماته به په اخيرت کښ ضرورمال او اولادميلاويږي

﴿أَطَّلَعَ ٱلْغَيْبَ﴾داجواب دَقول دَمشرك دي چې دامشرك(عاص) چې داوائى چې﴿لَأُوتَيَنَّ مَالاً وَوَلَدًا﴾ ۔ آياده ته څه غيب باندې علم ورکړې شويدې اوکه يائې دَالله ﷻ سره عهدشويدي

﴿أَطَّلَعَ﴾ په اصل کښ اطتلع،په وزن دَافتعل باندې وو، شروع کښ همزه استفهاميه ده. فاء افتعال په مقابلي کښ طاء واقع شوه،دَقانون صرفي مطابق تاء په طاءسره بدل کړې شوه اوطاء په طاء کښ مدغم کړې شوه اوپه شروع کښ تنه همزه وصلي حذف کړې شوه،او اطلاع على الغيب. نه مراد علم غيب حاصليدل دي يعنى ده ته الله ﷻ په خپلي ارادي باندې علم ورکړيدې چې دې دومره مضبوط قسم خوري،اودَابن عباس رضي الله عنه نه مروي دى چې اطلاع على الغيب، نه مراد په لوح محفوظ کښ کتل دي،يعنى آياده خپل قسمت په لوح محفوظ کښ کتلي دې؟

﴿أَمِ ٱتَّخَذَ عِندَ ٱلرَّحْمَٰنِ عَهْدًا﴾عهدنه مراد يااعمال صالحه، ايمان اوتوحيددې. نودَايت مقصد دادې چې آياده نيك اعمال، ايمان،اوپه توحيدباندې عقيده شته دې چې په هغې ده سره دَجنت وعده شويده، اوياعهدپه خپلي معنى يعنى دَوعدي سره دې، نودَايت مطلب دادې چې آياده سره الله ﷻ وعده دَنجات کړيده﴿كَلَّا ۚ سَنَكْتُبُ﴾كلا ،لفظ دَقرآن مجيدپه نصف اول کښ نيشته دې اوپه نصف اخيرکښ دري ديرش(۳۳) ځلي راغليدې، اودا اول موضع دې، لفظ دکلا، په دوه(۲) معنيو کښ مشترك دې،کله په معنى دَحقاسره وي اوکله په معنى دَ لا ،سره وي، کله چې

په معنی دحقا سره وي دیته کلا حقا.وائی اوچي په معنی د. لا.سره وي دیته ردعیه وائی اودینه علاوه کله کله مجازا استعمال ئی په ایجاب اوکله په تنبیه کښ هم کیږي. ابن الانباری دابوالعباس نحوی نه نقل کړیدی چي په کلا ،باندی وقف کول جائزندي مطلقا. لیکن دجمهورو رائ داده چې په کوم ځائ کښ. کلا .صله دقسم لپاره. واقع شي لکه کلاّ والقمر(المدثر ۳۲) یالکه کلاورب الکعبة. شو چې یدي مواضعوکښ.کلا.په معنی دای حرف ایجاب سره دي اوصله دقسم لپاره واقع شویده نوپه کلا باندې وقف کول جائزندي.اودینه علاوه په کوم ځائ کښ چي کلاحقه وي نوهلته په ماقبل دکلا،باندې وقف کول مستحسن دی اوپه کلا باندې ابتداء مستحسنه ده اوداپه قرآن مجید کښ په دیارلس(۱۳)مواضعوکښ راغلیدې. اوچي په کوم ځائ کلا،ردعیه وي نوهلته په کلا، باندې وقف مستحسن دې، مانحن فیه هم دَدغي قبیلي نه دې اوکوم ځائ کښي په کلاّ کښي دواړه احتمالات وي هلته وقف هم مستحسن دې اوابتداء هم مستحسنه ده اوداپه قرآن کښ لسو(۱۰)مواضعوکښ راغلیدي، اودینه علاوه دوه(۲) مواضع داسي دې چې هلته نه وقف مستحسن دې اونه ابتداء مستحسنه ده بلکه وصل مستحسن دې دماقبل سره،یو(۱) ثم کلاسیعلمون(النباء:۵)او(۲)ثم کلاسوف تعلمون(التکاثر)،ابتداء ځکه مستحسنه نده چې وقف راځي په حروف عاطفوباندې،اوپه کلا باندې وقف ځکه مستحسن ندې چې فائده(کلا)په مابعد کښ ده.

﴿سَنَكۡتُبُ﴾ (۱)مرادتنه محفوظ کول دی لپاره دبدلی ورکولو،ای سنحفظ علیه قوله، فنجازیه به ف الاخرة(قرطبی)(۲) اویاتنه مراد ظاهره ول دي یعنی مونږ به دَه ته اوښایوچې ستاخبري مونږه لیکلي وي، (کشاف)(۳)اوبعض فرمائی چې(سین)لپاره دتاکیددي او﴿سَنَكۡتُبُ﴾کتابت حالی مراد دې اومجازفی الاسناد دې په کلام کښ ځکه چې کتابت ملائك کوي په حکم دالله ﷻ سره،اود﴿مَا يَقُولُ﴾نه مراد دَهغه والادعویٰ ده چې﴿لَأُوتَيَنَّ مَالاً وَوَلَدًا﴾.

﴿وَنَرِثُهُۥ مَا يَقُولُ﴾مرادتنه اغستل اوسلب کول دَهغه مال اواولاد(بحر)ویاتینافردا فردپه معنی دمنفردسره دې یعنی بالکل تن تنهابه زمونږ مخي ته راځي،نه به ورسره اولادوي نه به مال وي اونه به قبیله وي (قرطبی).

﴿وَاتَّخَذُوا مِن﴾ دابل زجردې په آلهونيولوسره﴿لِيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا﴾ .عز په معنی د عون دانصاروسره دې.چې داسبب دعزت اونصرت دې په دنياكښې.﴿كَلَّا ۚ سَيَكْفُرُونَ ﴾كلا . ليږه دردع دې اورد دې دمشركينو دخيال،چې دوئ دكوم مقصدلپاره دالله ﷻ سره شريكان كرخولي دي چې په آخرت كښې زمونږ سفارش كوي اوزمونږ نه به عذاب لرې كوي نوداغرض اومقصدبه ددوئ هركزپوره نشي،بلكه دامعبودان به دقيامت په ورځ ددوئ دعبادت نه به انكاركوي.اوددې مشركينومخالف به شي،اوضميرپه﴿سَيَكْفُرُونَ ﴾كښې دغوره قول مطابق راجع دې. معبودان او،آلهو،ته اوبعض فرمائى چې ضميرراجع دې كفاروته يعني قيامت په ورځ به داكفار به دعبادت نه منكرشي لكه په سورة الانعام كښې دى، والله ربّناماكنّا مشركين(انعام:۲۳).

﴿وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا﴾ضدپه معنیٰ دمخالف سره دې،اودامقابل دې دعزّا .اولفظ دضدمفرد راوړى شو حالانكه داخبردې دجمعى نه،نوبعض وجه دافرمائي چې ضد،مصدردې اومصدرسره توصيف دجمعي كيدې شي، (بحر) اوبعض فرمائى چې ﴿ضِدًّا﴾ مفرد مقابلةً ذكرشويدې ځكه چې دې په مقابله د﴿عِزًّا﴾ كښې راغليدې او﴿عِزًّا﴾ ،مصدردې نولهذا﴿ضِدًّا﴾هم مقابلةً مفرد ذكركړې شو،اوبعض فرمائى چې ضميرد﴿وَيَكُونُون﴾راجع دې كفاروته،او﴿عَلَيْهِم ﴾ ضميرراجع دې معبودانوته يعني داكفاربه دخپلومعبودانوسخت مخالف به شي، اوضدًا، مفردځكه راوړى شو چې دوئ ټول به په ضديت كښې داسي متفق وي لكه چې دوئ په منزله دواحدوي.

| أَلَمْ تَرَ أَنَّآ أَرْسَلْنَا الشَّيٰطِينَ عَلَى الْكٰفِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴿۸۳﴾ |
|---|
| [1]آياته نه ئى خبرچې بيشكه مونږه پريخي دى شيطانان په كافرانو باندې چې راخوټكوي(تيزه وى) دوئ په راخوټكولو سره |

[1] زجر.

فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا ﴿٨٤﴾ يَوْمَ

[2] نوتلوارمه كوه ته په دوئ باندي (دعذاب) بيشكه مونږه شماربوره كوو دوئ لره په شمارلوسره [3] په كومه ورځ

نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمَٰنِ وَفْدًا ﴿٨٥﴾ وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴿٨٦﴾

چې راجمع به كړو مونږ متقيان رحمن ته په حيثيت دميلمانو [4] اواوبه شړو مجرمان جهنم ته تږي.

لَا يَمْلِكُونَ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿٨٧﴾

[5] اختياربه نه لري دسفارش كولومګرهغه څوك چې اخستى دده په نيزدرحمن وعده

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّا﴾ دابل زجردې په اتباع دشيطانانوسره، چې مونږ په دوئ باندې شياطين مسلط كړيدي چې هغوئ دوئ په ګناهونوباندې تيزه وي، مراد په ارسال سره تسلط وركول دي شياطينوته لكه په سورة بنى اسرآئيل، ايت نمبر(۶۴)كښې هم تيرشويدي. اويا ارسال. ماخوذ دي دارسلت البعير، نه چې اوښ ازاد پريخودلى، نودايت مقصد دادې چې مونږه شياطين اوكفاردتعلق جوړه ولولپاره په خپل مينځ كښې ازادپريخى دي، اوڅه قسم ركاوټ موندي پيدا كړې اوكچرته الله ﷻ اراده كړي وى نوپه زبردستئ سره به ئى منع كړي وو (كشاف) ﴿تَؤُزُّهُمْ أَزًّا﴾، از،هز، استفزاز، تولو معنى يوه ده، وئيلى كيږي په يوكارباندې څوك تيزه ول، رااوچتول وغيره، نودايت مطب دادې چې شياطين دوئ ته وسوسې واچوي اوګناهونه ورته خائسته ښكاره كوي نودوئ په هغې پسې روان شي، اودخواهشاتواتباع اوكړي،اوداجمله په محل دنصب كښې واقع ده بناء برحاليت مقدره د ﴿الشَّيَاطِينَ﴾ نه اويا جمله مستانفه ده چې واقع ده په سوال دسائل كښې، چې كله اوئيلى شو چې﴿أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِينَ﴾ نوسائل ګوياچې سوال اوكړو چې. فماذا تفعل الشيطين بهم؟

---

[2] تسلي براى رسول الله ﷺ
[3] بشارت اخروى
[4] تخويف اخروى
[5] خصوصيت سورت.نفى شفاعت قهري .

﴿فَلا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ﴾ داتسلي ده رسول الله ﷺ ته.يعنى ته ددوئ دسركشئ دوجي نه به دري باندي دَعذاب تلوارمه كوه،عذاب پدوئ باندې خامخا راتلونكى دې. خودهغې لپاره يووخت مقرردې﴿إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ﴾عد شمارته وئيلى كيږي نومراد تنه ياشماردشپو. ورځو. مياشتو اودكالونودې، نودَايت مقصد دادې چې ددوئ دَزندګئ شپې اوورځي محدودې پاتې دي. اوياتنه دَانفاسو شمارمراد دې، اوداهم كنايه ده قرب هلاكت ددوئ نه.ددواړو توجيهاتو.په بنا داجمله علت دې دَماقبل جملي يعنى نهى،لپاره.

﴿يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ﴾ دابشارت اخروى دې او﴿إِلَى الرَّحْمَٰنِ﴾ نه مراد ذات دَرحمان ندې بلكه ددينه مراد هغه مقام دَعزت اوكرامت دې چې په هغې كښې تجليات اوانوارات دَرحمان به وي چې هغه جنت دې، (فتح)او"وفد"وئيلى كيږي دهغې كسانوجماعت ته چې هغوئ يوبادشاه ياپولوئ اميرته په اعزازاواكرام سره ځي،اوبياچونكه غالباًددغه شان كسانوسره سورلئ،هم وي نوددې وجه نه دَوفد، اطلاق په ركبانوباندې هم كيږي،نودَايت مقصدداشوچې دَقيامت په ورځ به متقيان خلك به دَالله ﷻ ميلمانه وي اوپه خائسته،خائسته سورلوباندې به سواره وي اودَالله ﷻ ديداراودَهغه جنت ته به روان وي،(اللهم ارزقنابفضلك وبكرمك امين) اوداسورلئ به يادَدوئ اعمال وي يعنى دَدوئ اعمالُ نه به دَدوئ لپاره محبوبې سورلئ جوړي كړې شي، لكه ابن كثير رحمه الله دَابن ابى حاتم په سندسره دَابن مرزوق رحمه الله نه نقل كړيدې چې،مؤمن چې څرنګه دَقبرنه راپاسي نودَدعمل به دَيوخائسته صورت اوپاكې خوشبوسره دَده قبرسره ولاړوي، نوداموٴمن به ورنه تپوس اوكړې چې ته څوك ئې؟ نوعمل به ورته اوائې چې ته مانه پيژنې؟ مؤمن به ورته اوئې چې نه،صرف دومره دى پيژنم چې يوخائسته صورت اوپاكې خوشبووالائې، نودې به ورته اوائي چې ځه ستانيك عمل يم اوځه په دنياكښې هم دغه شان ووم،اوځه په دنياكښې يواوږد وخت پورې په تاباندې سورووم نن ته په ماباندې سورشه، اوددې برعكس دكافر، فاسق عملونه به دَيوبيكاره اوبدبوداره سورلئ په صورت كښې به راويستلى شي(اعاذناالله منها) اوبعض فرمائى چې داسورلئ به دَجنت نه راويستلى شي اوهرنيك انسان ته به دهغه محبوبه سورلئ پيش كړې شي اوپه هغې به كيني اوجنت ته به روان شي.

**فائده** په حديث دبخاري اومسلم کښې دي چې حضرت ابن عباس﷛ فرماني. قام فينا رسول الله ﷺ بموعظة فقال النبي ﷺ يايها الناس انکم تحشرون الى الله تعالى حفاة عراة غرلا الخ نو ددينه معلومه شوه چې حشر د انسانانو به پيدل کيږي. او د ماقبل نه معلوميږي چې په سورلئ به سواره وي. نو بعضو تطبيق. داسي کړيدې چې تر ميدان حشر (موقف) پورې رانلل به حفاة وي او بيا دهغې نه پس مراحل جنت ته داخليدل وغيره، دا به په سواريو سره وي. او بعض فرماني چې ځني نيك بخته خلك به داسي وي چې د قبرنه پاسيدلو سره هغوي ته سوارى اولاړه وي. اوميدان حشرته او بيا دهغې نه ورستومنازلو ته به سوارئ لاړشي نو ابن عباس﷛ روايت عام مخصوص منه البعض دې

﴿وَنَسُوقُ ٱلْمُجْرِمِينَ﴾ سوق وئيلى کيږي رابنکلو. اوزبردستئ بوتللو. ته او ورد. په اصل کښې وئيلى کيږي اوبوته راتلونکي جماعت ته. اوبيا نوم اوګرځيدلو دَ تږي لپاره ځکه چې څوك اوبوته راځي نو هغه غالباً تږى وي. (کبير) اونصب دَ ﴿وِرۡدًا﴾ بناء برحاليت دې، چې دې حال واقع شويدې دَ ﴿ٱلْمُجْرِمِينَ﴾. نه نو دَ ايت مقصد دادې چې مجرمانو په جهنم ته بوتللو حالت به داسي وي لکه څرنګه تږى اوښان اوبوته شړلې کيږي، نوداکلام محمول دې په تشبيه باندې، مشبه به محذوف دې نو تقدير دَ عبارت داسي دې، ونسوق المجرمين کماتساق البهائم الى جهنم وردا (روح) او داتشبيه په استخفاف او اهانت کښې ده. اويا ﴿وِرۡدًا ﴾ منصوب دې بناء پدې چه دې مفعول له دې دَ ﴿وَنَسُوقُ ﴾ لپاره، نو اصل کښې داسي دې. الى جهنم للورد لکه جنتك اکراما اى للاکرام.

﴿لَّا يَمۡلِكُونَ ﴾ پدې کښې نفي دَ شفاعت قهري ده، اوپدې ايت کښې ډيرتوجيهات دي. ځکه چې ضمير دَ جمعي (۱) ياراجع دې ټولومخلوقاتوته چې په هغې دلالت کړيدې ذکر دَ ددو (۲) فريقينو چې متقيان، اومجرمان دى (۲) اوياراجع دې ماقبل کښې مذکوردوو (۲) فريقينوته. (۳) اوياراجع دې فقط متقيانوته (۴) اوياراجع دې فقط مجرمانوته. او دَ شفاعت نه مراد (يا) شافعين دى اويا مشفوع له مراد دې.

(۱) که ضمير راجع شي ټولومخلوقاتوته او دَ شفاعت نه مراد شفاعت دَ شافعينو شي نو استثناء به په ﴿إِلَّا مَنِ ٱتَّخَذَ﴾ کښې به متصله شي او دَ ﴿عَهۡدًا﴾ نه مراد ياعهد توحيد دې يعنى لااله الاالله.

ويونكي. اوياتنه مرادحكم او اذن. دې اوماخوذ دې دعَهَدَ الامیرالی فلان. نه چې په معنی دَامراوحکم سره دې، نومعنی به ئی داشي دَايت چې هيڅ څوك بهٔ دَشفاعت مالك نوي مګرهغه څوك به شفاعت کولی شي (الف)چې موحدوي(ب)ياهغه څوك چې رحمان ورته اجازت ورکړې وي

(۲)که ضمیرراجع شي تولومخلوقاتو اوشفاعت نه مراد مشفوع له پهٔ حق کښ شفاعت شي نودَعهدانه مراد توحیددې،اواستثناء پدي صورت کښ هم متصله ده،دَايت معنی به داشي چې څوك به هم مالك نوي دَشفاعت کولودَبل چالپاره مګردَهغه مشفوع له لپاره به کولی شي چې هغه موحدوي يعنی خاتمه ئی په توحيدشوي وی(۳، ۴) دغه شان دادواړه احتمالات په هغې صورت کښ هم دي چې ضميرراجع شي متقيانواومجرمانوته.

(۵)که ضمیرراجع شي فقط متقيانوته، اوشفاعت نه مراد دَشافعينوشي اوعهدا نه مراد به اذن وي، نواستثناء پدي صورت کښ هم متصله ده، دَايت معنی به داشي چې مالکان به نوي متقيان دَشفاعت کولومګرپه اذن دَرحمٰن سره.

(۶)که ضمیرراجع شي فقط متقيانوته اودَشفاعت نه مراد مشفوع له شي،نودَايت معنی به داشي چې،مؤمنان به مالکان نوي چې دَچاپه حق کښ شفاعت اوکړي مګردَهغه مشفوع له په حق کښ به کولی شي چې دَهغه خاتمه په توحيدباندې شوې وي.

(۷)که ضمیرراجع شي مجرمانوته اوشفاعت نه مرادشافعينوشفاعت شي نودَعهدا نه مراد په عهدتوحيدوي، اواستثناء به پدي صورت کښ منقطعه وي دَايت معنی به داشي چې مالکان به نوي مجرمان دَشفاعت کولودَهيچالره،ليکن هغه څوك به دَشفاعت کولومالك وي چې حاصل کړې وي عهددَتوحيد.

(۸)که ضمیرراجع شي مجرمانوته اوشفاعت نه مراد شفاعت ياب کيدل(مصدرمجهول) شي، اوعهدا نه مراد به عهدتوحيدشي، اواستثناء پدي صورت کښ هم منقطعه ده نودَايت مقصد به داشي چې نوي به مالکان دامجرمان چې شفاعت ياب شي ليکن موحدين به شفاعت ياب کيدلی شي.ددینه علاوه نورتوجيهات هم دی چې ذکرکړيدي علامه زمخشري وغيره په خپلو تفاسيروکښ.

وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا ﴿٨٨﴾ لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا اِدًّا ﴿٨٩﴾ تَكَادُ

[1]وواٸی دوئ چې نیولي دې رحمن ځان له ولد(نائب). بیشکه راغلئ تاسوخبرې ډېرې ناکارې ته چې نزد دي چې

السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنْشَقُّ الْاَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ﴿٩٠﴾ اَنْ

سمانونه اوچوي ددي خبرې دوجې نه اواوشليږي زمکه اوراپرېوځي غرونه دړې وړې. ددې وجې نه

دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا ﴿٩١﴾ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لِلرَّحْمٰنِ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا ﴿٩٢﴾ اِنْ كُلُّ

چې بللي دوئ رحمان لره ولد اونده مناسب رحمان لره چې اونیسي ولد. ندي ټول هغه چې

مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلَّآ اٰتِي الرَّحْمٰنِ عَبْدًا ﴿٩٣﴾ لَقَدْ اَحْصٰىهُمْ وَعَدَّهُمْ

په اسمانونوکښ دي اوپه زمکه کښ دي مګرراځي رحمان ته په بندګئ سره بیشکه راګیرکړي دي الله ﷻ دوئ اوشمارکړيدي

عَدًّا ﴿٩٤﴾ وَكُلُّهُمْ اٰتِيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَرْدًا ﴿٩٥﴾

په شمارسره.اودوئ ټول به راځي الله ﷻ ته په ورځ دقیامت یواځي یواځي(تش تور)

﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ﴾ دااعاده ده دشکوی دسورة الکهف، دسورة الکهف په ابتداء کښ الله ﷻ فرمائیلی وو چې وینذرالذین قالوا اتخذ الله ولدا،نوبیادهغې نه ورستوپه سورة الکهف اومریم کښ دمشرکینودشبهاتو ازاله اوکړې شوه،دازالې دشبهاتونه پس دسورة الکهف دشکوی اعاده اوکړې شوه،چې دوئ الله ﷻ ته نسبت دولدکوي.اودالله ﷻ لپاره نائب متصورکوي.حالانکه دالله ﷻ لپاره نائب اویادالله ﷻ نه علاوه بل جاته،کارسازاومتصرف ونیل عظیم جرم دي. ﴿لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا﴾ داالتفات دي دغیبت نه خطاب ته لپاره داظهاردکمال شفاعت ددوئ دقول. ﴿ادا﴾ په معنی دعظیم المنکریعنی ډېرناکاره سره دي

﴿تَكَادُ السَّمٰوٰتُ﴾ داپه موضع دصفت کښ ده د﴿اِدًّا﴾ لپاره،چې ددوئ قول داسي ناکاره دې چې قریبه ده چې اسمانونه ټکړې ټکړې شي اوزمکه اوچوي اوغرونه دړې وړې شي ددوئ

(1) شکوی

ددي خبري دوجي نه. پديكښ اشاره ده چې شرك مفضي دې فساد دَنظام ته اوتوحيد مفضي دې صلاح دَعالم اونظام ته، كمايدل عليه الحديث لاتقوم الساعة حتى يقال فى الارض الله الله الخ ان دَعَوا الخ دلته لام تعليليه مقدردې. داعلت دې دَماقبل (فسادعالم) لپاره. دعا يا په معنى دتسمي سره ده اى سموا للرحمٰن ولدا (فتح) او يا په معنى دَ نسبت سره دې. اى نسبوا للرحمٰن ولدا

﴿وَمَا يَنۢبَغِي لِلرَّحۡمَٰنِ﴾ پديكښ رددې دَقول دَمشركينو په اعتبار دَمانع عقلي سره چې دَاتحاد ولد لره مانع عقلي موجوددې. اودَماينبغى. استعمال په دوو (۲) معانيو كښ دې (۱) په معنى دَعدم جوازسره دې (۲) په معنى دَغيرمناسب سره دې. اول معنى په صورت كښ. ينبغى به دَباب انفعال نه. شي چې مطاوع دَباب تفعيل دې نودې به مطاوع شي دَبغى، په معنى دَطلب سره. اووجود دَشئ مطلوب ورستو دَطلب نه وي، لكه كسرتُه فانكسر. نودلته هم وجود دولد ورستودَطلب دَ الله ﷻ نه وي. نودلته نفي دَطلب دَولدراغليده چې داديراوكده ده په، نسبت دَنفي دَذات ولدنه، نودَايت معنى به داشي الله ﷻ طالب دَولد ندې اوكه چرته بالفرض الله ﷻ دَخپل خان لپاره دَاولاد طالب وي نوبياهم دَالله ﷻ لپاره ولد راتلل ممكن نوو (كشاف) اودويمي معنى په صورت كښ هم دَايت مقصدبالكل واضح دې چې، ولددَالله ﷻ دذات سره مناسب ندې دهغه دَشان خلاف دې ځكه چې نقص لره مستلزم دې په واجب تعالى كښ ځكه چې دامستلزم دې تركيب لره، ځكه چې والدوئيلى كيږي ديته چې دهغه انفصال دَجزاوشي اودې دهغې دَمثل لپاره مبدا اوګرځي. اوانفعال دَ جزدمستلزم دې نقصان لره په منفصل عنه كښ، اودغه شان تماثل وغيره هم لازميږي چې تفصيل ئې مخكښ تيرشويدې.

﴿إِن كُلُّ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دامانع شرعي ذكركيږي دَاتخاذ ولدلپاره چې څرنګې عقلا دَالله ﷻ لپاه ولد راتلل محال دي، نودغه شان شرعاهم محال دې ځكه چې هرڅه چې پدي كائنات اومخلوقاتو كښ دي داټول دَالله ﷻ مملوك دي، او دَولديت اومملوكيت په مينځ كښ منافات دې. ولد مملوك نشي جوړيدې اودَدې وجه نه چې ولدمملوك نشي جوړيدې الله ﷻ ولديت اوعبديت په طرفينودَتقابل كښ ذكركړل، نومملوكيت ئې ثابت كړو اوولديت خودبخود نفي شونومعلومه شوه چې الله ﷻ دَپاره ولدنيشته. (قرطبى) اوانِ نافيه دې، او كل دَاستغراق حقيقى لپاره دې.

﴿لَقَدْ أَحْصَىٰهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا﴾ احصی، په معنی داحاطي سره دي.يعنی هرڅه دالله ﷻ دامر اوتدبيراودقدرت دلاندې دي اوالله ﷻ په ټولوباندې محيط دی، اوداټولوپه تفاصيلوباندې عالم دې (کبير) ﴿وَكُلُّهُمْ ءَاتِيهِ﴾ دااهم رد دې په عقيدې ددوئ باندې په اعتبار داثبات دعجزسره اوفرداً. نه مراد منفرد اوخالي والی دې دمددګارانو اواموالو وغيره نه

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمَٰنُ |
| [1]بيشکه هغه کسان چې ايمان ئې راوړيدې اوعمل ئې کړيدې نيک زړده چې پيدابه کړي دوئ لره رحمن |
| وُدًّا ﴿٩٦﴾ فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ |
| مينه په زړونو دخلکو کښې، [2]پس بيشکه اسان کړيدې مونږ داقرآن په ژبه ستاپاره ددې چې زيری ورکړې په دې سره |
| الْمُتَّقِينَ وَتُنذِرَ بِهِۦ قَوْمًا لُّدًّا ﴿٩٧﴾ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هَلْ تُحِسُّ |
| متقيانوته اواويره وې په دې سره قوم جګړمار[3]اوډېرهلاك کړيدي مونږ مخکښې ددوئ نه قومونه آياوينې ته |
| مِنْهُم مِّنْ أَحَدٍ أَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًۢا ﴿٩٨﴾ |
| ددوئ نه يوکس اوياأوري ته دوئ لره څه کشار |

﴿إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ پدې کښې بشارت دې مؤمنانوته اوپه لفظ د﴿وُدًّا﴾ کښې واو په حرکات ثلاثوسره منقول دې، وَد، وِد،وُد،اوداصدرهم راځي،صفت هم راځي اود وديد، دمبالغې په معنیٰ سره هم راځي،پدې ايت کښې څلور(۴)توجيهات دي(۱) ددې مطلب دادې چې دخلکو په زړونوکښې به الله ﷻ دنيکانومحبت واچوي، اوددې تائيدپه مشهورحديث سره هم کيږي چې دحضرت ابوهريرة ﷺ نه منقول دی فرمائی چې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو. انّ الله

---

[1] بشارت

[2] دامتعلق دی دټول سورت سره او اعاده دشکوی دسورة کهف.بطريقه لف نشرغيرمرتب

[3] تخويف دنيوی

اذا احبّ عبدا دعاجبرئيل الطَّيْلا فقال انى احب فلانا فاحبه، فيحبه جبريل الخ چې الله ﷻ كله ديوبنده سره محبت كوي نوجبرئيل الطَّيْلا ته اوائي چې څه دفلانى بنده سره محبت كوم ته ورسره هم محبت كوه نوحضرت جبرئيل الطَّيْلا ورسره محبت شروع كړي. بياحضرت جبرئيل الطَّيْلا اسمانونو والوته اعلان اوكړي چې الله ﷻ دَفلاني سره محبت كوي نوتاسوهم ورسره محبت كوئ. نواسمانونووالاورسره محبت شروع كړي، اوبيادَهغه لپاره په زمكه كښې مقبوليت اومحبوبيت پيدا كړې شي.

**دويمه توجيه** داده چې دنيك اعمالو په وجه سره ددوئ په.زړونو كښې خپل محبت به واچوى. **دريمه توجيه** داده چې په خپله به الله ﷻ دوئ سره محبت كوي. او **څلورمه توجيه** داده چې دَ ﴿وُدًّا﴾ نه مراد مقام محبت دې چې جنت دې.

﴿فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ﴾ دامتعلق دي دَابتداء دَسورت سره. چې دَ اتخاذ ولد دَنسبت نه ځان بچ كوونكو لپاره خوشخبري اوره ول اودالله ﷻ ته دَولدنسبت كوونكوته يره اوره ول دى،تيسيرنه مراد نازله ول دى﴿بِلِسَانِكَ﴾ باء په معنى دَعلى، سره ده اوفاء په ﴿فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ﴾ كښې دَتعليل لپاره ده. اودَلسان نه مراد لغت عربيه دې نودَايت مطلب دادې چې ته تبليغ كوه اوپيدي قرآن سره خلكوته بشارت وركوه اودَالله ﷻ دَعذاب نه ئي يره وه څكه چې مونږ تاته داقرآن اسان (كشاف).

﴿وَتُنذِرَ بِهِۦ قَوۡمٗا لُّدّٗا﴾لد جمع دَ "الد" ده وئيلى كيږي شديدالخصومة په باطله سره اوډيردروغژن ته هم وئيلى كيږي، دلته تنه مرادهغه خلك دي چې نسبت دَولدئي الله ﷻ ته كړيدي.

﴿وَكَمۡ أَهۡلَكۡنَا﴾ داتخويف دنيوي دې په اخيركښې، اودَتخويف په ضمن كښې دَرسول الله ﷺ سره دَمشركينودَهلاكت وعده هم كيږي،يعنى دَدوئ نه مخكښې ډيرمعاندين هلاك كړې شويدي اونوم نشان ئي په دنياكښې نيشته دې،نوستادَدښمنانو حشربه دغه شان وي،(روح)او﴿وَكَم﴾ پدي مقام كښې خبري دې،﴿هَلۡ تُحِسُّ﴾ "تحس" ياپه معنىٰ دَتجدسره دې اوياپه معنىٰ دَترى سره دې.اوركزا وئيلى كيږي الصوت الخفى،يعنى كشارته چې نطق په حروفو سره پكښې نوي،اودَاكنايه ده دَهلاكت استيصال نه چې نوم اونشان ئي هم پاتى نشوداسي موهلاك كړل (روح).

**ربط اول مع الاخر** نومعلومه شوه چې نيك اعمال سبب د رحمن الهي دي ﴿ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُۥ زَكَرِيَّآ ﴾ اوبد اعمال سبب دهلاكت دی، اودنیك اعمالوپه وجي سره، نداء خفی. ته شرف قبوليت حاصليږي ﴿إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥ نِدَآءً خَفِيًّا﴾ اوپه بداعمالوسره صوت خفی هم دانسان هلاك كيږي اوختميږي. والله اعلم

**ختم شد تفسير سورة مريم. بتوفيق الله تعالى وعونه، ۱۱ رمضان سنه ۱۴۳۲ھ بيوم الجمعة المباركة**

| رکوع | سورة طٰهٰ مكية | آيونه |
|---|---|---|
| ۸ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۱۳۵ |

خاص په نوم د الله سره چه بيحده مهربان او ډير رحم کوونکې دې شروع کوم

## رقمها حسب التسلسل (۲۰) وحسب النزول (۴۵)

**تفسيرسورة طٰه**: سورة طٰهٰ مكي سورت دې. استثنى بعضهم الاية فاصبرعلى مايقولون(۱۳۰) وبعضهم الاية، ولاتمدن الخ(۱۳۱)فانهامدنية اوديته سورة كليم هم وائي ځکه چې پديکښې واقعه د حضرت موسٰى كليم الله عليه السلام په تفصيل سره ذكرشويده.

ترتيب قرآني کښې شلم(۲۰) نمبر اوپه ترتيب نزولي کښې پنځه څلويښتم(۴۵) نمبرسورت دې زمانه دنزول ئې دحضرت عمر رضي الله عنه نه دَاسلام راوړلونه مخکښې ده،(۱۳۵) ايتونو (۸) رکوعاتو (۱۳۴۱)يا(۱۲۴۱)كلماتو او(۵۲۴۲) حروفوباندې مشتمل دې.

**فضائل**: عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم انّ الله تبارك وتعالى قراءَ طٰهٰ ويٰس قبل ان يَخلق السّموات والارض بالفى عام فلماسمعتِ الملائكة القرآن قالت طوبىٰ لامة ينزل عليها هذا، طوبىٰ لاجواف تحمل هذا،طوبى لالسنةِ تكلمت بهذا.ترجمه: حضرت ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلوچه بيشکه الله تعالى دَاسمانونواودزمکې دپيدائش نه دوه(۲۰۰۰)زره کاله مخکښې دَسورة طٰهٰ اويٰس تلاوت اوکړو نوچه کله ملائکوقرآن واوريدلونواوئيل ئې چه خوشحالي ده دهغې امت لپاره چې داقرآن پرې نازليږي،خوشحالي ده دهغې زړونولپاره چې داقرآن به اوچته وي(ياده وي)خوشحالي ده دَهغه ژبولپاره چې پدې قرآن سره به تلاوت کوي.

دې حديث ته حافظ ابوحاتم بن حيان موضوعي وئيلي دي اونورو محدثينوورته ضعيف اومنكروئيلي دى، اوحقه خبره داده چې ضعيف دې ځکه چې دَدې په سندکښې ابراهيم بن مهاجربن مسمار اودَهغه شيخ عمربن حفص بن ذكوان ضعيف رواة کښې دي.

عن ابي امامة رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال كل قرآن يوضع عن اهل الجنة فلايقروؤن منه شيئا الاسورة طٰهٰ ويٰس فانهم يقروؤن بهما فى الجنة.ترجمه: دَحضرت ابوامامة رضي الله عنه دَنبي صلى الله عليه وسلم نه نقل کوی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلوچې دَجنتيانوبه دَقرآن مجيد دَټولو سورتونو تلاوت ذمه داری ساقطه کړې شي، سيوا دَطٰهٰ اويٰس چې جنتيان به دَدې تلاوت په به جنت کښې کوي.

**ربط**:دسورة طٰه ربط اسمي دماقبل سره داسي دې چې په سورت مريم کښې دحضرت مريم عليها السلام دحالاتو نه معلومه شوه چې هغه اوحضرت عيسى عليه السلام متصرف اوکارسازنوو نواوس په سورة طه کښې اعلان کيږي چې ﴿إِنَّنِي أَنَا ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠﴾ يعنى اى موسى عليه السلام دټولو مخلوقاتو کارسازخه يم نولهذا خماعبادت کوئ (۲)دغه شان په سورة مريم کښې ربط قلبى دحضرت مريم اوعيسى عليه السلام وغيرهما ذکرشوپه سورت طه کښې ربط قلبى درسول الله دموسى عليه السلام اودهغه متبيعينوساحرانو والاذکرکيږي.

**ربط مضموني**:دسورت مريم سره داسي دې (۱)چې په سورت مريم کښې دحضرت مريم عليها السلام عيسى عليه السلام ،ابراهيم عليه السلام اووغيرهم دواقعاتوپه ضمن کښې مسئله توحيد ،رسالت اوقيامت ذکرکړې شوه، په سورة طه کښې دحضرت موسى عليه السلام دواقعي په ضمن کښې دغه مضامين ذکرکيږي(تهانوى رحمه الله)(۲)دغه شان په سورت الكهف اومريم کښې په توحيدباندې دشبهاتوجوابونه اوکړې شونوپه سورت طٰه کښې دتوحيد په تبليغ باندې تشجيع ورکولې کيږي چې دامسئله په بهادرئ سره بيان کړه لکه چې څرنګې موسى عليه السلام بيان کړي وه(۳)دغه شان په سورت مريم کښې نفي دشفاعت قهري شوي وه نوپه سورت طه کښې هم دغه نفي په تاکيدسره کيږي(۴)دغه شان په سورت مريم کښې حکم وو دصبراوداستقامت په عبادت باندې نوسورت طه کښې په مشقت کښې ځان غورځولونه ممانعت،اودصبراواستقامت نمونه ذکرکيږي په واقعې دموسى عليه السلام سره ،(۵)دغه شان دسورت مريم په اخيرکښې دمنکرينوهلاکت اجمالاً ذکرشوې وو نوپه سورت طه کښې دهغې تفصيل ذکرکيږي. **دعوىٰ دسورت** دسورت دعوىٰ تشجيع ده په دعوت اوتبليغ باندې. **مختصره خلاصه**:پدې سورت کښې دوه(۲)مضامين بنيادي طورمذکوردي يوتوحيداودويم تشجيع،آيتونه دتوحيد پنځه دي، اوايتونه دتشجيع هم پنځه دې اويوه پکښې تفصيلا واقعه ده،موسى عليه السلام اوبله واقعه دمختصراً دحضرت آدم عليه السلام بيانيږي لپاره دتشجيع، اوځه پکښې دلائل عقليه ، زجرونه،بشارتونه ذکرکيږي، اوپه اخيرکښې امرمصلح هم ذکرکيږي.

**تفصيلي خلاصه**:په ايت نمبر(۲، ۳)کښې تشجيع ده اوپه ايت نمبر(۴ تا ۹)کښې مسئله توحيدده دايت نمبر(۹)نه ترايت نمبر(۹۸)پوري واقعه دموسى عليه السلام ذکرکيږي چې دامشتمله ده په شپږومقاماتوباندې اول مقام دايت نمبر(۹)نه ترايت نمبر(۲۴)پورې دې، اوبيادٰ ايت

نمبر(۲۵)نه ترايت نمبر(۴۳)پوري دويم مقام دواقعي مذكوردي. اودريم مقام دايت نمبر(۴۳)نه ترايت نمبر(۵۲)پوری دي،اوپه ايت نمبر(۵۳، ۵۴، ۵۵) كښ ادخال الهی دي لپاره دذكر ددلائلو عقليو په توحيدباندی، اوبيادايت نمبر(۵۶)نه څلورم مقام دواقعي ذكركولی شي ترايت نمبر (۷۶) پوری، چې پدي كښ دساحرانوايمان راوړلوذكردي.اودايت نمبر(۷۷)نه ترايت نمبر (۸۲)پوري پنځم مقام دې چې پدي كښ نجات دمؤمنانواوهلاكت دفرعونيانو ذكر كيږي. اودايت نمبر(۸۳)نه ترايت نمبر(۹۷)پوري شپږم مقام دې چې پدي كښ دموسى عليه السلام كوه طورته تلل اودقوم ګمراه كيدل اوبياتوبه ويستل وغيره ذكركيږي،اوپه ايت نمبر(۹۸)كښ بيامسئله توحيدذكركيږي، اوپه ايت نمبر(۹۹)كښ تشجيع ده اودايت نمبر(۱۰۰)تا(۱۰۸)كښ تخويف اخروي ذكركيږي اوپه ايت نمبر(۱۰۹)كښ نفي دشفاعت قهري ده،اوپه ايت نمبر(۱۱۱، ۱۱۰) كښ دليل عقلي دې په نفي دشفاعت قهري باندی، په ايت نمبر(۱۱۲)كښ بشارت. اوپه (۱۱۳)كښ ترغيب الى القرآن ذكركيږي اوپه ايت نمبر(۱۱۴)كښ ثمره دتوحيدبيانيږي،اوپه آيت نمبر(۱۱۵)تا(۱۲۳)پوري واقعه دحضرت ادم عليه السلام ذكركيږي،اوپه ايت نمبر(۱۲۴)تا(۱۲۷)كښ تخويفات اخروي ذكركيږي،اوپه ايت نمبر(۱۲۸، ۱۲۹)كښ تخويف دنيوي ذكركيږي، اوپه ايت نمبر(۱۳۰)كښ بياتشجيع ده، اوپه ايت نمبر(۱۳۱، ۱۳۲) كښ امرمصلح اوتزهيدفی الدنياذكركيږي،اوپه اخيري دري(۳)ايتونوكښ زجراوتخويف دنيوي ذكركيږي.

طٰهٰ ﴿۱﴾ مَآ اَنۡزَلۡنَا عَلَيۡكَ الۡقُرۡاٰنَ لِتَشۡقٰٓى ﴿۲﴾ اِلَّا تَذۡكِرَةً لِّمَنۡ يَّخۡشٰى

طه[1]ندي نازل كړي مونږه په تاباندی داقرآن چې په تكليف شي ته،مګردانصيحت دي دپاره دهغه چاچه يره لري

﴿۳﴾ تَنۡزِيۡلًا مِّمَّنۡ خَلَقَ الۡاَرۡضَ وَالسَّمٰوٰتِ الۡعُلٰى ﴿۴﴾ اَلرَّحۡمٰنُ عَلَى الۡعَرۡشِ اسۡتَوٰى ﴿۵﴾

[2]نازل كړي شوېدې دهغه ذات دطرف نه چې پيدا كړې ده زمكه او اسمانونه اوچت،هغه مهربانه ذات په عرش باندی متصرف دي

﴿طٰهٰ﴾غوره قول دادي چې دادمتشابهاتونه دي، چې په مراد باندی الله تعالى عالم دي،اوبعض فرمائی چې﴿طٰهٰ﴾په لغت عك، نبطية،اوحبشيه كښ په معنى دياړجل سړه دي.

(1) اول ايت دتشجيع.

(2) اول ايت دتوحيد.

اوبعض فرمائی چې داپه معنٰی دَیاحبیبی سره دې نوګویاچې دااسم صفتی دې دَرسول اللهﷺ اوبعض فرمائی چې داحروف مقطعات دی اوهرحرف په خپلی معنٰی باندی دال دې اوپه تعیین دَمعانیوکښې ډیراقوال دی چې طا دال دې په طوبٰی اوها دال دې په هاویه. نوداکنایه ده دَقسم نه په جنت اوجهنم باندی، دغه شان نورهم ډیراقوال دی خوټول تکلفات اوتعسفات دی

﴿مَآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ ﴾دااول ایت تشجیع دې، او﴿لِتَشْقَىٰٓ﴾شقاء نه دې اوشقاء لفظ استعمال په تعب اومشقت کښې کثیردې لکه وئیلی کیږی چې سیدالقوم اشقاهم، اشقی من رابض مهر .نودَایت مقصد دادې چې مونږ داقرآن په تاباندی ددې دپاره ندې نازل کړې چې ته دکفارودَایمان نه راوړلو دَوجې نه په تکلیف اوپه مشقت کښې اوغورزیږې اوخپل ځان په هلاکت کښې واچوې بلکه ستاکارصرف تذکیراوتبلیغ دې، اوبعض فرمائی چې داممانعت دَمشقت نه په باري دَمونځ کښې وو،چې رسول اللهﷺ به ډیراوږدقیام کولوحتی چې په خپومبارکوکښې ئې ورم(پړسوب) پیداشونوپدې سلسلې کښې داایت نازل شو ،داواقعه اګرچه په خپل ځائ باندی بالکل صحیح ده، لیکن په کوم روایت کښې چې دَدې واقعې ذکردې نوپه هغې کښې داتصریح نیشته دې چې دَایت دَنزول لپاره سبب داواقعه اوګرځیدله اودغه شان دَایت دَسباق اوسیاق سره هم مناسب اول تفسیردې.

﴿إِلَّا تَذْكِرَةً ﴾دااستثناء منقطعه ده په معنٰی دَلکن سره،اوقرآن اګرچه دَټولومخلوقاتو دَپاره ذریعه دَتذکری،ده خوتخصیص دَ،﴿لِّمَن يَخْشَىٰ ﴾ ځکه اوشوچې فائده اخستونکي په دې سره هغه صرف هغه خلك دي چې په زړونوکښې ئې دَاللهﷻ خشیت وي،اوکه څوك اشکال اوکړي چې خشیت خواثردَتذکری دې چې تذکره راشي نوخشیت پیداشي،نودَقرآن خشیت والودَپاره تذکره،کیدل تحصیل دَحاصل دې،(۱) جواب دادې چې دلته دَ ،﴿لِّمَن يَخْشَىٰ ﴾ نه مراد بالفعل صاحب خشیت ندې مرادبلکه بالقوة صاحب خشیت تنه مراددې یعني دهغه شان داوي چې هغه ته پدې قرآن اوریدلوسره خشیت حاصلیږي یائي اللهﷻ ته علم وي چې په دې قرآن اوریدلوسره اوپه تخویف سره ده ته به خشیت حاصل شي(۲)،اویاجواب دادې چې دَایت مقصد دادې چې داقرآن اللهﷻ نازل کړیدې اودَدې تاثیردادې چې پدې سره یوداسې جماعت تیارشویدې چې هغه صاحب خشیت دې اودامطلب ندې چې دوران خشیت کښې تذکره ده(۳)،اویامراتب دَخشیت

لاتقف عندحد،دې نوپه دوران دَخشیت کښې هم تذکره ده چې دَهري مرتبې دَخشیت نه ني فوقاني مرتبې ته رسوي(۴)اویاتنه مراد تثبت اوپوخ والی دې په خشیت باندې.

﴿تَنزِيلًا مِّمَّنْ﴾دااېت توحیددې چې کچرته تاته پدې دعوت اوتبلیغ کښې څه تکلیف میلاؤشي نوپه ښه په بهادرئی سره ئې برداشت کوه،ځکه چې دادهغې بادشاه اوشهنشاه حکم دې چې دزمکو اواسمانونوخالق دې، اوهرڅه دَهغه په علم اوقدرت کښې دې،او﴿تَنزِيلًا﴾منصوب دې بناء پدې چې دې بدل دې دَ،﴿تَذْكِرَةً﴾نه اوهغه حال دې دَ﴿ٱلْقُرْءَانَ﴾،نه اویا﴿تَنزِيلًا﴾مصدردې دَفعل مقدرلپاره،اى نزل تنزيلا. اوانتقال دَتکلم نه غیبت ته لپاره. دَتفخیم شان دَقرآن دې، ځکه چې اوّلا نسبت دَانزال دَقرآن الله ﷻ خپل ځان ته اوکړو چې داقرآن ځکه عظیم دې چې نازله وو نکی عظیم ذات الله ﷻ دې،اوپه دویم ځلی اسناد دَتنزیل په صیغې دَغائب سره خپل ځان ته اوکړو خوپه هغې صفاتوسره چې صفات دَعظمت اودَتمجید دی. نوتفخیم دوچندشو، او﴿ٱلْعُلَى﴾جمع دَعُلیاده لکه کُبرىٰ جمع کُبراوصُغرىٰ جمع صُغرراځي اوتوصیف دَآسمانونو په عُلاسره لپاره دَدلالت دې په کمال قدرت باندې،اوصرف ذکردَتخلیق دَزمکې اواسمانونوځکه اوشولوچې دَاعام خلکوپه مشاهده کښې داټولونه لوئې مخلوقات دی.

**فائده**: ظاهردَایت نه دامعلومیږي چې په پیدائش کښې زمکه په اسمان باندې مقدمه اومخکښې ده نوپدې کښې دَایتونوتعارض دهغې حل اودَمفسرینواقوال اوتعین دَراجح اومرجوح حضرت والدصاحب نورالله مرقدهٗ وبردمضجعه سه سورة البقرایت نمبر(۲۹)کښې په ډیرجامع اندازکښې کړیدې فجزاه الله خيرا ومن شآءفليطالع ثمه.

﴿ٱلرَّحْمَٰنُ عَلَى ٱلْعَرْشِ﴾داکنایه ده دَحکومت اوسلطنت نه ځکه چې کله اوئیلی شي،استوى فلان على العرش، نومراد تنه دهغه بادشاهي وي اګرچه دې په تخت باندې بالکل نوي ناست، اوبعض خلکوپدې اعتراض کړیدې چې استوٰى على العرش کنایه وئیل دَسلطنت اوبادشاهۍ نه باطل دې ځکه چې په نصوصوسره وجود دَعرش ثابت دې لکه،ويحمل عرش ربك فوهم يومئذثمانية دغه شان په صحیح حدیث کښې دی، فاذا انا بموسى اخذبقائمة من قوائم العرش،دغه شان اهتزعرش الرحمٰن لموت سعد،وغیره داټول پدې ګواه دې چې عرش په خپله موجوددې، نولهذا داکنایه ګرځول

دَسلطنت نه صحيح ندي،ليکن قول دَدې بعضو خکه صحيح ندې چې بيووجود دَنفس عرش دې چې داپه نصوصو قطعيو سره ثابت دي،اوانکارئته جائزندي،اويودې استوى على العرش.نواستوى په خپلې معنٰى سره په الله ﷻ کښ محال دي، هم عقلًا اوهم نقلًا. هرچه دې نقلادَدې وجه نه چې الله ﷻ فرمائى،ليسَ كمثله شئ، پديکښ نفى دَمثليت عامه ده په جميع وجوه کښ نوکچرته استوى په خپلې معنٰى سره شي نولازم به شي مثليت په جلوس کښ. نومعنى دَايت به باطله شي،دغه شان الله ﷻ فرمائى،ويحمل عرش ربك فوقهم يومئذثمانية،نوکچرته ﴿اَسْتَوَىٰ﴾په خپلى معنٰى سره شي نوملائك به حاملين شي دَالله ﷻ لپاره اوالله ﷻ به «العياذبالله»په خپل حفاظت کښ به دَهغه فرشتومحتاج به شي،دغه شان الله ﷻ فرمائي،قل هوالله احد،اواحدوئيلى کيږي هغه ذات ته چې په ذات اوصفاتو کښ ئي مثل اونظيرنوي، نوکه﴿اَسْتَوَىٰ﴾ په خپلي معنٰى باندى شي نودَايت معنٰى به باطله شي، اوهرچه دې عقلاًنوهغه ددې وجه نه چې عرش حادث دې اوذات دَ الله ﷻ قديم دې نوځرنګه به قديم محتاجه شي په جلوس کښ حادث ته. دغه شان جلوس په عرش دااحتياج دې عرش ته،اواحتياج صفت دَممکن دې، دغه شان که جلوس على العرش متحقق شي نولازم بشى ترکيب په واجب تعالى کښ اوداباطله ده بداهة نوجلوس هم باطل دې، دليل دَملازمي دادې چې هرکله جلوس متحقق شي نوجهات به هم متحقق شي چې داالوازم دَمکان دې نوجهت يمين دَالله ﷻ به غيروى هغه جهت نه چې هغه شمال ته دې اودغه شان هغه حصه چې اتصال ئى راغليدې دَعرش سره غيربه وي، دهغې نه چې اتصال ندې راغلې اوداترکيب دې، دغه شان کچرته جلوس متحقق شي نولازم به شي بطلان دکبريائى دَالله ﷻ، اويابه الله ﷻ ذات محدوداوګرځي،اوتالى په دواړوشقوقوسره باطل دې بداهة، نومقدم ئى مثل دې،دليل دَملازمي دادې چې الله ﷻ په عرش باندى جلوس متحقق شي نويابه عرش لوئ وي اويابه الله ﷻ لوئ وي،کچرته عرش لوئ وي نوکبريائي باطله شوه اوکه الله ﷻ لوئ دې نودَالله ﷻ بهٔ امرمحدوراوګرځيږى مزيدتفصيل په کتب دَعقائدوکښ اوتفسيرکبيرکښ ملاحظه کړئ.

نوهرکله چې دَاستوى ظاهري معنى مراد کول صحيح نوو نودَدې وجه نه په داسې الفاظوکښ چې ديته متشابهات وئيلى کيږى دوه«۲» قوله دَاهل السنة والجماعة نه راغلويوقول دَمتقدمينودې اوبل قول دَمتاخرينودې، متقدمين فرمايى چې ﴿عَلَى ٱلۡعَرۡشِ ٱسۡتَوَىٰ﴾نه ظاهري

معنی نده مراد بلکه دَدینه مراد یوصفت دي دَالله ﷻ چي مونږ ته په قطعي طریقي سره ندي معلوم نودَدي وجه نه تفویض دَعلم به ئې الله ﷻ ته کیږي. اودَدې نوجه نه امام احمدبن حنبل رحمه الله نه چي کله دَاستوی په باره کښ تپوس اوکړې شونوهغه اوفرمائیل چې نؤمن بها ونصدق بها بلاکیف، اومتاخرینُ په زمانه کښ فرقي دَمشبه اومجسمه رااوتلی اوزورئي اونیولونوهغوئ ددې فتنودَدفعیي لپاره پدغه شان نصوصوکښ تاویل غیرمفضی الی التعطیل ئي اوکړو لکه چي دَحضرت ابن عباس رضی الله عنه دَساق. تاویل په شدت سره اود بَاید تفسیرئی په بِقُوَةٍ سره کړیدې، اوطریقي دَدوارو صحیح دی البته طریقه دَمتقدمینواحوطه اودَ متاخرینو اسلمه ده، اودَصفاتواودَمتشابهاتوپوره تحقیق په یوجامع مانع اندازکښ حضرت والدصاحب نورالله مرقده وبردمضجعه(امین ثم امین)په سورة آل عمران اوپه سورة اعراف اوپه سورة یونس کښ کړیدې. اودَمسلك اهل السنة والجماعت دَترجمانئ حق ئ اداکړیدې، امام رازی رحمه الله فرمائی چي استوی په معنیٰ داستیلاء سره دې، اوبیائی دَاستیلاء تفسیرپه اقتدار اومطلق سلطنت سره کړیدې. لپاره ددې چي اعتراض وارد نشي چي استیلاء وئیلی کیږی حصول دَغلبي ته پس دَعجزنه نودَدي مطلب به(العیاذبالله)داشي چي الله ﷻ په عرش باندی غلبه حاصله کړه پس دَعجزنه، اودغه شان استیلاء په هغه ځائ کښ متحققه کیږي چي کله منازع له موجودوي، نودَالله ﷻ سره خوڅوك هم منازع په عرش باندی نیشته، اودغه شان استیلاء په هغه صورت کښ متصوره وي چي مستولی علیه مخکښ نه موجودوي نوعرش حادث دې موجوددې په تخلیق اوپه تکوین دَالله ﷻ سره نودَدي اعتراضاتودَدفعي لپاره امام رازی رحمه الله داستیلاءنه مطلق سلطنت مراد کړیدې.

دَامام رازی رحمه الله اودَنورمتاخرینوپه قول کښ فرق دادې چي عام متاخرین استوٰی کنایه ګرځوي دَسلطنت اوبادشاهئ نه، اوامام رازی رحمه الله فرمائي چي دَاستوی معنی استیلاءده البته بیاپکښ تجرید شویدې دَسلطنت حصول بعد العجزنه نفس سلطنت ته.

**فائده:** بعض معاصرمفسرینوپدې ځائ کښ ذهاب کړیدې مذهب دَمجسموته اوالله ﷻ لره ئي مکان ثابت کړیدې، چنانچه هغه لیکي استواء اوعرش معنی ښکاره ده چي دَعرش دَپاسه دې اوعرش دَاسمانونودَپاسه دې. هاں دهغې کیفیت دَمخلوق سره هیڅ مشابهت نه لری. ددې عبارت په ساده اوواضح الفاظوکښ مقصددادې چي دَالله ﷻ لپاره مکان شته دې اوالله ﷻ

متمكن فى المكان دي، اوپه يوجهت كښ دي،اوبيادډيرافسوس خبره داده چې دې عقيدې ته ئې دټولوسلفوصالحينواوائمه مجتهدينو،عقيده وئيلى ده، حالانكه دَاسلافوعقيده داده چې دَداسې الفاظوظاهري معنى نده مراد اګرچه دَدې لپاره لغوي معنى شته دې. خوهغه معنى مرادنده،اوكومه معنى چې مرادده هغه مونږ ته معلومه نده.لكه چې دَامام مالك رحمه الله نه دَ﴿ٱلرَّحۡمَٰنُ عَلَى ٱلۡعَرۡشِ ٱسۡتَوَىٰ﴾، په سلسله كښ داسې منقول دي چې، كماوصف به نفسه. اودغه شان امام محمد رحمه الله نه چې كوم منقول دى چې، نؤمن بهاونصدّق بها بلاكيف ولامعنىً(كتاب الاسماء والصفات ص ۴۰۸) ولامعنىً صريح دې پدېكښ چې دَايت مطلب دابيانول چې الله ﷻ دَعرش دَپاسه دې، اوعرش دَاسمانونودَپاسه دې، دَسلفوصالحينواودَائمه مجتهدينوتفسيرندې.

اوامام ترمذى رحمه الله هم په ترمذى شريف كښ په حديث دَنزول الرب تبارك وتعالى كښ دَمحدثينو اودَسفيان ثورى رحمه الله، سفيان بن عيينه، مالك بن انس رحمه الله،عبدالله بن مبارك، اووكيع وغيره مسلك ئې داسې بيان كړيدې چې، ان تروى هذه الاشيآء كما جآءت ويؤمن بها ولاتفسرولاتتوهم ولايقال كيف، دَدينه هم معلومه شوه چې دَايت ظاهري معنى مرادكول دَمحدثينواودَاهل السنة والجماعت مسلك ندې.

بياافسوس بالاافسوس پدې دې چې امام ابوحنيفه رحمه الله ته ئې غلط قول منسوب كړيدې اوپه هغې سره خپل مذهب ثابتولوكوشش كړيدې،چنانچه دې ليكې امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې چې چاداسې اوئيل چې زه نه پوهيږم چې زما رب په اسمان كښ دې ياپه زمكه كښ دې نوهغه سړي كفراوكړو،ځكه چې الله تعالى فرمائى: الرّحمٰن على العرش استوٰى آه· اودَدې نسبت ئې كړيدې فقه اكبرته خوداهغه فقه اكبرنه دې چې هغه دَامام صاحب نه دَهغه ځوي حماد روايت كړيدې،بلكه داعبارت دهغه فقه اكبردې چې هغه دَمطيع په روايت سره منقول ده،چې هغه دَالفقه الابسط. په نوم سره معروفه ده، اوبياپه الفقه الابسط كښ دري(۳)نسخې دي(۱)يوه نسخه دَعلامه بياضي رحمه الله ده. چې دَهغې الفاظ داسې دى قال ابوحنيفة رحمه الله من قال لااعرف ربى فى السمآء اوفى الارض فقدكفر،وكذامن قال انه على العرش ولاادرى العرش افى السمآء اوفى الارض.

(۲)دویمه نسخه دَابوالليث ده. دَهغې عبارت داسې دې قال ابوحنيفة من قال لااعرف ربي في السمآء اوفي الارض فقدكفرقال الله تعالى الرحمٰن على العرش استوى،بان قال اقول بهذه الاية ولكن لاادرى اين العرش في السمآء ام في الارض فقدكفر.

په دې عبارت کښې امام ابوحنيفه رحمه الله دوه(۲)اعتقادي مسئلې بيان کړېدی اوله مسئله داده چې من قال لااعرف الخ يعنی چې چاداسې اوئيل چې څه نه پوهيږم چې څمارب په اسمان کښې دې ياپه زمکه کښې دې نوده کفر اوکړو.اوفتوىٰ دکفرلپاره علت شارح ابوالليث داسې بيان کړيدې. لان بهذا القول يوهم ان يكون له تعالى مكانا، فكان مشركا. يعنی ددې قول دوجې نه توهم دَدې خبرې کيديشی چې دَالله جل جلاله لپاره دې مکان وي نودَمکان ثابتولودَوجې نه داسړی مشرك اوکافراوګرځيدلو. يعنی ددينه دامعلوميږي چې ددې قول قائل الله جل جلاله لره مکان ثابت کړو. چې الله جل جلاله په زمکه يااسمان کښې په يوځائ کښې خودې ضرور. ليکن په تعيين دَمکان کښې مشکوك دې،چې ځائ متعينه ئې کوم يودې، اودَدې نظيرداده لکه يوسړی اوائی چې. لاادرى زيد في السوق ام في المسجد، چې ماته دَدې علم نيتشه،چې زيدپه بازارکښې دې که په جماعت کښې دې مطلب دادې چې پدې باندی يقين دې چې زيدپه يومکان کښې دې ضرور.ليکن په تعين دَاحدالامرين، کښې مشکوك دې چې هغه مکان کوم يودې،نودغه شان لااعرف الخ دامذکوره عبارت هم دې، چې دی سړی الله جل جلاله لره مکان ثابت کړو نوځکه کافردې.

دويمه مسئله داده چې، وكذا من قال انه على العرش الخ يعنی چې يوسړې دااوئيل چې الله جل جلاله په عرش باندی دې ليکن ماته داعلم نيشته دې چې عرش په کوم ځائ کښې دې اسمآن کښې دې که په زمکه کښې دې، نوده کفراوکړو اوپدې قائل باندی دکفرفتوی لګولوعلت علامه ابوالليث رحمه الله اوعلامه بياضي رحمه الله دواړومشترکه طورباندی داسې بيان کړيدې چې،هذا يرجع الى المعنى الاول في الحقيقة، يعنی دَدې رجعه په حقيقت کښې اول مقصداومطلب ته کيږي، حاصل ئې دادې چې دَدې سړي اعتقاد اوعقيده داده چې الله جل جلاله په عرش باندی استوىٰ اوناسته کړيده، اوالله جل جلاله متمکن في المكان دې، ليکن دَمکان تعين ئې ندې کړې،ځکه چې دَده مطلب دادې کچرته عرش په زمکه کښې وي نوبيابه الله جل جلاله هم په زمکه کښې جلوه افروز.وي،اوداعقيده کفريه عقيده ده، اودادواړه نسخې صحيح نسخې دی، اوهرکله چې څنې خلکوته دَدې صحيح نسخونه خپل غلط مطلوب حاصل نشو نوهغوئ په يوې بلې دريمې نسخې باندی تکيه اوکړه چې دهغې

عبارت داسي دي، من قال لااعرف ربّى فى السّمآء ام فى الارض فقدكفر لان الله تعالى قال الرّحمٰن على العرش استوىٰ فان قال انه تعالى على العرش استوى ولكنه يقول لاادرى العرش فى السّماء ام فى الارض فهوكافرلانه انكركون العرش فى السمآء لان العرش فى اعلى علّيين. اودَدريمي نسخي دا مذكوره عبارت غيرمقلدين په زوراوشورسره پيش كوي اوخپل مطلوب ثابتولوناكام كوشش كوي. پدي سره دَدوئ مطلوب چې كومه غلطه عقيده ده نه ثابتيږي(۱)يووددې وجه نه چې كوم صحيح نسخ دي په هغې كښې داسي عبارت اوداتعليل موجودندي بلكه درحقيقت داعبادت اوتعليل دَابواسمعيل هروي دي چې هغه دَخپل مذهب تجسيم. دَترويج لپاره خپل طرف نه اضافه كړيدي.

**ثانيا** كچرته بالفرض تسليم هم كړې شي نوبياهم دَغير مقلدينو مذهب پدي سره نه ثابتيږي، ځكه چې پدې نسخي كښې اثبات دَمكان ذكرنيشته بلكه صرف استوىٰ على العرش،كمايليق بجلاله تذكره ده لكه چې دامسلك دَاهل السنة والجماعت،متقدمين،دي،اود .لاادرى الخ په قائل باندى دكفرفتوى ځكه لګولي ده چې هغه دَ اللهﷻ لره دَمكان جوازقائل دې، اوتجويزيه باب دَاعتقادياتو كښې په منزله اوپه حكم دَتنجيز كښې وي،نودَدې وجه نه پده باندى فتوىٰ دكفرلګولي ده،اوپدي باندى قرينه په خپله دَامام ابوحنيفهؒ عبارت دې چې هغه لږ مخكښې پدي نسخي كښې ذكردې،چې،قلت ارايت لوقيل اين الله تعالى يقال له،كان الله تعالى ولامكان قبل اَن يخلق الخلق وكان الله ولم يكن اينّ، ولاخلق ولاشئ وهوخالق كل شئ، يعني كچرته داوئيلى شي چې اللهﷻ په كوم ځائ كښې دې نوجواب به داوركولى شي چې اللهﷻ دَمخلوقاتو دَ پيداكولونه مخكښې هم موجود وو،اومكان نوو،اللهﷻ وواوځائ(اين) نوو، نه څه مخلوق وو اونه يوبل شئ موجودوو سيوا دَاللهﷻ نه اواللهﷻ دَهرڅه خالق دې،نوپدي عبارت كښې صريح نفي دَاينيت ده چې اينيت،صرف په حادث كښې متصوردې.اودغه شان دَمذهب،احنافو ترجمان امام طحاويؒ په خپل كتاب كښې هم دَامام ابوحنيفهؒ امام ابويوسفؒ اوامام محمدؒ عقيده نقل كړيده فرمائي چې، ومن لم يتوق النفى والتشبيه زل ولم يصب التنزيه فان ربنا جل وعلا موصوف بصفات الوحدانية منعوت بنعوت الفردانية وليس فى معناه احدٌ من البرية تعالى عن الحدود والغايات والاركان والاعضآء والادوات الخ داعبارت جلي اوواضح دې پديكښې چې احناف (كثرهم الله سوادهم) دَاللهﷻ لپاره دَاينيت قائله هرګزندي خودَاهل باطلو طريقه هميشه لپاره داسي ده چې دوئ

دَاکابرو مبهم عبارات ذکرکړي اوپه هغې سره خپلو غلطو اوباطلو عقائدو ته ترویج ورکوي(والی الله المشتکی والله یهدی الی الحق والی صراط مستقیم).

| |
|---|
| لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَمَا |
| خالص دَهغه اختیارکښ دي هغه څه چې اسمانونوکښ دي اوهغه څه چې په زمکه کښ دي اوهغه څه چې |
| بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ الثَّرٰى ۝ وَاِنْ تَجْهَرْ بِالْقَوْلِ |
| ددې دواړوپه مینځ کښ دي اوهغه څه چې لاندې دَلوندې خټې نه دي. اوکه ته په اوچت اوازسره خبرې کوې |
| فَاِنَّهٗ يَعْلَمُ السِّرَّ وَاَخْفٰى ۝ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ |
| نوبیشکه الله ﷻ پوهیږي په پټه اوپه ډیرپټه (خبرې باندې هم)الله هغه ذات دې،نیشته حق داردَبندګۍ بل څوک سیوادهغه نه، |
| لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ۝ وَهَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ۝ اِذْ رَاٰ نَارًا فَقَالَ |
| خاص هغه لره دي نومونه خائسته اوآیا(یقیناً)راغلی ده تاته واقعه دَموسیٰ ؑ ،کله چې اولیدلوده اورنو وې وئیل |
| لِاَهْلِهِ امْكُثُوْٓا اِنِّيْٓ اٰنَسْتُ نَارًا لَّعَلِّيْٓ اٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِقَبَسٍ |
| خپلې بی بی ته چې حصارشئ تاسو بیشکه مالیدلې دې اور،کیدې شي چې څه راوړم تاسوته دَهغې نه یوه شغله |
| اَوْ اَجِدُ عَلَى النَّارِ هُدًى ۝ فَلَمَّآ اَتٰىهَا نُوْدِيَ يٰمُوْسٰى ۝ |
| اویابه اوموندم دَاور خواته لاره ښودونکې. پس هرکله چې راغی دې اورته آواز ورکړې شوچې ای موسیٰ |
| اِنِّيْٓ اَنَا رَبُّكَ فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ اِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ۝ |
| بیشکه څه رب ستایم نواوباسه ته پیزار(څپلۍ) خپل بیشکه ته په میدان پاک کښ یې چه نوم ئې طوی دې، |
| وَاَنَا اخْتَرْتُكَ فَاسْتَمِعْ لِمَا يُوْحٰى ۝ |
| او ماته غوره کړې ئې (دَنبوت لپاره) نوغوږ کیده ته هغې ته چې تاته ئې وحي کیدې شي، |

﴿لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دا نو ضيح ده دَماقبل ايت چې الله داسي عظيم سلطنت اوبادشاهي والا دې
چې دزمکي اواسمانونو اوداټول نظام عالم دده په قبضه اوقدرت کښې دي﴿وَمَا تَحۡتَ ٱلثَّرَىٰ﴾ ثرى
وښلی کيږي لوندي اونمناك ختي ته، نودَ ، ﴿تَحۡتَ ٱلثَّرَىٰ﴾ نه مراد دَاومي زمکي نه لاندې چې څه
دي نودهغې علم الله ﷻ سره دې، اوپه دې مقام کښې چې کوم خبري دَحضرت کعب رضي الله عنه نه مروي دی
چې دَزمکي دَلاندې اوبه دي اوبيازمکه ده اوبيااوبه دي حتی چې پنځه(۵) زمکي اوڅلور(۴)
سمندرونه دي اوبيادَهغې زمکي دَلاندې يوغټ کاڼړی دې اوبيادهغې دَلاندې يوه فرشته ده
اوبيادهغې دَلاندې يوماهی دې چې دهغې لکئ اوسردَعرش سره ميلاؤدي، اوپه ځنی
رواياتو کښې تنه غوايه ذکرراغليدې چې هغه غټ کاڼړی دَيوغوايه په ښکرباندی دې اوداټولي
زمکي په هغې باندی قائم دې، اوهغه غوايه په ثرىٰ باندی ولاړدې، وغيره ټول دروغ
اواسرائيليات دی اوکوم روايات چې پدې سلسلې کښې راغليدي هغه ضعيف بلکه موضوعي
دی، حافظ ابن کثير رحمه الله په تفصيل سره ذکرکړيدي ﴿وَإِن تَجۡهَرۡ بِٱلۡقَوۡلِ﴾داهم دَالله ﷻ دَوسيع
علم اوقدرت بيان دې چې الله ﷻ ته هرڅه عالم دې ظاهر ،باطن سراوعلانيه ټول الله ﷻ ته معلوم
دي اوهرکله چې دَقول اودکلام يوقسم دادې چې سړی ئې دَچانه هم نه پټه وي نودهغې ذکرپه ان
تجهرسره اوشو اودويم قسم دادې چې دَعامو خلکونه پټه وي اوصرف رازدارته ئې ښکاره کوي
نودهغې ذکرپه ﴿فَإِنَّهُۥ يَعۡلَمُ ٱلسِّرَّ﴾ سره اوشو ،اودريم(۳)قسم دادې چې درازدارنه ئې هم پټه وي
اوصرف په زړه کښې وي نودهغې ذکرپه ﴿وَأَخۡفَى﴾سره اوشولواوبعض فرمائی چې دَجهربالقول،
نه مراد اوچتي خبري يعني چې دَخلکونه ئې نه پټه وي هغه تنه مراددي، ليکن
دَ﴿ٱلسِّرَّ﴾،او﴿وَأَخۡفَى﴾نه مراد اقوال ندي بلکه مرادتنه افعال دی،نودَ سرنه مراد هغه افعال دی چې
انسان ئې عزم کړې وي اودَاخفٰی نه مراد هغه افعال دي چې حدعزم ته نوي رسيدلي بلکه په مرتبه
دهم کښې وي، نودَايت مطلب داشوچې الله ﷻ په سر،اوپه اخفی باندی عالم دې چې غيرموجود
اوغيرمحسوس دي نوستاسودعاګاني اوخبري به څرنګه نه اوري(کبير)او﴿وَإِن تَجۡهَرۡ﴾ داشرط

دي اوجزاء ئې محذوفه ده او﴿فَإِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلسِّرَّ﴾ورله علت دې اوجزاء محذوفي قائمقام دې نوتقديرد عبارت داسي دې،وان تجهربالقول فاعلم ان الله يعلمه فانه يعلم السرّ واخفى(روح).

﴿ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾دادعوى دتوحيد ده چې ذات دالله تن تنهادې اواسماء صفاتي ورله ډيردي نودعبادت اوبندګئ لائق صرف اوصرف هغه دې په کوم نوم سره چې تاسورابلئ نوجائزدی اوتقديم دظرف په ﴿لَهُ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ﴾کښې دافادې دحصر لپاره دې، اوحسنى مؤنث داحسن دې اودې صفت دجمعي(اسمآء)واقع شويدې نوځکه مؤنث راوړى شو. اوپه ټولونومونوکښې دالله ﷻ نومونه ځکه خائسته دي چې ددې معانى دټولو دمعانيوڼه اعلى اوافضلي دي ځکه چې دوئ دلالت کوي په معانيودتقديس، تمجيد، تعظيم اوپه ربوبيت باندى.اوداسمآء الحسنى متعلق بحث په سورة-الاعراف ايت نمبر(۱۸۰)اوسورة بنى اسرائيل ايت نمبر(۱۱۰)کښې تيرشويدې.﴿وَهَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ مُوسَىٰٓ﴾دابل ايت تشجيع دې چې دمسئله توحيدلپاره حضرت موسىٰ عليه السلام څومره مصائب اوتکاليف برداشت کړي وو نولهذا ته هم صبرکوه په تکاليفواومصائبوباندى پدې لارکښې،اواستفهام لپاره دتقريردې نوپه معنى داليس قد أتاك.سره دې اوبعض فرمائى چې هل،په معنى دقدسره دې يعنى قدأتاك حديث موسى.

﴿إِذْ رَءَا نَارًا﴾ددې ځائ نه دحضرت موسىٰ عليه السلام دقصې ابتداء کيږي دااول مقام دواقعې دې پديکښې دحضرت موسىٰ عليه السلام دمدين نه دواپسئ حالت اورسالت ميلاويدل وغيره ذکرکيږي، موسىٰ عليه السلام چې کله په مصرکښې قبطي مړکړو اوبيائي هجرت اوکړو مدين نه دحضرت شعيب عليه السلام سره دلوظ اومعاهدې مطابق لس(۱۰)کاله خدمت اوکړو اوبياد خپلي بى بى سره دحضرت شعيب عليه السلام نه رخصت شو اومصرته روان شودخپلي موراوخورزيارت لپاره،نودادسخت يخنئ موسم وو حضرت موسى عليه السلام دشپې سفرکولواوسفرئې هم په عامه لارې باندى نه کولوبلکه غيرمعروفي لارې باندى روان شوځکه چې کوروالا په اميدکښې وه اودملوك شام خطره هم په عامې لارې باندى وه،نوپه لارکښې ورته داواقعه پيش شوه چې په بى بى باندى دبچې پيداکيدلو حالت راغى اوډيره تياره وه اوساړه هم ډير وو اوموسىٰ عليه السلام نه لاره هم خطاء شوې وه اوشعيب عليه السلام ورله څه بيزې ورکړې وې هغه تنه هم کډې وډى شوې اوپه څنې رواياتوکښې دي چې داد جمعې مبارکي شپه وه،نوپدې وخت کښې داورسخت ضرورت

وو ،نوحضرت موسیٰ ﷺ دلاري چپ طرف ته په کوه طورکښ ظاهري صورت دَاوراوکتلولکه چې الله ﷻ فرمائی. ﴿إِذْ رَءَا نَارًا﴾بعض مفسرين فرمائی چې داحقيقتااوروو خوسوزولو(احراق) صفت پکښ نوو ليکن راجحه داده چې داحقيقتًا اورنوو بلکه دَالله ﷻ دَجلال نورووچې حضرت موسیٰ ﷺ ته دَاور په صورت کښ ښکاريدلواوددي تائيدپه روايت دَمسلم سره هم کيږي چې هلته دناريه ځائ نور،لفظ راغليدې نوموسیٰ ﷺ خپل کوروالوته اوئيل چې ،﴿ٱمْكُثُوٓا۟ إِنِّىٓ ءَانَسْتُ نَارًا﴾ چې تاسودلته کينئ اومااور اوکتلوځه هغه راوړم. اوصيغه دَجمعي يادَدي وجه نه استعمال کړيده چې هغوئ هم دري کسان وو يوه بي بي اويوبچې اويوخادم وو ،اوياخطاب صرف بي بي ته دې اوتعظيمًا صيغه دَجمعي استعمال کړيده ځکه چې هغه دَحضرت شعيب ﷺ بچئ وه. اوياظاهردَلفظ دَاهل دَوجي نه ئي صيغه دَجمعي راوړه ځکه چې اطلاق دَاهل په جمعي باندی هم کيږي لکه څرنګه چې په مفرد باندی کيږي اوامردَمکث، هغوئ ته دَدي وجه نه نوو چې هغوئ چرته بل طرف ته تلل بلکه عام طورباندی په داسي مواقعوکښ بياتول کسان په هغه ځيزپسي ځي نوحضرت موسیٰ ﷺ دوئ منع کړل چې تاسوپه ماپسي دَاورلپاره مه راځئ.﴿لَّعَلِّىٓ ءَاتِيكُم﴾ دَ اور صورت په کتلوکښ حضرت موسیٰ ﷺ ته څه قسم شك نوو نوځکه ئی هلته انّ حرف تحقيق راوړو اواور راوړلوکښ ورته يقين نوو چې دابه وړم اوکه نه نودَدي وجه نه دائی په لفظ دَلعل، ترجي سره ذکرکړو.﴿بِقَبَسٍ﴾شغله راوړل دګرموالي لپاره چې څه به تاسوله دګرموالي حاصلولولپاره دَاورشغله راوړم، اودَ﴿أَوْ أَجِدُ عَلَى ٱلنَّارِ هُدًى﴾ ، مقصددادې چې اورسره کوم خلك دي دَهغونه به دَلاري تپوس اوکړم ځکه چې دَحضرت موسیٰ ﷺ نه لاروركه شوي وه، اوامام مجاهد رحمه الله نه مروي دي چې حضرت موسیٰ ﷺ سره سوچ دَ دين دَامورو په باره کښ زيات وو نودَدي وجه نه دَهدی نه مراد هادي دې په ابواب دَدين کښ ليکن اوله معنی زياته راجحه ده اوعلی په ﴿عَلَى ٱلنَّارِ﴾ کښ په معنی دَ عند ،سره دې اوياعلی ځکه راوړی شوچې دَيخنئ په موسم کښ دَاورنه فائده اخستونکي داسي وي لکه چې په اورباندی پراته وي دَدي وجه نه متعدی په علی سره شو.

﴿فَلَمَّآ أَتَىٰهَا نُودِيَ ﴾نوحضرت موسیٰ علیه السلام هغه اورطرف ته راغی چې کله هغې ته رااورسیدلو نویوعجیب حالت ئې اوکتلوچې دَاور داشغلې دیوې ونې نه رااوخې اوڅومره چې اورتیزیږي نوهومره دَونې په څانګواوپانړو کښې شین والي اوخائست نورهم زیاتیږي.حضرت موسیٰ علیه السلام اورته نزدې تللواراده اوکړه چې شاید دَاونې نه یوښاخ به اوسوزي او اوغورزیږي به نوځه به ئې خان سره یوځم، لیکن څومره به چې حضرت موسیٰ علیه السلام ونې ته نزدې کیدلونو اوربه تنه لرې کیدلو ، اوپه څنې روایاتوکښې دي چې حضرت موسیٰ علیه السلام څه اوچ واخه راتول کړل اواورطرف ته ورنزدې کیدلوخواوربه تنه لرې کیدلواوچې کله موسیٰ علیه السلام ګهبراؤ شو نوپدغه وخت کښې ورته اوازاوکړې شو چې﴿إِنِّيٓ أَنَا۠ رَبُّكَ ﴾ ، اودا اواز موسیٰ علیه السلام ته دَاونې دَطرف نه اکړې شولکه چې په سورة القصص کښې دی، اوداوونه دَڅه شي وه؟

نومفسرینوپدیکښې متعدد اقوال راغلیدلی خوپه تعین باندې څه قوي دلیل نیشته دې﴿إِنِّيٓ أَنَا۠ رَبُّكَ ﴾ نوحضرت موسیٰ علیه السلام ته دَوونې دَطرف نه اواز راغلی چې ای موسیٰ علیه السلام څه ستارب یمه، اوپه روایت کښې راځي چې حضرت موسیٰ علیه السلام ته دااوازدَهرجهت نه راتلو اودَبدن په هرعضواو هرهرویخته سره ئې اوریدلو،اوحضرت وهب بن منبه رحمه الله فرمائي چې حضرت موسیٰ علیه السلام چې کله ، ﴿يَٰمُوسَىٰٓ﴾ واوریدلونوڅوځلې ئې لبیك، اوئیل(یعنی پدې اوازکښې داسې کشش اوخونداولذت اوسروروو چې حضرت موسیٰ علیه السلام بې اختیاره څوڅوځلې لبیك اوئیل) اوبیائې عرض اوکړوچې څه ستاآواز اورم خوتانه وینم،ته کوم ځائ کښې ئې نوآواز ورته شوچې څه ستادَپاسه ستانه مخکښې،ستانه ورستواوستاسره یمه، ستادَنفس نه زیات تاته قریب یمه.

**فائده**(۱): کوم کلام اونداء چې حضرت موسیٰ علیه السلام اوریدلی وه نوداکوم کلام وو آیاکلام نفسي وو که کلام لفظي، نومعتزله خودکلام نفسي بالکل قائل ندي دَهغوئ په مذهب خودامتعینه ده چې کلام لفظي وو ،اواهل السنة والجماعة چې دکلام نفسي دَوجودقائله دي نوپه هغوئ پدې نداکښې صرف اختلاف دې، اکثراهل السنة والجماعت دَدې قائله دي چې داکلام کلام نفسي وو چې حروفواوصوت،نه پاك بلاتشبیه کلام وو،اوبعض اهل السنة والجماعت(ماوراء النهر) نوهغوئ دَدې قائله دی چې داکلام لفظي وو او الله تعالیٰ دغه آواز په اونه کښې پیداکړې وو او استدلال ئې کړیدې چې الله تعالیٰ ندامرتبه کړیده په راتګ دموسیٰ علیه السلام

باندي اورطرف ته، اودهغه راتګ اورته حادث وو، اومرتب په حادث، حادث وي نولهذا دانداء هم محدثه ده، ليکن استدلال دَدوئ څکه ضعيف دي چې يوه مطلق نداء ده اويواسماع دَنداء ده نوسياق دکلام پدي دال دې چې دلته ترتب دَاسماع راغليده په اتيان دهغه باندې نارته، اګرچه تعبيرتنه شويدې په "نودي" سره (والله اعلم).

**فائده۲)** حضرت موسیٰ ﷺ ته څرنګه علم اوشو چې منادي اوآواز کوونکی الله ﷻ دې نوپديکښې دَمفسرينونه مختلف آراء راغليدي بعض فرمائي چې الله ﷻ حضرت موسیٰ ﷺ لره پدي باندې علم ضروري اوبديهي ورکړو چې پدي معرفت کښې دې هيڅ سوچ، فکراودليل ته محتاج نوو، اوپدي باندې الله ﷻ قادردې اوبعض فرمائي چې دَامورخارقه للعادت، نه حضرت موسیٰ ﷺ دامعلومه کړه چې اوازکوونکی الله ﷻ دې اوددې تائيدپه هغه روايت سره هم کيږي چې په هغې کښې دي چې الله ﷻ آواز اوکړو، ﴿يٰمُوسَىٰ﴾نوحضرت موسیٰ ﷺ عرض اوکړو چې مَن المتكلّم؟ نوالله ﷻ ورته اوفرمائيلو ﴿أَنَا رَبُّكَ﴾، نوپدغه وخت کښې شيطان وسوسه واچوله،اوحضرت موسیٰ ﷺ ته ئې اوئيل چۀ کيديشی چې داآوازکوونکی دی شيطان وي نوحضرت موسیٰ ﷺ اوفرمائيلوچې ماته علم دې چې آوازکوونکی الله ﷻ دې،څکه چې څه داآواز دَهرجهت نه اوپه هرعضوي سره آورم، والراجح عندی (والله اعلم بالصواب) انّ نداء الله تعالى من قبيل البديهيات الوجدانيات، څکه چې دَدنيا دَخوږ څيزونوخوږلت اويودنيوي محبوب په خلي دَعاشق نوم راتلل دعاشق لپاره دَهغې سرور،دَهغې خوږلت اوسرور سره دَقطري اوسمندرنسبت هم نيشته کوم خوږلت انسان ته په هغه وخت کښې حاصليږي چې کله الله ﷻ ده سره ازروئ رحم همکلام شي اوکوم سرورچې انسان ته په هغه وخت کښې ميلاويږي چې کله الله ﷻ دَده نوم واخلي،اودَدي وجه نه دَحضرت وهب رحمه الله نه امام احمدبن حنبل رحمه الله نقل کړيدي چې کله حضرت موسیٰ ﷺ دَاورنه خوف زده شونوپه هغه وخت کښې، ورته نداء اوکړې شوه ياموسی، نودَحضرت موسیٰ ﷺ خوف ختم اوانس ئې پيداشو اوباربارئې لبيك، وئيل شروع کړو اودَملاقات خواهش ئې پيداشوورنه دَتنهائ اودَخوف په حالت کښې غيبي آواز راتلل نورهم ذريعه دَخوف ګرځيږي.

الله ﷻ حضرت موسىٰ ﷺ ته اوفرمائيلو چې څه ستارب يم اوورسره ئي داحكم هم وركړو چې ﴿فَٱخۡلَعۡ نَعۡلَيۡكَ﴾ چې خپلي پنړي(پيزار) اوباسه. اودَپيزاروېستلوحكم بعض فرمائي چې دَدې وجه نه ورته اوكړو چې په هغې پوري نجاست(گندگي) وه، اوبعض فرمائي چې دادَدسي څرمني نه جوړي شوي وي چې دهغې دباغت نوو شوې، اوبعض فرمائي چې داكنايه ده دَفارغ كولو دَزړه نه دَبى بى اودَبچي دَمعاملي نه خالص الله ﷻ ته، ليكن راجحه داده چې داحكم وه دَپيزاراويستلواوداحكم څكه اوكړې شو چې داطريقه ډيره ابلغه ده په تواضع كښ اواقربه ده تشريف اوتكريم اوحسن ادب ته، اودَدي وجه نه تعليل ئي بيان كړې شوېه﴿إِنَّكَ بِٱلۡوَادِ ٱلۡمُقَدَّسِ طُوًى﴾ سره، اوددېنه معلومه شوه چې مقدس مقاماتو كښ پيزار ويستل پكاردي اگرچه پيزار صفاوي، اوكچرته نجس وي نوبياجماعت وغيره كښ ويستل واجب دي، او طُوًى دهغې وادي نوم دې چې په كوم كښ داواقعه پيش شوې وه، اوطوى، ورته څكه وئيلى كيږي دا بركات راغونډكړې شويدي، اوپه روايت كښ دى چې كله موسىٰ ﷺ ته داحكم اوشوچې خپل پيزاراوباسه نوهغه فوراً اويستلواودَهغې وادي اوميدان نه ئي بهرته اوغورځولي، نوبياورته الله ﷻ دَوادى طوى، ته راوستلومقصد واضح كړوچې، ﴿وَأَنَا ٱخۡتَرۡتُكَ فَٱسۡتَمِعۡ﴾چې ماته دَرسالت لپاره منتخب كړې ئي نوچې دكوم څيزوحى درته كيږي هغه ښه په غورسره واوره اوپديكښ اشاره ده چې نبوت اورسالت دچااستحقاق ندې، اودغه شان پديكښ ديته هم اشاره ده چې دَالله ﷻ كلام په توجه سره اوريدل پكاردي. دَحضرت وهب بن منبه رحمه الله نه مروي دى چې دَقرآن مجيد دَاوريدلوآداب دادي چې اعضاء دَانسان په سكون اوآرام سره وي اوپه بل كاركښ نوي مشغول، اوسترگي ئي كته وي چې بل شي ته ئي زړه ميلان اونه كړې، اوغوږ ئي ورته ايخي وى اوزړه ئي ورته حاضروي، اوپه قرآن باندى عمل كولوعزم ئى وي اوحضرت سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائي چې اول پاوړئى دَعلم استماع(اوريدل)دى بياپرى څان پوهه كول، بيايادە ول بياپري عمل كول اوبيائي نشركول دي اوچې كله هم يو انسان دَالله ﷻ كتاب اويادَرسول الله ﷺ احاديث په صحيح نيت سره واوري نو الله ﷻ ده ته فهم دهغې وركوي او الله ﷻ دده لپاره دده په زړه كښ نوراوگرځوي(قرطبى)

| إِنَّنِيٓ | أَنَا | ٱللَّهُ | لَآ | إِلَٰهَ | إِلَّآ | أَنَا۠ | فَا | عۡبُدۡنِي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

[1] بیشکه خه چې یم الله یم نیشته دي حقدار دبندګۍ بل هیڅ څوك سیواځمانه نوبندګی کوه څما

| وَأَ | قِمِ | ٱلصَّلَوٰةَ | لِذِكۡرِيٓ ⑭ | إِنَّ | ٱلسَّاعَةَ | ءَاتِيَةٌ | أَكَادُ | أُخۡفِيهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

اوپابندی کوه دمونځ دپاره دیاداشت څمابیشکه قیامت راتلونکی دي غوارم چې پټ ئي اوساتم

| لِتُجۡزَىٰ | كُلُّ | نَفۡسِۭ | بِمَا | تَسۡعَىٰ ⑮ | فَلَا | يَصُدَّنَّكَ | عَنۡهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

دپاره ددي چې بدله ورکړې شي هرنفس ته دهغي عمل چې ده کړيدې، نو هرګزدي تامنع نه کړي په ايمان راوړلو باندی دډينه

| مَن | لَّا | يُؤۡمِنُ | بِهَا | وَٱتَّبَعَ | هَوَىٰهُ | فَتَرۡدَىٰ ⑯ |
|---|---|---|---|---|---|---|

هغه څوك چې يقين نه لري پدي «قيامت» باندی اوتابع وي دځپلوخواهشاتو نوهلاك به شي

﴿إِنَّنِيٓ أَنَا ٱللَّهُ﴾ دادویم آیت دتوحیددې اوپدیکښ مقصد درسالت ذکرکیږي چې دارسالت مي څکه درکړو چې نعره توحیدبلنده کړی چې څمانه علاوه بل کارساز اومتصرف نیشته دې، نوصرف څماعبادت کوه،نوپه ،﴿لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠﴾ سره توحیدقلبي اواعتقادي ته اشاره شوه، اوپه ،﴿فَٱعۡبُدۡنِي﴾سره عمل بالارکان ته اشاره شوه، یعني توحیدعملي ته،څکه چې عبادت وئیلی کیږي دیته چې چاته غایت تذلل اوعجزکول، نوهٰذا د،﴿فَٱعۡبُدۡنِي﴾ مقصدداشو چې عملي طورباندی غایت عجزاوتذلل ماته کوه اوداګرچه شامل دې ټولوعباداتوته که بدنیه دي اوکه مالیه دي خوهرکله چې مونځ په ټولوعباداتوکښ اهم عبادت وونودې وجه نه دهغې ذکرئې خاص طور اوکړو ، اوددینه معلومه شوه دایمان راوړلونه پس لویه اواهم فریضه هغه مونځ دې، هذا دلیل علی انه لافریضة بعدالتوحیداعظم منها(مدارك) اوبیاالله ﷻ موسیٰ ﷺ ته دمونځ مقصد هم واضح کړو چې ﴿وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ لِذِكۡرِيٓ﴾چې دمونځ مقصددالله ﷻ یاده ول دي. څکه چې

[1] دوېم آیت دتوحید

صحيح مونږ دادې چې په هغې کښې دَانسان ژبه زړه او اعضاء ټول دَالله ﷻ په یاد کښې مشغول وي اوداسي نوي چې په خله، باندې الله ﷻ یاده وي تلاوت وغیره کوي خولاس. سترګې اونوراعضاء ئې په ارام اوسکون سره نوي دَزړه توجه ئې برابره نوي په حدیث کښې ددغه شان مونځ کوونکي دَپاره سخت وعیدبیان کړې شویدې، اوبعض فرمائي چې لام په ﴿ لِذِكۡرِيٓ ﴾کښې وقتیه دې یعنی اقم الصلوة لاوقات ذکری(مدارك) اومرادتنه مواقیت الصلوة دی، اوبعض فرمائي چې لام اجلیه دې اوذکرپه معنٰی دَتوحید سره دې یعنی لاجل توحیدی، یعني دَتوحیدپه تبلیغ باندې دَ صبراواستقامت حاصلولولپاره مونځ کوه ځکه چې مونځ په مصائبواوتکالیف برداشت کولوکښې ممداومعاون وي،اوبعضو وَ﴿ لِذِكۡرِيٓ ﴾ محمول کړیدې په هغه ذکرچې بعدالنسیان وي. اوعبارت په حذف دَمضاف سره دې یعنی اقم الصلوة لذکرصلوتی، چې مونځ درنه هیرشي یااوده پاتې شي اوپه خپل وخت ئې ادانه کړی نوچې کله درته رایادشي نوبیائي اداکړه خوداتوجیه محموله ده په تعسف اوتکلف باندې.دَتوحیداورسالت نه ورستوالله ﷻ پدې آیاتونوکښې حضرت موسی علیه السلام ته دَقیامت ذکرفرمائي چې انّ السّاعة آتیة الخ چې قیامت خامخاراتلونکی دې خودهغې وخت ماپټ ساتلی دې اومخلوقاتوکښې مي هیڅ چاته دهغې علم ندې ورکړې پدې آیت کښې دَمفسرینومتعدد اقوال دی، چونکه لفظ دَ،اخفاء دَاضدادونه دې اطلاق ئې په اظهار ښکاره کولو باندې هم کیږي اوپټ والي باندې هم کیږي، نواکثرومفسرینودَاخفاء معنٰی پټ والی کړیده، نوپیدي صورت کښې بیا(۱) دَاکثرومفسرینوقول دادې چې دلته من نفسی، مقدردې،اوکلام محمول دې په مبالغي باندې په اخفاء کښې، ځکه چې عرف پدې جاري دې چې کله هم څوك دَیوڅیزپه پټوالي کښې مبالغه کوي نوداسي وائي چې داخه دَخپل ځان هم پټومه نودَآیت مقصد داشوچې، دَقیامت راتللووخت مادَهرچانه پټ ساتلی دې حتی که کچرته مادَخپل ځان نه هم پټولی شواودامکنه وه نودَخپل ځان به مي هم پټ کړې وی لیکن دامکنه نده(۲)بعض فرمائي چې لفظ دَ﴿أَكَادُ﴾، زائددې اودَآیت مقصد دادې چې قیامت راتلل مادَمخلوقاتونه پټ ساتلی دې(۳)بعض فرمائي چې﴿أَكَادُ﴾په کلام الهي کښې دَوجوب لپاره وي لکه څرنګه عسی، دې اوکلام محمول دې په تاکیدباندې (کبیر)(۴)بعض فرمایي چې

﴿أَكَادُ﴾په معنٰی دَ أُرِیدُ سره دې، یعنی څه داغواړم چې دَقیامت راتګ دَمخلوقاتونه پټ اوساتم، (۵)اوبعضَ مفسرین فرمائي چې، اخفاء، دلته په معنی دَاظهارسره دې، یعنی قریبه ده چې څه به ئي ظاهرکړم یعنی واقع به ئي کړم(۲)اودَبعضوقول دادې چې ﴿أُخْفِيهَا﴾باب افعال دې، اودَباب افعال یوخاصیت سلب دَماخذالاشتقاق دې، نودلته هم دَسلب لپاره دې، وقال ابوعلی هذامن باب السلب ولیس من باب الاضداد(قرطبی) نومعنٰی ئی داشوه چې قریبه ده چې څه به ورنه ازاله دَخفاء اوکړم، اوازاله دَخفاء اظهاردې، نوځکه ئي مطلب داشو چې قریبه ده چې ظاهریعني واقع به ئي کړم، کچري ﴿أُخْفِيهَا﴾، نه مراد پټ والی شي نوبیا ﴿لِتُجْزَىٰ ﴾،متعلق دې په ﴿أَكَادُ أُخْفِيهَا ﴾، پوري، اوکچري ﴿أُخْفِيهَا﴾ په معنی دَاظهارسره شي نوبیامتعلق دې په﴿ءَاتِيَةٌ ﴾ پوري.

﴿فَلَا يَصُدَّنَّكَ ﴾الله تعالیٰ حضرت موسیٰ علیه السلام ته وعظ اونصیحت اوکړو چې دَدې دنیا پرست کافرانوسره مداهنت اختیارنه کړې اوپه دین باندې عمل کولوکښ سستي اونه کړې کنې دَبلندمقام نه به لاندې رااوغورزیږې، اودَنهي دَیوځیزنه امکان دَوقوع نه لازمیږي،نولهذا ایت متعارض ندې دَهغې نصوصوسره چې دال دی په عصمت دَانبیاء کراموباندې.

تنبیه: دلته مقصوددآیت دادي چې موسیٰ علیه السلام ته حکم دې چې ته دَدین په کارکښي سستي اختیارنه کړي نوصراحتاً داسي تعبیرذکرنه شوبلکه دااویلي شوچې کافردې ستاده پاره دَدین په کارکښي رکاوټ نوي،په دې کښي نکته داده چې کافرچې یومسلمان دَدین نه منع کړي نوداپه حقیقت کښ دمسلمان په دین کښ دَسستئ وجه وي اوپه دین کښ دَضعف وجه وي نوګویاچې داحضرت موسیٰ علیه السلام ته په دین باندې استقامت حکم اوکړې شوچې په خپل دین کښ ضعف اوکمزوری مه اختیاره وه چې بیاکافرتادَدین نه منع کړي، كانه قيل لاتكن رخوا بل كن فى الدين شديداصلبا(كبير)اوپه من لاَ يؤمن سره مراد فرعون دې خوپه اوصافوسره ئي ځکه ذکرکړو چې اشاره راشي عموم اوجم غفیردَهغوئ ته، یعنی ان من لايؤمن بالاخرة هم الجم الغفير(كشاف).

﴿فَتَرْدَىٰ﴾وئیلی کیږې، بری نه خکته راغورزیدلوته، اومراد تنه هلاکت دې، اوپدیکښ اشاره ده چې دَدعوت په کارسره الله تعالیٰ ترقي ورکوي مسلمانانوته، اوددعوت په پریخودلوسره ذلت راځي

| |
|---|
| وَمَا تِلْكَ بِيَمِيْنِكَ يٰمُوْسٰى ﴿۱۷﴾ قَالَ هِيَ عَصَايَ ۚ اَتَوَكَّؤُا عَلَيْهَا |
| اوداڅه شی دي ستاپه ښي لاس کښې اې موسى. اوئيل هغه داهمساه ده ځما تکيه لګوم څه پدې باندې |
| وَاَهُشُّ بِهَا عَلٰى غَنَمِيْ وَلِيَ فِيْهَا مَاٰرِبُ اُخْرٰى ﴿۱۸﴾ قَالَ |
| اوراڅنډوم پدې سره پاڼړې په خپلوګډو بیزو باندې اوځمادپاره پدې کښې فائدې نورې هم دی اوئيل الله ﷻ |
| اَلْقِهَا يٰمُوْسٰى ﴿۱۹﴾ فَاَلْقٰهَا فَاِذَا هِيَ حَيَّةٌ تَسْعٰى ﴿۲۰﴾ قَالَ |
| اوغورځوه دا اې موسى پس اوغورځوله هغه داهمسانو پدغه وخت هغه مارشومندې ئې وهلي اوئيل الله ﷻ |
| خُذْهَا وَلَا تَخَفْ ٚ سَنُعِيْدُهَا سِيْرَتَهَا الْاُوْلٰى ﴿۲۱﴾ وَاضْمُمْ يَدَكَ اِلٰى جَنَاحِكَ تَخْرُجْ |
| اونيسه دااومه يريږه ته زرده چه اوبه ګرځوو مونږ دا خپل اولني حالت ته. اوجوخت کړه لاس خپل ترخ سره چې رااوبه اوځي |
| بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ اٰيَةً اُخْرٰى ﴿۲۲﴾ لِنُرِيَكَ مِنْ اٰيٰتِنَا الْكُبْرٰى ﴿۲۳﴾ |
| تک سپين بغيرده عيب نقصان نه نښه بله ده، دپاره ددې چې اوښايومونږه تاته د نخوزمونږه لويونه. |

﴿وَمَا تِلْكَ بِيَمِينِكَ﴾ ددې ځائ نه دمنصب رسالت تمهيدشروع کيږي اوهرکله چې مقصود حضرت موسى عليه السلام ليږل وو فرعون ته سره دمعجزونه، نوددې وجه نه پدې ايتونو کښ ذکرددوه (۲) عظيمومعجزو کيږي، اوما استفهاميه ده په معنی دایّ شيئ؟ سره، دامبتداء ده او﴿تِلْكَ﴾ په معنی دهٰذه، سره خبردې، او﴿بِيَمِينِكَ﴾، حال دې دمعنی داشاري نه اوسوال کول دالله ﷻ باوجوددې نه چې ښه عالم وو نودامبني دې په ډيرحکمتونوباندې من جمله دهغي نه دادې چې پدې سره تقريردامرمقصود وو چې حضرت موسى عليه السلام په خپله اعتراف اوکړوچې داځماعصا (همسا) ده نوبيا الله ﷻ هغه په مارسره بدله کړه نوده ته ښه علم حاصل شوچې دامعجزه ده اودغه شان پديکښ مقصود دحضرت موسى عليه السلام نه يره، خوف هم لرې کول وو خکه کچرته بغيردتپوس نه الله ﷻ ددغي عصانه (مار) جوړکړې وی نودحضرت موسى عليه السلام خوف به ډيرزيات وو، اوبعض مفسرين فرمائي چې پدې سره مقصود استيناس، حضرت موسى عليه السلام انس پيدا کول وو خکه چې کله په موسى عليه السلام باندې بارنبوت، کيخودلی شو اومشقتونه ورته

بيان کړې شو نوحضرت موسیٰ ﷺ په دهشت، اوتحيرکښې مبتلاشو نوالله ﷻ دهغه دهشت اوتحيرختمولولپاره اوانس پيداکولولپاره داسې طرزتکلم اختيارکړولکه څنګه يوانسان دبل سره اختياروي ﴿قَالَ هِيَ عَصَايَ﴾حضرت موسیٰ ﷺ جواب ورکړو چې داځماهمساده، اوحضرت موسیٰ ﷺ دهغې همسانسبت ځان ته اوکړو څکه چې دهغه په لاس کښې هم وه اوورستوذکرکيدونکې فوائدتنه هم هغه اخستل دحضرت مقاتل رحمه الله نه مروي دی چې ددې عصا نوم(تبعه) وو اوداهغه عصاده چې آدم ﷺ دځان سره جنت نه راکوزه کړې وه، اوداشعيب ﷺ ته رارسيدلې وه اوبياتنه حضرت موسیٰ ﷺ اخستې وه،اوحضرت موسیٰ ﷺ دعصافوائداومقاصدبيانول شروع کړل چې﴿أَتَوَكَّؤُا عَلَيْهَا﴾، چې سترې شم نوتکيه ورته اولګوم﴿وَأَهُشُّ بِهَا عَلَىٰ غَنَمِي﴾، اوګډوبيزوله پرې پاڼې رڅندوم ﴿وَلِيَ فِيهَا مَآرِبُ أُخْرَىٰ﴾يعنې نورحوائج اوضروريات هم ورسره پوره کووم، لکه ګډې بيزې به ئې ورسره شړلې دشمن اوليوګانونه به ئې پرې دځپل ځان حفاظت کولو، بوکې ته به ئې واچوله نواوبه به ئې پرې دکوهې نه را اويستلې،وغيره اومفسرين فرمائي چې حضرت موسیٰ ﷺ لپاره دومره جواب ورکول کافې وو چې ،﴿هِيَ عَصَايَ﴾ ليکن دالله ﷻ سره همکلام کيدلولذت دوجې نه ئې کلام اوږدکړو،خوچې کله څنې فوائد اومنافع ئې ذکرکړه نودحياد دوجې نه خبره مختصره کړه اواوفرمائيلوچې﴿وَلِيَ فِيهَا﴾ اوبعض فرمائي چې پدې نورومنافعوذکرکښې اختصارځکه اوکړو چې دحضرت موسیٰ ﷺ خيال داوو چې کيدې شي چې الله ﷻ رانه بياتپوس اوکړي نوپه لذت اواکرام کښې به نوره اضافه اوشي ﴿قَالَ أَلْقِهَا يَـٰمُوسَىٰ﴾نوالله ﷻ ورته اوفرمائيلوچې داکثيرالمنافع عصا،اوغورځوه﴿فَأَلْقَىٰهَا فَإِذَا﴾ عصا غورځول وو چې دهغې نه يوه عظيمه اژدها اوغټ مارتنه جوړشواومنډې ئې وهلې، امام رازی رحمه الله فرمائي چې کله موسیٰ ﷺ دعصاډيرمنافع ذکرکړلونوالله ﷻ ورته هم دغې عصانه بطورمعجزه مار جوړکړو،حالانکه بلې معجزې ورکولوباندې هم الله ﷻ قادروو،لپاره دتعليم ددې چې ماسوی الله چې څومره دی هغې ته التفات کول اوپه هغې کښې مشغول کيدل داانسان لپاره دمهلك مارپشان دی اوددې وجه نه

حضرت ابراهیم علیه السلام اوفرمائیلو ،فانهم عدوّ لی الاّ ربّ العلمین. اودَدي وجه نه په حدیث کښ دهغې مال چې مالك پکښ زکوة نوي اداکړې په باره کښ داسي راځي چې. مثّل له یوم القیمة شجاعا اقرع(الحدیث). ﴿فَإِذَا هِيَ حَيَّةٌ﴾یعني دهغې عصانه مارجوړشو ،دلته دحیّ. ذکردې چې دا اسم جنس دي اطلاق ئې په هرقسم مارباندی کیږي وړوکی وي اوکه غټ وي اوپه سورة النمل اوسورة القصص کښ داسي فرمائیلي دي، کانّهاجانٌّ. جانّ وئیلی کیږي نري مارته،اوپه سورة الاعراف اوشعراء کښ داسي فرمائیلی دی چې، فاذا هی ثعبان مّبین. اوثعبان. وئیلی کیږي اژدهٰ اوښامارته. نوتطبیق مفسرینوداسي کړیدې چې دَدي عصانه به ښامارجوړیدلوفی الحقیقت لیکن په تیزئ اوسرعت کښ داسي وو لکه چې جان وړوکی اونری ماروي. اودَدي وجه نه چې په سورة النمل اوقصص کښ تشبیه مقصوده وه نوکانّها جانّ، اوئیلی شواوداسي اونوئیلی شو چې فاذا هی جانّ، اوبعض فرمائي چې په ابتداء کښ په وړوکی وو نو(جان) ورته اوئیلی شو اوچې بیابه ورو ،ورو غټیدونو ښامارتنه به جوړشو ځکه ورته په اعراف اوشعراء کښ،ثعبان، وئیلی دی، لیکن اوله توجیه غوره ده،اوبیاهرکله چې په دي ایت مذکوره کښ مقصود صرف دَعصادَحقیقت انقلاب خودل وو په مرتبه دَ،لابشرط شئ، کښ نوځکه دلته ذکرصرف دَ،حیّة، اوشو،اوپه اعراف اوشعراء کښ مقصود انقلاب سره وصف زائد(عظیم الجسامت) خودل هم وو په مرتبه دَبشرط شئ، کښ نوځکه هلته ذکردَثعبان،اوشو، اوپه سورة النمل اوالقصص کښ مرتبه دَبشرط شی، په صورت دَتشبیه کښ مراد وه نوځکه کانها جان،ذکراوشولو.

**فائده:** امام رازی رحمه الله فرمائی چې دَحضرت موسیٰ علیه السلام په خپوکښ پیزاروو اولاس کښ عصاوه، نوخپي اله دَهرب ده اولاس اله ده طلب ده،نوالله تعالیٰ ورته اولاُحکم اوکړو چې﴿فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ﴾ ، نوپدي سره اشاره مقصود وه ترك هرب ته اوبیاورته حکم﴿أَلْقِهَا﴾ ،پدي سره اشاره مقصود وه ترك الطلب، ته نوګویاچې ترڅوپوري انسان په مقام دَهرب،او طلب، کښ وي نومقام دَمحبوبیت نشي حاصلولی،اوکله چې هرب پریدي استقامت اختیارکړي اوطلب، پریدي دَالله تعالیٰ په ذات باندی توکل اوپوره اعتماد راشي نوبیامقام ته رسیږي، اومعرفت الهی ورته نصیب کیږي.

﴿قَالَ خُذْهَا ﴾حضرت موسیٰ عليه السلام چې کله داعجيب انقلاب اوکتلونوبمقتضائ بشريت اويريدو. اوچونکه داسي خوف،طبعي وو چې دهربشرپه طبعيت کښ الله تعالیٰ پيدا کړيدي نودَدي وجي نه دادَانبياء کرامو په جلالت شان کښ عيب اونقص ندي.نوالله تعالیٰ ورته اوفرمائيلوچې يريږه مه مونږه داواپس اصل حالت ته اړه وو. اوهرکله چې دَعصانه مار جوړيدل اوبيادَمار،نه عصا جوړيدل معجزه وه، اوپه اختياردَموسیٰ عليه السلام کښ نوه نودَدي وجه نه دَدي امرنسبت الله تعالیٰ خپل ځان ته اوکړو، اوغورځول اوبياراغستل دامعجزه نوه بلکه اختياري کارونه وو نودَدي وجه نه نسبت ئې حضرت موسیٰ عليه السلام ته اوکړو.

﴿وَٱضۡمُمۡ يَدَكَ ﴾دادويمي معجزي ذکردې چې خپل لاس دګريوان سره لاندې دَترخ سره جوخت کړه نوچې بيرا اوباسي نودابه ځليدونکی اوروښانه به وي اوداسپين والی به دَبيماریٔ برص،برګي دَوجي نه به نوي،بلکه بطورمعجزه به وي،نومراد په جناح سره مټ دې،اګرچه اطلاق دجناح، دَمارغه يادفرشتي په وزربانديٰ کيږي خوتوسعا اطلاق ئې دَانسان په مټ اواړخ باندی هم کيږي،اوتخرجْ، مجزوم دې ځکه چې داجواب دَامريعني دَ،﴿وَٱضۡمُمۡ ﴾ لپاره دې چې هغه په معنٰی دَادخال سره دې،ليکن صاحب دَبحرفرمائی چې په ايت کښ صنعة الاحتباك شويدې،چې دَ﴿وَٱضۡمُمۡ ﴾ امرلپاره جزا حذف کړې شوه اودَ﴿تَخۡرُجۡ﴾جزاء لپاره شرط محذوف دې، ځکه چې هرموجود دَشرط اوجزاء نه دلالت کړيدې په محذوف باندی نواصل کښ تقديردکلام داسي دې، واضمم يدك الى جناحك تنضم واخرجها تخرج(بحر).اودَ﴿مِنۡ غَيۡرِ سُوٓءٍ ﴾نه مراد بيماري دبرص ده، اوهرکله چې په عربوکښ،برص،ابغض اوډيردَنفرت والابيماري وه اومريض به ډيرخفه کيدلونودَدي وجه تعبيرتنه په سوء، سره اوشو،اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه منقول دی چې کله به حضرت موسیٰ عليه السلام خپل لاس ترخ کښ کيخودلو اوبيابه ئې چې رااويستلو نو هغه به دَسپوږمئ پشان ځليدلو(ابن کثير).

﴿لِنُرِيَكَ مِنۡ ءَايَٰتِنَا ﴾لام، متعلق دې په فعل محذوف پوري چې خذدې﴿ءَايَةً أُخۡرَىٰ ﴾ وړله مفعول به دې يعنی دَعصانه علاوه دامعجزه هم واخله اودادواړه معجزي زمونږ دهغې عظيمونشانيونه دي چې تاته خودل مقصوددوو، اوبعض فرمائی چې دَدي لپاره

عامل مقدر،فعلنا،دي اوتقديردكلام داسي دي. فعلنا مافعلنا لنريك الخ اومن.په «من ءَايَـٰتِنَا »كښې څوك دَابتداء لپاره وائي. اوڅوك وائي چې من بيانيه دي ليکن غوره خبره داده چې من،تبعيضيه دې، يعنې چې دادوه(٢)کومې معجزې تاته درکړې شوې دَازمونږ دَعظيم نشانيونه بعض دي،اوحضرت الشيخ رحمه الله فرمائي چې .«مِن ءَايَـٰتِنَا » سره اشاره ده اغراق دَفرعون سره دَلښکره اونجات دَبني اسرائيلوته اومطلب دادې چې مونږبه تاته نوري هم غټې غټې نشانئ دَخپل قدرت چې هغه هلاکت فرعون وي.به درته خايو. او«ٱلْكُبْرَى»ياصفت دې دَ«ءَايَـٰتِنَا»، لپاره اويامفعول ثاني دي.دَ «لِنُرِيَكَ» لپاره،صاحب دَبحرفرمائي چې«مِن ءَايَـٰتِنَا » ، دامفعول ثاني دې. او «ٱلْكُبْرَىٰ» .ددې لپاره صفت دې اوداغوره دې ددوه(٢)وجهونه (١)چې کله داصفت شي دَآيات لپاره نودَدي به معلومه شي چې آيات دَالله تعالیٰ ټول عظيم دي،په نسبت سره مخلوق ته اګرچه دَدوئ په خپل مينځ کښې يوي بلي په نسبت سره صغرو کبرشته دې، کماف الاية ومانريهم من اية الاّهي اکبرالخ)(٢) کچرته دامفعول شي نوعظمت، اوکبردَمعجزې به صرف يوې ته راجع شي يابه عصاته راجع شي اويابه يدته، اوحالانکه ورکړې شوې دواړه،معجزې عظيمې وې نوپکارده چې بيا الکبريين، ونيلې شوې وې.

| اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ﴿۲۴﴾ قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ ﴿۲۵﴾ |
|---|
| لاړشه ته فرعون ته بيشکه ده سرکشي کړيده،[1] اووئيل موسیٰ عليه السلام اې ربه خما پرانزې ماله سينه خما |
| وَيَسِّرْ لِيْٓ اَمْرِيْ ﴿۲۶﴾ وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِيْ ﴿۲۷﴾ يَفْقَهُوْا قَوْلِيْ ﴿۲۸﴾ |
| [1]اواسان کړې ماته کارخما [2]اوکولاؤکړې غوټه دَژبې خما چې پوهه شي،خلک په ويناخما. |

(1) اول سوال دَموسیٰ عليه السلام

(1) دويم سوال

(2) دريم سوال

وَاجْعَلْ لِّيْ وَزِيْرًا مِّنْ اَهْلِيْ ﴿۲۹﴾ هٰرُوْنَ اَخِي ﴿۳۰﴾ اشْدُدْ بِهٖۤ اَزْرِيْ ﴿۳۱﴾ وَاَشْرِكْهُ فِيْۤ

[3]اوجوړکړي مالره مددګاردکورنئ خمانه هارون ورور خما.کلکه کړي په ده سره ملاخما [4]اوشریک کړې دې په

اَمْرِيْ ﴿۳۲﴾ كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيْرًا ﴿۳۳﴾ وَّنَذْكُرَكَ كَثِيْرًا ﴿۳۴﴾ اِنَّكَ كُنْتَ بِنَا بَصِيْرًا ﴿۳۵﴾

کار(دنبوت)خماکښ دَدې دپاره چې ستاتسبیح اووایودېره اوچې یادوو تادېر.بیشکه ته ئې مونږلره لیدونکې

﴿اَذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ﴾ دَمعجزاتو ورکولو نه پس الله جل جلاله حضرت موسىٰ عليه السلام ته دَرسالت منصب ذمه داري بيان كړه چې فرعون ته لاړشه اوهغه ته دَتوحيد او ايمان راوړلو دعوت وركړه. اوذكر فقط دَفرعون اوشو حالانكه موسىٰ عليه السلام ټولوته مبعوث وو ځكه چې قوم تابع وو دَهغه(كبير). ﴿اِنَّهٗ طَغٰى﴾ طغىٰ دَ طغيان نه دې په معنىٰ دَانتهائي سركشي سره ،اوداعلت دې دَرسول ليږلو چې فرعون ته ځكه لاړشه چې هغه په سركشئ كښ دَحدنه تيرشويدې دَخدائي دعوىٰ ئې كړيده.

﴿قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِيْ﴾ دَدې ځائ نه دَواقعي دويم مقام شروع كيږي، چې هركله موسىٰ عليه السلام ته نبوت ذمه داري وركړې شوه اوهغه محسوسه كړه چې نبوت يوه مشكله ذمه داري ده نودَدې ذمه دارئ دَتكميل لپاره ئې الله جل جلاله نه پنځه درخواسته اوكړو ،چې هغه ورته الله جل جلاله پوره كړل، اول درخواست ئې دااوكړو چې﴿اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ﴾. شرح صدرنه مراد توفيق دَصبر او استقامت دې چې دَرسالت ذمه دارئ اداكولوكښ كوم تكاليف اومشقتونه راځي چې هغه برداشت كړم. اودَتكاليفودَوجي نه په زړه كښ ئې اضطراب پيدانشي،اودغه شان په زړه كښ شجاعت پيداشي چې بغيرستانه دَبل هيڅ چانه،نه يريږم، امام رازى رحمه الله فرمائي چې شرح صدر ،حقيقت دادې چې دَانسان په زړه كښ دنياته التفات بالكل پاتي نشي نه په اعتباردَرغبت سره اونه په اعتباردَرهبت سره، بلكه دَده په زړه كښ دَدنيااهميت دَماشي، اومچ برابرهم نوي،زړه ئې معلق نوي په اهل

---

(3) څلورم سوال

(4) پنځم سوال

اولاد پوري اونه په بل څيزپوري،اونه دَيودنيوي شان وشوکت والانه خوف.خطره محسوس کوي، نوحضرت موسى عليه السلام خپل اهل وعيال پريخي وو اودَيومتکبر.مغرور بادشاه ته دَحق دعوت لپاره تللونوځکه ئي دَشرح صدردعااوغوختله﴿وَيَسِّرۡ لِيٓ أَمۡرِي ﴾ . دادويم درخواست دې يعنى ځماپدي کارکښ يعنى رسالت کښ آساني پيداکړي اوآساني پيداکولومقصد ظاهري اوباطنى اسباب مهياکيدل دي، اوحضرت موسىٰ عليه السلام دَشرح صدر،اوتسهيل الامر.کښ انداز ددعااسي اختيارکړو چې اول ئي شرح اوتيسير، مبهم ذکرکړو اوبياپه﴿صَدۡرِي﴾او﴿أَمۡرِي﴾سره ئي تفصيل بيان کړو لپاره دَتاکيد،ځکه چې پديکښ تکراردې

﴿وَٱحۡلُلۡ عُقۡدَةٗ مِّن لِّسَانِي ﴾دادريم درخواست دې چې ځما دَژبې غوټه پرانزي چې ځماپه خبروباندى خلك پوهه شي،دَحضرت موسىٰ عليه السلام ژبه مبارکه په وړوکوالي کښ سوزيدلى وه، چې يوه ورځ فرعون موسى عليه السلام په غيږ کښ اغستى وو نوموسىٰ عليه السلام دې دَږيري نه اونيولواوپه مخ باندى ئي ورله يوه زبردسته سپيړه راواچوله، نوفرعون خپلي بي بي حضرت اسيه رضي الله عنها ته اوئيل چې ځمايقين دي چې دې ځمادشمن دې اوداهم هغه بچې دې چې ځمابادشاهي به دَده دلاسه ختميږي، حضرت اسيه رضي الله عنها ورته اوئيل چې داناپوهه بچې دې دَناپوهئ دَوجي نه ئي په تاباندى ګزارکړيدې اودَدشمنئ دَوجي نه ئي ندې کړې اوته پري تجربه اوکړه دې په ياقوت اوسکروټوکښ فرق نشي کولى، نوفرعون حکم اوکړو نوپه يوپليټ کښ سکروټي اوپه بله کښ ياقوت راوړى شو اوموسىٰ عليه السلام ته کيخودلى شو،نوحضرت موسىٰ عليه السلام لاس مبارك، ياقوتوته اوړو، خوحضرت جبرئيل عليه السلام ورله لاس، سکروټوته يوړو، نوحضرت موسىٰ عليه السلام يوه سکروټه رااوچته کړه اوخولي ته ئي واچوله اوژبه مبارك ئي اوسوزيده اوپه هغې کښ غوټه‌ګنده، راغله اوخبري به ئي صحيح نشي کولى نوپدي ايت کښ دهغې نقصان دَختمولودعااودرخواست دې

**فائده**(۱) دَايت نه دامعلوميږي چې پدي سکروټي سره دَحضرت موسىٰ عليه السلام ژبې مبارکي ته نقصان رسيدلوليکن(لاس)ته ئي ورسره ضرر رسيدلى وو اوکه نه؟ بعض مفسرين لکه قرطبي رحمه الله وغيره فرمائى چې لاس ئي هم سوزيدلي وو اوفرعون دَهغې دَعلاج لپاره ډيرکوشش کړې وو خوصحيح نشو، نوبياچې کله موسىٰ عليه السلام ده ته دعوت ورکړو نوفرعون ورته اوئيل چې

نه ماکوم رب طرف ته رابلې؟ نو حضرت موسیٰ ﷺ ورته اوفرمائیلو هغه رب طرف ته چې کوم لاس، تاسو تهیك کولی او هغه صحیح کړو هغه رب طرف ته دعوت درکوم.

**فائده** (۲): دَحضرت موسیٰ ﷺ دژبې غوټه مکمل طور باندې پرانستلې شوې وه او که نه؟ نو پدیکښې هم دَمفسرینو اختلاف دې. بعض مفسرین دَدې قائله دی چې دغوټه ټوله خلاصه شوې وه. ځکه چې الله ﷻ فرمائی﴿ قَدۡ أُوتِيتَ سُؤۡلَكَ يَٰمُوسَىٰ ﴾ . چې ستا درخواست پوره کړې شواو ستا دعاقبوله کړې شوه، نو معلومه شوه چې دَحضرت موسیٰ ﷺ دژبې غوټه مکمل ختم کړې شوې وه، لیکن اکثر مفسرین دَدې قائله دي چې دانقصان بالکلیه نوو ،زائله کړې شوې بلکه دومره حد پورې زائله کړې شوې وو چې حضرت موسیٰ ﷺ به خلك په خپلې خبرې باندې پوهه کولی شو ،او خلك به دهغه په خبره باندې پوهیدلو ، یعنی بقدرالحاجت، الله ﷻ دده دَژبې نقصان زائله کړې وو ،او حضرت موسیٰ ﷺ هم سوال صرف دَدومره نقصان دَازالې کړې وو چې هغه بقدرالحاجة وو لکه پدې دلالت کوي ورستو جمله چې﴿يَفۡقَهُواْ قَوۡلِي﴾ ده اوکه حضرت موسیٰ ﷺ دَټول نقصان دازالې سوال کړې وې نو الله ﷻ به ورله ټول نقصان ختم کړې وو لیکن هغه سوال دَټول نقصان دَازالې نوو کړې (ابن کثیر) او دَدې وجه چې کله موسیٰ ﷺ فرعون او دَهغه قوم ته دعوت ورکړو نو فرعون قوم ته داسې اوئیل چې، ام انا خیرمن هذاالذی هومهین ولایکاد یبین(الزخرف: ۵۲) نو دَلایکاد یبین، مقصد دادې چې صحیح اوپه پوره فصاحت سره خبرو کولو باندې قادرندې. ﴿وَٱجۡعَل لِّي وَزِيرٗا﴾ دا څلورم درخواست دې مخکښې درخواستونه ئې دَ خپل ځان په باره کښې وو او دا درخواست ئې دَخپل ورور حضرت هارون ﷺ په باري کښې دې چې ځما ورور هارون ﷺ هم ځما سره پدې امر نبوت کښې شریك کړه، او وزیر مشتق دې دَ وِزر ،نه معنی ئې ده لوئې او درووند بوج اوچتول او بیا دَاصفت اسم اوګرځیدلو ،معاون، دَبادشاه لپاره ځکه چې هغه هم دَبادشاه نه دَمملکت امورو پیټی(بوج) اوچتوي،(روح) او بعض فرمائی چې دا ماخوذ دې دَوَزَرَ الجَبلَ، نه وئیلی کیږي هغه غرته چې پناه لپاره استعمالیږي(پناه ګاه) او دَتکلیف او دَخطرې په وخت کښې ورته رجوع کیږي او وزیر،ته هم ځکه وزیروئیلی کیږي چې بادشاه دَحکومت په معاملاتو کښې ده ته رجوع کوي او دَتکلیف او پریشانئ وخت کښې یعنی نبي مشوري

ورکوي. اودلته دَوزير نه مراد مشارك اومعاون دې. چې دابوج دَرسالت ډېرګران دي نوماته يوقريبي مددګاراومعاون پکاردې

﴿هَٰرُونَ أَخِي﴾. ﴿وَزِيرًا﴾ او ﴿هَٰرُونَ﴾ مفعولين دى دَاجعل. لپاره. خو﴿هَٰرُونَ﴾مفعول اومؤخر ذکر کړې شو او﴿وَزِيرًا﴾مفعول ثاني مقدم ذكركړې شولپاره دَاهميت دَامروزارت اولپاره دَعنايت دَامروزارت چې وزارت خماورورته عنايت اوفرمائى اويا﴿لِّي﴾ او ﴿وَزِيرًا﴾. دواړه مفعولين دى او ﴿هَٰرُونَ﴾عطف بيان دې دَ﴿وَزِيرًا﴾لپاره او ﴿أَخِي﴾ بدل دې دَ﴿هَٰرُونَ﴾نه ﴿اشْدُدْ بِهِ أَزْرِي﴾ ازرپه معنى دَقوت سره دې، اويا په معنى دَظهر.سره دې يعنى خماورورخماسره شريك کړې اوخماپه قوت کښې اضافه اوکړې، ياخماملا ورسره مضبوط کړې ﴿وَأَشْرِكْهُ فِي أَمْرِي﴾داپنځمه دعاده چې خماداورور نبي اوګرځوي اوپه رسالت اودعوت کښې خماسره شريك کړې،اوحضرت هارون عليه السلام دَموسى عليه السلام نه په عمرکښې درې(۳) کاله مشروو ،اوقدکښې هم، ورنه اوچت وو اوجسم کښې ورنه هم غټ وو، اودَحضرت موسى عليه السلام نه درې کاله مخکښې وفات شوې وو﴿كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيرًا﴾داغايت ددغې آخري دعاګانو ذکرکيږي، چې خماداورور ځکه خماسره نبي اوګرځوه اوماسره ئې پدې امرکښې شريك کړه چې مونږ ستاعبادت اوکړو. اوستا توحيدپه خې طريقې سره بيان کړو.اوغوره خبره داده چې دَتسبيح، اوذکرنه مراد مونځ. اوهسې ذکر،اودَتوحيد دعوت ټول مراد دى.﴿إِنَّكَ كُنتَ بِنَا﴾داتوسل دې په صفت دَالله جل جلاله سره.

﴿قَالَ قَدْ أُوتِيتَ سُؤْلَكَ يَٰمُوسَىٰ ۝٣٦ وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً أُخْرَىٰٓ ۝٣٧﴾

اوئيل الله جل جلاله بيشکه درکړې شو تالره غوختلى شوې څيزونه ستا اى موسى؛ اويقيناً احسان کړيدې مونږ په تاباندې بل ځلې

﴿إِذْ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ أُمِّكَ مَا يُوحَىٰٓ ۝٣٨ أَنِ اقْذِفِيهِ فِي التَّابُوتِ﴾

[1] کله چې حکم اوکړو مونږه ستامورته دَهغې چې حکم ورکيدې شوچه واچوه دَه لره(موسى عليه السلام) په صندوق کښې

(1) اول انعام په موسى عليه السلام باندې

| فَاقۡذِفِيۡهِ فِي الۡيَمِّ فَلۡيُلۡقِهِ الۡيَمُّ بِالسَّاحِلِ يَأۡخُذۡهُ عَدُوٌّ لِّيۡ |
| --- |
| بيااوغورځوه صندوق په درياب كښ پس اوبه غورځوي ده لره درياب په غاړه باندې اوبه نيسي ده لره دشمن څما |
| وَعَدُوٌّ لَّهٗ ؕ وَاَلۡقَيۡتُ عَلَيۡكَ مَحَبَّةً مِّنِّيۡ ۚ وَلِتُصۡنَعَ عَلٰى عَيۡنِيۡ ﴿۳۹﴾ |
| اودشمن دَده [2] اوواچوله ما په تاباندې مينه دَخپل طرف نه اودپاره ددې چې پالنه اوشي ستا په حفاظت څما كښ |

﴿قَالَ قَدۡ اُوۡتِيۡتَ ﴾پدې كښ زيرې دې په قبوليت دَدعاګانوسره،سره دَپنځوانعاماتونه چې الله ﷻ په موسىٰ عليه السلام باندې ددې نه مخكښ كړي وو،بعني ستاسوال مي قبول كړو اوستاسوال قبلول څه نوي خبره نده ددې نه مخكښ هم مونږپه تاباندې احسانات كړي وو،نودَپنځه دُعاګانوقبولولوپه جواب كښ دَتيرشوو پنځوانعامات ذكرهم كوي سؤلٌ فُعلٌ په وزن په معنىٰ دَمفعول،مسئول، سره دې لكه خبزٌ په معنىٰ دَمخبوز، سره دې﴿إِذۡ أَوۡحَيۡنَآ ﴾ دادَ اول انعام ذكردې،فرعون ته چې كله نجوميانو اطلاع وركړه چې بني اسرائيل كښ به بچې پيداكيږي اوستابادشاهي به دَهغه دَلاسه ختميږي نوفرعون حكم اوكړو چې په بني اسرائيلوكښ كوم بچې پيداكيږي هغه قتل كوئ نوپدې شپوورځوكښ حضرت موسىٰ عليه السلام پيداشونودَده والده ډيرفكرمنده شوه چې كچرته فرعونيانوته پته اولګي نودې به قتل كړي، نوالله ﷻ دَحضرت موسىٰ عليه السلام والده ته په زړه كښ دَفرښتي په ذريعي سره اويادَخوب په ذريعي سره ، داتدبيرواچولوچې دې په يوتابوت كښ بندكړه او درياب ته ئې اوغورځوه، نوهغې هم دغسې اوكړونودَ ﴿أَوۡحَيۡنَآ﴾نه مراد الهام دې، اوياتنه په خوب كښ خودل مراددى

﴿أَنِ اقۡذِفِيهِ ﴾داتفسيردې دَ﴿مَا يُوحَىٰٓ ﴾ او﴿ٱلۡيَمِّ ﴾نه مراددريائي نيل دې چې دَمصرپه مينځ كښ بهيدلو﴿فَلۡيُلۡقِهِ ٱلۡيَمُّ بِٱلسَّاحِلِ ﴾يعنى داسمندربه دى ساحل ته اورسوي، نودَحضرت موسىٰ عليه السلام والدي موسىٰ عليه السلام په تابوت كښ بندكړو اوپه هغې باندې ئې،زفت،پترول اولګولواودريائي نيل ته ئې اوغورځولونودَدريائي نيل نه يولوئ نهردَفرعون باغ ته هم تلى وو

---

[2] دويم انعام ذكرپه موسىٰ عليه السلام باندې

نو هغه تابوت تلو ساحل دَسمندر ته اوبيايه هغه نهر کښې روان شو کوم چې دَفرعون، باغ ته تلې وو. نو په ځني رواياتو کښې دی چې فرعون په دغه وخت کښې دَخپلې بي بي آسيه ﷺ سره په باغ کښې ناست وو چې اچانك دا تابوت راغی او په ځني رواياتو کښې دی چې تابوت دَفرعون وينځو اونيولو اوبيائې فرعون بي بي ته پيش کړو اوهغې به بيا فرعون ته اطلاع اوکړه. نو فرعون حکم اوکړو چې داکولاؤ کړئ، نو چې کله ئې تابوت کولاؤکړو نو يو ډير خائسته بچې په کښې وو. نو فرعون چې ځرنګه اوکتلو نو فوراً محبت ئې ورسره پيدا شو اودَ ده بي بي. آسيه ﷺ ورته اوئيل چې مونږ به دې خپل بچې جوړ کړو ځکه چې ددوئ خپل بچي نو و. بعض رواياتو کښې دي چې فرعون په زړه کښې الله ﷻ داخبره هم واچوله چې داهم هغه بچې دې چې دَده دَلاسه به ستا بادشاهي ختميږي اوددې اظهار ئې خپلي بي بي ته هم اوکړو. لکه چې په روايت دَنسائی کښې دی چې کله دَفرعون بی بی هغه ته اوئيل چې قرة عين لی ولك، نو فرعون ورته اوئيل چې يکون لكِ يعنی ستا لپاره د وي او ماته حاجت نيشته دې، دَنبي ﷺ ارشاد دې، لواقر فرعون بان يکون قرة عين له، کماقالت امراءته لهداه الله تعالی کماهدیٰ به امراءته، ولکن الله حرمه ذلك ترجمه: که چرته فرعون هم داسې وئيلی وي چې دې به زما سترګو يخ والی وي لکه څنګه چې اسية وئيلي وونو الله ﷻ وَله هم هدايت ورکړې وو(النسائی) ليکن الله ﷻ دَحضرت موسیٰ ﷺ حفاظت کولو نو فرعون دَخپل بی بي په اصرار باندی موسیٰ ﷺ دَبچې پشان پرورش اوساتنه ئي شروع کړه او فرعون ته ﴿عَدُوٌّ لِّي وَعَدُوٌّ لَّهُ﴾ چې وئيلی شويدی نو هغه دَالله ﷻ دشمن ځکه وو چې دَالله ﷻ دَدين مخالف وو اودَخدائ ﷻ دعویٰ ئي کړي وه اودَموسیٰ ﷺ دشمن ځکه وو چې دادومره قتلونه ئي دَموسیٰ ﷺ دَقتل کولو لپاره کولو. نو اصل دشمني ئي دَموسیٰ ﷺ سره وه اودَهغه دَوجي نه ئي دَبني اسرائيلو بچي قتل کول. اوداهم ممکنه ده چې فی الحال ئي ورسره عداوت نو وبلکه محبت ئي ورسره وو ليکن په اعتبار دَمايؤل اليه سره ورته ﴿وَعَدُوٌّ لَّهُ﴾ وئيلي وي چې راتلونکی وخت کښې بهٔ دې دَده لوئ دشمن وي(کبير). ﴿وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي﴾ "منی" يامتعلق دې په ﴿وَأَلْقَيْتُ﴾ پوري نو مطلب به داشي چې، القيت منی عليك محبة، چې ماخپل محبت په تاباندی واچولو يعنی ستاسره مي محبت اوکړو نو چې الله ﷻ ورسره محبت اوکړو دَمخلوقاتو په

زړونوکښ هم ورسره محبت پيدا شو ، (کشاف) او يامتعلق دې په حاصلة محذوف پوري چې هغه صفت دې دَمحبة لپاره نو دا يت مقصد به داشي اى القيت عليك محبة حاصلة منى بخلقى(كبير ،كشاف)يعنى ما په تا باندې دَخپل طرف نه اثردَمحبت واچولو اودَخلکو په زړونوکښ مې ستاسره محبت پيدا کړو ،اودَدې وجه نه چې چا به هم موسى العليه ته کتلونو فوراً محبت به ئې ورسره پيدا کيدلو﴿وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِيٓ ﴾، لام په 'لتصنع' کښ 'لام کَیْ' دې او داعلت دې دَالقاء دَمحبت لپاره اوتصنع على الخ نه مراد په خپلي نګرانئ کښ تربيت کول دی ماخوذدې دَصنع الفرس.نه چې کله آس ښه اوساتلى شي نو دا يت مطلب دادې چې څه ستامحافظ اونګران يم اوستاتربيت مې په خپله اوکړو (مدارك) اوعلامه آلوسى رحمه الله فرمائى چې﴿وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِيٓ ﴾،استعاره تمثيليه ده دَحفاظت نه، قرطبى ددې ايت په تفسيرکښ ليکى اى تربى وتغذى على مراى منى قال النحاس وذلك معروف فى اللغة يقال به صنعت الفرس واضمنته،اى:احسنت القيام عليه(قرطبى) يعنى ستاتربيت اوپرورش څه په خپلي نګرانئ کښ اوکړم او داسي کنائي الفاظ استعمالول په عرف اولغت کښ مشهوراومعروف دي. اوعلامه زمخشرى دَايت په تفسيرکښ داسي ليکلي لتربى ويحسن اليك وانامراعيك وراقبك كمايراعى الرجل الشئ بعينيه، نودَدې ټولوعباراتونه معلومه شوه چې﴿وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِيٓ ﴾ کنايه ده دَحفاظت اودَنګرانئ نه، اوعبارت محمول دې په استعارى باندې،اوامام رازى رحمه الله فرمائى چې دَ﴿عَيْنِيٓ﴾نه مراد ارادتى دې لکه څرنګه چې يو سړى څه څيزجوړه وي نو په خپله ورته اولاړوي اوګوري ورته نوهغه شى ورته داسي جوړشي چې څرنګه ئې دې خوښه وي اودده اراده وي اويادَعينى، نه مراد عين العلم، دې اودَاکنايه ده دَحفاظت اونګرانئ نه (کبير)نوددې ټولواقوالونه دامعلومه شوه چې پدې ځائ کښ دَعينى، تفسيرپه سترګو، سره کول مخالف دى دَتفسيردَسلف،اوخلف نه اورجحان دې تجسيم ته،اوداوئيل چې تاويل پکښ هم ندې جائز،ډيرلوئ جراءت دې په اسلافوباندې(والى الله المشتكى) لکه چې داعام عادت دې دَبعض معاصرمفسرينو ،باقى عين، دَالله جل جلاله دَقبيلى دَمتشابهاتونه دې چې ددې په باره کښ تفصيل

بار بار تیر شویدي او د ﴿عَيۡنِيۡٓ﴾ اضافت دتشریف او تکریم لپاره دې. ورنه مخلوقات ټول د الله ﷻ په نګرانئ کښې دي

إِذۡ تَمۡشِيٓ أُخۡتُكَ فَتَقُولُ هَلۡ أَدُلُّكُمۡ عَلَىٰ مَن يَكۡفُلُهُۥۖ فَرَجَعۡنَٰكَ

[1]کله چې روانه شوه خورستا او وئیل ئ آیا اوښایم تاسوته هغه څوك چې پالنه به اوکړي دده نو[2] واپس اوړسولې مونږ ته

إِلَىٰٓ أُمِّكَ كَيۡ تَقَرَّ عَيۡنُهَا وَلَا تَحۡزَنَۚ وَقَتَلۡتَ نَفۡسًا فَنَجَّيۡنَٰكَ مِنَ ٱلۡغَمِّ

خپلې مورته.دی دپاره چې یخې شي سترګې دهغې اوچه خفه نشي[3] اومړکړوتایوتن پس بچ کړې مونږته دغې غم نه

وَفَتَنَّٰكَ فُتُونٗاۚ فَلَبِثۡتَ سِنِينَ فِيٓ أَهۡلِ مَدۡيَنَ ثُمَّ جِئۡتَ

اوازمیښتونه اوکړومونږ په تابندی ډیرازمیښتونه بیاحصارشوي ته څوکاله په مدین والوکښې بیاراغلې ته

عَلَىٰ قَدَرٖ يَٰمُوسَىٰ ۝ وَٱصۡطَنَعۡتُكَ لِنَفۡسِي ۝

په وخت مقرر(مقدر)باندی ای موسی! اوغوره کړې ماته دپاره دځان خپل.

﴿إِذۡ تَمۡشِيٓ﴾ دادویم انعام اواحسان ذکردې چې کله حضرت موسی علیه السلام والدي تابوت په دریاب کښې پریخودلو نودموسی علیه السلام خورچې نوم دهغې مریم دې، ته ئي اوئیل ته لاړه شه اوپه پټه ئي پته اولګوه چې څه اوشو، نوهغه چې کله دفرعون ځائ ته راغله نودې اوکتل چې دموسی علیه السلام لپاره ډیري مرضعي راغوختلی شویدي، لیکن حضرت موسی علیه السلام د الله ﷻ په حکم سره دیوي زنانه پئ نه څکل، کماقال الله تعالی وحرمناعلیه المراضع،نودحضرت موسی علیه السلام خوراوئیل چې څه تاسوته یوه زنانه اوښایم چې هغه به ستاسولپاره دده پالنه اوکړي اوخیرخواه به هم وي، نودموسی علیه السلام مور رااوغوختلی شوه، نوځرنګه چې هغې موسی علیه السلام دسیني سره نزدې کړو نوهغه پئ څکل شروع کړل فرعون په کورکښې ډیره خوشحالي شوه اودموسی علیه السلام

(1) ذکرددریم انعام

(2) دځلورم انعام ذکر

(3) پنځم انعام.

مورته ئي اوئيل چې ته به دلته وي او دا بچې به ساتي هغې ورته اوئيل چې څه خودلته نشم پاتي کيدلي البته که ستاسوحکم اوخواهش وي نوبچي به څه کورته بوځم اوهلته به ئي ستاسولپاره غټ کړم، نوهغوئ پدې هم راضي شو اوموسیٰ عليه السلام مورته ئي وظيفه هم مقررکړه، نوبچې هم واپس شو اوپيسي هم ميلاويدل شروع شو ،نوپدي آيت کښ ددغې انعام ذکردې،نوره تفصيلي واقعه په سورة القصص کښ به راشي(انشاء الله تعالى).

﴿وَقَتَلْتَ نَفْسًا﴾ دادريم احسان ذکردې، کله چې حضرت موسیٰ عليه السلام لوئ شو ، نويوه ورځ ئي بهرته تشريف راوړو نودوه کسان ئي اوکتلوچې جهګړه ئي کوله يوقبطي وو اوبل بني اسرائيلي وو ، نوبني اسرائيلي دَموسیٰ عليه السلام نه مدد اوغوختلواوو هم مظلوم چې قبطي پري ظلم کولونوموسیٰ عليه السلام بلااراده قتل صرف دَظلم نه منع،کولولپاره قبطي ئي په يوسوك(موکه) اووهلونوهغه مړشو اوپدي وخت کښ دَموسیٰ عليه السلام عمر دولس(۱۲)کاله وو،نوحضرت موسیٰ عليه السلام ته دوه(۲) قسم خوف اوخطره لاحقه شوه،يوداچه آخرت کښ رانه دَدي په باره کښ نپوس کيږي څکه چې بغيردَاذن الله تعالیٰ نه قتل وو ،اودويمه داچې دَفرعونيانوپه ګرفت کښ به هم راځم هغوئ به مي هم ګرفتاره کوي، نوالله تعالیٰ ورته دَدواړوقسمو،غمونونه نجات ورکړو ،دَاخروي غم نه دَنجات لپاره ئي اوفرمائيلو ،فغفرله،اودنيوي غم اوپريشانئ دَنجات لپاره ئي مصرنه مدين ته اورسولو،چې هلته ئي دَحضرت شعيب عليه السلام دَبچئ سره نکاح اوکړو ،تفصيلي واقعه په سورة القصص کښ به راشي(انشاء الله).

﴿وَفَتَنّٰكَ فُتُوْنًا﴾ فتون مصدردې لکه صبور،شکور، وغيره شو اوياجمع ده دَفتن يادَفتنة نوکچرته دَفتنة جمع شي نودَاخيري تاء اعتباربياندې کړې شوې څکه چې داپه حکم دَمنفصل کښ ده لکه(حجوز)جمع دَحجزة ده چې هلته هم دَتاء اعتبارندې شوې نوڅکه جمع په صورت دَمذکرکښ راغليده اوددې نه مرادمختلف قسم تکاليف دی،(۱)لکه ولادت دَحضرت موسیٰ عليه السلام په هغه زمانه کښ کيدل چې فرعون به دَبني اسرائيلوبچې قتل کولو (۲) بيادَموسیٰ عليه السلام په درياب کښ غورځول(۳)اوبيادَفرعون کورته رسيدل اوهغه دَده دَقتل اراده کول(۴) بيادَحضرت موسیٰ عليه السلام منع کول دَنورو زنانودَپيونه(۵)بيافرعون دَږيري نه رانيول اوسپيره ورکول اوهغه بياده دَقتل عزم کول(۶)بياقتل دَقبطي اودَمصرنه تختيدل مدين ته چې لاره ورته هم نوه معلومه، اوبيااپس دَفرعون مقابلي ته بي سروسامانئ راتلل وغيره داټول

تکالیف اوپریشانئ وي چې الله ﷻ دَحضرت موسیٰ علیه السلام حفاظت کړې وو او موسیٰ علیه السلام ته ئې دَدینه نجات ورکړې وو.

﴿فَلَبِثْتَ سِنِينَ فِيٓ أَهْلِ مَدْيَنَ ﴾ دادَ څلورم انعام ذکردې، حضرت موسیٰ علیه السلام چې کله قبطي قتل کړو اودَهغې اطلاع فرعون ته اوشوه نوفرعون حکم جاري کړو چې موسیٰ علیه السلام گرفتار کړئ اوبیائې قتل کړئ نوموسیٰ علیه السلام ته یوکس دَښهرنه راغلواوداطلاع ئې ورته اوکړه چې خان اوباسه فرعون ستادَقتل لپاره کسان لیږلي دي اوستادَقتل فیصله ئې کړیده. نوموسیٰ علیه السلام فوراً مدین ته روان شو، اگرچه دَمدین لاره موسیٰ علیه السلام ته نوه معلومه خوپه الله ﷻ باندې ئې توکل اوکړو اواوفرمائیلوچې، عسیٰ ربّی ان یّهدینی سوآء السّبیل(القصص)نوچې کله مدین ته بهردَڅاروو وبه کولوالاخائ ته اورسیدلونوهلته ئې خلك اوکتل چې ډیربې مروته ووخپل څاروي ئې اوبه کول اودوه(۲) زنانه هغه لرې اوجداناستې وي اودَهغوئ څاروو به اوبوته زورکولواوهغوئ به نه راپریخولو، نوچې موسیٰ علیه السلام تنه تپوس اوکړوچې داڅه واقعه ده چې تاسوخپل څاروي نه پریدئ اوبوته، نوهغوئ ورته اوئیل چې زمونږ پلاربوډادې اودَاسلام دَوجې نه داخلك زمونږ مخالف دي نوچې کومې اوبه دَدوئ دَڅاروو نه پاتې شي نوهغه بیامونږ خپلوڅارووته ورکړو، نوموسیٰ علیه السلام دَدوئ څاروي اوبه کړل، نوهغوئ په وخت کورته لاړې نوحضرت شعیب علیه السلام تنه تپوس اوکړو دَوختې راتللو، نوهغوئ ورته ټوله قصه بیان کړه، بهرحال نوهغه موسیٰ علیه السلام رااوغوختلویوبل سره تعارف اودَمصرنه مدین ته راتللوقصه موسیٰ علیه السلام هغه ته بیان کړه اوهغه ورته تسلي ورکړه، اوبیاهغه ورته خپل بچئ په نکاح کړه څه وخت پورې هلته پاتې شو اوچې کله دَفرعون غصه سړه شوه اودَقبطي په قتل باندې ډیروخت تیرشونوبیامصرته واپس راروان شو، نومرادپه سنین، سره هغه لس(۱۰)کاله دي کوم چې په عوض دَمهرکښ دَاجرت والامقررکړې شوې وو، اودَحضرت وهب بن منبه رحمه الله منقول دي چې حضرت موسیٰ علیه السلام په مدین کښ دَشعیب علیه السلام سره اته ویشت(۲۸)کاله تیرکړې وو، چې (۱۰)کاله دَهغې نه دَمهروالاوو اواتلس(۱۸)کاله نورهسې ئې تیرکړې وو، اودَ شعیب علیه السلام دَبچئ نه ئې اولادهم شوې وو اونوم دهغې بچئ دَشعیب علیه السلام چې بی بی وه دَموسیٰ علیه السلام صفورا، وو. ﴿ثُمَّ جِئْتَ عَلَىٰ قَدَرٍ ﴾ اکثرمفسرین فرمائي چې قدر، نه مراد تقدیردې دالله ﷻ چې هغه څلوېښت کاله عمردې دپاره دَنبوت اورسالت یعني ته دَعمرهغه وخت ته رااورسیدلی چې

الله ﷻ هغه دنبوت اورسالت ورکولودپاره مقرراوفيصله کړيدې،اوبعض مفسرين فرمائي چې مراد دَدينه هغه نيټه پوره کول وو کومه چې دَشعيب عليه السلام سره مقررکړې وه يعنى تاهغه نيټه پوره کړه چې کومه تامقرر کړې وه.

**فائده**: کچرته دَايت مطلب هغه واخستلى شي چې کوم دَاکثرومفسرينوراۍ ده چې قدر، نه مراد تقديري عمر دې دَنبوت لپاره چې هغه څلويښت کاله دى نوبيادَوهب بن منبه رحمه الله قول اقرب الى الصواب دې ځکه چې حضرت موسىٰ عليه السلام چې مدين ته تللى وو نوعمرئي دولس(۱۲)کاله وو اوچې نبوت ورته ميلاؤشونوعمرئي څلويښت کاله وو،نومعلومه شوه چې توله مده چې په مدين کښ تيره کړې وه هغه اته ويشت(۲۸)کاله وو. ﴿وَٱصۡطَنَعۡتُكَ﴾داذکردَپنځم انعام دې اوداد تولونه لوئ انعام دې چې الله ﷻ درسالت اونبوت ورته ورکړو،حضرت ابن عباس رضي الله عنه دَ﴿لِنَفۡسِي﴾ترجمه په لوحى ورسالتى، سره کوي،اوعلامه زمخشري اوامام رازي رحمه الله وغيره فرمائي چې لنفسى داکنايه ده اوتمثيل دې دَهغې منزلت اومرتبې دَتقريب اوتشريف اوتکليم نه چې کومه الله ﷻ موسى عليه السلام ته ورکړي وه، يعنى الله ﷻ تشبيه ورکړي ده دَموسى عليه السلام حالت دهغه چادحالت سره چې بادشاه هغه دَخه اخلاقواوکمالاتودَوجي نه په خپلواعزازاتو، اواکرام سره خاص کړې چې دَده نه علاوه بل څوک بادشاه ته زيات قريب اودَبادشاه دَمهربانيوزيات حاصله وونکى نوي.

| ٱذۡهَبۡ أَنتَ وَأَخُوكَ بِـَٔايَٰتِي وَلَا تَنِيَا فِي ذِكۡرِي ﴿٤٢﴾ ٱذۡهَبَآ |
|---|
| لاړشه ته اوستاورور ځمايه نخوسره اوناراستي مه کوئ په بيان دَتوحيدځماکښ،لاړشئ تاسو دواړه |
| إِلَىٰ فِرۡعَوۡنَ إِنَّهُۥ طَغَىٰ ﴿٤٣﴾ فَقُولَا لَهُۥ قَوۡلٗا لَّيِّنٗا لَّعَلَّهُۥ يَتَذَكَّرُ أَوۡ يَخۡشَىٰ ﴿٤٤﴾ |
| فرعون ته بيشکه هغه سرکشي کړيده نواوکړئ هغه ته خبره نرمه کيدې شي چې دې نصيحت قبول کړي يااوېريږي |
| قَالَا رَبَّنَآ إِنَّنَا نَخَافُ أَن يَفۡرُطَ عَلَيۡنَآ أَوۡ أَن يَطۡغَىٰ ﴿٤٥﴾ |
| اوئيل دواړو اې ربه زمونږ بيشکه يريږومونږه چې زياتي به اوکړي دې په مونږباندې يابه سرکشي اوکړي. |

| |
|---|
| قَالَ لَا تَخَافَآ اِنَّنِیۡ مَعَكُمَآ اَسۡمَعُ وَاَرٰی ۝۴۶ فَأۡتِیٰهُ فَقُوۡلَآ |
| اوئيل الله ﷻ مه يريږئ تاسو بيشکه څه تاسو سره يم اورم اووينم. پس ورشئ دواړه هغه ته او وايئ هغه ته |
| اِنَّا رَسُوۡلَا رَبِّكَ فَاَرۡسِلۡ مَعَنَا بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ ۙ وَلَا تُعَذِّبۡهُمۡ ؕ |
| بيشکه مونږ رالېږلي شوي يو ستا د رب د طرف نه نو پرېږده مونږ سره بني اسرائيل او تکليف مه ورکوه دوئ ته. |
| قَدۡ جِئۡنٰكَ بِاٰیَةٍ مِّنۡ رَّبِّكَ ؕ وَالسَّلٰمُ عَلٰی مَنِ اتَّبَعَ الۡهُدٰی ۝۴۷ |
| بيشکه راغلي يو مونږ تاته په معجزي سره د ستا د رب د طرف نه او عذاب نه بچ کېدل دي هغه چا له چې تابعداري د هدايت |

﴿اَذۡهَبۡ أَنتَ وَأَخُوكَ ﴾ د انعاماتو ذکر کولو نه ورستو اوس ورته بيا د نبوت مقصد ذکر کوي چې ته او ورور دي دواړه لاړشئ او څما د توحيد تبليغ اوکړئ، او څما په ياد کښې څه قسم سستي مه کوئ، او ﴿وَأَخُوك﴾ عطف دې په ضمير متصل د ﴿اَذۡهَب﴾ باندې نو څکه ئې اولًا تاکيد په منفصل سره اوشو، او که څوك اشکال اوکړي چې عطف د ﴿وَأَخُوك﴾ په ضمير د اذهب باندې صحيح ندې چې د هغې لپاره فاعل ضميروي نه اسم ظاهر او ﴿وَأَخُوك﴾ اسم ظاهر دې، نو جواب دادې چې ﴿وَأَخُوك﴾ لپاره فی الحقيقت فعل مقدر دې چې لِيَذهب دې خو د لته ظاهرا په صورت د عطف کښې په ضمير متصل باندې ذکر کړې شو لپاره ددې چې اشاره راشي اتحاد ته د دوئ دواړو په دعوت کښې چې د دعوت په سلسلې کښې به تاسو دواړه داسي ئې لکه يك جان ودوقالب، او يا لپاره د اشارې د تبعيت د حضرت هارون ﷺ ته، چې حضرت هارون ﷺ اگرچه عمر کښې مشر دې خو د دعوت په سلسلې کښې به تابع وي ستا، او مراد په ﴿بِـَٔایَٰتِی﴾ سره هغه معجزات دی چې کوم موسیٰ ﷺ ته ورکړې شوی وو، او کوم وخت کښې چې حضرت موسی ﷺ ته رسالت ورکولې کېدلو نو په هغه وخت کښې حضرت هارون ﷺ په مصر کښې وو، نو چې کله موسیٰ ﷺ راروان شو نو حضرت هارون ﷺ ته هم وحی اوشوه چې د موسی ﷺ سره د ميلاو يد لو لپاره مصر نه

بهرته اوزه، نوچې کله هارون علیه السلام دَمصرنه یومنزل بهرته راغی نودَدواړو ملاقات شو . نوپه هغې ځائ کښ دواړوته په صیغي دَتثنیی مخاطبي سره خطاب اوشو چې﴿ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَىٰ ﴾

﴿اَذْهَبَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ ﴾ددې ځائ نه دریم مقام داواقعي شروع کیږي او﴿اَذْهَبَا﴾بدل دې دَماقبل ﴿اَذْهَب﴾نه، ﴿فَقُولَا لَهُ قَوْلًا ﴾داطریقه ددعوت بیانیږي، چې دعوت په نرمي لهجي سره اود مَحبت په اندازسره ورکول پکاردی لکه دعوت ورکوونکي ته دَهغه کنیت یاداسي لقب ذکرکړې شي چې هغه پرې خوشحاله شي چې دَداعي خبره واوري،اودغه شان هغه ته بشارتونه واوره ولي شي،یعنی تبشیرپهلو غالبه وي اودَانذارمغلوبه وي.

﴿لَّعَلَّهُ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَىٰ ﴾ترجي راجعه نده الله تعالیٰ ته ځکه چې الله تعالیٰ دَشك نه منزه اوپاك دې بلکه داترجي راجعه ده داعی،یعنی موسیٰ علیه السلام اوهارون علیه السلام ته یعني تاسوپدي امید اوجذبی باندی دعوت ورکوئ چې دې به نصیحت حاصل کړی اواوبه یریږي،(کبیر)اویالعل په معنیٰ دَلام کی، سره دې یعنی ستاسودَدعوت مقصد دَفرعون ایمان راوړل دی لیکن اوله توجیه ډیره غوره ده اوتذکراوخشیت کښ فرق دادې چې دَتبلیغ نه متاثره شي اوایمان راوړي نودیته تذکر،وئیلی کیږي،اوکه فقط دَمخالفت نه منع شي نودیته خشیت، وئیلی کیږي اوحضرت الشیخ دَشیخ الشیوخ رحمه الله نه نقل کوي چې بغیردکتلو اودَمطالبي دَمعجزي نه چې ایمان راوړي دیته تذکر وئیلی کیږي اوچې دَمعجزي کتلونه ورستوایمان راوړي دیته خشیت وئیلی کیږي، اوله درجه اعلیٰ ده اودویمه درجه ادنی ده، اودَقرآن اسلوب هم داسي دې چې اول اعلیٰ مرتبه تذکر، ذکرکوي اوبیادویم نمبرکښ، خشیت،یعنی ادنی ذکرکوي،لکه پدي ایت کښ شو اودغه شان په سورة النازعات کښ دی، هل لّك الی ان تزکّیٰ واهدیك الی ربك فتخشیٰ او اوپه یتذکّراویخشیٰ کښ دَمانعة الخلولپاره دي﴿قَالَا رَبَّنَآ إِنَّنَا ﴾نوچې کله موسیٰ علیه السلام دَهارون علیه السلام سره میلاؤشواودواړو ته حکم اوکړې شو چې فرعون ته لاړشی دَدعوت لپاره نوهغوئ خپله یوه خدشه ظاهره کړه چې فرعون به دَخپلي بادشاهئ په نشي کښ مست زمونږ خبره به واوري هم اوکنه،مونږ داخطره محسوسه ووچې هغه به دَخبري اوریدلونه مخکښ مونږ ته تکلیف راکړي اویادَخبري اوریدلونه بعددَهغه سرکشي نوره زیاته شي، چې ستاپه شان کښ به

ګستاخي اوکړي اويابه مونږه قتل کړي، فرط،اوطغيان. کښې فردق ادې چې دَخبري اوريدلونه مخکښې انکاراوکړي دېته فرط، وئيلې کيږي اوددېنه فارط، هم دې مخکښې کيدونکي.ته وئيلی کيږي،نومطلب داشوچې خبره به دسرنه وانوري اومونږ به ګرفتارکړي سزابه راکړي. اوطغيان. دېته وئيلی کيږي چې دَخبري اوريدلونه ورستوانکاراوکړي اوبدي ردي اوائي، نودآيت مقصد دادې چې دَتوحيد خبري اوريدلونه ورستوداسي نه چې ستاپه شان کښې ردي بدي اوائي (روح) امام رازی رحمه الله فرمائی چې(فرط) مقصد دادې چې خبري اوريدلوته تيارنشي.اوطغيان مقصدداې چې خبره به هم وانوري اومونږ به قتل کړي، اودېته ترجيح ورکړيده حضرت شيخ الشيوخ رحمه الله ،اوحضرت موسی عليه السلام اوهارون عليه السلام باوجود دَدې چې پيغمبران وو ليکن بشروو ،نودَبشريت دَتقاضی دَوجي نه ددوئ په زړونوکښې دامذکوره خوف اوخطره پرته وه اوامام قرطبي رحمه الله فرمائی چې خوف طبعي دَ دشمنانونه دَهرنبي اوولی په زړه کښې الله جل جلاله پيدا کړيدې اودامخالف دَنبوت اويادَولايت سره ندي،باوجود دَدې چې هغوئ په زړونوکښې دَالله جل جلاله په نصرت،امداد باندې مکمل يقين هم وي، اوهم دَدې وجه نه رسول الله جل جلاله دَمدينې نه ګيرچاپيره خندقې، کنستلي دي،بلکه دالله تعالی دانسان په فطرت اوطبعيت کښې ايخودلی دي،دَدې وجه نه که يوسړی دَخپل ځان په باره کښې دَداسې څيزاطلاع اوخبروركړي چې هغه خلاف وي دَهغه تقاضوچې الله جل جلاله په انسانانوکښې پيداکړيدی نودې به دروغژن ګنړلی شي(والله اعلم بالصواب). ﴿قَالَ لَا تَخَافَآ﴾نوالله جل جلاله دوئ ته تسلي اواطمينان ورکړوچې تاسولاړشئ اوځماپيغام اورسوئ ځمامددبه ستاسوسره وي،نومراد په معکما،سره کمال حفاظت اونصرت دې.﴿أَسْمَعُ وَأَرَىٰ﴾داتاکيددې لپاره دَماقبل چې ځماامداد اونصرت به ستاسوسره وي ستاسوچې کومې خبري دهغه سره کيږي هغه اورم اوکوم فعل اوکارچې کيږي هغه وينم نوستاسومناسب مددبه کوم اوستاسونه به تکليف دفع کوم،(روح) اوبعض مفسرين فرمائي چې﴿أَسْمَعُ وَأَرَىٰ﴾ دَ﴿أَن يَفْرُطَ عَلَيْنَآ أَو أَن يَطْغَىٰ﴾ په جواب کښې وئيلي شويدي،چې موسیٰ عليه السلام اوئيل چې زمونږ خبره به وانوري نوالله جل جلاله اوفرمائيلوچې﴿أَسْمَعُ﴾چې څه ستاسوخبره اورم نوځه به هغه ستاسولپاره اوستاسوخبري ته غوږ ايخودولپاره مسخرکړم، اوچې موسیٰ عليه السلام اوئيل چې ،﴿ أَن يَطْغَىٰ﴾ چې

مونږ به قتل کړی نو الله ﷻ دهغې په جواب کښې اوفرمائیلو چې ﴿واری﴾. چې څه دهغه والافعال اوحرکات ګورم نوځه به هغه تاسوته دَنقصان لپاره نزدې کیدلوته نه پریږدم ﴿فَأْتِيَاهُ فَقُولَآ﴾ نو الله ﷻ ورته اوفرمائیلو چې تاسوفرعون ته لاړشئ اوهغه ته دَځلورو خبرو متعلق دعوت ورکړئ (۱) چې ستا یعنې دَفرعون اودَټولو مخلوقاتو یورب دې چې هغه رسول لیږي نو مونږ دَهغه دَطرف نه رسولان یو (۲) بني اسرائیل ته ازادي ورکړه اونورتکلیف ورته مه ورکوه دوئ پریږده چې چیرته دوئ ځي اوآزاده زندګي تیره ول غواړي چې هلته لاړشي (۳) دَاثبات دَتوحید اورسالت لپاره ورته معجزې اوښائي (۴) چې دنیا اوپه اخیرت کښې سلامتي اونجات دهغه چالپاره دی چې اسلام قبول کړي، نوسلام په ﴿وَالسَّلَامُ﴾ کښې په معنی دَسلامتیا سره دې دَعذاب نه اوسلام دَتیحة. ندې مراد. (خازن) اوپه حدیث کتاب هرقل، اومسیلمة الکذاب، کښې دې چې حضور ﷺ په هغوئ باندې سلام پدې طریقې سره اچولی وو، سلامٌ علی من اتبع الهدیٰ، نومعلومه شوه چې کافرته ابتداء بالسلام. پدې الفاظو سره جائزه ده.

| إِنَّا قَدْ أُوحِيَ إِلَيْنَآ أَنَّ ٱلْعَذَابَ عَلَىٰ مَن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴿٤٨﴾ |
|---|
| بیشکه وحی کړې شویده مونږته چې بیشکه عذاب په هغه چاباندې راځي چې دروغژن ګڼړي (حق لره) اومخ اوګرځوي |
| قَالَ فَمَن رَّبُّكُمَا يَٰمُوسَىٰ ﴿٤٩﴾ قَالَ رَبُّنَا ٱلَّذِيٓ أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ |
| اوئیل فرعون نوڅوك دې رب دَستاسو اې موسیٰ، [1] اوئیل موسیٰ ﷺ رب زمونږه هغه ذات دې چې ورکړیدې هرڅیزته |
| خَلْقَهُۥ ثُمَّ هَدَىٰ ﴿٥٠﴾ قَالَ فَمَا بَالُ ٱلْقُرُونِ ٱلْأُولَىٰ ﴿٥١﴾ قَالَ |
| پیدائش (شکل) دهغه بیائی ورته لاره خودلی ده. اوئیل فرعون پس څه حال دې دَپیړیو مخکینو، اوئیل موسیٰ ﷺ |
| عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي فِي كِتَٰبٍ لَّا يَضِلُّ رَبِّي وَلَا يَنسَى ﴿٥٢﴾ |
| خبرد هغې ځما دَرب سره دې په کتاب (لوح محفوظ) کښې، نه غافل کیږي رب ځما اونه ترینه هیریږي |

---

(1) دریم ایت دَتوحید.

| الَّذِىْ | جَعَلَ | لَكُمُ | الْاَرْضَ | مَهْدًا | وَّسَلَكَ | لَكُمْ | فِيْهَا | سُبُلًا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

(الله ﷻ) هغه ذات دې چې جوړه كړيده ستاسو دپاره زمكه دارام ځائ اوتيارى كړيدى ستاسو دپاره پديكښې لارې

| وَّ اَنْزَلَ | مِنَ السَّمَآءِ | مَآءً | فَاَخْرَجْنَا | بِهٖٓ | اَزْوَاجًا | مِّنْ | نَّبَاتٍ | شَتّٰى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

اوراوروله دې دطرفه داسمان نه اوبه پس راويستلي (راخيژولي)دي مونږ پدي سره جوړې جوړې دبوټو مختلفو.

| كُلُوْا | وَارْعَوْا | اَنْعَامَكُمْ | اِنَّ | فِىْ | ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّاُولِى | النُّهٰى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خورئ | تاسواوڅروئ | څاروي | خپل بيشكه | پديكښې | شته | ډيري | نخې | دپاره دعقل والو |

﴿إِنَّا قَدْ أُوحِيَ إِلَيْنَآ﴾ پدې آيت كښې تخويف دې چې داطريقه ددعوت ده چې موسىٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام فرعون ته يره وركړه چې مونږته دالله ﷻ دطرف نه دااطلاع اوخبرپه ذريعه دوحي راكړې شويدې چې ددنيااوآخرت عذاب دهغه چاپاره دې تكذيب اودايمان نه اعرض اوكړي.

﴿قَالَ فَمَن رَّبُّكُمَا يَـٰمُوسَىٰ﴾ موسىٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام چې كله فرعون ته اورسيدلو اوهغه ته ئې دايمان بالله دعوت وركړو نوفرعون ورنه سوال اوكړوچې ستاسو رب څوك دې چې تاسودهغه رسولان ئې اوماته په هغه باندى دايمان راوړلودعوت راكوئ، اودهغه دعذاب نه مې يره وئ، اوفرعون لعين رب اضافت دوئ ته اوكړو اوخپل ځان ته ئې مضاف نكړو دوجې دډيرتكبراوغرورنه اونداء ئې صرف موسىٰ عليه السلام ته اوكړه حالانكه هارون عليه السلام هم موجودوو ،ددې وجه نه چې تبليغ اوخطاب ورته حضرت موسىٰ عليه السلام كولو اويادددې وجه نه چې موسىٰ عليه السلام سره ئې تعلق زوروو.

**فائده**: دلته دفرعون سوال په﴿مَن﴾سره ذكركړې شواوپه سورة الشعرآء په ايت نمبر(۲۳)كښې په ماسره ذكرشويدې وجه داده چې دادواړه سوالونه جداجدادى، اګرچه واقعه يوه ده اوسوال كول دفرعون په مَن سره مقدم وو دسوال نه په مَاسره نودلته سوال په من سره لپاره دبيان دكيفيت دربوبيت دې،نوچې كله موسىٰ عليه السلام ده ته دالله ﷻ په ربوبيت باندى دلائل ذكركړل اوده ته معرفت هم حاصل شو نوبيائې سوال اوكړو په ماسره چې لپاره دطلب دماهيت راځې، نودالله ﷻ ماهيت ئې طلب كړو

﴿قَالَ رَبُّنَا ٱلَّذِيٓ ﴾دا دريم ايت توحيددې اودَموسىٰ عليه السلام جواب دې فرعون ته حاصل دَجواب دادې چې زمونږ رب هغه ذات چې ټول عالم ئې پيدا کړيدې اوهرمخلوق ته يومخصوص صورت اوهيئت ئې ورکړيدې اوبيائې چې څه شئ مخلوق ته ورکړيدې نودَهغې نه دَنفع اخستلوطريقه ئې هم ورته خودلې ده،اکثرمفسرين فرمائي چې﴿خَلْقَهُۥ﴾مفعول اول مؤخردې دَ﴿أَعْطَىٰ﴾ لپاره،او﴿كُلَّ شَيْءٍ ﴾مفعول ثاني مقدم دې نودَايت مطلب دادې چې هرڅه ته وجود الله تعالىٰ ورکړيدې اوهرشئ په خپل وجود کښې الله تعالىٰ ته محتاجه دې، (مدارك) اوداهم ممکنه ده چې﴿كُلَّ شَيْءٍ ﴾مفعول اول شي او ﴿خَلْقَهُۥ﴾ورله مفعول ثاني شي اودخلق نه مراد صورت شي، نودايت مطلب به داشي چې الله تعالىٰ هرڅيزته الله تعالىٰ دهغه څيز مناسب صورت ورکړيدې، انسان ته ئې صورت دَانسان ورکړيدې داسې نده چې وي انسان اوصورت دَبل څيزوي اودغه شان بيا په انسان کښې هرعضوته دهغې مناسب صورت ورکړيدې، سترګې ته دَسترګې صورت غوږته دَغوږ والاصورت وغيره ورکړيدی.

﴿ثُمَّ هَدَىٰ ﴾ددينه مراد دادې چې مخلوق ته چې څه ورکړيدي نودهغې نه منفعت اخستلوطريقه ئي ورته هم ښودلې ده فطري طورباندې،يوماشوم بچي ته ئي خله ورکړيده نوفطري طورهغه ته ئي داهدايت هم کړيدې چې ددينه به څرنګه فائده اخلي،دَچرګې بچې دَاګئ نه راوځي نوهغه ته فطري طوردابنودلې ده چې ته به څه شئ خوري اوڅرنګه به خوري وغيره، اوخپل بقاء اوحدکمال ته دَرسيدلوتدبيرئي هم مخلوقاتوخودلي دي، (ابوالسعود).

﴿قَالَ فَمَا بَالُ ٱلْقُرُونِ ٱلْأُولَىٰ﴾هرکله چې فرعون دَموسىٰ عليه السلام مسکت جواب اودلائل ظاهره وباهره واوريدلونوداخطره ئي محسوسه کړه چې داسې نه چې داعوام دَحضرت موسىٰ عليه السلام تصديق اوکړي اوايمان راوړي نودَعوام دَموسىٰ عليه السلام نه متنفرکولولپاره دَتيرشوو خلکوچې دَهغوئ آباء واجدادوو دَهغوئ په باره کښې تنه تپوس اوکړو چې کله دَالله تعالىٰ په وجود اوپه توحيدباندې دومره واضح دلائل موجودوو نوهغوئ ولې ايمان ندې راوړي، اوهغوئ ولې دَبتانوعبادت کولو؟ دهغوئ په باره کښې ستاڅه رائ ده؟ اوددې سوال نه دَفرعون مقصدصرف اوصرف خلك ئي دَموسىٰ عليه السلام نه متنفره کول غوختلوچې حضرت موسىٰ عليه السلام به دَدې خلکو

دآباؤ واجدادوپه باره کښې نازیباالفاظ استعمال کړي نوخلك به تنه ناراضه شي.(فتح) نوحضرت موسیٰ عليه السلام دَحکمت نه ډك فصیح بلیغ جواب ورکړوچې، ﴿قَالَ عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي فِي كِتَٰبٍ﴾چې دهغوئ علم ځمادَ رب سره دې چې هغه عالم الغیب دې اودَهغوئ حالات په لوح محفوظ کښې ثبت دي ماته علم نیشته ځه څه عالم الغیب خونه یمه، ځه ستاسو پشان انسان یم(کشاف).

غوره خبره داده چې﴿عِلْمُهَا﴾مبتداده﴿عِندَ رَبِّي ﴾ ورله خبراول دې او﴿فِي كِتَٰبٍ﴾ورله خبرثانی دې اوداهم ممکنه ده چې داترکیب دې دَقبیلې دَهذا حلوحامض نه شي، یعنی مجموعه دَ ﴿عِندَ رَبِّي فِي كِتَٰبٍ ﴾ دي خبرشي، اودَ﴿كِتَٰبٍ﴾نه مراد لوح محفوظ دې،اوعلم دَالله جل جلاله ته په کتٰب کښې ثبت وئیل مجازا دي ځکه علم دَالله جل جلاله صفت ازلیه دې چې قائم دې په الله جل جلاله پوري، اوندې قائم په لوح محفوظ پوري، لوح محفوظ پوري قائم هغه نقوش دی چې دال دی په هغې الفاظو باندی چې متضمن دي دَشرح اودَوضاحت دَمعلوماتودَالله جل جلاله لره، اوبعض فرمائي چې مرادپه کتب سره دفتردې، اوایت محمول دې په تمثیل باندی،چې څرنګه یوعالم خپل علم اولیکي اومحفوظ ئې کړي، نوده ته خپل علم یادوي اوپه هغې باندی ورته تمکن اوقدرت حاصل وي نودغه شان الله جل جلاله ته هم احوال دَټولومخلوقاتویاد اومحفوظ دي، لیکن اوله توجیه ډیره غوره ده،﴿لَّا يَضِلُّ رَبِّي وَلَا يَنسَى﴾یعنی الله جل جلاله نه څه څیزغائب کیدې هم نشي اونه ورنه هیریږي خوبیاهم په لوح محفوظ کښې لیکل دَحکمتونواومصالحوپه بنیادباندی دې،اوفرق په مینځ دَضلال اودَنسیان کښې دادې چې ضلال وئیلی کیږي دیته چې ابتداءً علم ورسره نوي اونسیان دیته وئیلی کیږي چې ابتداءً خوعلم وي خوبقاءً ورسره بیانوي، نوپدیکښې اشاره شوه چې علم دَالله جل جلاله ازلی ابدي دې، اوبعض فرمائی چې﴿لَّا يَضِلُّ ﴾، په معنٰی دَلایخطئ،سره دې اوفرق په مینځ دَخطاء اودَنسیان کښې دادې چې په دواړو کښې عمل خلاف واقع صادریدل دی، خوپه خطاء کښې ئې صدوربلااراده وي اګرچه اوعلم ورته حاصل وي،اوپه نسیان کښې ئې صدور، بالاراده وي خوعلم دَحافظې نه وتلی وي، اوپه خزانه کښې موجودوي،

﴿ٱلَّذِي جَعَلَ لَكُمُ ٱلۡأَرۡضَ﴾دا ادخال الهی اوتنویردې دَماقبل لپاره هرکله چې موسیٰ عليه السلام دوه (۲)صفات سلبیه الله جل جلاله والاذکرکړو نومزیدوضاحت دَدغې مسئلې لپاره الله جل جلاله خپل

صفات فعليه ثبوتيه پيش کوي اودلائل دَقدرت ذکرکوي په څلوراموروسره(۱)﴿جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ مَهْدًا ﴾ (۲)﴿وَسَلَكَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا ﴾ (۳)﴿وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً﴾ (۴)﴿فَأَخْرَجْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا﴾ اومراد په ازواج سره ياجوړي دي چې هرځيزالله ﷻ جوړه جوړه پيداکړيدې يعنی نراوماده اوياتنه مراد اصناف، اوقسمونه دي﴿كُلُوا۟ وَٱرْعَوْا۟ ﴾ پديکښ اشاره ده اختلاف دَمنافعوته، لکه چې په ماقبل کښ اشاره وه اختلاف دَانواعوته. يعني ځني ځيزونه داسي دي چې تاسوئي خورئ اوفائدي تنه اخلئ اوځني داسي دي چې ستاسوڅاروي تنه فائدي اخلي.اوامرلپاره دَاباحت دي

﴿لَءَايَٰتٍ لِّأُو۟لِى ٱلنُّهَىٰ ﴾ نهی جمع دَنهية ونيلی کيږي هغه ځيزته چې دهغې په ذريعي بدکارونونه بچ کيدل کيږي، اومرادتنه عقل دې ځکه چې دَعقل په ذريعه هم انسان دَغلط کارونونه دَبدوخبرونه بچ کيږي

مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ ﴿٥٥﴾

دَدي زمکي نه پيداکړي ئې مونږه تاسو اوپدي کښ به دوباره تاسوبوځو اودَدينه به رااوباسوتاسو يوځل بيا

وَلَقَدْ أَرَيْنَٰهُ ءَايَٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَأَبَىٰ ﴿٥٦﴾ قَالَ

اوبيشکه اوخودلي مونږ ده ته (فرعون ته)نخي زمونږ ټولي نودروغژن اوګڼړلي دَه اوانکارئي اوکړو،اوئيل فرعون

أَجِئْتَنَا لِتُخْرِجَنَا مِنْ أَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يَٰمُوسَىٰ ﴿٥٧﴾

آياته راغلی ئي مونږته دَي دَپاره چه اوباسي مونږه دوطن زمونږنه دَخپل جادو په زورسره اي موسیٰ.

فَلَنَأْتِيَنَّكَ بِسِحْرٍ مِّثْلِهِۦ فَٱجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا لَّا نُخْلِفُهُۥ

نوخامخابه مونږه راولوتاته جادو دَدي پشان پس مقررکړه زمونږ اوخپل مينځ کښ وعده چې خلاف به نه کوو

نَحْنُ وَلَآ أَنتَ مَكَانًا سُوًى ﴿٥٨﴾ قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ ٱلزِّينَةِ

نه مونږ دهغې نه اونه ته.يوځائ برابر(هموار) موسیٰ عليه السلام اوئيل مقرر وخت دستاسورخ دَخوشالئ (ستاسوده

| وَاَنْ يُّحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى ﴿۵۹﴾ فَتَوَلّٰى فِرْعَوْنُ فَجَمَعَ كَيْدَهٗ |
| --- |
| اوچې راجمع کړې شي خلك په وخت دَڅاښت کښې، نوواپس لاړو فرعون پس راجمع ئې کړل خپل چل والا سـ |
| ثُمَّ اَتٰى ﴿۶۰﴾ قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا |
| بیاراغی(ځائ مقررته) اوئیل دوئ ته موسیٰ علیه السلام هلاکت دې تاسولره مه جوړه وئی په الله جل جلاله باندې دروغ |
| فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ ۚ وَقَدْ خَابَ مَنِ افْتَرٰى ﴿۶۱﴾ |
| پس بیخ به اوباسي ستاسوپه عذاب سره اوبیشکه ناامیده دې هغه څوك چې دروغ ئې جوړکړې |

﴿مِنْهَا خَلَقْنٰكُمْ وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ﴾ دادلیل عقلی دې په بعث بعدالموت چې دَ کومې زمکې نه تاسوته روزي درکولی شي نوتاسوهم دَدینه پیداکړلی شوي یئ، اومرګ نه پس به تاسودوباره دیته ځئ، اوبیابه دَقیامت په ورځ به دوباره دَدینه ژوندي کولی شئ، اودلته﴿مِنْهَا خَلَقْنٰكُمْ﴾ یعنی دَټولوانسانانوپیدائش دَخاورونه وئیل په اعتباردَاصل آدم علیه السلام سره دې، اویاپدې اعتبارسره دې چې داسبب بعیددې اوسبب قریب نطفه ده، اوداخاوره سبب بعیدځکه ده چې نطفه او حیض، دواړه دَغذانه ،حاصلیږي اوغذا که حیواني ده یانباتاتي نوهغې لپاره ذریعه خاوره ګرزیږي نوځکه خاوره هم سبب بعیددې.

﴿وَلَقَدْ اَرَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا﴾ دااصل مقصود ته رجوع ده اودَدې ځائ نه دَواقعې څلورم مقام شروع کیږي، پدې کښې دَساحرانوسره مقابله اودَهغوئ ایمان راوړل وغیره ذکرکیږي، اوپدې ایت کښې دَفرعون ضداوعناد بیانیږي چې فرعون ته هرقسم دلائل په توحیدباندې اوټول معجزات اوښودلی شو خوبیائې هم ایمان نه راوړلو، اوانکارئې کولو،نومرادپه ایتناسره یادلائل دې په توحیدباندې نو﴿اَرَيْنٰهُ﴾په معنی دَعرّفناسره دې اویاتنه مراد هغه نهه(۹)لوئې لوئې معجزات دې چې دهغې ذکرپه سورة بنی اسرائیل ایت نمبر(۱۰۱)کښې دې، نواریناپه خپلې معنی سره دې، یعنی رؤیت بصري، په معنی سره دې. کل لپاره دَاستغراق اضافي دې او اضافت لپاره دَعهددې

يعنی ټول هغه معجزات چې دَحضرت موسیٰ عليه السلام په لاس ظاهري شوي وي اوموسیٰ عليه السلام ته وركړې شوي وي.

﴿فَكَذَّبَ وَأَبَىٰ﴾فاء لپاره دَتعقيب ده يعنی دَمعجزات ظاهريدلونه پس ده دَموسیٰ عليه السلام تكذيب اوكړوچې دامعجزات دَالله تبارك وتعالىٰ دَطرف نه ندی اودهغې دَتسليمولونه ئی انكار اوكړو (حداد). ﴿قَالَ أَجِئْتَنَا﴾داجمله مستانفه ده واقع شويده په سوال دَسائل كښې ګوياچې سائل سوال كولوچې، فماذا قال فرعون؟ نوجواب اوكړې شو چې﴿قَالَ أَجِئْتَنَا﴾چې دايمان راوړلو په ځائ فرعون موسیٰ عليه السلام ته ساحراووئيل چې ته ساحرئی اودَسحرپه ذريعي زمونږ په ملك باندی قبضه كول غواړې،اوداقول چې ﴿لِتُخْرِجَنَا مِنْ أَرْضِنَا﴾فرعون ددې دَپاره اوكړوچې داخلك دَموسیٰ عليه السلام په مخالفت كښې نورتيزشي، چې دَموسیٰ عليه السلام اراده صرف بني اسرائيلوته آزادي وركول ندي بلكه قبطيانونه دَهغوئ اموال اوزمكي اخستل هم دي.

﴿فَلَنَأْتِيَنَّكَ﴾فاء لپاره دَترتب ده دَمابعدپه ماقبل باندی اولام موطئه للقسم دې اواتيان په معنیٰ دَمعارضې اومقابلي سره دې،اوهركله چې فرعون هم پدې پوهيدلوچې معارضه اومقابله دَسحرسره كيدې شي اودَمعجزي سره نشي كيدې نودَدې وجه نه داسي ئي اوئيل چې﴿بِسِحْرٍ مِّثْلِهِ﴾ اوداسي ئي اونوئيل چې آية مثلها،﴿فَاجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا﴾فرعون دَمقابلي لپاره دَوخت اوځائ تعين اختيارموسیٰ عليه السلام ته وركړو اوغوره قول دا دې چې﴿مَوْعِدًا﴾مصدرميمي دې اوظرف زمان يامكان ندې ځكه چې دَدې توصيف شويدې په﴿لَّا نُخْلِفُهُ﴾سره اوپه اخلاف سره وعده متصف كيږي اوزمان يامكان نه متصف كيږي، اوفرعون چې دَخپل طاقت په نشي كښې مست اوغروراوتكبركښې غرق وو نودَدې وجه نه دَمقابلي لپاره دَوخت اوځائ تعين اختيارئی موسیٰ عليه السلام ته وركړو.

﴿مَكَانًا سُوًى﴾دامفعول دې دَفعل مقدرلپاره چې هغه وعدې چې دلالت پرې موعد كړيدې، اوبعض فرمائی چې دامفعول ثانی دې دَاجعل لپاره يعنی صاف ځائ مقرركړه دَمقابلي لپاره.

اویابدل دي دَ ﴿مَوْعِدُ﴾، نه او ﴿سُوًى﴾ صفت دَ ﴿مَكَانًا﴾ لپاره دې، په معنٰی دَ "مستوي" سره دې یعني داسي ځائ چې په هغې کښ غر، غونډئ اولاندې باندی ځایونه نوي، صفامیدان وي چې دکتونکونه څه پټ نوي، (حداد) اوبعض فرمائی چې ﴿سُوًى﴾ دَاستواء نه دې اومرادتنه نصف دې دَمسافت په اعتبارسره. نومطلب دَ ایت دادې چې داسي مکان مقررکړه چې تاته اوموږته دَمسافت په اعتبارسره برابروي (روح).

﴿قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ ٱلزِّينَةِ﴾ هرکله چې فرعون دَځائ اودوحت تعین لپاره دَمقابلي اختیارموسی علیه السلام ته ورکړو نوموسی علیه السلام ورته اوفرمائیلوچې کومه ورځ ستاسواختروې نوپه هغه ورځ دَچاشت په وخت کښ به مقابله اوکړو، دَ ﴿يَوْمُ ٱلزِّينَةِ﴾، نه مراد دَهغوئ دَاخترواﻻ ورځ ده چې پدي ورځ به خلکونوي کپړي واچولي اوجشن به ئي کولو، اوپه مصرکښ به دَجشن لپاره مختلفي ورځي وي، نوروز، باندی به هم جشن کیدلو، دَفرعون دَپیدائش په ورځ به هم جشن کیدلو، وفاء النیل، په نوم سره هم دَهغوئ یولرئ جشن به کیدلو، نوبهرحال مرادتنه دَهغوئ دَجشن اودَخوشحالئ کولووالایوه ورځ ده ﴿وَأَن يُحْشَرَ ٱلنَّاسُ﴾ داعطف دې په یوم الزینة باندی، یعني چې دامقابله دَچاشت په وخت کښ کوو چې خلك راجمع شوي وي، اودَحضرت موسی علیه السلام دَالله جل جلاله په ذات باندی کامل اعتماد اوتوکل وو نودَدي وجه نه ئي ورځ هغه مقرره کړه چې خلك تماشوته فارغ وي اوشوق ئي هم دَتماشي وي اووخت ئي هم داسي مقررکړو چې دغي وخت ته دَلري لري نه خلك ځانونه ښارته رارسوي، اوبیاشپې ته ځان واپس کورته رسوي.

﴿فَتَوَلَّىٰ فِرْعَوْنُ﴾ غوره خبره داده چې ﴿فَتَوَلَّىٰ﴾ په معنٰی دَانصرف سره دې، یعنی فرعون دامجلس برخاست کړو اودَدي ځائ نه لاړو اودَمقابلي لپاره تیاري شروع کړه، اوبعض فرمائي چې ﴿فَتَوَلَّىٰ﴾ په معنٰی دَاعرض سره دې، یعنی دَحق قبولونه ئي مخ واړولو، لیکن دامعنٰی ضعیفه ده.

﴿فَجَمَعَ كَيْدَهُۥ﴾ مرادتنه ذوی کید، یعني هغه اسباب چې په هغې سره ده مقابله کوله، چې هغه ساحران وو، یعنی دَملك دَمختلفوحصونه ئی ساحران راجمع کړل، اودَدي ساحرانوپه تعدادکښ روایات مختلف دی، بعض فرمائی چې دولس زره (۱۲۰۰۰) وو، بعض

ځوارلس(۱۴۰۰۰)زره،بعض دوه اويازره(۷۲۰۰۰)،بعض اتيازره(۸۰۰۰۰) اوبعض ځلورلاکه(۴۰۰۰۰۰)وائی، اوبعض فرمائی چې په دوئ ټولوباندی يومشرمقرروو چې هغه په سترګوباندی ړوندوو، اودهغه نوم شمعون يايوحناوو، اودده سره دولس(۱۲)نقيبان وو اودهرنقيب سره شل(۲۰) نجوميان وو، اودهرنجومي سره(۱۰۰۰)زرساحران وواودي ساحرانو سره پړي اورسئ وي(قرطبی) ﴿ثُمَّ أَتَىٰ ﴾مفعول ئي مقدردې چې هغه الموعد،دې يعني هغه مقرروخت رااورسيدلواوفرعون هم هغه متعين ځائ ته راغی، او﴿ثُم ﴾ لپاره دتراخي دې اوپديکښ اشاره ده چې دفرعون راتګ دزړه په خوشحالئ سره نوو،بلکه په ډيری مجبورئ اودشرم دوجي نه وو،﴿قَالَ لَهُم مُّوسَىٰ ﴾کله چې فرعون اوساحران اوخلك راجمع شونو موسیؑ دوئ ته وعظ اوکړو چې تاسودالله ﷻ سره شرك ګرزو اوځمامعجزاتوته سحروايئ په الله ﷻ باندی افتراء کوئ ددينه منع شئ کنی الله ﷻ به تاسونيست ونابود کړي په دنياکښ اوپه آخرت کښ به هم ډيرنامراده شئ﴿وَيۡلَكُمۡ﴾، بددعاده اوراجحه خبره داده چې دامنصوب دې په فعل مقدرسره ای الزمكم الله الويل(حداد).﴿فَيُسۡحِتَكُم بِعَذَابٍ ﴾سحت وئيلی کيږي(بيخ کني)،استيصال،ته﴿وَقَدۡ خَابَ مَنِ ٱفۡتَرَىٰ ﴾ ددينه مراد ناکامي ده په مقابله دموسیؑ کښ چې ظاهرکښ په مقابله کښ به هم کامياب نشي اوسعي به موهم عبث شي اوځه اجراوثواب به پې ميلاؤنشي.

| فَتَنَٰزَعُوٓاْ أَمۡرَهُم بَيۡنَهُمۡ وَأَسَرُّواْ ٱلنَّجۡوَىٰ ۝ قَالُوٓاْ إِنۡ هَٰذَٰنِ |
| --- |
| پس اختلاف اوکړو دوئ په خپل کارکښ په خپل مينځ کښ اوپټه جرګه ئي اوکړه اوئيل دوئ چې بيشکه دا دواړه |
| لَسَٰحِرَٰنِ يُرِيدَانِ أَن يُخۡرِجَاكُم مِّنۡ أَرۡضِكُم بِسِحۡرِهِمَا وَيَذۡهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ |
| جادوګران دي، غواړي چې اوباسي تاسو دوطن ستاسونه په جادو خپل سره اولري(ختم) کړي لاره(دين) ستاسو |
| ٱلۡمُثۡلَىٰ ۝ فَأَجۡمِعُواْ كَيۡدَكُمۡ ثُمَّ ٱئۡتُواْ صَفّٗاۚ وَقَدۡ أَفۡلَحَ ٱلۡيَوۡمَ |
| چې غوره ده،پس کلك کړئ خپل چل ول بياراشئ تاسرصفونه،اوبيشکه کامياب دې نن |

| مَنِ اسْتَعْلٰى ۝ قَالُوْا يٰمُوْسٰى اِمَّآ اَنْ تُلْقِيَ وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَلْقٰى ۝ |
|---|
| هغه څوك چې برې ئی اومندلو اوئيل دوئ اې موسىٰ عليه السلام ياته اوغورځوه اويابه مونږه شواول دغورځوونكونه |
| قَالَ بَلْ اَلْقُوْا فَاِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ اِلَيْهِ |
| اوئيل موسىٰ عليه السلام بلكه اوغورځوئ تاسو نوناڅاپه رسۍ دهغوئ اوهمساګاني دهغوئ، په خيال كښ راتلې موسىٰ عليه السلام ته |
| مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰى ۝ |
| دوجې دسحردهغوئ نه چې بيشكه دامنډې وهي. |

﴿فَتَنٰزَعُوْٓا﴾هركله چې موسىٰ عليه السلام دوئ ته وعظ اونصيحت اوكړو نودساحرانو په رائ كښ اختلاف پيداشو چاوئيل چې داخبري دنبوت دي اودې نبى دې اوچاوئيل چې، ﴿اِنْ هٰذٰنِ لَسٰحِرٰنِ﴾دوئ دواړه ساحران دى اودسحر په زورتاسودخپل ملك نه اوباسي اوپدي باندى قبضه كوي.

﴿وَاَسَرُّوا النَّجْوٰى﴾غوره خبره داده چې ددينه مراد دساحرانوپه خپل مينځ كښ خفيه فيصله ده چې دوئ پټه جرګه اوكړه اوفيصله ئي اوكړه كچرته دې ساحروي نومونږ به پري غلبه حاصله كړوكچرته دې په مونږ، باندى غالب شونوبيابه دې نبي وى مونږ به پده باندى ايمان (طبرى) ته ﴿قَالُوْٓا اِنْ هٰذٰنِ﴾دادفرعون اودهغه دمشيرانو اووزيرانو قول دې چې دحضرت موسىٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام خلاف پروپيګنډه كوله چې دادواړه ساحران دى (حداد) ﴿اِن﴾ مخففه عن المثقله دې اوپه قرات دابن كثير رحمه الله كښ په تشديد دانّ سره راغليدي، او﴿هٰذٰنِ﴾ ئي اسم دې، اولام په ﴿لَسٰحِرٰنِ﴾كښ لام فارقه دې چې دادفرق لپاره راځي په مينځ دانْ مخففه اودنافيه كښ، هركله چې داپه قرات دتخفيف دانْ سره شي نوپه آيت باندى څه اشكال نيشته دې چې﴿هٰذٰنِ﴾ ، ولى مرفوع دې، ځكه چې اسم دان خودمنصوباتونه دې؟ اودااشكال دتخفيف قرامت په صورت كښ ځكه نه واردېږي چې اكثرنحاتوپدي تصريح كړيده چې كلمه انْ په فعل باندى داخل شي نواهمال

ئي واجب دي،اوکچرته په اسم باندی داخل شي نو اکثرېکښې اهمال دې اوکله کله پکښې اعمال دې،لکه چې په يو قرآءت کښې،اِن کلاً ،راغليدې کنې اصل قراءت په رفع سره دې، تفصيل ئې په رضي، حاشية الخضري على شرح ابن عقيل اوحاشية الصبان على شرح اشمونی کښې دې،البته دتشديدپه قراءت باندې اشکال واريدېږي چې، هٰذان ،اسم دَ انّ دې نوبياخو هٰذين وئيل پکاروو ، اوحالانکه دلته په رفعي سره هذان راغليدې، ددې نه متعدد جوابونه شويدي غوره جواب دادې چې داموافق دې دَبعض عربودَلغت سره لکه،بلحارث کنانه وغيره چې دَدوئ لغت دادې چې تثنيه، يايائ ساکنه چې ماقبل تنه فتحه وي نودابه په الف بدلېږي، لکه چې دوئ وائي اتاني الرجلان،رايت الرجلان، دغه شان کسرت يداهُ،رکبتُ علاه،وائي يديه اوعليه نه وائي،نودلته هم هٰذين کښې يائي ساکنه ماقبل مفتوح نودوئ دَلغت موافق په الف سره بدله شوه،هٰذان، شو(۲ )

اوبعض فرمائي چې اسم دَ ﴿إن﴾دپاره محذوف دې چې هغه ضميرشان دې او﴿هَـٰذَانِ لَسَـٰحِرَٰنِ ﴾ ورله خبردې،نوپه اصل کښې داسي دې، انّهُ هٰذانِ لَساحران(۳)بعض فرمائي چې انّ په معنٰی دَنعم سره کله کله راځي،لکه پدې قول دَ حضرت عبدالله ابن زبيرﷺ کښې چې کله هغه ته يواعرابي راغی اوځه ئې ورنه اوغوښتلواوده ورله ورنکړو نوهغه اعرابي اوئيل چې، لعن الله ناقةً حملتني اليك، نوابن زبيرﷺ ورته په جواب کښې اوفرمائيلو،انّ وصاحبها ، نودااِنّ په معنٰی دَ نعم سره دې(۴)اوبعضوتنه داجواب کړيدې چې اِنْ نافيه دې او لام په معنٰی دَالاّ سره دې، يعنی ماهذانِ الاّ ساحران ليکن داقول ضعيف دې.

﴿أَن يُخْرِجَاكُم مِّنْ أَرْضِكُم ﴾مرادتنه ارض مصردې،﴿وَيَذْهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ ٱلْمُثْلَىٰ ﴾طريقي نه مراد سيرت اوهغه حالت دې چې دوئ پرې قائم وو ،او﴿ٱلْمُثْلَىٰ﴾مؤنث دَامثل دې په معنٰی دَ اعلٰی اوافضل سره، نودَايت مطلب دادې چې فرعونيانوخلکوته اوئيل چې دَدوئ دواړو اراده داده چې ستاسوپه ملك باندې هم قبضه اوکړي اوستاسواعلٰی دين هم ختم کړي،اودَفرعون قول په سورة مؤمن ايت نمبر(۲۲)کښې داسي ذکرشويدې،إِنّي اخافُ ان يّبدّلَ دينكم،اوبعض فرمائي چې عبارت په حذف دَمضاف سره دې، يعنی باهل طريقتكم المثلٰی، اومرادتنه بني اسرائيل دی ځکه چې هغوئ خاوندان دَعلم وو په هغوئ کښې، اوپه ټولوخلکودَتعداد په اعتبارسره اومال په اعتبارسره هم دوئ زيات وو ، اوداخبره فرعون ځکه کوله چې حضرت موسیٰ الطَّيْلا دَبني اسرائيلودَازادئ

مطالبه کړي وه چې ارسل معنابنی اسرائیل، اودَحضرت علیؓ منقول دی چې ﴿بِطَرِيقَتِكُمُ ٱلْمُثْلَىٰ﴾ نه مراد مشران اوسرداران دَقوم دی لکه عرب وائی چې طریقة القوم. یعنی دَقوم مشر. نوداَیت مطلب، دادي چې دَدوئ اراده داده چې دَخلکوتوجه اومشران ځان طرف ته راواړئ (بحر) لیکن اوله توجیه غوره ده، ﴿فَأَجْمِعُوا۟ كَيْدَكُمْ﴾فاء فصیحیه ده تقدیردَعبارت داسي دي. اذاکان الامر کماذُکِرَ فاجمعوا الخ(روح) اواجمع اکثرعلمآء فرمائی چې همزه پکښې قطعي ده اوداباب افعال دي اومعنٰی ئې ده مضبوط عزم کول، لکه عرب وائی اجمعتُ علی الخروج ای ازمعت(کبیر) نوداَیت مطلب دادي چې هرکله دوئ ساحران دی اودَسحرپه زورتاسودَخپل ملك نه هم اوباسی اودین هم درله ختموي نوتاسودَدوئ خلاف پوخ عزم اوکړئ اوخپل ټول اسباب راوړئ او اختلاف مه کوئ اوصف درصف میدان ته راشئ اوبعض فرمائی چې همزه وصلي ده په معنٰی دَجمع کولوسره،یعنی خپل دَمقابلي ټول اسباب راجمع کړئ، مآل په اعتبارسره مقصد دَدواړو توجیهاتویودي، اګرچه علماء په اجمع اوجمع کښې فرق کړیدي،چې جمع(مجرد)متعلق کیږي دَذواتوسره اواجمع(مزید)متعلق کیږي دَمعانیوسره،لکه وئیلی کیږي جمعتُ قومی، اجمعتُ امری،دغه شان جمع استعمال په هغه ځائ کښې کیږي چې اشیآء متفرق وي اوبیایوځائ کړې شي لکه وئیلی شي جمعت القوم، چې کله متفرق قوم راجمع کړې شي په خلاف دَاجمع نه چې هغه دَغیرمتفرق دَپاره هم استعمالیږي،اودغه شان اجمع(مزید)متعدي کیږي مفعول ته بنفسه هم اوپه واسطي دعلی سره هم لکه وئیلی کیږي اجمعت الخروج،واجمعت علی الخروج، او جمع(مجرد) بغیردَحرف جرنه متعدي کیږي، نوروجوه دَفرق هم علمآء بیان کړیدی، اوکید ،نه مراد سحردي ای مکرکم وسحرکم(حداد).

﴿ثُمَّ ٱئْتُوا۟ صَفًّا﴾ صفاً مصدردي په معنٰی داسم فاعل سره،یعنی تاسوټول یوصف اوپه یوقطارکښې راشئ اوخپلي رسئ اولختي په یوځل اوغورځوئ چې کتونکوپه زړه کښې رعب پیداشي اوموسیٰؑ اوهارونؑ مغلوب شي، (ابن کثیر اوبعض فرمائی چې صف په معنٰی دَعیدګاه اوجشن کولوالاځائ سره دي، اوعرب مصلّی(عیدګاه)ته صف وائی یعنی تاسوټول دَجشن والاځائ ته راشئ (حداد).

﴿وَقَدْ أَفْلَحَ ٱلْيَوْمَ مَنِ﴾دا جمله معترضه ده يعني کوم فريق چې پدې مقابلې کښې غالب شو نن ورځ بس هغه به کامياب وي، او﴿ٱسْتَعْلَىٰ﴾باب استفعال دې په معنی دَعلوسره دې. اوياا ستفعال په خپلې معنٰی سره دې اوداډيرابلغ وو په لالچ اوبرانګيخته کولوکښې چې فوز اوکاميابي ئې متعلقه کړيده په نفس طلب دَعلو سره،اودهغې لپاره سعی کولوسره،يعنی صرف په سعی اوکوشش کولوسره به کاميابي اوفرعون تقرب اوعهده به حاصله کړئ اوچې غلبه به مو اوموندله نوبيابه خوخامخاکامياب ئی او انعامات به درته ميلاؤشي.

﴿قَالُوا۟ يَـٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلْقِىَ﴾چې کله هغه مقرروخت راغی نوسیٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام راغلو،اودوئ هم راغلو،خلك راجمع شوی وو، نوساحرانوموسیٰ عليه السلام ته اختياروركړو چې ياته خپله عصااوغورزوه اوخپله معجزه ظاهره کړه اويابه مونږ اول خپلې عصاګاني اورسئ اوغورزه وواودوئ دااختيارموسیٰ عليه السلام ته يادَدي وجه نه ورکړو چې دَدوئ په خپل سحرباندی ډيرلوئ اعتمادوو، اويادَادب دَوجي نه چې دوئ دَموسیٰ عليه السلام ادب اوکړو ځکه چې دَدوئ په زړونوکښې دې خبري ګردش کولو چې شايد دې پيغمبروي، اوددې ادب په برکت سره الله تعالی دوئ ته دَايمان عظيم دولت نصيب کړو دَدينه معلومه شوه چې ادب ذريعه دَايمان ګرزيږي اوبې ادبي دَمحرومتيادَايمان نه ګرزيږي ويدل عليه قوله تعالى لاترفعوا اصواتكم فوق صوت النبي ولاتجهروا له بالقول كجهربعضكم لبعض ان تحبط اعمالكم(الحجرات: ۲).

﴿قَالَ بَلْ أَلْقُوا۟﴾هرکله چې دوئ حضرت موسیٰ عليه السلام ته اختياردَ احدالشقين ورکړو چې يااول ته خپله عصا اوغورځوه اويامونږ غورځوو،نوحضرت موسیٰ عليه السلام اختياردَشق ثانی اوکړوچې اولاً تاسواوغورځوئ اوخپل سحرظاهرکړئ،دَدينه معلومه شوه چې حضرت موسیٰ عليه السلام دوئ ته حکم په سحرکولوسره نووکړې ځکه چې سحرګناه کبيره دې اوياخاص طورچې په مقابلې دَحق کښې راشي نوبياخوپه طريق اولیٰ ګناه کبيره دې نوحضرت موسیٰ عليه السلام به څرنګه دوئ ته دَدي اجازت اوحکم کړې وو؟ بلکه دااختياره ول دَاحدالشقين وو، اوحضرت موسیٰ عليه السلام شق ثاني ځکه غوره کړوچې اظهاردَحق په طريقې اکمل اواتم سره اوشي چې داساحران يوعظيم سحرپيش کړي اولاً،اوبياحضرت موسیٰ عليه السلام خپله عصااوغورځوي اودَدوئ داعظيم سحر،آنَ فَان، کښې ختم کړي،دَحق اوباطل معرکه اوشي اوباطل مغلوبه شي نواظهاردَحق

په اکمل طريقي سره اوشي، اوکچرته موسیٰ علیه السلام اول خپله عصاغورځولی وی نوممکنه وه چې ساحران يريدلي وي اوهغوئ خپل سحرنوی ظاهرکړي نومعرکه به هم نوه شوي نودَحق اظهاربه په اکملي اواتمي طريقي سره به نووشوی، اوبعض فرمائی چې حضرت موسیٰ علیه السلام دوئ ته حکم په سحرسره ورکړيدې خوداحکم تعليقي دې،نه تنجيزی،اوشرط مقدردې تقديرِدَعبارت داسي دې،قال بل القوا ان کنتم محقين،لکه په سورة يونس کښې الله تعالیٰ فرمائی،فأتوابسورة من مثله ان کنتم صٰدقين(يونس:۳۸) نوهلته هم امرتعليقي دې دغه شان دلته هم امرتعليقي دې،فاذا حبالُهم الخ فاء فصيحيه ده اوعبارت مقدردې تقديرئی داسي دې فالقوا فاذا حبالهم الخ او اذا مفاجاتيه دې،يعني چې کله دوئ خپلي رسئ اوهمساګانې اوغورځولي نوناساپه ددوئ رسئ اوهمساګاني کتونکوته سره دَموسیٰ علیه السلام نه داسي محسوسي کيدلي اوښکاريد لی چې دامنډې وهي ﴿يُخَيَّلُ إِلَيْهِ﴾ پديکښې اشاره ده چې سحرصرف نظربندي وي اواثرکوي په قوت خياليه باندی، اودَانبياء کراموپه قوت خيالي باندی اثرکيدل منافي ندي دَنبوت سره،البته سحردَانبياء کراموپه قوت عاقله باندی هرګزاثرنشي کولی، او"من" په من سحرهم، کښې من اجليه دې.

| فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى ﴿۶۷﴾ قُلْنَا لَا تَخَفْ اِنَّكَ اَنْتَ الْاَعْلٰى ﴿۶۸﴾ |
|---|
| پس محسوسه کړه په خپل زړه کښې يره موسیٰ .اوئيل مونږه مه يريږه ته، بيشکه هم ته به غالب ئې |
| وَاَلْقِ مَا فِيْ يَمِيْنِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوْا ؕ اِنَّمَا |
| اواوغورځوه هغه چې ستاپه خي لاس کښې دې تيريه کړی په يوځل هغه چې دوئ جوړکړيدی، بيشکه |
| صَنَعُوْا كَيْدُ سٰحِرٍ وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ حَيْثُ اَتٰى ﴿۶۹﴾ فَاُلْقِيَ |
| دوئ چې څه جوړکړيدی فريب(چل ول)دې دجادوګرو اونه کاميابيږي جادوګرهرچرته چې راشي،پس اوغورځولی شو |
| السَّحَرَةُ سُجَّدًا قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ هٰرُوْنَ وَمُوْسٰى ﴿۷۰﴾ قَالَ |
| جادوګران سجده کونکي اوئيل دوئ چې مونږه ايمان راوړيدې په رب دَهارون اوموسیٰ اوئيل فرعون |

| اٰمَنْتُمْ | لَهٗ | قَبْلَ | اَنْ | اٰذَنَ | لَكُمْ | اِنَّهٗ | لَكَبِيْرُكُمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

آيا ايمان راوړو تاسو پده مخکښ دَدينه چې اجازت درکړې وي ماتاسو ته بيشکه دې يقيناچې ستاسو مشر «استاذ» دې

الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ فَلَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ وَّلَاُوصَلِّبَنَّكُمْ

هغه چې ښودلې ئې دې تاسو ته جادو نوضرور پرې به کړم څه لاسونه ستاسو اوخپې ستاسو ادل بدل اوضرور پهانسي به کړم تاسو

فِيْ جُذُوْعِ النَّخْلِ وَلَتَعْلَمُنَّ اَيُّنَآ اَشَدُّ عَذَابًا وَّاَبْقٰى ﴿۷۱﴾

په تنوډ کهجورو باندی اوخامخا پوهه به شئ چې کوم يوزمونږ نه سخت عذاب والادې اوهميشه«عذاب» والادې

﴿فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ﴾ايجاس وئيلی کيږي په زړه کښ څه شی محسوسه ول، نوچې کله ساحرانوداعظيم سحرپيش کړنوموسیٰ عليه السلام زړه کښي خوف محسوس کړو،اوداکوم خوف وو؟ بعض علمآء فرمائي چې داخوف طبعي منافي ندې دَنبوت سره،نوبناء پدې تنوين په ﴿خِيفَة﴾کښ تقليل لپاره دې، يعنی ډيرکم خوف غوندې ئې محسوس کړو، او بعض علماء فرمائي چې خوف دلته په معنٰی دَخطري او انديشه،سره دې،يعنې موسیٰ عليه السلام په زړه کښ داخطره اوانديشه راغله چې دې ساحرانودومره لوئ سحرپيش کړو اوخلك ئې هم اويره ول نوکچرته څه عصااوغورځوم نوداسي نه چې داخلك څمادی معجزې ته هم سحراوائی،اودخلکوپه زړونوکښ شبهات پيداشي، «روح». ﴿قُلْنَا لَا تَخَفْ﴾هرکله چې موسیٰ عليه السلام خوف اوخطره محسوسه کړه نوداالله جل جلاله دَطرف نه ورته حکم اوشولوچې ته فکرمه کوه فتح به ستاوي اوته به غالب وې.

﴿اِنَّكَ اَنْتَ﴾الله جل جلاله موسیٰ عليه السلام ته ډيره مضبوطه تسلي ورکړه اوکلام په وجوه سره مؤکد کړو،«۱»يوحرف تحقيق،انّ،په شروع کښي راوړو، «۲»دويم تکراردَضميرخطاب پکښ اوکړو، «۳»دريم خبرمعرف بالاّم ذکرکړو، «۴»اوڅلورم لفظ علوئی ذکرکړو،چې داعبارت دې غلبي ظاهري نه،«۵» اوپنځم صيغه داسم تفضيل ئی ذکرکړه.

﴿وَأَلْقِ مَا فِي يَمِينِكَ ﴾دا تفصيلي تسلي ده موسیٰ علیه السلام ته ورستو دا اجمالي تسلي نه، او﴿مَا فِي يَمِينِكَ ﴾نه مراد عصاده،خوذکرئی اونشوبلکه مبهم پریخودلی شو ،ځکه چې په ابهام سره مقصودیاحقارت دې دهغوئ دهمساګانواودرسیانو ،چې ددوئ داهمساګاني اورسیاني دومره حقیري اوکمزوري دی چې ستاپه لاس کښ دوړوکی غوندي لرګي په داټول یوه نوړئ لقمه کړي. اوتيربه ئی کړي،اوياتفخيم دې دعصادموسیٰ علیه السلام چې ستادعصادیرعظيم الشان عصاده چې ځرنګي ئی اوغورځوی نودوئ داټول سحربه فناکړی اوذکردیمین، اوشوپه ځائ دید ،ځکه چې پدي کښ معنیٰ دیمن يعنى برکت ده.

﴿تَلْقَفْ مَا صَنَعُوٓاْ ﴾،تلقف،په جزم سره جواب دې دامر، (قرطبی) اوپه يوقرائت کښ په رفعي سره هم راغليدې نوبيابه تلقف ځان ته مستقل کلام وي،يعني رفع بناء براستيناف ده،اوتلقف معنیٰ ده ابتلاع بسرعة، يعنى زرزر تيره ول يعني داعصابه داټول ځيزونه داسي زرزر اوخوري چې نورئی به تنه جوړه کړي﴿إِنَّمَا صَنَعُواْ ﴾ داعلت دې د﴿تَلْقَفْ مَا صَنَعُوٓاْ ﴾لپاره، اومايا موصوله ده په معنیٰ دالذی سره،ياموصوفه ده په معنیٰ دشيئ منکرسره اويامصدريه ده چې﴿صَنَعُوٓا ﴾فعل ئی په تاويل دمصدرصنعهم، سره ګرځولی دې او﴿كَيْدُ﴾مرفوع دې ځکه چې دې خبردې د﴿إِنَّ﴾ لپاره اوهرکله چې مقصود پدي کلام سره جنس ساحروو اوعدددساحرانومعتبر نوو ،نوددي وجه په کيدساحرکښ هم ساحرمفرد راوړی شو،اوپه﴿وَلَا يُفْلِحُ ٱلسَّاحِرُ ﴾کښ هم ساحرمفرد راوړی شو اوکچري جمع ذکرشوې وی نوبيابه داخيال کيدې شو چې مراد به تنه عددوي چې دامخصوص عدد دساحرانودوئ سحردفائدي نه خالي دې.

﴿وَلَا يُفْلِحُ ٱلسَّاحِرُ ﴾ای لايفلح جنس الساحر،ساحرٌ اولانکره ذکرشواوبيامعرف باللام ذکرشو پديکښ اشاره ده چې ټول اقسام دسحردمآل اومقصدپه اعتبارسره رجعه ئی مقصدواحدته کيږي چې سحرخالي وي دفائدي نه اوساحرپه هرځائ اوپه هروخت کښ ناکام اونامرادوي، اوخاص طورباندی دحق په مقابلي کښ ضرورناکام وي اوهم ددي وجه نه په يوحديث کښ دساحرقتل کولوحکم راغليدې،عن جندب بن عبدالله البجلی رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا اخذتم يعنى الساحر

فاقتلوه ثم قراء ولايفلح الساحرحيث اتیٰ قال لايؤمن به حيث وجد(ابی حاتم ج۶ ص۲۰۳) باقی سحر اقسام اودساحرحکم په سورة البقره کښې تيرشويدی.

﴿فَأُلْقِيَ ٱلسَّحَرَةُ سُجَّدًا﴾فاء فصيحيه ده يعني چې کله موسیٰ عليه السلام دالله تعالیٰ په حکم سره همسااوغورځوله اودهغې نه يوه لويه اژدهاجوړه شوه اودساحرانووالاتولي همساګاني اورسئ ئي اخوړه لي اوبياموسیٰ عليه السلام رااوچته کړه نوهغه عصاشوه لکه څرنګه چې وه بغيرڅه دکمي اوزياتي نه نوساحرانوچې دامعجزه اوکتله نوفوراپه سجده کښې پريوتلو،او﴿فَأُلْقِيَ﴾صيغه دمجهول ده پديکښې اشاره ديته چې ساحرانوته دومره زيات حدکښې نورايماني ورکړې شو چې دوئ مجبوره شو اوبې اختياره سجدي کښې اوغورځولی شواودغه شان په لفظ د﴿فَأُلْقِيَ﴾کښې اشاره ده ديته چې ددوئ سجده کول فوراً اوډيرپه جلتئ سره وه اوپه څني رواياتوکښې دی چې دوئ ته په سجدي کښې دوئ منازل اوجنت اوجهنم ورته الله تعالیٰ اوخودلو.

﴿قَالُوٓاْ ءَامَنَّا بِرَبِّ﴾دسجدي کولوسره سره ساحرانودخپل ايمان اعلان هم اوکړو، په سورة اعراف اوشعرآء کښې، امنّابربّ العلمين، ربّ موسیٰ وهارون،وئيلی شويدی يعني اضافه درب العلمين اوتقديم دموسیٰ عليه السلام دې په هارون عليه السلام باندی، اودلته دااضافه هم نيشته دې اوتقديم دهارون عليه السلام دې په موسیٰ عليه السلام باندی، مفسرينونه پديکښې مختلف توجيهات منقول دی،اکثرمفسرين دافرمائی چې قرآن مجيدکښې دهغوئ دکلام ترتيب ندې ملحوظ کړې شوې بلکه نفس معنیٰ اومقصددهغوئ دکلام ذکرکول دی نودډې وجه نه کله څه په اضافي سره ذکرشي اوکله په تقديم دموسیٰ عليه السلام اوکله په تقديم دهارون عليه السلام سره ذکرکړې شي، اوبعض فرمائی چې اصل کلام دساحرانوهغه دې کوم چې په سورة اعراف کښې دې،ليکن دلته تقديم دهارون عليه السلام ځکه اوشوچې رعايت مقصوددې په فواصلودايتونوکښې چې داحسن پيداکوي په کلام کښې، اودغه شان موسیٰ عليه السلام اصل وو په اعطاء دنبوت کښې اوهغه منسوب اليه په عصاسره اوحضرت هارون عليه السلام مشروودموسیٰ عليه السلام نه،نوچې په کوم ايتونوکښې تقديم دموسیٰ عليه السلام راغليدې نوهغه محمول دې په اصالت اوپه اصل حکايت باندی،اوکوم ايتونوکښې تقديم دهارون عليه السلام راغليدې نودهغې وجه دحضرت هارون عليه السلام کبرسنی، اومشروالی ده اوبعض فرمائی چې اختلاف دکلام محمول دې په اختلاف دقائلين باندی چې

ساحران ډیرووځنویوقسم کلام کړیدې چې اضافه دَرب العلمین، اوتقدیم دَموسیٰ علیه السلام نی کړیدې،اوځنوبغیرداَضافي دَرب العلمین، اوتقدیم دَهارون علیه السلام ئي کړیدې،نوپه بعضو ځایونوکښ دَځني ساحرانوکلام راغستلی شویدې اوپه بعضو ځایونوکښ دَنوروساحرانوکلام ذکرکړې شویدې، لیکن ځماپه ناقص ذهن اوعقل کښ دَدې توجیه داسي راځي(والله اعلم) چې دااختلاف دَترتیب محمول دې په تعدد دَاوقاتوباندی چې ساحرانومختلف اوقاتوکښ متعددځلي دااعلان کړیدې اوصرف یوځلي ئي ندې کړې، اول ځلي کلام ئی داسي وو چې آمنابربّ العٰلمین، ربّ موسیٰ وهٰرون، نوچونکه فرعون هم دَربوبیت دَعالم ددعوىٰ کړي وه اودائی وئیل چې انارَبکم الاعلی، اودغه شان فرعون به ځان ته دَموسیٰ علیه السلام رب هم وئیلونواول ځلي دَدوئ دَدي کلام نه فرعون اودهغه متبعینو، غلط مفهوم اومقصد اراده کولوچې رب العلمین، هم ماته وائي اورب موسی، هم ځه یم نوداهم ماته وائي، نودَدي وجه نه په دویم ځلي داسي کلام اوکړو چې فرعون اودهغه متبعینوته دَهغې نه دَیوغلط مفهوم اومقصداخیستلوموقعه میلاؤ نشي نوځکه اضافه دَرب العلمین، اونه کړه چې داپه ضمن دَرب هارون وموسیٰ،کښ خودبخود راغلي اوتقدیم دَهارون علیه السلام اوکړو چې دغه توهم بالکلیه ختم شي(والله اعلم بالصواب)

﴿قَالَ ءَامَنتُمْ لَهُۥ قَبْلَ﴾هرکله چې فرعون اوکتلوچې ساحرانوایمان راوړو اودَدوئ دَوجي نه به دااټول قوم ایمان راوړي نوفرعون اول دوئ ته زورنه ورکړه چې ځمادَاجازت نه بغیرتاسوایمان والی راوړو اودَموسیٰ علیه السلام اتباع خوولی اوکړه؟ ایمان په صلي کښ چې کله لام راشي نوبیادَانقیاد په معنیٰ سره وي.

﴿ إِنَّهُۥ لَكَبِيرُكُمُ﴾فرعون چې کله داخبره محسوسه کړه چې ځمادازورنه به هیڅ فائده اونه کړي نودَعاموخلکوپه زړونوکښ دَپروپیګنډی کینولوکوشش اوکړو اودائی اوئیل چې دې (موسیٰ علیه السلام)ستاسواستاذدې اوتاسوته ئي سحرخودلی دې، کبیرکم په معنیٰ دَعظیم سره دې، اوفرعون ته هم دامعلومه وه چې موسیٰ علیه السلام ددوئ استاذهم ندې اونه ساحردې ځکه چې داساحران دَموسیٰ علیه السلام مصرته دَراتللونه مخکښ موجودوو، بلکه دَموسیٰ علیه السلام دَپیدائش نه هم مخکښ موجودوو، خوداخبره ئي صرف دَخلکو دَایمان راوړلونه منع کولودپاره اوکړه،

﴿فَلَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ﴾همیشه دپاره دَاهل باطلوطریقه داده چې کله هم دَدلائلوپه میدان کښ

ناكامه شي نوبياهغوئ دتشدد لاره اختياره وي نوفرعون هم ساحرانوته دهمكي وركړه چې داتول
تاسودَيوي منظمي منصوبى تحت اوكړو كچرته تاسو ايمان پري نه خودلونوځه به ستاسولاسونه
اوخپې ادل بدل پري كړم اوبيابه درله پهانسي دركړم نوبيابه تاسوته پته اولګي چې دچاعذاب
سخت دي ځمااوكه دَموسىٰ عليه السلام دَرب عذاب سخت دي؟؟ مِنْ په ﴿مِّنْ خِلَٰفٍ﴾ كښې دَابتداء
لپاره دي،اوجارمجرورپه محل دَنصب كښې واقع شويدې چې داحال دې دَ﴿أَيْدِيَكُمْ﴾
او﴿وَأَرْجُلَكُمْ﴾، نه نودَايت مقصدداشو چې لاقطعنهامختلفات (مدارك)

﴿وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِي جُذُوعِ ٱلنَّخْلِ﴾يعنى خپې لاسونوكټ كولونه پس بيابه موپهانسي كوم،ڧ
به معنى دَعلى سره دې اوفى ځكه راوړى شو چې دلالت اوكړى پدې چې دوئ پدې
كهجوروباندى ترډيروخته پوري قائم وو لكه څنګه چې استقراردَظرف راغلى وي په مظروف
كښې نوګوياچې دا استعاره ده،اوبعض فرمائى چې كلام كښې استعاره نيشته دې بلكه محمول
دې په حقيقت باندى ځكه چې فرعون دكهجوروتنې سورئى كړي وي اودوئ ته ئي په هغې كښې
پهانسي وركړى وه،اوكهجورې تخصيص ئي ځكه اوكړو چې دَدي تنه ډيره اوږده اوغټه وي
نواذيت ورسره ډيرميلاويږي.

﴿وَلَتَعْلَمُنَّ أَيُّنَآ أَشَدُّ﴾ضميردَجمع نه مراد دَفرعون خپل ځان اوموسىٰ عليه السلام وو،
اوموسىٰ عليه السلام خوچاته هم سزانوه وركړي خوبياهم دَفرعون داخبره كول يامحمول ده په استهزاء
باندى چې ده په موسىٰ عليه السلام پوري ټوقي كولي اويامحمول ده پدې چې دده خيال داوو چې دې
ساحرانوايمان راوړل دَموسىٰ عليه السلام دَعصانه دَيريدلوپه وجې سره دې اوداهم ممكنه ده چې دلته
دَرب لفظ محذوف شي،اومرادتنه رب موسىٰ، شي يعنى ستاسوخيال دادې چې موسىٰ عليه السلام
باندى تاسوايمان راوړو نوعذاب نه بچ شوئ اوموږه ته به دَموسىٰ عليه السلام رب عذاب راكوي
دَايمان نه راوړلودَوجې نه، نواوس به تاسوته په پته اولګي چې څوك سخت عذاب وركوونكى
دې،اودَدي تائيددَموسىٰ عليه السلام تيرشوى قول ﴿فَيُسْحِتَكُم بِعَذَابٍ﴾نه هم كيږي،چې موسىٰ عليه السلام اول
دوئ الله تعالى دَعذاب نه يره ولي وو ،ددى ټولودهمكيونه مقصددَفرعون ساحرانويره ول وو چې
دوئ اويريږي او ايمان نه واپس شي ليكن هغوئ په ډيرشجاعت سره فرعون ته جواب وركړوچې.

قَالُوْا لَنْ نُّؤْثِرَكَ عَلٰى مَا جَآءَنَا مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالَّذِيْ

اوئیل دوئ هرګزنه غوره کوو مونږتا پـه مقابلې دَهغه کښې چې راغلیدی مونږتـه دَښکاره معجزاتونه او پـه هغه ذات

فَطَرَنَا فَاقْضِ مَآ اَنْتَ قَاضٍ ۚ اِنَّمَا تَقْضِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ؕ

چې مونږئې پیدا کړی یو پس کوه ته هغه چې ته کوو نکی ئې[1] بیشکه ستاحکم چلیږي په دي ژوندنیوي کښ

اِنَّآ اٰمَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطٰيٰنَا وَمَآ

بیشکه مونږ ایمان راوړی دې پـه رب خپـل باندی دَدې دپـاره چې بخنـه وکړي مونږتـه دګنـاهونو زمونږ او هغه سحر

اَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ السِّحْرِ ؕ وَاللّٰهُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ۝ اِنَّهٗ مَنْ يَّاْتِ

چې تازبردستي کړیده په مونږدَهغې په باره کښې او الله جَلَّ جَلَالُهٗ ډیرغوره دې او همیشه دې[2] بیشکه څوک چې راشي

رَبَّهٗ مُجْرِمًا فَاِنَّ لَهٗ جَهَنَّمَ ؕ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ۝ وَمَنْ يَّاْتِهٖ مُؤْمِنًا

رب خپل ته مجرم پس بیشکه ده لره جهنم دې،نه به مري په هغې کښې او نه به ژوندې وي[3] او څوک چې راشي هغه ته مؤمن

قَدْ عَمِلَ الصّٰلِحٰتِ فَاُولٰٓئِكَ لَهُمُ الدَّرَجٰتُ الْعُلٰى ۝ جَنّٰتُ عَدْنٍ

حال داچې نیک عملونه ئې کړي وي نودغه خلك دوئ لره درجې اوچتې دی جنتونه دَهمیشه استوږنې

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا مَنْ تَزَكّٰى ۝

بهیږي به لاندې دَهغې نه نهرونه همیشه به وي دوئ په هغې کښې او دابدله ده دَهغه چاچې ځان ئې پاك ساتلی وي

---

(1) علت دَپاره دَماقبل.

(2) تخویف اخروی.

(3) بشارت اخروی.

﴿قَالُواْ لَن نُّؤْثِرَكَ عَلَىٰ مَا جَآءَنَا﴾ساحرانو فرعون ته اووئیل چې حق مونږ ته معلوم شویدې.
او مونږ په خپلو سترګو کتلې دې نو اوس مونږ ایمان هرګزنه پریدو او که ته څه کوي نو کوه ستاسزا
صرف دنیاپوري محدوده ده، "ایثار"، نه مراد په فرعون باندی ایمان راوړل وو، او﴿مَا جَآءَنَا
مِنَ ٱلْبَيِّنَٰتِ﴾ نه مراد یامعجزي وي دموسیٰ علیه السلام چې هغه دال وي په صدق دموسیٰ علیه السلام
باندی،اونسبت دمجئ،دوئ خپل ځان ته اوکړوچې دامعجزات مونږته راغلیدي حالانکه
دامعجزات دوئ ته هم وواوغیردَدوئ نه نوروخلکولپاره هم وو، خوهرکله چې دوئ زیات
پوهیدونکي ووپه معجزي اوسحرباندی اودوئ ته علم یقینی حاصل شوېدي چې موسیٰ علیه السلام
ساحرندې بلکه نبي دې اوعام خلك مقلدين وو دَدوئ، اودغه شان نفع هم پدې معجزاتوسره دوئ
ته میلاؤشوه نوځکه دوئ ځان ته منسوب کړې چې دامونږ ته راغلیدې اوبعض فرمائی
چې﴿مِنَ ٱلْبَيِّنَٰتِ﴾، نه مراد هغه منازل دی چې کوم دوئ په سجدي کښ کتلی وو(فتح).

﴿وَٱلَّذِى فَطَرَنَا﴾غوره قول دادې چې واودَعطف دې اوداجمله عطف ده په ماقبل یعنی ﴿مَا
جَآءَنَا﴾باندی اودَ﴿لَن نُّؤْثِرَكَ﴾تحت واقع شویده، نودَایت مقصد دادې چې مونږه تا،نه غوره
کووپه مقابلي اوبدلي دهغه ذات کښ چې مونږ ئي پیداکړي یو،نوګویاچې دوئ فرعون ته دلیل
عقلي بیان کړو په توحیداوپه ایمان باندی اوبعض فرمائی چې واوقسمیه دې اوداقسم دې
اوجواب قسم ئی مقدم ﴿لَن نُّؤْثِرَكَ﴾دې یعنی زمونږ دې قسم وي په غه ذات چې مونږه ئی
پیداکړي یو مونږه هرګزتانه غوره کوو،(مدارك) اوصاحب دَبحرفرمائی چې جواب قسم دې دپاره
محذوف دې چې ﴿لَن نُّؤْثِرَكَ﴾دې ځکه چې جواب قسم په لن سره په نفي کښ نه راځي البته
دَضرورت شعري دَوجي نه کله کله راشي خوهغه شاذدې (بحر).

﴿فَٱقْضِ مَآ أَنتَ قَاضٍ﴾دادَهغوئ دَطرف نه دَفرعون دَدهمکیانوجواب دې چې ته زمونږسره
دَځه عمل کولواراده لري هغه کوه زمونږ پرواه نیشته دې، نوغوره خبره داده چې﴿فَٱقْضِ﴾ په
معنٰی دَاصنع سره دې اوماموصوله ده په معنی دَالذی سره دې،اوداپه محل دَنصب کښي مفعول

به واقع شویدي لپاره "اقض" فعل، او ﴿أَنتَ قَاضٍ﴾ ورله صله ده، او عائدئی محذوف دي ای ماانت قاضيه، اوبعض فرمائی چې قضا، په خپلي معنٰی یعني فیصلي سره دې نوپدي صورت کښ انت قاضٍ، جمله به معفول مطلق وي اومفعول به به نوي ځکه چې دَباب قضا، په مفعول باندی باء داخلیدل ضروري دی، ﴿إِنَّمَا تَقْضِي هَٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَآ﴾ دااوراتلونکی ایت دَماقبل ﴿فَٱقْضِ﴾ لپاره دلیل اوعلت دې، یعني ته چې څه کوي هغه کوه ستازور اوفیصله به صرف پدي دنیاکښ چلیږي اوآخرت کښ دي څه زوراوفیصلي نه چلیږي.

﴿هَٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةَ﴾ دامنصوب دي بنابرظرفیت ﴿إِنَّآ ءَامَنَّا بِرَبِّنَا﴾ یعنی کوم ګناهونه چې مونږ کړیدي اوخاص طورسحر چې په هغې باندی تامونږه مجبورکړي وودَایمان په ذریعي اوبرکت سره زمونږ رب به مونږته دَهغې معافي اوکړي، اودَالله ﷻ ثواب اواجرډیراعلی اوارفع دي.

﴿وَمَآ أَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ ٱلسِّحْرِ﴾ پدي باندی اشکال کیږي چې ساحران خوپه خپلي خوشحالئ سره راغلي وو ځکه چې دوئ دَفرعون نه دَمال اوعهدي مطالبه کړي وه چې وئیلی وو، "اِئنالناا جراً"، نومعلومه شوه چې ساحران دَمال اوعهدي په لالچ کښ په خوشحالئ سره راغلي وو اومجبوره کړې شوي نوو، نوڅرنګي دوئ اوئیل چې ﴿وَمَآ أَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ ٱلسِّحْرِ﴾ جواب تنه په متعددو وجوه سره شویدې (۱) بعضوتنه داجواب کړیدې چې فرعون به څني خلك دَسحرپه تعلیم او،زده کړي باندی مجبوره کولونوکله به چې هغه کسان بوډاګان شونوبیابه ئي نورځوانان پدي کارباندی مجبوره کول چې اولاً به ئي تعلیم دَسحرحاصل کړومجبورا اوبیابه ئی تعلم باندی مجبوره کولوثانیا، نوځکه ئی اوئیل چې ﴿وَمَآ أَكْرَهْتَنَا﴾ (کبیر).

(۲) بعض فرمائي چې فرعون دوئ په مقابلي باندی مجبوره کړی وو، ځکه چې ساحرانودَفرعون نه درخواست اوکړو چې مونږته موسیٰ ؑ دَاوده والي په حالت کښ اوښایه یعني چې دې اوده وي نوبیائی مونږ ته اوښایه، نویوځلي موسیٰ ؑ اوده وو نوفرعون ساحرانوته اوخودلونوهغوئ دَموسیٰ ؑ عصااوکتله چې دَموسیٰ ؑ پهره ئی کوله نوهغوئ فرعون ته اوئیل چې داسحرندې اوموسیٰ ؑ ساحرندې ځکه ساحرچې کله اوده شي نودَهغه سحرهم ختم شي اودلته خوموسیٰ ؑ اوده دې اوعصادده چوکیداری کوي نودې

ساحرندې اومونږده سره مقابله نه کوو ليکن فرعون په مقابلې کولوباندی مجبوره کړلو(کشاف، کبيره وغيره) اوباقی داکلام دَهغوئ چې انالنا لاجرا الخ مخکښې دَمعرفت دَهغوئ نه وو، چې هغوئ ته چې کوم وخته پوري معرفت نوو حاصل شوې نودامذکوره کلام ئی کړې وو اوچې کله ئې دَموسیٰ عليه السلام پيغمبري اوپيژندله نوبياانکاراوکړو او فرعون مجبوره کړو﴿وَٱللَّهُ خَيْرٌ﴾ يعنی الله تعالیٰ ډيرغوره دې دَجهته دَثواب نه چې څوک ئې اطاعت اوکړي وابقیٰ اوچې څوک ئې نافرماني اوکړي نوبيائې عذاب هم دائمي اوسخت دې، اوداکلام دَساحرانودَفرعون دَهغې کلام په جواب کښې اوکړو چې هغه اوئيل﴿وَلَتَعْلَمُنَّ أَيُّنَآ أَشَدُّ﴾.

**فائده**: فرعون دوئ ته سزاورکړې وه اوکه نه ئی ورکړې؟ پديکښې دَمفسرينواختلاف دې،بعض فرمائی چې فرعون دوئ ته په سزا ورکولوباندی نووقادرشوې دليل ئی دادې چې الله تعالیٰ موسیٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام ته اوفرمائيلوچې، انتما ومن اتبعکما الغالبون(القصص: ۳۵) ليکن راجحه اوغوره خبره داده چې فرعون دوئ ته داسزاورکړې وه دليل دادې چې دوئ دعااوغوختله،ربّنا افرغ عليناصبرا وّتوفّنا مسلمين(عراف) اودغه شان حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مروي دی اصبحوا سحرة وامسوا شهداء(ابن کثير) اودغه شان قول دَحضرت قتادة رحمه الله نه هم مروي دې چې هغه فرمائی کانوا اول النهارسحرة وفی آخره شهداء بررة اوباقی انتماومن اتبعکماالغلبون، نو غلبه مستلزم نده عدم شهادت لره دَبعض افرادو، څکه چې حضرت آسيه هم دَمتبيعنو دَموسیٰ عليه السلام نه وه اودهغې شهادت قطعي دې،اوپه نص قرآني سره ثابت دې، اودغه شان غلبه کښې داضروری نوي چې دَمعرکي په ابتداء کښې دې فتحه حاصله شي، بلکه غلبه عبارت دې په انجام کارکښې دَدشمن دَهلاکت اودَهغه دَمتبعينودَهلاکت نه﴿إِنَّهُۥ مَن يَأْتِ﴾ داياکلام دَساحرانو دې اويااداخال الهي دې،اوپدې کښې تخويف اخروي ذکرکيږي، او(ه)ضميرشان دې، او﴿مُجْرِمًا﴾ حال دې دَضميردَ﴿يَأْت﴾نه اومجرم نه مراد هغه څوک دې چې متصف وي په اعلی اواقویٰ درجې دَجرم سره چې هغه کفردې،نولهذا دَمجرم نه مراد کافراومشرك دې،(مدارك) (طبری) او﴿يَأْت﴾ يعنی اتيان نه مراد خاتمه علی الکفرده(العياذبالله) يعنی چې څوك پداسي حالت کښې مړشي چې

مجرم اوكافروي نو﴿فَإِنَّ لَهُۥ جَهَنَّمَ ﴾(خازن) ﴿لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَىٰ ﴾داكنايه ده دډيربداوسخت حالت نه چې جهنميان به په ډيربدترين حالت كښ وي چې نه به مړه كيږي چې دَمرګ په ذريعي سره دَعذاب نه نجات ورته ميلاؤشي اونه به په ژوندسره څه فائده حاصلولى شي،نوداااعتراض نه وارديږي چې داخوارتفاع النقيضين ده ځكه چې جسم به ياحي وي اويابه ميت وي.

﴿وَمَن يَأْتِهِۦ مُؤْمِنًا ﴾دابشارت اخروي دې﴿قَدْ عَمِلَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾پديكښ اشاره ده استقامت ته په ايمان باندى﴿ ٱلدَّرَجَٰتُ ٱلْعُلَىٰ ﴾پديكښ اشاره ده چې په جنت كښ ډيردرجات اومنازل دى، اودَجنت درجات څومره دي؟ قرآن كښ تصريح نيشته اواحاديث پدي سلسلي كښ دوه(۲)قسمه راغليدي ځني احاديثوكښ دَجنت درجات سل(۱۰۰)خودلى شويدى لكه په روايت دَحضرت ابوهريرة‌ رضي الله عنه كښي چې نقل كړيدې امام بخاري‌ رحمه الله په كتاب الجهاد باب درجات المجاهدين فى سبيل الله كښي، اودغه شان په روايت دَعباده بن صامت كښ اوپه روايت دَابوسعيدالخدري‌ رضي الله عنه كښ هم دي چې ذكركړيدې حافظ ابن كثير‌ رحمه الله، ليكن په يوبل روايت چې دَحضرت عبدالله بن عمر‌ رضي الله عنه نه مروي دې چې نقل كړيدې امام ترمذى‌ رحمه الله په ابواب فضائل القرآن بابٌ انّ الّذى ليس فى جوفه من القرآن الخ كښ چې يقال يعنى لصاحب القرآن اقرأ وارق ورتل كماكنت ترتل فى الدنيا فان منزلتك عندآخرآية تقرؤها،نوددې نه معلوميږي چې دَجنت درجات دَقرآن دَايتونودَتعداد موافق دى،دَدي تعارض دَحل دپاره محدثينومختلف رائ پيش كړيدى ليكن په ټولوتوجيهاتوكښ غوره توجيه دَحضرت شيخ الحديث مولانازكريا‌ رحمه الله المدنى والاده، هغه فرمائى چې درجات دوه(۲)قسمه دى يودرجات كبار،اوبل درجات صغار،نودَسلو(۱۰۰)والاروايت محمول دې په درجات كبارباندى اودَقرآنى آياتوتعداد موافق والاروايت محمول دې په درجات صغار باندى،اوداهم ممكنه ده چې(۱۰۰)نه مراد عددخاص نوي بلكه مراد تنه كثرت وي(والله اعلم).

﴿جَنَّٰتُ عَدْنٍ ﴾دابيان دې د﴿ٱلدَّرَجَٰتُ﴾دپاره اوياتنه بدل دې﴿تَجْرِى﴾ من داحال دې دَ﴿جَنَّٰتُ﴾ نه اوتحتها، نه مراد لاندې دَغرف اودَبنګلونه دې تفصيل ئې تيرشويدي،﴿وَذَٰلِكَ جَزَآءُ مَن تَزَكَّىٰ ﴾ ذلك مبتداء ده اومشاراليه ورله ماقبل كښ مذكوراجراوثواب دې، او﴿جَزَآءُ مَن ﴾

ورله خبردي، او ﴿تَزَكّٰى﴾ نه مراد دادې چې خپل ځان دَشرك دَپليتئ نه پاك كړي اودَالله ﷻ بندګي اودَرسولانو اتباع اختيار كړي (ابن كثير).

| وَلَقَدْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰىٓ ۙ اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِيْ فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيْقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا ۙ |
|---|
| اوبيشكه وحي اوكړه مونږموسٰی ته چې دَشپې بوځه ته بندګان خماپس مقرركړه دوئ دَپاره لار په درياب كښ اوچه |
| لَّا تَخٰفُ دَرَكًا وَّلَا تَخْشٰى ۝ فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُوْدِهٖ |
| نه به يريږې ته دَلاندې كولونه اونه به يريږې دَغرق كيدلونه،پس ورغلوپه دوئ پسې فرعون دَخپل لښكروسره |
| فَغَشِيَهُمْ مِّنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ ۝ وَاَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهٗ وَمَا هَدٰى ۝ |
| پس راګيرغرق كړو دوئ دَدرياب نه هغه څه چې دوئ ئې پټ كړل، اوبې لارې كړوفرعون خپل قوم اوهيڅ لاره ئې نوه خودلې دوئ ته |

﴿وَلَقَدْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰىٓ﴾ دَدې ځائ نه دَواقعې پنځم مقام شروع كيږي پديكښ دَبني اسرائيلونجات اودَهغوئ دشمن فرعون غرق كيدل اوهلاك كيدل ذكركيږي.هركله چې موسیٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام فرعون اودهغه په متبعينوباندې حجت تام كړومختلف قسم معجزات ئې ورته ظاهركړوخوبياهم هغوئ ايمان نه راوړلواوپه بني اسرائيلوباندې ئې ظلم نه پريخودلو،نو الله ﷻ دَفرعون هلاكت اودَبني اسرائيلو دَنجات اراده اوكړه نوموسیٰ عليه السلام ته ئې حكم اوكړوچې بني اسرائيل دَځان سره كړه اودَشپې دَدې علاقې نه روان شه،په لاره كښ به تاسوته دريائ قلزم راځي ليكن هغه به ستاسوپه سفركښ حائل اوركاوټ نوي ته خپله عصاهغې راپريده نوهغه كښ به دولس(۱۲)اوچې لارې جوړې شي.

اوتاسومه دَفرعون نه يره محسوسه وئ اونه دَغرق كيدلوفكركوئ اولام په ﴿وَلَقَدْ اَوْحَيْنَآ﴾ كښ موطئه للقسم دې، او آن مفسره دې چې تفسيرئې دَمايوحى اليه، كړيدې،اَسرِ، وئيلې كيږي دَشپې بوتللوته،اودَشپې وخت كښ سفركولوحكمت يوداوو چې دَشپې په وخت كښ زمكه اوسفرلنډ اومختصركيږي كماورد فى بعض الاحاديث، اوبل دَدې وجه نه چې بني اسرائيل په دغه وخت كښ غلامان وو اودَفرعون دبدبه اورعبورباندې سوروو،نوددې وجه نه دَشپې

وتلوحکم ورته اوشوچې په رنړاکښې ئي فرعون اودَهغه لښکراونه ګوري﴿فَاضۡرِبۡ لَهُمۡ﴾ ضرب په صلي کښې چې کله لام راشي نوعام طورپه معنٰی دَجعل، اومقررکولوسره وي لکه عرب وائی ضرب له فی ماله سهما، یعنی دَهغه دپاره ئی په مال کښې حصه مقرره کړه، نولهذا دَایت مقصدداشوچې جوړي کړه ته دوئ لره په دریاب کښې اوچې لاري، اوبعض فرمائی چې دَاضرب لپاره مفعول به مقدردې چې هغه البحردې، او﴿طَرِيقًا﴾مفعول به دَفعل محذوف دَپاره، اوجارمجرور(لهم) متعلق دې په فعل محذوف پوري،چې یصیردې، نواصل کښې داسې دې،اضرب البحرلیصیرلهم طریقا(روح)اوطریقااسم جنس دې اطلاق په قلیل اوکثیرپه ټولوباندی کیږي﴿يَبَسًا﴾مصدردې حمل ئي په﴿طَرِيقًا﴾باندی مبالغة دې، اویایَبَسًا، په سکون دَباء سره دې چې جمع ده دَیابس، لکه صحبٌ جمع دَصاحب ده، اودا اول سبب دې دَامن چې الله ﷻ دوئ لپاره لاري اوچې کړې وي چې دَسمندرنه جوړي شوې به پدغه لاروکښې نه اوبه وي اونه خټه﴿لَّا تَخَافُ دَرَكًا﴾داودویم سبب دَامن دې چې فرعون به تاسوګرفتارکولی هم نشي ځکه به ستاسواودَهغه په مینځ کښې تاخیرحائل اوګرزوم (کبیر).

﴿وَلَا تَخۡشَىٰ﴾دریم سبب دَامن دې چې تاسوبه په اوبوکښې هم نه عرق کیږئ داوبودَغرق کیدلونه بې فکره شئ﴿فَأَتۡبَعَهُمۡ فِرۡعَوۡنُ﴾ دافرعون دَهلاکت ذکرکیږي، حضرت موسیٰ علیه السلام اوهارون علیه السلام بني اسرائیل دَشپې په تیاري کښې دَمصرنه روان کړل شام طرف ته،دَمصرنه شام ته دوه(۲)لاري تللي وي یوه لاره په اوچې وه اوهغه نزدې هم وه اودویمه لاره دَلمدې(بحري)وه اوهغه اوږده هم وه الله ﷻ دَخپل حکمت بالغه په اعتبارسره موسیٰ علیه السلام ته حکم اوکړوچې بني اسرائیل په اوږده اوسمندري لاره باندی بوځه، موسیٰ علیه السلام دیرخفیه طریقي سره بني اسرائیل دَشپې په توري تیاري کښې روان کړل، دَفرعون عملي دَشپې شپې فرعون ته اطلاع ورکړه چې بنی اسرائیل تښتي اومصرپریدي نوفرعون فوري طوریو، زبردست لښکرتیارکړواودَبني اسرائیلو تعاقب دَپاره اووتلو،سهارچې رنړاکیدلونوفرعونیانوبني اسرائیلوته نزدې شوي وو اودَبنی اسرائیلومخې ته بحرقلزم وو، نومخ ته سمندراوشاته دشمن وو، بنی اسرائیل پدې وخت کښې

پرېشانه شو اوموسیٰ عليه السلام ته ئې اوئيل چې، انالمدركون، چې بس مونږه گرفتارشو. موسیٰ عليه السلام دوئ ته تسلي وركړه چې انّ ربّی معی سيهدين. چې ځما رب ځما سره دې. اوهغه به ځماامداد اوكړي اوماته به بندي لاري خلاصي كړي،موسیٰ عليه السلام دالله تعالیٰ په حكم سره خپله عصاسمندرله راپرېخوه نوالله تعالیٰ سمندراوچ كړو اودولس(۱۲)لاري پكښې جوړې كړي.بنی اسرائيل صحيح سلامت پدې لاروباندې پورې شول،په دوئ پسې ورستوفرعون اودهغه لښكرهم راغی اودسمندردې لاروته راكوزشولو چې كله دبنی اسرائيلوآخيری كس دسمندرنه بهرشو، اودفرعونيانوآخيری فرد سمندرته داخل شونوپدې وخت كښې الله تعالیٰ سمندرجاري كړواوفرعون دلښكرسره الله تعالیٰ هلاك كړو.

﴿فَأَتْبَعَهُمْ﴾باب افعال دې "هم" ضميرمفعول اول او﴿بِجُنُودِهِۦ﴾،كښې باء په معنٰی دمع ده اواتبع كله مفعول واحدته متعدي كيږي اوكله مفعولين ته، مفعول واحدته متعدي كيدلومثال لكه چې په سورة اعراف ايت نمبر(۱۷۵)كښې دی، "فاتبعه الشيطٰن" دې.دلته هم صرف يومفعول ته متعدي دې، اوياباء زائده ده په بجنوده، كښې اوجنود مفعول ثانی دې.﴿فَغَشِيَهُم مِّنَ ٱلْيَمِّ﴾ابهام لپاره دتعظيم اوددېرهيبت دې يعني چې كوم سمندرچې دوئ پټ كړلو اودوئ غرق كړل دهغې كيفيت اوشدت سيوادالله تعالیٰ نه بل چاته ندې معلوم دهغې نه بس يوالله تعالیٰ خبردې،(كشاف، مدارك).﴿وَأَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهُۥ﴾يعني دين په معاملي كښې فرعون خپل قوم گمراه كړو چې په دوئ باندې ئې خپل عبادت كولواونسبت داضلال فرعون ته تسببيادې نه خلقا﴿وَمَا هَدَىٰ﴾ داياتاكيددې دماقبل اوردّدې دهغه كلام دفرعون چې خلكوته به ئې وئيل چې وماهديكم الاّ سبيل الرّشاد، اوياتنه مراد نجات دې دهلاكت نه،يعني دهلاكت نه بچ كيدلولارورته ميلاؤنشوه(بحر).

يَٰبَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ قَدْ أَنجَيْنَٰكُم مِّنْ عَدُوِّكُمْ وَوَٰعَدْنَٰكُمْ جَانِبَ ٱلطُّورِ ٱلْأَيْمَنَ

اې اولاد ديعقوب بيشكه خلاص كړئ مونږه تاسو ددشمن دستاسونه اووعده كړې وه مونږ تاسوسره دښي طرف دكوه طور

وَنَزَّلْنَا عَلَيْكُمُ ٱلْمَنَّ وَٱلسَّلْوَىٰ ﴿٨٠﴾ كُلُوا۟ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقْنَٰكُمْ

اوراليږلي ووموږ په تاسوباندې من اوسلوی (اوئيل مونږه)خورئ پاك هغې نه چې مونږ دركړيدی تاسوته

| |
|---|
| وَلَا تَطۡغَوۡا فِيۡهِ فَيَحِلَّ عَلَيۡكُمۡ غَضَبِىۡ‌ۚ وَمَنۡ يَّحۡلِلۡ عَلَيۡهِ غَضَبِىۡ |
| اوسرکشي مه کوئ په دې کښې کني نازل به شي په تاسو باندې غضب زما[1] او هغه څوک چې نازل شي په هغه باندې غضب زما |
| فَقَدۡ هَوٰى ‏﴿۸۱﴾‏ وَاِنِّىۡ لَغَفَّارٌ لِّمَنۡ تَابَ وَاٰمَنَ |
| نو بیشکه هغه هلاك شو[2] او بیشکه زه خامخا بخنه کوونکی يم هغه چاته چې توبه اوکړی او ایمان راوړی |
| وَعَمِلَ صَالِحًا ثُمَّ اهۡتَدٰى ‏﴿۸۲﴾‏ |
| او عمل اوکړی نیك بیا کلك روان وی په نیغه لاره (دین باندې). |

﴿يٰبَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ﴾ د فرعون د هلاکت نه پس الله ﷻ په بني اسرائیلو باندې خپلو نعمتونو تذکره کوي لپاره د دې چې دوئ کفر او سرکشي پريدي او په الله ﷻ باندې ايمان راوړي او د هغه اطاعت اوکي او دلته لفظ د قلنا ، مقدر دې ﴿قَدۡ اَنۡجَيۡنٰكُمۡ﴾ دا لوئ منفعت دنيوى دې چې د دشمن د ظلم نه نجات، او د غلامئ نه آزادي ورته میلاؤ شوه.

﴿وَوٰعَدۡنٰكُمۡ﴾ دا منفعت ديني دې او مراد پدې وعدي سره ورکول د کتاب وو چې په هغې کښې د دوئ د شريعت تشريحات او احکامات وو او دا وعده اګرچه صرف د موسیٰ علیه السلام سره وه ليكن فائده زیاده ترقوم ته وه نو ځکه وٰعدنٰکم، ذکر شو.

﴿وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكُمُ﴾ دا دريم انعام او منفعت ذکر دې چې د تيه په حالت کښې هم الله ﷻ تاسو ته د بهترين خوراك بندوبست کړې وو، تفصيل ئې په سورة البقره وغيره کښې تير شويدې.

﴿كُلُوۡا مِنۡ طَيِّبٰتِ﴾ امر چې کله حکايت واقع شي د ماضي نه نو هلته به قلنا ، مقدر وي نو دلته قلنا ، مقدر دې اى قلنا کلوا او مراد په ﴿طَيِّبٰت﴾ سره هغه خوراکونه دي چې طبعيت سليمه او شريعت

---

[1] تخویف اخروی.

[2] بشارت اخروی

ني پسند(خوخه)کوي، چې لذيذ او حلال خوراکونه دي ﴿وَلَا تَطْغَوْا ﴾طغيان، په رزق کښ دا دې چې په حرام طريقې سره او دَبل چانه په ظلم سره واخستلی شي دَدې وجه نه دَحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه ﴿وَلَا تَطْغَوْا ﴾تفسير په لايظلم بعضكم بعضاً فياخذه من صاحبه سره منقول دې. دغه شان دَطغيان او سرکشئ يو صورت دا هم دې چې دَرزق شکريه ادانه کړې شي، فضول او بې ځايه ځائ کښ استعمال کړې شي، غرور او تکبر پې اختيارکړې شي او دَالله تعالی په معاصي او نافرمانيو کښ استعمال کړې شي او حقوق واجبه پکښ ادانه کړې شي او دغه شان بعضو پکښ تحريمات لغير الله او ذخيراندوزي هم ذکر کړيده دا ټول طغيان دې په رزق کښ(قرطبی، روح).

﴿فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِي ﴾دا جواب دَنهي دې حَلَّ يادَباب نصرينصر نه دې په معنی دَنزول سره، يعنی ځما غضب به په تاسو باندی نازل شی او يادَضرب يضرب نه په معنی دَوجوب او لزوم سره دې ای يلزمککم غضبي ويټل بکم(فتح) ﴿وَمَن يَحْلِلْ عَلَيْهِ غَضَبِي﴾دا تخويف اخروی دې، او ﴿هَوَى ﴾ دَا اصل کښ وټيلی کيږي چې څوك دَاوچت غرنه اوغورزيږي اوهلاك شي کنايه ده دَهلاکت نه (بحر)اوبعض فرمائی چې فی النار، لفظ ددې نه ورستو مقدر دې نو اصل کښ داسي دې فقدهوٰی فی النّار يعنی دې په جهنم کښ اوغورزيدلو (حداد)اوبعض فرمائی چې﴿هَوَى﴾په معنٰی دَوقع فی الهاوية سره دې(روح، شربينی، کبير)يعنی دې په هاويه کښ اوغورزيدلو﴿وَإِنِّي لَغَفَّارٌ ﴾دا بشارت اخروی دې﴿ثُمَّ ٱهْتَدَىٰ ﴾ددينه مراد مرتبه دَاستقامت ده چې ترمرګ وخته پوري په دين باندی مضبوط وي او خپل ځان دَشکوك نه بچ ساتي او سنت او جماعت باندی مستقيم وي (ابن کثير) او هرکله چې مرتبه دَاستقامت حاصليږي ورستو دَايمان او عمل صالح نه نو ددې وجه نه دَمرتبې دَاستقامت ذکر په ثمّ سره او شوچې دا راځي دَپاره دَتراخي، او بعض فرمائی چې ثمّ، لپاره دَدلالت ده په هغې فرق باندی چې په مابين ددوارو مرتبو کښ دې، چې مرتبه دَاستقامت اعلیٰ ده دَمرتبې دَانابت، هدايت، او ربط قلبی نه.

وَمَآ اَعْجَلَكَ عَنْ قَوْمِكَ يٰمُوْسٰى ﴿٨٣﴾ قَالَ هُمْ اُولَآءِ

اوڅه څيزته په جلتئ سره رااوبستلي دَخپل قوم نه اې موسى اوئيل موسى دوئ دغه دى چې راروان دى

عَلٰٓى اَثَرِىْ وَعَجِلْتُ اِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضٰى ﴿٨٤﴾ قَالَ فَاِنَّا قَدْ فَتَنَّا

په ماپسي اوزرراغلم څه تاته اې ربه څمادې دپاره چې ته راضي شې اوئيل الله ﷻ پس بيشکه مونږ ازميښت وکړو

قَوْمَكَ مِنْۢ بَعْدِكَ وَاَضَلَّهُمُ السَّامِرِىُّ ﴿٨٥﴾

په قوم ستا باندې ورستو دَ اتلوستانه اوبې لارې(گمراه) کړو دوئ سامري

﴿وَمَآ أَعْجَلَكَ عَن قَوْمِكَ﴾ دادَواقعي شپږم مقام دې،هرکله چې بني اسرائيلوته الله ﷻ ازادي ورکړه نودَازاد قوم دَپاره يوقانون ضرورت وې، نوبني اسرائيلوهم دَموسى عليه السلام نه قانون طلب کړو، دَحضرت موسى عليه السلام په دعااودرخواست باندې الله ﷻ موسى عليه السلام ته حکم اوکړو چې دَقوم نقباء دَځان سره کړه اوکوه طورته راشه،مونږ به تاته تورات درکړو،حضرت موسى عليه السلام دَخپل قوم مشران(نقباء)سره کوه طورته روان شو،حضرت موسى عليه السلام دَالله ﷻ سره دکلام اوخبرودَشوق دَوجې نه تادي(جلدي)اوکړه په تلوکښ اوقوم ته ئې وصيت اوکړوچې تاسوپه ماپسې راځئ اوخپله مخکښ لاړو،دَحضرت موسى عليه السلام خيال دا ووچې قوم په ماپسې ورستو راروان دى خوقوم سامري گمراه کړې وو،موسى عليه السلام چې کله کوه طورته حاضرشونو الله ﷻ تنه تپوس اوکړوچې﴿وَمَآ أَعْجَلَكَ عَن قَوْمِكَ﴾چې ته ولې دخپل قوم نه په تادئ راغلې نودَقوم نه مراد اويا(۷۰)تنه نقباء دي نودَتعجيل اوجلتئ نه مراد دَوخت اوميعادنه مخکښ حاضريدل ندى بلکه دَقوم نه ړومبى کيدل دي اودَدي سوال مقصد(بقول علامه آلوسي،وزمخشري) تنبيه وه موسى عليه السلام ته چې ستادَمنصب اورسالت سره مناسب داوه چې دَقوم سره يوځائ راغلې وې اوعجلت دى نوى کړې اوعجلت اگرچه ديني کارکښ ممدوح دې خو دَدي عجلت نتيجه داشوه چې قوم گمراه شونوځکه الله ﷻ پدې عجلت باندې تنبيه ورکړه اودغه شان پديکښ اشاره ده ديته چې دَقوم مشردې دقوم پسې ورستوورستويا ورسره يوځائ راځي،خوموسى عليه السلام اعتذارپيش کړوچې قوم هم په ماپسې دې اوجلتي ماپه خپل اجتهادسره

کړي ده چې ستازياته رضامې حاصله وله. اوستادَرضادوام مي حاصلولو (روح) اوياد﴿وَمَآ أَعۡجَلَكَ﴾نه مراددادې چې ته خوپه جلتئ سره راغلې دقوم نه. خوهغوئ دې په کوم حالت کښې پريخې دی نوقوم نه مرادتول قوم دې نوګوياچه دادوه(۲)سوالونه دی په حقيقت کښ.يودَنفس تقديم په باره کښ اوبل دَقوم دَحالت په باره کښ نوپدې اعتباردَتعجيل نه مرادوقت مقرره اوميعاده مخکښ راتلل دي، اودَدې سوال مقصدموسیٰ عليه السلام ته دهغه دَقوم په باره کښ خبرورکول مقصوددوو ځکه چې موسیٰ عليه السلام دَخپل قوم دَحالت نه ناخبره وو اوداتوقع ئې لره له چې قوم په توحيداوايمان باندی قائم دې، حالانکه قوم په ګمراهئ اوشرک کښ مبتلاشوی وو. نوموسیٰ عليه السلام دَخپل علم مطابق جواب ورکړوچې هم﴿هُمۡ أُوْلَآءِ عَلَىٰٓ أَثَرِي﴾چې هغوئ څماپه نقش قدم روان دی اوپه توحيداوايمان باندی قائم دې، اوځه دَوخت نه مخکښ ځکه راغلم چې ستازياته رضاحاصله کړم.

**فائده**: داسوال جواب په کومه موقعه کښ شوې وو،نواکثرمفسرين دافرمائي چې داپه ميقات اول کښ شوي وو،اوپه ميقات اول کښ په نوروسورتونوکښ مثلا په سورة آعراف کښ دَقوم ذکرنيشته دې چې دَقوم نقباء ته هم حکم شوې وي چې تاسوورسره لاړشئ خونفي ئي هم نيشته چې موسیٰ عليه السلام دَدې نه منع کړې شوې وي چې دَقوم کسان به دَځان سره نه بوځي، يعنی نه دَقوم دَتللوحکم ذکرشته اونه دَنه تللواودَدې ايت دَاشارة النص نه دامعلوميږي چې قوم ته هم دَتللو حکم شوې وو خوموسیٰ عليه السلام تنه مخکښ لاړواوقوم ګمراه شو،اوپه موسیٰ عليه السلام پسي نه لاړو،لکه څرنګه په اول توجيه کښ ذکردې، اودَدې وجه نه حضرت مولاناشبيراحمدعثمانی رحمه الله دَدې ايت په تفسيرکښ داسي ليکی:شايد قوم کے بعض نقباء کو ہمراہ لے جانے کا حکم ہو گا وہ ذرا پیچھے رہ گئے' حضرت موسیٰ عليه السلام شوق محبت میں آگے بڑھے چلے گئے. اوهم داراۍ دَحضرت شيخ القرآن رحمه الله هم ده.

﴿قَالَ فَإِنَّا قَدۡ﴾دااخباردې دَجانبه دَالله تعالیٰ نه موسیٰ عليه السلام ته،اودغوره قول مطابق دااخبار دَحضرت موسیٰ عليه السلام ته ورکړيدې چې په ميقات باندی شل(۲۰)ورځې تيری شوې وي نوقوم ګمراهئ کښ مبتلاشو اوالله تعالیٰ موسیٰ عليه السلام ته خبرورکړو اوياورستودَميقات نه الله تعالیٰ خبرورکړيدې چې ستاقوم په شرک کښ مبتلاشويدې،اوبعض علماء فرمائي چه دااخباردَقوم په ګمراهئ کښ مبتلاکيدلونه مخکښ وواودافتنه مترقبه په منزله دَمتحققه نازل کړې شويده

نو ځکه تنه اخبار په صيغو دَماضي سره کړې شوې دې اوفاء دپاره دَتعليل ده يعنى ستادَعجلت اودَجلتئ دَوجي نه ستاقوم مونږپه يوازمائش کښې واچولو .اويافاء دَپاره دَتعقيب ده يعنى ته خودلته راغلي قوم ستادَراتلونه پس په يوازمائش کښې واچولى شواوسامرى هغوئ گمراه کړيدي، اواضلال فعل اوصفت دَالله ﷻ دې نسبت ئې سامري ته تسبيباً دې چې دهغه په دعوت سره دوئ گمراه شولو.

امام بغوئ فرمائى چې بنى اسرائيل پدې وخت کښې شپږلاکه وو ،دَ دولس(۱۲۰۰۰)زرو نه علاوه باقى ټول سامرى گمراه کړي وو.

**فائده**: سامرى څوك وو؟ پديكښې دَمفسرينو متعدد اقوال راغليدي يوقول دادې چې سامرى نوم موسىٰ ابن ظفروو، اودَده تعلق دَسميرى، قبيلى سره وو.اوداقبيله په اصل کښې عراق کښې آباده وه خودَدې قبيلې څه کسان مصرته راغلي وو اوهلته کښې ابادشوي وو چې په هغې کښې دَسامرى خاندان خلك هم وو.اوبعض فرمائي چې دې قبطى وو، اوپه موسىٰ عليه السلام باندى ظاهرا ايمان راوړى وو اوپه حقيقت کښې كافر،منافق وواوبعض فرمائي چې دې بني اسرائيلي وواودسامره، قبيلي سره ئي تعلق وو.اويوقول پکښې داهم راغليدې چې دَموسى عليه السلام دَترور(خاله)زوى وو، اودې هم بعينه په هغې زمانه کښې پيداشوې وو چې په کومه زمانه کښې فرعون دَبني اسرائيلو بچي قتلولو،نودَده موردَقتل دَيري نه دې دَځنګل په يوغارکښې واچولو،الله ﷻ حضرت جبرئيل عليه السلام دده په حفاظت باندى ماموركړو، اوحضرت جبرئيل عليه السلام به ده ته شهد،کوچ اوپيئ(شودې) راوړلي اوده ته به ئي وركولي حتى كه چې دې غټ شواو دَموسىٰ عليه السلام په ډله اوجماعت کښې داخل شواوځان ئي مسلمان ظاهره ولو خوپه حقيقت کښې كافروو،اودَموسى عليه السلام دَعدم موجودګئ نه ئي فائده واخستله اوبني اسرائيل ئي هم په کفراوشرك کښې مبتلا كړل اودَدې وجه نه يوشاعراشعاروئيلى دى:

اذا المرأ لم يخلق سعيدا تحيّرت عقول مربيهِ وخابَ المؤمَّلُ

فموسىٰ الّذى ربّاه جبرئيل كافراً وموسىٰ الّذى ربّاه فرعونُ مرسلُ

ترجمه:چې كله يوكس نيك بخت نوي پيداكړې شوې نودَهغه دَپالونكى(تربيت كونكى) عقلونه هم حيران شي اودده نه اميدلرونكى خلك محروم شي، پس هغه موسىٰ چې پاللى وو جبرئيل عليه السلام هغه كافرشو،اوهغه موسىٰ عليه السلام چې پاللى وو فرعون هغه رسول شو(روح).

| |
|---|
| فَرَجَعَ مُوْسٰى إِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ أَسِفًا ۚ قَالَ يٰقَوْمِ أَلَمْ يَعِدْكُمْ |
| نو واپس لاړو موسیٰ علیه السلام خپل قوم ته غصي نه ډك غمژن. اوئيل هغه اې قومه څما آياوعده نده کړي تاسو سره |
| رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا ۚ أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ أَمْ أَرَدْتُّمْ أَنْ يَّحِلَّ |
| رب ستاسووعده خائسته آياپس اوږده شوه په تاسوباندی وعده ياغواړئ تاسوچې نازل شي |
| عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَأَخْلَفْتُمْ مَّوْعِدِيْ ﴿۸۶﴾ قَالُوْا مَآ أَخْلَفْنَا |
| په تاسوباندی غضب دَستاسورب دَطرف نه پس خلاف اوکړو تاسودَوعدي څمانه. اوئيل دوئ چې خلاف ندي کړي مونږه ستاد |
| مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا وَلٰكِنَّا حُمِّلْنَآ أَوْزَارًا مِّنْ زِيْنَةِ الْقَوْمِ |
| وعدي نه په خپل اختيارسره اوليكن راباركړي شوپه مونږباندی بوج دکالودَقوم دَفرعون نه |
| فَقَذَفْنٰهَا فَكَذٰلِكَ أَلْقَى السَّامِرِيُّ ﴿۸۷﴾ فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا |
| پس اوغورځولو مونږهغه (په اورکښ)پس دارنګی اوغورځولو سامري. پس جوړکړو هغه دوئ لره دسخی جثه |
| لَّهٗ خُوَارٌ فَقَالُوْا هٰذَآ إِلٰهُكُمْ وَإِلٰهُ مُوْسٰى فَنَسِيَ ﴿۸۸﴾ |
| چې هغې لره اوازوو پس اوئيل دوئ چې دامعبوددې ستاسواومعبود دې دَموسی پس دَه(موسی)هيرکړيدې خپل رب |

﴿فَرَجَعَ مُوسَىٰ﴾ هرکله چې موسیٰ علیه السلام ميقات پوره کړوچې دادَذيقعده پوره مياشته وه اولس(۱۰)ورځي دَذی الحجه وي، الله ﷻ ورته دَقوم دګمراه کيدلوخبرورکړونوموسیٰ علیه السلام په ډيري غصي سره واپس شو، اوداغصه ئي دَالله ﷻ دَتوحيدباندی دَغيرت په بنيادوه،نودَدينه معلومه شوه چې په معاصي باندی غصه اوخفګان راتلل سنت دَانبياء کرامو علیهم السلام دي﴿غَضْبَٰنَ﴾ او﴿أَسِفًا﴾دواړه حالين مترادفين دي دَرجع دَضميرنه،اويامتداخلين دي چې داثانی حال دي دَضميرمستترنه په اول کښ، ﴿غَضْبَٰنَ﴾او﴿أَسِفًا ۚ﴾دواړه قريب المعنی دی

﴿غَضْبَٰنَ﴾په معنى دَغصي سره. او﴿أَسِفًا﴾په معنى دَشديد الغضب سره دي(مدارك، اويا﴿أَسِفًا﴾ په معنى دَ حزين سره دي،صاحب دَبحردَامام ابن عطيه رحمه الله نه نقل كړيدى چې "غضب" هغه غصي اوتكليف ته وئيلى كيږي چې دَطاقتوراوقدرت والانه په كمزورى باندى وي. او﴿أَسِفًا﴾هغې غصي اوحزن ته وئيلى كيږي چې دكمزوري نه په طاقتورباندى وى

﴿قَالَ يَٰقَوْمِ ﴾نوموسىٰ عليه السلام چې كله خپل قوم دَخسي(عجل)په عبادت باندى اوكتلونوورته ئي اوفرمائيلوچې آياستاسورب دَتاسوسره يوه خائسته وعده نوه كړې؟ تاسودومره زرهغه وعده هيره كړه؟ اوكه ياموډَ الله تعالىٰ دَعذاب نازليدلو اراده اوكړه؟ چې دَالله تعالىٰ عذاب درباندى نازل شي، نواستفهام په﴿أَلَمْ يَعِدْكُمْ ﴾كښ لپاره دَانكارتوبيخي دې. اواستفهام انكاري په معنى دَنفي سره وي، او﴿أَلَمْ﴾هم دَنفي دَنفي دَپاره دې،نونفي چې په نفي باندى داخله شي نواثبات فائده كوي نوداكلام مثبت شوپه طريقي ابلغي سره ،او﴿وَعْدًا حَسَنًا ﴾نه مراد يادَالله تعالىٰ اطاعت باندى ثواب اوجنت دې، نودَايت مقصددادي چې تاسودَالله تعالىٰ هغه خائسته وعده چې جنت دې هغه موهيره كړو، اوكنه ياخوقصداً مخالفت اوكړو اودَالله تعالىٰ عذاب ته دَدعوت وركولواراده خواوكړه، اويا دَ﴿وَعْدًا حَسَنًا ﴾نه مرادهغه عهددې چې په ايت نمبر(۸۱)كښ تيرشويدې چې﴿وَلَا تَطْغَوْا۟ ﴾يعنى الله تعالىٰ تاسونه عهداخستى وو چې په تاسو باندى به انعامات كوي خوتاسوبه سركشي نه كوئ، كفراوشرك به نه اختياره وئ، نوآياتاسودغه عهددومره زرهيركړو اوكه ياخودَالله تعالىٰ غضب نازليدلو اراده اوكړه،ليكن اكثرمفسرين فرمائي چې دَ﴿وَعْدًا حَسَنًا ﴾نه مراد وعده دَتورات وركيدلوده، يعني مونږسره الله تعالىٰ وعده كړې وه چې تاسوله به تورات دركوم نوتاسودومره انتظارهم اونكړو چې څه راغلى وى اوتاسوته مي تورات راوړى وى دَدي وجه نه چې موده ډيره تيره شوه اوستاسونه داوعده هيره شوه اوكه ياخودااراده اوكړه چې دَالله تعالىٰ غضب درباندى نازل شي.

﴿قَالُوا۟ مَآ أَخْلَفْنَا ﴾دااعتذاردې دَجانبه دَقوم نه يعنى قوم موسىٰ عليه السلام ته عذرپيش كړو چې دَسخي عبادت مونږ په خپل اختيارسره ندې كړې بلكه سامرى داسي چالاكي اوكړه چې مونږ به

اختياره کفراوکړو﴿بِمَلْكِنَا﴾کښ اضافت دَملك تنا.ضميرته اضافت دَمصدرفاعل ته دې اومفعول ئې محذوف دې اى بملکنا امورَنا.

﴿وَلَٰكِنَّا حُمِّلْنَآ ﴾دابيانِ دې دَخپلي بى بسئ اودَمجبورئ. چې کوم کالي مونږ دَفرعون دَقوم نه راوړي وو نوهغه مونږه په مشوري سره اورته اوغورځولواوسامري هم اوغورځولونوبيائى تنه داسخي جوړکړلواواوئيل ئي چې داستاسوخدائ دې چې موسىٰ عليه السلام په غره کښ لټوي(العياذ بالله)﴿أَوْزَارًا ﴾دَدينه مرادهغه زيورات دي چې دوئ دَقبطيانونه په استعاري اودَواده په بهاني غوختلي وو اوواپس کړى ئي نوو، چې تفصيل ئي سورة اعراف کښ تيرشويدې، او﴿حُمِّلْنَا﴾ کښ دوه قراته دى يوقرأت په تشديدسره دَمزيدودې صيغه دَمجهولي ده اوفاعل ئى موسىٰ عليه السلام دې چې ندې ذکرکړې شوې ځکه چې دوئ داموسىٰ عليه السلام په حکم سره راختتى وو،نومعنى به ئى داشي چې په ډيرتکليف سره مونږ باندى بارکړې شوې وو اوبل قرات دَمجردو حَمَلنا دې يعني په فتحي دَحاء اوميم سره دې صيغه دَمعلوم ده يعنى مونږ ځان سره رابارکړي وو﴿أَوْزَارًا﴾ جمع دَوزرده په اصل کښ، بوج، ته وئيلى شي اوپه اصطلاح دَشرع کښ اطلاق ئى په گناه باندى هم کيږي، نودلته تنه يامرادمعنى لغوى ده يعنى بوج اووزر ئى ورته ځکه اوئيل چې دا زيورات ډيرزيات وو اودرانه وو نودَدې وجه اوزارورته اوئيلى شو اوياتنه مراد گناه دې، اودې زيوراتوته اوزارځکه اوئيلى شوچې ياخوداغالباسبب دگناه گرځي ځکه چې پدې سره اکثرخلك فخراوغروراوتکبرکوي،اويادَدې وجه نه ورته اوئيلى شو چې داسبب دگناه دَدوئ دپاره گرزيدلى وو،اويادَدې وجه نه چې دوئ دادَفرعونيانونه په عاريت غوختلى وو چې دااامانت وو دَدوئ سره خودوئ بياواپس نکړونوگوياچې دوئ په خپل خيال کښ گناه دَخيانت اوکړونوځکه ئي ورته ﴿أَوْزَارًا﴾اوئيلو، داقول ډيرغوره دې، اوبعضي فرمائى چې دازيورات هغه وو چې فرعونيانودَځان سره راختتى وو په غاړه ياپه لاسونوکښ ورسره وو، نوچې کله الله عزوجل فرعونيان هلاك کړل نوزيورات تنه بنى اسرائيلوبطورمال غنيمت واخستلو، اومال غنيمت استعمال دَمخکنيو امتونو دَپاره حلال نوو اودوئ استعمال کړې وو دازيورات، نوځکه ئى ورته اوزار اوئيلو،

﴿فَقَذَفْنٰهَا﴾في النار . ورسره مقدردي يعنى مونږه په اورکښ اوغورځولو . اودغه شان سامري هم خپله حصه زيورات په اورکښ اوغورځولو ، اووجه ئي داوه چې ساري دوئ ته مسئله بيان کړ چې دَدي زيوراتو استعمال ستاسو دَپاره جائزندي ځکه چې داياما‌ل غنيمت دي اويا په خيانت سره اخستلي شويدي.نو داپه اورکښ غورځوئ.اوابن کثير﷫ په يو روايت کښ دانقل کړيدی چې دازيورات دَهارون﷣ په حکم سره دوئ اورته غورځولي وو.

﴿فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلاً ﴾سامری دَدغي زيوراتونه بني اسرائيلوله سخي شکل جوړکړو. اوپه هغه سخی کښ دَحضرت جبرئيل﷣ دَ اس دَخپوخاوره واچوله،کله چې فرعون غرق کيدلونوکلمه ئي اوئيله حضرت جبرئيل﷣ په يواس باندی سورراغی اوخته ئي راواغستله اوفرعون ئي په خله کښ اويشتلو،نوسامري دَحضرت جبرئيل﷣ دَاس دَخپوخته راواغستله اوهغه ئي پدي خسي کښ واچوله،په هغې خته کښ الله ﷻ داتاثيرايخي وو ، اودهغې خاورې برکت وو چې هغه سخی به اوازونه کول،بابا به ئي کولو ،اوبعض فرمائی چې خاوره ئي هم اچولي وه ليکن اوازئي دَخاوري دَوجې نه نه کولوبلکه ددي سخي په شکل اوصورت کښ ئی داسې سوري پريخي وو چې په هغې کښ به هوادننه کيدله اووتله، نوهغې به دَسخي پشان اوازونه کولو ، (کبير)اودادَالله ﷻ دَطرف نه په دوئ باندی امتحان وو ، او﴿جَسَدًا ﴾بدل دي دَ﴿عِجْلاً﴾نه اوغوره قول دادي چې داصرف اوصرف صورت اوجسددَعجل وو اوحقيقة عجل نوو ، اګرچه بعضی مفسرين دافرمائی چې داحقيقة عجل وو(والتفصيل في الكبير).

﴿فَقَالُوا هَـٰذَآ ﴾يعني سامري اودهغه متبعينواوئيل چې ستاسواودَموسى﷣ خدائ داعجل دي، نوپه ضمير دَجمع کښ اشاره ده چې دَسامري سره نورملګري هم وو ،اوهغوئ څومره وو؟ نوپدي اتفاق دي چې حضرت هارون﷣ دَسخي عبادت نووکړې اوباقی څومره کسانو کړي وو نودَحضرت حسن بصری﷫ نه روايت دي چې ټولوکړي وو ځکه چې موسى﷣ دعائی مغفرت صرف دَخپل رور دَپاره کړيده،ربّ اغفرلی ولاخی، کچرته بل څوك مؤمن وي نوموسى﷣ به هغه هم په دعاکښ شريك کړي وو ،ليکن دَجمهورومسلك دادي چې دَحضرت هارون﷣ سره نورهم ډيرکسان وو چې هغوئ عبادت دَسخي نووکړې،په دليل دَدي قول دَالله ﷻ سره چې ومنهم امّة يهدون بالحق وبه يعدلون، نودَهغوئ تعداد اکثرفرمائی چې دولس

اوذریعه دګمراهۍ ده،نه دهدایت اودامقصد ندې چې ددوئ ګمراهي صرف په عجل سره وه اوپه بل شي سره نوه«روح، فتح»

﴿وَإِنَّ رَبَّكُمُ ٱلرَّحْمَٰنُ﴾اسم اوخبردانّ دواړه معرفه دی دپاره دحصر اواختصاص یعنې ستاسورب صرف اوصرف الله ﷻ دې،اوذکرپه اسم دړحمن سره دپاره دتنبیه وو په تذکیردنعمت دنجات باندی،چې دفرعون دغلامۍ اودتکالیفونه چې کوم ذات تاسوته نجات اوخلاصي درکړیده.هغه مهربان ذات مستحق دعبادت دې.

﴿فَٱتَّبِعُونِي﴾اتباع عبارت دې په عمل اوطریقه کښې په چاپسې دتللونه، اواطاعت عبارت دې دجادقول منلونه،یعنې هارون ﷺ دوئ ته اوفرمائیلوچې تاسوځماپه طریقه روان شئ اوځماخبره اومنئ، نوددینه معلومه شوه چې هدایت منحصردې پدیکښې چې دالله ﷻ اودپیغمبر خبره دهغه دطریقې مطابق اومنلی شي،اوکچرته دالله ﷻ اودرسول ﷺ خبره اومنلی شي خو طریقه دړسول ﷺ نوي نوبدعت تنه جوړشي.

**فائده**: امام رازی رحمه الله فرمائی چې دحضرت هارون ﷺ ددې دعوت ورکولوبنیاد شفقت اومحبت وو، نوددینه معلومه شوه چې دهرانسان سره شفقت اومحبت ضروری دې اودټولونه لوئ شفقت اومحبت دادې چې یوکس دجهنم اورته روان وي اوغورزیږي اوته ئې دهغې نه بچ کړې نودشفقت اودمحبت په بنیاد امربالمعروف په مسلمانانو باندی واجب دې«کبیر مع تغییر».

﴿قَالُواْ لَن نَّبْرَحَ﴾پدې آیت کښې دقوم جواب ذکرکیږي هارون ﷺ ته، چې دوئ هارون ﷺ ته دابهانه اوکړه چې ترڅوچې حضرت موسیٰ ﷺ واپس نوي راغلی نومونږبه ترهغې پورې دسخي عبادت کوو،اوداخبره یامحض ددوئ یوه بهانه وه چې دهارون ﷺ ددلیل جواب ئې نشوکولی نودځان خلاصولودپاره ئې دا خبره اوکړه اویاددوئ په زړونوکښې دسامري خبره راسخه شوه وه اوددوئ خیال داووچې حضرت موسیٰ ﷺ به هم دسامري تقریراوکړي اوزمونږ سره به دسخي عبادت شروع کړي.

﴿عَٰكِفِينَ﴾په معنی دمقیمین سره دې،یعنی مونږ به دسخي په عبادت باندی قائم اولازم به یو.نوددې جواب نه ورستوحضرت هارون ﷺ دخپلومتبعین اوصحیح العقیده کسانو سره

ددغي مشركينونه جداشو ،اودغي مشركانوبه دَسخي عبادت كولو ،اودَسخي نه چاپيره به ئي طواف كولواورقص،گډابه ئې كوله اوسازبه ئې ورته وهلو

﴿قَالَ يَٰهَٰرُونُ﴾دَحضرت هارون عليه السلام په باري كښې دَمداهنت دَتوهم دَازالي نه پس اصل واقعه بيانيږي، حضرت موسىٰ عليه السلام چې دكوه طورنه واپس راتللونو دګډااوسازآوازونه ئې واوريدل چې قوم ئې سخي ته بطورعبادت كولو ، نوقوم نه ئې تپوس اوكړو اوّلا ، نوهغوئ ورته خپل عذرپيش كړو ،خوموسىٰ عليه السلام دَهغوئ دَمعذرت خواهانه جواب نه مطمئن نشو ،نودَډيري غصي نه ئې حضرت هارون عليه السلام دَسراوږيري نه اونيولواوځان ته ئې راښكلواوورته ئې اوئيلوچې،﴿يَٰهَٰرُونُ مَا مَنَعَكَ﴾اوحضرت هارون عليه السلام اګرچه په عمركښې دَموسىٰ عليه السلام نه مشروو،ليكن په رتبه كښې ورنه موسىٰ عليه السلام لوئ وو ،اوپه شرعي اموروكښې هارون عليه السلام دَده تابع اووزير حيثيت لرو ،اودَموسىٰ عليه السلام خيال داووچې هارون عليه السلام دَقوم په اصلاح كښې پوره كوشش نوي كړې اودَسستئ اوتساهل نه به ئې كاراخستى وي،اودَتبليغ په فرائضوكښې به ئې تقصيركړې وي، نوځكه موسىٰ عليه السلام دومره سخت عتاب اوسخت اندازكښې پوښتنه اوكړه اوداعمل دَموسىٰ عليه السلام دَطرف نه دَسوءادب اوياذَهارون عليه السلام دَبې عزتئ په نيت نوو(اَلعياذبالله).

﴿أَلَّا تَتَّبِعَنِ﴾لام زائددې، اودآيت مطلب دادې چې كله قوم ګمراه شو اوتاكتلونوتاځه ولي نه خبرولوم، يعني ماته خبراكولودَپاره،ته په ماپسې كوه طورته ولي نه راتللې، اويامطلب دادې چې تاځمادَعمل اتباع ولي نه كوله، يعني تادَدوئ سره جنګ ولي نه كولوپه شانته دَځما(بحروكبير) ،﴿أَفَعَصَيْتَ أَمْرِى﴾ استفهام دَپاره دَانكاراوتوبيخ دې اوفاء فصيحيه ده اودا جمله عطف ده په معطوف عليه مقدرباندى،تقديردَعبارت داسي دې اخالفتنى فعصيت امرى(روح) نودَايت مطلب به داشي چې ولي تاځما مخالفت اوكړو اوځمادَحكم تعميل دې اونكړو يعني تاته ځمامخالفت نووپكار،او﴿أَمْرِى﴾نه مراد هغه هدايات او وصيتونه دې چې كوه طورته تللونه مخكښې موسىٰ عليه السلام ،هارون عليه السلام ته كړي وو،اخلفنى فى قومى واصلح ولاتتبع سبيل المفسدين(اعراف ايت نمبر ۱۴۲) ﴿قَالَ يَبْنَؤُمَّ لَا تَأْخُذْ﴾حضرت هارون عليه السلام موسىٰ عليه السلام ته حقيقت

نحل بيان كړوچې ماپه تبليغ كښې څه قسم مداهنت اوسستي نده كړي بلكه مادوئ ته په
پوره وضاحت سره توحيد بيان كړيدې اودوئ ځماسره دقتل مقاتلې اراده هم اوكړه نوكچرته مادوئ
سره جنګ كولى اوياپه تاپسې كوه طورته درتللى نوپدې قوم كښې به تفرقه راغلې وه اودوئ به
ټولې ډلې شوې وو ،اوخطاب دهارون ﷺ موسى ﷺ ته په ابن الام(اى دمورځويه ځماسره
كوك ډېاره دترحم دې، ګني موسى ﷺ اوهارون ﷺ دواړه حقيقي،ورونړه وو﴿إِنِّي خَشِيتُ﴾
دتعليل دې دنهي چې مادګيري اوسرويختونه ځكه مه نيسه كچرته مادوئ سره جنګ كړې وى
وياتاپسې درغلى وى نوځامخابه ډلې جوړيدې نوبيابه تاوئيل چې په بنى اسرائيلوكښې دډلې
جوړې كړې اوځمادواپس راتلوانتظارد اونكړو. اود﴿وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِي﴾مطلب دادې چې
ځمادراتلوانتظارداونكړو(قرطبي) اوياتنه مراد دموسى ﷺ وصيت دې چې په سورة اعراف
كښې ذكردې چې اخلفنى ف قومى، يعنى تابه بياوئيل چې ځمادخبرې لحاظ دې اونه ساتلو (ابن
كثير) اويا﴿وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِي﴾،قول دهارون ﷺ دې، اوترقب په معنى دتامل سره دې، يعنى څه
ېرې ويريدم كچرته بني اسرائيل ډلې ډلې شوې وى نومابه تاته عذرپيش كولى نوتابه ځماپه خبره
كښې سوچ اوفكرنه كولى اوځماعذربه دنه قبلولى.(جمل).

**فائده ۱**: پدې ايت كښې دليل دې پدې چې ږيره دومره پريخودل چې موټې كښې نيولى كيږي
واجب دى اوسنت دانبياء كرام ﷺ دې.

**فائده ۲**: حضرت سندهي صاحب ﷺ فرمائي چې داايت دليل دې پدې چې شرك نه هم
قبيح جرم هغه دقوم اجتماعيت ختمول دي اوپه هغوئ كښې تفرقه اچول دي، اودهغوئ وحدت
ډيره ول دى اوددې وجه نه حضرت هارون ﷺ قوم كښې وقتي شرك برداشت كړو خودهغوئ
تفرقه ني برداشت نكړې شوه(ازافادات حضرت والدصاحب ﷺ)

| قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَٰسَٰمِرِيُّ ۞ قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوا |
|---|
| وئيل موسى ﷺ څه سبب وو ستاداكاراې سامري. اوئيل هغه څه پوهه شوم په هغه څه چې ندې دوئ پوهه شوي |
| بِهِۦ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ أَثَرِ ٱلرَّسُولِ فَنَبَذْتُهَا |
| په هغې باندې پس راوامې غستله يوموټې خاوره لاندې دقدم داس، دجبرئيل نه بيامې اوغورځوله دا |

وَكَذٰلِكَ سَوَّلَتْ لِيْ نَفْسِيْ ﴿۹۶﴾ قَالَ فَاذْهَبْ فَاِنَّ لَكَ

اوهمدارنګې خائسته کړيدې ماته نفس خما. اوئيل موسیٰ عليه السلام پس څه (دَدې قوم نه) پس بيشکه تا لره ده

فِي الْحَيٰوةِ اَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ وَاِنَّ لَكَ مَوْعِدًا

په ژوندِدَدنياکښې داوينا دستاچې ماته لاس مه راوړئ اوبيشکه ستادَپاره (دَسزا) يوه وعده ده

لَّنْ تُخْلَفَهٗ وَانْظُرْ اِلٰٓى اِلٰهِكَ الَّذِيْ ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا

چې هرګزخلاف نشې کيدې دهغې نه او اوګوره ته خپل معبودته هغه چې ته هروخت وې په هغه باندې عبادت کوونکې،

لَنُحَرِّقَنَّهٗ ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهٗ فِي الْيَمِّ نَسْفًا ﴿۹۷﴾

خامخاوبه سيزو مونږه دې بيابه ئې اونولو (اوشندو) په درياب کښې په نوستلو سره

﴿قَالَ فَمَا خَطْبُكَ﴾ هرکله چې موسیٰ عليه السلام دَهارون عليه السلام معقول عذرواوريدلونودې نې پريخودلواوسامري ته متوجه شو اوپوښتنه ئې تنه اوکړه. مااستفهاميه دې، اوخطب مصدردې دَخطب الشئ نه په معنیٰ دَطلب اوقصدسره، اوغرض پديشان عبارت سره نکيروې په هغه کاراوتعظيم وې دکار، والغرض منه الانکارعليه وتعظيم صنعه (کبير) نودلته هم موسیٰ عليه السلام دَسامري نه دَدومره لوئ کارکولوباعث اودليل تپوس اوکړوچې په تاباندې باعث څه ووچې تادادومره لوئ کارکولوچې سخې ته دې معبوداوئيلو ﴿قَالَ بَصُرْتُ﴾ داجواب دې دَسامرى چې ماداکارصرف دَنفساني خواهش پوره کولودَپاره کړيدې، اوماته پدې باندې نورهيڅ باعث نوو اونه ماسره څه دليل شته دې، او ﴿بَصُرْتُ﴾ په معنیٰ علمتُ، اوفطنتُ سره دې يعنى مااوپيژندلوهغه چې دوئ نه پيژندلو، اوياد بصرتُ، نه مراد رؤيت بصري دې، يعني مااوکتلوهغه چې نووکتلی دوئ، يعنى رايت مالم يروا (قرطبی) اوهرکله چې بنی اسرائيل دَدرياب نه راپورې وتلونودَدوئ سره، حضرت جبرئيل عليه السلام هم وو، سامري حضرت جبرئيل عليه السلام اوکتلو، اوچونکه دَده تربيت حضرت جبرئيل عليه السلام کړې وو نودَې وجه نه سامري اوپيژندلوچې داجبرئيل عليه السلام دې، اودغه شان حضرت جبرئيل عليه السلام آس به په کوم ځائ قدم ايخودلونوهغه ځائ به شين، کيدلو، نو سامرى

دهغې ځائ نه يوموټی خاوره راواخستله اوپه هغې جسدکښ واچوله اوبعض فرمائي چې کله حضرت موسیٰ عليه السلام کوه طورته تللونوحضرت جبرئيل عليه السلام ورته راغلی وو،نوپه هغې ځائ کښ سامري حضرت جبرئيل عليه السلام کتلی ووبهرحال: سامری په زړه کښ شيطان يادا خبره واچوله چې ددې خاورې نه يوموټی خاوره راواخله اوپدي مجسمي دعجل کښ واچوه نودې به دسخې آواز شروع کړي،لکه دیته اشاره ده په روايت دابن عباس عليه السلام کښ چې والقى ف روعه انه لايلقيهاعلى شئ فيقول كن كذا الاكان(روح)اويا سامري پخپله دامشاهده اوکړه چې دجبرئيل عليه السلام دآس دخپودلاندې ځائ شين کيږي نوپدې کښ اثردحيات دې نوده هم(ازروئ قياس) خاوره راواخستله اوپه هغې کښ واچوله اودامعنی ده د﴿فَقَبَضْتُ قَبْضَةً ﴾يعني مايوموټی خاوره راواخستله، او﴿مِّنْ أَثَرِ ٱلرَّسُولِ ﴾ نه مراد اثرفرس الرّسول، دې يعنی داس دخپودلاندې چې کومه خاوره وه، اورسول نه مراد حضرت جبرئيل عليه السلام دې او﴿فَنَبَذْتُهَا﴾نه مراد په سخې کښ اچول دي، ددې ايت په تفسيرکښ امام رازی رحمه الله اوخطيب شيربينی رحمه الله وغيره يوه بله توجيه هم ذکرکړيده،چې دمشهورمعتزلی مفسرابومسلم اصفهانی ده چه ،﴿بَصُرْتُ ﴾ په معنی دعلمت او عرفت سره دي، اومعلوم عدم حقانيت دموسیٰ عليه السلام ووپه نيزدده يعنی ماته دامعلومه شوه چې په کوم دين باندی ته ئی دا صحيح ندې،او﴿فَقَبَضْتُ قَبْضَةً ﴾نه مراد لږه غوندې تابعداری ده، او﴿أَثَرِ ٱلرَّسُولِ ﴾نه مرادنقش قدم دموسیٰ عليه السلام دې يعنی درسول يعنی ستاپه نقش قدم روان شوم لږه غوندي اتباع مې ستااوکړه خوماته دامعلومه شوه چې ته برحق نه ئي،اوستادين حق ندې او﴿فَنَبَذْتُهَا﴾نه مراد پريخودل دي دَدغه دين، يعنی ارتداد اختياره ول دی او﴿ٱلرَّسُولِ﴾ذکرکول دغائب په ځائ دخطاب باندی،موافق دعرف اوعادت دې، ځکه چې په عرف کښ کله کله خطاب په ځائ غائب استعماليږي، لکه يوسړی بادشاه ته مخامخ وي خوبياهم دبادشاه نوم نه اخلي اونه ورته خطاب کوي بلکه داسي وائي چې بادشاه څه حکم اوکړو ،بادشاه دڅه شئ امراوکړو وغيره اوخطيب شربينی اووغيره دې قول ته ترجيح ورکړيده په دري وجوه سره،اګرچه هغه وجوه محل تامل دی چې تفصيل ئي صاحب دروح المعانی ذکرکړيدي اودهغې نه علاوه

دامذكورتفسيرمشتمل دي په تكلفاتواوتاويلاتوبعيدو باندى څكه چې(۱) ﴿ٱلرَّسُولِ﴾ غائب دحاضرقائمقام كول(۲) ﴿قَبۡضَةً﴾ چې خپله معنى ئي موټى دي په معنى دلږي اتباع سره اخستل(۳)نبذچې خپله معنى ئي غورزول دي په معنى دترك اتباع سره اخستل مجازات كثيره اوتاويلات بعيده دى، اودغه شان(۴) ﴿بَصُرۡتُ﴾نه مراد عدم حقانيت دموسىٰ عليه السلام مرادكول هم تكليف دي اومخالف دي دسياق كلام نه.

﴿وَكَذَٰلِكَ سَوَّلَتۡ﴾كاف دپاره دبيان كمال دي اومقصدددې دادې چې داكارماصرف اوصرف دخواهش نفساني، اونفس اماره بالسوء په اتباع كښې مي كړيدې نه ماسره پدې څه دليل عقلي شته دې نه نقلي اونه ماته څه الهام شويدې (روح) قال فاذهب فانّ الخ پدې كښې سزادسامري ذكركيږي، په دنياكښې دده دپاره موسىٰ عليه السلام سزا داتجويزكړه چې نه به دې دچاسره ميلاويږي اونه به دده سره څوك ميلاويږي اودده سره هرقسم معاملات،مكالمات اومواجهات داموسىٰ عليه السلام حرام كړلو ،اودې به په ځنګل كښې دځناوروسره ګرزيدلو ، اوكچرته ده سره به چالاس اولګولونوهغه ته اوده ته دواړوته به تبه لګيدله نوددې وجه نه به ده چغې ويستلې چې ﴿لَا مِسَاسَ﴾يعنى ماسره مه لګئ،اوداسزا ددپاره څكه غوره كړې شوه چې ده په دنياكښې دخلكو مشرى حاصلوله په ناجائزي طريقي سره،او﴿لَا مِسَاسَ﴾ نفي په معنى دنهى سره دې اوداعلم مصدردې، ﴿وَإِنَّ لَكَ مَوۡعِدًا﴾دادآخروي سزا ذكردې يعني ددې شرك په جرم كښې په اخيرت كښې به ضرورتاته سزاميلاويږي، اوالله تعالىٰ دخپلي وعدي مخالفت هرګزنه كوي.

﴿وَٱنظُرۡ إِلَىٰٓ إِلَٰهِكَ ٱلَّذِي﴾داد سامري دمعبودحشراوانجام ذكركيږي چې موسىٰ عليه السلام ورته اوفرمائيلو چې ته دې خپل معبودته ګوره چې ته دده په عبادت باندى مضبوط قائم وې، دې څرنګه بى وسه دې چې څه ئي سوزومه اوبيادده ايرى په سمندركښې غورزوم اودې خپل ځان هم څمانه نشي خلاصولى.

﴿لَّنُحَرِّقَنَّهُۥ﴾داجواب دې دقسم محذوف دپاره يعنى بالله لنحرقنه الخ اوسخې خوددزرونه جوړكړې شوې وونودهغه تحريق(سوزيدل) څرنګه ممكن وو؟ نوبعض علمآء فرمائى چې پدې

سخي كښې حيات وواوغوښې اووينه پکښې وه. حضرت موسى عليه السلام دي ذبحه کړلو اوبياني په اوربانديې اوسوزولو اوايره ئي په سمندرکښې اوغورزوله.لکه داتوجيه ذکرکړيده علامه محلي رحمه الله په جلالين شريف کښې.اوجمهورعلماء فرمائي چې دډينه په حقيقت کښې عجل نوجوړشوې بلکه داصرف صورت دسخي وو.اوموسى عليه السلام اولاداپه سوان(ريتى)سره اوتوګلواوبيائي اورته اوغورځولو، عن ابن عباس رضي الله عنه والسدى نسحله بالمبارد والقاه على النار(ابن كثير) اوداهم ممکنه ده چې بطورمعجزه حضرت موسى عليه السلام داسخي سوزولی وي اوايري تنه جوړې شوي وي.﴿ثُمَّ لَنَنسِفَنَّهُۥ فِى ٱلْيَمِّ﴾چونکه پدي سخي کښې خاوره دسمندرميلاؤشوې وه اودهغې دوجې نه په ده کښې اثردحيات راغلى وو نودډي وجه نه موسى عليه السلام سمندرته اوغورځولوچې خپل اصل ته واپس شي، اودغه شان دې دهغه زيوراتونه جوړکړې شوې وو چې هغه دقبطيانو والاوو نومالکان ئي الله تعالى په دغه سمندرکښې غرق کړې وو،نومال وريسې هم الله تعالى هلته اورسولو ،اومال ئي پري دپاسه غرق کړو.

**فائده(۱):** امام قرطبي رحمه الله فرمائي چې داايت دليل دې پدې چې مشرکانو ،بدعتيانو او ګناهګارانوسره قطع تعلق پکاردې، اودډوئ سره اختلاط کول ندي پکار.

**فائده(۲):** قرطبي رحمه الله اونورومفسرينونقل کړيدی چې حضرت موسى عليه السلام دسامري قتل کولواراده اوکړه خوالله تعالى دده سخاوت دوجې نه موسى عليه السلام دده دقتل نه منع کړو ،يقال ان موسى عليه السلام هم بقتل السامرى فقال الله تعالى له لاتقتله فانه سخى(قرطبي).

| إِنَّمَآ إِلَٰهُكُمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ وَسِعَ كُلَّ |
|---|
| [1]بيشکه ستاسو معبود الله جل جلاله دې هغه ذات چې نيشته دې حق دار دبندګئ سيوادهغه نه ،راګير کړيدې هغه هرڅيز |
| شَىْءٍ عِلْمًا ﴿٩٨﴾ كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنۢبَآءِ مَا قَدْ سَبَقَ ۚ |
| په علم خپل کښې [2]همدغسې بيانوو مونږ په تاباندې بعضې دخبرودهغې نه چې مخکښې تيرې شويدې |

1. بنځم ايت دتوحيد
2. دريم ايت دتشجيع

| |
|---|
| وَقَدْ اٰتَيْنٰكَ مِنْ لَّدُنَّا ذِكْرًا ﴿۹۹﴾ مَنْ اَعْرَضَ عَنْهُ فَاِنَّهٗ |
| اوبیشکه درکړیدي مونږتاته دخپل طرف نه یاداشت(قرآن)[3] چاچه مخ اوګرځوو ددې نه پس بیشکه دی به |
| يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا ﴿۱۰۰﴾ خٰلِدِيْنَ فِيْهِ ؕ وَسَآءَ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حِمْلًا ﴿۱۰۱﴾ |
| پورته کوي په ورځې دقیامت لوئ بار همیشه به وي په هغې کښې اوډیربددې دادوئ دپاره په ورځې دقیامت لوئ بار |
| يَّوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا ﴿۱۰۲﴾ |
| په کومه ورځ چې پوکی اوکړې شي په شپیلئ کښې اوراجمع به کړو مونږ مجرمان په دغه ورځ شین سترګي. |
| يَّتَخَافَتُوْنَ بَيْنَهُمْ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا عَشْرًا ﴿۱۰۳﴾ نَحْنُ اَعْلَمُ |
| خوس خوس به کوي په خپل مینځ کښې چې نه ئي تاسو حصارشوی (په دنیا کښې) مګرلس ورځې مونږ ښه پوهه یو |
| بِمَا يَقُوْلُوْنَ اِذْ يَقُوْلُ اَمْثَلُهُمْ طَرِيْقَةً اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا يَوْمًا ﴿۱۰۴﴾ |
| په هغې چې دوئ چې څه وائي کله چې اوائي ډیرهوښیاردوئ په رائ کښې چې نه یئ حصار شوي تاسومګریوه ورځ |

﴿ اِنَّمَآ اِلٰهُكُمُ ﴾ دا پنځم ایت توحید دې، دسامري دمعبود عجزبیانولو نه بعد اعلان دتوحید دې، موسیٰ علیه السلام دسامری سره خطاب اوتکلم اوهغه ته سزابیانولو نه پس ټولو بني اسرائیلوته مخاطب شواوورته اوفرمائیلو چې ستاسو معبودبرحق صرف اوصرف الله جل جلاله دې چې دهغه نه علاوه بل څوک دعبادت لائق نیشته اودهغه علم په هرڅه باندی حاوي دې ﴿وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴾، علمًا منصوب دې داتمیزعن النسبت دې، اوداټوله جمله بدل واقع شوې ده دالذي موصول نه، نووسعت علم ئی دلیل ګرځولی دې په نفی دشرک فی الالوهیة دپاره، یعنی دعبادت لائق صرف الله جل جلاله ښکه دې چې هغه په هرڅه باندی عالم دې اوبل داسي څوک نیشته دې چې دهغه علم په هرڅه باندی حاوي وي نومعلومه شوه چې بل څوک معبودنیشته.

(3) تخویف اخروی

﴿كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ﴾ دَحضرت موسیٰ عليه السلام واقعه تفصيلا بيانولو نه پس اوس بياتشجيع ذکرکيږي، چې دا بيواهم مضمون دې دَدې سورت. نوداديم ايت دَتشجيع دې اوکاف په ﴿كَذَٰلِكَ﴾ کښ دَپاره دَبيان کمال دې، چې داسې پوره پوره تفصيلا بيان کول صرف زمونږه کار دې، اودا واقعات ځکه په تاباندې بيانوو چې تاته پته اولګی چې سابقه انبياء کرامو دَتوحيد دَپاره څومره تکاليف اومصائب اوچت کړيدي، اوصبرئې کړيدې.

﴿وَقَدْ ءَاتَيْنَٰكَ﴾ دا جمله معترضه ده دَپاره دَصداقت درسول الله ﷺ اودَاکرام دَهغه دَپاره، اومراد په ﴿ذِكْرًا﴾ سره ياقرآن دې، ځکه چې قرآن لوئ نصيحت دې اودَفکراوعبرت دَپاره دې مشتمل دې په قصصواواخبارباندې، (مدارك) اوبعض فرمائي چې ﴿ذِكْرًا﴾ نه مراد دَحضوراکرم ﷺ بهترين تذکره اوخائسته شهرت دې، ليکن اوله توجيه زياته غوره ده، اومناسبه ده دَراتلونکی ايت سره چې ﴿مَّنْ أَعْرَضَ عَنْهُ﴾ ضميرراجع دې ذکرته، اوداتخويف اخروي دې دَمنکرينو دَپاره، چې کوم خلك ددې ذکرنه اعراض کوي يعني په دې قرآن باندې ايمان نه راوړي اوپدې باندې عمل نه کوي نودَقيامت په ورځ به دادوئ دَپاره دګناهونويولوئ بوج به وي (قرطبی).

﴿يَحْمِلُ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ وِزْرًا﴾ وزر په اصل کښ په دوو(۲)معانيوباندې اطلاق کيږي، ګناه ته هم وائي او غټ بوج ته هم وائي دلته دادويمه معنى غوره ده يوخودَسياق کلام دَوجې نه چې دکلام دسياق سره دامعنی ډيره انسبه ده، اوبل دَدې وجه نه چې پدې صورت کښ کلام محتاجه ندې حذف ته اودَاول معنی په صورت کښ لفظ دَعقوبة، به مقدرکيږي اوقيامت په ورځ به الله تعالیٰ هرګناه ته به يومخصوص بدترين صورت ورکړي اوهغه صورت اومجسمه به په هغه ګناه ګارباندې سوروي، داقسم مضمون په متعددو احاديثوکښ مذکوردې.

﴿خَٰلِدِينَ فِيهِ﴾ داحال مقدره دې دَضميردَ ﴿يَحْمِلُ﴾ نه چې راجع دې ﴿مَّنْ﴾ ته او ﴿مَّنْ﴾ معنی جمع ده نوځکه حال جمع راوړی شو. اوضميردَ ﴿فِيهِ﴾ راجع دې وزرته اودَوزرنه مراد عقوبت اوسزاده دَوزر په طريقې دَصنعة الاستخدام سره.

﴿وَسَآءَ لَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ساء په معنى دبئس سره دافعال ذم نه دي اوفاعل دساء همیشه دپاره ضمیرمبهم وي چې تفسرئي تميزكوي اوپديكښ اګرچه اضمارقبل الذكرراځي خوداد هغه مواضعونه دي چې اضمارقبل الذكرپكښ جائزدي(والتفصيل في كتب النحو)نودلته هم دساء.فاعل ضمیرمبهم دې چې راجع دې﴿حِمْلًا﴾ته اوداحملا مذكورتميزواقع شويدې دضميرفاعل دساء نه اومخصوص بالذم محذوف دې چې هغه وزرهم دې اولام په ﴿لَهُمْ﴾كښ دپاره دبيان دې. اومتعلق دې په مقدرپوري چې هغه يقال، دې يعنى ډيربددې هغه بوج چه دوئ په ځان باندى باركړيدې اواعاده، د﴿يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ دپاره دډيرتهويل اوتخويف دي﴿يَوْمَ يُنفَخُ فِي ٱلصُّورِ ﴾داهم تخويف اخروى دې او﴿يَوْمَ﴾ منصوب دي په فعل مقدرسره چې اذكر،دې اويابدل دي د﴿يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾نه اوغوره خبره داده چې د﴿فِي ٱلصُّورِ ﴾نه مراد قرن(ښكر)دې لكه په حديث دابن عمر﷛ كښ دى چې دحضورﷺ نه دصورپه باره كښ تپوس اوكړې شونورسول اللهﷺ ورته اوفرمائيلوچې قرنٌ ينفخ فيه، چې دا يوښكردې چې دې پدې كښ به پوكى وركولى شي(رواه الترمذى والنسائي) اوددينه مراد نفخه ثانيه ده په قرينى ددي ورستوجمله سره ځكه چې په نفخه اولى سره به حشركيږي هغې سره به فنادعالم راځي اوحشربه په نفخه ثانيه سره كيږي﴿زُرْقًا﴾ داحال دي د﴿ٱلْمُجْرِمِينَ﴾، نه اوزُرق ونيلى كيږي دسترګوځروالي ته سره دتوروالي دمخ نه، اوپه عربوكښ به دارنګ اوصورت به ډيربدحسابيدلو ،بعض فرمائي چې زرق، ړوندته ونيلى كيږي اوبعض فرمائي چې زرق، ړوندته ونيلى كيږي، اوددي تائيدپه نحشرهُ يومَ القيمة اعمٰى، سره كيږي، ليكن اولى معنى ته ترجيح وركړيده علماؤ اوتطبيق په مينځ ددي ايت اودونحشرهم يومَ القيٰمة على وجوههم عُميا الخ وغيره ايتونوسره پدې شان دې چې مواطن اومواقف دقيامت اودحشرمتعدددي نوصفات دكفاروبه هم على حسب المواطن، مختلف كيږي، اوانواع دعذابونوبه هم مختلف كيږي

﴿يَتَخَٰفَتُونَ﴾دقيامت داهوالوشدت دوجې نه به دوئ په اوچت اوازسره خبرې هم نشي كولى، اوداجمله په محل دنصب كښ حال واقع شويده دالمجرمين نه،﴿إِن لَّبِثْتُمْ ﴾انْ نافيه ده﴿إِلَّا

عَشْرًا ﴾ معدودئي ياليالِ دي. اويااَيّام كچرته معدودئي ايامِ شي نوبياهم عدد مذكرځکه راوړي
ـنو چې کله معدود مذکرحذف کړي شي نوعددمذکرراوړل جائزوي.لکه په حديث کښې دی من
ـصام رمضان ثمّ اتبعه بستٍ من شوال الخ نوپه اصل کښې داسي دې بستة من ايّام. داکنايه ده دکموالي
ـدوخت نه اوپه جلتئ سره تيريدلونه ځکه چې لس(عشر) دَجمعي قلت آخيری حددې. اودَدنيا
داژوندبه دَوئ ته ځکه دومره کم ښکاره شي چې په دنياکښې دوئ په سرور،اوخوشحالئ کښې
پراته وو اوپه ميدان حشرکښې به دوئ ته دَعذاب معائنه اوکړې نودوئ به دَډيرهيبت دَوجي نه
دَدنياژوندډيرکم اوګنړي(مدارك) اويادَدي وجه نه چې دوئ ته به دَدنيااوآخرت حقيقت معلوم شي
چې اخرت زندګي نه ختميدونکي ده دَدي په مقابلي کښې دَدنيا، ژوندون ډيرکم دې اګرچه فی
نفسه ډيرولي نوي. ﴿إِذْ يَقُولُ أَمْثَلُهُمْ ﴾امثل، په معنى دَډيرپوهه، عقل مند.اوپه قول کښې
ډيربرابريعني چې په دوئ کښې کوم يوډيرهوښياراوصحيح خبري کوونکی وي نوهغه به دااوائي
چې تاسوصرف يوه ورځ تيره کړيده، اوده ته په ټولو کښې زيات هوښيارځکه اوئيلی شو چې دَه
دَاخرت دَژوندپه مقابله کښې دنياوالاژوندډيرکم اوخودلو، نوخلاصه داده چې دوئ ټول به په دي
متفق وي چې مونږ په دنياکښې ژوندډيرکم تيرکړيدې خوڅومره کم؟؟ نوعام مشرکان به داوائی
چې په اندازي دَلسو(۱۰)ورځوژوندون موتيرکړيدې،اومشران به ئي داوائي چې دَيوي ورځي په
اندازي سره زندګي موتيره کړيده،اوځني به پکښې داوائي چې پوره ورځ موهم نده تيره کړې بلکه
يوبيګائي يايوصبائي دومره وخت موصرف تيرکړيدې لکه په سورة المؤمنون. سورة الاحقاف،
اوسورة النازعات کښې دي اودااختلاف دَرائ ددوئ دَعقلونوپه بنيادبه وي ځکه چې څومره
هوښياروي نودَهيبت احساس زيات کوي اوچې کم عقل وي نوغافل وي نوهيبت پري هم نسبتاً
کم وي،اودَدي خبرونه به دَ دوئ مقصد عذرپيش کول وي چې مونږ ايمان ځکه رانوړلوچې مونږته
موقعه کمه راکړې شوي وه خوداعذردَدوئ خلاف واقع اودروغ دی اويابه هسي تخيلات دَدوي
وي، يعنی هرکله چې دوئ عذاب معائنه کړي نودَدوی خيال به داوي چې مونږپه دنياکښې يوه ورځ
تيره کړيده.

| وَيَسْـَٔلُونَكَ | عَنِ | الْجِبَالِ | فَقُلْ | يَنْسِفُهَا | رَبِّيْ | نَسْفًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|

اوتپوس به کوي دوئ ستانه په باري دَغرونوکښې نوته ورته اوايه وابه لوځوي داځماړب په الوځولوسره

فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ﴿١٠٦﴾ لَّا تَرٰى فِيْهَا عِوَجًا وَّلَآ اَمْتًا ﴿١٠٧﴾ يَوْمَئِذٍ

پس پریږدي به دا (زمکه) میدان خویه. نه به ویني ته په هغې کښې کوږوالی اونه ډیرئ. په دغه ورځ

يَّتَّبِعُوْنَ الدَّاعِيَ لَا عِوَجَ لَهٗ ۚ وَخَشَعَتِ الْاَصْوَاتُ لِلرَّحْمٰنِ فَلَا تَسْمَعُ

روان به وي خلك بلنه كوونكي پسې نه به وي كږليچ دهغه . اوچپ به شي آوازونه ډيري د رحمان نه پس نه به آورې نه

اِلَّا هَمْسًا ﴿١٠٨﴾ يَوْمَئِذٍ لَّا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَرَضِيَ

مگر كشار. [2]په دغه ورځ نفع به نه وركوي سفارش مگر دهغه چاچې اجازت وركړې وي هغه ته رحمن اورضاوي

لَهٗ قَوْلًا ﴿١٠٩﴾ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيْطُوْنَ

دهغه په وینا .خبردي الله ﷻ په هغه څه چه د دوئ نه وړاندي دي اوپه هغه چې د دوئ نه ورستودي اونشي راګیرولی

بِهٖ عِلْمًا ﴿١١٠﴾

دوئ هغه په خپل علم سره.

﴿وَيَسْـَٔلُوْنَكَ﴾ داهم تخويفات دى اوهركله چې په ماقبل ايتونوكښې دنفخ صور، حشرنشر، اودقيامت ذكروو، نودمشركينونه داسوال متوقع وو چې قيامت راځي نوداغټ غټ غرونه به چرته وي نودَدي وجه نه الله ﷻ اوفرمائيلو چې كچرته دوئ داسوال اوكړي نوته ورته جواب كښې دااوفرمايه چې ﴿يَنْسِفُهَا رَبِّيْ﴾ يعنى خما رب به داغرونه والوخوي اوزمكه به صاف ستهرا اوهموارميدان به شي اوفاء په﴿فَقُلْ يَنْسِفُهَا﴾ كښې دَغوره قول مطابق جزائيه ده ځكه چې داسوال دكافرانومتوقع وو اومتحقق نوو،نوتقديردَعبارت داسي دي، ان سالوك عن الجبال فقل(مدارك) اوكوم ځائ كښې چې سوالات متحقق وو نوهلته په جواب باندى فاء نده داخله شوي لكه ويسئلونك عن المحيض قل هوَ اذى،يادغه شان نورمواضع شو،ځكه چې هلته سوالات متحقق

(2) نفي شفاعت قهرى

وو اومتضمن نوو معنی دشرط لره نوځکه فاء په جواب کښې نده راوړی شوي. اوامام رازي رحمه الله فرماني چې داسوال متحقق وو لکه چې پدي دلالت کوي هغه واقعه چې نقل کړيده امام بغوي رحمه الله دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه. چې دثقيف قبيلي يوکس راغی اودنبی ﷺ نه ئې پوښتنه اوکړه چې دقيامت په ورځ به دا دي غرونوڅه کيږي؟ نو الله تعالی داايت نازل کړو. اوفاءځکه پدي مقام کښې راوړی شوه چې داسوال متعلق دي دمسئلي اصوليه سره نوتاخيرپديکښې جائزنوو نودا دي وجه نه داجواب ئې مصدرکړې شو په فاء سره چې دلالت کوي په تعقيب مع الوصل اومسارعت باندی، په خلاف دهغه نورومواضعونه چې هلته سوالات دفروعاتو متعلق وو چې تاخيرپکښې جائزدې، ليکن اول قول زيات غوره دې اوهغې ته ترجيح ورکړيد مفسرينو

﴿فَيَذَرُهَا﴾ضمير راجع دي ياجبال يعنی غرونوته په حذف دمضاف سره نوتقديردعبارت به داسي دي فيذرمواضعها(قرطبی) اوياضمير راجع دي، زمکي ته، اودهغې ذکراګرچه په کلام سابق کښې نيشته دي حقيقتا، ليکن حکما مذکوره ده ځکه چې نسف الجبال،نه بعدزمکه،باقی وي.

﴿قَاعًا﴾داڅلورصفات دا دي زمکي بيانيږي چې دقيامت په ورځ به زمکه (۱)قاع(ميدان) به وي (۲)﴿صَفْصَفًا﴾صاف ستهرا همواره به وي صفصفا په منزله دتاکيددې دقاعا، دپاره نوګوياچې دادواړه په حقيقت کښې يوصفت دي،(۳)﴿لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا﴾عوج کوږ والی ته وئيلي کيږي مرادتنه دلته يا انخفاض، يعنی ښکته والی دي اوياتنه واديانې مراددي، اوعوج په فتحې دعين سره هغې کوږوالی ته وئيلی کيږي چې په سترګوباندی کتلی شي. يعنی محسوس وي اوپه کسری دعين هغې نقص اوکوږوالی ته وئيلی کيږي چې په سترګوسره نه ښکاري بلکه معنوي وي، نودزمکي اعوجاج يعني کوږوالی اګرچه حسی دې خوبياهم دلته عوج مکسورالعين ذکرشودپاره دنفی داعوجاج په طريقي ابلغي اواوکدي سره،يعني ظاهري اوځرګنداعوجاج اوکوږوالی به پکښې بالکل نوي بلکه هغه معمولی غوندي کوږوالي چي په سترګوخونه ښکاري.ليکن آلات اوپيماني په ذريعي سره معلوميدې شي هغه به هم نوي (ابوسعود)(۴) ولاامتا، امت اوچت ځای ته وئيلی کيږي يعنی غوندۍ.

﴿يَوْمَئِذٍ﴾ تنوين عوض دجملي نه راغليدې يعنى يوم انخسفت الجبال. يتبعون الدّاعى اتباع نه مراد روانى دل دی. اوداعى نه مراد(عندالاكثر) اسرافيل عليه السلام دې چې په ګټ (كانړى) دبيت المقدس باندى به اودريږي اوصوربه پوکړى اوآوازبه اوکړى چې. ايتهاالعظام البالية، والجلود المتمزقة، واللحوم المتفرقة هلموا الى عرض الرحمٰن (خازن)اوضميرد﴿لَهُ﴾ راجع دې مدعوته په تاويل دكل واحد، سره.يعنى هرمدعوبه پدې اوازپسي سيدهاروان وي څه قسم انحراف به نه كوي (مدارك) اوياضميرراجع دې داعى ته،اود﴿لَا عِوَجَ﴾ مقصددادې چې پدې اوازكښ څه قسم ركاوټ نوى هرچاته به اوريدې شي(بحر)اويامراد داتباع نه خبره منل دى. يعنى چې په كومه ورځ دوئ دقيامت داسخت سخت مناظراوګوري بيابه دوئ خبره مني اوكوم طرف ته دتللوحكم ورته آمركوي نوپه ډيرجلتئ سره به هغې طرف ته روان وي، ليكن په دغي ورځي امرمنل به دوئ ته هيڅ فائده ورنكړي كچري دوئ په دنياكښ خبره منلى وي نوفائده به ئى وركړي وه (ابن كثير) اوداهم جائزه ده چې داعي نه مراد دقوم پيشوا اوراهنما شي چې د قيامت په ورځ به مشرمخكښ وي اومتبعين به ورپسي وي.

﴿وَخَشَعَتِ ٱلْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَٰنِ﴾خشعت ياپه معنى دخضعت يعنى پست كيدل، روكيدل. اوياپه معنى دسكتت خاموش كيدلوسره دې،اولام په ﴿لِلرَّحْمَٰنِ﴾كښ تعليليه دې اوعبارت په حذف دمضاف سره دې اى ذلت الاصوات لهيبة الرحمٰن(حداد) او﴿هَمْسًا﴾نه مراد ياآواز دقدم دې يعنى صرف به دمخلوقاتودقدم اوازونه وي نوربه هيڅ هم نوي يعنى خبري به نشي كولى دسخت رعب دوجې نه،اوياتنه مرادډيررو آواز(پس كيدل)دې.

﴿يَوْمَئِذٍ لَّا تَنفَعُ ٱلشَّفَٰعَةُ﴾پدې ايت كښ نفي دشفاعت قهري ده، اود﴿مَنْ أَذِنَ لَهُ﴾ نه مراد ياشفيع دې نوپدې صورت كښ نفي دشفاعت دمعبودان باطلو ده نومطلب دادې چې شفاعت كوونكي به صرف اوصرف انبياء كرام عليهم السلام اويااولياء اويابه مؤمنين صالحين وي چې دوئ ته به دقيامت په ورځ دګناه ګارانو مؤمنانوپه حق كښ دسفارش كولواذن به ميلاويږي اوياد﴿مَنْ أَذِنَ

﴾ نه مراد مشفوع له دي او مَن اذن په تقدير دلام سره دي نو پدي صورت کښې دمشرکينو په حق کښې سفارش مفيد او نافع کيدل نفي ده چې سفارش به صرف دمؤمنانو په حق کښې نافع وي

﴿وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا﴾ ضمير دله يا راجع دي شافع ته او لام پکښې زائد دي ای رضی قوله(بحر) يعني شفاعت به صرف هغه کس کولی شي چې الله تعالى ورله اجازت ورکړي وي او دهغه په خبره راضي وي، او يا ضمير راجع دي مشفوع له ته، او لام اجليه دي رضی لاجله قول الشافع(فتح) مطلب د ايت دادي چې شفاعت به نفع ورکوي هغه چاته چې الله ﷻ ورته اجازت ورکړي دهغه په حق کښې دسفارش کولو او دده دپاره داسي عذر وي چې دهغي دوجې دشافع شفاعت قبول کړې شي .

﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ﴾ دا درحقيقت دليل دي دماقبل دپاره چې څوك به هم دقيامت په ورځ غلط سفارش(په حق دکافر کښې) به نشي کولی ځکه چې ددوئ ټولو علم الله ﷻ ته دي، چې څوك مسلمان دي او څوك کافر، او شفعاء به بغير داذن او اجازت نه به سفارش نشي کولی ځکه چې الله ﷻ ته ددوئ په عجزباندې علم دي او ضمير دجمعي راجع دي يا محشورينو ته نود ﴿أَيْدِيهِمْ﴾ نه مراد مخکښې تلونکي متبوعين دي، او ﴿خَلْفَهُمْ﴾ نه مراد ورستوتلونکي متبوعين دي او بعض فرمائي چې مطلق مخلوقاتو راجع دي او بعض فرمائي ﴿أَيْدِيهِمْ﴾ نه مراد احوال دقيامت دي او د ﴿خَلْفَهُمْ﴾ نه مراد احوال ددنيا دي، اول احتمال زيات غوره دي، او دبِهِ ضمير راجع دي ماموصول ته، او ما اګرچه معنًی جمع ده ليکن لفظًا مفرد دي نو ځکه ضمير ورته دواحد مذکر راجع شو.

| وَعَنَتِ الْوُجُوهُ لِلْحَيِّ الْقَيُّومِ ؕ وَقَدْ خَابَ مَنْ |
|---|
| [1]اوعاجز(ټيټ) به شي مخونه هغه ژوندي انتظام کوونکي ذات ته او بيشکه نااميده دي هغه څوك چې |
| حَمَلَ ظُلْمًا ۝ وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا يَخٰفُ |
| بارئې کړو په ځان پيتی [2]دظلم او چاچې عمل اوکړو دنيك عملونو نه او حال داچې دي مؤمن وو نو نه به يريږي |

(1) تخويف اخروی.

(2) بشارت اخروی.

ظُلْمًا وَّلَا هَضْمًا ﴿۱۱۲﴾ وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا وَّصَرَّفْنَا

د زياتي نه اونه دكمي نه (1) اوهمدارنګي نازل كړيدي مونږ دا .قرآن په عربۍ ژبه كښ او قسم قسم بيان كړيدی مونږ

فِيْهِ مِنَ الْوَعِيْدِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ اَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا ﴿۱۱۳﴾ فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ

پديكښ عذابونه دي دپاره چې دوئ بچ شي دګناه نه اويابه پيدا كړی دوئ لره ياداشت پس بلند دی الله ﷻ چې بادشاه

الْحَقُّ وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّقْضٰٓى اِلَيْكَ وَحْيُهٗ وَقُلْ رَّبِّ زِدْنِىْ عِلْمًا ﴿۱۱۴﴾

حق دی اوته جلتي مه كوه په قرآن سره مخكښ ددينه چې پوره كړې شي تاته وحي ددي اووايه اې ربه ځما زيات كړې ځما علم

﴿وَعَنَتِ الْوُجُوْهُ﴾ داهم تخويف اخروی دي اومراد په وجوه سره يالوئ لوئ خلك دي اويا ته اعضاء مخصوصه، مخونه اوتندي مراددي اوتخصيص دوجوه ځكه اوشوچې دااشرف الاعضاء دي اوالف لام ياعهدي اومراد تنه وجوه العصاة دی، چې دانافرمان خلك چې كله دقيامت په ورځ خپله نامرادي، بدبختی اوسخت حساب معاينه كړي نوددوئ مخونه به ذليل اورسوا اوګرځي. (كشاف) اوياالف لام استغراقی دي اومراد تنه جميع وجوه، دي يعنی دقيامت په ورځ به ټول مخلوقات به الله ﷻ ته سرونه ټيټ كړی وي.

﴿وَقَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ﴾ مصداق دمَنْ يامشرك دي اوظُلماً نه مراد شرك دي لكه چې داتفسير منقول دي دابن عباس رضي الله عنه نه، اويامصداق دمن عام دي اوظلم نه هم مرادعام معصيت دي، يعني هرسړی به دخپل ظلم اومعصيت مطابق په خيبت اوذلت كښ به وي، دمشرك خيبة، به دائمي وي اودمؤمن عاصی خيبة به مقيدوي دوخت دعقوبت سره كچرته معافی ورته اونكړې شوه ابتداءً (روح) ﴿وَمَن يَعْمَلْ مِنَ الصَّـٰلِحَـٰتِ﴾ دابشارت اخروی دي، فرق په مينځ دظلم اوهضم كښ دادي چې ظلم دټول حق نه منع كولوته وئيلی كيږي، اوهضم، دبعض حق نه منع كولوته وئيلی كيږي (قرطبی) اويا ﴿ظُلْمًا﴾ نه مراد زياتی كول دی په سيئاتو كښ، او ﴿هَضْمًا﴾ نه مراد كمی كول دی په حسناتو كښ (حداد).

---

[1] ترغيب الى القرآن.

﴿وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَٰهُ﴾پدي ايت كښې ترغيب دې عمل كولوته په قرآن باندې عام مفسرين فرمائي چې كاف دتشبيه دپاره دې، مشبه كل قرآن دې اومشبه به انزال دجزء دې، اومراد پدې تشبيه سره تنبيه ده پدې چې ټو ل قرآن په يونمط دې اوداسې ندې چې يوه جمله يايوه جزء ئې معجزاوفصيح بليغ دې اوبل جزئى ندې، بلكه ټول قرآن معجزاو فصيح، بليغ دې اوحضرت الشيخ رحمه الله فرمائي چې كاف دپاره دبيان كمال دې﴿لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ﴾داذكر دده (٢) فائدو دې دقرآن چې يوه تقوى ده اوبله احداث دذكر دې، اومراد په تقوىٰ سره پريخودل دمعاصي دى، اوپه احداث دذكرسره مراد عمل دې په طاعاتو، (روح) اوتقوىٰ دقبيلې دتخليې نه ده اواحداث دذكردقبيلې دتحليې نه دې اوتخليه مقدمه وي په تحليې باندې نوځكه دلته هم تقوى مقدمه شوه اويامراد په تقوى سره عمل كول دى په قرآن دوجې دېرې دالله ﷻ نه اواحداث ذكرنه مراد وعظ قبلول دې په رغبت سره(طبرى)او، اودپاره دمانعة الخلودې اويا په معنى دواو سره دې.

**فائده** نسبت دتقوىٰ سامعينوته اوشواونسبت داحداث دذكر قرآن ته اوشوپه تغيردې اسلوب كښې بعض علمآؤ دانكته بيان كړيده چې تقوىٰ مطلوبه ده بالذات دمخلوقاتونه،نودې وجه نه نسبت ئې سامعينوته اوشواواحداث دذكردتقوى پشان مطلوب نوو،نودې وجه نه اسلوب بدل كړې شو،اوبعض فرمائي چې تقوى نسبت ځكه دوئ ته اوشوچې دايوه ملكه نفسانيه ده نونسبت هغه چاطرف ته مناسب دې چې په چاپورې قائمه وي،اوذكرهغه نصيحت دې چې دقرآن اوريدلوسره حاصليږي(يعنى داكمه درجه ده دتقوى نه) نودې وجه نه نسبت ئې قرآن ته اوشو(روح).

﴿فَتَعَٰلَى ٱللَّهُ﴾پدې ايت كښې اول ثمره اونتيجه دماقبل ايتونودې توحيداوثمره دصدق دقرآن بيانيږي يعنى ددې ماقبل ټولونه دامعلومه شوه چې متصرف،مختار،اوعالم الغيب صرف الله ﷻ دې اوصرف هغه حقيقي بادشاه دې، لهذا صرف دهغه عبادت كوئ اوبيا﴿وَلَا تَعْجَلْ﴾ سره دتشجيع بيانيږي سره دادب دتلاوت دقرآن نه، يعنى دقرآن مجيدنازلې دوپه وخت كښې جلتي مه كوه په تلاوت دقرآن سره بلكه ښه په غورسره ئې اوره اوچې كله وحي ختم شي نوبيائي ښه په جرا ءت اوبهادرئ سره تبليغ كوه لكه چې څرنګه موسىٰ عليه السلام كړي وو،نوپه ﴿وَلَا تَعْجَلْ﴾

سره نهي دَعجلت نه ده په لوستلودَقرآن کښ اوتعليم دَادب دي دَلوستلودَقرآن يعني چې جبرئيل ﷺ وحی راوړي نوترڅوچې هغه نوي فارغ شوې نودَهغه دَفارغ کيدلونه مخکښ دَقرآن په لوستلوکښ تلوارمه کوه اوداسي په سورة القيامه کښ هم دی چې، لاتحرّك به لسانك لتعجل به. اوبعض فرمائی چې دانهي دَعجلت دَبيان نه. ده اومطلب دَايت دادې چې ترڅودَايت اودَقرآن په مرادباندی نه ني پوهه شوې نوترهغې پوري ئی بل چاته مه بيانوه، نوحيُه. په معنٰی دَبيانه اوتاويله سره دي،ای من قبل ان يقضٰی اليك بيانه(کبير)المعنی لاتلقه الی الناس من قبل ان ياتيك بيان تاويله(قرطبی) اوپه آخردَايت کښ حکم ددعادې دَپاره دَزياتوالي دَعلم چې په وحي کښ دَجلتئ کولوضرورت نيشته دې، بلکه دَجلتئ کولوپه ځائ ته دَ زياتوالي دَعلم اودَوحي دُعاکوه چې. ﴿ رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا ﴾اودا دليل دې پدې چې علم دَانبيآء کراموعلم کلي اومحيط نووبلکه محتاجه وو زيادت اوترقئ ته په علم کښ اودغه شان دادليل دې په فضيلت دَعلم باندی،اوعلمآء فرمائی چې رسول اللهﷺ ته دَبل شي زيات غوختلوحکم ندې ورکړې شوې سيوا دعلم نه اوهم دا وجه ده چې حضرت ابوهريرةؓ فرمائی چې نبیﷺ به دادعا ډيرغوختله،اللّهم انفعنی بماعلمتنی وعلمنی ماينفعنی وزدنی علماً والحمدلله علی کل حال،اودَحضرت ابن مسعودؓ نه روايت دې چې نبیﷺ به دادعاغوختله. اللّهم زدنی ايماناوفقهاً ويقينا وعلماً، اوحضرت سفيان بن عيينةؒ فرمائي چې نبيﷺ به دَزيادت دَعلم دعاغوختله نودَدي وجه نه ترمرګ وخته پوري په نبيﷺ باندی وحي نازليدله لکه چې په صحيح حديث دَمسلم کښ دی ان الله تابع الوحی علی رسوله حتی کان الوحی اکثرماکان يوم توفی رسول اللهﷺ (ابن کثير).

**وَلَقَدْ عَهِدْنَآ إِلَىٰٓ ءَادَمَ مِن قَبْلُ فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُۥ عَزْمًا ﴿١١٥﴾**

اوبيشکه حکم کړې وومونږ ادمﷺ ته مخکښ دَدينه پس هغه هيرکړو اونوو موندلی مونږه دې قصد(عزم)کوونکی دګناه

﴿وَلَقَدْ عَهِدْنَآ﴾داابتداء ده دَواقعي دآدمﷺ اوداووم(۷) مقام دې چې واقعه دآدمﷺ بيانيږي. ربط دې ايت دَماقبل سره په څوجوه سره دې(۱) ماقبل کښ ترغيب وو په باره دَقرآن کښ اوتحريض په زيادة دَعلم باندی نواوس پدې ايت کښ واقعه دآدمﷺ بطورنمونه بيانيږي دَپاره دَتحذيردَنسيان ،چې علم زده کړه اوسوال دَزيادت دَعلم کوه څکه چې ستانيکه حضرت

...السلام نه هم خبره هيره شوي وه اوپه تكليف كښې مبتلاء شوي وو(روح) (۲)بعض فرمائي چې به ماقبل كښې ممانعت وو دتعجيل، يعنى جلتي كولونه چې ﴿ وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْءَانِ ﴾نوپدي بنونوكښې نقصان دتعجيل، ذكركيږي په واقعي دادم السلام سره(روح)(۳) امام رازی رحمه الله چې په ماقبل كښې نبی ﷺ دتعجيل نه منع كړې شو چې دامرتبه دافراط وه ځكه چې پدي كښې يعنى جلتئ كولوسره زيادت على الواجب راتلو(ځكه چې استماع واجبه ده) نواوس پدي ايتونوكښې تساهل د ادم السلام ذكركيږي چې دامرتبه دتفريط ده، نوماقبل كښې تحذيروو دمرتبې دافراط نه اوپدي كښې تحذيردي دمرتبې دتفريط نه(۴)حضرت تهانوي رحمه الله فرمائي چې ماقبل ايتونوكښې وعيد ذكرشوي وو منكرينودپاره چې﴿مَّنْ أَعْرَضَ عَنْهُ ﴾اوس دتاكيددپاره واقعه دآدم السلام بيانيږي چې حضرت آدم السلام دكمال مقرب كيدلوباوجود معمولي غندي بی احتياطی اونسيان هغه ته تكليف اورسولونوعاموخلكو ته هم داعراض سزاميلاويدل مستبعدندي،(۵) اوحضرت الشيخ رحمه الله دكلام نه دامعلوميږي چې دادقبيلې دعطف القصة على القصه نه دې نوماقبل كښې دحضرت موسىٰ السلام واقعه تفصيل سره بيان شوه دپاره دتشجيع اواوس دآدم السلام واقعه مختصراًذكر كيږي دپاره دتحذيردنسيان نه چې دحضرت موسىٰ السلام پشان په عزم اواستقلال سره دعوت اوتبليغ دقرآن اوكړه، اودحضرت آدم السلام پشان په خپل عزم كښې اواستقلال كښې كمي نقص مه راوله.

﴿مِن قَبْلُ﴾يعنى مخكښې ددي منكرينونه، يامخكښې دپيدائش دمخلوقاتونه﴿فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُۥ عَزْمًا﴾ نسيان ياپخپلې معنى سره دې يعنى آدم السلام نه دالله تعالیٰ عهداوحكم چې ممانعت وو دخوراك ددې نه هغه تنه هيرشواويادئې نه كړې شو ،اوعتاب په نسيان باندې نوو ځكه چې نسيان دوجې نه مخالفت دامر گناه ندې،بلكه عتاب په ترك داهتمام باندې وو ،اوياپه معنى دترك سره دې يعنې چې دكوم څيزنه دځان ساتلوحكم ورته شوي وو نوهغه حكم ئې پريخودلواودونې نه ئې ميوه اوخوره، نوپدي اعتبارداخطاء اجتهادي وه، نوعتاب دخلاف اولى اواحسن كارپريخودلودوجې نه اوشو .ليكن اوله معنى زياته غوره ده په دليل دولم نجدله عزما، سره يعنى دده په زړه كښې دگناه اونافرمانئ اراده نوه بلكه هيرشوې وو.

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا إِلَّآ إِبْلِيْسَ ۭ أَبٰى ﴿۱۱۶﴾

اوکوم وخت چې اوئيل مونږه فرښتوته چې سجده اوکړئ آدم عليه السلام ته نوسجده اوکړه دوئ مګر ابليس،انکارئ اوکړ،

فَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ إِنَّ هٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا

پس اوئيل مونږه اې ادم عليه السلام بيشکه دادشمن ستادې اوستادبي بي دې پس هرګزاودې نه باسي تاسو دواړه

مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقٰى ﴿۱۱۷﴾ إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوْعَ فِيْهَا وَلَا تَعْرٰى ﴿۱۱۸﴾

دَجنت نه پس په تکليف به شې،بيشکه تالره دي چې نه به اوږې کيږې پديکښ اونه به بربنډيږې

وَأَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا فِيْهَا وَلَا تَضْحٰى ﴿۱۱۹﴾ فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ الشَّيْطٰنُ

اوبيشکه ته نه به تږې کيږې پديکښ اونه به درله ګرمي کيږي،پس وسوسه واچوله ده ته شيطٰن

قَالَ يٰٓاٰدَمُ هَلْ أَدُلُّكَ عَلٰى شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلٰى ﴿۱۲۰﴾ فَأَكَلَا

(او)اوئيل ئې اې ادم آيااوښايم تاته ونه دَهميش والي اوبادشاهي چې نه به زړيږي. پس اوخوړلودې دواړو

مِنْهَا فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ

دَدغه ونې نه پس ښکاره شول دوئ ته عورتونه دَدوئ اوشروع شول داوړه چې لګولوني په ځان باندې دَپاڼړو دَجنت نه

وَعَصٰىٓ اٰدَمُ رَبَّهٗ فَغَوٰى ﴿۱۲۱﴾

اوخلاف اوکړو ادم عليه السلام دَحکم درب خپل نه نومرادنه اونه رسيدلو.

﴿اسْجُدُوْا﴾ تشريح ددې سجدې په متعددومواضعوکښ تيره شويده﴿فَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ﴾ فاء دَتعقيب دَپاره نودَسجدې دَانکارنه پس الله تعالىٰ حضرت آدم عليه السلام ته دانصيحت اوکړو﴿عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ﴾ هرکله چې عطف په مجرور باندې بغيردَاعادې دَجرنه صحيح نووعندالجمهور نوځکه اعاده دَحرف جاريعنى دَلام اوکړې شوه، اودغه شان پديکښ اشاره وه ديته چې دَشيطان

دشمني دَحواء سره اصالة وه نه تبعا﴿فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا﴾ نسبت دَاخراج شيطان ته او شو تسبيبا ځكه چې اخراج دَجنت نه دادَيو سبب دَوجې نه وي، پخلاف دَدخول فى الجنة نه چې محض په فضل دَالله ﷻ سره دې نو ددې وجه نه په اسكن كښې نسبت تسبيباً چاته ندې شوې ﴿فَتَشْقَىٰ﴾ماخوذ دې دَمشقت نه مراد تنه دَدنيا دَمعاش په سلسلې كښې سترې اوستومانياني دى، (مدارك) اودلته صيغه دَتثنيې رانه وړې شوه بلكه اكتفاء دَواحد په صيغې اوكړې شوه ځكه چې طلب دَمعاش وظيفه دَسړي ده، اودغه شان پدېكښې رعايت دَفواصلو هم راغليدې.﴿إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ﴾پدې ايتونو كښې څلورصفتونه اونعمتونه دَجنت بيانيږي، چې په جنت كښې لوږه نيشته، بربنډيدل نيشته، تنده نيشته، اوګرمي نيشته، اوهركله چې دَجوع (لوږې) تعلق دَذلت باطني سره وواوعريان (بربنډيدلو) تعلق ذلت ظاهري سره وونودَدې وجه نه دواړه، يوځائ ذكرشو، اودَظمأن (تندې) تعلق دګرمئ باطني سره وو اودَضحى تعلق دَګرمئ ظاهري سره وونودَدې وجه نه دادواړه په يوځائ ذكرشولو، اوداپه صورت دَنفي كښې ذكرشو، دَپاره دَاثبات دَاضدادو دَوئ په طريقې اوكدې سرى چې شبع (موړوالى) رئ (سيراب والى) ، كسوة (پټ والى) اوكن (حفاظت دګرمئ نه دې) اودغه شان پدېكښې اشاره ده چې جنت كښې دَلوږې، تندې وغيره تصوربه نوې، اوخوراك، څكاك وغيره به صرف دَخوند اولذت دَپاره وې اوداپه حقيقت كښې تفسيردَتشقى دې چې په جنت كښې تاته داځيزونه بلاتعب اومشقت ميلاويږي اوپه دنياكښې به بيادَدې پاره محنت اومشقت كوي.

**فائده**: جنت كښې چې څرنګه ګرمي نيشته دې نودغه شان يخنې هم نيشته دې ليكن تكليف دګرمئ ډيرزيات دې په نسبت سره يخنئ ته، اوګرمى په خليجي اوعربو ممالكو كښې ډيرزياته ده اوهغوئ به دګرمئ نه ډيرتنګيدلودَدې وجه نه اكتفاء په نفي دګرمئ سره اوشوه.﴿فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ﴾پدې آيت كښې ذكردَوسوسې دې، چې شيطان حضرت آدم عليه السلام ته وسوسه واچوله، اوشيطان په ډيرتاكيدسره دوئ ته قسم اوخوړلوچې داونه چې تاسوتنه منع كړې شوى يئ شجرة الخلد، ده يعنى دَدې دَخوړو دَوجې نه به په تاسوباندى فناء نه راځي يعنى دَمرګ نه به بچ شئ، اودويم پدې سره داسې بادشاهي اونعمتونه حاصليږې چې هغه به هميشنه وي اوڅه قسم كمي اونقصان به پكښې نه راځي، اوباقى داخبره چې شيطان وسوسه څرنګه آدم عليه السلام ته واچوله،

اوآدم عليه السلام دَده په خبره خبرنګه، يقين اوکړو داتول مباحث په سورة البقره اوپه سورة الاعراف کښې تفصيلا تيرشويدی(من شاء فليطالع ثمه)

**فائده**: شجرة الخلدپه جنت کښې يوه ونه شته دې،چې دهغې په باره کښې په حديث دَابوهريرة رضي الله عنه کښې داسې راغليدی،قال رسول الله ﷺ انّ فی الجنة شجرةً يسيرالرّاکب فی ظلّها مائة عام مايقطعها وهی شجرة الخلد.ترجمه: حضرت ابوهريرة رضي الله عنه دَنبی ﷺ نه روايت نقل کړيدې چې نبی عليه السلام ارشاداوفرمائيلو چې بيشکه په جنت کښې يوه ونه ده چې يوسوارسړی دَهغې په سوري کښې سل کاله سفراوکړي خوبيابه هم دهغې سوري ترسره نه کړي اوداشجرة الخلد ده دا روايت ابن کثير رحمه الله په حواله دَابوداود طيالسی اوپه روايت دَامام احمد رحمه الله سره نقل کړيدې، ليکن شيطان لعين شجرة الخلد هغې ونې ته اوئيل په دروغوسره چې دکومې ونې نه حضرت آدم عليه السلام منع کړې شوې وو. ﴿فَأَكَلَا مِنْهَا﴾حضرت آدم عليه السلام اوحوابی بی عليها السلام دشجرممنوعې نه خوراك اوکړو اوپه سورة اعراف کښې ذاقا ذکرشويدې دَهغې نه مرادهم خوراك دې خوقليل لږ غوندې خوراك ئې اوکړو. ﴿فَبَدَتْ لَهُمَا﴾دَجمهورو په نيزداپه ظاهرباندی محمول دې چې حقيقةً کيږي ورنه لږې شولې اوعورتونه ئې ظاهرشول،په دليل دَدې ورستوالفاظوسره چې، ﴿وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ﴾يعنی پيوست کولې ئې اوګنډلې يې پاترلې دَيوبل سره،اوتثنيه په مقابل دَتثنيې کښې تقاضاکوي دَتقسيم احد علی الاحدباندی،يعنی هريوته خپل خپل عورت ښکاره شواوهريوخپل عورت پټولوکوشش کولو،اودَيوبل عورت دَليدلوڅه دليل نيشته دې، اوضميردَ ﴿عَلَيْهِمَا﴾ ياراجع دې آدم عليه السلام اوحوا عليها السلام ته اومضاف مقدردې يعني علیٰ سواٰتهما، اوياضميرراجع دې﴿سَوْءَاتُهُمَا﴾ ته نوحاجت نيشته دې، بياتقديردَمضاف ته، اوهرکله چې شرم اوحجاب دَانسان دپاره فطري اوطبعي امردې اوبې حجابي طبعًا اوعقلًا مستهجنه اوقبيح عمل دې، نودَدې وجه نه حضرت آدم عليه السلام اوحوآ عليها السلام خپل عورتونوپټولوکوشش کولو. ﴿وَعَصَىٰٓ ءَادَمُ رَبَّهُۥ فَغَوَىٰ ﴾ عصيان وئيلی کيږي مخالفت دَامرته برابره خبرده چې حقيقة وي لکه عمداً مخالفت کول اوياصرف صورتاًوي لکه نسياناًشو، نوګوياچې دَعصيان دَپاره دوه(۲)افراد دي يوفردحقيقي اوبل فردصوري، نوګناه دانسته طورباندی قصدا اوارادة خلاف امرکارته وئيلی کيږي.

اودحضرت آدم عليه السلام شجرممنوعه خوړل نسياناً وو، نوپدي باندې دعصيان اطلاق صورتاًدی.
نودحضرت ادم عليه السلام داعمل گناه ندې اوياد حضرت آدم عليه السلام داعمل مبني وو په اجتهادي خطاء باندی، ځکه چې شيطان دوئ ته قسمونه خوړل اوتاويل ئې ورته اوکړو چې تاسودغې يوې مشهوري ونې دخوراك نه منع کړې شوي ي، اوحضرت آدم عليه السلام هم دقسم د وجې نه اوددېنه مخکښې ددروغونه اوريدلو دوجې نه د ده په خبري باندې يقين اوکړو اودهغې ونې، نه ئې خوراك اوکړو پدې اجتهاد خپل سره چې ځه دېوې مخصوصې ونې نه منع کړې شوې يم، نوپه خطاء في الاجتهاد باندې هم اطلاق دعصيان صرف اوصرف صورتادې، نه حقيقة، اودغه شان علمآء فرمائي چې عصيان کلي مشکك دې چې افراد ئې متفاوت دي، نودانبياء کرام اودمقربينوپه حق کښې دعصيان اطلاق دهغوئ دشان سره غيرمناسب يعني ترك داحسن اواتيان په حسن باندې کيږي،نودلته هم حضرت آدم عليه السلام ترك داحسن(چې عزيمت وو)کړې وونوځکه پرې اطلاق دعصيان اوشوپه قانون دحسنات الابرارسيئات المقربين،باندې، ليکن په ټولوکښې غوره توجيه دحضرت علامه شبيراحمدعثماني رحمه الله ده چې هغه فرمائي چې ممانعت داکل نه دانهي تشريعي نو ه بلکه نهي تشفيقي وه ځکه چې جنت دارتکليف ندې نوګناه اومعصيت حقيقة مخالفت دامرتشريعي ته وئيلی کيږي، اودامرتشفيقي مخالفت ته گناه نه وئيلی کيږي نوددي مطلب هم دادې چې اطلاق دمعصيت په فعل دآدم عليه السلام باندې صرف صورتادې اوداصرف اشتراك لفظي دې، اوحقيقت ددواړو جداجدادې(تفصيل ددي په سورة البقره اواعراف کښې تيرشويدې)
﴿فَغَوَىٰ﴾ دغويت نه دي په معنیٰ دمحروم کيدلوسره دمقصدنه،يعنې حضرت آدم عليه السلام چې دکوم مقصد دپاره خوراك اوکړو نوهغه مقصدئې پوره نشو،بلکه دابليس دوسوسې په وجه دجنت نه هم رااوتلو،نوددي توجيهاتونه معلومه شوه چې پدي ايت چې پدي ايت سره استدلال کوم په صدوردګناه باندې دانبياء کرامونه، باطل دې.

**فائده**: ابن العربي په احکام القرآن کښې ددي ايت په ضمن کښې ليکلي دي، لايجوز لاحد منا ان يخبربذلك عن ادم الااذا ذكرناه في اثناء قول الله عنه اوقول نبيه واما ان نبتدئ في ذلك من قبل انفسنا فليس بجائز الخ (احكام القرآن لابن العربي ص۲۱۵ ج۳) يعنې هيڅ چادپاره داجائزندی چې داجمله ﴿وَعَصَىٰٓ ءَادَمُ رَبَّهُۥ فَغَوَىٰ﴾ دحضرت آدم عليه السلام په باره کښې په طريقه داخبارمستقله سره استعمال

کړی مګرپه هغه صورت کښې ئې ذکرکولی شي چې تلاوت کوي اودتلاوت په دوران کښې داجمله راشي، اوياحديث نقل کوي اوداجمله راشي، اوخپل طرف نه پدي باندې ابتداء کول جائزندی.

امام قرطبي رحمه الله دَدي په تنويرکښې ليکلي دی قلت واذا کان هذا فی المخلوق لايجوزفالاخبار عن صفات الله عزوجل کاليدوالرجل والاصبع والجنب والنزول الی غيرذلك اولی بالمنع وانه لايجوزالابتداء بشيء من ذلك الافی اثناء قراءة کتابه اوسنة رسوله الخ يعنی هرکله چې دَانبياء کرامو عليهم السلام دَعالي ربتې دَوجې نه ددوئ په باره کښې دامذکوره جمله وئيل جائزندی باوجود دَدي چې انبياء کرام اوعام مخلوقات په مخلوق کيدلوکښې برابردی نودَالله ﷻ هغه صفات چې دَقبيلې دَمتشابهاتونه. دی لکه لاس،خپه، ګوته، سنګ،اوکوزيدل وغيره داپه طريقه دَاخبارمستقله سره ذکرکول بطريق اولی ناجائزدي، اوپديکښې په يوباندې هم ابتداء کول ناجائزدي مګرپه هغه صورت کښې ذکر جائزدې چې په دوران دَتلاوت کښې راشي، اوياپه حديث دَرسول الله ﷺ کښې راشي الخ.دغه شان دَحضرت آدم عليه السلام په باره کښې اګرچه داراغليدي چې ﴿وَعَصَىٰ ءَادَمُ رَبَّهُۥ فَغَوَىٰ﴾ ليکن حضرت ادم عليه السلام ته عاصي، ياغاوي، وئيل قطعاجائزندی اووجه دَعدم جواز چې عرف کښې دَعاصي اودَغاوي، اطلاق په هغه چاباندې کيږي چې دَهغه نه عصيان باربارمتحقق شوې وي حقيقةً، نودَادب دَوجې نه آدم عليه السلام باندې اطلاق دَعاصيی اوغاوي، نه کيږي اګرچه لغةً کيدلی شي،(کبير) اويودويمه وجه امام رازی رحمه الله داذکرکړيده چې دَدغې عصيان صورتًاچې دَحضرت ادم عليه السلام نه صادرشوې وو،خوالله ﷻ ورته عفوه مغفرت هم کړې وو، اودَعفوي اومغفرت نه ورستواثردَدَغې عصيان صورتاً برقرارپاتې نشونودَدي وجه نه اطلاق دَاسم فاعل پرې هم جائزندي لکه يوسړی نه کفرصادرشوې وي اوبياتوبه اوباسي نواطلاق دَکافرپرې جائزندي، نودغه شان په حضرت آدم عليه السلام باندې هم اطلاق دَعاصي اوغاوي جائزندې.

ثُمَّ اجْتَبٰهُ رَبُّهٗ فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدٰى ۝ قَالَ اهْبِطَا

بياغوره کړو ده لره رب دَده پس رااوګرځوئې رحمت په ده باندې اوکلك ئې کړو، اووئيل الله ﷻ کوزشئ

مِنْهَا جَمِيْعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِّنِّيْ هُدًى

ددې ځائ (جنت)نه ټول ځنې ستاسودَځنونوردشمنان به وي پس کچرې راشي تاسوته خمادَطرف نه هدايت

| |
|---|
| فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقٰى ﴿١٢٣﴾ وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِيْ |
| نو چاچه تابعداري اوكړه خمادهدايت نونه به بې لاري كيږي اونه به بدبخت كيږي اوچاچې مخ واړولو دياداشت خمانه |
| فَإِنَّ لَهُ مَعِيْشَةً ضَنْكًا وَّنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ أَعْمٰى ﴿١٢٤﴾ قَالَ رَبِّ لِمَ |
| پس بيشكه هغه لره ژوندتنګ دې اوراپورته به كړو مونږ دې په ورځې دقيامت ړوند .اوبه وائي دى اى ربه خما ولې |
| حَشَرْتَنِيْ أَعْمٰى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيْرًا ﴿١٢٥﴾ قَالَ كَذٰلِكَ أَتَتْكَ اٰيٰتُنَا |
| ناخه راپورته كړمه ړوند اوحال داچې ووم خه ليدونكې په دنياكښې. اوبه وائي الله ﷻ دغسې راغلي ووتاته اياتونه زمونږ |
| فَنَسِيْتَهَا ۚ وَكَذٰلِكَ الْيَوْمَ تُنْسٰى ﴿١٢٦﴾ وَكَذٰلِكَ نَجْزِيْ مَنْ أَسْرَفَ |
| نوهيركړوتاهغه اوهمدارنګې نن ورځ ته هيركړې شوي،اودغسې سزاوركوو مونږ هغه چاته چې دحدنه تيرشويدې |
| وَلَمْ يُؤْمِنْ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ۗ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ أَشَدُّ وَأَبْقٰى ﴿١٢٧﴾ |
| اوايمان ئې ندې راوړى په اياتونودرب خپل اوعذاب دآخرت ډيرسخت دې اوباقي پاتي كيدونكى دې. |

﴿ثُمَّ اجْتَبٰهُ ﴾يعنى الله ﷻ دشيطان مزيدوسوسونه دحضرت ادم عليه السلام حفاظت اوكړو اوخان ته ئې قريب كړو﴿فَتَابَ عَلَيْهِ ﴾ تاب په معنى دَرجع سره دې، يعنى الله ﷻ په ده باندى رجوع دَرحمت اوكړه اودَده توبه ئې قبوله كړه اى رجع عليه بالرحمة وقبل توبته(روح) اوتوبه دَخواصودَرفع درجاتو دَپاره وي اويامطلب دادې چې كله هم درجه بلنده شي اومرتبه اوچته شي نوماتحت درجه ورته په منزله دګناه ښكاره شي، نودَمزيداجتبائيت اوقربت نه پس ادم عليه السلام ته خپله ماتحت مرتبه په منزله دګناه ښكاره شوه نوځكه ئې توبه اويستله اوالله ﷻ ئې توبه قبوله كړه﴿وَهَدٰى ﴾مراد تنه ثبات اوكلكوالى دې اوبعض فرمائي چې هدايت په معنى لغوي سره دې اومراد تنه راهنمائي اوهدايت دې كيفية دَتوبې ته، اوپدې توجيه سره 'واؤ' دَمطلق جمعي' دپاره دې نوداسوال نه واريديږي چې قبول دَتوبې اول وو ،او طريقه اوكيفية ښودل ورستو وو ،حالانكه امربالعكس دې. ﴿قَالَ اهْبِطَا ﴾قبول دتوبې نه بعدحكم دَهبوط كښې اشاره ده چې داخروج دَجنت نه

په طورداعزازسره دي، اودخلافت دپاره وو،اوپه طوردِ ذلت سره ندي اوخطاب دغورږ قول مطابق حضرت آدم عليه السلام اوابليس ته دي اوحواء تابع وه دادم عليه السلام اوابليس په اول حكم سره لكه چې په سورة اعراف،اوسورة الحجركښ دي، دجنت نه اسمانونوته راخارج كړي شوي وو اوپه دويم خلي په دي حكم سره زمكي ته راكوزكړي شو دآدم عليه السلام سره، اوهركله چې دوئ دواړه مشتمل وو په خپل ذات كښ په ډيروافرادو باندى نوخكه دتاكيددپاره جميعا اوئيلى شو﴿فَإِمَّا يَأۡتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى﴾ مراد تنه رسولان، او كتابونه دي ﴿فَمَنِ ٱتَّبَعَ هُدَايَ﴾دابشارت دي﴿فَلَا يَضِلُّ﴾مرادتنه په دنياكښ گمراه كيدل دي﴿وَلَا يَشۡقَىٰ﴾مراد تنه په آخرت كښ نامراده كيدل دي. حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه مروي دي چې چاقرآن اولوستلو اودهغې داحكاماتو تابعداري ئې اوكړه نوالله تعالى به دې په دنياكښ دګمراهئ نه اوپه آخرت كښ دبدبختئ نه بچ كړي(طبرى، ابوحاتم رازى).﴿وَمَنۡ أَعۡرَضَ عَن ذِكۡرِي﴾ داتخويف دي اومراد په ذكرسره دين اوقرآن دې (قرطبى).﴿مَعِيشَةً ضَنكًا﴾ضنك مصدردې حمل ئې په﴿مَعِيشَةً﴾باندى مبالغة دې، اوونيلى كيږي تنګوالي ته،اومراد تنه يادَدنيا دژوندتنګوالى دې لكه چې دَ ده نه به قناعت واخستلى شي، حرص اولالچ به ئې زيات كړي شي هيڅ قسم ارام اودزړه سكون به ورته نه وي حاصل،ظاهري نعمتونه به ورسره وي، دخوراك سكاك سامان به ورسره ډيروي،اواسباب دتعيش به ورته فراهم وي خواطمينان اوسكون ورته نوي حاصل هروخت كښ به دمال فكروړى وي، لكه دامشاهده ده دبى دينه دنياداروخلكو، چې دهرقسم مالي فرواني باوجود ډيريشن(بى اطمينانئ) په مرض كښ مبتلادي،دخوب راوستلو دپاره مختلف قسم دوايانى استعماله وي(اعاذناالله منها آمين).اوياتنه مراد قبرتنګوالى دې لكه روايت دې دحضرت ابوسعيدالخدرى رضي الله عنه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اودحضرت ابوهريرة رضي الله عنه نه چې يضيق على الكافر قبره حتى تختلف فيه اضلاعه وهوالمعيشة الضنك چې په كافرباندى به قبرتنګ كړي شي تردي چې دده پوختئ به په يوبل كښ ننوځي اودامراد دې په معيشة الضنك، سره(قرطبى،ابن كثير) اودآخرت ژوندتنه هم مراد كيدې شي لكه دامروي دې دسعيدابن زيد رضي الله عنه نه چې دمعيشة الضنك نه مراد دجهنم والازقوم، غسلين اوضريع دي.

﴿وَنَحْشُرُهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ أَعْمَىٰ ﴾غوره قول دادي چې مراد دَاعمی نه حقیقة اعمی یعنی په سترګوباندی ړوندمراددي. اوداړوند والی به بالکل په ابتداء کښ وي اوورستوبه ورته بیاسترګي ورکړې شي، اوبعض فرمانی چې اعمی نه مراد دَدلیل نه ړندیدل دی اودَبصیر نه مراد خاوند دَدلیل دې، یعنی دَقیامت په ورخ بیاهیڅ دلیل به نشي پیش کولی هردلیل به ورنه وروك شي، نودي به دډیر تاسف نه به دا اوائی چې﴿رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِيٓ أَعْمَىٰ وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا ﴾حماد). ﴿قَالَ كَذَٰلِكَ ﴾دا جواب دي دَجانبه دَالله ﷻ اوپدیکښ ذکردَسبب دَدغي عذاب دې یعنی څرنګي چې تاته زمونږه ایتونه راغلي وو، اوتادهغې پرواه نوه کړې اودهغې نه دخان ړوندکړې وو نودغه شان دَدَغي جرم په سزاکښ نن ستاحشرړوندوالی حالت کښ اوکړې شو، اومراد دَنسیان نه پدې ځائ کښ پریخودل دی﴿وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى مَنْ ﴾پدې ایت کښ تعمیم دَعذاب ذکردې چې هرڅوك دَالله ﷻ دَحدودُنه، تجاوز اوکړی اوخپلوخواهشاتو پسي روان شي اودَالله ﷻ آیاتونوباندی ایمان نه راوړي نوهغه ته به داسي سزامیلاویږي، نوکاف په﴿وَكَذَٰلِكَ ﴾کښ دَپاره تشبیه دې اوداتشبیه دَجزاء عام ده دَجزا خاص سره، اومراد په من﴿أَسْرَفَ ﴾سره انهماك دې په خواهشاتوکښ﴿وَلَعَذَابُ ٱلْـَٔاخِرَةِ ﴾یعنی دآخرت عذاب دَدنیا اودَقبرعذاب په نسبت ډیرسخت اوهمیشه باقی دې ځکه چې دَدنیااوقبرعذاب منقطع کیږي اودَاخرت عذاب لره انقطاع نیشته دې.

| أَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ ٱلْقُرُونِ يَمْشُونَ |
|---|
| آیانو نده ښکاره شوي دوئ ته چې څومره هلاك کړیدي مونږه مخکښي ددوئ نه ډیریونه چې ګرځي دوئ |
| فِى مَسَـٰكِنِهِمْ ۗ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَـَٔايَـٰتٍ لِّأُو۟لِى ٱلنُّهَىٰ ﴿١٢٨﴾ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ |
| په کورونودهغوئ کښ بیشکه پدې کښ خامخانښې دی دَعقلونوالودَپاره،اوکچرته نوې فیصله چې مخکښ واقع شویده |
| مِن رَّبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا وَأَجَلٌ مُّسَمًّى ﴿١٢٩﴾ فَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ |
| ستادرب دَطرف نه نوخامخابه ووعذاب لازم اوکه نوې نیټه مقرره پس صبرکوه په هغې باندی چې دوئ ئې وائی |

| وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا ۚ وَمِنْ اٰنَآئِ الَّيْلِ |
|---|
| اوتسبيح وايه سره دَحمددَرب خپل نه مخکښې دَختلودنمرنه اومخکښې دَډوبيدلودنمرنه .اوپه څه وختونودَشپې کښ |
| فَسَبِّحْ وَاَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرْضٰى ﴿۱۳۰﴾ وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ |
| پس تسبيح اوايه اوپه طرفونودَورځې کښې دَدې دپاره چې ته خوشحاله شې.اومه اوږده وه سترګې خپلې |
| اِلٰى مَا مَتَّعْنَا بِهٖٓ اَزْوَاجًا مِّنْهُمْ زَهْرَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا |
| هغې سامان دَدنياته چې ورکړيدې مونږه مالدارانوته ددوئ نه دپاره دَدول دژونددَدنيا. |
| لِنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ ۭ وَرِزْقُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ﴿۱۳۱﴾ |
| دَپاره دَدې چې ازميښت اوکړو مونږ دَدوئ په هغې کښې اوروزی دَرب ستادَيره غوره ده اوهميشه ده. |

﴿أَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ﴾ په دې کښې تخويف اخروی ذکرکيږي سره دزجرنه،او استفهام دَپاره دَتوبيخ دې اودَ هدايت نه مراد تبيين اووضاحت دې اوفاعل دَ﴿يَهْدِ﴾ دپاره الله ﷻ دې اودَدې تائيدپه قراءت دَنون سره هم کيږي اوبعض فرمائي چې هدايت په خپلې معنىٰ سره دې اوفاعل ئې محذوف دې چې "اعتبار"آراء" او"عقل" دې اومراد دَهدايت نه دَعقل والاهدايت دې چې دوئ دَخپل عقل نه دومره کارنه اخلي چې سوچ اوفکراوکړي مخښکښې قومونه په سبب سره هلاك شوي وو، اوبعض فرمائي چې فاعل دَ﴿يَهْدِ﴾ دَپاره مفهوم دَدې جملې دې اوجمله دَهغې تفسيردې، تقدير دَعبارت داسې دې،الم تبين له هلاك من اهلكنامن القرون،ومحواثارهم فيتعظوا بذلك(بحر) يعنى دَمخکښې قومونوهلاکت دوئ ته دومره هدايت هم اونه کړو اودَهغوئ اثارمحوکيدلونه هم دومره وعظ اونصيحت قبول نه کړو.﴿يَمْشُونَ فِي مَسٰكِنِهِمْ﴾ مراد تنه دَقوم لوط،قوم ثمود اواصحاب الحجروغيره علاقې اوديارد دي چې اهل مکه به دامشاهده کوله چې کله به تجارت وغيره دَپاره شام ته تللو﴿وَلَوْلَا كَلِمَةٌ﴾ په دې کښې فوري عذاب نه نازليدلوحکمت بيانيږي، اومراد په ﴿كَلِمَةٌ سَبَقَتْ﴾ سره تاخيردَعذاب استيصالي دې، او﴿وَأَجَلٌ مُّسَمًّى﴾ په رفعې سره عطف دې په كلمة

باندې اومرادتنه اجل حيات يعنې عمرونه دَدوئ دي اوياتنه آجال اهلاك يعنې يوه مخصوصه نيټه دهلاکت ددوئ ده چې معلومه ده فقط الله ﷻ ته اوياتنه دقيامت عذاب مراددې نودايت مقصددادې کچرته الله ﷻ دَدي امت دمکذبينونه دعذاب استيصالي دتاخيرفيصله نوې فرمائيلې اودَدوئ عمرونه، يادعذاب وخت په علم دالله ﷻ کښې مقررنوې نوفوراً به دوئ هلاک کړې شوي وو، او﴿لِزَامًا﴾په اصل کښې مصدردې اګرچه دلته په معنی داسم فاعل لازماسره دې ﴿فَٱصۡبِرۡ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ ﴾داپنځم ايت دتشجيع دې اوپديکښې تشجيع ده په پنځه امورو سره اوداامراول دې،اوفاء په ﴿فَٱصۡبِرۡ ﴾کښې جزائيه ده اوداجمله جزاء واقع شويده دشرط مقدردپاره نوتقديردعبارت دارنګه دې، اى اذاكان الامرعلى ماذكرمن ان تاخيرعذابهم ليس باهمال بل امهال وانه لازم لهم البتة فاصبر الخ(روح) اومرادپه صبرسره ترک قتال ندې حتی چې احتياج راشي بيانسخ دايت ته لکه داقول کړيدې بعض مفسرينو، بلکه مرادتنه عدم اضطراب دې يعني پريشانه کيږه مه، اومراد په﴿مَا يَقُولُونَ ﴾سره الفاظ اوکلمات کفريه دَدوئ دي لکه نبي ﷺ ته ساحر، کاذب، کاهن وغيره ويل، ﴿وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ ﴾داامرثاني دې اومرادپدې سره داکثرمفسرينوپه نيز، مونځ مراددې، په قرينې دَدي ورستوکلام سره چې﴿قَبۡلَ طُلُوعِ ٱلشَّمۡسِ ﴾ چې پديکښې اشاره ده پنځه اوقاتودمونونځوته، په﴿قَبۡلَ طُلُوعِ ٱلشَّمۡسِ ﴾کښې اشاره ده دسحرمونځ ته ځکه دسحرمونځ وخت دطلوع دنمرنه مخکې دې اوپه﴿وَقَبۡلَ غُرُوبِهَا ﴾کښې اشاره ده مازيګرمونځ ته، ځکه چې دغروب نه لږ وړاندې دادمازيګروخت دې، اومِنۡ په ﴿وَمِنۡ ءَانَآيِٕ ٱلَّيۡلِ ﴾ کښې په معنی دَ ،فِی سره دې اوپديکښې اشاره ده مونځونو دماښام اوماسخوتن ته، ځکه چې دادواړه مونځونه دشپې په وخت کښې دی داقول داکثرو مفسرينودې اوقرطبي رحمه الله وغيره فرمائې چې دَ ﴿ءَانَآيِٕ ٱلَّيۡلِ ﴾نه مراد صرف مونځ دماسخوتن دې، اوپه﴿وَأَطۡرَافَ ٱلنَّهَارِ ﴾سره مراد مونځ دَ ماسپښين دې بالاتفاق دې، ځکه چې وخت دماسپښين هم په اطرافودورځې کښې دې چې داوخت په انتهاء دنصف اول اوپه ابتداء دنصف ثاني کښې دې، نوپدې اعتبارمراد داطراف يعنې جمعې نه مافوق الواحد،

دادوه(۲)اطرافه مراددی. قرطبي رحمه الله وغیره فرمائي چې اطراف نه مراد دوه(۲)اطرافه حقیقة دي،چې یوطرف انتهاء دنصف اول دې چې داوخت دماسپخین دې. اوبل طرف انتهاء دنصف ثاني دې چې هغه دمابنام دې، اوداتوجیه زیاته انسبه اوالیقه ده دنظم دکلام سره. اودیته ترجیح ورکړیده حضرت الشیخ رحمه الله. ﴿لَعَلَّكَ تَرْضٰى﴾ دامتعلق دې په سبح پورې. یعنی پدې اوقاتوکښې مونځونه اوعبادتونه کوه پدې امیدچې الله تعالیٰ به تاته پدې باندې داسې بدلې درکړي چې ته به پرې خوشحاله شې. ﴿وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ﴾داامرثالث دې،اوپدیکښې تزهیدفی الدنیاذکرکیږي چې ددې کفارودمال وغیرنه مه متأثره کیږه،بلکه بنه په شجاعت اودلیرئ سره دتوحیددعوت ورکوه اوددوئ دامال،دولت اوشان وشوکت دیوڅوورځوازمائش اوامتحان دې اواصل انعام دآخرت دې او﴿وَلَا تَمُدَّنَّ﴾ کنایه ده نفي دمیلان نه دنیاته اودعدم تاسف نه په نه میلاؤیدلو دمال اودولت باندې. ﴿أَزْوَاجًا﴾ من په ﴿مِنْهُمْ﴾کښې بیاني دې ﴿أَزْوَاجًا﴾ مفعول د﴿مَتَّعْنَا﴾ دې،اومرادتنه رئیسان دکافرانودې،اودوئ ته ازواج پدې اعتبارسره وئیلی شویدي چې دوئ مشابه دي دیوبل سره په دنیاپرستئ کښې،یاورته پدې اعتبارسره ازواج وئیلی شویدي چې ددوئ عقائددیوبل سره مشابه دي یعني مشرکین،یهود،نصاریٰ وغیره.﴿زَهْرَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ زهرة په معنیٰ د زینت اوخائست سره دي،اودامنصوب دي بناء پدې چې دامفعول به دې دفعل مقدردپاره چې جعلنا دي اوپدې باندې دلالت کړیدې ﴿مَتَّعْنَا﴾اویادابدل دي د﴿أَزْوَاجًا﴾نه په تقدیرد ذوي یا اهل سره،نودتقدیردعبارت داسې دي﴿إِلٰى مَا مَتَّعْنَا بِهٖ﴾دوی د ﴿زَهْرَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا لِنَفْتِنَهُمْ﴾دامتعلق دي په﴿مَتَّعْنَا﴾پورې﴿وَرِزْقُ رَبِّكَ﴾ مرادتنه یاجنت دي یعني رزق اخروي،اویاتنه مراددې دنیاحلال رزقونه اوغنیمتونه دي اوبعض فرمائي چې مرادتنه رزق روحاني نبوت اوهدایت دي.

| وَأْمُرْ | اَهْلَكَ | بِالصَّلٰوةِ | وَاصْطَبِرْ | عَلَيْهَا | لَا | نَسْـَٔلُكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوامرکوه | خپل تابعدارونه | دمونځ کولو | اوخپله ځان ټینګ ساته په هغې باندې | | مونږ | نه پوښتنه کوو ستانه |

| |
|---|
| رِزْقًا نَحْنُ نَرْزُقُكَ ۭ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى ﴿۱۳۲﴾ وَقَالُوْا |
| په باري دروزئ پيداكولو كښ، مونږ دركوو تاله روزي اوخاتمه انجام دتقوى والودي. [1] اودوئ وائي |
| لَوْلَا يَاْتِيْنَا بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ ۭ اَوَلَمْ تَاْتِهِمْ بَيِّنَةُ مَا فِي الصُّحُفِ الْاُوْلٰى ﴿۱۳۳﴾ |
| ولي نه راوړي دې مونږته نښه دطرفه رب خپل نه [2] آياندي راغلي دوئ ته صفابيان(قرآن) دهغه چې په صحيفومخكنو كښ وو |
| وَلَوْ اَنَّآ اَهْلَكْنٰهُمْ بِعَذَابٍ مِّنْ قَبْلِهٖ لَقَالُوْا رَبَّنَا |
| اوكچرته مونږهلاك كړي وى داخلك په عذاب سره مخكښ ددينه(دقرآن نه) خامخا به دوئ وئيلي وو اى ربه زمونږ |
| لَوْلَآ اَرْسَلْتَ اِلَيْنَا رَسُوْلًا فَنَتَّبِعَ اٰيٰتِكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ نَّذِلَّ وَنَخْزٰى ﴿۱۳۴﴾ |
| ولي تانه رالېږلومونږته رسول چې مونږ تابعداري كړې وي ستا داياتونو مخكښ دذليل كيدلواورسوا كيدلونه |
| قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوْا ۚ فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ اَصْحٰبُ الصِّرَاطِ السَّوِيِّ |
| ته اوايه هريوانتظاركوونكى دې نوتاسوهم انتظاركوئ زرده چې تاسوبه خبرشئ چې څوك دې خاوندان دلارې برابر |
| وَمَنِ اهْتَدٰى ﴿۱۳۵﴾ |
| اوڅوك دي هدايت والا. |

﴿وَأْمُرْ أَهْلَكَ ﴾ داخلورم امردي اوداامرمصلح ذكردي چې ددنياپرستئ اوددنياپرستونه دنه متاثره كيدلوعلاج دادي چې خپل اهل ته دمونځ حكم كوه اوپه خپله پرې هم استقامت كوه،دحضرت عروة بن زبير په باري كښ ذكرشويدي چې كله به ئې دپادشاهانوخبري اودهغوئ حالات واوريدلونو فوراً به كورته لاړلواودا ايت﴿وَلَا تَمُدَّنَّ ﴾به ئې تلاوت كړو اوبيابه ئې دمانځه دپاره حكم اوكړو اواوبه ئې فرمائيلوچې، الصّلوة يرحمكم الله،اومرادپه اهل سره پدي

[1] شكوى.
[2] جواب شكوى.

ایت کښې اهل بیت نبیﷺ خصوصا اوپوره امت عموماً مراددي. اوپه روایت کښې راځي چې نبیﷺ به دَدې ایت دَنزول بعد دَحضرت عليؓ اوفاطمهؓ کورته به هرسحرتللو اوهغوئ ته به ئې اوازکولو چې الصلوة. ﴿وَٱصۡطَبِرۡ عَلَيۡهَا ﴾داپنځم امردې اوغوره قول دادې چې هاضمیرراجع دې صلوٰة ته یعنی پخپله هم دَمانځه حفاظت اوپدې باندې مداومت کوه﴿لَا نَسۡـَٔلُكَ رِزۡقًا ﴾ مقصددادې چې مونږه ته دَ رزق پیداکولوخامخاذمه دارنه ئې ګرځولی چې دهغې دَپیداکولو دَوجې نه مونږ په شان اهم عبادت پریخودلی شي،بلکه اللهﷻ دصحیح مونځ په برکت سره دَانسان رزق معامله هم حل کوي لکه چې اللهﷻ فرمائی ومن یتق الله یجعل له مخرجا وَ یرزقه من حیثُ لایحتسب(سورة الطلاق ایت نمبر۲، ۳)اودَدې ایت مقصداندې چې کسب معاش پکارندې،بلکه دَایت مطلب دادې کچرته دکسب معاش اوفرض مونځ کښې تعارض راشي نودکسب معاش دَپاره مونځ پریخودل جائزندي، بلکه مونځ اول کول پکاردی اوکسب دَمعاش ورستوپکاردې، دَاللهﷻ په عبادت کښې مشغولیت دَوجې نه دَمعاش مسئله آسانه کوي. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دې فرمائی چې: رسول اللهﷺ ارشاداوفرمائیلوچې اللهﷻ فرمائی: یاابن ادم تفرغ لعبادتی املاء صدرك غنیً وَاَسدُّ فقرك وان لم تفعل ملاءت صدرك شغلاً ولم اسدفقرك.ترجمه: ای ابن ادم! ته ځمادَعبادت دَپاره خپل ځان فارغ کړه نوځه به ستاسینه دَغنااواستغناء نه ډکه کړم اوستافقرغربت(محتاجي)بهٔ ختمه کړم، اوکچرته تاداسي اونکړل نوځه به ستاسینه دَفکرونو اوشغلونونه به ډکه کړمه اوستافقر(محتاجي) به ختمه نه کړم(ترمذی). ﴿وَٱلۡعَٰقِبَةُ لِلتَّقۡوَىٰ ﴾عبارت په حذف دَمضاف سره دې یعنی اهل التقویٰ اوپدې کښې اشاره ده چې تقویٰ اصل دَامورشرعیوده.﴿وَقَالُواْ لَوۡلَا يَأۡتِينَا ﴾داشکوه ده دَمشرکینونه، دَمشرکینوعادت داوو چې دَنبيعليه السلام نه به ئې عناداً اوتعنتاً دامطالبې به ئې کولې چې ته دَ خپلې دعوې دَنبوت دَتصدیق دَپاره دَمخکینوانبیاء کراموعليهم السلام پشان معجزه پیش کړه لکه عصادَموسیٰعليه السلام یاناقه دَثمودعليه السلام وغیره شو.﴿أَوَلَمۡ تَأۡتِهِم بَيِّنَةُ ﴾داجواب شکوی ده، یعنی ددې خلکودامطالبه صرف اوصرف په ضداوعناد باندې مبني ده آیادوئ دې قرآن ته نه ګوري چې دا دَاللهﷻ دَطرف نه یوه عظیمه معجزه ده تیرشوو ټولوکتابونو دَمضامینو محافظ اودَهغوئ

دَصداقت دَپاره حجت دي نودا په ټولو معجزاتو کښې کامله معجزه ده لکه سورة العنکبوت کښې دی، اولم يكفهم انّا انزلناعليكَ الكتٰب عليهم الخ(العنکبوت: ٥١). ﴿وَلَوْ أَنَّآ أَهْلَكْنَٰهُم﴾ دااستيناف دي دَتقريردَماقبل دپاره يعني دوئ اګرچه اوس داقرآن نه مني اودَ نورو معجزاتو مطالبه کوي، کچرته الله ﷻ داقرآن نوی نازل کړې اوددوئ دَفرمائش مطابق معجزه ئې نازله کړې وی نوبيابه هم دوئ نه منله نو الله ﷻ به دوئ هلاك کولواوعذاب به ئې ورته ورکولوپه دنيااواخرت کښې نودوئ به بياپه هغه وخت کښې عذرداپيش کولوچې ای الله ﷻ تاپه خپل رسول باندی کتاب ولي نوونازل کړې چې مونږه ئې اتباع کړې وی، نودَ دوئ دَدغې بهانې اوعذرختمولودَپاره الله ﷻ کتاب نازل کړو. ﴿لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا﴾ دلته ورسره مع آيات يامع کتاب مقدردي، ﴿مِن قَبْلِ أَن نَّذِلَّ﴾ ذلت نه مراد په دنياکښې عذاب دي او ﴿وَنَخْزَىٰ﴾ نه مراد دخول دې جهنم ته، يعني اخروي عذاب ته مراددي ﴿قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ﴾ داپه اخيرکښې تخويف دنيوي دي، چې دي متمردينواوضديانوته اوايه چې دادومره عظيمه معجزه هم تاسونه منئ اوضداوسرکشي کوئ اودَنورو معجزاتومطالبه کوئ نواوس دَعذاب انتظارکوئ اومونږه هم ستاسودَانجام انتظارکوو. ﴿فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ أَصْحَٰبُ﴾ استفهام دَشك اوتردد په بنياد ندي بلکه کافرانو باندی تهديد اوزجر دَپاره دي، يعنی داپته به زراولګي چې په صحيح لاري باندی څوك وو اومنزل ته رسيدونکي څوك دی، او دَدينه معلومه شوه چې عمل کول په قرآن ذريعه دَهدايت اودَسعادت ده اوپيدي سره انسان دَالله ﷻ خشيت حاصلوي اودنيوي اخروي عذاب نه بچ کيږي، لکه چې دَدي سورت په ابتداء کښې ذکرشويدی.

تم تفسير سورة طٰهٰ بتوفيق الله وعونهٖ، والحمدلله اولا وآخرا، اللهم اغفرلنا ذنوبنا واسرافنا فی امرناوثبت اقدامنا كماثبتّ سيدناموسٰی عليه السلام، اللهم اغفرلوالدنا الكريم، اللهم نورقبره وبردمضجعه وطيب ثراه وجعل الجنة مثواه اللهم ربناآتنا فی الدنياحسنة وفی الاخرة حسنة وقناعذاب النار(آمين ثم آمين).

| رکوع | سورة الانبياء مكية | آیتونه |
|---|---|---|
| ٧ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | ١١٢ |
| | خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکي دي شروع کوم | |

**رقمها حسب التسلسل (٢١) وحسب النزول (٧٣)**

**تفسیرسورة الانبياء**: سورة الانبياء مکي سورة دي په ترتيب قرآني کښې يويشتم (٢١) او په ترتيب نزولي کښې دری اويايم (٧٣) نمبرسورت دي، دسورة المؤمنون نه مخکښې اوسورت ابراهيم نه وروستونازل شويدي، زمانه دنزول دورآخيردمکي معظمي دي، يوسل دولس (١١٢) يايوسل يوولس (١١١) آياتونو، اوه (٧) رکوعاتو، (١١٢٠) کلماتو او (۴٠٩٨) حروفوباندي مشتمل دي.

**ربط**: (١) دسورت الانبيآء دماقبل سورت سره ربط اسمي دادي چه په سورت طٰهٰ کښې په واقعي دموسیٰ عليه السلام سره تشجيع اوددين په خاطردتکاليفوبرداشت کولو اوثابت قدمي ذکروو نوپدي سورت کښې دنورو انبياءکرامو حالات او واقعات، خاص طورباندي په واقعي دابراهيم عليه السلام سره تشجيع اوثابت قدمی ذکرکیږی.

دغه شان په سورة طٰهٰ کښې دحضرت موسیٰ عليه السلام دغلبی اودسحردمغلوب کيدلوذکروو نوپدي سورت کښې دهرباطل دمغلوب کيدلو اودختميدلوذکردي چه ﴿بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهُ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ﴾ (ایت نمبر ١٨).

دغه شان په سورة طٰهٰ کښې دفرعونيانو هلاکت اودبني اسرائيلو نجات اودفرعونيانو مال دبني اسرائيلو په وراثت اوملك کښې دراتللو ذکروو نوپدي سورت کښې دهری زمانی دنيکانو خلکو سره دذي وعدي ذکرکیږی چه، ولقد كتبنا في الزبور من بعد الذكر ان الارض يرثها عبادي الصلحون (ایت نمبر ١٠٥). دغه شان دسورة طٰهٰ په اخيرکښې قرب دقيامت ته اشاره وه چه فستعلمون من اصحٰب الخ چه (سيئن) دلالت کوی په قرب باندي، اوددي سورت په ابتداء کښې تصريح ده په قرب دحساب اوقيامت باندي.

**ربط معنوي**: په اعتبار دَمضامينو سره دَسورت الانبياء دَسورت طٰه سره ربط دادې چه په سورة طٰه کښ دَحضرت موسىٰ عليه السلام پيغام توحيد، اودعوت توحيد ذکرو وو پدې سورت کښ على سبيل الترقي دابيانيږي چه ټولو انبياء کرامو ته داوحي شوې وه چه زما توحيد خلکو ته بيان کړئ. اونبي ﷺ ته الله تعالیٰ فرمائي چه اې څماحبيبه ﷺ ته هم خلکو ته کهلم کهلا داخبراوکړه چه ﴿إِنَّمَا يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ ايت نمبر۱۰۸).

**دعوه دَسورت**: دَدې سورت دعوه داده چه عالم الغيب، متصرف اوکارسازصرف اوصرف يو الله تعالیٰ دې عبادت صرف دهغه، کوئی اودادعوه پدی سورت کښ دوه (۲) ځلي ذکرده يوځلي په ابتداء دَسورت کښ په ايت نمبر۴) کښ ذکرده، اودويم ځلي دَسورت په انتهاء کښ ايت نمبر۱۰۹) کښ ذکرده.

**اجمالي خلاصه دَمضامينو**: دَسورت په ابتداء اوانتهاء کښ دعوىٰ دَسورت اوبيا دَهغى دَاثبات دپاره دري (۳) عقلي دلائل، يو (۱) دليل وحي، يو (۱) دليل نقلي اجمالي دَانبياء کرامونه، اولس (۱۰) دلائل نقليه تفصيليه دَانبياء سابقينونه، اودغه شان په ابتداء کښ دَيوڅوسوالاتوجوابونه اوتخويفات اوزجرونه ذکرکيږي.

**تفصيلي خلاصه**: داسورت په دري (۳) حصوباندې تقسيم دې، حصه اول دَايت نمبر (۱) نه ترايت نمبر (۱۵) پورې ده پدی حصه کښ صرف زجرونه اودَسوالونوجوابونه ذکرکيږي، دويمه حصه دَايت نمبر (۱۵) نه ترايت نمبر (۹۱) پورې ده چه پديکښ زيات تره دلائل دی عقليه هم نقليه هم، اودريمه حصه دَايت نمبر (۹۱) نه ترآخره پورې ده، پدی حصی کښ يودليل وحی اوزيات تريکښ بشارات اوتخويفات ذکرکيږي.

**تفصيل دَحصّه اوّل**: ايت نمبر (۱- ۲) کښ زجرونه اوپه ايت نمبر (۳) کښ زجراوورسره دَمنکرينوپه رسالت باندې شبه ذکرکيږي، په ايت نمبر (۴) کښ دعوى دَسورت بيانيږي، په ايت نمبر (۵) کښ دری طعنونودَمنکرينودَطرف نه په قرآن باندې ذکرکيږي، چه قرآن ته به ئی کله اضغاث احلام اوکله به ئی افتراء اوکله به ئی دَشاعرکلام وئيلواودَ ايت په اخيرکښ دَهغوئ يوسوال ذکرکيږي چه کچرته دانبی عليه السلام برحق وی نومخکښنو انبياء کراموپشان معجزه ولی مونږته نه پيش کوی؟ په ايت نمبر (۴) کښ دَدَغی سوال جواب بيانيږي ايت نمبر (۷) کښ دَمنکرينوپه رسالت باندې دَاولی شبهی جواب ذکرکيږي، په ايت نمبر (۸) کښ بيادَيوسوال جواب

دي، په ايت نمبر(۹)كښ تخويف اوپه ايت نمبر(۱۰)كښ ترغيب الى القرآن بيانيږي. اوبيادَايت نمبر(۱)انه ترايت نمبر(۱۵) پورې تخويفات دنيويه بيانيږي.

**تفصيل دَويمې حصې**: دَآيت نمبر(۱۲)نه تر(۱۸)اول دليل عقلي ذكركيږي په دعوى دَسورت باندې،بياپه ايت نمبر(۱۹- ۲۰)كښ دويم دليل عقلي ذكركيږي.په ايت نمبر(۲۱)كښ زجراوپه ايت نمبر(۲۲- ۲۳)كښ نتيجه دَدلائلو مذكوره بيانيږي،په ايت نمبر(۲۴)كښ زجراوبطورمعارضه مشركينونه، خپل شرك باندې دَدليل مطالبه كيږي،اوپه ايت نمبر(۲۵)كښ دليل نقلي اجمالي بيانيږي اوايت نمبر(۲۶)نه تر(۲۸)پورې شكوىٰ بمع جواب شكوىٰ ده اوبياپه ايت نمبر(۲۹)كښ تفريع ده په جواب دَشكوى باندې دآيت نمبر(۳۴- ۳۵)كښ دَمشركينودَسوال جواب اوتسلي ذكركيږي نبي عليه السلام ته، اوپه آيت نمبر(۳۲- ۳۷)كښ زجرذكركيږي، په ايت نمبر(۳۸- ۳۹- ۴۰) كښ شكوىٰ اوجواب شكوى ذكرده سره دَتخويف اخروى نه، په ايت نمبر(۴۱)كښ تسلي ده نبي عليه السلام ته،دآيت نمبر(۴۲) نه تر(۴۵)پورې زجرونه اوپه ايت نمبر(۴۲)كښ تخويف اخروى سره دَزجرنه اوپه آيت نمبر(۴۷)كښ تخويف اخروى ذكركيږي.

اودَايت نمبر(۴۸)نه تر(۹۱)پورې پديكښ لس(۱۰) دلائل نقليه تفصيليه ذكركيږي، په ذكردَولس(۱۷)انبياء كرامو عليهم السلام واقعاتوسره.(۱)قصه دَموسىٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام ايت نمبر(۴۸)،(۲)قصه دَابراهيم عليه السلام (۵۱ تا۷۳)پورې(۳)قصه دَلوط عليه السلام(۷۴ تا۷۵)،(۴)قصه دَنوح عليه السلام(۷۶- ۷۷)،(۵)قصه دَداود عليه السلام اوسليمان عليه السلام (۷۸ تا۸۲)، (۶)قصه دَايوب عليه السلام (۸۳- ۸۴)،(۷)قصه دَاسماعيل عليه السلام ،ادريس عليه السلام اوذاالكفل عليه السلام(۸۵- ۸۶)،(۸)قصه دَيونس عليه السلام(۸۷، ۸۸)، (۹)قصه دزكريا عليه السلام (۸۹- ۹۰)،(۱۰) قصه دمريم عليها السلام اودهغه دَځوى حضرت عيسىٰ عليه السلام ايت نمبر(۹۱).

**دريمې حصې تفصيل**: دَايت نمبر(۹۲)نه تراخرپورې دَسورت دريمه حصه ده په ايت نمبر(۹۲- ۹۳) كښ اعلان كيږي چه اصل مسئله همدغه دَتوحيدمسئله ده اواختلاف پكښ باغيانو اچولې دي، په ايت نمبر(۹۴)كښ بشارت دې او(۹۵)كښ زجراوتخويف دې،دَايت نمبر(۹۶)نه تر(۱۰۰) پورې تخويف ذكركيږي،دَايت نمبر(۱۰۱)نه تر(۱۰۴) پورې بشارت اخروى ذكركيږي. اودَايت نمبر(۱۰۵) نه تر(۱۰۷)پورې دَبشارت دنيوى ذكردې،په ايت نمبر(۱۰۸)كښ په توحيدباندې دليل وحي ذكركيږي.

دَايت نمبر(۱۰۹)نه تر(۱۱۱)پورې اعاده كيږي دَدعوى دَسورت سره دَدليل نه اوپه ايت نمبر(۱۱۲)كښې تخويف اخروي اودَيو سوال جواب ذكر كيږي.

| اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ مُّعْرِضُوْنَ ۝ |
|---|
| نيږدې راغې خلكوته حساب دَهغوئ اودوئ په غفلت كښې دي مخ گرځوونكې دي |
| مَا يَأْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنْ رَّبِّهِمْ مُّحْدَثٍ اِلَّا اسْتَمَعُوْهُ وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ ۝ |
| نه راځي دوئ ته څه نصيحت دَطرفه دَرب دَدوئ نه نوې مگرغوږ كيدې دوئ هغې ته اوحال داچه دوئ لوبې كوي |
| لَاهِيَةً قُلُوْبُهُمْ وَاَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا هَلْ هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ |
| مشغوله دي زړونه دَدوئ اوپټې جرگې اوكړې هغه چاچه ظلم ئې كړيدې، چه ندې دامگربشردې ستاسوپشان |
| اَفَتَأْتُوْنَ السِّحْرَ وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ ۝ |
| آيا قبلوئ تاسو جادو اوحال داچه تاسو پوهيږئ |

﴿اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ﴾دَسورت ابتداء په زجراوشكوى سره كيږي په غفلت اواعراض باندي،او﴿اِقْتَرَبَ﴾يعني مزيدپه معنى دَقرب يعني مجردو سره دې، خوهركله چه په﴿اِقْتَرَبَ﴾ كښې مبالغه وه څكه چه زيادت دَمبنى دلالت كوي په زيادت دَمعنىٰ باندي نوځكه مزيدذكركړې شو،اولام په ﴿لِلنَّاسِ﴾كښې په صلى دَ ﴿اِقْتَرَبَ﴾يعني فعل كښې راغليدې، اودَ ﴿لِلنَّاسِ﴾نه مرادمشركين دي دَقبيلى دَاطلاق دَاسم جنس نه،په بعضوافرادو باندي، څكه چه راتلونكى صفات يعني﴿مُّعْرِضُوْنَ﴾،او﴿مَا يَأْتِيْهِمْ﴾وغيره داصفات دَمشركينودي، نه دَمسلمانانو، او. ﴿حِسَابُهُمْ﴾ نه مخكښې لفظ دَوقت مقدردې څكه چه اقتراب يازماني وي اويامكاني، مكاني دلته ندې متصوراوندې صحيح نولهذا مرادبه تنه وخت اوزمانه دَحساب وي، نوځكه ورسره لفظ دَوقت مقدردې، اودَحساب نه مراد ياورځ دَقيامت ده اوياتنه مرگ مراددې، اوقيامت ته قريب دَدې وجې نه اوئيلي شو چه داراتلونكى دې اوكوم ځيزچه راتلونكي وي نوهغه قريب وي لكه مثل مشهوردې، ماأقرب ماآتٍ وماأبعد مافاتٍ، يوسيكند كوم چه تيرشونوهغه ډيربعيداولرى شو څكه

چه هغه واپس نشي حاصليدې اوکوم وخت چه کرورکاله ورستو راځي نو هغه قريب دې. ځکه چه هغه خامخاراتلونکې اوحاصليدونکې دې، اوياقيامت ته قريب په اعتباردتيرشوي وخت سره وئيلى شويدى ځکه چه دَدنياپاتى زندګي ډيره کمه ده په نسبت سره تيره شوي زندګي ته. ځکه چه داامت اخري امت دې، اوکچرته دَحساب نه مراد مرګ شي اوحساب دَقبرشي چه دَمرګ نه پس هرانسان سره کيږي نوپدى اعتبارسره معنى بالکل واضحه ده ځکه چه انسان ته مرګ ډيرقريب دې، هره ګهنټه اوهرساعت دَمرګ خطره موجوده وى، اونسبت دَاقتراب يعني نزديکت حساب ته کول دپاره دَتفخيم شان اودَوجى دَتهويل دَحساب نه دې يعني الله ﷻ دَدې تعليم ورکوى چه دَدنياپه خواهشاتوکښ داسي مه مشغوله کيږئ چه دَحساب هغه سخته ورځ درنه هيره شي. تاسوته هغه ورځ ډيره نزدې راغله چه تاسوبه دَخپلى ټولي زندګئ حساب وکتاب الله ﷻ ته به ورکوئ.

﴿وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ﴾ مرادتنه بى پرواهى ده، ﴿مَا يَأْتِيهِم مِّن﴾ داهم زجردې په استهزاء باندي دَقرآن سره او(مِنْ) زائده دې دَاستغراق ادَنفى دپاره راغليدې اوپه﴿مِّن رَّبِّهِم﴾ کښ من دَابتدا دَغائى دَپاره دې اومتعلق دې په يأتيهم فعل پورى، اودَ(ذکر) نه مراد قرآن دې، او ﴿مُّحْدَثٍ﴾ په جرسره صفت دَذکر يعني دَقرآن دې، اودَټولواهل سنت والجماعت پدى اتفاق دې چه قرآن حادث اومخلوق ندې بلکه قديم اوغيرمخلوق دې اودلته حادث وئيل په نسبت سره قرآن لفظى ته دې چه مرکب دې دَحروفواواصواتونه اوهغه حادث دې بالاتفاق(اګرچه پديکښ هم بعضوخلکودَقدم قول نسبت کړيدې امام احمدبن حنبل رحمه الله ته) اوکوم چه قديم دې هغه کلام نفسى دې اوياورته حادث په اعتباردَنزول سره وئيلى شويدې چه يوآيت به نازليدلوورستودَبل آيت نه، يوسورت به نازليدلو ورستودَبل سورت نه اوهغه هم الفاظ دَجبرئيل عليه السلام وو، اوياورته ﴿مُّحْدَثٍ﴾ په اعتباردَزعم دکفاروسره وئيلى شويدى چه دَهغوئ زعم داوو چه داقرآن کلام دَالله ﷻ ندې، اودَحضرت حسن بن فضل رحمه الله نه مروى دى چه دَذکر نه مراد دلته نبى عليه السلام دې اومقصودپدى سره دکفاروعادت اوشعاربيانول دى چه کله هم دوئ ته نوې رسول راغلې دې نودهغه خبرى اوريدلونه پس په هغه پورى ئى توقي کړيدې اودليل پرى داورستوايت دې چه﴿هَلْ هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾.

﴿إِلَّا ٱسۡتَمَعُوهُ﴾استثناء مفرغه ده اوداجمله ماضيه په محل دَنصب کښې ده اوپه تقديرد قدسره دَضميرمفعول دَ ﴿يَأۡتِيهِم﴾نه اوشيخ رضي قانون ذکرکړيدې چه کله جمله ماضيه حال واقع شي اوداواقعه شوی وی ورستودَ(الاّ) نه نواکتفاء به په ضميرکولی شي،اوواو به نشي راوړلی.لکه چه پدی ايت کښې اکتفاء شويده فقط په ضميرباندې،اګرچه دَجمهورو نحويانومذهب دادې چه په دواړو کښې په هريوباندې اکتفاء کيدلی شي.

﴿وَهُمۡ يَلۡعَبُونَ﴾داحال دې دَضميرمرفوع دَ﴿ٱسۡتَمَعُوهُ﴾نه اومراد دَ ﴿يَلۡعَبُونَ﴾نه مستهزئين يعني توقی کوونکي دي،يعني دوئ په غفلت اواعراض کولوکښې دومره انتهاته رسيدلي دي چه قرآني احکامات اوتعليماتوسره دَلوبوکوونکوپشان عمل کوي (خطيب)اوياپه معنی دَيشغلون سره دې يعني دوئ په دنياکښې مشغول دی اوقرآن نه اعراض کوی اوياتنه مراددادې چه دوئ په قرآن باندې اعتراضاتوکولوکښې مشغول دی.

﴿لَاهِيَةً قُلُوبُهُمۡ﴾داحال دې يادَضميرمرفوع دَ ﴿ٱسۡتَمَعُوهُ﴾نه نو﴿لَاهِيَةً﴾ او﴿يَلۡعَبُونَ﴾ دَضمير مرفوع نه نوبيا حالين متداخلين دی او﴿لَاهِيَةً﴾ دَلهٰی يلهٰی نه په معنٰی دَغفلت سره دې اوداپه منزله دَعلت دې دَماقبل دپاره يعني داکفارقرآن اوری اوپه هغی پوری توقي اومسخري کوي اوقرآن ته توجه نه کوي ځکه چه زړونه ئي غافل دي،يعني دوئ ته صرف دَاستماع(اوريدلو) صفت حاصل دې اوتفکرچه صفت دَزړه دې هغه ورته ندې حاصل نودوئ پشانته دَځناورو دي، بلکه دَهغوئ نه هم بدتردي.

﴿وَأَسَرُّوا۟ ٱلنَّجۡوَى﴾دابل صفت دَ کافرانوذکرکيږي چه کله دوئ قرآن اوحق خبري واوري نودَعمل کولوپه ځائ دَهغي خلاف پټي جرګي کوي اودهغي خلاف منصوبي جوړه وي، او(اسروا) پټولوته وائی او﴿ٱلنَّجۡوَى﴾هم پټوخبرواوجرګوته وائی نودَ﴿ٱلنَّجۡوَى﴾سره دَ﴿وَأَسَرُّوا۟﴾ذکرکولوپه ظاهرکښې ضرورت نوو خوبياهم ذکرشودَپاره دَمبالغی،چه دوئ به خپلی جرګی اودَاسلام کیخلاف منصوبی ديري په پټه جوړه ولي خوالله ﷻ به دَدوئ دَدي خفيه منصوبواوجرګو اطلاع نبی ﷺ ته ورکوله.

﴿ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا ﴾دَظلم نه مراد پدي ځائ کښې شرك دې اى الذين اشركوا بالله(حداد) اوداپدل واقع شويدې دَ ﴿وَأَسَرُّوا ﴾ضميرفاعل نه،اوپديکښې اشاره ده ديته چه دَحق خلاف جرګي کول اومنصوبي جوړول سخت ترين ظلم اوکفردې اويادا فاعل دې دَ﴿وَأَسَرُّوا ﴾ دَپاره، او واو په﴿وَأَسَرُّوا ﴾ کښې محض علامه دَجمعي ده اودادې دَپاره ذکرکيږي چه دلالت اوکړي پدې چه ورستودَې فعل دَپاره فاعل جمعي را روان دې اودا دَقبيلې ازد لغت دې لکه اكلوني البراغيث دَعام عربودَلغت موافق اكلني البراغيث پکاروو اويادافاعل دې دَفعل مقدردَپاره چه يقول دې يعني يقول الذين ظلموا اوبعض فرمائى چه دامبتداده اوداماقبل جمله﴿وَأَسَرُّوا ٱلنَّجْوَى ﴾ورله خبرمقدم دې. اوتقديم دَخبردَاهتمام شان دَپاره دې اوبعض فرمائى چه داخبردې دَمبتداء مقدرى دپاره چه هم دې يعني، هم الذين ظلموا، نولهذا دا اعتراض نه واردېږي چه کله فاعل اسم ظاهروى نوفعل به واحدراوړى کيږي،لکه چه دامشهورقانون دې اودلته فعل جمع راوړى شويدې.

﴿هَلْ هَٰذَآ إِلَّا بَشَرٌ ﴾داجمله په محل دَنصب کښې بدل واقع شويده دَ﴿ٱلنَّجْوَى﴾نه اى اسروا هذا الحديث(كشاف) اويا داجمله مفعول به دَه دَفعل مقدردَپاره چه قالوا دې او(هل)په معنى دَنفى سره دې اودادَمنکرينودَطرف نه په رسالت دَنبيﷺ باندې يولوئي اعتراض وو حاصل دَاعتراض دادې چه داپيغمبرخوزمونږ پشان بشردې خوراك کوي بازارکښې ګرځي نومونږ څنګه ده ته پيغمبراوايو؟؟ نودَدوئ عقيده داوه چه پيغمبربشرنشي کيدلى بلکه پيغمبربه يوه فرشته وي اوکچرته يوبشرخارق للعادة امرپيش کړو(معجزه )نوهغه به ساحروي اومعجزه به ئې سحروي.

﴿أَفَتَأْتُونَ ٱلسِّحْرَ ﴾مرادتنه قبلول،عمل کول اوتابعدارى کول دى اودَ﴿تُبْصِرُونَ﴾نه مراد بصيرت اوعلم دې اواستفهام دَپاره دَانکاراوتوبيخ دې يعني تاسودَده ساحرانه کلام قبلوئى حالانکه تاسوښه پوهيږئى چه داسحردې (حداد).

| قُلَ رَبِّي يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِي السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ السَّمِيعُ |
|---|
| اوئيل پيغمبرﷺ چه رب ځماپوهيږي په هره خبره باندې که په اسمان کښې وي اوکه په زمکه کښې وي اوهغه اوريدونکى |

| |
|---|
| الْعَلِيْمُ۝ بَلْ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍۭ بَلِ افْتَرٰىهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ ۚ |
| پوهه ذات دې، بلکه دوئ وائي چه دا (قرآن ګډوډ) خوبونه دي بلکه دځان نه ئي جوړکړيدي بلکه دې شاعردې. |
| فَلْيَاْتِنَا بِاٰيَةٍ كَمَآ اُرْسِلَ الْاَوَّلُوْنَ۝ مَآ اٰمَنَتْ قَبْلَهُمْ |
| پس مونږ ته دي راوړي يوه نخه(معجزه)بلکه چه ليږلي شويدي مخکني رسولان. ايمان ندي راوړی مخکښ ددوئ نه |
| مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا ۚ اَفَهُمْ يُؤْمِنُوْنَ۝ |
| هيڅ يو کلي والو چه مونږ هلاك کړيدي آيا پس دوئ به ايمان راوړي. |

﴿قَالَ رَبِّيْ يَعْلَمُ ﴾دا دعوىٰ دسورت ده چه دزمکې اودآسمانونوټولو غیبوباندي عالم ذات صرف اوصرف الله ﷻ دې،هغه دهرڅه اوريدونکې اوپه هرڅه باندي عالم دې،اوپدې ايت سره ازاله دڅوتوهم اوشوه چه هرکله به ا لله ﷻ نبي ﷺ ته ددوئ دپټوجرګواطلاع ورکوله نوداتوهم کيدلوچه نبي ﷺ عالم غيب دې نوجواب تنه اوشوچه پيغمبر ﷺ پخپله علم غيب صفت الله ﷻ لره ثابت کړيدې،امام رازي رحمه الله وغيره فرمائي چه دادعوىٰ ددې ماقبل طعن جواب دې چه پيغمبر ﷺ ته ئي ساحراوقرآن ته ئي سحراوئيل په خپلوجرګوکښ نوجواب اوشوچه دې ساحرندې بلکه دالله ﷻ دطرف نه پيغمبردې اوستاسوپه پټوخبروبلکه په هرغيب څيزباندي الله ﷻ عالم دې تاسوته به ددې بدله درکړي

﴿بَلْ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ ﴾دادعوىٰ بل طعن اودعوىٰ اضطراب اوحيرانتياذکرکيږي لکه څرنګه شان دباطل پرستودې چه په يوې خبرې باندي ورته ثبات اواودريدل نوي،په تيارودګمراهئ کښ کله يوطرف ته منډې وهي اوکله بل طرف ته نودوئ هم دحيرانتيا اودسرګردانئ دوجې نه قرآن ته اونبي ﷺ ته مختلف نسبتونه کول اول ئې قرآن ته سحراوئيل بيائي داخبره پريخودله اودويمې خبرې ته ئي انتقال اوکړو اوقرآن ته ئي ﴿اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ ﴾ (ګډوډخوبونه) اوئيل، بيائې انتقال اوکړو افتراء ته چه ديته دالله ﷻ کلام وئيل دروغ تړل دي په الله ﷻ باندي،بيائې اوئيل چه داپيغمبرشاعراوقرآن شاعرانه کلام دې چه مبني دې په تخيلاتوباندي اوحقيقت نه لري په خارج کښ،امام رازي رحمه الله فرمائي چه ددوئ اول اعتراض

دَنبیﷺ په نبوت باندي ووچه بشريت اورسالت کښ منافات کړلوچه نبي بشرنشي کيدلی،اوبیاهرکله چه قرآن دلیل وو په رسالت دَنبیﷺ باندي،نودَدي وجه نه دوئ په قرآن باندي اعتراضات شروع کړل اواوئيل ئي کچرته داتسليم کړو چه دَنبي اوبشرپه مينځ کښ منافات نیشته دي بلکه بشرنبي جوړيدي شي نوبيادانه منوچه دي نبي دي اوقرآن ده دَثبوت دپاره معجزه ده بلکه داقرآن سحردي،اوکچرته داتسليم کړو چه سحرندي نوبياداهسي يوانتهائی رکيك اوباريك کلام دي، فصاحت نه خالي اضغاث احلام، يعني هسی گډوډ خوبونه دی اوکچرته فصاحت پکښ هم تسليم کړو اودا اوايوچه دَفصاحت اورکاکة په مينځ کښ دي نوبياافتراء ده اوکچرته داتسليم کړو چه بالکل فصيح کلام دي نوبياسحردي.

بهرتقديردَدوئ دَټولوطعنونورجعه يوطعن ته کيږی چه قرآن دَاللهﷻ کلام ندي اودوئ به په قرآن ځکه طعن کولوچه دادليل ووپه رسالت باندي نوگوياچه رسالت دَنبيﷺ په منزله دَدعوی وو اوقرآن دليل وو اونقض په دليل وارديږی نوځکه دوئ هم زيات زوردَقرآن خلاف لگولی وو،دَدي توجيهاتوپه بناء "بل" پدي مواضعوثلاثوکښ دَاضراب اوانتقال دپاره دي اوعلامه زمخشری فرمائی چه "بل" پدی مواضعوکښ دَترقی دپاره دي اوهرطعن دَبل ډيرسخت اوزيات فاسددي لکه چه ظاهره ده چه دوئ اول قول اوطعن پدی سره اوکړو چه بشرنبي نشي کيدلی اوبيائي په طعن کښ ترقی اوکړه اوقرآن ته ئي اضغاث احلام اوئيلو اوبيائي مزيده ترقي اوکړه اوقرآن ته ئي افتراء اوئيله اوبيائي مزيده ترقی اوکړه اوقرآن پشان مقدس کتاب ته ئي شعراوئيلوچه هغه صرف اوصرف تخيلات وی.

﴿فَلۡيَأۡتِنَا بِـَٔايَةٖ﴾دابل طعن اودکفارو يوبل لوئ اعتراض ذکرکيږي په رسالت باندي اوداجواب دي دَشرط محذوف دپاره تقديردَعبارت داسی دي،إن لم يكن كماقلنابل كان رسولا مّن الله فلياتنا الخ يعني دوئ به دااعتراض کولوکچرته زمونږ داالزامات غلط وي اودي حقيقةً دَاللهﷻ دَطرف نه رسول وي نودي مونږته زمونږدَفرمائش مطابق هغه معجزی ولي نه پيش کوي ځنګه چه مخکښنوانبياء کراموپيش کړي وي،لکه عصا دَحضرت موسیٰؑ اوناقه دَحضرت صالحؑ .

﴿كَمَآ أُرۡسِلَ﴾ كاف اسمي دې په معنیٰ دَمثل سره اوصفت دې دَ﴿بِـَٔايَةٍ﴾ دپاره اومامصدريه ده ارسل په تاويل دَمصدرسره په معنى دَارسال سره دې، نوعبارت داسې دې فلياتنابآية مثل آية ارسال الاولين(بحر).

﴿مَآ ءَامَنَتۡ قَبۡلَهُم﴾ دا جواب دې دَهغوئ ددغې اعتراض اودَطعن حاصل دَجواب دادې چه دغه فرمائشي معجزي کومي چه دوئ طلب کوي نودا دَدوئ نه مخکښ تيرشووقومونوهم غوختلې وې نوهغوئ ايمان نوو راوړی نودوئ خوپه ضداوعنادکښ دَهغوئ نه زيات دي نودوئ به دفرمائشي معجزي په بنياد څرنګه ايمان راوړی.

**تنبيه:** دکفارو په ټولوطعنونواواعتراضونوکښ صرف دَاول طعن اواعتراض اودَدې اخرى طعن اواعتراض جواب ورکړې شواودَدې نورو جوابونه ورنکړې شو ځکه چه دانورطعنونه محض په جهالت اوخالص په عنادباندي مبني وو اودادوه په څه ناڅه دليل باندي مبني وو ،هرچه دې اول طعن نوهغه چونکه دَټولوکفارونه په تسلسل سره نقل وو ،اوهرچه دې دااخرى نوداپه يوعقلی دليل باندي مبني وو چه دوئ وئيلوچه مونږ منوچه دې پيغمبردې خومونږ ته دې زمونږ دَفرمائش مطابق دَمخکښنوانبياء کرامو عليهم السلام پشان معجزی پيش کړي نوځکه دَدې دواړو جوابونه اوشو.

| وَمَآ أَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِيٓ إِلَيۡهِمۡۖ فَسۡـَٔلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلذِّكۡرِ |
|---|
| اوندي ليږلي مونږ ستانه مخکښ مګرنارينه چه وحی کوله مونږ هغوئ ته پس پوښتنه اوکړئ تاسودَعلم والونه |
| إِن كُنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ۝ وَمَا جَعَلۡنَٰهُمۡ جَسَدًا لَّا يَأۡكُلُونَ ٱلطَّعَامَ وَمَا كَانُواْ خَٰلِدِينَ ۝ |
| کچرې تاسونه پوهيږئ اونوو پيداکړي مونږ دوئ داسي جوسي چه نه به نې خوړلو خوراك اونوو دوئ هميشه رپاتي کيدونکي |
| ثُمَّ صَدَقۡنَٰهُمُ ٱلۡوَعۡدَ فَأَنجَيۡنَٰهُمۡ وَمَن نَّشَآءُ |
| بيارېښتنی کړه مونږ دوئ سره وعده پس بچ کړل مونږ هغوئ اوهغه څوك چه مونږ غوښتلو |
| وَأَهۡلَكۡنَا ٱلۡمُسۡرِفِينَ ۝ |
| اوهلاك کړل مونږه دَحدنه تيروتونکي کسان. |

﴿وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ﴾ دا داول طعن او اعتراض نه جواب دې چه دوئ ونيل چه بشرنبي نشي جوړيدلی حاصل دَجواب دادې چه مخکښې تيرشوی ټول رسولان نارينه وو اود ﴿رِجَالًا﴾ نه مراد بشرا دې ځکه چه په وصف دَرجليت سره بشرمتصف کيږی، فرشتې نه متصف کيږی، ﴿فَسْئَلُوٓا أَهْلَ ٱلذِّكْرِ﴾ مرادپه اهل ذکرسره صحيح علم لرونکي علمآء دی، يعني چه کله تاسوپخپله نه پوهيږئ نوبيادَعلمآؤنه پوښتنه کوئ اودَهغوئ اتباع اوتقليدکوئ اوقرطبی رحمه الله دَدې ايت په ضمن کښې ليکلي دی: لم يختلف العلمآء ان العامة عليهاتقليدعلمآئها وانهم المراد بقول الله عزوجل فسئلوا اهل الذكران كنتم لاتعلمون، واجمعوا على ان الاعمٰى لابدله من تقليدغيره.....فكذلك من لاعلم له ولابصر بمعنى مايدين به لابدله من تقليدعالمه(قرطبی ج۶ ص ۱۳۹).

يعني علمآؤ پديکښې اختلاف نيشته چه په عام خلکوباندې تقليددَخپلوعلمآؤضروری دې اوبيشکه دوئ مراددې پدی قول دَالله تعالیٰ سره چه﴿فَسْئَلُوٓا أَهْلَ ٱلذِّكْرِ﴾ اودغه شان دَټولوخلکوپدی اجماع ده چې ړوندسړي دپاره دَبل تقليداواتباع ضروري ده، نودغه شان هغه سړی چه هغه لره علم نوي اوددين په امورو کښې ورله پوهه نوی نوپه هغه باندې هم تقليددَيوعالم ضروری دې اوقاضی بيضاوی رحمه الله فرمائی: وفى الاية دلالة على وجوب المراجعة الى العلمآء فيمالايعلم، يعني پدی ايت کښې دليل دې په دې چه مراجعت (تقليد) واجب دې علمآؤته په هغی مسئلی کښې چه علم ورته نوی.

**فائده**: بعض معاصرومفسرينوپدی مقام کښې دَتلبيس نه کاراخستی دې اودَاسلافواقوال ئی په يوغلط اندازکښې پيش کړيدي اوکلمة حق اريدبهاالباطل، پوره مصداق گرزيدلی دې اودَعلامه ابن قيم رحمه الله اودَحضرت شاه ولی الله رحمه الله دَعبارتونوترجمه ئې نقل کړيده اودَهغی دَمقصدوضاحت ئې ندې کړې، کوم چه دَسابقې اولاحقې نه معلوميږی چنانچه ليکی:

**فائده**: اعلام الموقعين عن رب العلمين دَعلامه ابن قيم جوزيه کتاب په (ج۲ ص۱۲) کښې سوال ذکرکړيدې چه دَدې ايت نه تقليدمعلوميږی اوبيائی جواب کړيدې.....چه الله تعالیٰ بدې ذکرکړيده دَهغه چاچه اعراض کوي دَماانزل الله (قرآن کريم اوصحيح حديث) نه اوتقليددَمشرانوکوي داتقليد په اتفاق دَامت سره مذموم اوحرام دې الخ. مونږپدی ځائ کښې دَحافظ ابن قيم رحمه الله په احوالواواقوالوهغه تبصري نه کوو کوم چه علامه کوثری رحمه الله يانورو

بزرگانو کړيدي صرف دومره عرض کووکچرته دَحافظ ابن قیم رحمه الله دکلام مقصد دغه شي لکه چه دي بعضو مفسرینو بیان کړيدي نو په کلام دَحافظ کښ به ډیر تعارض او اضطرابات پیداشي، لکه علامه په اعلام الموقعین (ج۲ ص ۲۵۴) کښ لیکلي دي: لاتجداحداً من الائمة الاوهومقلدمن هواعلم منه فی بعض الاحکام یعني یوهم دَائمونه داسي نیشته دي مګرهغه دَخپل ځان نه دَلوئی عالم تقلیدپه بعض احکاماتوکښ کړيدي، اودغه شان فرمائي: وقدقال الشافعی رحمه الله فی موضع من الحج (قلته تقلیدا لعطاء) یعني امام شافعی رحمه الله په موضع دَحج کښ وئیلي دي چه ډيدي مسئلي کښ مادَعطاء تقلید کړيدي، کچرته تقلیدمذموم اوحرام وی مطلقا نودلته بیادَحافظ ابن قیم رحمه الله دَقول مطابق ائمو ولی تقلیدکړيدي؟؟ دغه شان حافظ په یوځائ کښ لیکلي دي چه امام شافعي رحمه الله فرمائي: اذا وجدتم فی کتابی خلاف سنة رسول الله ﷺ فقولوبسنة رسول الله ﷺ ودعوا ماقلته (اعلام الموقعین ج۲ ص ۲۶۲) اوبیاپه بل ځائ کښ دَامام شافعی رحمه الله قول په باره دَشرائطودَمفتی کښ نقل کړيدي چه لایحل لاحد ان یفتی فی دین الله الارجلا عارفابکتاب الله بناسخه ومنسوخه ومحکمه ومتشابهٖ وتاویله وتنزیله ومکیه ومدنیه وماارید به ویکون بعد ذلك بصیرا بحدیث رسول الله ﷺ وبالناسخ والمنسوخ ویعرف من الحدیث مثل ماعرف من ا لقرآن ویکون بصیرا باللغة وبصیرا بالشعروما یحتاج الیه السنة والقرآن الخ (اعلام الموقعین ج۱ ص۴۶) اوپه بل ځائ کښ لیکلي دي زوی ایضاعن الامام احمد رحمه الله انه قال ان المفتی ینبغی له ان یحفظ اربع مائة حدیث (اعلام الموقعین ج۳ ص۲۴۹) نودومره لوئي جلالت شان دَائمو اقوال به څرنګه دَقرآن اوحدیث مخالف شي اوڅرنګه به دَهغوئ اتباع اوتقلید اعراض دَماانزل الله شي، کچرته دَعلامه ابن قیم رحمه الله دکلام مقصد دغه واخستلی شي لکه څرنګه چه دي بعضو مفسرینو اخستی دي نونورهم ډیر تعارض به په کلام دَابن قیم کښ راشي، چه مخفی ندي په اهل علموباندي، بلکه دَدي عبارت صحیح مقصد دادي چه علامه ابن قیم رحمه الله په هغه خلکو رد کړيدي چه دَتقلیدجامد قائل دی چه صرف اوصرف فتاوی یاده وي اواستدلال په کتاب اوسنت سره ښه نه کړی اوبقول علامه ابن قیم رحمه الله چه هغوئ خیال داوی چه زمونږ امام دَصحابه کرامو رضی الله عنهم نه هم زیات پوهه وو (اعلام الموقعین ج۲ ص۲۱۴) اوزمونږ فقهاء کرام مقلدین په مسائلوکښ استدلال په کتاب الله، سنت اواجماع اوبیاپه اخیري کښ په قیاس سره کوي چه په هغی کښ هم زمونږ دَفقهاء کرامو قول دادي چه قیاس صرف مظهرللحکم دي اومثبت للحکم ندي اودغه شان زمونږ فقهاء کرام دَتقلیدجامدهم

قائله ندي په مذهب کښې دَ ننه اختلافات، په ډيرو مسائلو کښې دَحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله قول پريخودل دَامام ابويوسف يادَامام محمد رحمه الله وغيره قول اختياره ول، بلکه کله کله دَنورو ائموقول اختياره ول لکه امام مالك رحمه الله ياشافعي رحمه الله وغيره شولکه باب تلفيق په کتابونو دَفقه کښې داټول دَدې خبري واضح دليل اوثبوت دې چه تقليد جامد ته زمونږ فقهاؤهم بنه ندي وئيلي، البته تعين دَيومذهب ضروری دې، ځکه چه پدې زمانه کښې هواپرستي اودَنفساني خواهشاتو اتباع عامه ده نوکچرته دَيومتعين مذهب اختيارنه کړې شي اودَيومتعين امام دَمسلك تقليداونه کړې شي نوددين نه به يوه ټوقه اومذاق به جوړشي لکه حضرت شاه ولی الله رحمه الله چه حجة الله البالغه کښې فرمائي: لاسيما فی هذه الايام التی قصرت فيهاالهمم جدا واشربت النفوس الهوىٰ واعجب کل ذی رای برايه(حجة البالغه ص۲۳) يعني خاص طورباندې پدې زمانه کښې تقليدځکه ضروری دې، چه همتونه ډيرکمزوری شويدې اونفسونوته خواهشات ډيرخوښ شويدې اوهررای ورکونکي ته خپله رائ ډيرخوښه ده الخ اودغه شان دَحضرت سليمان التيمی رحمه الله نه منقول دې ان اخذتَ برُخصةِ کلّ عالم اجتمع فيك الشّر کلّه(فوائدفی علوم الفقه ص۲۶)يعني کچرته تقليدضروری نشي نوبيادَهرمسلك په اسانومسئلو(رخصت باندې) عمل کول شروع شي نوکچرته ته دَهرعالم په رخصت باندې عمل اوکړې نوپه تاکښې يعني ستاپه عمل کښې به ټول شرجمع شي، اودَدې وجه نه علامه سيوطی رحمه الله په شرح دَجمع الجوامع کښې ليکلي دی: ويجب علی العامی وغيره ممن لم يبلغ مرتبة الاجتهاد التزام مذهب معين من مذاهب المجتهدين،يعني په عاموخلکوباندې(اګرچه عالم ولی نوي) دَهغه چانه چه مرتبې دَاجتهاد ته نوي رسيدلی دَيومتعين مذهب التزام واجب دې اوعلامه طحطاوي په حاشيه دَدرالمختارکښې ليکلي دې: من کان خارجًا عن هذه الاربعة فهو من اهل البدعة والنار، يعني کوم يوسړی چه دَدې څلورو مذهبونونه خارج شي نوهغه بدعتی اوجهنمي دې اوعلامه منالی رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله هم دغه شان خبره کړيده چه چونکه نن صبادَنورو ائمومجتهدينومذاهب معدوم،غيرمعلوم دې،نودَدې وجه صرف دَدې څلورومذاهبو کښې دَيومذهب تقليدکول ضروری دی: اما اليوم فلايجوزتقليدغيرالائمة الاربعة فی قضاء ولاافتاء(امانی ج۲ ص۸) يعني په قضاء اوافتاء کښې دَدې څلورومذاهبو دَتقليدنه علاوه دَنورو ائمو تقليدجائزندې اوحافظ ابن حجر رحمه الله په شرح دَاربعين کښې فرمائي: امافی زماننا فقال المتنا لايجوزتقليدغيرالائمة الاربعة الشافعی رحمه الله،ومالك رحمه الله، وابی حنيفة رحمه الله، واحمدبن حنبل رحمه الله يعني زمونږپدې زمانه

کښې دڅلورو امامانو شافعی رحمه الله ،مالك رحمه الله،ابوحنيفه رحمه الله اواحمدبن حنبل رحمه الله نه علاوه دنورو ائمو تقليدجائزندې.

اوبيادغه بعض معاصرليکی: شاه ولی الله رحمه الله په عقدالجيدکتاب کښې هم ليکلي دي که دې سړي ته په راتلونکي وخت کښې دقرآن اوحديث نه صحيح نص معلوم شواودهغه قول نه خلاف وو نوهغه قول به پريږدي اوقرآن اوحديث باندي به عمل کوی الخ يوادنی طالب هم دشاه ولی الله رحمه الله ددې کلام په مقصدباندي پوهيږی چه ددې عبارت نه دشاه صاحب رحمه الله مقصدڅه دې؟ ددې عبارت واضح مقصد دادې چه تقليدواجب دې خوکچرته يوسړی عالم وي اودقرآن اوحديث ماهروی،ناسخ منسوخ، راجح مرجوح باندي واقف وي، نوکچرته هغه ته يومسئله جزئيه کښې خپل مذهب کمزوری ښکاره شي نوعمل دي په هغې اوکړي چه کوم راجح وي اوتقليدشخصي اوتقليددَيو امام صرف دهغه داقوالو منلونه عبارت ندې لکه په سورة النحل ايت نمبر(۴۳)کښې په تفصيل سره ثابته شويده چۀ فقه حنفی صرف دامام ابوحنيفه رحمه الله داقوالو نه عبارت ندې بلکه ددولس زره مستنداوجيدعلمآء کرامودشوریٰ نه عبارت دې چه هغوئ به په يوي يوي مسئلي باندي ترڅو،څو،ورځوپوري بحثونه کولو،اوپخپله شاه ولی الله صاحب په عقدالجيدکښې دَيومتعين مذهب اتباع اوتقليدته ضروری وئيلی دې هغه فرمائی: ولماانلدرست المذاهب الحقة الاهذه الاربعة كان اتباعهااتباعاًللسواد الاعظم والخروج عنها خروجاً عن السواد الاعظم( عقدالجيد ص۳۸).

يعني هرکله چه مذاهب حقه صرف اوصرف په دې څلورو(ابوحنيفه،مالك،شافعی،احمدبن حنبل) کښې منحصرشويدي نوپه دوئ کښې دَيواتباع،دسواد اعظم اتباع ده اوددې نه وتل دمسلمانانودَيولوئ جماعت نه وتل دي اوپه حجة الله البالغه کښې حضرت شاه صاحب رحمه الله داسي فرمائي: هذه المذاهب الاربعة المدونة المحررة قداجتمعت الامة اومن يعتدبهامنها على جواز تقليدها الى يومنا(حجة الله البالغة ج۱ ص ۱۳۲) يعني ټول امت يادامت قابل اعتبارخلکودائمه اربعه دڅلورو مدونومذهبونودتقليدپه جوازباندي نن ورځي پوری اجماع کړيده نوشاه صاحب دَيومتعين امام دتقليد وجوب قائل دي البته ماهرين علوم قرآن،حديث چه داستنباط اواجتهاد صلاحيت لري اوچه په شرائطو باندي پوره وي هغه ته ئي اجازت ورکړيدي چه دتحقيق نه ورستوپه يوی مسئلي جزئيه کښې اختلاف کولی شي اودموجوده زمانی غيرمقلدين عوام اواکثرملايان چۀ دعربي عبارت په لوستلوباندي هم قادرندي دهغوئ دپاره داحکم ندې اوددينه دامعلومه شوه چه دکوم اسلافونه دتقليدپه باره کښې ممانعت منقول دې نوهغه دهغه خلکوپه باره کښې دې چه کوم پخپله

درجه اجتهاد ته تقريبارسيدلی وی، لکه امام شعرانی رحمه الله په الميزان الکبری کښ ليکلي دي وهومحمول على من له قدرة على استنباط الاحكام من الكتاب والسنة والافقدصرح العلماء بان التقليد واجب على العامي لئلايضل فی دينه يعني دامما نعت محمول دي په باره دهغه چاکښ چه هغه ته دقرآن اوحديث نه استنباط کولو قدرت حاصل وي اوکچرته داسي نوي نو علماؤ پدی تصريح کړيده چه په عام سړي باندي تقليد واجب دي دي دپاره چه دي په خپل دين کښ گمراه نشي

﴿وَمَا جَعَلْنَٰهُمْ جَسَدًا﴾ دا دمشرکينو ددويم اعتراض جواب دي چه هغوئ به اعتراض کولو چه داڅرنګه نبي دي، دي خوزمونږ پشان خوراك اوڅکاك کوي،مال هذا الرسول ياكل الطعام ويمشي فی الاسواق اوپه﴿جَعَلْنَٰهُمْ﴾ کښ ضميردمفعول راجع دي رسولانوته اود ﴿جَسَدًا﴾ اطلاق کله په غيرمتغذي باندي کيږي يعني غذاکوونکی نوي لکه جمادات شو اوکله کله ئي اطلاق په متغذي اوغيرمتغذي دواړو باندي کيږی نو داول اطلاق په اعتبارسره نفی دجسد ده اوداورستو جمله ﴿لَّا يَأْكُلُونَ﴾ بيان اوتفسيردجسد دي، يعني انبياء کرام مونږه جمادات نوو پيدا کړی چه خوراك به ئي نه کولو،اودويم اطلاق په اعتبارسره جسدمثبت دي اوموصوف دي اوورستو جمله ورله صفت دي او داجمله منفي ده يعني داسي اجساد نووچه خوراك به ئي نه کولوبلکه داسي اجسادوو چه خوراك به ئی کولو او ﴿جَسَدًا﴾ مفرد ذکرشوځکه چه دينه جنس اراده کړي شويدي، مقصد دايت دادي چه ستانه مخکښ هم انبياء کرام بشروو اودبشريت دطبائع نه خارج نوو چه بياخوراك اوڅکاك ته محتاج نوی (قرطبی) اوپديکښ اشاره ده ديته چه خوراك نه کول څه کمال اوعلامه دمقبوليت نده.

﴿وَمَا كَانُوا۟ خَٰلِدِينَ﴾ دادريم اعتراض جواب دي چه دانبي به هميشه دپاره نوي بلکه وفات کيږي به، خلاصه داده چه هرکله انبياء کرام محتاجه وو خوراك،څکاك ته اودخوراك څکاك نه مستغني نوو نودفناء نه هم نشوبچ کيدلی اوخلود نه مراد يابقاء سرمدي يعني هميشه دپاره ژوندي پاتي کيدل دي اويا تنه مراد اوږده زمانه پاتي کيدل دي.

﴿ثُمَّ صَدَقْنَٰهُمُ﴾ پديکښ تخويف دنيوي ته اشاره ده دپاره دمنکرينو اوبشارت دنيوي دي دپاره دمؤمنانو اومراد په صدق سره انجازيعني پوره کول دي اووعدي نه مراد وعده دهلاکت ده

دَښمنانو او نصرت دې دَمؤمنانو ﴿فَأُنجِيْنَهُمْ وَمَن نَّشَآءُ﴾. "من نشاء" نه مراد متبعين دي دَ انبياء كرامو يعني مؤمنان.

| |
|---|
| لَقَدْ أَنْزَلْنَا إِلَيْكُمْ كِتٰبًا فِيْهِ ذِكْرُكُمْ أَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ⑩ |
| بيشكه نازل كړيدې مونږ تاسوته كتاب په هغې كښې ياداشت ستاسودې، آيا پس تاسودَعقل نه كارنه اخلئ |
| وَكَمْ قَصَمْنَا مِنْ قَرْيَةٍ كَانَتْ ظَالِمَةً وَّأَنْشَأْنَا بَعْدَهَا قَوْمًا اٰخَرِيْنَ ⑪ فَلَمَّآ |
| او ډيرهلاك كړيدي مونږ دكلووالا نه چه وو ظلم كوونكي او پيدا كړل مونږ ورستودَهغوئ نه قوم نور، پس هركله چه |
| أَحَسُّوْا بَأْسَنَآ إِذَا هُمْ مِّنْهَا يَرْكُضُوْنَ ⑫ لَا تَرْكُضُوْا وَارْجِعُوْٓا |
| اوليدلو هغوئ عذاب زمونږ نو دغه وخت دوئ دَهغې نه منډې وهلې (اوئيلې شو) منډې مه وهئ اوواپس لاړشئ |
| إِلٰى مَآ أُتْرِفْتُمْ فِيْهِ وَمَسٰكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْـَٔلُوْنَ ⑬ |
| هغه مالونوته چه مست كړي شوي وئ تاسوپه هغې كښې اوخپلو كورونوته، دې دَپاره چه ستاسونه پوښتنه اوكړې شي. |
| قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ⑭ فَمَا زَالَتْ تِّلْكَ دَعْوٰىهُمْ حَتّٰى |
| اوئيل دوئ هاې تباهي ده زمونږ بيشكه وو مونږ ظالمان، پس هميشه وې دغه آوازونه (چغې) دَدوئ تردې چه |
| جَعَلْنٰهُمْ حَصِيْدًا خٰمِدِيْنَ ⑮ |
| اوګرځول مونږ دوئ ريبدلي شوي يخ مړه شوي |

﴿لَقَدْ أَنزَلْنَآ﴾ داترغيب الى القرآن دې اوپديكښې رد دې دَهغه طعنونواوخبروكوم به دوئ دَقرآن په باره كښې كولې لكه دوئ به وئيل چه قرآن اضغاث احلام يا افتراء او يادَيوشاعركلام دې اوتنوين په ﴿كِتٰبًا﴾ كښې دَتعظيم اوتفخيم شان دَپاره دې، اوپه ﴿ذِكْرُ﴾ سره مراد شرف، عزت اوښه شهرت دې، اوخطاب عربوته دې چه هغوئ اول مخاطبين وو، نومطلب دادې چه داقرآن ستاسودَپاره باعث دَښه شهرت اوباعث دَشرف اوعزت دې ځكه چه ستاسوپه ژبه كښې اوستاسودَقوم نه په نبي باندې نازل شويدې (روح) اودَ دې وجه نه نبي ﷺ ارشاد اوفرمائيلو:

احبوا العرب لثلاث فانی عربی والقرآن عربی ولسان اهل الجنة عربی، اوکماقال ﷺ اویاخطاب ټولو مؤمنانو ته دې اومقصد دادې چه تاسو په قرآن باندې عمل اوکړئ ځکه چه قرآن باندې عمل کول سبب دعزت اوشرافت دې،اویادذکرنه مراد اموردینیه اوشرعیه دي اویاذکرپه معنی دتذکیرسره دې یعنی وعظ اونصیحت یعني ستاسو دپاره پدیکښې وعظ اونصیحت دې.

﴿وَكَمْ قَصَمْنَا﴾ دا تخویف دنیوی دې اوتفصیل دې دماقبل اجمال چه ﴿وَأَهْلَكْنَا ٱلْمُسْرِفِينَ﴾ دې او"کم" خبریه ده مفیده دتکثیرده او"قصم" په لغت کښې ماتولو ته وئیلی کیږي دلته ترې سخت اواستیصالي عذاب مراد دې.

﴿مِن قَرْيَةٍ﴾ ددینه مراد یوه خاص قریه نده،بلکه تیرشوي قومونه چه شرک اوکفرئې کړې وو ټول ترې مراد دي، اوداِبن عباس ؓ نه چه منقول دي چه ددینه مراد حضورا یامدائن وغیره دی هغه علیٰ سبیل التمثیل دې نه علی سبیل الحصر. کانت ظالمةً دلته مضاف مقدردې چه اهلها دې او﴿ظَالِمَةً﴾ په معنیٰ دکافرة سره دې، اوداسبب دهلاکت دې، ﴿فَلَمَّآ أَحَسُّوا۟﴾ ضمیر دجمعی راجع دې اهل دقریة ته اوندې راجع ﴿قَوْمًا ءَاخَرِينَ﴾، ته ځکه چه دهغوئ څه ګناه دلته ندې ذکر،او﴿أَحَسُّوا۟﴾ داحساس نه دې اواحساس وئیلی کیږی ادراک په یودحواسوسره،دلته ترې مرادیقین دې دعذاب اوپه لفظ د ﴿أَحَسُّوا۟﴾ کښې اشاره ده دیته چه دمشاهدې اواحساس دعذاب نه پس توبه نه قبلیږي کچرته دوئ دمشاهدې اواحساس نه مخکښې توبه ویستلی وی نوقبوله شوی به وه.

﴿إِذَا هُم مِّنْهَا﴾ اذا مفاجاتیه دې اوضمیرد﴿مِّنْهَا﴾ یاراجع دې قریې ته اویاراجع دې ﴿بَأْسَنَآ﴾ ته اوباس په معنیٰ دنقمة دې ځکه ضمیردمؤنث ورته راجع شو،اومن په اول صورت کښې ابتدائیه دې اودویم صورت کښې بیاتعلیلیه دې اورکض په لغت کښې وئیلی کیږي زمکه په پونده باندې په تیزئ سره وهل،داکنایه ده دمنډې وهلونه،یعني دوی چه کله مقدمات دعذاب اوکتلونو منډې وهل ئې شروع کړې اویارکض ماخوذ دې درکض الدابة الارض بالرجل نه یعني تیزئ دوجی نه دسورلئ تیندك خوړل اوکلام یاپه حقیقت باندې محمول دې چه دوئ کله عذاب اوکتلونو په خپلو سورلو باندې کیناستل اوتیختنه ئې شروع کړه اویامحمول دې په تشبیه باندې چه ددوئ

حالت دَهغه خلکو دَحالت سره مشابه کړې شويدې چه ډيرپه تيزئ سره روان وي اودَيرى اوتيزئ دَوجى نه ئي سورلئ تيند کونه خوري،بهرتقديرمقصد دآيت دادې چه دَعذاب کتلو دَوجى نه دوئ منډى وهل شروع کړل،نوفرشتوورته بطوراستهزاء اوئيل چه:

﴿لَا تَرْكُضُوا وَارْجِعُوٓا إِلَىٰ مَآ أُتْرِفْتُمْ﴾ مرادورنه هغه سازوسامان اونعمتونه دى چه دَهغى دَوجى نه دوئ تکبرکولو ﴿لَعَلَّكُمْ تُسْـَٔلُونَ ﴾ يعني مه تختئ دې دپاره چه په تاسوباندې چه څه تيرشي نودهغى په باره کښې به بياستاسونه خلك صباپوښتنه کوي چه څرنگه چل وو؟ نوتاسو به ورته خپله مشاهده اوکارگزارى واورَوئ (مدارك) اويامطلب دادې چه تختئ مه بلکه خپلوبنگلواومحلاتوکښې کينئ چه خادمان درنه پوښتنه اوکړې ځکه چه کله څه حادثه راشي نو بياخادمان تپوس کوي چه څه حکم دې؟ څه اوکړو؟ څه شئ راوړو؟ څه شي پريدو(روح) اويامطلب دادې چه ستاسونه پوښتنه اوکړې شي چه تاسوايمان ولى نه راوړئ؟ لکه څرنگه به دَعذاب دَنزول نه مخکښې به ستاسونه پوښتنه کيدله چه څه وجه ده چه تاسوايمان نه راوړئ؟ (قرطبي).

﴿قَالُوا يَٰوَيْلَنَآ ﴾دا ذکردې دَپښيمانتيااودَخپلوګناهونودَاعتراف په داسى وخت کښې چه فائده نه ورکوى.﴿فَمَا زَالَت تِّلْكَ ﴾، تلك مرفوع دې محلااسم دې دَ﴿زَالَت﴾ دپاره او﴿دَعْوَىٰهُمْ ﴾ورله خبردې اومشاراليه دَتلك دامخکښې کلمه﴿يَٰوَيْلَنَا﴾ده اوپديکښې اشاره ده چه ددوئ ندامت اوپښيمانتيا مسلسل وه.﴿حَصِيدًا ﴾په معنى دَمحصودا سره دې په معنى دَلو کړې شوي فصل سره،او﴿خَٰمِدِينَ﴾ دَ خمودنه دې په اصل کښې وئيلى کيږى دَاورمړکيدلوته اودا مجموعه يعني ﴿حَصِيدًا﴾ او﴿خَٰمِدِينَ﴾مفعول ثاني دې دَ ﴿جَعَلْنَٰهُمْ﴾دپاره اوپديکښې جمع بين التشبيهين ده يعني ﴿حَصِيدًا﴾په معنى دَکالزرع المحصود يعني لوکړې شوي فصل پشان شو، او﴿خَٰمِدِينَ﴾ يعني کالنارالخامد، په شانته دَتپ ختلي اور،اوپديکښې اشاره ده چه دَدوئ غروراوتکبردَاورپشان وو،نوڅرنگه چه په اورباندې اوبه وغيره واچولى شي اومړشي نودغه شان دَالله ﷻ قهراوغضب په نازليدلوسره ددوئ غرور اوتکبردَخاورو سره ميلاؤ شو.

| |
|---|
| وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ ﴿۱۶﴾ لَوْ أَرَدْنَآ أَنْ نَّتَّخِذَ لَهْوًا |
| اوندي پيدا کړي مونږ آسمان اوزمکه اوهغه چه ددي په مينځ کښ دي لوبي کوونکي،کچري غوختلي مونږ چه اونيسو مشغله |
| لَّاتَّخَذْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّآ ۖ إِنْ كُنَّا فٰعِلِيْنَ ﴿۱۷﴾ بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ |
| نوخامخا به نيولي وی مونږ هغه دخپلي خوانه کچري مونږ کولي داکار،بلکه ورگذاره وو مونږ حق لره په باطل باندي |
| فَيَدْمَغُهٗ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ ۚ وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُوْنَ ﴿۱۸﴾ |
| نوزخمي کړی دماغ دهغه نوفوراً هغه هلاك شي اوستاسو دپاره تباهي ده دوجي دهغه خبرونه چه تاسوئی وايئ |

﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ ﴾دادسورت دويمه حصه ده ترايت نمبر(۳۰)پوری، دا اول دليل عقلي دي په توحيدباندي چه اسمانونه اوزمکي مونږه دمصالحواوحکمتونونه خالي ندي پيداکړي، بلکه دادالله ﷻ په معرفت اودهغه په توحيدباندي دلائل دي، لاعبين داحال دي دضميرفاعل نه لعب وئيلی کيږي هغه فعل ته چه دهغي نه مقصدصحيح نوي اراده کړی شوی، اوکرماني رحمه الله فرمائی چه لعب هغی ته وائی چه مقتضٰی دهغي جهل وي ابتداء ئي خائسته وی خوثبات ورلره نوی: اللعب فعلٌ يدعوا اليه الجهل يروق اوله ولاثبات له(بحربحواله کرمانی).

﴿لَوْ أَرَدْنَآ أَن نَّتَّخِذَ لَهْوًا ﴾دا تقريراوتوضيح دماقبل دليل ده اولهو وئيلی کيږی هغی ته چه په هغی سره مقصدمشغولاوی،اودنور څيزونونه دهغي په وجه سړی غافله شي،اوددي وجه نه دلهو اطلاق په ولداوپه بي بي باندي هم کيږي،ددي ايت ډيری معانی بيان کړي شويدي(۱)يوه معنی داده چه الله ﷻ فرمائی کچرته دازمکی اواسمانونه مونږه دخپل تفريح اومشغولا دپاره پيداکړي وی نو لاتخذناه من لدنا نوهغه تماشه اوتفريح به هم زمونږ دشان سره مناسب وی اودالله ﷻ دشان سره مناسب خوحکمت دي نوهغه تماشه به دحکمت نه خالی نوه، نومطلب دادي چه محض تماشه دالله ﷻ دشان سره محاله ده.(۲)دويمه معنٰی داده کچرته دازمکي اواسمانونه مونږه دخپل مشغولا دپاره پيداکړي وی نولاتخذناه من لدنا نومونږ به دخان سره ساتلی وی اوتاسوته به مي ددي دليلونه نوی ښکاره کړي(۳)دريمه معنی داده چه دلهوا نه مراد ولداوبی بی ده اومقصد دادي کچرته مونږدخان دپاره ولدیابی بی نيولی نودهغه چانه به می نيولی وی چه زمونږ سره دي

اوپخپله خوښه به مي نيولي وى لکه حورالعين وغيره شو اوستاسوخوښى ته به مي نه کتلى اوستاسودَجنس نه به مي نه نيولى، نوپديکښ رددې په عقيدې دَيهوديانواونصارى ؤباندې. چه هغوئ به حضرت عزير عليه السلام اوعيسى عليه السلام ته دَالله تعالى اولاد وئيلى.

﴿إِن كُنَّا فَٰعِلِينَ﴾دا نتيجه ده دکلام سابق او"ان" نافيه دې يعني مونږ داکارکوونکي نه يو اويا ان شرطيه دې اوجزائې مقدره ده اوقرينه په حذف باندې مخکنى کلام دې تقديرداسې دې ان کنافاعلين لاتخذناه، يعني کچرته مونږه دا کارکولى نومونږ به ضرورولددَخان دپاره نيولى وى، ليکن دازمونږ دَشان سره لائق ندې. ﴿بَلْ نَقْذِفُ بِٱلْحَقِّ﴾بل دپاره دَاضراب دې دَدې مخکښ کلام نه،يعني مونږه دَدينه لهو نده اراده کړې بلکه دا دليلونه دى دَاثبات دَحق اود رد دَباطل دَپاره، اوغوره خبره داده چه په حق سره اسلام، قرآن،رسالت اوهغه ټول حجتونه اودلائل چه په هغې سره اثبات دَتوحيد اوابطال دَشرك اونفى دَاتخاذ ولد کيږى مرادې،اوپه باطل سره شيطان،نسبت کول دَشريك اودَولد الله تعالى ته اودَمنکرينوشبهات مراددې، اوپه لفظ دَنقذف کښ اشاره ده چه حق هميشه دَپاره دروند اومضبوط وى، او﴿فَيَدْمَغُهُۥ﴾ وئيلى کيږى دماغ زخمى کولوته مرادتنه باطلول دى. ﴿فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ﴾اذا مفاجاتيه دې ﴿زَاهِقٌ﴾په معنى دَهالك سره دې اوجمله اسميه راوړى شوه دَپاره دَدلالت په کمال مسارعت باندې په بطلان دَباطل کښ نوګوياچه داباطل اصل دې په هلاکت اوبطلان کښ﴿﴾مِمَّا تَصِفُونَ مرادتنه نسبت دَولد شريك اودَلهو دې الله تعالى ته.

وَ لَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ وَ مَنْ عِندَهُۥ

لوخاص دَالله تعالى په اختيارکښ دې هغه څه چه په اسمانونوکښ دې اوپه زمکه کښ دې اوهغه څوك چه الله تعالى ته نزدې دې

لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِۦ وَ لَا يَسْتَحْسِرُونَ ﴿١٩﴾ يُسَبِّحُونَ ٱلَّيْلَ

لوئ نه کوي دبندګئ دَهغه نه اونه ستړي کيږي پاکي وائى دَالله تعالى په شپې

وَٱلنَّهَارَ لَا يَفْتُرُونَ ﴿٢٠﴾ أَمِ ٱتَّخَذُوٓاْ ءَالِهَةً مِّنَ ٱلْأَرْضِ هُمْ يُنشِرُونَ ﴿٢١﴾

اوورځ کښ نه ښکاره کوي سستي آيانيولي دي دوئ معبودان دَزمکي والونه چه هغوئ ژوندي کول کولي شي؟

﴿وَلَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دادویم دلیل عقلي دې په توحیدباندي چه زمکي. اسمانونه اوهرڅه دَالله ﷻ په قبضه قدرت کښ دی اودهغه په تصرف کښ دی ﴿وَمَنْ عِندَهُۥ﴾ مرادتنه فرشتی دی اوعندیة په اعتباردَشرف اومنزلت سره مراد دې اوپه اعتباردَمکان سره ندې مرادځکه چه الله ﷻ دَمکان نه منزه دې.

﴿لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِۦ﴾ دابیان دَحال دې دَملائکودَعبادت دې، اونفی دهغه امورو ده دَملائکونه چه هغه مانع دَعبادت دَپاره ګرځی، اوموانع دَعبادت دَپاره دری څیزونه دی(۱) استکباریعني لوئ کول دانفی شوپه ﴿لَا يَسْتَكْبِرُونَ﴾ سره(۲) سترپیادانفی شوپه ﴿وَلَا يَسْتَحْسِرُونَ﴾ (۳) ناراستی راتلل دانفی شوپه لایفترون سره.

﴿يُسَبِّحُونَ ٱلَّيْلَ﴾ داحال دې دَضمیردَ ﴿وَلَا يَسْتَحْسِرُونَ﴾ نه اودَلیل اونهارنه مراد دادې چه دَدوئ تسبیح همیشه اوپی درپی(مسلسل)وی اوپه هروخت کښ وی اودَحضرت کعب احبار رحمه الله نه مروی دې چه دَفرشتو دوام تسبیح داسی دې لکه انسان چه ساه اخلی چه نه پری ستړی کیږی اونه پری دَبل کارنه مشغولیږی.

﴿أَمِ ٱتَّخَذُوٓا۟ ءَالِهَةً﴾ دازجردې په نیولودَالهوسره پس دَنفی دَاتخاذدَولدنه، او ام منقطعه دې اودادَزجرواَنکاردَپاره دې اودااِنکاراونفی راجع ده نشورته،یعني دوئ ژوندي کول نشي کولي،اوانکاراونفی دَاتخاذدَالهو نه نده ځکه چه هغه واقع شویدې اوغوره قول دادې چه انکارمستفاد دې دَهمزی دَ اَم نه نومطلب دادې چه دوئ دَزمکی نه الهه نیولی دی نوآیاهغه په احیاء اوژوندورکولوباندي قادردی؟ نوهرګزندی قادرنولهذا خدایان هم ندی، اوبعض فرمائی چه ام په معنٰی دَهل سره دې اوقیددَ﴿مِّنَ ٱلْأَرْضِ﴾ دَتحقیردَپاره دې اودَتخصیص دَپاره ندې،﴿هُمْ يُنشِرُونَ﴾ داجمله صفت دَالهةً دَپاره واقع شویده اونفی دَدې قیدمراد ده، یعني دوئ خوپیداکول اوژوندی کول نشي کولی اوڅوك چه په احیاء باندي قادرنوی نوهغه اِلٰه هم نشي جوړیدلی.

| لَوْ كَانَ فِيهِمَآ اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا ۚ فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ |
|---|
| كېږي وى په زمكه اسمانونوكښې نورمعبودان(برحق) سيوا د الله تعالى نه نوبرباد شوي به وو دواړه پس پاكي ده الله تعالى لره |
| رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿۲۲﴾ لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ |
| چه مالك دعرش دې دهغه څه نه چه دوئ ئې بيانوي،تپوس نشي كيدې د الله تعالى نه دهغه څه چه هغه ئې كوي |
| وَهُمْ يُسْئَلُوْنَ ﴿۲۳﴾ |
| اودوي مخلوق نه به تپوس كيديشي |

﴿لَوْ كَانَ فِيهِمَآ ءَالِهَةٌ إِلَّا ٱللَّهُ لَفَسَدَتَا﴾ دادليل بيانيږي په نفى د الهوباندي پدى ايت كښې دوه(۲)قسمه تحقيقونه دى، يو لفظي تحقيق او بل معنوى.

**تحقيق لفظي:** (لو)حروف شرط نه دي دادلالت كوى په تلازم دشرط اوجزا باندي اوديته لواستدلاليه هم وئيلى كيږى او ددې استعمالات تقريبا(۷۰) اوياقسمه دى چه (رضى)په شرح دكافيى كښې په تفصيل سره مذكوردى اوفيهما ضمير راجع دې زمكى اواسمانونوته اومراد تنه تول عالم دې كه علوى وى ياسفلى وى اومرادپه فيهما سره في تصرفهماوتدبيرهما دې اوياتنه مراد خلق اوتاثيردې يعني في خلقهماوتاثيرهما نولهذا دااعتراض نه واردېږى چه د الله تعالى دپاره مكان ثابت شو او الله تعالى متمكن في المكان دى(العياذ بالله) الأصفق دې په معنى دغيرسره دې اوپدى كښې دنحويانو اختلاف دې چه الا په منزله دغيردې په اسميت كښې اوكه په نفس معنى كښې چه مغايرت دې، نوبعض نحويان داوائى چه الا اسمى دې اوددې اعراب په مابعدكښې ظاهريږى لكه څرنگه هغه الف لام چه داخليږى په اسم فاعل اواسم مفعول باندي چه هغه اسمى دې او اعراب ئې په اسم فاعل باندي ظاهريږى لكه الضارب،المضروب شو ، ليكن غوره خبره داده چه الاپه معنى اوپه منزله دغيرسره دې اواسمى ندې يعني الاهم وضع شويدې دمغايرت دپاره اوغيرهم دمغايرت دپاره وضع شويدي اوفرق په مينځ ددواړوكښې دادې چه الا دلالت كوى په مغايرت دمابعددماقبل نه نفيا اواثباتا اوغيردلالت كوى په مغايرت دمابعددماقبل نه ذاتا او وصفابغيرداعتبارداثبات اونفى نه.

نوهرکله چه دَدوئ دواړوپه مينځ کښې ااشتراك وو په معنی دَمغايرت کښې نودَدې وجه نه يودَبل په ځائ استعماليږی اوهرکله چه الاّ په معنی دَغيرسره وی نوپده سره مغايرت معتبروی ذاتا،صفتا اومغايرت نفياواثباتا بيانوی معتبرلکه څرنګه چه غيرچه کله په معنی دَالاّ سره شي نوبياپه مغايرت نفيا اواثباتادلالت کوی اومغايرت ذاتا وصفتانوی معتبر، اوعلامه ابن حاجب په کافيه کښې قانون ذکرکړيدې چه اذاکانت تابعة لجمع منکور غيرمحصور. يعني چه کله الاّ واقع شي ورستودَمتعدد نکری غيرمحصورنه نودا به په معنیٰ دَغيرسره وی. نودلته هم الاّ ورستودَمتعددنکری غيرمحصورنه واقع شويدې نوځکه په معنی دَغيرسره دې اوقرينه عقليه پری داده کچرته الاّ پخپلی معنیٰ يعني استثنائی شي نومعنیٰ به فاسده شي اوايت به دال نشي په اثبات دَوحدانيت باندې،ځکه چه دَايت معنی به داشي،لوکان فيهماالهة مستثنیٰ عنهاالله لفسدتا. يعني کچرپه زمکه اواسمان کښې دَاللهﷻ نه مستثنی الهه وی نوفسادبه به راغلی وی، نومقصدداشو چه په تقديردَمستثنی سره به فسادراځی اودَعدم استثناء په صورت کښې به فساد نوی نوتوحيدثابت نشو،نوځکه الاّ دلته په معنیٰ دَغيرسره دې.

**تحقيق معنوی:** داايت دليل دې په نفی دَالهو اوعلامه تفتازانی رحمه الله په شرح العقائدکښې فرمائيلی دی چه پدی ايت کښې اشاره ده برهان تمانع ته اوتمانع ئی عبارت ګرځولی دې دَدينه چه تعلق دَارادې دَاحدالواجبين راشي په حرکت دَزيدپوری اودواجب اخرپه سکون دَزيدپوری يعني يوخدائ به دَزيدحرکت اراده کوی اوبل به ئی سکون اراده کوی اودَفسادنه مراد خروج دَنظام مشاهددې چه دَدينه تعبيرپه عدم لاحقه سره هم کيږی يعني داموجود اومشاهد نظام ختميدل. نوپه شرح العقائدکښې علامه دَدليل خلاصه داده کچرته په اسمانونواوزمکه کښې دوه(۲) خدايان ممکن وی نودَهغوئ په مينځ کښې به تمانع هم ممکنه وه ليکن تالی يعني امکان دَتمانع باطل دې نولهذا خدايان راتلل هم باطل دی اوملازمه عاديه ده يعني دَبادشاهانوعادت پدی جاری دې چه يوبل دَمخالفت کوی،لکه چه مشهورمتل دې چه دوه(۲) فقيران په يوکمبل کښې ځائيږی اودوه (۲)بادشاهان په يوملك کښې نه ځائيږی نوځامخابه يوخدائ يوکارکولو اوهغه بل به نه پريخودلواودَهغه مخالف کاربه ئی کولومثلاً يوبه دَزيدحرکت اراده کولو نوبل به دَزيدسکون اراده کولو، اوچونکه حرکت اوسکون دَزيددواړه بنفسه ممکن دی نودَدې وجه نه تعلق دارادې په هريوپوری راتلی شي،اوهرچه دې بطلان التالی نوهغه داسی دې چه يابه دَ دواړو ارادې پوره کيږی اويابه دَيوخدائ والا اراده پوره کيږی اودَبل والا به نه پوره کيږی،اول صورت کښې اجتماع

دضدینو راځي اوپه دويم صورت کښې عجزدَيوخدائ راځي ځکه چه کوم يوپه خپلې ارادې پوره کولوباندې قادرنوی نوهغه عاجزوی اوعاجزخدائ نشي جوړيدې.

په شرح المقاصد کښې علامه دادليل مزيدپه وضاحت سره بيان کړيدې خلاصه دَهغې داده چه فساد دوه(۲)معنی دی(۱) داموجود اومشاهدنظام ختميدل چه دَدينه تعبيرپه عدم لاحقه سره کيږی(۲) عدم تکون يعني نيشتوالی دَاسمانونو اودَزمکی، اودَدينه تعبيرپه عدم سابقه سره کيږی نودَاول معنٰی په صورت کښې دَاستدلال تفصيل ذکرشو، اودَدويمې معنٰی په صورت کښې دَاستدلال خلاصه داده کچرته الهه متعدد شي نوزمکه اواسمانونه به نوو پيداشوی ليکن تالی باطل دې ځکه چه زمکه اواسمانونه خوموجوددی نومقدم ئی مثل دې،دليل دَملازمې دادې کچرته الله متعدد شي نوتمانع به په ټولوافعالوکښې به ممکن شي حتی که چه په ايجاد دَدې مخلوقاتوکښې به هم ممکنه شي پديشان چه هرواحددَواجبينونه به اراده متعلقه کړی په ايجاد دَزمکی اودَاسمانونوپوری نواوس به دامصنوع يعني زمکه اواسمان يابه په مجموعه دَقدرتين سره وی يعني دَټولوپه شريکه يوقدرت سره وی اويابه دَهريوپه جداجدا قدرت سره وی،اويابه دَيوپه قدرت سره وی اودَبل په قدرت سره نوی، اول صورت کښې لازميږی عجزدَخدايانو ځکه چه قدرت دَهرواحدناقص شونوپه ايجاد کښې محتاجه شوبل ته،اوعاجزخدائ نشي کيدې، اودويم صورت کښې لازميږی توارد دَعلتينومستقلينوپه معلول واحدباندې اودابا طل دې اودريم صورت کښې لازميږی ترجيح بلامرجح اوترجيح بلامرجح هم باطله ده، نومعلومه شوه چه امکان تمانع باطل دې،نولهذا تعدددَ الهو هم باطل شو.

اوعلامه په شرح العقائدکښې دې دليل ته حجت اقناعی وئيلی دې اوملازمې ته ئی عاديه وئيلی ده اودادليل حجت قطعی اوملازمه عقليه نده نودَعلامه رحمه الله مقصددادې چه دَقرآن مجيدداايت فی نفسهاقطعی دې، ليکن په کوم طرز سره پدی ايت کښې استدلال شويدې نوهغه حجت اقناعی دې اوملازمه عاديه ده يعني داځه عقلی اوقطعی خبره نده چه دوه(۲) بادشاهان په يوځائ کښې نشي جمع کيدلی،اودَدوئ جمع کيدل عقلا محال دی، بلکه دامبني ده په عام عرف اوعادت باندې اوچونکه قرآن مجيددَعاموخلکو دَفهم مطابق نازل شويدې، نودَدې وجې نه کله کله په قرآن مجيدکښې دَعاموخلکودَعرف مطابق دليل ذکرشي، اوپدی سره دَقرآن مجيدپه قطعيت کښې څه خلل اونقص نه راځي، اوپه اول صورت کښې يعني چه دَفسادنه مراد خروج دَنظام مشاهدشي، چه تعبيرتنه په عدم لاحقه سره کيږی ځکه ملازمه قطعی اوعقلی نده کچرته مونږه

ملازمه عقلي اوحجت قطعي باندي قول اوکړونودَ فساد يعني عدم لاحقه دوه (۲) صورتونه دي (۱) فسادبالفعل (۲) فساد بالامکان نودَملازمي عقلي کيدلوپه صورت کښ دَ (لفسدتا) نه کوم فساد مراددې، بالفعل اوکه بالامکان کچرته بالفعل مرادوی نوتعدد دَالهو مستلزم ندې فسادبالفعل لره ځکه چه عقلا داحتمال شته دې چه الهه متعدد شي اوفساددې نوی راغلي ځکه چه پدی نظام مشاهدچلولوباندې ئی اتفاق کړې وی، اوکچرته بالامکان فسادمرادوی نوبیاهم پدی سره نفي دَتعدد دالهونه راځي ځکه چه فساد بالامکان خومسلّم دې يعني في الحال خوپدی نظام مشاهدکښ فسادنيشته دې ليکن يوه ورځ به داسي راځي خامخاچه دانظام مشاهد به ختميږي. نصوص پدی ناطق دي لکه الله ﷻ فرمائي: يوم نطوی السّماء کطیّ السجل للکتب. خلاصه داده چه فساد بالفعل فرعه دَتحقق دَتمانع ده اوفرعه دَامکان تمانع نده اووجود دالهو ندې مستلزم عقلاً تحقق دَتمانع لره.

اودويم صورت کښ هم ملازمه عقلي نده ځکه چه په دويم صورت کښ شقوق داسي جوړکړې شويدې چه ايجاد دَزمکي اودَاسمان يابه په مجموع القدرتين سره وی اويابه دَهريوپه جداجدا قدرت سره وی اويابه صرف دَ يوپه قدرت سره وی اودَبل په قدرت سره به نوی، ليکن جواب تنه ممکن دې اونوراحتمالات عقليه پکښ شته دې،پديشان چه اختياردَشق اول اوکړې شي چه ايجاد په مجموعه دَقدرتين سره دې اوکه ته وائی چه عجزراغي نوجواب تنه ممکن دې پديشان چه عجزبه هله راتلوچه هريودَخدايانونه خپل ټول قدرت استعمال کړې وی اوزمکی،اسمانونه په مجموعي دَقدرتينوسره موجودشوی وی ليکن جائزه ده چه هريودَخدايانودې قادروی په قدرت کامله سره بنفسها ليکن په ايجاد کښ دې دومره قدرت استعمال کړې وی چه بل خدائ لره هم دخل پاتی وی يعني هريودې قدرت تام نوی مستعمل کړی، لکه څرنګه چه په افعالو دَعبادو کښ دې، چه الله ﷻ قدرت پکښ هم موثردې اودَبنده خپل قدرت پکښ هم مؤثردې،خوالله ﷻ په افعال دَبندګانو کښ خپل کامل قدرت ندې مستعمل کړې چه دَبنده خپل قدرت لره پکښ دخل پاتي نشي، بلکه دومره اندازی باندې الله ﷻ خپل قدرت استعمال کړيدې چه بنده لره هم دَخپل قدرت استعمالولوموقعه شته دې،لپاره دَدې چه جبرلازم نشي اودَدينه عجزدَالله تعالى نه لازميږي ځکه چه قدرت دَالله تعالى في نفسها کامل دې اوکافي دې په ايجاد دَفعل کښ ليکن عدم استعمال ئی دَپاره دَعدم لزوم جبردې، نوايجاد دَفعل دَعبدپه مجموعه دَقدرتين سره دې اوعجزدَباری تعالى نيشته دې نوهمدغه رنګی دااحتمال عقلي شته دې چه الهه دې متعددشي

اوزمکه اواسمان دي په مجموعه دَقدرتين سره حاصل شوی وی اوعجزځکه نيشته چه هريودې
خپل قدرت کامله نوی استعمال کړې اودغه شان شق ثالث کښ هم يواحتمال عقلی شته دې،
پديشان سره چه ايجاد دَيوخدائ په قدرت سره دې راغلی وی اوکه ته وائی چه ترجيح بلامرجح
راغله نوجواب تنه دادې چه ترجيح بلامرجح نيشته دې ځکه چه ممکنه ده چه اراده دې يودَاحد
الواجبين اوکړی دَايجاد دَمصنوع ليکن قدرت دې خپل نکړی مستعمل بلکه قدرت دَواجب
آخردې مستعمل کړې وی په ايجاد کښ نوترجيح بلامرجح لازمه نشوه ځکه چه دابه هغه وخت
کښ لازميدله چه واجب آخر لره بالکل دخل نوی، اوداهم ممکنه ده چه احدالواجبين دې په ارادې
خپلی سره تفويض دَتکوين کړې وی واجب آخرته اوداهم ترجيح بلامرجح نده نوخلاصه داده چه
دَاستدلال په دواړو صورتونو کښ ملازمه عقلی نده بلکه عادی ده يعني عادت پدی جاری دې چه
په مابين دَحاکمينومستقلينوکښ تمانع واقع کيږی، نوپه ايت کريمه کښ حجت اقناعی دې
اوقطعی ندې.

علامه خيالی رحمه الله نورتوجيهات ذکرکړيدی چه دهغی په بنياد ملازمه عقلی اوحجت قطعی
ګرځيږی، خلاصه دهغی داده چه الهة نه مراد صانعين مؤثرين بالفعل دې اومطلق صانعين ندې
مراد اوقرينه پری داده چه په ايت کښ﴿فِيهِمَآ ءَالِهَةٌ ﴾راغلی دې اوفيهما ظرف لغونشي ګرځيدې
ځکه چه داخبرمقدم دکان دې اوجارمجروربلامتعلقه خبرنه واقع کيږی نومتعلق ئی مقدردې
اومقدربه دَافعال عامونه نشي راتلی چه کائن وغيره دې ځکه چه دامستلزم دې تمکن
اوتحيزدَواجب تعالی لره په ارض اوسمآء کښ اوالله تعالی دَدينه منزه دې،نومتعلق به ئی افعال
خاصونه وی چه مؤثرة دې په قرينی دَمقام سره نوپدی تقديرسره استدلال داسی شو،کچرته
متعددشي په زمکه اواسمان کښ صانعين مؤثرين نولفسدتا(اوفسادنه مراد عدم تکون يعني
عدم سابقه دې) ليکن تالی باطل دې نومقدم ئی مثل دې، دليل دَملازمی دادې چه تاثيردَصانعين
به خالی نوی يابه علی سبيل التوارد وی يعني هريوبه مستقل موثروی اوداصورت باطل دې ځکه
لازميږی توارد دَعلتين په معلول واحده باندې اوياصرف يومؤثروی اوبل به نوی نوترجيح
بلامرجح لازميږی نوبالضرور دواړه صانعين به اثرکوی لاعلی سبيل التوارد، اودَدې دپاره
دوه(٢)صورتونه دی(١) مجموعه دَصانعينودې مؤثره وی په مجموعه دَزمکی اواسمانونوکښ
(٢) دواړه دې مؤثروی علی سبيل التوزيع والتقسيم يعني يودې مؤثروی په ايجاد دزمکی کښ
اوبل دې مؤثروی په ايجاد دَاسمان کښ نوپه هرتقديرتمانع ممکنه ده ځکه چه شان دَالهه نه ايجاد

مستقله دي اوامكان دَتمانع فى الايجاد مستلزمه ده عجزلره اوعاجزخوصانع دعالم نشي گرځيدلی،نواول صورت کښ يعني علی سبيل الاجتماع صورت کښ مجموعه دزمکی اوداسمان به په طريقه دَسلب کلی سره موجوده نشي ځکه چه مجموعه دَدواړو صانعينو علت وو دَمجمعي دَارض اوسماء دپاره نوکله چه تمانع راشي نويوبه خامخاعاجزه شي موجود دَعلت منتفی شواوپه انتفاء دَجزء سره انتفاء دکل راځی نوکل علت منتفی شواوپه انتفاء دَعلت تام سره معلوم تام منتفی کيږی نوځکه به فسادراغلی وو.

اوپه صورت ثانی يعني علی سبيل التوزيع کښ به په طريقه دَسلب جزئی سره احدهمايعني يودَزمکی اودَاسمانونونه به موجودنشي ځکه چه يابه علت الارض عاجزوی اويابه علت السماء نوچه کوم يوعاجزشو نومعلول دَهغه موجودنشي اوتالی خوباطل دي بالبداهة ځکه چه فسادنيشته نومقدم يعني تعدد دَالهه هم باطل شو(ازافادات بحرمارتونګی رحمه الله).

ددينه علاوه علامه خيالی اوامام رازی نورتوجيهات هم کړيدی چه دَخوف تطويل نه ئی پريدو من شآء فليطالع ثمه.

که څوك اعتراض اوکړی چه پدی ايت سره استدلال صحيح ندي ځکه چه مقصود اثبات دَتوحيددي اوانتفاء دَتعدد ده مطلقا په دليل دَانتفاء دَفساد سره مطلقا يعني بغيردَتخصيص دَيوی زمانی نه اودلته اثبات دَتوحيداوانتفاء دَتعدد مطلقانه کيږی، ځکه چه کلمه دَ لو نحاتو وضع کړيده دَپاره دَانتفاء ثانی په ماضی کښ دَوجی دَانتفاء اول نه په ماضی کښ لکه داقول شو لوجئتنی لاکرمتك نودَايت مطلب داشو کچرته الهه په زمانه ماضی کښ متعدد وی نوفساد به راغلی وو نوتعدد د الهو په زمانه ماضی کښ منتفی شولواوحالانکه مقصود تعدد دَالهوانتفاء په مطلق زمانه کښ وو، نودَاعتراض خلاصه چه مقصود اومطلوب دوه(۲) امرين دی(۱)انتفاء اول دَوجی دَانتفاء ثانی نه(۲) بغيردَتخصيص نه په يوی زمانی پوری اودلته دا دواړه مقاصد نه حاصليږی جواب دادي چه دکلمي دَ لو دپاره دوه (۲)استعماله دی(۱) يواستعمال دَنحاتودي اودويم(۲) استعمال دَمستدلينودي نوپه حسب دَاستعمال اول سره کلمه دَ لو وضع شويده دَانتفاء ثانی دپاره په زمانه ماضی کښ دَوجی دَانتفاء اول نه په زمانه ماضی کښ اوپه حسب دَاستعمال ثانی سره لو وضع شويدي دَانتفاء اول دَپاره مطلقا دَوجی دَانتفاء ثانی نه مطلقا لکه وئيلی کيږی په استدلال دَحدوث دَعالم کښ: لوکان العالم قديما لکان غيرمتغير.

اوکچرته لودلالت په تعين دزمانې ماضي باندي اوکړي نوبیاهم مقصود اومطلوب پوره کیږي ځکه چه په زمانه ماضیه کښ چه الهه متعدد نشو نوپه استقبال کښ هرګزنشي متعدد کیږي ځکه چه په زمانه ماضیه کښ نوی اوپه استقبال کښ موجود شو نوبالضروره به حادث وی، ځکه چه مسبوق بالعدم دي اوحادث واجب نشي کیدلی

اوکه بیاڅوك اشکال اوکړي چه پدې ایت کښ خونفي دالهو راغلیده یعني الهة جمع ذکرشویده اودتثنیي نفي نده راغلی نوممکنه دي وی داخبره چه الهه دي نوی بلکه دوه(۲)خدایان دي وی نوبیاهم توحید ثابت نشو.

علامه خیالي رحمه الله دي دپاره جواب کړیدي چه مرادپه الهة سره جمع حقیقي نده بلکه جمع لغوي مراد ده اوجمع لغوي مطلق اجتماع دیوشي دبل شي سره ته وئیلی کیږي، نوځکه دجمع لغوي اطلاق په مافوق الواحد باندي کیږي لیکن حضرت والدصاحب(نورالله مرقده وبردمضجعه) په نیزغوره جواب دادي چه الهة موصوف دي او الاّ په معنی دغیرسره صفتي دي نوالاالله په معنی دغیرالله سره صفت دي اومقصود بالحکم(نفیا، اثباتا)هغه صفت وی چه داقیدوی دموصوف ، نولهذا مقصود نفي دغیرالله شوه یعني لوكان فیهما غیرالله لفسدتابرابره خبره ده که یووي اوکه دوه یازیات، (والله اعلم بالصواب).

﴿فَسُبْحَانَ اللَّهِ﴾داانتیجه ده دماقبل دلیل یعني الله تعالی دشریکانونه پاك دي ﴿لا یسئل عما﴾ اثبات دتوحیدنه ورستوپدی ایت کښ الله تعالی خپل کمال قدرت بیانوی یعني چه هرکله داثابته شوه چه مالك حقیقي، متصرف حقیقي تن تنها الله تعالی دي نوچاته دهغه په افعالوباندي اعتراض حق ندي حاصل اونه څوك داجرأت کولی شي لکه څرنګه ددنیامجازی بادشاهان اومالکان چه دغلطۍ نه محفوظ ندي اودتجانس(هم جنس کیدلو)باوجود رعیت اوغلامان په هغوئ باندي داعتراض کولوجرأت نه کوی نودومره لوئ اوحقیقي بادشاه باندي به څرنګه داعتراض کولوحق چاته حاصل شي چه افعال دهغه خالي هم ندي دحکمت نه. (والتفصیل فی الکبیر)قرطبي رحمه الله فرمائي داایت دماقبل مضمون تاکیددپاره دي، چه نصاری ؤبه عیسی علیه السلام ته اله وئیلویهودیانوبه عزیزته خدائ اودخدائ بچی وئیلو اومشرکانوبه دملائکوعبادت کولونوالله تعالی ددوئ عجزبیان کړو چه ددوئ نه به دخپلواعمالوپه باره کښ پوښتنه کیږي اوچانه چه پوښتنه کیدي شي نوهغه

اله اوخدائ نشي جوړی دي. بيّن هٰذا انّ من يَسال غدا عن اعماله كالمسيح والملائكة لايصلح للالٰهية(قرطبی).

﴿وَهُمۡ يُسۡـَٔلُوۡنَ﴾ څکه چه دوئ تول مملوك اوبندګان دالله ﷻ دي نو الله ﷻ به د دوئ نه د دوئ اعمالو په باره کښې ضرور پوښتنه کوی او داسی ذکر په سورة الحجر ايت نمبر (۹۲) کښې هم دی.

| اَمِ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اٰلِهَةً ؕ قُلۡ هَاتُوۡا بُرۡهَانَكُمۡ ۚ هٰذَا ذِكۡرُ مَنۡ مَّعِىَ |
|---|
| آیانیولی دی دوئ سیوا د الله ﷻ نه نور معبودان، نه اوایه چه راوړئی تاسو خپل دلیل. دا وعظ د هغه چادې چه څما ملګری دی |
| وَذِكۡرُ مَنۡ قَبۡلِىۡ ؕ بَلۡ اَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ۙ الۡحَـقَّ فَهُمۡ مُّعۡرِضُوۡنَ ۝ وَمَاۤ اَرۡسَلۡنَا |
| او وعظ د هغه چادې چه څمانه مخکښې دی بلکه ډیر د دې خلکو نه، نه پوهیږي په حق باندې نو دوئ مخ ګرځوي. او نه دې لیږلی مونږ |
| مِنۡ قَبۡلِكَ مِنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا نُوۡحِىۡۤ اِلَيۡهِ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّاۤ اَنَا فَاعۡبُدُوۡنِ ۝ |
| مخکښې ستانه هیڅ رسول مګر وحي کوله مونږ هغه ته بیشکه چه نیشته حق دار د بندګئ سیوا زمانه پس خالص څما بندګی کوئ |

﴿اَمِ اتَّخَذُوۡا﴾ حضرت شیخ رحمه الله فرمائی چه دا د بعد عهد دوجی نه اعاده د مطالبی د دلیل ده د مشرکانو نه او دا اعاده د باره د مبالغی ده په توبیخ کښې او یاداچه په مخکښنی ایت نمبر (۲۱) کښې مطالبه د دلیل عقلی وه او په دی ایت کښې مطالبه د دلیل نقلی ده نو مراد په ﴿قُلۡ هَاتُوۡا بُرۡهَانَكُمۡ﴾ سره پخپلی دعوی باندې دلیل نقلی پیش کولو مطالبه ده. ﴿هٰذَا ذِكۡرُ مَنۡ مَّعِىَ﴾ هذا سره اشاره ده وحی الهی، قرآن ته او ذکر نه مراد جزا سزا او دلائل او برهان قاطعه دي په توحید او په رد د شرك باندې یعني پدی وحی الهی کښې څما د امت د پاره توحید باندې دلائل دی (ابوسعود) او په ﴿وَذِكۡرُ مَنۡ قَبۡلِىۡ﴾ سره مراد حالات د مخکښنو امتونو دی چه چا ایمان راوړی وو نجات ورته میلاؤ شوی وو او چا چه کفر او شرك کړي وو نو هلاك شوی وو، او یاداچه مشار الیه د هذا ذکر من معی دي او مراد په ذکر من معی سره قرآن دې او په ذکر من قبلی سره مراد تورات، انجیل وغیره دې، نو د ایت مطلب

دادي چه دا قرآن او دَدینه مخکښی کتابونه ستاسو مخی ته موجود دی نو اوګورئ په کوم یو کتاب کښ تعدد دَالهو ذکر دې؟؟ بلکه په دی ټولو کښ بیان دَتوحید شویدې.

**فائده**: کله چه څوك دعوی اوکړی نو په مدعٰی باندي یا دلیل عقلي یا دلیل نقلي او یا دلیل وحی ذکرکوی، نو په ایت نمبر (۲۱) کښ ددوئ نه مطالبه وه دَدلیل عقلیو دَدې ایت په اولی جملی کښ مطالبه دَدلیل نقلی ده او په اخری جمله کښ مطالبه دَدلیل وحی ده.

﴿بَلْ أَكْثَرُهُمْ﴾ دا اضراب دې یعني هرکله چه په شرك باندي دوئ سره هیڅ قسم دلیل نو او دَدوئ دعوی مکابرةً او عناداً وه نو الله ﷻ په کلام کښ انتقال اوکړو دې خبرته چه دوئ سره بحث مباحثه کولو کښ څه فائده نیشته دې ځکه چه په دوئ کښ اکثرکسان حق دَسرنه پیژنی نه، او دَحق او دَباطل په مینځ کښ فرق نه کوی، او دا اضراب او انتقال دَیو دلیل نه بل دلیل ته نه دې، (ابوسعود) او دَحق نه مراد توحید او قرآن دې.

﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا﴾ دا تعمیم بعد التخصیص دې چه دا توحید صرف دتورات، انجیل او دَقرآن مسئله نده بلکه ټولو پیغمبرانوته دَدې حکم شوی وو، او دا دلیل نقلی اجمالی هم دې دَټولو انبیاء کرامونه.

| وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ؕ بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُوْنَ ﴿۲۶﴾ |
|---|
| او دوئ وائی چه نیولي دې الله ﷻ اولاد پاکی ده هغه لره، (دَاولاد نیولونه) بلکه دوئ بندګان دی عزت ورکړې شوی (معزز). |
| لَا يَسْبِقُوْنَهٗ بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِاَمْرِهٖ يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۷﴾ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ |
| نه وړاندې کیږی دده نه (الله ﷻ) په وینا کښ او دوئ په حکم دَالله ﷻ سره عمل کوي، خبردې په هغه (حالاتو) چه وړاندې دَدوئ دی |
| وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يَشْفَعُوْنَ اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى وَهُمْ |
| او په هغې چه ورستو دَدوئ دی او شفاعت نه کوي دوئ مګر صرف هغه چا لره چه راضي وي تنه الله ﷻ او دوئ |
| مِّنْ خَشْيَتِهٖ مُشْفِقُوْنَ ﴿۲۸﴾ وَمَنْ يَّقُلْ مِنْهُمْ اِنِّيْٓ اِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ |
| دَوجې دَعظمت دَالله ﷻ نه یره کوونکي دی دَهغه نه، او چا چه اوئیل دَدوئ نه چه بیشکه څه هم معبود یم سیوا دَالله ﷻ نه |

| فَذٰلِكَ | نَجْزِيهِ | جَهَنَّمَ ۚ | كَذٰلِكَ | نَجْزِي | الظّٰلِمِينَ ﴿۲۹﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس دغه کس له | به سزا ورکوو مونږ | جهنم | همدغسی | سزا ورکوو مونږ | ظالمانو ته |

﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ ﴾داشکوه اوزجردي په نسبت کولودولدباندي الله ﷻ ته،اوددي جملی عطف یاپدی قریب ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا ﴾په مضمون باندي دي اودآیت مقصد دادي چه مسئله توحید ټولوانبیاء کراموبنه په وضاحت سره بیان کړي وه لیکن دهغی باوجود دوئ الله ﷻ ته نسبت دولداوکړو اویاعطف ددي په مضمون د﴿أَمِ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ ﴾نودابه په محل داستفهام کښ شي یعني آیا دوئ داخبره کوی چه الله ﷻ ولدنیولی دي؟؟ بغوی وغیره وئیلی دي چه داایت دخزاعه په باره کښ نازل شویدي چه هغوئ به ملائکوته بنات الله وئیل لیکن زیاته صحیح خبره داده چه ایت عام دي اوشامل دي ټولوهغه چاته چه الله ﷻ ته به ئی دولدنسبت کولوبلکه دحضرت والدصاحب رحمه الله رائ داده چه ولدپه معنی دنائب سره دي اوداشامل دي هغه چاته چه دالله ﷻ نه علاوه اولیاء کراموته دقدرت دتصرف قائله دي.

﴿سُبْحَـٰنَهُۥ﴾داجواب دشکوه اوددوئ دعقیدي ردکیږی په اوه(۷) وجوه سره،دا اوله وجه ده چه ﴿سُبْحَـٰنَهُۥ﴾یعني ولدخونقص دي ځکه چه ولدمستلزم دي ترکیب لره اوترکیب مستلزم دي حدوث اوامکان لره(لکه چه باربارتیرشویدی) اوالله ﷻ دعیب اونقص نه پاك دي نوځنګه به ورله ولدراشي.

﴿بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُونَ ﴾عبادٌ خبردي دمبتدا مقدری دپاره یعني بل هم عباد اوداپه دویمی وجی سره جواب دي، یعني داعباد اوبندګان دی او اولاد ندی ځکه کچرته دوئ اولاد وی دالله ﷻ نودوئ به هم دالله ﷻ سره مشابه وی په وجوب اوعدم احتیاج کښ اوبندګی به ئی نه کولی ځکه چه بندګی علامه دعجزده یعني بنده عاجزوی اودوئ خوبندګی کوله یعني دالله ﷻ بندګان وو نومعلومه شوه چه اولاد نوو.

﴿مُّكْرَمُونَ﴾یعني دبندګئ اوعبادت دوجی نه الله ﷻ دوئ ته عزت اوشرافت ورکړیدي، اوپدیکښ اشاره ده چه قربت دالله ﷻ په عبادت سره حاصلیږی.﴿لَا يَسْبِقُونَهُۥ بِالْقَوْلِ ﴾ دادریم

وجي سره جواب دې يعني ترهغه وخته پورې دوئ وينانه کوي ترڅوچه الله ﷻ نوی کړې اوياورته دالله ﷻ دَطرف نه ورته امرنوی شوی،لکه څرنگه چه فرمان برداراومؤدب غلام اوخادم وی اويادَايت مقصد دادې چه دَځومره خبره ورته کړې شوی وی نودهغی نه زياته نه کوی هغه خبره پوره پوره کوی (حداد) اوداکنايه ده دَ مخالفت نه کولو نه په اقوالو(وينا)کښ.

﴿وَهُم بِأَمْرِهِۦ يَعْمَلُونَ﴾داځلورمی وجی سره جواب دې يعني دوئ دَالله ﷻ دَحکم پابندې اودَهغه دَحکم مخالفت نه کوی په عمل کښ لکه څرنگه چه ئې مخالفت نه کوی په قول(وينا)کښ.

﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ﴾داپنځمی وجی سره جواب دې يعني دوئ ته دَخپلوټولو حالاتوعلم نيشته دې بلکه دَدوئ په ټولوحالاتوباندې عالم الله ﷻ دې اوددوئ هم پدې باندې يقين دې اودايقين ددوئ دَپاره دَانتهائ عاجزئ اوکمال عبوديت ذريعه ده.اودَ﴿مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ﴾نه مراد راتلونکی او﴿وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ نه مرادتيرشوی حالات دی اويادَ﴿مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ﴾نه مراد بعدالتخليق اودَ ﴿وَمَا خَلْفَهُمْ﴾نه مراد قبل التخليق حالات دی، بهرتقديرمقصد دَايت دادې چه دوئ دَالله ﷻ دَعلم اوقدرت ماتحت دې اوڅوك چه تحت القدرت وی نوهغه معبودنشي گرزيدلی.

﴿وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا﴾داپه شپږمی وجی سره جواب دې چه دَدوئ دَالله ﷻ نه دَيرې اودَرعب داحال دې چه څوك دَالله ﷻ خوښ نوی نودَهغه سفارش هم نشي کولی، صرف دَهغه چاسفارش به کوی څوك چه دَالله ﷻ خوښ وی.﴿لِمَنِ ٱرْتَضَىٰ﴾نه مراد مؤمن دې اوشفاعت نه مراد يااخروی شفاعت دې اوياتنه دنيوی شفاعت مراددې چه هغه استغفاردې.

﴿وَهُم مِّنْ خَشْيَتِهِۦ﴾داپه اومی(۷)وجی سره جواب دې يعني شفاعت به کوی خودهغی باوجود دَالله ﷻ دَهيبت دَوجی نه يريږی مِن تعليليه دې او ﴿مُشْفِقُونَ﴾دَاشفاق نه دې اوفرق په مينځ دَخشيت اواشفاق کښ دادې چه خشيت هغی يری ته وئيلی کيږی چه دَتعظيم اودَچادعظمت دَوجی نه وی اودَدې وجی نه دَعلماؤخوف ته خشيت وئيلی شويدی لکه الله ﷻ فرمائی(انما يخشي الله من عباده العلمآء) اواشفاق وئيلی کيږی هغه خوف ته چه اميددَرحم اواعتناء ورسره وی،

نوکچرته اشفاق متعدی شي په مِن سره نودَخوف معنی به پکښې ظاهره وی اوکه په علی سره متعدی شي نودَرحم او اعتنا معنی به پکښې ظاهره وی.

﴿وَمَن يَقُلْ مِنْهُمْ﴾ داتفریع ده په ماقبل ټولوجوهو دَجواب شکوی باندي، اودَجمهورو په نیزدا ایت محمول دې په فرض اوتقدیرباندي، ځکه چه ملائك او انبیاء کرام معصوم دی اودَهغوی نه دعوی دَالوهیت نده متصوره نودَایت مقصددادې کچرته بالفرض والتقدیرپه انبیاء کرامو علیہم السلام اویاپه ملائکو کښې چادَالوهیت دعوی اوکړه نودهغه ټهکانه په جهنم وی اوداسی مضمون په سورة النسآ ایت نمبر(۱۷۲)کښې هم دې، اودَحضرت قتادہ رحمہ اللہ نه مروی دې چه دَ ﴿وَمَن يَقُلْ﴾ نه مراد ابلیس دې، چه دې دَملائکونه ووحکماً، اوغرور اوتکبرئی اوکړو اوخلکونه ئی دَخپل عبادت دعوت ورکول شروع کړل، نوپه دې توجیه کلام محمول ندې په فرض باندي.

| |
|---|
| اَوَلَمْ يَرَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنٰهُمَا ۭ وَجَعَلْنَا |
| آیانه ګوري هغه کسان چه کافران دي چه بیشکه اسمانونه اوزمکي دواړه بندوو نوپرانستل مونږ دواړه.اوپیداکړیدي مونږ |
| مِنَ الْمَاۗءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ ۭ اَفَلَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ وَجَعَلْنَا فِي الْاَرْضِ رَوَاسِيَ اَنْ تَمِيْدَ بِهِمْ ۠ |
| دَاُبونه هرځیزژوندي، آیاپس دوی ایمان نه راوړي. اوپیداکړیدي مونږ په زمکه کښې کلك غرونه چه اونه خوځي په دوی باندي |
| وَجَعَلْنَا فِيْهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَّعَلَّهُمْ يَهْتَدُوْنَ ۝ وَجَعَلْنَا السَّمَاۗءَ سَقْفًا |
| اوجوړکړیدی مونږ پدي زمکه کښې فراخي لارې دَدي دَپاره چه دوی مقصدته اورسي، اوجوړکړیدي مونږ آسمان چت |
| مَّحْفُوْظًا ښ وَّهُمْ عَنْ اٰيٰتِهَا مُعْرِضُوْنَ ۝ وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ |
| ساتلی شوی دَپریوتلونه. اودوی دَنخودَهغي نه مخ اړونکی دی.اوالله ﷻ هغه ذات دې چه پیداکړې ئ ده شپه اوورځ |
| وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۭ كُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ۝ |
| اونمر اوسپوږمۍ. داټول په خپل مدارکښې لامبو وهي. |

﴿اَوَلَمْ يَرَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا﴾ دادریم عقلی دلیل دې په توحیدباندي ﴿اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ مراد تنه نوعین دی یعني نوعه دَاسمانونو اونوعه دَزمکی اوددې وجي نه ضمیرورته هم دَتثنیی راجع

شويدې په﴿كَانَتَا﴾ كښ﴿رَتْقًا فَفَتَقْنَاهُمَا﴾ رتقامصدردې ځكه تثنيه ندې ذكرشوى اوحمل ئى په سموات اوارض باندې يامبالغةً دې اوياپه اعتبارد ذى مقدرسره دې اى ذاتى رتق اورتق په اصل كښ وئيلى كيږى التحام(ضم)اوميلاؤته كه خلقةً وى ياصنعة اوفتق وئيلى كيږى نصل(جدائى) اوكولاؤ ولوته،دَدې ايت تفسيرونه متعدد منقول دى ليكن غوره قول پكښ درى(۳)دى يو(۱)داچه دَرتق نه مراد يوجسم والا(متصلا بعضهابعض(ابن كثير)) كيدل دى اوفتق نه مراد جداجدا كول يعني ټول اسمانونه يوجسم وو، اوټولى زمكى يوجسم وى نوالله ﷻ جدا جداكړل او اوه(۷)اوه(۷) تنه جوړكړل.

(۲)دويم تفسيردا دې چه رتق په معنٰى دَبنديدلوسره دې اوفتق په معنٰى دَفتح يعني كولاؤولوسره دې يعني ټول اسمانونه بندوو باران تنه نه وريدلواوزمكه بنده وه بوټى تنه نه راوتلونو الله ﷻ كولاؤكړل چه دَاسمان نه ئى باران را اوورولو اودَزمكى نه ئى بوټى رااويستلو،اوكه څوك داسوال اوكړى چه دَزمكى او اسمان دَرتق حالت خوچاندې كتلى نوځرنګه به استفهام صحيح شي؟ نوعام مفسرينوتنه پديشان جواب كړيدې چه دَ رؤيت نه مرادپدى ځائ كښ رؤيت قلبى دې يعني علم تنه مراددې چه ثابت دې په دليل نقلى سره چه كتب سماويه قبليه دې اوثابت په هغى سره په منزله دَمشاهدوى نوځكه دَرؤيت لفظ استعمال شو، اواستفهام لپاره دَتقريردې،اوحضرت تهانوى رحمه الله فرمائى چه دَرؤيت نه مراد مشاهده هم ده اودليل عقلى اونقلى مراددې ځكه چه فتق امرمشاهددې،اورتق په دوه قسمه دې يورتق حالى اوبل رتق ابتدائى نورتق حالى هم مشاهددې اورتق ابتدائى هغه په دليل عقلى اونقلى سره ثابت دې ځكه چه فتق مشاهد حادث دې اوحادث وئيلى كيږى مسبوق بالعدم ته نوفتق به مسبوق بعدم الفتق وى، اوصدق دَعدم الفتق په دوه طريقوسره دې(۱)دَسرنه محل دَفتق نوى (۲) محل وى خوفتق نووبلكه رتق وو،نوقسم ثانى ثابت دې په دليل نقلى سره يعني كتب سماويه سابقه سره (۳)اودريم تفسير علامه آلوسى رحمه الله داكړيدې چه رتق په معنٰى دَمعدوم سره دې اوفتق په معنٰى دَالحادث سره دې

﴿وَجَعَلْنَا مِنَ ٱلْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ﴾جعل يابسيط دې په معنى دَخلق سره،نو﴿كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ﴾ ورله مفعول دې اوجارمجرور متعلق دې په جعل پورى نودَايت معنى به داشي خلق من الماء كل شئ حى، يعني هرژوندې ځيزمونږ دَابونه پيداكړيدې اوياجعل مركب دې په معنى دَصيّرسره،

﴿كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ ﴾ ورله مفعول اول دي اوجار مجرور متعلق دي مقدرپورى چه مخلوق لفظ دي،نومعنى به ئى داسى شي صيرنا كل شئ مخلوقا من الماء يعني گرزوليدي هرژوندي څيزمونږ مخلوق داوبونه، اوهرڅيز داوبونه مخلوق كيدل ياحدوثاً دى لكه حشرات الارض چه داد رطوباتونه پيداكيږى او اونى بوټى شوچه په ابوسره پيدا كيږى، اويابقاءً دى لكه نورحيوانات شو اوكوم عمل چه په كثرت سره كيږى اواحتياج ورته ډيروى نودهغه څيزدډي عمل كوونكى اومحتاج دپاره په منزله دماده تخليق دي لكه انسان چه په اكثراموروكښ جلتى كوى نودډي وجه نه اوئيلى شوخلق الانسان من عجل(سورة الانبياء) نودغه شان حيوانات هم تالاش داوبوپه كثرت سره كوى اواحتياج ئى اوبوته شديدوى نودډي وجه نه دحيواناتودپاره ماده تخليق اوبه اوئيلى شوى. اوبعض علماء فرمائى چه﴿وَجَعَلْنَا﴾په معنى د حفظنا سره دي يعني دژوندي څيزد ژوند حفاظت مو په اوبوسره كړيدي، اوبعض فرمائى چه د﴿ٱلْمَآءِ﴾نه مراد نطفه دمآء ده يعني هرژوندي شي داوبودنطفى نه پيداكړيدي اودډي دواړوتوجيهاتوپه اعتبارحكم اكثرى دي، اولفظ دكل تغليبا ذكرشويدي، ځكه چه شاذ ونادراشيآء به داسى وى چه دهغوئ دژوند دحفاظت دپاره داوبوضرورت نوى اوماده تخليق كښ ئى دنطفى كردارنوى، اوقليل په حكم دمعدوم كښ شمارلى كيږى نوځكه كل شئ حى اوئيلى شو.

﴿وَجَعَلْنَا فِى ٱلْأَرْضِ رَوَٰسِىَ ﴾رواسى درَسَانه دي په معنى دثبت سره،اوداصفت دي دجبالاً موصوف محذوف دپاره،او ﴿تَمِيدَ﴾دميدنه دي په معنى داضطراب اوخوزيدلوسره اودډينه مخكښ لفظ دلا اويالفظ دكراهية مقدردي اود﴿فِيهَا﴾ په ضمير كښ دوه(٢)احتمالات دى(١)چه راجع دي ارض يعني زمكى ته (٢)اويا راجع دي﴿رَوَٰسِىَ﴾ته دادويم احتمال زيات غوره دي او ﴿فِجَاجًا ﴾جمع دفج ده ددوه(٢)غرونوپه مينځ كښ فراخى لارى ته وئيلى كيږى او﴿سُبُلًا﴾ بدل دي د﴿فِجَاجًا﴾نه اوداتفسيردي﴿فِجَاجًا﴾ دپاره اوداقانون دنحويانوچه مقصود بالحكم بدل وى اومبدل منه په حكم د تنحى اوترك كښ وى اكثرى دي كلى ندي اوپه سورة نوح آيت نمبر(٢)كښ سُبُلاً مقدم اوفجاجاًمؤخرذكرشويدي،فرق په مينځ ددواړو كښ دادي چه دلته په نفس وسعت

اودکشادګئ دَلاروباندي،تنبیه ده چه دالاری وسیع اوفراخی دی اوهلته تنبیه دَدې وصف په اصالت اوخلقی کیدلوباندي ده، چه داوصف دَوسعت وصف اصلی اوخلقی دې، یعني هلته بیان دَابهام دې ځکه چه وصف په دوه(۲)قسمه دې اصلی اوعارضی، نوکله کله وصف عارضی وی لکه وئیلی کیږی مررت بوحشي القاتل حمزة،نو القاتل حمزة وصف دَوحشيﷺ دَپاره اصلی ندې ځکه چه په وخت دَمرورکښې حضرت وحشيﷺ قال دَحمزةﷺ نوو. نوپه سورة نوح کښې دَدې ابهام رفع اوبیان دې چه دَلاری په کشادګئ سره متصف کیدل داخلقةً اواصلی دې اوعارضی ندې

﴿لَّعَلَّهُمۡ يَهۡتَدُونَ﴾ دَهدایت نه مراد یاظاهری هدایت دې یعني خپل مقصداومنزل ته رسیدل، یعني کچرته پدی غرونوکښې لاری نوی اوتول سیدهاسیدهاکمری اوبندبندوی نودَملك خلك به دَنورملکونوسره نشومیلاویدلی اومنزل ته به څوك نشورسیدلی اویادَهدایت نه مراد شرعی هدایت دې یعني پدی سره دلیل اونیولی شي په توحید اوقدرت دَاللهﷻ باندي

﴿وَجَعَلۡنَا ٱلسَّمَآءَ سَقۡفٗا﴾ اسمان ته سقف په اعتباردَزمکی سره وئیلی شویدی،اودَ﴿مَّحۡفُوظٗا﴾ ډیرمفهومات بیان کړې شویدی،(۱)یوداچه محفوظ دې دَسقوط یعني غورزیدلونه لکه په سورة الحج ایت نمبر(۶۵)کښې دې(۲)دویم داچه محفوظ دې دَزړیدلو اودَتغیرنه تروخت معلوم پوری، دامروی دې دَقتادهﷺ نه (۳)اودریم داچه محفوظ دې دَشیاطینونه په شهاب ثاقب سره لکه په سورة الحجرایت نمبر(۱۷)کښې دی (۴)اوڅلورمه معنی داده چه محفوظ دې دَشرك اومعاصی نه یعني په اسمان کښې دګناهونو والا مخلوق نیشته.

﴿وَهُمۡ عَنۡ ءَايَٰتِهَا﴾ دَدینه مراد نمر،سپوږمئ،ستوری اودهغی مختلف احوال اوشپه،ورځ اودهغی انقلابات چه دلالت کوی په وجود اووحدت دَصانع اوپه کمال قدرت دَهغه باندي،اواعراض نه مراد عملی اعراض دې یعني سوچ اوفکرنه کول

﴿وَهُوَ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلَّيۡلَ﴾ داتفصیل دَدې مخکښې ایت دې اوپه تقدیم دَلیل کښې اشاره ده چه شپه مقدمه ده په تخلیق کښې،﴿كُلّٞ فِي فَلَكٖ﴾ تنوین عوض دَمضاف الیه نه دې ای کلهم اوفلك په اصل کښې هرمستدیریعني ګول څیزته وائی دَجمهور اهل سنت والجماعت په نیزدَفلك نه مرادپدی ځائ کښې دَاسمان نه لاندې مدارونه دې چه نمر،سپوږمئ اوستوری په هغی کښې ګردش کوی اوګول چکرلګوی، اوجمهوردَدینه

تعبیرکوی په موج مکنون یعني رابندکړې شوی اوراګیرکړې شوی موج. اوفلك جنس کلي دې چه ماول دې په تاویل دَجمعی سره نومطلب دادې چه دَهریودَپاره خپل خپل مداردې.لکه وئیلی شي کساهم الامیرحلة، نودامطلب ندې چه یوه حلة، امیرتولوته واچوله.بلکه مطلب دادې چه هریوکس ته ئی خپله خپله حلة واچوله.نودغه شان دلته هم مطلب دادې چه دَهریودَپاره خپل خپل فلك اومداردې اودامطلب ندې چه دَټولودَپاره يك يومداردې، او ﴿يَسْبَحُونَ﴾دَسبح نه دې اوسبح په لغت کښ وئیلی کیږی لامبووهلوته پدیکښ اشاره ده چه مدارونه پشانته دَسمندردې اونمر.سپوږمۍ اوستوری په منزله دَلامبوزن دی یعني داسیاری په خپل مدارونوکښ دَلامبوزن پشان په تیزئ اواسانتیا سره ګردش کوی، اوضمیردَجمعی راجع دې نمر،سپوږمۍ اوستوروته اودوئ (مرجع) متعدد دې نوځکه ضمیرهم دَجمعی راوړی شو ، اوبعض فرمائی چه ضمیردَجمعی راجع دې صرف شمس یعني نمرته اوچونکه مطالع دَنمرمتعدددې نوځکه ضمیرورته دَجمعی راجع شو.لیکن اوله توجیه زیاته غوره ده اوهرکله چه دَدوئ دافعل پشانته دَفعل دَذوی العقول وو نوځکه صیغه دَذوی العقول راوړی شوه.

**فائده**: دَدینه ایت نه معلومیږی چه داټول مشاهد کائنات په حرکت کښ دی اودَهریودَپاره خپل یومداردې چه هره سیاره په خپل مدارکښ حرکت کوی اودَهغی نه بهرته نه اوځی اودَهریوحرکت مستدیردې،دَنمردَپاره دوه(۲)حرکته دی، یوحرکت ئی مستدیردې چه هغه په خپل محورکښ دې اودویم حرکت ئی یمینا اوشمالاً دې اونمرته دَټولونه قریب سیاره زهره ده بیاعطارد، بیازمکه،بیامریخ،بیامشتری اوبیازحل وغیره دې، اودَزمکی کومه حصه چه دَحرکت په وخت کښ نمرته مخامخ شي نوپه هغه ځائ ورځ راشي اودکومی حصی چه شانمرته راشي نوهلته شپه شي اوداټول حرکتونه اوګردش دَاسمان نه ډیرلاندې دې، اوپه کوموایتونوکښ یارواياتونوکښ چه راغلیدی چه نمر،سپوږمۍ اوستوری په اسمان کښ دی دَهغی نه مراد طرف دَاسمان دې اویاتنه معنی لغوی مرادده یعني په بلندئ کښ دې(والله اعلم).

وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ ۭ اَفَاۡىِٕنْ مِّتَّ فَهُمُ الْخٰلِدُوْنَ ۝ كُلُّ نَفْسٍ

اوندې ګرځولې مونږ هیڅ بشرلره ستانه مخکښ همیشه والې، آیا پس که ته مړشي نو دوئ به همیشه وي، هرساه والا

| ذَآئِقَةُ | الْمَوْتِ | وَنَبْلُوْكُمْ | بِالشَّرِّ | وَالْخَيْرِ | فِتْنَةً | ط | وَإِلَيْنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خکونکی دمرگ دي اوازميښت کوو مونږ په تاسوباندې په سختئ اوپه راحت سره دپاره دامتحان اوخاص مونږ طرف ته به | | | | | | | |

تُرْجَعُوْنَ ۞ وَإِذَا رَاٰكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا إِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ إِلَّا هُزُوًا ط أَهٰذَا الَّذِيْ

تاسو راګرځولی شئ اوهرکله چه اوويني تالره کافران.نه نيسي تالره مګربه ټوقوسره(وائي) آياداهغه سړی دي

يَذْكُرُ اٰلِهَتَكُمْ ج وَهُمْ بِذِكْرِ الرَّحْمٰنِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۞

چه بدئ سره ياده وي ستاسو خدايان اوحال داچه دوئ دياداشت درحمان نه دوئ انکارکوي

﴿وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن قَبْلِكَ الْخُلْدَ﴾مخکنبی آياتونو کنبں عمومی انقلاباتوذکروو پدی اياتونو کنبں خصوصی دانسان دانقلاب اوانتقال ذکردې اودغه شان په مخکنبں اياتونوکنبں اثبات درسالت وو اودکفارو داعتراضونوجواب ورکړې شوی وو نوپدی ايت کنبں هم دنبیﷺ درسالت اثبات کيږی اودکفارو داعتراض جواب کيږی کفاروبه دنبیﷺ خبری اوريدلی نوځه جواب به ورسره نوو ،نوبيابه ئی داوئيل چه دا ټول قصه صرف دده ترژندګئ پوری محدوده ده اوځرنګه چه دې وفات شي نوبيابه هيځ هم نوی اومونږ به په ارام اوسکون سره شولکه سورة الطورايت نمبر(۳۰)کنبں دی(نتربص به ريب المنون) اودې خبری نه مقصد ددوئ دااووچه مرګ راتلل منافی دي دنبوت سره، نوالله ﷻ جواب اوکړو چه ستانه مخکنبں هم انبياء علیهم السلام تيرشويدې،کوم يوداسی دې چه په هغه باندې مرګ نوی راغلی؟ اوهميشه دپاره ژوندې پاتی شوی وی؟ اوکه دوئ ستامرګ ته خوشحاله کيږی نوآيادوئ به هميشه دپاره ژوندې وی،ځرنګه چه ته وفات کيږی دغه شان دوئ به هم مړه کيږی نوپدی کنبں دخوشحالی څه خبره ده؟

﴿الْخُلْد﴾نه مراد بقاء دائمی يعني هميشه دپاره ژوندې پاتی کيدل دی لهذا پدی ايت سره دقاديانانو استدلال په وفات دحضرت عيسیٰ علیه السلام سره صحيح ندې،ځکه چه په نصوص قطعيو کنبں دی چه حضرت عيسیٰ علیه السلام به دنزول نه ورستو اوه(۷) کاله پس به ځلويښت کالو په عمر کنبں به وفات کيږی اوخلود ورته ندې ثابت.

﴿أَفَإِيْن مِّتَّ فَهُمُ ٱلْخَـٰلِدُونَ﴾ په محل دَ استفهام کښې دا اخیری جمله ﴿فَهُم ٱلْخَـٰلِدُونَ﴾ ده نو دَ تقاضه صدرات دَوجې نه همزه استفهامي مقدم کړې شوه، اوپدې کښې حضورﷺ ته تسلی هم ده چه ستانبوت او دهغی محنت به ستادَوفات نه ورستوبه هم جاری وی

﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآبِقَةُ ٱلْمَوْتِ﴾ دا دلیل اوبرهان دې دَماقبل دَپاره اومراد دَذائقی نه پدی ځائ کښې ادراك دې ځکه چه موت دَقبيلی دَمذوقاتو نه، ندې خوهرکله چه حالت دَمفارقت دَروح دَجسد نه عموماً ډيرسخت وو (کماورد فی الحدیث ان للموت سکرات) نوځکه دا حالت دَقبيلی دَمذوقاتو نه. اوګرځولی شو اوموت نه مرادپدی ځائ کښې مقدمات دَموت اوحالت دَنزعی مراددې.ځکه چه ادراك دَموت مخکښې دَدخول دَموت نه ممکن اومتصورندې.اوورستو د دخول دَموت نه شخص میت ګرزیږی اومیت اومړی ادراك نشي کولی نو دَدې وجه نه موت نه مراد مقدمات دَموت دی

﴿وَنَبْلُوكُم﴾ دا حکمت بیانیږی دَمرګ نه مخکښې دَتکلیفونو اوراحتونو اومراد په الشر سره ټول تکلیفونه دی فقر، مرض وغیره شو اوپه الخیر سره مراد ټول دَخوشحالئ والا اموردی مثلا صحت. مالداری وغیره شو او فتنةً مفعول مطلق من غیرلفظه دې دَنبلوکم دَپاره.

﴿وَإِلَيْنَا تُرْجَعُونَ﴾ یعني مونږ به بیاتاسوته بدله درکوو چاچه شکر اداکړو په انعاماتو باندې اوصبرئې اوکړو په تکالیفوباندې نواجراوثواب به ورته میلاؤشي اوچاچه ناشکری اوبی صبری اوکړه نوسزا به ورته میلاؤشي.

﴿وَإِذَا رَءَاكَ ٱلَّذِينَ﴾ دا زجردې نبیﷺ پوری استهزاء کولوباندې، او﴿ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟﴾ نه مراد کافرعنادی دې، لکه ابوجهل وغیره شو، چه یوځلی ابوجهل په نبیﷺ باندې تیریدل اوشونو په خندا شو اواستهزاءئې اوئیل چه هذا نبی عبدمناف دا دَعبدمناف نبی دې؟

﴿إِن يَتَّخِذُونَكَ﴾ ان نافیه دې او ﴿هُزُوًا﴾ په معنیٰ دَمهزواً سره دې ﴿أَهَـٰذَا ٱلَّذِى﴾ دَدینه مخکښې یقولون مقدردې اودا جواب دې دَ اذا راك دپاره، او﴿يَذْكُرُ ءَالِهَتَكُمْ﴾ جمله معترضه ده چه واقع شویده په مینځ دَشرط اوجزاکښې اومرادپه یذکر الهتکم سره ذکربالسوء یعني په بدئ سره یادول دی، ځکه چه لفظ دَذکرثناء اوذم دواړوته شامل دې.تعیین دَاحدالاحتمالین په قرینی حالیی سره کیږی، نوکه ذکردَجانبه دَدوست نه وو نومرادتنه ذکربالخیریعني ثناء وی اوکه

ذکردَجانبه دَمخالف نه وو نوبیاتنه مراد ذکربالشریعني ذم بیانول وی. لکه سمعنا فتی یذکرهم یقال له ابراهیم( الانبیاء ۶۰).

﴿وَهُم بِذِكْرِ ٱلرَّحْمَٰنِ﴾داجمله حال واقع شویده دَمقدریقولون دَضمیرفاعل نه مقصد دادې چه دوئ په نبي ﷺ باندې الزام لګوی چه زمونږ الهوته بدرد وائی اوددوئ الهه په هیڅ باندې هم ندې قادراوپه خپله دَالله ﷻ دذکریعني توحیداوقرآن نه اعراض کوی(روح).

| خُلِقَ ٱلْإِنسَٰنُ مِنْ عَجَلٍ ۚ سَأُو۟رِيكُمْ ءَايَٰتِى فَلَا تَسْتَعْجِلُونِ ﴿٣٧﴾ وَيَقُولُونَ |
|---|
| پیداکړې شویدې انسان دَتادئ نه،زرده چه اوبه ښایم تاسوته نښې خپلې پس په جلتئ سره مه غواړئ عذاب خما اودوئ وائی چه |
| مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٣٨﴾ لَوْ يَعْلَمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ حِينَ |
| کله به وي داوعده دَعذاب، که یئ تاسو رشتنی.کچرې خبروی هغه کسان چه کفرئې کړیدې په تفصیل، دَهغه وخت چه |
| لَا يَكُفُّونَ عَن وُجُوهِهِمُ ٱلنَّارَ وَلَا عَن ظُهُورِهِمْ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٣٩﴾ بَلْ تَأْتِيهِم |
| نه به شي اړولی دوئ دَمخونو خپلونه اوراونه دَشاګانو خپلونه اونه به دَدوئ سره مدد کیدلی شي.بلکه راځي به دوئ ته |
| بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ رَدَّهَا وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٤٠﴾ |
| ناګهانه اچانک نوحیران به کړی دوئ نو طاقت به نه لری دوئ دَواپس کولو دَهغې اونه به دوئ ته مهلت ورکیدې شي. |
| وَلَقَدِ ٱسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَحَاقَ بِٱلَّذِينَ |
| اویقینا توقی کړې شوی دي په ډیرو رسولانو پورې مخکښې ستانه پس راګیرکړو(عذاب) هغه کسانولره |
| سَخِرُوا۟ مِنْهُم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿٤١﴾ |
| چه مسخرې ئې کولې دَدوئ نه هغې عذاب چه دوئ به ورپورې توقې کولې |

﴿خُلِقَ ٱلْإِنسَٰنُ مِنْ عَجَلٍ﴾هرکله چه مخکښې ایت کښې دکافرانواستهزاء ذکراوشو نونفس دَانسان کښې په جلتئ سره دَانتقام اخستلوجذ به پیداکیدله نودَدې وجه نه پدې ایت کښې زجر اوممانعت ذکرکیږی دَاستعجال نه،اودَدې ایت زیات مشهور اوغوره تفسیرداده چه دَانسان په طبعیت کښې استعجال(زرغوښتنل) دې اوهرکله چه یوصفت چاته مبالغةً ثابتولی شي نوهغه وصف

دغه دپاره ماده تخلیق فرض کړې شي لکه ډیرلوبې کونکي ته وئیلی کیږي انت من لعب ډیرغصناك سړي ته وئیلی کیږي انت من غضب اوډیرشریف سړي ته وئیلی کیږي انت من کرم اوددې وجه نه په حدیث شریف کښې دزنانوپه باره کښې مروي دي خلقت من ضلع ایسر. چه زنانه دګسې(چپې.کینړې) پوښتئ نه پیدا شویدي، یعني ددوئ په طبعیت کښې کوږوالي دې. نودلته هم مطلب دادې چه دانسان په طبعیت کښې استعجال دې اودانسان نه مرادبعض مفسرین فرمائي چه آدم علیه السلام دې دامروي دې دسدي رحمه الله اوسعیدبن جبیر رحمه الله نه فرمائي چه کله الله تعالی ادم علیه السلام کښې روح واچولو اوسرته ئې روح راغي نواوپرنجیدلونوملائکو ورته اووئیل چه الحمدلله اوایه، نوحضرت آدم علیه السلام الحمدلله اووئیلو اوکله چه سترګوته روح راغي نودجنت میوې اونعمتونه ئې اوکتلې، اوکله چه ګیډې ته روح راغي نولوږه ئې محسوس کړه اودخوراك اشتهاء ئې پیدا شوه نوفورا تللو کوشش اوکړو مخکښې د خپوته دروح رسیدلونه نواوغورزیدلو، نوځکه اوئیلی شو﴿خُلِقَ الْإِنسَانُ مِنْ عَجَلٍ﴾ اوبعض فرمائي چه انسان نه مراد نضربن حارث دې چه عذاب غوښتلوکښې جلتي اوکړه اواوئیل ئې چه اللهم ان کان هذا هوالحق من عندك فامطرعلینا حجارة مّن السّماء الاية لیکن غوره قول دادې چه﴿خُلِقَ الْإِنسَانُ مِنْ عَجَلٍ﴾نه مرادجنس انسان دې اوکه څوك اشکال اوکړي چه هرکله استعجال دانسان په فطرت اوطبعیت کښې ایخودلی شویدې نوبیاېدې باندې زجراوددېنه ممانعت تکلیف بمالایطاق دې نوجواب دادې چه څرنګه الله تعالی دانسان په فطرت کښې استعجال پیدا کړیدې نودغه شان الله تعالی انسان ته صبراوخپل ځان دجلتئ نه منع کولوباندې قدرت هم ورکړیدې، لکه څرنګه شهوت چه دانسان فطري څیزدې لیکن عدم استعمال باندې ئې انسان قادرهم دې، نو زجر اوممانعت دهغه استعجال نه دې چه بې محل اوپه غیرشرعي امورو کښې وي، اوپه خپل محل کښې استعجال اوپه امورو شرعیه کښې استعجال مذموم ندې.

﴿سَأُوْرِيكُمْ ءَايَٰتِي﴾داتخویف دنیوي دې ﴿ءَايَٰتِي﴾نه مراد نمونې دعذاب دي لکه په بدرکښې قتل. وغیره شو.﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ﴾په دې ایت کښې ذکراستعجال مذموم دې اوداشکوه ده دکافرانو نه اومراد په﴿مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ﴾سره استبعاد اوانکاردې دقیامت نه اوالوعد نه مراد

وعده دعذاب اوقيامت ده او ﴿إِن كُنتُمْ صَـٰدِقِينَ﴾ شرط دي او جزا يې محذوفه ده چه فلياتنا بسرعة دي اوپدی حذف باندي مخکښې ايت ﴿خُلِقَ ٱلْإِنسَـٰنُ مِنْ عَجَلٍ﴾ دلالت کړيدي

﴿لَوْ يَعْلَمُ ٱلَّذِينَ﴾ داجواب دي دشکوی نه مطلب داد ی چه ددوئ داعذاب زرغوښتل ددوئ دجهل دوجی نه دي کچرته دوئ ته داپته اولګی چه دالله ﷻ دعذاب نه خلاصيدل ممکن ندی نودوئ به هرګزپه عذاب غوختلوکښې جلتی نوه کړي جواب د لو محذوف دي چه هغه لماکانوا بتلك الصّفة من الكفر والاستهزاء والاستعجال دی اويالمااستعجلوا دي اوحذف دجواب داابلغ ووپه وعيدکښې نوخکه حذف کړي شو

﴿حِينَ لَا يَكُفُّونَ﴾ داجمله مفعول به ده د ﴿يَعْلَمُ﴾ دپاره اوعلم دلته په معنی دمعرفت سره دي نوځکه تقاضه دمفعول ثانی نه کوی ﴿عَن وُجُوهِهِمُ﴾ داکنايه ده داحاطی داورنه دهرجانبه. اوتخصيص دوجوه اوظهور دوجی دشرافت نه دي ﴿بَلْ تَأْتِيهِم بَغْتَةً﴾ دامتعلق دي د ماقبل سره اوبل داضراب اوانتقال دپاره نوپدی مخکښې ايت کښې بيان دسبب استعجال وو.چه ددوئ داستعجال دپاره سبب ددوئ جهل دي اوپدی ايت کښې انتقال اوشو بيان دکيفية دوقوع عذاب ته، چه داعذاب بالکل اچانك راځی او دهغی تاريخ اومقرره وخت سیوا د الله ﷻ نه بل چاته ندي معلوم،اوضميرفاعل دتاتيهم راجع دي حين ته چه په معنی دساعة سره دي نوځکه ضميردمؤنث ورته راجع شو.

﴿وَلَقَدِ ٱسْتُهْزِئَ﴾ داتسلی ده نبی ﷺ ته چه دمشرکانوعادت داد ي چه دوئ په انبياء کراموپوری استهزاء کوی نوځرنګه مخکښينوکفاروته داستهزاء کولوسزا ميلاؤشويده نودغه شان دي مشرکين مکه ته به هم ميلاؤ شي.

قُلْ مَن يَكْلَؤُكُم بِٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ مِنَ ٱلرَّحْمَـٰنِ ۗ بَلْ هُمْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِم مُّعْرِضُونَ ﴿٤٢﴾

ته اوايه چه څوك ستاسو ساتنه کوي په شپې اوورځې کښې دعذاب درحمن نه بلکه دوئ دياداشت درب خپل نه مخ اړ وونکي دي

أَمْ لَهُمْ ءَالِهَةٌ تَمْنَعُهُم مِّن دُونِنَا ۚ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَ أَنفُسِهِمْ وَلَا هُم

آياشته دي دوئ لره معبودان چه اوبه ساتي دوئ سيوا زمونږ نه. طاقت نه لري دامداد دځانونوخپلو اونه دوئ سره

مِّنَّا يُصْحَبُوْنَ ﴿۴۳﴾ بَلْ مَتَّعْنَا هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰى طَالَ

زمونږ دَطرف نه ملګرتيا کيدې شي. بلکه نفعې دَدنيا ورکړيدې مونږ دوئ ته اومشرانو دَدوئ ته ترديې چه اوږده شولو

عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ۭ اَفَلَا يَرَوْنَ اَنَّا نَاْتِي الْاَرْضَ نَنْقُصُهَا مِنْ اَطْرَافِهَا ۭ

په دوئ باندې عمرونه. آيانه ګوري دوئ چه بيشکه مونږ راتلل کوو دزمکو (وطن ددوئ) ته چه کمه ووهغې لره دَغاړو دهغې نه

اَفَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿۴۴﴾ قُلْ اِنَّمَآ اُنْذِرُكُمْ بِالْوَحْيِ ڮ وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَآءَ

آيا پس دوئ به غالب شي،ته اوايه چه بيشکه ځه يره درکوم تاسونه به وحي سره اونه اوري کونړ بلني لره

اِذَا مَا يُنْذَرُوْنَ ﴿۴۵﴾

کوم وخت چه دوئ لره يره ورکيدې شي

﴿قُلْ مَن يَكْلَؤُكُم﴾ داتخويف دنيوی دې يعني دَشپې اوورځې دَتکاليفو اوعذابونو نه تاسولره بچ کونکې ذات صرف الله ﷻ دې کچرې دَالله ﷻ خوښه شوی وی نو په تاسو باندې به نې فورا عذاب رانازل کړې وی او ﴿مِنَ الرَّحْمٰنِ﴾ نه مراد من عذاب الرحمٰن دې او په لفظ دَرحمٰن کښې اشاره ده چه عذاب نه راتلل دَالله ﷻ درحمت تقاضه ده کنې تاسو دَخپل بدعملونو دَوجې نه دَدې مستحق ئې چه فورا عذاب درباندې راشي.

﴿بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ﴾ دازجردې اومراد په ذکر سره قرآن دې ﴿أَمْ لَهُمْ آلِهَةٌ﴾ دابيان دَدې مخکښې ايت يعني دَ ﴿مَن يَكْلَؤُكُم﴾ بيان دې او ام کښې ميم زائددې اومقصود استفهام دې اواستفهام انکاری دې او ﴿لَهُم﴾ خبرمقدم او ﴿آلِهَةٌ﴾ مبتدا مؤخره ده او ﴿تَمْنَعُهُم مِّن دُونِنَا﴾ جمله صفت ده دَمبتداء دَپاره يعني آيادوئ دپاره زمونږ نه علاوه بل داسې الهه شته چه دوئ زمونږ دَعذاب نه بچ کړې اودَدوئ حفاظت اوکړی (ابن کثير) يعني بل څوک نيشته دې چه دوئ ته زمونږ دَعذاب نه نجات ورکړی.

﴿لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَ﴾ دا علت دې دَدې اولی جملی دَپاره چه دَدوئ الهه څکه ددوئ نه عذاب نشي دفع کولی چه هغوئ دَخپل ځان په امداد باندي ندي قادر اودَخپل ځان نه عذاب نشي دفع کولی نو دَدوئ امداد به څرنګه اوکړی؟ نوضمائر دَجمعی راجع دي الهوته اوهرکله چه داالهه نازل کړي شو په منزله دَعقلاء باندي نوځکه ضمیر دَجمع مذکر ذوی العقول ورته راجع کړې شو اودا احتمال هم شته دې چه ضمائر راجع شي کفاروته یعني کفاربه دَخپل ځان امداد کولو طاقت نه لری په خپلو الهو سره اونه به ئی ملګرتیا کیدې شي (روح).

﴿بَلْ مَتَّعْنَا هَٰٓؤُلَآءِ﴾ دا اضراب دې دَهغه توهم نه چه دَماقبل نه پیداکیدلو چه دوئ عذاب غواړی هغی باوجود په دوئ باندي عذاب نه راځی نوکیدې شي چه ددوئ الهومنع کړې وی اویادوئ مستحق دَعذاب نوی، نودَدې توهم نه اضراب اوانتقال اوشوچه عذاب نه راتلل دانه ددوئ الهوڅه کمال دې اونه ددوئ استحقاق دې بلکه دا استدراج دې یعني دوئ ته مونږ مختلف نعمتونه اوعیش عشرت والازندګی ورکړه نودوئ په غرور اودهوکه کښې مبتلاشو اوداخیال ئی اوکړو چه دازمونږ استحقاق دې اودا اسباب به زمونږ سره همیشه دَپاره وی.

﴿أَفَلَا يَرَوْنَ أَنَّا﴾ داتخویف دنیوی دې یعني داکفاردیته نه ګوری اوفکرنه کوی چه اسلام ورځ په ورځ په اطرافوکښې خوریګی اوزمکه دکفرتنګه کیږی، بعض خلك په خپل اختیارسره مسلمانان کیږی اوبعض خلك دَجهادپه ذریعی سره مسلمانان کیږی اومسلمانانوته دَدوئ په ممالکو باندي تسلط حاصلیږی اوبعض مفسرین فرمائی چه دَ ﴿نَنقُصُهَا﴾ نه مراد برکات دزمکی ختمیدل دی یعني قحط سالی وغیره شو، مزیدتفصیل په سورة الرعد ایت نمبر (۴۰) کښې تیرشویدې، ﴿أَفَهُمُ ٱلْغَٰلِبُونَ﴾ استفهام دَپاره دَانکاردې.

﴿قُلْ إِنَّمَآ أُنذِرُكُم﴾ پدی ایت کښې زجردې اودَدوئ دَمطالبی یعني په جلتئ سره دَعذاب غوختلو جواب دې، یعني دامشرکین دَزرعذاب راتللو مطالبه کوی نوته ورته جواب کښې اوفرمایه چه څه دَوحی په ذریعی تاسوته یره درکوم دَقیامت اودَعذاب نه چه قیامت اوعذاب خامخا راتلونکی دې ځکه چه ثابت دې په وحی سره اوپه وحی کښې احتمال دَخطاء اوامکان دَغلطئ نیشته دیو نولهذا تاسوورته تیاری اوکړئ اومراد په وحی سره قرآن دې

﴿وَلَا يَسْمَعُ ٱلصُّمُّ﴾ دا علت ذکر کیږی ددوئ داعراض دپاره دقرآن نه اودقرآن په دوئ باندې
داثرنه کولووجه بیانیږئ اوالف لام په﴿ٱلصُّمُّ﴾ کښې یاجنسی دې اوکفارئې مصداق اوّلی دې په
دخول اوّلی سره نوځکه تنه هغوئ مراد دی اویاالف لام عهدخارجی دې اومرادتنه معهود
اومخصوص کانړه دی چه کفاردی اوالف لام چه کله عهدی شي نو﴿ٱلصُّمُّ﴾ اسم ظاهردې چه په
ځائ دَضمیرباندې راغلیدې اصل کښې داسی دې لایسمعون الدعآء اذا ماینذرون اووضع دَاسم
ظاهرپه ځائ دَضمیرباندې دَپاره دَاشعاراوتنبیه دې پدی چه دوئ خپل خانونه په زورکانړه
کړیدی اوخپل ځانونه ئی دَحق اوریدولونه منع کړیدی.

﴿إِذَا مَا يُنذَرُونَ﴾ کونړسړی مطلقاًخبره نه اوری،که انذاروالاوی اویاغیرانذاروالا. خودلته
تخصیص دَانذارځکه اوشوچه دَدوئ په سخت کونړوالی باندې دلالت اوشي.ځکه چه
انذارعموما په اوچت اوازسره وی نوچه یوسړی دَمنذرآوازهم نه اوری نودې ډیرسخت کونړوی

وَلَئِن مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُولُنَّ يَوَيْلَنَآ
اوکچري اورسیږي دوئ ته څه ټکره دَ عذاب لږ عذاب، دَستارب دَطرف نه نوخامخادوئ وائی هائ تباهي ده زمونږ
إِنَّا كُنَّا ظَٰلِمِينَ ۝ وَنَضَعُ ٱلْمَوَٰزِينَ ٱلْقِسْطَ لِيَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ
بیشکه مونږ ظالمان وو اوکیږدو به مونږه تلي دَانصاف په ورځي دَقیامت کښې،نونه به شي کیدلی ظلم په هیڅ نفس باندې
شَيْـًٔا ۖ وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفَىٰ بِنَا حَٰسِبِينَ ۝
هیڅ قسم اوکچري وي،عمل ، په قدردَ داني د اوري رابه اوړو مونږ هغي لره اوپوره یومونږ حساب کوونکي

﴿وَلَئِن مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ﴾ دا تخویف دې اونفحة لږغوندې شي ته، اوحصی ته هم وئیلی کیږی
علامه زمخشری رحمه الله فرمائی چه﴿مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ﴾ کښې دری(۳)مبالغی دی(۱) یولفظ دَمس چه
وئیلی کیږی صرف لګیدلوته(۲)دویم نفح چه لږاوادنی حصی ته وئیلی کیږی(۳)دریم تاء دَنفحة
چه دَمرة اووحدت دَپاره ده نومقصد دادې چه دکوم عذاب دوئ مطالبه کوی نوکچری هغه عذاب

دوئ سره صرف یوځلی اولګی نودوئ بیاچیغی وهی اودَخپل ګناهونواقرار اواعتراف به کوی خوپدغه وخت کښ به اعتراف بی فائدې وی.

﴿وَنَضَعُ ٱلۡمَوَٰزِينَ﴾داتخویف اخروی دې په ذکردَوزن دَاعمالوسره اومراد په وضع سره احضاردې، اوموازین جمع دَمیزان ده اومیزان اسم آله په اصل کښ موزان وو، واو ماقبل تنه کسره په یاء سره بدل شو میزان تنه جوړشو،اومرادپه دې سره هغه مخصوص میزان دې چه دَبندګانو اعمال به ورکښ تول کیږی اوقرآن کریم کښ دالفظ په جمعی سره استعمال شویدې، اومفردندې استعمال شوی اوپه احادیثوکښ مفرد اوجمع دواړه استعمال شویدی. دَجمعی دَپاره توجیهات متعدددی، (۱)بعض علمآء فرمائی چه موازین حقیقةً متعدد دی (الف)اودَهرسړی دَپاره به خپل خپل میزان وی(ب) بعض فرمائی چه دَهرعمل دوزن دپاره به خپل خپل میزان وی، (۲)لیکن اکثرعلماء فرمائی چه میزان واحددې اوجمع دَتفخیم دَپاره ده،قسطلانی اورازیؒ روایت نقل کړیدې چه: سأل داؤد عليه السلام ربه عزوجل ان يريه الميزان فلماراه اغمى عليه من هوله ثم افاق فقال عليه السلام الهى من يقدرعلى ملء كفة هذا الميزان حسنات فقال الله تعالىٰ ياداؤد انى اذا رضيت على عبدى ملأته بتمرة واحدة،ياداؤد املؤها كلمة لااله الاالله(قسطلانی– کبیر). ترجمه: داؤد عليه السلام دَالله تعالیٰ نه سوال اوکړو چه ماته میزان اوښایه،نوکله چه میزان اوکتلونودَخوف اودَویری نه بی هوښه شو اوکله چه په هوش کښ راغی نوعرض ئی اوکړو چه ای څماربه څوك دې میزان لره په نیکیانو سره ډکولوباندې قادردې؟

الله تعالیٰ ورته اوفرمائیلوچه ای داود عليه السلام چه کله څه دَیوخپل بنده نه راضی شم نوڅه دامیزان دَهغه نه په یوی کهجوری سره ډکه ووم،ای داود عليه السلام ډکه وی دې لره کلمه لااله الاالله(ب) اویاجمع په اعتباردَتعدد دَموزوناتوسره ده یعنې موزونات متعدد دی نوځکه داهم جمعه راوړی شو(ج) اویاجمع په اعتباردَتعدددَعبادوسره ده او ﴿ٱلۡقِسۡطَ﴾منصوب دې ځکه چه دې صفت واقع شویدې دَموازین دَپاره او﴿ٱلۡقِسۡطَ﴾ چونکه مصدردې اومصدرتثنیه اوجمع کیږی نه، نودې وَجه نه﴿ٱلۡقِسۡطَ﴾مفرد راوړی شو اویادې صفت دې په اعتباردَمضاف محذوف سره چه ذوات لفظ دې یعنې ذوات القسط، اولام په﴿لِيَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ﴾کښ په معنیٰ دَ فی سره دې لکه لايجليهالوقتها

الاهو.کښې لام عند البعض په معنی دَ فی سره دې او یالام تعلیلیه دې او مضاف محذوف دې چه لفظ دَحساب دې یعني لحساب یوم القیمة او یا په معنی دعند سره دې

﴿لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ضمیر دکان راجع دې عمل ته چه دلالت پری کړیدې﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ﴾ځکه چه وضع دَمیزان دَپاره دَ وزن دَاعمالو دې

﴿وَإِن كَانَ مِثْقَالَ﴾مراد تنه حقیرا و ادنی ترین عمل دې.﴿أَتَيْنَا بِهَا﴾اتی باتی چه کله متعدي شي په بآء سره نو په معنی دَبدلی ورکولو سره وی نودلته ئی هم معنی ده جازینا یعني مونږه به ئی بدله ورکوو اودَدې ایت اودَسورة الکهف ایت نمبر(۱۰۵)سره تعارض نیشته دې ځکه چه هلته دَمیزان نه قائمه ولو مطلب داندې چه دَدوئ دَاعمالو وزن به نه کیږی بلکه مراد تنه دادې چه دَدوئی دَاعمالو به څه اهمیت نوی اوقدر به ئی نوی اویاداچه اقامت نافع به نه کیږی، اودلته مراد مطلق وزن دَاعمالو دې اویا صورت دَجمعی هم ممکن دې چه دکفارو څنو اشخاصو دَپاره به اقامت دَ میزان نه کیږی او بې حسابه به جهنم ته داخلیږی لکه څرنګه څنی مؤمنانو سره به حساب نه کیږی او بې حسابه به جنت ته داخلیږی نودَهرایت دَپاره محمل جدا جدا دې اوباقی کیفیت دَوزن وغیره تفصیل په سورة الکهف ایت نمبر(۱۰۵)کښې تیر شویدې(من شآء فلیطالع ثمه).

| |
|---|
| وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ وَهَارُونَ الْفُرْقَانَ وَضِيَاءً وَذِكْرًا لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٤٨﴾ الَّذِينَ |
| اویقیناً ورکړې وو مونږ موسیٰ اوهارون ته فرقان اودیره رڼا دَحق اویاداشت دَپاره دَمتقیانو.هغه کسان |
| يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِالْغَيْبِ وَهُم مِّنَ السَّاعَةِ مُشْفِقُونَ ﴿٤٩﴾ وَهَٰذَا ذِكْرٌ |
| چه ویریږی دَخپل رب نه په غیبه سره اودوئ دَقیامت نه هیبت زده دي اودا قرآن نصیحت دې |
| مُّبَارَكٌ أَنزَلْنَاهُ ۚ أَفَأَنتُمْ لَهُ مُنكِرُونَ ﴿٥٠﴾ |
| برکتونو والا دې نازل کړیدې مونږ دا آیا تاسو دانا اشنا ګڼړئ |

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ﴾دَدې نه دَدلائلو نقلیه بیان شروع کیږی اوخلاصه دَټولو دلائلو داده چه انبیاء کرامو عليهم السلام نه صدور دَامور خارقه للعادت شویدې خوهغوئ متصرف فی الامور نو، ربط دَماقبل سره دادې چه مخکښې ایتونو کښې ذکر دَرسالت وو او په رسالت باندې دَشبهاتو جوابونه

او چه ﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ إِلَّا رِجَالٗا﴾ په دې ايتونو کښې تخويف دې دَمنکرينو دَرسالت د پاره چه کوم خلکو دَرسولانو خبره نده منلې نو هغوئ هلاك شويدي، او دغه شان په مخکښې ايتونو کښې دَمنکرينو دَاهلاك ذکر وو چه واهلکنا المسرفين. په دې ايتونو کښې کيفية دَاهلاك ذکر کيږي

﴿وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَا مُوسَىٰ﴾ دا اول دليل نقلي دې دَموسیٰ عليه السلام او دَهارون عليه السلام نه چه موسیٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام هم دَتوحيد اعلان کړيدې او په تورات کښې همدغه مضمون ذکر وو. او فرقان نه مراد تورات دې چه فرق راوستونکې وو په مينځ دَحق او باطل کښې او ضياءً وذكراً عطف تفسيري دې دَفرقان دَپاره يعني دَدينه مراد هم تورات دې او بعض فرمائي چه دَفرقان نه مراد نصرت او غلبه ده په مقابلې او حجت کښې او غلبې دَپاره فرقان لفظ استعمال شائع او کثيردې. لکه يوم الفرقان يوم بدرته وئيلې کيږي او ضياءً نه مراد تورات دې چه دَتيارو دَجهل دَپاره پکښې رنړا وه او ذکراً نه مراد هغه امور دينيه دې چه دوئ ورته محتاجه وو. ليکن اول قول زيات غوره دې.

﴿لِّلۡمُتَّقِينَ﴾ تخصيص دَمتقيانو دَدې وجه نه دې چه نفع او فائده دَتورات نه دوئ اخستې وه اګرچه دَټولو خلکو دَپاره وعظ او هدايت ذريعه وه. ﴿ٱلَّذِينَ يَخۡشَوۡنَ﴾ دا صفات دَمتقينو بيانيږي

﴿بِٱلۡغَيۡبِ﴾ دا حال دې يا دَمفعول نه چه رب دې او غيب دَالله تعالیٰ دَپاره صفت واقع کيږي او غائب دَ الله تعالیٰ دَپاره صفت نه واقع کيږي يعني الله تعالیٰ غيب دې او غائب ندې. يعني دوئ دَالله تعالیٰ نه يره کوي حالانکه دوئ الله تعالیٰ ليدلې نه د . (روح) او يا حال دې دَفاعل د ﴿يَخۡشَوۡنَ﴾ نه او غيب په معنٰى غائب سره دې اى يخشون حال كونهم غائبين عن الناس. يعني دَالله تعالیٰ نه په دې حالت کښې هم يريږي چه خلك ئې نه ګوري او کله چه خلك ګوري نو بيا خو په طريق اولیٰ ګناه نه کوی او بعض فرمائي چه غيب نه مراد قلب يعني زړه دې او باء دَاله دَپاره ده اى يخشون بقلوبهم (روح) يعني په زړه سره دَالله تعالیٰ نه يريږي.

﴿وَهَٰذَا ذِكۡرٞ مُّبَارَكٌ﴾ دا ترغيب دې قرآن ته. مطلب دا دې چه دا قرآن هم دهغې ذکر دپاره نازل شويدې او په دې کښې هم هغه توحيد ذکر کيږي کوم چه په تورات کښې ذکر وو نو تاسو ددې انکار ولې کوئ؟

﴿مُبَارَكٌ﴾صفت دې دَذکر یعنې دَقرآن اومبارك په معنى دکثیر المنفعت سره دې .لوستونکی نی برکت والاګرځی، ځوك ورسره تعلق ساتي هغه دَبرکت والا ګرځی

| |
|---|
| وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ ﴿۵۱﴾ |
| اويقيناً وركړې وه مونږ ابراهيمعليه السلام ته پوهه دَدين دَمخکښ نه او وو مونږ په حال دده باندې پوهه لرونكي |
| اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ الَّتِيْٓ اَنْتُمْ |
| كله چه اوئيل ابراهيمعليه السلام خپل پلار اوقوم ته څه دليل دې دَدې شكلونو(په عبادت باندې) چه تاسو |
| لَهَا عٰكِفُوْنَ ﴿۵۲﴾ قَالُوْا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا لَهَا عٰبِدِيْنَ ﴿۵۳﴾ قَالَ |
| په عبادت ددوئ باندې كلك ولاړيئ اوئيل دوئ موندلی دې مونږ مشران خپل دوئ لره عبادت كوونكی. اوئيل (ابراهيمعليه السلام) |
| لَقَدْ كُنْتُمْ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۵۴﴾ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ اَمْ اَنْتَ |
| يقيناً يئ تاسو اومشران ستاسو په ګمراهئ ښكاره كښ. دوئ اوئيل آياتاراوړى دې مونږ ته حق اوكه ته ئې |
| مِنَ اللّٰعِبِيْنَ ﴿۵۵﴾ قَالَ بَلْ رَّبُّكُمْ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الَّذِيْ فَطَرَهُنَّ ۖ |
| دَټوقو كوونكونه، ده اوئيل بلكه رب ستاسو رب دَاسمانونو اودَزمكي دې هغه ذات چه دائي پيدا كړيدي |
| وَاَنَا عَلٰى ذٰلِكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۵۶﴾ وَتَاللّٰهِ لَاَكِيْدَنَّ اَصْنَامَكُمْ بَعْدَ |
| اوځه تاسوته دَدې خبر دركوونكونه يمه اوقسم په الله جل جلاله خامخا به ځه چل جوړومه ستاسو معبودانوته ورستو دَدينه |
| اَنْ تُوَلُّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿۵۷﴾ |
| چه اوګرځئ تاسو شاكوونكي |

﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَآ إِبْرَٰهِيمَ ﴾دادويم دليل نقلى دې په توحيدباندې چه حضرت ابراهيمعليه السلام جدامجد(نيكه) دَانبياء كرامودې هغه دَتوحيد په خاطرڅومره تكاليف اومشقتونه برداشت كړى وو .رُشده من قبل قبل مبني دې په ضمى باندې مضاف اليه محذوفه منوى ده اوپه مضاف اليه كښ متعدد اقوال راغليدې غوره پكښ درى دي،(۱)يوه داچى دې دَپاره مضاف اليه بلوغ دې

اورشدنه مرادفهم دتوحیددي یعني دبلوغ نه مخکښ په وړوکوالی کښ ورته فهم دتوحیدمیلاؤشوی وو.لکه چه په ځنی روایانو کښ دي چه ابراهیم عليه السلام پلاربه بتان جوړول اوحضرت ابراهیم عليه السلام ته به نی دخرڅولودپاره ورکړل نوحضرت ابراهیم عليه السلام به دهغوئ په غاړه کښ پړی واچولو اوزابنکلوبه ئی اودا اوازبه ئی لګولو(من یشرینی الها لاینفع ولایضرّ) چه څوك ځمانه داسی خدائ اخستلوته تیاردي چه نه ورته نفع ورکوی په عبادت سره اونه ورته ضرررسولی شي په ترك عبادت سره نوداالله جل جلاله دطرف نه فهم دتوحیدوو چه دماشوم توب لوبی هم دتوحیدوی.

(۲)دویم قول دادي چه مضاف الیه نبوت دي یعني قبل النبوة نوپدی صورت کښ هم درشدنه مراد هدایت دامور دینی اودنیوی دي اوځان ساتل دبت پرستئ نه دي.یعني دنبوت میلاویدلونه مخکښ هم حضرت ابراهیم عليه السلام په توحیدباندي قائم اوشرك نه بیزاره وو(۳)اودریم قول دادي چه مضاف الیه موسی عليه السلام اوهارون عليه السلام یعني قبل موسی عليه السلام وهارون عليه السلام نوپدی صورت کښ درشدنه نبوت دي یعني دحضرت ابراهیم عليه السلام نبوت دحضرت موسی عليه السلام اودهارون عليه السلام نه مخکښ وو، اواضافت درشدابراهیم عليه السلام ته پدی کښ اشارده تعظیم درشد هغه ته چه دابراهیم عليه السلام رشد مثالي اوکمالي وو اوددہ دپاره یوزبردست شان ووپه رشد کښ

﴿وَكُنَّا بِهِۦ عَٰلِمِينَ﴾یعني مونږته علم وو چه دي ددې اهل دي اوداهم کنایه ده دابراهیم عليه السلام دتعظیم نه لکه یوسړی دچاتعظیم بیانوی نوابهام پکښ اوکړی اوداسی اوائی چه اناعالم بفلان.دفلانی نه خوځه خبریم،نوداهغه په عظمت شان باندي دلالت کوی نودغه شان دایت داحصه هم دحضرت ابراهیم عليه السلام په عظمت شان باندي دلالت کوی،خلاصه داده چه په ددې دواړو جملو کښ الله جل جلاله دحضرت ابراهیم عليه السلام کمال مدحه اوعظمت شان بیان کړیدي (بحر).

﴿إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦ﴾دابیان درشد دابراهیم عليه السلام دي اذ متعلق دي په﴿ءَاتَيْنَا﴾پوری اویاپه اذکر محذوف پوری متعلق دي،﴿مَا هَٰذِهِ﴾ماسره تپوس دحقیقت دشي نه کیږی، نودلته هم یاحضرت ابراهیم عليه السلام ددې بتانوحقیقت په باری کښ تپوس کړیدي، اوحضرت ابراهیم عليه السلام ته اګرچه ددغی بتانوحقیقت معلوم وو خوبیاهم په ماسره تپوس کول دقبیلی دتجاهل عارفانه نه دي،اودادپاره دتحقیراواظهاردنفرت وو اواسم اشاره یعني هذه هم دپاره

دَتحقيردي، اودَاصنام په ځائ ﴿ٱلتَّمَاثِيل﴾ ذكركول چه دلالت كوى پدى چه داځيزونه دَالله ﷻ دَمخلوقاتو سره يعني دَانسانانو طيورو اوستورو وغيره سره مشابه او مماثل دي، هم دَتحقير دَپاره دي، نوگويا چه حضرت ابراهيم عليه السلام په درى(۳) طريقو سره دَشرك اوبت پرستئ نه اظهار دَنفرت اوكړو، اويا مقصود په ﴿مَا﴾ سره پوښتنه دَدليل ده چه داځيزونه خو مخلوقات دي اوحقدار دَبندگئ ندي نو تاسو په كوم دليل ددوئ عبادت كوئ؟

﴿أَنتُمْ لَهَا عَٰكِفُونَ﴾ عكوف وئيلى كيږى يوشي په طريقى دَتعظيم اوعبادت سره لازم نيول اوهغى ته توجه كول اوهركله چه دَده تعديه نده قصدكړې شوى نوځكه دَده په صله كښ لام ذكرشو په ځائ دَعلى دَپاره دَدې چه دلالت په اختصاص اوتخصيص اوكړى. يعني تاسو خالص ددوئ عبادت لازم نيولى دي اوبعض فرمائى چه لام تعليليه دي اولفظ دَتعظيم ورسره مقدردي، اوصله دَ﴿عَٰكِفُون﴾ هم محذوفه ده چه على عبادتها دي، نوتقديردَعبارت داسى دي انتم لتعظيمها عكفون على عبادتها(بحر) اوبعض فرمائى چه لام په معنى دَعلى سره دي.

﴿قَالُواْ وَجَدْنَآ ءَابَآءَنَا﴾ مشركينو سره په عبادت كولودَبتانو باندي بل څه دليل نو وو په غيردَغلط تقليدنه چه دازمونږ دَپلار،نيكه طريقه ده چه مونږ په روان يو،حضرت ابراهيم عليه السلام ورته جواب كښ اوفرمائيلو:﴿قَالَ لَقَدْ كُنتُمْ أَنتُمْ﴾ دَجواب خلاصه داده چه ستاسو تقليدصحيح ندي مقلد اومقلد دواړه غلط ئى ځكه چه داموقوف دي په اتباع دَخواهشات نفسانى اوپه اطاعت دَشيطان باندي.﴿قَالُوٓاْ أَجِئْتَنَا﴾ استفهام دَپاره دَتعجب دي اودوئ دَابراهيم عليه السلام نه خپل تضليل اوريدل قابل تعجب وويعني دوئ په تعجب سره ابراهيم عليه السلام نه تپوس اوكړو چه تاسره پدى خپلى دعوى باندي څه دليل هم شته اورښتياخبره كوى اوكه هسى توقى كوى، او اول كلام دَجملى فعليه په صورت كښ ذكرشواودويم كلام دَجملى اسميى په صورت كښ چه دادلالت كوى په دوام اواستمرارباندي ځكه چه دَدوئ اعتقاد اويقين داوو چه ابراهيم عليه السلام توقى كوى اوپدى خپله خبره كښ دروغژن دي.

﴿قَالَ بَل رَّبُّكُمْ﴾ حضرت ابراهيم عليه السلام دَدوئ دَدې سوال جواب قولاً هم وركړو اوعملا هم دَپاره دَاظهارحق،نوپدى ايت كښ قولى جواب يعني دليل په توحيدباندي ذكركيږى دَجانبه

دَابراهيم عليه السلام نه، اوبل دَپاره دَاضراب دي اودااضراب دَ ﴿أَمْ أَنتَ مِنَ ٱللَّٰعِبِينَ﴾ نه دي يعني نوقي كوونكى نه يم بلكه صحيح خبره كووم چه تاسو اوستاسو پلاران،نيكان دَبتانو په عبادت سره گمراهئ كښې وو ځكه چه دابتان خدايان ندي، بلكه معبود هغه ذات دي چه ستاسو رب دي اود اسمانونو اودزمكى رب دي اوخالق دي دَټولوخيزونو، نوچه رب صرف هغه دي اوخالق صرف هغه دي نومعبود به هم صرف هغه وى ځكه چه توحيدفى الربوبيت اوتوحيدفى الخالقيت مستلزم دي توحيدفى الالوهيت لره هم عقلاً اوهم شرعاً.

﴿فَطَرَهُنَّ﴾ ضميردَجمعى ياراجع دي زمكى اواسمانونوته اوياراجع دي تماثيل ته اوزمخشري رحمه الله فرمائى چه ضميرراجع كول تماثيل ته اولى دي ځكه چه پدى سره حجت ډيرتام كيږى په دوئ باندي ﴿وَأَنَا۠ عَلَىٰ ذَٰلِكُم﴾ مشاراليه ربوبيت اوخالقيت دَالله تعالى دي اوشاهد په معنى دَمبيّن سره دي يعني څه چه څه وايم نوماسره پدى باندي دليل موجوددي اوستاسوپشان روندتقليدكوونكى نه يم (قرطبي).

﴿وَتَٱللَّهِ لَأَكِيدَنَّ﴾ هركله چه ابراهيم عليه السلام دامحسوسه کړه چه دوئ څمادليل ته څه التفات اوتوجه ورنه كړه نودَدينى غيرت اوحميت دَوجى نه په الله تعالى باندي دَمكمل اعتماد اودَتوكل په بناء دَبتانوختمولوعزم ئى اوكړو، دَپاره دَدي چه عملى طورباندي اظهاردَحق اوتوحيداوشي، اودَدي عزم اظهارحضرت ابراهيم عليه السلام يادَيوكس په مخ كښې کړي وو چه هغه بيادارازافشاء کړو دامروى دي دَقتادة رحمه الله نه اويائى دَقوم دَتللونه ورستودَضعفاؤپه مخ كښې کړي وو چه هغوئ جشن اوميلى ته نشوتللى،اوهغوئ بيانورقوم ته داخبره اوكړه چه﴿قَالُواْ سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ﴾، اوداهم ممكنه ده چه حضرت ابراهيم عليه السلام دَدي عزم اظهاردَټول قوم په مخ كښې کړي وى خوقوم ورته څه توجه نوى وركړى، حضرت تهانوى رحمه الله ديته ترجيح وركړيده، حضرت ابراهيم عليه السلام خپل عزم مصدرکړوپه قسم سره اوحرف تاء راوړه په ځائ دَ واو ځكه چه تاء دَقسم سره سره په تعجب باندي هم دلالت كوى، اوچونكه دَنمرود اودَقوم دَمخالفت باوجود بت شكنى كول يومشكل كاروو اودامشكل آسانى دل يوامرعجيب وو نوځكه دلته حرف تاء ذكرشو اوفرق په مينځ دَتا،با او واو كښې دادي چه تا خاصه ده فقط په اسم دَالله تعالى پورى او واو خاص دي په

هر اسم ظاهرپورې که اسم دَ الله دې يارحمن وغيره وي او باء عام ده داخليږي په اسم ظاهر باندې هم او په اسم ضمير باندې هم

﴿لَأَكِيدَنَّ﴾ کيد ونيلی کيږي چاته ضرر رسولو دَپاره خفيه تدبير جوړول چه هغه پرې پوهه نشي اودامعنی په بتانو کښې دَدوه (۲) وجونه، نه صحيح کيږي، يو (۱) دَدې وجه نه چه بتانو ته په ماتولو سره ضرر او تکليف نه رسي (۲) دويم دَدې وجه نه چه دَ کيد مفهوم دادې چه چاته ضرر رسوي نو هغه کښې به شعور وي خو په دې تدبير به پوهه نشي ځکه چه داخفيه تدبير وي نوامام رازي رحمه الله وغيره فرمائي چه دا قول حضرت ابراهيم عليه السلام دهغوئ دَاعتقاد موافق کړيدې. چه دَنمرود دَقوم عقيده داوه چه دابتان شعور هم لري او په ماتولو سره ضرر او تکليف هم محسوسه وي، (جمل-کبير) او بعض فرمائي چه کيد نه مجازا اجتهاد او کوشش کول په ماتولو کښې مراد دې، ځکه چه کيد کښې مشقت او اجتهاد وي ځکه چه کوم کار مقصود وي نو دهغې خلاف ظاهره ول مشکل کاروي. ﴿بَعْدَ أَن تُوَلُّوا مُدْبِرِينَ﴾ مدبرين په معنیٰ دَمنطلقين سره دې يعني چه تاسو خپلې ميلې او جشن والاځائ ته لاړشئ، اودا به په کال کښې يوه ورځ ددوئ يو عيد وو اودوئ به په هغې ورځ دَښار نه بهر جشن او ميلې ته وتلو او دَخوراك سامان، مټياني وغيره به ئې بتانو ته کيخودلې دَپاره تبرك او کله به چه واپس راغلل نو اول به لاړل بتانو ته به ئې سجده اوکړه او بيا به دهغې نه پس کورونو ته تللو، نو پدې موقعه دوئ چه کله جشن ته تللو نو ابراهيم عليه السلام ته ئې هم اصرار اوکړو خو هغه ورته دَبيمارئ عذر اوکړو او پاتې شو، لکه چه سورة الصّافات ايت نمبر (۸۸- ۸۹) کښې دې.

فَجَعَلَهُمْ جُذٰذًا إِلَّا كَبِيرًا لَّهُمْ لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ ﴿۵۸﴾ قَالُوا مَن فَعَلَ هٰذَا

پس کړل ئې هغه تول توتې توتې سيوا دَغټ دَهغوئ نه، دې دَپاره چه دوئ ده طرف ته رجوع اوکړي اونيل دوئ چاکړيدې داکار

بِاٰلِهَتِنَآ إِنَّهُ لَمِنَ الظّٰلِمِينَ ﴿۵۹﴾ قَالُوا سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ

زمونږ دَمعبودانو سره بيشکه دې دَظالمانو نه دې. اونيل دوئ اوريدلې دې مونږ دَ يو ځوان نه چه بدې بيانوي ددې بتانو

يُقَالُ لَهُ إِبْرٰهِيمُ ﴿۶۰﴾ قَالُوا فَأْتُوا بِهِ عَلٰى أَعْيُنِ النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُونَ ﴿۶۱﴾

ونيلی کيږي هغه ته ابراهيم. اونيل دوئ پس راولئ هغه مخامخ دَخلکو دې دَپاره چه دوئ ئې اوګوري

﴿فَجَعَلَهُمْ جُذَاذًا﴾فاء فصيحيه ده داجمله عطف ده په مقدرجملى باندې، نوتقديرد عبارت دارنګې دې فولوا فاتى ابراهيم عليه السلام الاصنام فجعلهم الخ يعني چه کله دوئ د ښارنه. بهرميلى ته لاړو نوابراهيم عليه السلام بتانوپسى راغى اوپه تبرسره ئى ټکړې ټکړې کړل سيوا د يوغټ بت نه. اود دې بتانوتعداد د غوره ول مطابق دوه اويا (۷۲) وو.

﴿إِلَّا كَبِيرًا لَّهُمْ﴾داغټ والى ياپه اعتبارد بدن سره مراددې چه د ده بدن اوجثه په ټولوکښې غټه وه اوياغټ والى په اعتبارد منزلت اومرتبى سره مراد دې چه د دې بت مرتبه په ټولوکښې غټه وه اودې د سرو زرونه جوړشوى وو اوياقوت پرى لګولى شوى وو، حضرت ابراهيم عليه السلام دې پريخواوتبرئى د ده غاړى ته واچولو.

﴿لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ﴾داعلت دې د غټ نه ماتولود پاره. اوبه مرجع د ضميرد ﴿إِلَيْهِ﴾کښې درى(۳) احتمالات دې غوره احتمال دادې چه داضميرراجع دې غټ بت ته نومقصدبه ئى داشي لعلهم يرجعون الى الكبير، يعني چه دوئ کله واپس راشي اود خپلوبتانوداحشراوګورى نودې غټ بت به رجوع اوکړى لکه څرنګه د يومشکلى مسئلى حل د پاره عالم اوپوهه سړى ته رجوع کيږى. نودغه شان دوئ به هم دې غټ بت رجوع اوکړى چه داکارڅرنګه اوشو اوداچااوکړو اومقصود پدى سره الزام حجت وو چه هغوئ به جواب نشي ورکولى نودوئ به پوهه شي چه داخوډيرضعيف اوعاجزمخلوق دې چه خپل دښمن هم نشي خودلى نوددوئ عبادت کول هم لوئ جهل دې اودااحتمال هم شته چه ضميرراجع شي ابراهيم عليه السلام ته نومقصدبه داشي چه دوئ ابراهيم عليه السلام ته رجوع اوکړى اودې به ورته دليل بيان کړى اويابه د هغه دعوت ته غوږ کيدې، اوداهم ممکنه ده چه ضميرراجع شي الله تعالى ته نومعنى به داشي: لعلهم يرجعون الى الله وتوحيده، يعني دوئ به پدى پوهه شي چه داخوډيرکمزورى دې چه د خپل ځان امدادنشي کولى نوځمنګ امدادبه څرنګه اوکړى؟

﴿قَالُوا مَن فَعَلَ هَٰذَا﴾د دينه مخکښې کلام محذوف دې تقديرئى داسى دې، فلما رجعوا من عيدهم ورأوا ماأحدث بآلهتهم قالوا من فعل الخ يعني چه کله دوئ د خپل جشن نه واپس راغلواود دوئ د خدايانوسره چه کومه واقعه شوى وه هغه ئى اوکتله نوداخبره ئى اوکړه. ﴿مَن فَعَلَ هَٰذَا﴾او من يااستفهاميه دې اواستفهام د پاره د توبيخ اوتشنيع دې يعني چاچه هم داکارکړيدې ډيربدئى

کریدې اوسخت ظلم ئې کړیدې اوداهم ممکنه ده چه من موصوله شي په معنٰی دَ الذی سره او﴿فَعَلَ هَـٰذَا بِـَٔالِهَتِنَآ﴾ ورله صله شي اوداټوله جمله مبتدا شوه او﴿إِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلظَّـٰلِمِينَ﴾ورله خبردې.

﴿قَالُواْ سَمِعْنَا فَتًى﴾داجواب دَمن فعل سوال دې اوجواب ورکوونکی هغه څوك وو چه دَابراهیمؑ نه ئې﴿وَتَٱللَّهِ لَأَكِيدَنَّ﴾جمله اوریدلې وه اودا اوریدونکی کچرته ډیروو(علی روایة) نوبیاخوفعل دَجمعی(قالوا) ذکرکولو کښې څه اشکال نیشته، خوکچرته اوریدونکی یوکس وو(کما روی عن قتادة) نوبیافعل دَجمعی(قالوا) ځکه راوړی شوچه نورو خلکودَهغه یوکس تائید اوکړو اوپدی اعتبارسره یَذکرهم نه مراد دَابراهیمؑ قسم اودهغه منصوبه ده اویادَیذکرهم نه مراد بدې اوقبح بیانول دې، اوقالوا ضمیرراجع دې ټول قوم ته یعني یوځوان دې چه هروخت کښې زمونږ پدې خدایانوپسې لګیاوی اوددوئ ذم اوبدې بیانوی (خازن،قرطبی).

﴿يُقَالُ لَهُۥٓ إِبْرَٰهِيمُ﴾ابراهیم مرفوع دې نائب فاعل دې دَیقال دَپاره ځکه چه مراددلته اسم دې اومسمٰی ندې مراد ای الذی یقال له هذا الاسم(مدارك).

﴿قَالُواْ فَأْتُواْ بِهِۦ﴾ضمیردَجمعی یاراجع دې نمرود ته اواشرافوته ضمیردَجمعی راجع کیږی اګرچه شرافت فقط دنیوی وی اویاضمیرنمرود اومشرانودَقوم (کابینی والا) ټولوته راجع دې علی

﴿عَلَىٰٓ أَعْيُنِ﴾داجمله په محل دَنصب کښې حال واقع شویده دَضمیرمجرورنه، یعني دې راولئ په دسی حالت کښې چه خلکوته مخامخ وی،یعني عام مجمع ته ئې راولئ چه دَعاموخلکوپه مخ کښې دې خپل بیان اوکړی اودَحضرت ابراهیمؑ هم مقصد داوو چه ماته دَعاموخلکومخ کښې دَاظهارحق موقعه میلاؤشي نوالله ﷻ دَابراهیمؑ خواهش پوره کړو.

﴿لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُونَ﴾ددې دوه(۲) معنی دې، یوه(۱) معنٰی داده چه خلك حاضرشي اوپده باندې ګواهان شي چه داکومه سزاده ته ورکولی کیږی نودې دغسی مستحق وو اودینه معلومیږی چه هغوئ به هم دَثبوت دَجرم دَپاره ګواهان ضروری کنړل لکه چه داحکم شرعی هم

دي، دويمه معنی داده چه خلك حاضرشي اوداعقوبة اوسزا اوګوری چه بیاڅوك داجرأت اونکړی چه زمونږ خدایانوته بدرد اوائی.

| |
|---|
| قَالُوٓا ءَأَنتَ فَعَلْتَ هَٰذَا بِـَٔالِهَتِنَا يَٰٓإِبْرَٰهِيمُ ۝ قَالَ بَلْ فَعَلَهُۥ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا |
| اوويل دوئ آياتا کړيدي داکارزمونږه خدايانو سره ای ابراهيمه اوئيل هغه بلکه کړيدي داکارلوئ ددوئ نه چه دا دي |
| فَسْـَٔلُوهُمْ إِن كَانُوا۟ يَنطِقُونَ ۝ فَرَجَعُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ فَقَالُوٓا۟ |
| پس تپوس اوکړئ دَدوئ نه کچري خبري کولی شي دوئ، پس دوئ سوچ اوکړو دَخپل خانونوسره پس اوئيل دوئ |
| إِنَّكُمْ أَنتُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝ ثُمَّ نُكِسُوا۟ عَلَىٰ رُءُوسِهِمْ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هَٰٓؤُلَآءِ يَنطِقُونَ ۝ |
| چه يقيناً هم تاسو ظالمان يئ بيا راپورته شول په خپلوسرونو باندې اوئيل يئ چه يقينا ته پوهيږې چه نشي کولی دوئ خبري. |
| قَالَ أَفَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكُمْ شَيْـًٔا |
| اوئيل ابراهيم عليه السلام آياتاسوبندګی کوئ ماسيوا دالله نه دَهغه چاچه نفع نشي درکولی تاسوته هيڅ قسم |
| وَلَا يَضُرُّكُمْ ۝ أُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ۝ |
| اونه ضرر دررسولی شي تاسوته. څه بيزاريمه ستاسونه اودَهغه نه چه تاسوئی بندګی کوئ ماسيوا دَالله نه آيانونه لرئ تاسو عقل |

﴿قَالُوٓا ءَأَنتَ فَعَلْتَ هَٰذَا﴾ دَدينه مخکښ عبارت حذف دې تقديردَعبارت داسی دې فاتوبه فقالوا اانت فعلت الخ اودَدې سوال نه دَدوئ مقصدداوو چه ابراهيم عليه السلام به اقراراواعتراف اوکړي اومونږبه ورته فورا سزا ورکړو، ليکن ابراهيم عليه السلام داسی جواب ورکړو چه دوئ ئی په خپل سوال اوپوښتنه کښ راګير کړو.

﴿قَالَ بَلْ فَعَلَهُۥ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا﴾ په حديث دَبخاری کښ دې چه دا دکذباتو يعني دَ دروغو دَابراهيم عليه السلام نه دې اوحالانکه انبياء کرام عليهم السلام دکذب نه پاك دې ځکه کذب يعني دروغ معصيت دې اوانبياء کرام قبل النبوة اوبعدالنبوة دَمعاصی نه پاك دې، نودَدې وجه نه پدی باندې دکذب اطلاق کيدل صورتاً دې نه حقيقة ځکه چه داتوريه ده اودَضرورت په وخت کښ توريه امرمباح دې خوچونکه دَانبياء کرامو مرتبه ډيره بلنده ده نودَدې وجه نه دَهغوئ دَپاره توريه خلاف

اولی ده اودَخلاف اولی کاردَهغوئ په حق کښ په منزله دذنب دي بناء برقانون حسنات الابرار سیّئات المقرّبین،نوددې وجه نه پدی توریی باندي هم اطلاق دکذب اوشو. اوددې جملی ډیرتوجیهات شویدي(۱)زمخشری رحمه الله فرمائی چه حضرت ابراهیم علیه السلام په طریقی دکنایی عرضي سره دَدې فعل نسبت خپل ځان ته کړیدې چه داابلغه طریقه وه داثبات دفعل دځان دپاره اونفی دَصنم کبیرنه اوپه کفارو پوری تمسخراوټوقه ئی کړیده ځکه چه قانون دي چه کله فعل دائرشي په مینځ دَفاعل قادراوعاجزکښ،نوثبوت دَدې فعل عاجزته علی سبیل التهکم وی اوانحصارتنه مقصودوی په قادرکښ، اودَدې مثال داسی دې چه تایوخائسته خط اولیکلواونه په خائسته خط لیکلوسره مشهورهم ئی، اویوبل کس دې چه هغه بالکل په خط لیکلو باندي قادرندي، نوهغه ستانه دَدې خط په باره کښ تپوس اوکړی: اانت کتبته؟ نو ته ورته په جواب کښ او وائې: بل کتبته انت: یعني تالیکلي دې نودَدینه مقصود هغه عاجزته اثبات دکتابت نوی بلکه په هغه پوری تهکم اوټوقه مقصود اوخپل ځان لره اثبات دکتابت وی نودغه شان دلته هم حضرت ابراهیم علیه السلام بتانواوکفارو پوری ټوقه اوکړه اواثبات دَفعل اوکړو ځان لره په طریقی دکنائی عرضیی سره.

(۲)دویمه توجیه داده چه﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ﴾ مشروط دې په ﴿إِن كَانُوا يَنطِقُونَ﴾ پوری نو﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ﴾جزما ندې وئیلی شوی بلکه الزام دَخصم اوتبکیت دَخصم دپاره وئیلی شویدې یعني دَدوئ دَتجهیل دپاره یوفرضی احتمال په صورت ددعوی کښ دَپاره دَالزام حجت ذکرکړې شویدې لکه په سورة زخرف کښ دې: ان کان للرحمن ولد فانا اوّل العابدين نومطلب دادې کچرته دامعبودان وی نوخبری به ئی کولی شولی اوخپل قاتل به ئی خودلی وو.(۳)دریمه توجیه داده چه﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ﴾وئیل حکایةً دې یعني حضرت ابراهیم علیه السلام دَدوی عقیده نقل کړیده چه حضرت ابراهیم علیه السلام دوئ ته اوفرمائیلوچه ستاسوعقیده داده چه دَغټ بت په موجودګئ کښ دَوړو بتانوته عبادت کولوباندې لوئ بت خفه کیږی نوداغټ بت به خفه شوی وی اوداواړه بتان تول به ئی تکړې تکړې کړې وی

او﴿فَسْئَلُوهُمْ إِن كَانُوا يَنطِقُونَ﴾مطلب دادې چه ماسره دَ بحث مباحثی کولوفائده نیشته دې خپله دَخپلوبتانونه تپوس اوکړئ.

(۴)څلورمه توجیه داده چه حضرت ابراهیمعليه السلام کبیریعني غټ بت ته نسبت دفعل تسبیبا کړیدي اوعاموخلکوذهن ته دانسبت کسبا راځي، ځکه نسبت دفعل سبب ته کول مجازدي، اوکبیریعني غټ بت ته نسبت دفعل تسبیباً ځکه دي چه ددي بتانوتکړي کولو دپاره سبب اوبعث په ابراهیمعليه السلام باندي غصه وه په شرك دقوم باندي. چه قوم به ددي بتانوعبادت کولواوزیات عبادت اوتعظیم به دغټ بت اوګرځیدلونودي وجه نه ده ته ئي نسبت اوکړی شو.

﴿إِن كَانُوا يَنطِقُونَ﴾دلته یسمعون اویعقلون اونوئیلی شو حالانکه دچادخبری جواب هغه وخت کښ ورکولی شي چه کله مخاطب واوری اوپوهه شي، خوهرکله چه نطق آسان وو په نسبت سره سمع اوعقل ته نوددي وجه نه ﴿يَنطِقُونَ﴾اوئیلی شو. نودابراهیمعليه السلام مقصداوو چه تاسو دداسی عاجزمخلوق عبادت کوئ چه په خبروباندي هم ندي قادر.

﴿فَرَجَعُوٓاْ إِلَىٰٓ أَنفُسِهِمۡ﴾پدی ایت کښ دوه(۲) توجیهات دي(۱)یوه داده چه کله دوئ دابراهیمعليه السلام خبری واوریدلی نودوئ خپل مینځ کښ خبری اوبحث اوکړو چه تاسوپه ابراهیمعليه السلام باندي ظلم کوونکی یئ ځکه چه تبردغټ بت په غاړه کښ دي نوابراهیمعليه السلام څرنګه مات کړلو

(۲)دویمه توجیه داده چه کله دوئ دابراهیمعليه السلام دلیل واوریدلونودخپلو ځانونوسره ئی فکراوسوچ اوکړو چه داخومونږ ډیرسخت ظلم کړیدي چه دداسی څیزونوعبادت مو کړیدي چه دخپل ځان په حفاظت باندي هم ندي قادرنومونږ ته به څه فائده راکړی لکه چه مشهوره مقوله ده،

من لايرد عن راسه الفاس. كيف يدفع عن عابده الباس.

ترجمه: څوك چه دخپل سرنه تبرنشي واپس کولی نوهغه به دخپل عبادت کوونکی نه څرنګه تکلیف لری کړی(مدارك)﴿ثُمَّ نُكِسُواْ﴾ نکس په اصل کښ وئیلی کیږی دیته چه دیوشي والا پورته حصه لاندي اولاندي حصه پورته کړي شي اودلته تنه مراد دوئ دحق نه باطل طرف ته اوړیدل دي یعني اعتراض اواقرار دحق نه ورستو دضد اوعناد دوجی نه باطل اومجادله ته واپس شو. (بیضاوی) اوددوئ ددي حالت تشبیه ورکړي شویده دهغه شي سره چه دهغه پورته حصه لاندي کړي شي، اوداکنایه ده دجهل اودضد،عناد نه.

﴿لَقَدْ عَلِمْتَ﴾ دا جواب دې دقسم محذوف دپاره چه والله دې یعني والله لقدعلمت الخ. ﴿قَالَ أَفَتَعْبُدُونَ﴾ فاء دعطف دپاره ده معطوف علیه مقدر دې تقدیر دعبارت داسې دې اتعلمون ذلك فتعبدون من دون الله الخ.

﴿أُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُونَ﴾ اف پدې سره مقصود اظهار دنفرت دې. او دا په اصل کښې هغه صوت او اواز وي چه دګنده او بدبودار څیز کتلو په وخت کښې استعمالیږي. بیا اسم فعل او ګرځیدلو په معنی دا تضجر سره، لام دپاره دبیان متافف له دې یعني لام سره بیان دهغه څیز دې چه دهغه دوجې نه تافف او ضجر راغلیدې چه هغه ماسیوا دالله ﷻ نه دنورو څیزونو عبادت کول دي.

| قَالُوا حَرِّقُوهُ وَانْصُرُوا آلِهَتَكُمْ إِن كُنتُمْ فَاعِلِينَ ﴿٦٨﴾ قُلْنَا يَا نَارُ كُونِي بَرْدًا |
|---|
| دوئ اوویل اوسیزئ دا لره او بدله واخلئ دمعبودانو کچرې تاسو څه کونکي یئ، اوویل مونږ اې اوره یخه شه |
| وَسَلَامًا عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ ﴿٦٩﴾ وَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَخْسَرِينَ ﴿٧٠﴾ |
| او ارام برابر حال په ابراهیم علیه السلام باندې، او کوشش او کړودوئ دابراهیم علیه السلام سره دبدو (سیزولو) او ګرځول مونږ دوئ تاوان والا |

﴿قَالُوا حَرِّقُوهُ﴾ دا اهل باطلو طیره داوي چه ددلائلو په میدان کښې دناکامۍ نه پس دظلم او جبر او تشدد لاره اختیاره وي، نو دوئ هم په ابراهیم علیه السلام باندې ظلم کولو دپاره مشوره او کړه، نو چا اوئیل چه دې قتل کړئ او چا اوئیل چه اوئې اوسوزوئ لکه په سورة العنکبوت ایت نمبر (۲۴) کښې دي، خو آخرکار فیصله دحضرت ابراهیم علیه السلام دسوزولو اوشوه.

﴿وَانصُرُوا آلِهَتَكُمْ﴾ مقصد دادې چه دخپلو خدایانو انتقام او بدله واخلئ، ان کنتم فاعلین یعني که تاسو بدله اخستونکي ئې نو ابراهیم علیه السلام اوسوزوئ، او دا مشوره ورکوونکې دکرد قبیلې یو کس وو چه نوم ئې مختلف الفاظو سره ذکرشویدې، چاهینون ذکرکړیدې چاهیزر ذکرکړیدې، حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دې چه الله ﷻ دا سړې په زمکه کښې دننه (خسف) کړیدې او ترقیامت پورې په ښکته روان دې.

﴿قُلْنَا يٰنَارُ كُونِي ﴾نوهركله چه دَابراهيم عليه السلام دَسوزولواتفاقي فيصله اوشوه نوداور بلولو دَپاره دَلرګوراجمع كولوحكم اوكړې شو،يوى مياشتي ياڅلويښت ورځوپورې لرګى راجمع كړې شو، اوټولوخلكودَثواب په اميدپه ډيرشوق اومحبت سره لرګى راجمعه كولو.حتى چه حاجت مندوخلكوبه دَحاجت پوره كيدلودَپاره دې اورته دَلرګوراوړلونذرمنلو، چه ځمافلانى حاجت پوره شي نوځه به دومره مقداركښې لرګى راوړم، مريضانوبه دَصحت دَپاره نذردَلرګوراوړلومنلو، وصيتونه به كيدلوچه زمونږ دَمرګ نه پس دومره لرګى دې راوړې شي. اوپدى دوران كښې حضرت ابراهيم عليه السلام په يوكوركښې قيدوواودَقيدپه وخت كښې حضرت ابراهيم عليه السلام به دَدې الفاظو وردكولو: لااله الاانت سبحنك رب العلمين لك الحمدولك الملك لاشريك لك(قرطبى).

نوكله چه ښه ډيرلرګى راجمع كړې شو نودَاور بلولوحكم اوشو يوى هفتى پورى اوربل كړې شو اوداسى زبردست اوربل شو چه دَهغى دَپاسه به مرغۍ نشوه الوتلى، نودوئ ته پريشانى داراغله چه ابراهيم عليه السلام څرنګه اورته اوغورځوو، نوابليس ورته مشوره دَمنجنيق وركړه اوپه روايت دَبخارى كښې دې چه حضرت ابراهيم عليه السلام پدى وخت كښې دَ حسبى الله ونعم الوكيل وردكولو نوچه كله حضرت ابراهيم عليه السلام اورته غورزولى كيدلونوقميص تنه اوباسلى شو اوځنى مفسرينوليكلي دي چه حضرت ابراهيم عليه السلام ته په دې وخت كښې حضرت جبرئيل عليه السلام راغى اودَخپل امداد پيش كش ئى اوكړو حضرت ابراهيم عليه السلام ورته اوفرمائيلوكه ته دَخپل طرف نه راغلى ئى نوستاضرورت نيشته نوحضرت جبرئيل عليه السلام ورته اوئيلوچه ته دَالله تعالى نه سوال اوكړه نوهغه به ماته حكم اوكړې نوځه به ستاامدادته راشم حضرت ابراهيم عليه السلام ورته اوفرمائيلوچه: حسبى من سؤالى،علمه بحالى و يعني دَالله تعالى علم ځماپه حالت باندې شته دې نوماته دَسوال كولوضرورت نيشته پدى واقعى باندې علامه ابن تيميه رحمه الله اونورو اهل علموسخت ردكړيدې چه دادَاسرائيليات دكعب احبارنه ده اوموضوعى واقعه ده ځكه چه دَنصوصوسره متعارض ده ځكه چه دعا يواهم ترين عبادت دې نوحضرت ابراهيم عليه السلام به دَعبادت نه څرنګه انكاركولى شو؟ ليكن حضرت والد صاحب نورالله مرقده وبردمضجعه، يوه توجيه داسى كړيده چه په هغى كښې دَواقعى دَنصوصو سره تعارض نه راځى هغه فرمائى چه چونكه دامقام اووخت دَامتحان وو، اوحضرت ابراهيم عليه السلام دَالله تعالى اولوالعزم پيغمبرانونه وو نوهغه په داسى وخت كښې دعاغوختل دَازمائش اوامتحان سره مناسب اونه ګڼړل اواعلى درجې صبر اختياره ول اوپه

مکمل عزیمت باندي عمل کول ئی غوره اوګڼړل لکه څرنګه چه حضرت ایوب علیه السلام ترڅوکالوپورې دَخپل صحت دَپاره دعانوه غوښتلی نودغه شان حضرت ابراهیم علیه السلام هم دعاونه غوښتله اودائی اوفرمائیلوچه: حسبی من سؤالی علمه بحالی( والله اعلم)

بهرحال حضرت ابراهیم علیه السلام اورته دَمنجیق په ذریعه اوغورځولی شو .نودَانس اوجن نه علاوه هرمخلوق چیغې کړې اودَخفګان اظهارئی اوکړو سیوا دکربوړی نه ګرګټ، چه هغه اورته پوکې ورکولواونورئی تیزه ولو ،په بخاری شریف کښې دَحضرت ام شریك رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه: انّ رسول الله ﷺ امربقتل الاوزاغ وقال کان ینفخ علی ابراهیم علیه السلام (بخاری کتاب الانبیاء).

اوپه مسلم شریف کښې دَحضرت ابوهریرة رضی الله عنه نه منقول دي چه نبی علیه السلام ارشاد اوفرمائیلو چاچه په اول ګزارسره کربوړی مړکړو نوهغه ته بل سل(۱۰۰) نیکیانی میلاویږی اوچاچه په دویم ګزارسره مړکړو نوهغه ته به دَدینه کمی نیکیانی میلاویږی اوپه بل روایت کښې دي چه په اول ګزارمړکولواجردَنصف صاع صدقی برابردي اوحضرت والدصاحب(نورالله مرقده وبرد مضجعه) به فرمائیل چه دکربوړی په پوکې سره اورنه زیاتیدلوخوچونکه نیت ئی خراب وو نودَخراب نیت دَوجی نه پوره نسل ئی ملعون اوګرځیدلو.

هرکله چه ابراهیم علیه السلام اورته اوغورځولی شونوالله تعالی دَطرف نه اورته حکم اوشوچه ﴿کُونِی بَرۡدًا﴾نواوریخ شواو﴿وَسَلٰمًا﴾څکه اوئیلی شو چه دَډیریخوالی دَوجی نه ابراهیم علیه السلام ته تکلیف اونه رسی. حضرت علی رضی الله عنه نه مروی دي کچرته ﴿﴾وَسَلٰمًانوی وئیلی شوی نوابراهیم علیه السلام به دَیخنئ نه هلاك شوی وو،او﴿عَلَیٰٓ إِبۡرَٰهِیمَ﴾څکه اوئیلی شوچه په نورخلکوباندي یخ نشي اوابراهیم علیه السلام په اورکښې اوه(۷)ورځې وو. اوردَرسیانونه علاوه کوموسره چه ابراهیم علیه السلام تړلی شوی وو هغی سوزولونه علاوه نورئی دَابراهیم علیه السلام دَبدن نه هیڅ شي هم نووسوزولی. دَالله تعالی دَطرف نه دَجنت میوی اواوبه به ورته میلاویدې اوګیرچاپیره تول اورکښې ورته الله تعالی سره سره ګلان پیدا کړی وو.

قرطبی رحمه الله وغیره مفسرینونقل کړیدي چه دَحضرت ابراهیم علیه السلام نه یوه ورځ تپوس اوشو چه ستاپه ژوندکښې خائسته وخت کوم یوراغلیدي هغه ورته اوفرمائیلوچه هغه ورځې ډیرې

خائسته وی چه څه په اورکښې ووم، اوتاريخي رواياتوكښې دي چه دَحضرت ابراهيم عليه السلام عمر په دې وخت کښې شپاړلس کاله وو، اوځنې فرمائي چه شپږويشت کاله وو

﴿فَجَعَلْنَٰهُمُ ٱلْأَخْسَرِينَ﴾ يعني مال اووخت ئې خرچ کړو نوهغه ټول ضائع اوبربادشو. اودوئ په ډيرغرور اوتکبرسره دامنصوبه جوړه کړې وه اوپه تکبرسره راجمع شوی وو نوالله تعالىٰ ذليل کړل نودَدې وجه نه په سورة الصافات کښې الاسفلين وئيلې شويدې

**فائده نمبر۱**: دَحضرت ابراهيم عليه السلام په شان واقعه دَامت محمديه ﷺ دَيوعالم حضرت ابومسلم الخولاني رحمه الله سره هم راغلې وه چه اسودعنسی ملعون دَنبوت دعوی اوکړه نودې ئې رااوغوختلواوورته ئې اوئيلو چه ته دَدې ګواهي ورکوی چه څه دَالله تعالىٰ رسول يم. حضرت ابومسلم ورته اوفرمائيلوچه څه ستاخبره نه آورم، نودې ملعون ورته بيااوئيل چه آياته دَدې ګواهي ورکوی چه محمد ﷺ دَالله تعالىٰ رسول دې. نوحضرت ابومسلم رحمه الله ورته اوفرمائيلو هاؤڅه دَدې اقرارکووم نوهغه ملعون په اورکښې اوغورځولواودَحضرت ابومسلم بدن هيڅ قسم تکليف نه اورسولونبه په سکون اواطمينان باندې څه وخت تيريدلونه پس دَاوړنه اووتلو اومدينې منورې ته چه راغې نورسول الله ﷺ وفات شوی وو، حضرت ابوبکر رضی الله عنه اوحضرت عمر رضی الله عنه دَهغه ډيرعزت اواکرام اوکړو حضرت عمر رضی الله عنه دده سره ملاقات نه پس اوفرمائيلو: الحمدلله الذی لم يمتنی حتی ارانی من امة محمد ﷺ من فعل به کمافعل بابراهيم عليه السلام خليل الله.

| وَنَجَّيْنَٰهُ | وَلُوطًا | إِلَى | ٱلْأَرْضِ | ٱلَّتِي | بَٰرَكْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوبچ مواوويستلوده لره اولوط عليه السلام اوورته مواووئيل هجرت اوکړئ هغه زمکې ته چه برکات ايخي دي مونږ | | | | | |
| فِيهَا لِلْعَٰلَمِينَ ۝ وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ إِسْحَٰقَ ۖ وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً ۖ وَكُلًّا جَعَلْنَا صَٰلِحِينَ ۝ | | | | | |
| په هغې کښې لپاره دَټولوخلقو. اوورکړومونږده ته اسحاق اويعقوب زيات په سوال. اوداټول ګرځولی وومونږنيکان | | | | | |
| وَجَعَلْنَٰهُمْ | أَئِمَّةً | يَهْدُونَ | بِأَمْرِنَا | وَأَوْحَيْنَآ | إِلَيْهِمْ |
| اواوګرځول مونږدوئ امامان دَدين لاربنودنه به ئې کوله خلکوته زمونږبه حکم سره اووحی کړې وه مونږدوئ ته | | | | | |

فِعۡلَ الۡخَيۡرٰتِ وَاِقَامَ الصَّلٰوةِ وَاِيۡتَآءَ الزَّكٰوةِ ۚ وَكَانُوۡا لَنَا عٰبِدِيۡنَ

دنيك كارونوكولو.اوپابندي كولودمونځ.اودوركولودزكوة.اودوئ صرف زمونږعبادت كونكي وو

﴿وَنَجَّيۡنٰهُ وَلُوۡطًا ﴾يعني ابراهيمؑ اولوطؑ ته نجات وركوونكي مونږه وو، لوطؑ دَ حضرت ابراهيمؑ وراره وو هاران خوئ وو،اودوئ درې(۳) ورونړه وو هاران ناخور اوابراهيمؑ ،لوطؑ دَهاران خوى وو، اوهاران دوه(۲)وو يودَابراهيمؑ تره وو، چه دَحضرت سارهؓ پلاروو،اودويم دَلوطؑ پلاروو چه دَابراهيمؑ ورور وو﴿إِلَى ٱلۡأَرۡضِ ٱلَّتِي بَٰرَكۡنَا ﴾ ددينه مراد ملك شام دي، حضرت ابراهيمؑ دَلوطؑ اودسارهؓ سره دعراق نه هجرت اوكړو نواول حران ته راغلو، څه وخت ئې هلته تيركړوبيامصرته راغلو اوبياځه وخت ورستوابراهيمؑ شام ته راغى اولوطؑ سدوم كښې پاتې شو اوشام ته بركت ولازمكه څكه وئيلې شويدي چه پديكښې الله ﷻ دينى اودنيوى بركتونه ايخيدي، مسكن دَانبياء كرامو ؑ دي فصلونه اوميوى پكښې هم په كثرت سره دي،آب وهوا ئې صحت افزاده ده.

﴿وَوَهَبۡنَا لَهُۥٓ إِسۡحَٰقَ ﴾يعني حضرت ابراهيمؑ دَبچى دَپاره دعا اوكړه چه:ربِّ هب لى من الصّٰلحين نوالله ﷻ فرمائى دعاقبولوونكى اوولد وركوونكى مونږه وو، دَبل چااختيارپكښې نوو﴿نَافِلَةً﴾ داپه اصل كښې وئيلې كيږى زياتى شي ته نفل مونځ ته هم څكه نفل وئيلى كيږى چه په فرضوباندي زائددي نودي منصوب دي بناء په دي چه حال دي دَ﴿وَيَعۡقُوبَ﴾ نه نومطلب داشو چه يعقوبؑ زائدوو په سوال باندي يعني ابراهيمؑ صرف دَولدسوال كړي وو اوالله ﷻ په ولدباندي زائدولد الولد(نسى)هم وركړو، اويا﴿نَافِلَةً ﴾ منصوب دي په دي چه دي مفعول مطلق دي من غيرلفظه وهبنا دَپاره.

﴿وَجَعَلۡنَٰهُمۡ أَئِمَّةً ﴾ضمير منصوب راجع دي حضرت ابراهيمؑ ،لوطؑ ،اسحاقؑ اويعقوبؑ ته، اوائمة جمع ده امام ده چه په اصل كښې پيشوا اومقتدي ته وئيلى كيږى دلته تنه هم يادامعنىٰ مراد ده اوياتنه مراد نبوت دي او اولى معنىٰ ته ترجيح وركړيده رازى رحمه الله.

﴿يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا﴾مراد تنه دعوت ورکول دي خلکوته اوبامرنا نه مراد دادي چه دعوت اوتبليغ داامر دَالله ﷻ دي اوپدی سره هريوکس مکلف دي خواه که هغه نبي وي ياولي وي اوياعام مؤمن وي اوياامرنا نه مراد اذن اوتوفيق دَالله ﷻ دي، اوپديکښ دليل دي پدی چه هرکارپه ارادې دَالله ﷻ سره کيږي.

﴿وَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِمْ﴾هرکله چه انسان کښ يوقوت علمي اوبل قوت عملي وي اوپه انبياء کرام ﷩ کښ دادواړه قوتونه په درجې دکمال کښ موجودوي، نوپه﴿وَجَعَلْنَٰهُمْ أَئِمَّةً﴾سره اشاره اوشوه کمال دَقوت علمي ته اوپه﴿وَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِمْ﴾سره اشاره اوشوه کمال دَقوة عملي ته اومراد په فعل الخيرات سره ټول اعمال صالحه دي.

﴿وَإِقَامَ ٱلصَّلَوٰةِ﴾دا تخصيص بعدالتعميم دي دَپاره دَاهتمام شان، اوعلامه زمخشري فرمائي چه ﴿فِعْلَ ٱلْخَيْرَٰتِ وَإِقَامَ ٱلصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءَ ٱلزَّكَوٰةِ﴾دا مصدرمبني للمفعول دي، يعني په اصل کښ افعال مجهول وو﴿فِعْلَ ٱلْخَيْرَٰتِ﴾په اصل کښ ان تفعل الخيرات وو،بيافعل حذف کړې شو، اودَهغی په ځائ مصدرمجهول راوړی شويعني فعلا اوبيائی اضافت اوشو خيرات وغيره ته نوفعل الخيرات تنه جوړشو، اوصاحب دَبحردَزمخشري دَدې تکلفاتوجه دابيان کړيده چه داافعال مذکوره هرکله خاص نوو صرف په موحیٰ اليهم(انبياء کرامو)پورې،بلکه امتونه هم ورسره شريك وو په ادا ددې امورو کښ، نوکچرته فعل معلوم مصادرمعلوم اومصدرمبني للفاعل شي نودامصادربه مضاف شي ضمائرو دَموحیٰ اليهم ته نوداسی به شي فعلهم الخيرات،واقامتهم الصلوة وايتائهم الزکوة، نوتخصيص دَدې افعالوصرف په موحیٰ اليهم پورې راغی اومعنیٰ به داشي مونږ وحی کړې وه دوئ ته يعني انبياء کراموته چه دوئ يعني داانبياء کرام دې نيك کارونه کوي،مونځ دې کوی اوزکوة دې اداکوی، اوداتخصيص باطل دې نوځکه علامه زمخشري داتکلفات اوکړو، ليکن صاحب دَبحرپه ده باندې ردکړيدې په وجوه ثلاثوسره(١)دَمصدرمجهول قائل صرف اخفش دې اوجمهوردَدې قائل ندې نوداتوجيه خلاف ده دَمسلك دَجمهورونه(٢)مصدردې معلوم شي اوفاعل دې ضميردَجمعي شي چه راجع دې وی موحیٰ اليهم اوغيرموحیٰ اليهم ټولوته يعني مطلق مکلفين دې ورنه مرادشي(٣) کچرته فاعل موحیٰ اليهم شي نوبياهم تخصيص نه لازميږی

څکه چه کله انبياء کرامو عليهم السلام ته داحکم ثابت شو، نو امتونو ته په طريق اولی سره ثابت دي، نولهذا دي تکلفاتو ته ضرورت نيشته دي.

علامه خفاجي رحمه الله يوه بله توجيه کړيده صاحب دروح المعانی هغی ته غوره وئيلی دي هغه فرمائی چه دا تول مصادر په معنٰی دامرسره دي لکه ضرب الرقاب نو فعل الخيرات الخ په معنی د افعلوا الخيرات، اقيموا الصلوة الخ سره دي څکه چه متعلق به دايحاء قول وی، اوقول امروی څکه دامر په تعريف کښ قول راغليدې يعني هوقول القائل لغيره الخ اوکچرته مصدر معلوم يامجهول وغيره شي نو متعلق به دايحاء به افعال اوګرځی چه داخلاف تقرر ده.

﴿وَإِقَامَ الصَّلَوٰةِ ﴾ اقام په اصل کښ اقوام وو، حرکت د واو ماقبل(ق) ته نقل کړې شو او واو په الف سره بدل شو التقاء ساکنين دوجی نه يو الف حذف کړې شو اوحذف دالف نه ورستو ددې په عوض کښ تاء راوړی شي اوداتاء کله کله حذف کيږی نود سيبويه په مسلك داحذف مطلقا جائزدي اومسلك دفراء دادې چه حذف ددې تاء مطلقاندي جائزترڅوچه ددې عوض کښ قائمقام نوی راغلی نودلته تاء څکه حذف شويده چه اضافت ددې قائمقام راغليدې، ليکن مسلك داسيبويه غوره دي اوحذف دتاء داضافت دوجی نه، ندي بلکه مشاکلةً شويدي دفعل الخيرات اوايتاء الزکوة سره، نودسيبويه په مسلك اقامة الصلوة، وئيل جائزدي يعني جمع په مابين داضافة اوتاء کښ جائزده اودفراء په مسلك اقامة الصلوة، وئيل جائزندي څکه چه لازميږی جمع په مابين دعوض اومعوض منه کښ اوداجائزندي﴿وَكَانُوا لَنَا عَـٰبِدِينَ ﴾ پديکښ اشاره ده استقامت ته په عبادت باندي.

| وَلُوطًا ءَاتَيْنَـٰهُ حُكْمًا وَعِلْمًا وَنَجَّيْنَـٰهُ مِنَ ٱلْقَرْيَةِ ٱلَّتِى كَانَت |
|---|
| اولوط عليه السلام چه ورکړې وومونږه ته نبوت اوپوهه ددين اونجات ورکړې ووْمونږه ته دهغه کلی والؤنه |
| تَّعْمَلُ ٱلْخَبَـٰٓئِثَ ۗ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمَ سَوْءٍ فَـٰسِقِينَ ۝ وَأَدْخَلْنَـٰهُ فِى رَحْمَتِنَآ |
| چه کول به هغوئ پليت کارونه، بيشکه دوئ ووْقوم دبدئ، نافرمانه اوداخل کړومونږه لره په خاص رحمت خپل کښ، |
| إِنَّهُۥ مِنَ ٱلصَّـٰلِحِينَ ۝ |
| بيشکه ووْدي دنيکانونه. |

﴿وَلُوطًا ءَاتَيۡنَٰهُ حُكۡمًا﴾ دادريم دليل نقلي تفصيلي ذكركيږي دلوط ﷺ نه چه هغه هم په نبوت اوعلم اوپه رحمت اونجات كښې الله ﷻ ته محتاجه وو او﴿وَلُوطًا﴾منصوب دي په فعل مقدرسره اودادماااضمرعلى شريطة التفسير دقبيلې نه دي.﴿حُكۡمًا﴾مرادتنه نبوت دي﴿وَعِلۡمًا﴾يعني هغه علم چه دانبياء كرامو دشان سره مناسب وي.

﴿مِنَ ٱلۡقَرۡيَةِ ٱلَّتِي كَانَت﴾مراد ددې قريې نه سدوم دي اودحضرت لوط ﷺ دقوم علاقه په اوه (۷) لويو شهرونو باندي مشتمله وه خودلته دټولونه تعبيرصرف په يوى قريې سره اوشو. يعني مفرد ذكراوشو اوجمع قرى اونه ئيلې شوځكه چه داټول قوم په دې يوفحش كارباندي متفق وو، نوددوئ اجتماع په فحش په منزله ديوى قرئى دخلكوپه شان حساب كړې شوه نوځكه لفظ دمفرد استعمال كړې شو،او﴿ٱلۡخَبَٰٓئِثَ﴾جمع د خبيث ده اوخبيث هغى ته وئيلې كيږي چه فطرت سليمه تنه نفرت كوى اودلته تنه مراد ياصرف بدفعلي ده دنارينوسره اوهركله چه داعمل په شناعت اوقباحت كښې دډيروبدعملونوپه شان وو اومستلزم وو ديرجرمونولره نوځكه تنه تعبيرپه جمعې سره اوشولو، اوياجمع په اعتباردتعدد دفاعل سره ده يعني ددې بدعمل كوونكى ډيروو، اوبعض فرمائي چه جمع حقيقةً ده اودلوط ﷺ په قوم كښې متعدد بداعمال وو،لكه حضرت حسن بصرى رحمه الله نه مرسلاً روايت دي چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلوچه لس بدخصلتونه په قوم لوط كښې وو چه دهغى دوجى نه الله ﷻ دوئ هلاك كړل چه په هغى كښې (۱)بدفعلي كول دنارينوسره(۲)شراب څكل(۳)لوتې اوكانړى ويشتل(۴)دهولونه وهل(۵)شپيلئ وهل(۶)كونترى لوبول(۷)ريشمي لباس اغوستل(۸)تالي وهل(پرپيش كول)(۹)ږيرى خرئيل(۱۰)بريتونه پريخول اوځنى رواياتو كښې شرك اوكفرذكرهم پكښې راغليدي(ابن كثير، روح بحواله ابن عساكر).

**فائده:** مفسرين فرمائي چه دنارينوسره بدفعلي كولوابتداء دقوم لوط ﷺ نه شوى وه اودغه شان دګيرى خرئيلوابتداء هم قوم لوط كړې وه په مشورى دشيطان سره اوباعث پرى داوو چه دوئ به په ماشوموالى كښې بدفعلئ باندي عادت شو اوچه كله به غټ شو ږيرى به ئى راغلې نوبيابه چاتوجه نه وركوله، نوشيطان ورته مشوره وركړه چه ږيرى خرئيي نوتاسوبه هغه شان هلكان ښكارئ اوتوجه به درته ميلاويږى نودوئ ږيرى خرئيل شروع كړل. حضرت والد صاحب (نورالله مرقده وبرد مضجعه) به فرمائيلوچه علماؤنكته بيان كړيده چه خنزيرځكه نجس العين دي

چه دي ديوث دي، که دده دمؤنث سره بل څه شي جماع کوي نودې پرې نه خفه کيږي اوغيرت پې نه کوي خوليکن کچرته ده سره څوك بدفعلي کوي نودې ئې ځان ته نه پرېږدي، نوهغه انسان چه دهغه سره بدفعلي کيږي اودې په خپل ځان باندي نه خفه کيږي نودخنزير نه هم بدتر دې.

﴿إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمَ سَوْءٍ﴾ دا په منزله دتعليل دي د﴿تَعْمَلُ ٱلْخَبَـٰٓئِثَ﴾ دپاره ﴿وَأَدْخَلْنَـٰهُ فِى رَحْمَتِنَآ﴾ پديکښې اشاره ده هلاکت ته دقوم اونجات ته دلوط عليه السلام څکه چه هلاکت ددشمن لوئ رحمت دې ﴿مِنَ ٱلصَّـٰلِحِينَ﴾ دا تعليل دي د﴿وَأَدْخَلْنَـٰهُ فِى رَحْمَتِنَآ﴾ دپاره اودامقابل د ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمَ سَوْءٍ﴾ کښې دي.

**فائده:** دلوط عليه السلام دقوم علاقه چه په اوه (۷) لويوشهرونوباندي مشتمله وه مشهوره داده چه داټوله علاقه الله جل جلاله پرمخي راکوزاره کړې وه اوددې اهل ئې هلاك کړي وو، ليکن بعض مفسرين فرمائي چه يوشهرچه دهغې نوم زغروو هغه الله جل جلاله دعذاب نه محفوظ ساتلی وو څکه چه پديکښې لوط عليه السلام اودهغه مؤمنان ملګري پاتې کيدلو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَنُوحًا | إِذْ | نَادَىٰ | مِن | قَبْلُ | فَاسْتَجَبْنَا | لَهُۥ فَنَجَّيْنَـٰهُ |
| او (ياد کړه) نوح عليه السلام | چه | کله ده فرياد اوکړو (رب ته) | | دې نه مخکښې | نوقبوله کړه مونږ دعا | دهغه پس بچ کړو مونږ دې |
| وَأَهْلَهُۥ مِنَ ٱلْكَرْبِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٧٦﴾ | | وَنَصَرْنَـٰهُ مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَـٰتِنَآ | | | | |
| اوکورنئ دده دغم لوئ نه. | | اوبدله واخستله مونږ دده دهغه قوم نه چه دروغژن بې ګڼل اياتونه زمونږ. | | | | |
| إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمَ سَوْءٍ فَأَغْرَقْنَـٰهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٧٧﴾ | | | | | | |
| بيشکه دوئ وو قوم دبدئ پس غرق کړل مونږ دوئ ټول په يوځائ. | | | | | | |

﴿وَنُوحًا إِذْ نَادَىٰ﴾ دا اخلورم دليل نقلي تفصيلي ذکرکيږي دنوح عليه السلام نه چه دتکليف په وخت کښې نوح عليه السلام مونږته بلنه کړې وه اودعاء ئې مونږ قبوله کړې وه اودتکليف نه ورته نجات مونږ ورکړې وو، دانبياء کرامو عليهم السلام واقعات چه دليل نقلي ذکرکيږي په توحيدباندي نواستدلال دهغونه په درې طريقوسره وي (۱) کله کله دانبياء کرامو تقريراوبيان ذکرکړې شي اودهغې نه استدلال په توحيداوکړې شي لکه په نوروسورتونوکښې دي، يقوم اعبدوا الله الخ (۲) کله کله

استدلال په عمل دَنبی سره اوشي چه دَتکلیف په وخت کښ نبی کوم دربارته تلی وو څه عمل ئی کړي وو چاته ئی اواز کړي وو، لکه پدی سورت کښ دي چه اذ ناد ' ربّه الخ (۳)نفس تکالیف اوپریشانئ دَهغو ذکرشي دَپاره دَنفی دَالوهیت، چه دوئ الهه نووځکه چه پریشانئ اوتکالیف پری راغلی وو، نودلته استدلال په دي دویمی طریقی سره دي، او﴿وَنُوحًا﴾منصوب دي په فعل مقدرسره چه اذکردي اودَ﴿نَادَىٰ﴾نه مراد قوم ته بددعااوخیری کول دي چه ذکرئی په سورة النوح ایت نمبر ۲۲ اوسورة القمرایت نمبر ۱۰ کښ دي.

﴿مِنَ ٱلْكَرْبِ ٱلْعَظِيمِ﴾ددینه مراد تکلیفونه اوتکذیب دَقوم دي اویاتنه مراد نجات دي دَعذاب دَغرق نه، ﴿وَنَصَرْنَٰهُ﴾مراد دَنصرت نه انتصاراوانتقام دي، ځکه چه نصرت کله متعدي شي په من سره نومراد تنه دَدشمن نه بدله اغستل وی.

﴿إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمَ سَوْءٍ﴾دا تعلیل دي دَماقبل دَپاره اومراد په سوءٍ سره هغه سخت سخت مظالم دي چه دوئ به په نوح ﷺ باندي کولو، اجمعین تاکیددي اوپدی سره دفع دَتوهم اوشوله چه غټ واړه،نارینه اوښځی ټول الله ﷻ هلاک کړل.

| وَدَاوُۥدَ وَسُلَيْمَٰنَ إِذْ يَحْكُمَانِ فِى ٱلْحَرْثِ إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ |
|---|
| اوبادکړئ داود ﷺ اوسلیمان ﷺ کله چه دوئ فیصله کوله په باره دَفصل کښ چه دَشپي خریدلی وي په هغي کښ |
| غَنَمُ ٱلْقَوْمِ وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شَٰهِدِينَ ﴿٧٨﴾ |
| ګډي، بیزي دَیوقوم او وو مونږ په فیصلي دَهغوئ باندي خبرلرونکي |

﴿وَدَاوُۥدَ وَسُلَيْمَٰنَ﴾دا پنځم دلیل نقلی ذکرکیږی چه داوٗد ﷺ اوسلیمان ﷺ سره چه کوم علم، حکمت اوفهم وو هغه زمونږ عطاء کړده وو اومونږ ته محتاجه وو اودَهغوئ فیصلی به زمونږ په نګرانئ کښ وی.

﴿إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ﴾نفش وئیلی کیږی څریدلودَځاروو ته په وخت دَشپیلی کښ بغیردَرائ نه﴿وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ﴾ هم ضمیرراجع دي داوٗد ﷺ اوسلیمان ﷺ ته اوضمیردَجمعی تعظیما

دي اوبعض فرمائي چه چونکه دَجمعي لغوی اطلاق په مافوق الواحد باندي کيږي نوځکه ضمير دَجمعي راوړی شو يعني تثنيه هم جمع ده.

**تفصيلي واقعه**: امام بغوی رحمه الله، طبری رحمه الله وغيره دَحضرت ابن عباس رضي الله عنه اوابن مسعود رضي الله عنه نه داواقعه داسی نقل کړيده چه حضرت داؤد عليه السلام ته دوه (۲) کسان راغلو چه يو د ګډو بيزو مالك وو اوبل دَپټی مالك وو ګډو دَمالك نوم آلوخا اوپټی دَمالك نوم ايلياوو، دَپټی مالك په ګډو، په مالك باندي دعویٰ اوکړه چه دَده مال دَشپی په وخت کښ ځماپټی ته راغليدي اوفصل ئی خوړليدي حضرت داؤد عليه السلام دګډودَمالك نه تپوس اوکړو. نوهغه هم اقراراوکړو اوکله چه دَنقصان اندازه اولګوله نونقصان قيمت دومره وو څومره چه دَهغه ګډی. بيزی وی. نوحضرت داود عليه السلام فيصله اوکړه چه دَاګډی، بيزی دي دَفصل مالك ته حواله شي، نودادواړه کسان چه دَحضرت داؤد عليه السلام دَدربارنه اوتلونوپه دروازه کښ حضرت سليمان عليه السلام ناست وو. پدی وخت کښ دَسليمان عليه السلام عمربوولس (۱۱) کاله وو، نوهغه دَدي فريقين نه تپوس اوکړوچه څه فيصله اوشوه ستاسودَمسئلی، نوهغوئ ورته ټوله فيصله واوروله نوحضرت سليمان عليه السلام ورته اوفرمائيلو کچرته داتنازعه ماته حواله کړي شوی وی نومابه داسی فيصله کړي وه چه دواړوفريقينو ته به پکښ فائده وه نوحضرت داؤد عليه السلام ته چه ددي خبری پته اولګيدله نوسليمان عليه السلام ئی راواوغوختلواودهغه دَفيصلي تپوس ئی تنه اوکړو چه تابه څرنګه فيصله کوله؟ حضرت سليمان عليه السلام ورته اوفرمائيلوچه کچرته داسی فيصله اوشي چه دَفصل مالك ته ګډی، بيزی ورکړي شي. اودئ دي دَهغودَپيواودَوړئ وغيره نه دي فائده اوچتوی اوپټی دي دګډو، بيزومالك ته حواله کړي شي اوهغه دي پکښ کارونده اوکړی نوچه کله فصل هغی حالت ته راشي چه په کوم حالت کښ ګډو، بيزوخوړلی وو نوبيادي پټی خپل مالك ته اوګډی، بيزی دي خپل مالك ته حواله کړي شي، حضرت داؤد عليه السلام ته دافيصله ډيرخوښه شوه اوفريقين ئی راواوغوختلواودَهغوئ په رضامندئ سره دويمه فيصله ئی نافذه کړه اواوله فيصله ئی منسوخه کړه.

**فائده نمبر۱**: پدی مقام کښ مفسرينواوخاص طورقرطبی رحمه الله ډيرمفصل بحث کړيدي په باری دَاجتهاد اودَقضاء دَقاضی کښ، خلاصه داده چه دلته يولوئ اعتراض واردېږی چه دَحضرت داؤد عليه السلام دَقضا اوفيصلی نه ورستوحضرت سليمان عليه السلام څرنګه اعتراض اوکړو؟ اودغه شان يابه فيصله دَداؤد عليه السلام صحيح وه نودَحضرت سليمان عليه السلام ته دَخطاء نسبت اوشو

اوپابه دَحضرت سليمانعليه السلام فيصله صحيح وه نودَداؤدعليه السلام فيصلی تخطيه اوشوه؟
اوحالانکه انبياء کرام دَخطاء اوغلطی نه پاك وی، نوعلماؤ دَدې متعددتوجيهات کړيدي(۱)
بعض علماء فرمائی چه دادرحقيقت فتوی وه اوقضا نوه ليکن داتوجيه ضعيفه ده يودَدې وجه نه
چه داؤدعليه السلام نبی وو اوفتوی دَنبی داهم قضاء اوحکم وی، اوبل دَدې وجه نه چه ظاهردَايت هم
پدې دال دي چه دامحض فتوی نده بلکه حکم اوفيصله ده ځکه چه دلته الفاظ دَاذيحکمان
راغليدي(۲)بعض علماء فرمائی چه حضرت داؤدعليه السلام فيصله کړې وه خونافذه کړې نوه، ليکن
داتوجيه هم تسلی بخشش نده ځکه چه داتوجيه صرف دَرجوع دَپاره شوله اودَغلطئ دَدفعيي
دَپاره نشوه (۳)بعض علماء فرمائی چه دَداؤدعليه السلام اودَسليمانعليه السلام دَدواړوفيصلی مبني وی
په وحی باندي ليکن فيصله دَسليمانعليه السلام ناسخه اوګرزيدله دَفيصلی دداؤدعليه السلام لره ليکن
داتوجيه هم کمزوری ده ځکه چه رواياتوکښی دي چه دَسليمانعليه السلام عمرپه دې وخت کښی صرف
يوولس(۱۱)کاله وو ، نودَدې وجه نه دَ(۴)جمهورو قول دادي چه دادواړه فيصلی مبني وی په
اجتهاد باندي ليکن فيصله دَحضرت سليمانعليه السلام اقرب الی الصواب وه اودَ دواړو فريقينو
منفعت په کښی وو ځکه داؤدعليه السلام دَسليمانعليه السلام فيصله نافذه کړه اومجتهدپه باره کښی خبره
دَاراغليده چه المجتهدقديخطی وقديصيب چه مجتهدکله په خپل اجتهادکښی صحيح وی اوکله خطاء
وی، اوفرق په مينځ دَعام مجتهد اونبی کښی دادي چه انبياء کرامو عليهم السلام ته په خطاء اجتهادي
باندي فورا تنبيه کيږی اوپه خطاء باندي برقرارنه پاتی کيږی (۵)اوصاحب دَمدارك فرمائی چه
دلته دَخطاء اوصحيح خبره نيشته دي بلکه دَحضرت داود عليه السلام فيصله مبني وه په قاعدې دَشرع
باندي اوضابطه دَشرع وه اودَسليمانعليه السلام فيصله مصالحت باندي مبني وه اوصلح بهترين وه
اوقرآن کښی هم صلح ته خيروئيلی شويدي اودَدې وجی نه حضرت عمررضي الله عنه قاضيانوته هدايات
جاری کړې وو چه کله تاسوته يوه مقدمه راشي نوتاسوفريقين په مصالحت باندي راضی کړئ
اوکه مصالحت ناممکن شي نوبياخپله شرعی فيصله جاری کړئ.(ملخص ازقرطبی)

**فائده نمبر۲**: حضرت داؤدعليه السلام دګډو،بيزو په مالك باندي ضمان اوتاوان راويستلی وو
زمونږ په شريعت کښی دَدې څه حکم دي چه دَيوکس ګډی، بيزې يابل څاروی دَچافصل ته لاړو
اوفصل ته ئی ورله تاوان اورسولونوپه ده باندي به ضمان وی اوکنه؟ نوپه دې کښی دَائمواختلاف
دی، جمهورو قول دادي کچردانقصان رسول دَشپې په وخت کښی وو نومالك باندي ضمان واجب
دی اوکه دَورځی په وخت کښی رسولی وو نوبياپه مالك باندي څه ضمان نيشته لکه څرنګه چه

داؤد علیه السلام فیصله کړې وه، دلیل عقلی دادې چه دَشپې په وخت کښې دَخاروو دَمالك ذمه داری ده چه خپل خاروی اوتړی اوبهرته ئی نه پریدې ځکه چه شپه دارام دَپاره پیدا کړې شویده نوځلك پدی کښې ارام کوی اوورځې په وخت کښې دَپټی مالك ذمه داری ده چه دَخپل فصل اوپټی خیال ساتی ځکه ورځ دَمعاش اوروزګاردَپاره پیدا کړې شویده، نودَدې وجه نه دَشپې په تاوان باندې ضمان شته دې اودَورځې په نقصان باندې نیشته، اودلیل نقلی ئی هغه روایت دې چه امام مالك رحمه الله په خپل موطاء کښې نقل کړیدې اوطبری رحمه الله وغیره هم نقل کړیدې چه دَحضرت براء رضی الله عنه اوښه دَیوکس باغ ته دَشپې په وخت کښې داخله شوه اودهغه باغ ته ئی نقصان اورسولو نورسول الله صلی الله علیه وسلم فیصله اوفرمائیله چه: انّ علی اهل الحوائط حفظهابالليل وان ماافسدت المواشي بالليل ضامن علی اهلها(موطاء امام مالك باب القضاء فی الضواری والحرية) یعنې دَشپې په وخت کښې دَپټو حفاظت ددې مالك باندې وی اودهغی باوجود کچرته یوخاروی باغ ته نقصان اورسولو نودهغی ضمان به دَخاروی په مالك باندې وی، اودَامام ابوحنیفه رحمه الله مسلك دادې چه کچرته دَخاروی سره مالك یامحافظ وو اودهغی باوجود دَچاباغ اوپټی ته ئی نقصان اورسولونوپه مالك باندې به ضمان وی اوکه مالك یامحافظ ورسره نوو نوبیاپه مالك باندې ضمان نیشته. دَشپې اوورځې اعتبارپکښې نیشته دې احنافو دلیل هغه مشهورروایت دَحضرت ابوهریرة رضی الله عنه دې چه امام بخاری اومسلم اوټولواصحابودَسنن نقل کړیدې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو چه العجماء جرحهاجبار الخ(بخاری کتاب الديات) یعنې دَخاروو نقصان قابل مؤاخذه ندې بلکه هدردې اوپدی روایت صحیحه کښې تخصیص دَشپې اودورځې نیشته دې، بلکه مطلق دې اوهرچه دې روایت دَبراء بن عازب رضی الله عنه نو(۱)یوپه هغه کښې اضطراب دې وقفارفعا او(۲)ثانیا کله دَحرام راوی اودَ حضور صلی الله علیه وسلم په مینځ کښې واسطه سعدبن محیصه اوکله محیصه ذکرکیږی او(۳) ثالثا حرام یومجهول راوی دې نولهذا سندا داحدیث دَاحنافو دَمستدل حدیث په مقابله کښې ضعیف اوقابل حجت ندې(۴)اودهغی باوجود دَجمهورومستدل حدیث کښې لفظ دَحائط راغلیدې اوحائط ونیلی کیږی هغی باغ ته چه چاریواری ورنه شوی وی نوعین ممکنه ده چه حضرت براء رضی الله عنه دې داخپله اوښه بالاراده داخله کړې وی(روح) او(۵) دَدې ټولوباوجود دَاحنافومستدل حدیث مشتمل دې په قاعدې کلیی باندې اومستدل دَجمهورو مشتمل دې په واقعی جزئیه باندې نوځکه دَاحنافوروایت ته ترجیح ده(والله اعلم).

| |
|---|
| فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ ۚ وَكُلًّا اٰتَيْنَا حُكْمًا وَّعِلْمًا ۫ وَّسَخَّرْنَا |
| پس پوهه ورکړه مونږ ددغې فيصلې سليمان ﷺ ته او هر يو لره ورکړې وه مونږ پيغمبري او پوهه او تابع کړي وو مونږ |
| مَعَ دَاوٗدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ ؕ وَكُنَّا فٰعِلِيْنَ ۞ وَعَلَّمْنٰهُ صَنْعَةَ لَبُوْسٍ |
| د داود ﷺ سره غرونه تسبيح ئې وئيله او مارغان او وو مونږ داکار کوونکي او خودلې وو مونږ هغه ته جوړول د زغرو |
| لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْۢ بَأْسِكُمْ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ ۞ وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ |
| د پاره د ستاسو چه بچ ساتي تاسو د جنګ ستاسو نه. پس آيا تاسو شکر کوونکي يئ؟ او تابع کړې مووه، سليمان ﷺ لره هوا |
| عَاصِفَةً تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖۤ اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عٰلِمِيْنَ ۞ |
| تيزه، روانه به وه په حکم د هغه سره هغه ملك ته چه برکات اچولي دي مونږ په هغې کښې او وو مونږ په هر څيز باندې علم لرونکی |
| وَمِنَ الشَّيٰطِيْنِ مَنْ يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ وَيَعْمَلُوْنَ عَمَلًا دُوْنَ ذٰلِكَ ۚ |
| او تابع کړي مو وو د شيطانانو نه هغه څوك چه غوپې به ئې وهلې د هغه د پاره او کارونه به ئې کول کارونه سيوا د دې نه |
| وَكُنَّا لَهُمْ حٰفِظِيْنَ ۞ |
| او وو مونږ د وئ لره حفاظت (نګراني) کوونکي. |

﴿فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ﴾ ها ضمير راجع دې واقعې او قضيې ته يعني د دې قضيې او مسئلې صحيح حل مونږه حضرت سليمان ﷺ ته او خودلو او الله ﷻ د دې فهم او علم سليمان ﷺ ته ځکه ورکړو چه حضرت داؤد ﷺ ته دده فضيلت څرګندشي او پلارته چه د ځوی فضيلت او کمال ښکاره شي نو ډير خوشحاله شي، نو د حضرت داود ﷺ د خوشحاله کولو د پاره الله ﷻ دا فهم سليمان ﷺ ته ورکړو.

﴿وَكُلًّا اٰتَيْنَا﴾ پدې جملې سره مقصود مدحه او صفت د داؤد ﷺ او سليمان ﷺ ده چه دواړو سره علم او نبوت وو، او پدې کښې اشاره ده چه خطاء د مجتهد، عيب ندې په فيصلې او اجتهاد کښې او ګناه ګاڼدې، او دغه شان په حديث د مسلم کښې دي چه حضرت عمرو بن العاص ﷺ فرمائي چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چه فرمائيلو: اذا حكم الحاكم فاجتهد ثم

اصاب فله اجران واذاحکم فاجتهدثم اخطأ فله اجر. یعني چه کله حاکم د اجتهاد کولو نه ورستو فیصله اوکړی اودده دافیصله نفس الامرکښ هم صحیح وه اودې حق ته رسیدلی وو نوده ته دوه ۲ اجرونه میلاویږی اوکه دې په خپلی فیصلی کښ داجتهادباوجود حق ته اونه رسیدلی شو نوده نه یو اجرمیلاویږی(ځکه چه اجتهاد بذات خود یو عبادت دې).

﴿وَسَخَّرۡنَا مَعَ دَاوُۥدَ﴾ پدیکښ ذکرد خصوصی معجزاتو دداؤد ﷺ دې. ﴿یُسَبِّحۡنَ﴾ ددینه مراد تسبیح قالی یعني په لسان القال سره تسبیح کول مراد دې لکه څرنګه درسول الله ﷺ په لاس مبارك کښ کانړو تسبیح وئیلو یادخوراك والالقمه(نوړئ) به تسبیح وئیلو .نودغه شان حضرت داؤد ﷺ به چه کله زبورتلاوت شروع کړو چه هغه مشتمل ووبه تسبیح اوتهلیل باندي فقط نوغرونواومارغانوبه ورسره هم تسبیح شروع کړو، نویوعظیم الشان حلقه دذکربه اولګیده، اوځومره چه حلقه دذکروسیع وی نوهومره ئی برکات زیات وی اوحضرت داؤد ﷺ به ددوئ په تسبیح باندي پوهیدلو.

﴿وَكُنَّا فَٰعِلِينَ﴾ یعني داد داؤد ﷺ ذاتی تصرف نووبلکه زمونږ په قدرت سره داتول کارونه کیدلو ﴿وَعَلَّمۡنَٰهُ صَنۡعَةَ لَبُوسٖ﴾ دادحضرت داؤد ﷺ بله معجزه ذکرکیږی چه الله ﷻ ده ته دزغرو جوړولوطریقه خودلی وه اواوسپنه ئی ورته بغیراورکښ دکرمولونه، نرمه کړې وه لبوس،په اصل کښ هرهغه څیزته وئیلی کیږی چه په جنګ کښ اچولی کیږی دلته تنه مراد زغری دې اودتولونه اول دزغری ایجاد حضرت داؤد ﷺ کړې وو، اوددینه مخکښ هسی صفائح وو اومستقلی زغری اوکړئ به پکښ نوی، روح المعانی وغیره نقل کړیدې چه داؤد ﷺ کله بادشاه شونودشپی په وخت کښ شاهی لباس به ئی بدل کړو عام لباس ئی واچولو اوخلکونه به ئی تپوس کولوچه داودڅنګه بادشاه دې نوفرشتی انسانی صورت کښ راغلی داؤد ﷺ دهغوئ نه تپوس اوکړو چه داؤدڅرنګه بادشاه دې نوملائکوورته اوئیلوچه داؤد ﷺ ډیرښه سړی دې خوچه دبیت المال نه ئی خوراك نه کولی، نوحضرت داؤد ﷺ دالله ﷻ نه سوال اوکړو چه ده ته دځپل دلاس کسب نه رزق ورکړی نوالله ﷻ ده ته اوسپنه نرمه کړه اودزغرو جوړولوطریقه ئی ورته اخودله نوده به بیازغری جوړه ولی اوخرڅولی به ئی اوپه هغی به ئی خپله ګذاره کوله.

﴿لِتُحۡصِنَكُم﴾ لام دَپاره دَتعليل دې اوغوره خبره داده چه داعلت دې دَصنعة دپاره اودَدين معلومه شوه چه داسې صنعت اوپيشه اختياره ول چه خلق خداته پکښې فائده وی سنت دَانبياء كرامودې اوعبادت دې بشرط دَدې چه نيت صحيح وی. اوقرطبي رحمه الله فرمائی چه صنعتونو اوپيشو ته كمزوری وئيل اودَدې اختياره وو نكوخلكوته كمزوری نسبت كول جائزندې ځكه چه انبياء كرام پيشې اختيارکړې وی، حضرت آدم عليه السلام زميندارى کړې وه، حضرت نوح عليه السلام تركانى کړې وه داؤد عليه السلام لوهارى،لقمان عليه السلام درزى توب، طالوت دباغ يعنې رنګسازى کړې وه.

﴿فَهَلۡ أَنتُمۡ شَٰكِرُونَ﴾استفهام په معنى دَامرسره دې يعنې تاسودَالله تعالى شكرادا کړئ چه تاسوته ئې داصنعت ميسرکړيدې،(كبير).

﴿وَلِسُلَيۡمَٰنَ ٱلرِّيحَ﴾پدې كښې دَحضرت سليمان عليه السلام معجزات ذكركيږی چه هواګانې اوجنات دهغه تابع وو،داؤد عليه السلام دَپاره كثيف اوسخت سخت څيزونه مسخرکړې شوی وو لكه غرونه اواوسپنې شوی اوسليمان عليه السلام دَپاره لطيف اونرم نرم څيزونه مسخرکړې شوی وو، اوقرطبي رحمه الله فرمائی چه كان امرأ غزاء لايقعدعن الغزو، يعنې سليمان عليه السلام ډيرلوئ مجاهد اوغازى وو اوهروخت كښې به ئې غزاګانې كولې اولرى لرى به دَجهاد په تكل كښې تللونو الله تعالى ورته هوا مسخره کړه اوحضرت حسن بصرى رحمه الله نه مروى دې،كله چې سليمان عليه السلام دَخپلوآسونو سره مشغول شو حتّى چه دَمازيګرمونځ ورنه فوت كيدلوته قريب شو نودَالله تعالى دَپاره ئې غصه اوكړه نو الله تعالى ورته دَهغه اسونوپه بدلې كښې هوا مسخره کړه، تفصيلى واقعه په سورة ص ايت نمبر( ۳۱ تا۳۳)كښې ذكرده او ﴿وَلِسُلَيۡمَٰنَ﴾عطف دې په﴿مَعَ دَاوُۥدَ﴾باندې اوهركله چه په دواړوتسخيرنوكښې فرق وو حضرت داؤد عليه السلام لره غرونه اوطيور مسخرکړې شوی ووپه طريقى دَتبعيت اواقتدې سره يعنې غرونواومارغانو به دَحضرت داؤد عليه السلام حكم ته انتظارنه كولوبلكه څرنګه به چه داؤد عليه السلام تسبيح شروع کړو نوهغوئ به ورسره فورا تسبيح شروع كولو، نودَې وجه نه دَداؤد عليه السلام دَمعجزاتوكښې لفظ دَ مع ذكرشوی وو،اوسليمان عليه السلام دپاره تسخيردَهوا په طريقى دَانقياد كلى سره وه اوهوا به دَده دَحكم منتظره وه چه كله به ورته

سلیمان علیه السلام حکم اوکړو اوکوم طرف ته به ئې ورته حکم اوکړو نو هغه به روانه شوه. نو دَدې وجه نه دَسلیمان علیه السلام دَمعجزاتو ذکر په لفظ دَلام سره اوشولو.

﴿عَاصِفَةً ﴾دَ عصف نه دې شدید اوتیزته وئیلی کیږی.نو دَدې ایت نه معلومیږی چه هغه هوا چه دَسلیمان علیه السلام تخت به ئې اوچتولو ډیرتیزه وه اوپه سورة ص ایت نمبر(۳۲)کښې دَدې هوا صفت رخاء(یعني نرمه) ذکرشویدې نوداپه ظاهرکښې تعارض دې نو مفسرینو تطبیق پدې طریقې سره کړیدې چه فی نفسها داهوا نرمه وه اوپه عمل کښې عاصفه یعني تیزه وه یعني داهوا نرمه وه خوچه کله به ئې دَسلیمان علیه السلام تخت اوچت کړو نو په لږه مده کښې به ئې ډیرزیات مسافت اوکړو نوپدې اعتبارسره عاصفه وه اوبعض علماء فرمائی چه چونکه داهوا دَسلیمان دَحکم تابعه وه نوکله به دَسلیمان علیه السلام په حکم سره تیزه شوه اوکله به نرمه وه نوځرنګه به چه هغه ورته حکم کولو نو هوا به هغه وصف اختیاره ولو.

﴿إِلَى ٱلۡأَرۡضِ ٱلَّتِي ﴾دَدینه مراد ملك شام دې،نوسلیمان علیه السلام به دَورځې په ابتدائی حصې کښې به یوی لری علاقې ته لاړو، اوبیابه دَورځې په اخیری حصې کښې واپس شام ته راتللو.

**فائده**: حافظ ابن کثیر رحمه الله په حوالې دَابن ابی حاتم سره دَحضرت سعید بن جبیر رحمه الله نه نقل کړیدې چه دَسلیمان علیه السلام تخت دَلرګونه جوړشوی وو، چه پدې باندې شپږ لاکه(۶۰۰۰۰۰) کرسئ ایخودلې شوی وی اوپدې کرسیانُ باندې به دَسلیمان علیه السلام سره قریب اهل ایمان انسانان کیناستلو اوبیابه وریسې اهل ایمان جنات کیناستلو اوبیابه حضرت سلیمان علیه السلام مارغانو ته حکم اوکړو چه پدې ټول تخت باندې ګیرچاپیره سوری اوکړئ، اوبیابه داعظیم الشان مجمع هوا اوچتوله اوکوم ځائ ته به چه سلیمان علیه السلام حکم اوکړو هلته به ئې رسولو، اودې هوائی تخت به دَسحرنه ترغرمې پوری دَیوی میاشتې برابرسفرکولو، اودَغرمې نه ترماښام پوری به ئې هم دَیوی میاشتې برابرسفرکولو،نوګویاچه په یوه ورځ کښې به ئې دَدوه(۲) میاشتوبرابرسفرکولو.

﴿وَمِنَ ٱلشَّيَٰطِينِ ﴾دابله معجزه دَحضرت سلیمان علیه السلام ذکرکیږی، چه سرکش شیاطین الله تعالی دَده تابع کړې وو اودَهغوئ نه به ئې سخت سخت کارونه اخستلولکه سمندرملغلری راویستل اوعبادت خانې وغیره جوړول شو اوشیاطین دَجناتوهغه قسم ته وئیلی کیږی چه کافران وی، نوچونکه مسلمانان جنات خوهسې هم دَحضرت سلیمان علیه السلام تابع وو ،ځکه چه په

سلیمان علیه السلام باندي ایمان راوړی وو نودهغوئ دتسخیر ضرورت نوو نوددې وجه نه دلته ذکردتسخیرصرف دشیاطینواوشولو

﴿وَيَعْمَلُونَ عَمَلًا دُونَ ذَٰلِكَ﴾پدی کښ اشاره ده چه ددې جناتوذمه داریٔ مختلفی وی اوتفصیل دهغی په سورة السباء آیت نمبر(۱۳) اوسورة ص ایت نمبر(۳۷)کښ ذکردې ﴿وَكُنَّا لَهُمْ حَافِظِينَ﴾ مقصد دادې چه حضرت سلیمان علیه السلام ته تکلیف اونه رسوی اودهغه دحکم خلاف اونکړی اوبعض فرمائی چه حفاظت دې دپاره وو چه دجناتواوبیاخاص طورشیاطین فطرت دادې چه په ارام سره نشي کیناستلی اوسم څیز ورانه وی نوالله تعالیٰ به حفاظت کولوچه دوئ داخپل کارووران نکړی.

| وَأَيُّوبَ | إِذْ | نَادَىٰ | رَبَّهُ | أَنِّي | مَسَّنِيَ | الضُّرُّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوریادکړیٔ)ایوب علیه السلام چه کله ئی فریاد کوو رب خپل ته چه بیشکه رسیدلی دې ماته تکلیف(مرض) | | | | | | |
| وَأَنتَ | أَرْحَمُ | الرَّاحِمِينَ ﴿٨٣﴾ | فَاسْتَجَبْنَا | لَهُ | فَكَشَفْنَا | مَا بِهِ |
| اوته زیات رحم کوونکی ئی درحم کوونکونه،پس قبوله کړه مونږ دعا دهغه پس لرې کړو مونږ هغه چه پده باندې | | | | | | |
| مِن ضُرٍّ | وَآتَيْنَاهُ | أَهْلَهُ | وَمِثْلَهُم | مَّعَهُمْ | رَحْمَةً | مِّنْ عِندِنَا |
| څه تکلیف(مرض)وو ، اوورکړو مونږ ده ته بال بچ(اولاد) دده اوپشان دهغوئ ورسره نور،دوجې درحمت زمونږ نه | | | | | | |
| وَذِكْرَىٰ لِلْعَابِدِينَ ﴿٨٤﴾ | | | | | | |
| اونصیحت دبندګئ کوونکو دپاره | | | | | | |

﴿وَأَيُّوبَ إِذْ نَادَىٰ﴾ دا شپږم دلیل نقلی دې په واقعی دایوب علیه السلام سره،چه ایوب علیه السلام هم دتکلیف په وخت کښ بلنه الله تعالیٰ ته کړې وه اودده تکلیف لری کوونکی اوده ته اولاد اومال ورکوونکی الله تعالیٰ وو.

حضرت سیدنا ایوب علیه السلام د رومیانونه وو .د پلار د طرف نه د حضرت اسحاق علیه السلام په نسل کښې وو او د مور د طرف نه د حضرت لوط علیه السلام په ذریت کښې وو. د حضرت ایوب علیه السلام په باره کښې چه کوم طویل اواوږدې قصې منقول دي اکثر اسرائیلیات دي. ابن کثیر رحمه الله وغیره چه کومه قابل اعتماد حصه د دې واقعاتو ذکر کړیده د هغې خلاصه داده چه حضرت ایوب علیه السلام ته الله تعالیٰ ډیر مال او اولاد او ښه صحت ورکړې وو ده به د الله تعالیٰ ډیر شکر ادا کولو لکه څرنګه د انبیاء کرامو سنت او عادت دي نو د بعض روایاتو مطابق چه کله ملائکو د حضرت ایوب علیه السلام په عبادت باندي فخر اوکړو او د ده د عبادت صفت ئې بیان کړو او شیطان واوریدلو نو شیطان داخبره اوکړه چه ای الله تعالیٰ ایوب علیه السلام به ستا عبادت ولې نه کوی او شکر به ولې نه ادا کوی چه تا په ده باندي دومره لوئ انعامات کړیدي نو الله تعالی د ایوب علیه السلام مرتبه او مقام اظهار د پاره په ده باندې،د ده د مال اولاد او صحت په باره کښې ازمائش را اوستلو، مال ئې ټول هلاك شو، اولاد ټول وفات شو او په ټول بدن باندي دانې را اوختلې او په بدن کښې سیوا د ژبې او د زړه نه بل داسې ځائ نوو چه روغ وی، خپلو،پردو ورسره تعلق ختم کړو او د کلې نه ئې اویستلو د حضرت ایوب علیه السلام دری کسان دیر قریبي ملګرو وو هغوئ هم د ایوب علیه السلام ملګرتیا پریخودله او په ایوب علیه السلام باندي ئې تهمت هم اولګولو، حضرت ایوب علیه السلام د کلې نه بهرځان ته یوه جونپړه جوړه کړه او په هغې کښې به ئې عبادت کولو او ده سره صرف خپله بی بی وه چه نوم ئې په بعض روایاتو کښې ماضرینت میسابن یوسف علیه السلام راغلیدي او په بعض روایاتو کښې رحمت بنت افراثیم بن یوسف علیه السلام ذکرشویوی، او په روایاتو کښې دي چه حضرت ایوب علیه السلام په زمانی د ابتلاء کښې د الله تعالیٰ عبادت نورهم زیات کړو او دائې اوفرمائیلو چه ای الله تعالیٰ ما په هغه حالت هم شکر ادا کړې وو چه تا ماته مال اولاد راکړې وو او اوس مې په دې حالت باندي هم شکر دې چه تا ځمانه مال او اولاد واغستلو او اوس ځما او ستا په مینځ کښې حائل او رکاوټ هیڅ څیز نیشته دې، او د پیغمبرانه صبر او استقامت او د الوالعزمئ حالت ئې داوو چه یوه طویله زمانه ئې د صحت دعا هم نه کوله، یوځلې ورته خپلې بی بی عرض اوکړو چه تکلیف دې دیر زیات شو د الله تعالیٰ نه سوال اوکړه چه دا تکلیف ختم شي نو حضرت ایوب علیه السلام ورته اوفرمائیلو چه اویا (۷۰) کاله ما په صحت کښې تیر کړل نو که اویا (۷۰) کاله په تکلیف کښې تیر شي نو داځه مشکله خبره خونده.

د حضرت ایوب علیه السلام پدی مدت د ابتلاء کښې اختلاف دې چه داڅومره زمانه وه؟ نو د حضرت انس رضی الله عنه نه په یو مرفوع روایت کښې اتلس (۱۸) کاله مروی دي،بعضو مفسرینو

دیارلس(۱۳)، نهه(۹)، اته(۸) ذکرکړیدي، اوحضرت حسن بصری رحمه الله نه اوه(۷) کاله مروی دي اووهب بن منبه رحمه الله نه دری(۳) کاله منقول دي، خوبهرحال! یوی اوږدي زمانی تیریدلونه پس آخرکارحضرت ایوب علیه السلام مجبوره شو اودعاء ئی اوکړه چه انّی مسّنی الضّر. اوباعث پدی دعاباندي څه وو؟ نوقرطبی پدیکښ اولس(۱۷) اقوال ذکرکړیدي،غوره قول پکښ دادي چه دَحضرت ایوب علیه السلام کمزوری دومره حدته اورسیدله چه عبادت ته پورته کیدل ورته مشکل شونودعائی اوکړه اوبعض علماء فرمائی چه دَده بی بی دَده دَابتلاء دَوجی نه چه نورڅه مزدوری اونه موندله نودَخپل کمسئ ویخته ئی خرڅ کړل اودَه دَپاره ئی دَخوراك بندوبست اوکړو نوحضرت ایوب علیه السلام ته چه پته اولګیدله نودادعاء ئی اوکړه، او بعض فرمائی چه دَخپلی بی بی دَایمان په باره کښ اویریدلوچه دَخُمادَمحبت دَوجی نه دَشیطان په دهوکه کښ رانشي لکه څنی روایاتوکښ دي چه شیطان ورله څه دوائی ورکړي وه چه داایوب علیه السلام له ورکړه تفصیل به ئی په سورة ص کښ انشاء الله راشي نوځکه حضرت ایوب علیه السلام دادعا اوکړه

دَحضرت ایوب علیه السلام داالفاظ شکایت اوشکوه نوه بلکه دعاده اودَدي وجی نه پدی باندي استجابت هم متفرع شویدي، یعني ﴿فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ﴾ په دي پسی وئیلی شویدي اودَدي وجي نه الله تعالی دَایوب علیه السلام مدحه پدی الفاظو سره کړیده چه: انّا وجدنٰه صابرا الخ (ص ایت نمبر۴۴).

﴿وَأَنتَ أَرۡحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ﴾ پدیکښ تعریض اواشاره ده دعاته چه څما حالت قابل رحم دي،اوته رحم کوونکی ئی اودغه شان حضرت ایوب علیه السلام دَخان دپاره ضررثابت کړو اوالله تعالی ئی متصف کړو په رحم سره نوپدیکښ اشاره اوکړه دیته چه دَالله تعالی ضرررسول دَپاره دنفع وی یعني الله تعالی ضار،نافع دي.

﴿فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ﴾ الله تعالی دَحضرت ایوب علیه السلام دَپاره یوه چینه(چشمه) دَابوپه هغه ځائ کښ پیدااکړه اوحکم ئی ورته اوکړو چه پدیکښ غسل اوکړه حضرت ایوب علیه السلام په هغی کښ غسل اوکړو نوفورا ټول بدن ئی ټهیك ټهاك شواوالله تعالی ورته یولباس دَجنت نه،رااولیږو هغه ئی واچولو، دَحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دي چه دَایوب علیه السلام بی بی پدی وخت کښ حاضره نوه نوچه کله راغله نوایوب علیه السلام یوطرف ته په ډیرخائسته صورت سره ناست وو، دي اونه پیژندلویوطرف ته بل طرف ته ئی تالاش اوکړو نوچه ایوب علیه السلام ورته په هغه زوړ حالت کښ میلاؤنشو نوپه ژړاشوه اودَده نه(ایوب علیه السلام) ئی تپوس اوکړو چه دلته یوبیمارسړی وو هغه

چرته لاړو؟ سپو یالیوانواوخوړو؟ څه وخته پورې ئې دهغه سره داخبرې اوشوې آخرورته حضرت ایوب علیه السلام اوئیلوچه څه ایوب علیه السلام یم، اوالله تعالیٰ څمادعاقبوله کړه اوځما بدن ئې صحیح اوروغ کړو.

﴿وَءَاتَيْنَٰهُ أَهْلَهُۥ﴾ اهل نه مراد یااهل سابقین دي چه کوم وفات کړې شوی وو،نوهغه ورته رادژوندې کړې شو(څکه چه دوئ مخکښ دَنیتې نه مړه شوی وو) او﴿وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ﴾ نه مراد صلبي اولاددي، یعني سابقه اولاد ورته هم ژوندې کړې شو اودهغې مثل نور اولاد هم ورته ورکړې شو،اویادَ اهل نه مراد لاحقین اهل دي کوم چه دَبیمارئ نه دَتهیك کیدلونه پس شوی وو،اودَ ﴿وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ﴾ نه مراد اولاد الاولاد یعني نسی(لمسی) مراددې بهرتقدیرمقصد دَایت دادې چه دَازمائش اوامتحان نه ورستو بطورانعام الله تعالیٰ دده په اولاد کښ برکت واچولو اودغه شان په روایاتوکښ وی چه مال هم ورله الله تعالیٰ ډیر کړو دَسرو زرواوسپین زرو باران په پرې اوکړو. رَحْمَةً دا علت موثره دې دَاستجابت دعا اودَاعطاء اولاددَپاره،چه دادعاقبولول اواولاد ورکول دَوجې دَرحمت نه وو اواحساناً وو.

﴿وَذِكْرَىٰ لِلْعَٰبِدِينَ﴾ پدیکښ اشاره ده علت غائیه ته یعني چه څوك دَالله تعالیٰ بندګی کوی، نیکان اوصالحان وی په هغوباندې تکلیف راشي نودَایوب علیه السلام واقعه دې یاده کړی چه هغه څومره افضل وواولوئ عابدوو په هغه تکلیف راغی نوصبرئې اوکړو اوالله تعالیٰ ته ئې سوال اوکړو.

| وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِدْرِيسَ وَذَا ٱلْكِفْلِ كُلٌّ مِّنَ ٱلصَّٰبِرِينَ ۝٨٥ وَأَدْخَلْنَٰهُمْ |
| --- |
| او(یادکړئ)اسمعیل علیه السلام اوادریس علیه السلام اوذوالکفل علیه السلام داټول وو دَصبرکونکونه، اوداخل کړی وو مونږ دوئ |
| فِي رَحْمَتِنَآ إِنَّهُم مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ۝٨٦ |
| په رحمت(نبوت) خپل کښ بیشکه دوئ وو دَنیکانونه. |

﴿وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِدْرِيسَ﴾ دا اوم(۷) دلیل نقلی تفصیلی دې په ذکرددرې(۳) انبیاء کرامو سره، دَحضرت ادریس علیه السلام اواسماعیل علیه السلام تفصیلی حالات مخکښ تیرشویدې اوپه قرآن کښ

متعدد مواضعوکښې مذکوردي، البته ذوالکفل په باره کښې قرآن مجیدکښې دَنوم نه علاوه نورمزید تفصیل اوواقعات نیشته دي، اواحادیث هم دَدې تفصیل نه ساکت دي،ابن کثیر رحمه الله فرمائي چه دَقرآني اسلوب نه معلومیږي چه دې نبي وو ځکه دده ذکردَانبیاء کراموسره شویدې اوداقول دَجمهورمفسرینو دي، بعض علماء فرمائي چه ذوالکفل یونیك سړی وو،ابن جریر رحمه الله دَمجاهدنه نقل کړیدي اودغه شان ابن ابی حاتم دَحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه په سندمقطع سره منقول کړیدي ذوالکفل یونیك سړی وو په بني اسرائیلوکښې اوکله چه حضرت الیسع علیه السلام ډیربوډا شو نویوه ورځ ئې اوفرمائیلوچه کاش ځماپه زندګئ کښې یوداسې سړی وی چه ځمانه ورستوځماقائمقام شوی وی اوماته اطمینان حاصل شوی وی چه دې ځمادَنیابت قابل دي، بیاالیسع علیه السلام بنی اسرائیلي راجمع کړل اوهغوئ ته ئې اوفرمائیلو چه څه په تاسوکښې یوکس خپل خلیفه کوومه پدې شرط چه هغه هغه ځماسره دَدرې(۳)خبرو عهداوکړي(۱)ټوله ورځ به روژه نیسي(۲)شپې به عبادت کوي(۳) چرته به هم غصه نه کوي، نودَمجلس نه یوکس رااوچت شوچه دَعاموخلکوپه نظرکښې دَهغه څه وقعت اواهمیت نوو هغه اوئیل چه څه حاضریم، حضرت الیسع علیه السلام ورته بیادامذکور شرائط بیان کړل اوتپوس ئې تنه اوکړو چه دَدې پوره کولوته تیارئې هغه ورته اوئیل چه هاؤ اوداعمل درې(۳) ورځې شواوهره ورځ به دایوکس پاسیدلواوبل څوك به نه تیاریدلونواخرکارحضرت الیسع علیه السلام دې خپل خلیفه اونائب جوړکړو ،دَالیسع علیه السلام دَدې خلیفه طریقه داوه چه ټوله شپه به ئې عبادت کولو اودَورځې به ئې روژه وه اودَخلکو مسائل به ئې هم حل کول، اوپه شپې ورځې کښې به ئې صرف دَغرمې قیلوله کوله نورارام ئې نوو، شیاطین په ده باندي ډیرکوشش اوکړو خوناکام شو نوآخرپه خپله ابلیس دده مقابلې ته راغې چه په څه طریقه باندي دې دهوکه کړم اودې دَالیسع علیه السلام سره کړی عهدونوکښې پاتې راؤلم،نوابلیس منصوبه داسې جوړه کړه چه یوډیرکمزوری اودَضعیف انسان په صورت کښې دَغرمې په وخت کښې ده ته راغې، دروازه ئې اوټکوله نوخلیفه تنه تپوس اوکړو چه څوك ئې؟ نوابلیس ورته اوئیل چه څه یوډیرمظلوم اوکمزوری انسان یم، نوهغه ورته دروازکهولاؤکړه، ابلیس ورته دخپل قوم دَظلم او دَخپل مظلومیت یواوږد داستان بیان کړو چه دَقیلولې وخت ختم شو،نوخلیفه ورته اوئیل چه ته اوس لاړشه اومابنام چه کله مجلس اولګې نوبیراشه څه به ستاحق تاته درکړم،نودې لاړو اوچه مابنام شو خلیفه دَده ډیرانتظار اوکړو خوداسړی نوو،اومجلس ختم شو، سحربیامجلس اولګیدلو اوهغه مظلوم کس بیاهم رانغلې، خوچه کله

دَخلیفه دَقیلولی وخت شو اوخلیفه خپل ارام ځائ ته لاړو نوهمدغه سړی راغی اودروازه ئی اوټکوله نوچه خلیفه را اُوتلونوهم هغه سړی اولاړو اوبیانئی یواوږد داستان شروع کړو اودَخلیفه دَخوب وخت ئی خراب کړو،خلیفه ورته اوئیل چه تاته ماوئیلی وو چه کله مجلس اولګی نوبیاراشه اوته رانغلی. ده ورته اوئیل چه څماقوم ډیرظالم اوخبیث دې ستاپه مجلس کښې اقراربه اوکړی خوورستوبیاپه ماباندې سختی کوی اوحق نه راکوی. خلیفه ورته اوئیل چه ته ماښام خامخاراشه اوپه هغه وخت کښې به څه ستاحق تاته درکړم، داسړی لاړو خلیفه دَخوب وخت ئی هم خراب کړو اوچه ماښام شو اومجلس دَقضا اولګیدلو نوبیاداسړی غائب وو. اوسهاربیاغائب اوچه کله دَقیلولی وخت راغی نوخلیفه کوروالوته حکم اوکړو چه څماسنګ ته به هیڅ څوک هم نه راپریدئ څکه چه خلیفه ډیرسترړی اوخوب عاجزکړې وو، نوعین پدی وخت کښې بیاداسړی راغی نوکوروالومنع کړوچه خلیفه حکم کړیدې چه پدی وخت کښې به هیڅ څوك ملاقات ته نه راپریدئ. ابلیس چه دَانسانی صورت کښې وو ډیرکوشش اوکړو خوکوروالونه پریخودلو خوابلیس په بندې دروازی باندې دننه لاړو،اودَخلیفه دکوټی دروازه ئی اوټکوله. نوخلیفه چه اوکتلوچه بهردروازی بندکیدلوباوجود داسړی دننه راغی نوفوراپه حقیقت حال باندې پوهه شو چه داخوابلیس دې، نوورته ئی اوئیلوچه ته دَخدائ دشمن ابلیس ئی؟ نوهغه ورته اوئیل چه هاؤ څه ابلیس یم مااوځماذریت ستاخلاف هرقسم کوشش اوکړو خوناکام شو دااخری حربه چه مااستعمال کړه اوپدیکښې هم ناکام شوم،نودَدې وجه نه دې په ذوالکفل سره مشهورشو څکه چه دکومو شرائطو ده دَالیسع سره تکفل کړې وو، اوهغه دې ذمه دارګرځولی وونوهغه ئی پوره کړو، پدی واقعه کښې تصریح ده چه ذوالکفل رجل صالح یعني یونیك سړی وو، لیکن دَسندپه اعتبارسره هم داواقعه کمزوری ده اودَاسلوب قرآنی اوسیاق قرآنی سره هم مناسبه نده، البته دامکنه ده چه اولاً دې ذوالکفل نیك سړی وو اوبیادې ورستو ورته نبوت میلاؤشوی وی، نوپه اثردَابن عباس رضی الله عنه وغیره کښې دې قبل النبوة واقعه ذکرشوی وی،اوقرآن مجید کښې دَانبیاؤ په فهرست کښې ذکرکول دَدې وجه نه، دې چه ورستوورته نبوت میلاؤ شوی وو.

علامه آلوسی رحمه الله یوبل قول هم ذکرکړیدې اوحضرت شاه صاحب رحمه الله هم هغی ته ترجیح ورکړیده چه ذوالکفل دَحضرت ایوب علیه السلام څوی وو،دَچاضمانت اخستی وو نودهغی دَوجی نه ده ته څوقیداوسخت تکلیفونه میلاؤشو دې وجی نه ورته ذوالکفل وئیلی کیږی، اوبعض فرمائی چه دادَحضرت حزقیل علیه السلام لقب دې.

خلاصه داده چه ذوالكفل دقرآني سياق په دليل نبي وو اوتفصيلي حالات ئې قرآن اواحاديث صحيحه كښې ندي ذكر، مونږ به پرې اجمالاً ايمان راوړو.

| وَذَا النُّوْنِ اِذْ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا فَظَنَّ اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ عَلَيْهِ |
| --- |
| اوياد كړئ مهى والا كله چه لاړ په حالت دغصې كښې دخپل قوم نه پس گمان ئې اوكړو چه هرگز تنگسيا به رانولو مونږ په ده باندې. |
| فَنَادٰى فِي الظُّلُمٰتِ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٨٧﴾ |
| نوفرياد ئې اوكړو په تيروكښې چه نيشته معبود (فرياد قبلونكې) سيوا ستانه، پاك ئې ته بيشكه خه يم ز ظلم كوونكونه دخان سره |
| فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ وَنَجَّيْنٰهُ مِنَ الْغَمِّ وَكَذٰلِكَ نُنْجِي الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٨٨﴾ |
| پس قبول كړو مونږ فرياد دده اوخلاصي مو وركړو ده ته دغم نه اوهمدارنگې خلاصي وركوو مونږ مؤمنانو ته |

﴿وَذَا النُّونِ إِذ ذَّهَبَ﴾ دااتم دليل نقلي تفصيلي دې په واقعې ديونس عليه السلام سره، چه دتكليف په وخت كښې يونس عليه السلام الله تعالى ته بلنه كړې وه، اوالله تعالى ورنه تكليف لرې كړې وو، او نون مهې (كب) ته وئيلې كيږي اودالقب ديونس عليه السلام دې اويونس عليه السلام دپاره ذالنون اوصاحب الحوت القاب ځكه استعمال شويدې چه ده دمهې په خيټه كښې څه وخت تير كړې وو.

يونس عليه السلام دموصل شهر (عراق ملك) كښې يوې قريې ته چه نوم ئې نينوىٰ دې مبعوث شوى وو، يونس عليه السلام خپل قوم ته ډيردعوت وركړو، ليكن دقوم سركشي اوكفربه نورهم زياتيدلو، يونس عليه السلام ددوئ نه خفه شو اودَ كلې نه اووتلو اودوئ ته ئې بددعا اوكړه اودوئ ته ئې اوئيلو چه په درې ورځوكښې به په تاسوباندې عذاب راځي، يونس عليه السلام په وتلوسره قوم په خپل عملونوباندې پښيمانه شو اودبعضورواياتومطابق دوئ دعذاب دبعض آثارومشاهده هم اوكړه نودوئ اول په يونس عليه السلام پسې اووتلوچه دهغه تالاش اوكړې اودهغه په لاس توبه اوباسي ليكن چه هغه ميلاؤنشونوټول قوم صحراء ته راووتلو اوزنانوواړه بچې دځان نه جدا كړل، څاروى اودهغوئ دَ بچوپه مينځ كښې هم جدائي راويستله، نوزبردستې چيغې اونعرې جوړې شوې دوئ الله تعالى ته زارې اوعاجزي شروع كړه اواجمالي ايمان ئې راوړونوهغه عذاب دفع كړې شو، يونس عليه السلام په بل ځائ كښې پدې خيال كښې وو چه قوم باندې به حسب وعده عذاب راغلى وى اوهلاك شوى به وى، خوچه كله ورته پته اولگيدله چه قوم باندې عذاب ندې راغلى

نو دا فیصله ئې اوکړه چه که څه واپس خپل قوم ته ځم نو هغوئ به ځما تکذیب نور هم زیات کړي اوپه بعضې روایاتو کښې دي چه دیونس علیه السلام دقوم دستور داوو چه دروغژن سړی به ئې قتلولو نو حضرت یونس علیه السلام سره دخپل ځان خطره هم پیدا شوه نو دې وجه نه خپل قوم ته واپس راتللو په ځائ بغیر دالله تعالی داجازت نه بل طرف ته هجرت شروع کړو .حضرت یونس علیه السلام بحرروم ته اورسیدلو نو یوه کشتئ تیاره وه یونس علیه السلام په کشتئ کښې کیناستلو نو دلرې سفر کولو نه، ورستو کشتئ په یوې غولئ (گرداب) کښې راګیره شوه ،نوکشتئ والاوئیلو چه ځما تجربه داده چه داکشتئ چه کله هم دسې راګیره شویده نو پدیکښې ضرور دمالك نه تختیدلی غلام وی،یونس علیه السلام ورته اوئیل چه تختیدلی غلام څه یم چه بغیر دالله تعالی داجازت نه می هجرت شروع کړیدې.

بهرحال: مشوره اوشوه چه یو کس به سمندرته اوغورځوو چه دا نورخلك بچ شي اودې دپاره ئې قرعه اوکړه نوقرعه دیونس علیه السلام په نوم رااووتله،اودریم ځلی هم دهغه په نوم رااووتله نوحضرت یونس علیه السلام ئې سمندرته اغورځولو نو الله تعالی یومهی ته حکم اوکړو نوهغه راغی اویونس علیه السلام ئې تیرکړو او الله تعالی مهی ته حکم کړې وو چه دیونس علیه السلام دبدن یو اندام ته هم نقصان اونه رسوی اودادیونس علیه السلام دپاره په منزله دیوجیل خانه وه، تردری یا اوه اویا څلویښت ورځو پورې یونس علیه السلام دمهی په خیټه کښې وو.

﴿إِذ ذَّهَبَ مُغَٰضِبًا﴾ مغاضبا دپاره مفعول محذوف دي چه "لقومه" دي اولام په معنی دعلی سره دي ای غضبان علیهم(جلالین) اوبعض مفسرین فرمائی چه مفعول ورله لربه دي اولام دتعلیل دپاره دي یعني لاجل ربه اودالله تعالی دپاره غصه کول عین ایمان دي او﴿مُغَٰضِبًا﴾ اګرچه باب مفاعله دي خو مراد تنه مجرد دي اومقصود مبالغه ده لکه عاقبت اللص اوداهم ممکنه ده چه مفاعله دي په خپلې معنی سره شي یعني مشارکت دي مراد شي اویونس علیه السلام په قوم باندي غصه وو اوقوم ده ته غصه وو خودا په هغه وخت کښې وو چه قوم ایمان نوو راوړی.

﴿فَظَنَّ أَن لَّن نَّقۡدِرَ عَلَيۡهِ﴾ ان مخففه عن المثقله دي اسم ئې ضمیرشان دي چه محذوف دي(۱) اونقدر دقدرنه دي په معنی دتنګستیاسره نومقصد دایت دادي چه حضرت یونس علیه السلام داګمان اوکړو چه څه ددي عمل دوجی نه به الله تعالی په ما باندي تنګستیانه کوی، (۲) دقتاده رحمه الله نه

مروی دې چه قدر په معنٰی دَقضاء اوفیصلی سره دې اومفعول ئی محذوف دې چه عقوبةً دې نومقصد دادې چه یونس علیه السلام گمان دااوکړو چه الله تعالیٰ به په ماباندې دَعقوبت اوسزا فیصله نه کوی، (قرطبی)(۳) اوبعض فرمائی چه دادَقدرت نه دې اودلته نفی دَقدرت نه ده مرادبلکه نفی دَاعمال قدرت اواستطاعت مراده مجازا. یعني یونس علیه السلام گمان داوو چه مونږ به دَده خلاف خپل قدرت نه استعمالو(۴)بعض مفسرین فرمائی چه دلته حرف استفهام مقدردې اواستفهام دَپاره دَتوبیخ اوزجردې یعني آیادده گمان داووچه مونږ په ده باندې قادرنه یو(۵) اوبعض علماء فرمائی چه دادَباب تمثیل نه دې یعني دَیونس علیه السلام دحالت تشبیه ورکړې شویده دَهغه سړی دَحالت سره چه هغه دَالله تعالیٰ په باره کښې گمان دَعدم قدرت وی اووجه دَشبهی تغافل دې، لیکن دااخری توجیه ضعیف ده.

﴿فَنَادَىٰ فِي ٱلظُّلُمَٰتِ﴾ظلمات یاحقیقة جمع مرادده څکه چه دری(۳)تیری وی یوظلمت دَشپی اوبل دَبحر اودریم ظلمت دَمهی دَخیتی وو اوبعض فرمائی چه جمع تشبیهی اومجازی ده چه داسخت ظلمة اوتیره په منزله دَدیروظلمتونوحساب کړیده

﴿أَن لَّآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنتَ﴾ان یامخففه عن المثقله دې اسم ورله ضمیرشان محذوف دې اویاان تفسیریه دې اوخپل ځان ته دَظالم نسبت کول دَخطاء فی الاجتهاد دَوجی نه دې اوخطاء فی الاجتهاد معصیت اوگناه ندې بلکه یونس علیه السلام دَیوخلاف اولی کارارتکاب کړې وو، چه خپل اجتهاد ئی اوکړو اودَحکم الهی انتظارئی اونکړواوچونکه ظلم کلی مشکك دې نوځرنگه چه ددې اطلاق په کفراوشرك باندې کیږی نوهمدغه شان په خلاف اولی کارباندې ئی هم اطلاق کیږی. اودینه امام بخاری تعبیرپه ظلم دون ظلم سره کوی، اوپه یونس علیه السلام باندې دآبق اطلاق پدی ایت کښې چه اذ ابق الی الفلك اوابق معصیت دې نودااطلاق صرف صورتاً دې.

**فائده**: دَحضرت یونس علیه السلام دادعاپه دری(۳) جملوباندې مشتمله ده اوله جمله کښې تهلیل دې اومقصود پدی سره حصر دَالوهیت دې په ذات دَالله تعالیٰ پوری، چه حقداردَبندگئ سیوادَالله تعالیٰ نه بل څوك نیشته، دویمه جمله مشتمله ده په تسبیح اوتنزیه دَالله تعالیٰ باندې اوداجمله په منزله دَدلیل دې دَماقبل جملی دَپاره، چه حقداردَبندگئ څکه الله تعالیٰ دې چه دَهرقسم عیب نه پاك دې، که هغه عیب دَشرك وی یاعجز، یافناء وی دَتولونه الله تعالیٰ پاك اومنزه دې

اودریمه جمله مشتمله ده په اقراردَذنب باندي چه دَداسی ذات حکم ته انتظارنه کول هم یوقسم ظلم دي.

**فائده نمبر۲**: په احادیثوکښ دَدي ډیرفضیلت اوخاص طوردَتکلیف اوپریشانئ په وخت کښ دَدي ورد ډیرمؤثردي،حدیث کښ دي چه نبیﷺ ارشادمبارك دي: مامن مکروب یدعو بهذاالدعاء الااستجیب له(ترمذی) یعني کوم پریشان حاله انسان چه پدی الفاظوسره دعااوغواړی نودَهغه دعاضرور قبلیږی، اوبل روایت کښ دي دَحضرت سعدبن ابی وقاصؓ نه روایت دي چه نبیﷺ ارشاد اوفرمائیلوچه: دعآء ذی النون فی بطن الحوت لااله الاانت سبحنك انی کنت من الظلمین لم یدع به رجل مسلم فی شئ قط الااستجیب له(ابوداؤد،ترمذی، حاکم) یعني دَ ذوالنونؑ هغه دعاچه ده دَمهی په خیټه کښ کړې وه چه لااله الاانت الخ ده چه کوم مسلمان دَخپل کوم حاجت دَپاره پدی الفاظوسره دعااوغواړی نو اللهﷻ به ضرورقبولوی.

اوابن کثیرؒ دَحضرت حسن بصریؒ نه نقل کړیدي چه لااله الاانت الخ اسم اعظم دي.

﴿فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ﴾دَدي تفصیل په سورة الصافات کښ ذکردي چه ځوورځی ورستو مهی حضرت یونسؑ په ساحل باندي ډیردَضعف په حالت کښ اوغورځولو،اواللهﷻ پری کدوبوټی رازرغون کړو،تفصیل به په سورة الصافات کښ راشي(انشاء الله).

﴿وَنَجَّيۡنَٰهُ مِنَ ٱلۡغَمِّ﴾غم نه مراد هرقسم خفګان دي که هغه خفګان دَخلاف اولی کارکولو باندي وو، یادَمهی په خیټه کښ خفګان وو،﴿وَكَذَٰلِكَ نُـۨجِي ٱلۡمُؤۡمِنِينَ﴾کاف دَتشبیه دَپاره دي اومشارالیه نجات دَیونسؑ دي نومقصد دادي چه څرنګه یونسؑ ته نجات میلاؤشوی وو چه هغه ډیرپه اضطرابی، اوعجزکیفیت سره دعااوغوختله نودغه شان چه کوم مؤمن دَشرائطو اوادابو موافق دعااوغواړی نوهغه به هم قبولولی شي اوده نه به هم دَپریشانیونه نجات ورکولی شي،نوګویا چه داشرط دي دَدعا کوونکوسره دَجانبه دَاللهﷻ نه چه ددوئ دعاګانی څه قبولوُم ابن جریرؒ روایت نقل کړیدي دَحضرت سعدبن ابی وقاصؓ نه چه هغه اوفرمائیلو:سمعت رسول اللهﷺ یقول اسم الله الذی اذادعی به اجاب واذاسئل به اعطی، دعوة یونس بن متی. قال قلت یارسول الله هی لیونس خاصة ام لجماعة المسلمین قال هی لیونس بن متی خاصة ولجماعة المؤمنین عامة اذا دعوابها الم تسمع قول الله عزوجل فنادی فی الظلمات ان لااله الاانت سبحنك انی کنت من

الظلمين، فاستجبناله فنجيناه من الغم وكذلك ننجي المؤمنين، فهوشرط من الله لمن دعاء به. يعني مادنبیﷺ داارشاد واوریدلو چه هغه اوفرمائیلوچه دالله ﷻ هغه نوم چه کله هم په هغی سره دعااوکړي شي قبولولی شي اوچه څه ورسره اوغوختلی شي ورکولی شي دعادیونس بن متیٰ علیه السلام وه. سعد رضی الله عنه فرمائی چه ماعرض کړوچه ای دالله ﷻ رسوله چه دا صرف دیونس علیه السلام سره خاص وه (دا صرف دهغه خصوصیت وو چه پدی الفاظو سره دعاقبوله شوه) او که هرمسلمان لره عام ده، نبیﷺ اوفرمائیلوچه دادعاخاص طورغوختلی یونس علیه السلام وه او خوداعامه ده ټوله جماعت دمسلمانانو ته چه هغوئ پدی سره دعااوکړی (نودعابه ئی قبلیږی) آیاتادالله ﷻ قول ندې اوریدلی چه الله ﷻ فرمائی ﴿فَنَادَىٰ فِي ٱلظُّلُمَٰتِ﴾ الایه. نودادالله ﷻ دطرف نه شرط دې (دقبولیت) دهغه چادپاره چه پدی سره دعااوکړی.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَزَكَرِيَّآ | إِذۡ | نَادَىٰ | رَبَّهُۥ | رَبِّ | لَا | تَذَرۡنِي | فَرۡدٗا | وَأَنتَ | |
| او (یادکړئ) زکریا علیه السلام کله چه فریادئی اوکړو رب خپل ته ای ربه ځمامه پریږده مالره یواځي اوته ئی | | | | | | | | | |
| خَيۡرُ | ٱلۡوَٰرِثِينَ | ﴿٨٩﴾ | فَٱسۡتَجَبۡنَا | لَهُۥ | وَوَهَبۡنَا | لَهُۥ | يَحۡيَىٰ | وَأَصۡلَحۡنَا | |
| ډیرغوره دباقي پاتي کیدونکونه. پس قبوله کړه مونږ دعا دهغه او ورکړو مونږ هغه ته یحیی اوقابله کړه مونږ | | | | | | | | | |
| لَهُۥ | زَوۡجَهُۥٓ | إِنَّهُمۡ | كَانُواْ | يُسَٰرِعُونَ | فِي | ٱلۡخَيۡرَٰتِ | وَيَدۡعُونَنَا | | |
| هغه لره بی بی دهغه (دپاره داولاد) بیشکه دوئ به وو چه سیالي به ئی کوله په نیک کارونوکښ اوحاجتونه ئی غوختل زمونږ نه | | | | | | | | | |
| رَغَبٗا | وَرَهَبٗا | وَكَانُواْ | لَنَا | خَٰشِعِينَ | ﴿٩٠﴾ | وَٱلَّتِيٓ | أَحۡصَنَتۡ | | |
| امیدلرونکی (دقبولیت) اوویره کوونکی (دعذاب نه) او وو دوئ مونږ ته عاجزی کوونکی. اوهغه زنانه (مریم) چه بچ ئی ساتلی وو | | | | | | | | | |
| فَرۡجَهَا | فَنَفَخۡنَا | فِيهَا | مِن | رُّوحِنَا | وَجَعَلۡنَٰهَا | وَٱبۡنَهَآ | ءَايَةٗ | لِّلۡعَٰلَمِينَ | ﴿٩١﴾ |
| خپل عورت نوپوکی اوکړو مونږ په هغې کښ دروح دطرف زمونږ نه او اوګرځوله مونږ دغه (مریم) اوخوئ دې نخه دپاره دخلکو | | | | | | | | | |

﴿وَزَكَرِيَّآ إِذۡ نَادَىٰ رَبَّهُۥ﴾ دا نهم دلیل نقلی تفصیلی دې دزکریا علیه السلام نه، چه اولاد دپاره ئی زمونږ نه سوال کړې وو. اوهغه ته اولاد ورکوونکی مونږ وو. واقعه دحضرت زکریا علیه السلام په

سورة آل عمران، اوسورة مريم کښ تفصيلا ذکرشويده﴿وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلۡوَٰرِثِينَ﴾ داعطف دې په مقدرباندې يعني فارزقني وارثا وانت خيرالخ (خازن)﴿فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ﴾يعني دَده دعاقبولول زمونږه کاروو،﴿وَوَهَبۡنَا لَهُۥ يَحۡيَىٰ﴾ولداً ورسره مقدردې،﴿وَأَصۡلَحۡنَا لَهُۥ زَوۡجَهُۥٓ﴾ غوره قول دادې چه ددينه مراد صلاحيت دهغې وو دَپاره دَولد، ځکه چه دَدې دعانه مخکښ دَهغې اولادنه کيدلو اودَاولاد صلاحيت پکښ نوو.

﴿إِنَّهُمۡ كَانُواْ يُسَٰرِعُونَ﴾ضميرراجع دې مذکورتول انبياء کرامو عليهم السلام ته، اودرې اسباب ذکرکيږي په هغوئ باندې دَانعاماتو دَپاره نودااول سبب دې چه په دوئ باندې دَالله تعالىٰ دَطرف نه داانعامات اودَدوئ دعاګانې قبليدل دَدې وجې نه وو(۱) چه دوئ به مبادرت کولوپه طاعاتو کښ (بحر) اودَمسارعت په صله کښ عام طورباندې الى راځي لکه سارعوا الى مغفرة(ال عمران:۱۳۳) ليکن دلته په ځائ دَالى فى راوړې شوه پديکښ اشاره ده ددوئ ثبات اواستقامت ته په اصل کارونودَخيرباندې،چه ګويادوئ پدې خيرکارونوکښ وو،اوصرف دانووچه هغې طرف ته به ئې ميلان کوو،اودهغې نه خارج وو(ابوسعود).

﴿وَيَدۡعُونَنَا رَغَبٗا وَرَهَبٗا﴾دادويم سبب دې يعني دوئ په هرحالت کښ سوال الله تعالىٰ ته کړيدې اورغباورهبا(۱)يومقصددادې چه ددوئ دَدعاکيفية داووچه دَالله تعالىٰ دَرحمت اميدئې لرلواودهغه دَعذاب نه ويره لره لو(۲)دويم مقصددادې چه دوئ به په حالت دَامن اوخيرکښ هم دَالله تعالىٰ نه سوال کوواودهغه عبادت به ئې کولواوپه حالت دَسختئ اوتکليف کښ هم دَالله تعالىٰ نه سوال کولو.

﴿وَكَانُواْ لَنَا خَٰشِعِينَ﴾دادريم سبب دې چه دوئ الله تعالىٰ ته عاجزى کوونکى وو اوعاجزى اواخلاص شرط دې دَقبوليت دعبارت دَپاره،﴿وَٱلَّتِيٓ أَحۡصَنَتۡ فَرۡجَهَا﴾ دالسم(۱۰)دليل نقلي تفصيلى دې دَحضرت مريم اوحضرت عيسى عليه السلام نه چه حضرت مريم صديقه رضي الله عنها دَالله تعالىٰ حکم ته مجبوره وه اوعاجزه وه اوحضرت مريم عليها السلام اګرچه نبى نوه خودَدې ذکرصرف دَاتمام دَواقعى دَعيسى عليه السلام دَپاره کيږي اواحصان دلته په معنى لغوى سره دې يعني مطلق منع اوحفاظت په معنى سره دې، فرج نه مراد عورت اوشرمګاه ده مقصددَايت دادې چه هغې دَخپل عورت حفاظت

کړي وو نه ورته چاپه جائزطريقې سره نزديکت کړې وو اونه په ناجائزطريقي سره اويافرج نه مراد فرج دَقميص دې چه هغه څلوردي دوه(۲)لستونړي يوګريبان اويولاندې دلمن نه يعني طاهرة الاثواب وه چه دَدې په کپړو کښې هم دَڅه شك ځائ نوو.اوپديکښې دَهغې دکمال عفت بيان دې.

﴿فَنَفَخْنَا فِيهَا﴾نفخ روح نه مراد احياء يعني ژوندې کول دې اونفخ حقيقة نده مراد اوروح نه مراد روح دَعيسى عليه السلام دې او اضافت دَروح ضميردَمتکلم ته تشريفادې اويانفخ حقيقة مراددہ اومن ابتدائيه دې اوروح نه مراد جبرئيل عليه السلام دې او اضافت دَنفخ ضميردَمتکلم ته مجازادې،لکه په سورة مريم کښې دې: فارسلنااليهاروحنا الخ مقصد دادې چه دَحضرت جبرئيل عليه السلام په ذريعې سره مونږ روح پو کړو (بحر) اوکه څوك اشکال اوکړي چه نفخ دَروح عبارت دې دَاحياء نه نوددينه خواحياء دَحضرت مريم عليها السلام ثابته شوه،نه دَحضرت عيسى عليه السلام ځکه چه فيهاکښې ضميرراجع دې حضرت مريم عليها السلام ته جواب تنه علامه زمخشري رحمه الله وغيره داکړيدې چه په عبارت کښې تقديردې اصل عبارت داسې دې: فنخفناالروح في عيسىٰ فيها، يعني مونږ عيسى عليه السلام دَدې په خيټه کښې ژوندې کړو ،اونظيردَدې قول دَزمّار(باجی وهونکی) دې. چه وائی نفخت في بيت فلان،نوداپه اصل کښې داسې دې،نفخت في المزمارفي بيته، باقي دَدې ايت تفصيل په وسورة النساء کښې تيرشويدې تفصيلا.

﴿وَجَعَلْنَاهَا وَابْنَهَا آيَةً لِّلْعَالَمِينَ﴾اية مفردذکرشوځکه دَدوئ دواړو مجموعه حالت يولويه نښانی وه يعني ولادت دَعيسى عليه السلام بغيردَنزديکت دَنارينه نه، حضرت مريم عليها السلام ته.اويايوآية محذوف دې تقديردَعبارت داسې دې وجعلناهااية وابنهااية.

| إِنَّ هَٰذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاعْبُدُونِ ﴿٩٢﴾ |
|---|
| بيشکه دادين دَانبياء مذکوره(دين ستاسودې په داسې حال چه يودين دې اوزه رب ستاسويمه نوخاص ماله بندګي کوئ |
| وَتَقَطَّعُوا أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ ۖ كُلٌّ إِلَيْنَا رَاجِعُونَ ﴿٩٣﴾ فَمَن يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتِ |
| اوټکړې ټکړې کړو دوئ دين خپل په کورنئ کښې .داټول به زمونږ طرف ته راګرځي پس چاچه عمل اوکړو دَنيك عملونو نه |
| وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا كُفْرَانَ لِسَعْيِهِ وَإِنَّا لَهُ كَاتِبُونَ ﴿٩٤﴾ |
| اوحال داچه دې مؤمن وو پس نه به کيږي ناشکري دَده دسعی(عمل)اوبيشکه مونږ دهغې دپاره ليکونکی يو، |

| وَحَرٰمٌ | عَلٰى قَرْيَةٍ | اَهْلَكْنٰهَآ | اَنَّهُمْ | لَا يَرْجِعُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اومقرر ده | په هريوكلي | چه هلاك كړيدې مونږ | چه بيشكه دوئ | به دنياته واپس نشي راتللى |

﴿إِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ﴾ دا متعلق دي دټولو مذكوردلائلونقليو سره امت دلته په معنى دملت سره دي اومرادتنه ملت اسلام دې اودين توحيددې، او ﴿أُمَّةً وَٰحِدَةً﴾ كښې واحدة په معنى دمتوحدة يعني غيرمتفرقة سره دې نومقصددادې چه ملت اسلام اوتوحيددټولو انبياء كرامو عليهم السلام ملت اودين دې نوتاسوهم پدې ملت باندې قائم دائم شئ اودَدينه انحراف مه كوئ(مدارك).

﴿وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱعْبُدُونِ﴾ حضرت شيخ رحمه الله فرمائي چه .واو تفسيريه دې اوداجمله تفسيراوبيان دې دَماقبل جملې يعني﴿أُمَّةً وَٰحِدَةً﴾ چه ملت واحده دادې چه څمانه بغيربل څوك رب اونه ئيلې شې اوڅمانه علاوه دَبل چاعبادت اونكړې شې﴿وَتَقَطَّعُوٓا﴾ دادَسوال مقدرته جواب دې سوال دادې چه كله ټول انبياء كرام په توحيدباندې متفق وو اوټولودَتوحيدپيغام رسولې دې نوبياشرك اودااختلافات په دين كښې څرنګه راغلو؟ نوجواب تنه اوشوچه ټولوانبياء كرامو دَتوحيددعوت اوپيغام رسولي وو، ليكن ورستوبياخثوناخلف كسانودَخپلوخواهشاتوپه بنياد پدې دين كښې اختلافات پيداكړل،نومراد دَتقطع نه اختلافات پيداكول دې او امرَهم نه مراد دين توحيددې اودامنصوب دې بنزع الخافض په اصل كښې في امرهم دې اويادامفعول به ده دَ﴿وَتَقَطَّعُوٓا﴾ دپاره اودې ورته بالذات متعدي دې ځكه چه تفعل په معنى دَتفعيل سدې دې اويادَدې وجه نه چه تقطعوا متضن دې معنى دَجعل لره اى جعلوا الرد بينهم فيمابينهم قطعا(روح).

﴿كُلٌّ إِلَيْنَا رَٰجِعُونَ﴾ داتخويف اخروى دې﴿فَمَن يَعْمَلْ مِنَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ﴾ دابشارت اخروى دې اوتفصيل اوتشريح دَماقبل ده چه مونږته ئې رجوع اوشي نونيكانوته به دَنيك عمل اجرميلاؤشي. اوبدكاروته به دَبدعمل سزاوركړې شي﴿فَلَا كُفْرَانَ لِسَعْيِهِۦ﴾ مرادتنه ناقدرى اوضائع كول دَاعمالودې يعني ددوئ دَاعمالوناقدرى به نه كيږى اوثواب به ئې نه ضائع كيږى

اودلته نفی دَجنس اوشوه ځکه چه دامبلغه ده نفی دَجنس مستلزم وی نفی دَجمیع افرادولره (کشاف).

﴿وَإِنَّا لَهُۥ كَٰتِبُونَ﴾ تاکیددي دَماقبل دَپاره ځکه چه کوم شي اولیکلي شي نوهغه نه ضائع کیږی ﴿وَحَرَٰمٌ عَلَىٰ قَرۡيَةٍ﴾ داتخویف دي منکرینوته اودَدې ایت په تفسیرکښ ډیرتوجیهات دي ځکه چه دَدې ایت ظاهری معنٰی نده مراد چه هغه متعارضه ده دَنوروٕنصوصوسره،ځکه چه دَدې ایت ظاهری معنٰی داده چه کوم خلك مونږهلاك کړیدي دکفردَوجی نه هغه به دنیاته واپس کیږی اویابه توبه اوباسی ځکه چه حرام معنًا نفی ده او ﴿لَا يَرۡجِعُونَ﴾ هم نفی ده اونفی چه په نفی باندي داخله شي نودَاثبات فائده ورکوی او﴿يَرۡجِعُونَ﴾ نه مراد یارجوع الی الدنیاده اویارجوع الی التوبة ده.نومعنٰی ئی داشوه چه هلاك شوی قومونوباندي رجوع کول حرام یعني منع دي نولهذا رجوع کول ضروری شو،اودامعنٰی دَنورایتونوسره متعارضه ده لکه سورة المؤمنون ایت نمبر(۱۰۰)اوسورة یس ایت نمبر(۳۱)شو، نودَدې وجه نه پدی ایت کښ دَمفسرینو متعدد توجیهات دي(۱)حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دي چه﴿وَحَرَٰمٌ﴾دلته په معنٰی دَوجب اوقدرسره دي نومعنٰی ئی داشوه چه کوم خلك هلاك شویدي دکفردَوجی نه په هغوئ باندي داخبره ثابته اومقرره چه هغوئ به دنیاته نشي واپس کیدلی(۲)دویمه توجیه داده چه حرام په معنٰی دَممتنع الوجود یعني ناممکن سره دي اواهلکنا په معنٰی دَقدرنا اهلاکهم سره دي او﴿لَا يَرۡجِعُونَ﴾ نه مراد عدم رجوع الی الاخرة دي، نوحرمت اوامتناع راجعه ده عدم رجوع ته، نودَایت مقصدداشو چه دکوموخلکودَ هلاکت فیصله مونږ کړیده نودَهغوئ عدم رجوع الی الاخرة محاله اوناممکنه ده نوچه کله عدم رجوع محاله شو نو رجوع ئی واجبه شوه، نومطلب داشو چه دوئ به زمونږ طرف ته خامخارا ځی دَپارهٔ دَسزا دَخپلو عملونو(بحر).

(۳)دریمه توجیه داده چه لا زائددي او﴿أَهۡلَكۡنَٰهَآ﴾په معنٰی دَقدرنا اهلاکهم سره دي او﴿لَا يَرۡجِعُونَ﴾نه مراد رجوع الی الاسلام والتوبه ده نودَایت مقصدداد ي چه دکوموخلکودَهلاکت فیصله مونږ کړیده نودَهغوئ اسلام ته راتلل اودکفرنه توبه ویستل حرام یعني ناممکن دي ځکه

چه دَدوئ په زړونو باندې مهرد جباريت ثبت شويدې(۴)، څلورمه توجيه داده چه ﴿أَهْلَكْنَٰهَا﴾ به خپلى معنى سره دې اولازائدې اورجوع نه مراد رجوع الى الدنياده، نومقصد دادې چه کوم خلک مونږ هلاک کړيدې دهغوئ دنياته واپس کيدل ناممکن وي.

(۵)حضرت شيخ رحمه الله ددې تفسيرداسى کړيدې چه حرام خبردې دمبتداء مقدرى دپاره نو اصل کښ داسى دې الايمان حرام على قرية اهلكنها، او ﴿أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ﴾ بيان دې دماقبل چه کوم قومونو مونږ هلاک کړى وو نوهغوئ دخپل کفرنه، نه واپس کيدلو يعنې ازلى بدبخت وو اوحضرت شاه منصورباباجي رحمه الله توجيه داده چه﴿وَحَرَٰمٌ﴾ په معنى دممتنع سره دې او﴿أَهْلَكْنَٰهَا﴾ياپه معنى خپلى سره اوياپه معنىٰ دقدرنااهلاکهم سره دې او﴿لَا يَرْجِعُونَ﴾ کښ لام زائدندې بلکه مفعول د﴿يَرْجِعُونَ﴾ دپاره محذوف دې چه الى الله دې يعنې الله ﷻ ته رجوع کول د دوئ دامتنع دې.

حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ ﴿٩٦﴾

ترددې پورې چه کله پرانستى شي ياجوج وماجوج اودوئ به دهرې ديرئ نه منډې وهي.

وَٱقْتَرَبَ ٱلْوَعْدُ ٱلْحَقُّ فَإِذَا هِىَ شَٰخِصَةٌ أَبْصَٰرُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟

اوديره به نزدې شي وعده حقه پس دغه وخت به وازې وى سترګې دهغه خلکو چه کفرئى کړيدې

يَٰوَيْلَنَا قَدْ كُنَّا فِى غَفْلَةٍ مِّنْ هَٰذَا بَلْ كُنَّا ظَٰلِمِينَ ﴿٩٧﴾ إِنَّكُمْ

(وائ به) هائى تباهى ده زمونږ، يقيناً وو مونږه په غفلت کښ ددې نه بلکه وو مونږه ظالمان،بيشکه تاسو

وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ أَنتُمْ لَهَا وَٰرِدُونَ ﴿٩٨﴾

اوهغه څوک چه تاسوئى بندګى کوئ سيوادالله ﷻ نه،خشاک دجهنم دې، تاسوبه هغې ته ورننوځئ

لَوْ كَانَ هَٰٓؤُلَآءِ ءَالِهَةً مَّا وَرَدُوهَا وَكُلٌّ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٩٩﴾ لَهُمْ

کچرى وې دوئ حقداردبندګئ،نه به ورننوتلې جهنم ته اودوئ ټول به په هغې کښ وې هميشه دپاره، ددوئ دپاره به وي

| فِيهَا | زَفِيرٌ | وَّهُمْ | فِيهَا | لَا | يَسْمَعُوْنَ | ⊙ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په هغې | کښې | هنړاري | اودوئ به | په هغې | کښې هيڅ نه | اوري، |

﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ ﴾داتخويف اخروی دې او﴿حَتَّىٰ﴾ابتدائيه دې ځکه چه عاطفه اوجاره بغيردتاويل نه نه صحيح کيږی اوفتح دياجوج ماجوج عبارت دې دوقوع دقيامت نه اودائی ځکه عبارت اوګرځودوقوع دقيامت نه چه دقيامت په علامات کبرئ کښ دتولونه زياته قريبه اواخری علامه به داوی لکه صاحب دروح المعانی په حواله دامام احمدبن حنبل رحمه الله روايت نقل کړيدې ان الساعة بعدان يهلك ياجوج وماجوج كالحامل المتم لايدرى اهلها حق تفجاهم بولادهاليلاً اونهاراً يعني دماجوج، ماجوج هلاکت نه بعدقيامت به داسی قريب وی لکه هغه زنانه چه حمل ئ پوره شوی وی اودکوروالوته ئی داپته نه لګی چه څه دشپې يادورځې په کوم وخت کښ ددې بچی پيداکيږی اودغه شان دقيامت نه لږ مخکښ سخت ددهشت اوخوف والاوخت اوحالت به داوی، نوځکه ئی دوقوع دقيامت نه تعبيرپدی سره اوشواوحتی نه بعدمجموعه کلام غايه ده دماقبل مجموعی دپاره نوداَيت مقصددادې چه دوئ به پدی خپل حالت يعني امتناع اهلاك وغيره باندې مستمروی حتی چه ياجوج، ماجوج په کولاؤشي اودهغی نه بعدزربه قيامت قائم کړې شي اودوئ به مونږ ته حاضرشي نوپدی وخت کښ به افسوس اوکړی چه ياويلناقدکنا اوغايه ده دحرمت دپاره فقط چه په دنياکښ په دوئ باندې مهرجباريت ثبت کيدلودوجی نه رجوع الی التوبة خونامکنه ده خوچه کله دياجوج اوماجوج راوتلونه پس قيامت قائم شي نوبيابه دوئ توبه اوباسی خودارجوع الی التوبه به دوئ ته نفع نه ورکوی ‹‹روح›› اوياغايه ده دلايرجعون دپاره مقصد دتولو احتمالاتويودې.

﴿وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ ﴾غوره قول دادې چه ضميرراجع دې ياجوج اوماجوج ته اوحدب ډيرئ اواوچت ځائ ته وائی او﴿يَنسِلُونَ﴾دباب ضرب يضرب نه په معنی دسرعت سره دې اوپديکښ ددوئ کثرت ته اشاره ده اودغه شان ديته هم اشاره ده چه ددوئ دراتګ اودزمکی دتسلط حاصلولوکښ به هيڅ شئ به رکاوټ نوی،اوبعض علماء فرمائی چه ضميرراجع دې عام مخلوقاتوته،اوحدب نه مراد قبردې اودحضرت مجاهد رحمه الله نه په يوقرائت کښ په ځائ د حدب جدث لفظ راغليدې اوجدث قبرته وئيلی کيږی لکه په سورة يس ايت نمبر(۵۱)کښ دې نومطلب

دادې چه دَنفخ ثانيه نه پس به هرڅوك دَخپل قبرنه راپاسي اومحشرته به ځي. باقي دياجوج اوماجوج پوره تفصيل په سورة الكهف كښ تيرشويدې.

﴿وَٱقۡتَرَبَ ٱلۡوَعۡدُ ٱلۡحَقُّ ﴾الوعد الحق نه مرادقيامت دې اومزيديعني افتعال په خاۍ دَمجردو يعني قرب راوړل دَپاره دَمبالغى دې په قرب اونزديكت كښ چه دَياجوج اوماجوج دَراوتلونه پس به قيامت ديرقريب وى اوپه رواياتوكښ دي چه ياجوج،ماجوج به دَحضرت عيسى عليه السلام وفات اودَنفخ اولى په مينځ كښ به يوسل شل(۱۲۰) كاله عمربه وى، ليكن كال به دَمياشتى په برابروى اومياشت به دَجمعى اوجمعه به دَورځى برابروى،نوپدى اعتبارسره دَحضرت عيسى عليه السلام وفات اودَنفخ اولى په مينځ كښ به صرف(۱۲)كاله معتادو، فرق به وى (جمل)

﴿فَإِذَا هِىَ شَٰخِصَةٌ﴾داجزاء ده دَماقبل شرط ﴿﴾دَپاره اودا ذكردَيوهيبتناك حالت دي دَقيامت او اذا مفاجاتيه دې، او﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتۡ﴾ ضميرقصه دې او ﴿أَبۡصَٰرُ ٱلَّذِينَ﴾مبتدا مؤخره ده او﴿شَٰخِصَةٌ﴾خبرمقدم دې اوداټوله جمله بياخبردې دَضميرقصه دَپاره، ځكه چه ضميرقصه دَپاره تفسيرجمله واقع كيږى اوكه څوك اشكال اوكړى چه شخوص دَابصاربه دَنفخ ثانيه نه ورستووى، نودَدې ترتب به په فتح دَسدياجوج وماجوج اوپه اقتراب دَقيامت باندي به څرنگه صحيح شي؟ نوجواب تنه دادې چه داتعقيب اوترتب عرفى دې اوپدى سره مقصود مبالغه ده يعني عرف پدى جارى دې چه علامت اقرب ظاهريدلونه اودَاقتراب دَامرنه تعبيرپه عين شئ اوپه عين امرسره كولى كيږى، اوياتنه جواب دادې چه دَفتح دَياجوج،ماجوج اودَنفخ ثانيه په مينځ كښ تفاوت قليل په منزله دَعدم فرض كړې شويدې،نودَدې وجه نه دَدې ترتب په فتح دَ ياجوج،ماجوج باندي اوشوه(جمل). ﴿يَٰوَيۡلَنَا﴾دَدې نه مخكښ يقولون مقدر دې اودابه دَوئ دَقيامت په ورځ دَخپلوجرمونواقراركوى، خوهيڅ فائده اونفع به ورته نه وركوى.

﴿بَلۡ كُنَّا ظَٰلِمِينَ﴾اعراض دې دَماقبل نه چه غفلت كښ نوو،ځكه چه انبياء كرام راغلى وو اودلائل اومعجزات ظاهرى شوى وو،خومونږ په خپل ځانونوباندې قصدا اوعمدا ظلم كوونكى وو(بحر). ﴿إِنَّكُمۡ وَمَا تَعۡبُدُونَ﴾دَدينه مرادبتان،گمراه پيران اوگمراه ملايان دې، چه هغوئ خلكوته دَالله ﷻ نه علاوه نورچاته دَعبادت كولوحكم كړى وى،اوياني خپلوځانونوته

دَسجدې لګولو حکم کړې دي. او دالله ﷻ نیکان بندګان لکه انبیاء کرام یااولیاء الله چه دهغوئ عبادت شویدې اوهغوئ خپلوخانونوته معبودان ندې وئیلی اوئه ئی دخلکودا عمل خوښ کړیدې هغوئ ته ندې مراد په دلیل دَدې ورستو ایت سره چه ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ سَبَقَتۡ لَهُم مِّنَّا ٱلۡحُسۡنَىٰٓ﴾ ځکه چه کله دا ایت نازل شو نو کفارډیرسخت خفه اوغصه شو اوابن الزبعری ته راغلو نوهغه په دې ایت باندې اعتراض اوکړو چه دَدې ایت مطابق حضرت عزیر ﷺ اوحضرت عیسی ﷺ اوملائکوبه هم جهنم ته ځی ځکه چه دَهغوئ عبادت هم شویدې. نو الله ﷻ داورستو ایت ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ سَبَقَتۡ﴾ نازل کړو اودَابن الزبعری دااعتراض بی ځایه اوبی محله هم وو ځکه چه په ایت کښ داسی ندې وئیلی شوی چه ﴿إِنَّكُمۡ وَمَا تَعۡبُدُونَ﴾ یعني صیغه دَغائب مجهول نده ذکرشوی بلکه صیغه دَفعل مخاطب معلوم ذکرشویده. اومخاطبین کفاروو. اوکفارمکه دَحضرت عزیر ﷺ اویادَحضرت عیسی ﷺ عبادت نووکړې اوحصب وئیلی کیږی خشاك ته اوخشاك دَحطب یعني دَعامولرګوپه مقابله کښ کمتراوناقدره وی نوپدیکښ دَهغوئ دَبتانوذلت طرف ته اشاره ده.

﴿لَوۡ كَانَ هَٰٓؤُلَآءِ﴾ دادلیل دې په ابطال دَالهوباطلوباندې.یعني کچرته دابتان خدایان وی نودوئ به جهنم ته نه داخلیدې.

﴿وَكُلٞ فِيهَا﴾ مرادتنه عابداومعبود دواړه دي.﴿لَهُمۡ فِيهَا زَفِيرٞ﴾ زفیروئیلی کیږی دَغمژن اوژړیدونکی سړی هغه اوازته چه دَزړه نه رااوځی اودَزړه خواری ورسره وی اودااوازبه دکافرانو چه عابدین وو اودهغوئ دګمراه معبودینودَانسانانونه اودَشیاطینودَپاره به وی اودَاصنام یعني بتانودَپاره به وی اوکه نه؟ نوپدیکښ دَمفسرینو نه دوه(۲) اقواله راغلیدې. یوقول دادې چه اصنام جهنم ته غورځول به صرف دکفارو تذلیل دَپاره وی اواصناموته به تعذیب مقصودنوی. ځکه چه هغوئ مکلف ندې نودَدې وجی نه به دَهغوئ دَپاره به زفیرهم نوی. دویم قول دادې چه الله ﷻ به اصناموته حیات ورکړی اودَهغوئ حالت به هم هغه وی کوم چه دَدې کفارودې.

﴿وَهُمۡ فِيهَا لَا يَسۡمَعُونَ﴾ نه اوریدل به یادَدې وجی نه وی چه دوئ به کانړه وی لکه سورة الاسراء ایت نمبر(۹۷) کښ دي چه:ونحشرهم يوم القيمة على وجوههم عميا اويابه دَدې وجی نه وی

چه دَجهنميانو شور اواوازونه به په جهنم كښې داسې وي چه څوك به دَيو بل خبرې نه اورې اودغه شان دَجهنم خپل شور اودَغصې اوازونه به هم دومره سخت وي چه جهنميان به دَيو بل خبرې نشي اوريدلی( اعاذناالله منها).

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِیۡنَ سَبَقَتۡ لَهُمۡ مِّنَّا الۡحُسۡنٰۤی ۙ اُولٰٓئِكَ عَنۡهَا مُبۡعَدُوۡنَ ﴿۱۰۱﴾ لَا يَسۡمَعُوۡنَ |
| بيشكه هغه كسان چه مخكښې مقرر شويدې دوئ دپاره زمونږ دَطرف نه جنت دوئ به دَجهنم نه لرې كړې شوی وي نه به اورې دوئ |
| حَسِيۡسَهَا ۚ وَهُمۡ فِیۡ مَا اشۡتَهَتۡ اَنۡفُسُهُمۡ خٰلِدُوۡنَ ﴿۱۰۲﴾ لَا يَحۡزُنُهُمُ الۡفَزَعُ الۡاَكۡبَرُ |
| كشار دَهغې، اودوئ به په هغه مزو كښې وي چه غواړي يې دَدوئ نفسونه هميشه ،نه به غمژن كوي دوئ لره هيبت لوئ |
| وَتَتَلَقّٰىهُمُ الۡمَلٰٓئِكَةُ ؕ هٰذَا يَوۡمُكُمُ الَّذِیۡ كُنۡتُمۡ تُوۡعَدُوۡنَ ﴿۱۰۳﴾ يَوۡمَ نَطۡوِی |
| اودَدوئ مخې له به راځي ملائك (وائي به)داورځ ده ستاسو هغه چه تاسو سره ئې وعده كړې شوې وه هغه ورځ چه راوبه نغاړو مونږ |
| السَّمَآءَ كَطَیِّ السِّجِلِّ لِلۡكُتُبِ ؕ كَمَا بَدَاۡنَاۤ اَوَّلَ خَلۡقٍ نُّعِيۡدُهٗ ؕ |
| اسمانونه پشان دَرانغختلو دَرجسترو الا كتابونو لكه چه شروع كړې وه مونږ به اول پيدائش دوباره به هم دغسې كوو. |
| وَعۡدًا عَلَيۡنَا ؕ اِنَّا كُنَّا فٰعِلِيۡنَ ﴿۱۰۴﴾ |
| وعده ده په مونږ باندې بيشكه مونږ كوو داكار |

﴿اِنَّ الَّذِیۡنَ سَبَقَتۡ﴾ دا بشارت اخروی دې اوجواب دې دَابن الزبعری دَقول او ﴿سَبَقَتۡ لَهُمۡ مِّنَّا الۡحُسۡنٰی﴾ نه يامراد وعده دَجنت ده يعني دوئ سره زمونږ دَطرف نه دَجنت وعده كړې شويده اوياتنه مراد دَنيك اعمالو اودَسعادت حاصلولو توفيق دې اوياتقديرالهی دې يعني مونږ دوئ دَپاره په تقديرازلی كښې جنت ليكلي دې اومرادپه موصول سره عيسىٰ عليه السلام اوعزير عليه السلام اواولياء الله دي.

﴿اُولٰٓئِكَ عَنۡهَا مُبۡعَدُوۡنَ﴾ پدې باندې اشكال واردېږی چه دَدې ايت دَسورة مريم ايت نمبر(۷۱) وان منكم الا واردها سره تعارض دې ځكه چه دهغې نه دَهرچادخول معلومېږی جهنم ته او ورود تقضادَقرب كوی بداهة، بعضوتنه جواب پدې شان كړيدې چه دَمبعدون دَپاره مفعول مقدردې چه

عذاب او ألم دې نومعنی داده چه دَورود باوجود دوئ به دَعذاب دَجهنم اودَتکلیف دَجهنم نه به لرې اومحفوظ وی (جمل) اوبعض فرمائی چه دابُعد ورستودَدخول جنت نه، به وی یعني جنتیان چه جنت ته داخل شي نوبیابه داسی نوی چه جهنم ته په راوستلی شي بلکه دَوئ به دَجهنم نه ډیرلرې شي.

﴿لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا﴾ حسیس وئیلی کیږی اوازته دَاور لمبی ته غوره قول دادې چه داجمله تاکیدده دَماقبل دَپاره یعني جنتیان په دَجهنم نه دومره لرې وی چه دَجهنم دَاورمعمولی اوازبه هم نه آوری، حالانکه دَجهنم دَاور آوازبه په زرګاؤمیله لرې اوریدلی شي اوداهم ممکنه ده چه داجمله بدل شي دَمبعدون نه.

﴿وَهُمْ فِي مَا اشْتَهَتْ﴾ مرادتنه صحت، خوانی اوقسم قسم نعمتونه دَجنت دې ﴿لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ﴾ داهم بشارت اخروی دې دَ اورنه نجات ذکرکولونه بعددَفزع بالکلیه نه نجات ذکرکیږی، چه په دوئ باندې به هیڅ قسم ګبهراهټ نوی، اوفزع اکبرنه مراد بقول ابن عباس نفخه ثانیه ده ځکه چه کله نفخ ثانیه اووهلی شي نوپدی وخت کښ به ډیرخلك په ګبراهټ کښ وی لکه سورة النمل کښ الله ﷻ فرمائی يوم ينفخ في الصور ففزع من في السموات الخ اوبعض فرمائی چه فزع اکبربه دَذبح دَموت سره وی چه کله مرګ ذبح کړې شي اوفرشته آوازاوکړئ یااهل النارخلودٌ بلاموت، نوپه دې وخت کښ به په کافرانوباندې سخته فزع راشي اوبعض فرمائی چه فزع اکبرنه مراد اهوال اوسختئ دَقیامت دې اوداقول عام دې شامل دې نفخه ته، ذبح دَمرګ ته اوقول دَملائکوته، اوپه ځنی روایاتوکښ چه راغلیدې چه ګبراهټ دَقیامت به په هرچاباندې وی لکه حدیث دَشفاعت کښ دې چه انبیاء کرام ﷺ به نفسی، نفسی، وائی نوداګبراهټ به لږ ساعت دَپاره وی اوپه نسبت دکفاروګبراهټ ته ډیرکم اوضعیف به وی نوهغه په منزله دَمعدوم حساب کړې شویدې.

﴿وَتَتَلَقَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ﴾ ملاقات دَملائکوبه دَقبرنه پاسیدلووخت کښ اودغه شان جنت ته دَداخلیدلو په وخت کښ وی چه ملائك به دَدوئ دَاستقبال دَپاره دَجنت په دروازوباندې اولاړې وی اودابه ورته وائی چه هذا يومكم الذى كنتم توعدون.

﴿يَوۡمَ نَطۡوِى ٱلسَّمَآءَ﴾ بعض مفسرين دَيوم دَپاره عامل مقدروائي چه اذكردي اوداجمله مستانفه ده. ليكن غوره قول دادې چه دامتعلق دې په﴿لَا يَحۡزُنُهُمُ﴾ پورې اومقصد دادې چه نه به غمژن كوي دوئ لره لوئي هيبت دهغه ورځ چه رااونغاړو مونږ اسمانونه اويامتعلق دې په﴿وَتَتَلَقَّىٰهُمُ﴾ پورې، يعني دَملائكوملاقات به دَدوئ سره په هغه ورځ وي چه په كومه ورځ مونږ اسمانونه رااونغاړو. اويامتعلق دې په توعدون پورې.

﴿كَطَيِّ ٱلسِّجِلِّ لِلۡكُتُبِ﴾ سجل نه مرادهغه رجسټردې چه په هغې كښې نومونه. فيصلې اومضامين درج كيږي نوهغه رجسټرپه خپلومضامينوباندې مشتمل وي اومضامين په هغې كښې رانغختلې شوي وي نودغه شان به الله ﷻ هم دااسمانونه راټول كړي اورااونغاړي به ئې. نوپدې اعتبارلام په ﴿لِلۡكُتُبِ﴾ كښې په معنى دَعلى سره دې اوبعض علماء فرمائي چه سجل نوم دَيوې فرشتې دې چه په دويم اسمان كښې وي كراماً كاتبين هغې ته دَهرپيراوجمعرات په ورځ دَانسانانوداعمالوصحائف اوړي اوكله چه انسان وفات شي نوهغه فرشته دَانسان ټول صحائف رااونغاړي. نوپدې اعتبارسره لام په﴿لِلۡكُتُبِ﴾ كښې زائددې، اوبعض فرمائي چه سجل دَحضور ﷺ دَيوكاتب نوم دې اومقصددادې چه څرنګه سجل كاتب تحريراوكړي اوبياصحيفه راټوله كړي نودغه شان به مونږهم دااسمانونه راټول كړو نوداتشبيه دَغائب ده دَشاهداوحاضرسره، اودارِوايت امام ابوداؤد اونسائي نقل كړيدې دَابن عباس رضي الله عنه نه چه سجل دَنبي ﷺ كاتب وو. ليكن ثعلبي،قرطبي اوابن كثير رحمه الله پدې قول باندې سخت ردكړيدې چه دَرسول الله ﷺ په كاتبانوبلكه په صحابوكښې هم دَسجل په نوم باندې څوك نوو. ابن جرير رحمه الله اوابن كثير رحمه الله روايات نقل كړيدې اوبيائې اخيركښې فرمائيلي دې چه داټول روايات ضعيف، منكراوغيرمحفوظ دې، بلكه بعض علماؤورته موضوعي هم وئيلي دې، ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله پدې اصراركړيدې چه دَسجل په نوم كاتب نبي ﷺ نه انكاركول غلط دې، ځكه چه داروايت په متعددوطرقوسره منقول دې، چه په هغې كښې څنې طرق صحيح هم دې.ابن منده اوابونعيم په سندابن نمير عن عبيدالله بن عمرعن نافع عن ابن عمر رضي الله عنه سره نقل كړيدې. كان للنبي ﷺ كاتب يقال له سجل اوداسندقوي اوصحيح دې اودَابن نمير رحمه الله په باره كښې فرمائي چه

دي دكبارثقاتُ نه وو اودَدي وجه نه حافظ فرمائي چه فهذا الحديث صحيح بهذه الطرق وغفل من زعم انه موضوع(الاصابة ج۳ حرف السين) دَحافظ تحقيق اقرب الى الصواب دي اګرچه مسلك دَجمهورونه خلاف دي(والتفصيل في الفتح الباري ج۱۰ والاصابه ج۳).

﴿كَمَا بَدَأْنَآ أَوَّلَ خَلْقٍ﴾داتشبيه دَاعادې ده دَابداء سره دپاره دَشمول دَقدرت.يعني څرنګه الله تعالیٰ په ابدا يعني عدم محض نه وجودراويستلوباندې قادردي نودغه شان دَفناء نه ورستوپه اعادې دَوجودباندې هم قادردي﴿وَعْدًا عَلَيْنَآ﴾ وعداً مفعول مطلق دې دَفعل محذوف دپاره اى وعدناهذا وعدا(حداد).

| |
|---|
| وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِنْۢ بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصّٰلِحُوْنَ ﴿۱۰۵﴾ |
| اويقيناً ليکلي دې مونږ په زبورکښې ورستودذکرنه چه بيشکه زمکه وارثان به وي ،هغې بندګان ځمانيکان |
| إِنَّ فِي هٰذَا لَبَلٰغًا لِّقَوْمٍ عٰبِدِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ وَمَآ أَرْسَلْنٰكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۰۷﴾ |
| بيشکه په دې کښې مقصد ته رسيدل دي دپاره دَهغه قوم چه بندګي کوي اونه ئې ليږلې مونږته مګر رحمت دپاره دټولو خلکو |

﴿وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِى ٱلزَّبُورِ﴾دايابشارت اخروى دې کچرته پدې ايت کښې ﴿أَنَّ ٱلْأَرْضَ﴾نه مراد زمکه دَجنت شي اوپه جنت باندې اطلاق دَارض شويدې لکه په سورة الزمر ايت نمبر(۷۴) کښې واورثناالارض اويادابشارت دنيوى دې کچرته دَ﴿ٱلْأَرْض﴾نه مراد ملك شام اويانورسلطنتونه دکفاروشي اوزبورنه مراد يامشهورکتاب دې چه په داؤد علیه السلام باندې نازل شوى وو. او﴿مِنۢ بَعْدِ ٱلذِّكْرِ﴾کښې بعد په خپلې معنى سره دې اوذکرنه مراد ياتورات دې اويالوح مجفوظ دې اويابعدپه معنى دَقبل سره دې اوذکرنه مرادقرآن دې اويادَزبورنه مراد معنى لغوى ده اوزبور دَلغوى معنى په اعتبارسره ټولوکتب سماويه ته شامل دې او ذکرنه مراد لوح محفوظ دې يعني لوح محفوظ کښې دَليکلونه بعدپه ټولواسمانوکتابونوکښې هم مونږ داخبره ليکلې ده چه﴿أَنَّ ٱلْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ ٱلصَّٰلِحُونَ﴾کچرته دَالارض نه مراد زمکه دَجنت شي نوپدې باندې اشکال وارديږى چه دَدې ايت ظاهردليل دې پدې چه جنت به صرف صالحينوته ميلاويږى

اوفاسق، گناه گارمسلمانانوته به نه میلاویږی، نو امام رازی رحمه الله تنه جواب کړیدي پدی شان چه جنت الله تعالیٰ بالاصالة دَصالحانودَپاره جوړکړیدي، اوفساق مؤمنانوته چه ورکوی نوهغه غیراصالة اوتبعاًدي. دویم جواب دادي چه صالحینونه مراد عام دي، حقیقة صالحین وی یاحکماً صالحین هغه څوك دي چه دَسزاپوره کولونه اودَصفاکیدلونه ورسته جَنت ته لاړشي. نوداپه حکم دَصالحینوکښې دي اوکچرته دَالارض نه مراد ملك شام وغیره شي نوداداَلله تعالیٰ دَطرف نه مسلمانانوته دَاسلام دَغلبی بشارت وو نوپدی اعتبارسره ایت عبادی الصلحون نه مراد امت محمدیه ﷺ دي اودا وعده الله تعالیٰ دَحضرت عمر رضی الله عنه په دورخلافت کښې پوره کړه چه ملك شام قبضه کړې شو اوحضرت سیدناامیرمعاویه رضی الله عنه ئې دَهغې والی مقررکړو.

نوپدی ایت کښې دلیل دي پدی چه صحابه کرام رضی الله عنهم تول دَالله تعالیٰ نیك اوصالحین بندګان ووچه دَهغوئ په لاس الله تعالیٰ فتوحات مسلمانانوته نصیب کړو

که څوك اشکال اوکړی چه دَالله تعالیٰ وعده دَصالحینوسره ده چه څه به دوئ ته فتح ورکوم نواوس یعني نن صبائې ولی ورنکړو اوصرف په زمانی دَصحابه رضی الله عنهم کښې ولی ورکړې وو؟ نوحضرت تهانوی رحمه الله تنه جواب داکړیدي چه داجمله ﴿وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ﴾ قضیه مطلقه عامه ده چه په منزله دَشئ مطلق کښې ده،نوداوعده په ضمن دَبعضوافرادوکښې چه صحابهٔ کرام دي موجوده ده،اوداعامه مطلقه نده فلااشکال.

﴿إِنَّ فِي هَٰذَا لَبَلَاغًا﴾ پدی ایت کښې جنت ته دَتللواوپه دنیاکښې فتح اوکامرانی حاصلولوذریعه بیانیږی﴿هَٰذَا﴾دَپاره مشارالیه یادَدي سورة مضامین دي اویاټول قرآن دي اوبلاغ وئیلی کیږی ماتبلغ به البغیة چه په کوم شي سره منزل مقصودته رسیدل کیږی اومطلوب ورسره حاصلیږی،مطلب دادي چه دآخرت مسافراودَجنت طلبګاردَپاره دَجنت ته دَتللو اوپه دنیاکښې فتح اوکامرانی حاصلولوذریعه قرآن ده اوعابدین نه مراد حاملین دَقرآن دي اوهغه مؤمنان دي چه دَسنت موافق دَالله تعالیٰ عبادت کوی اوعمل کوی، امام رازی رحمه الله فرمائی چه دَقرآن علم په منزله دَشجریعني ونی دي اوعمل ئې په منزله دَثمریعني میوی دي،نوثمربغیردَشجرنه، حاصلیدلی نشي اوشجربغیردَثمرنه غیرمفیدوی.

﴿وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا رَحْمَةً﴾ دَدې جملې عطف په ماقبل ﴿إِنَّ فِي هَٰذَا﴾ باندې دې اوهرکله چه ماقبل ايت کښې قرآن کريم دَمؤمنانو دَپاره توشه اوزاد راه اوګرځولی شوچه دا يوقسم رحمت دې.
نوپدې ايت کښې چه په کوم هستئ باندې دا قرآن نازل شويدې نودَهغه دَعمومی رحمت بيانيږی چه هغه دَټولو مخلوقاتو دَپاره دَالله ﷻ دَطرف نه رحمت راغليدې، ﴿إِلَّا رَحْمَةً﴾ استثناء مفرغه ده چه مستثنى منه محذوف دې اوپدی محذوف کښې دوه (۲) احتمالات دې.يواحتمال دادې چه مستثنى منه محذوف حالة لفظ دې اوتقديردَعبارت داسی دې چه وماارسلنٰك حالةً مَن الاحوال الاّ رحمةً نوپدی اعتباررحمةً ځکه منصوب دې داحال دې دکاف ضميرخطاب نه اوحمل دَحال په ذوالحال باندې يامبالغةً دې اويامصدرمبني للفاعل دې دَراحم په معنى سره اويامجازفي الحذف د يعني ذارحمة اودويم احتمال دادې چه مستثنى منه علة لفظ دې اوتقديردَعبارت داسی دې چه وماارسلنٰك لعلّة مَن العللِ الاّ رحمةً،نوپدی اعتبارسره نصب دَرحمة دَمفعول له دَوجی نه دې چه دې مفعول له دې دَ ﴿أَرْسَلْنَٰكَ﴾ فعل دَپاره او ﴿لِّلْعَٰلَمِينَ﴾ کښې اشاره ده چه ذات اقدس دَرسول الله ﷺ دَټول عالم دَپاره ذريعه دَرحمت ده.

اوکه څوك اشکال اوکړی چه عالم لفظ خوکافرهم ته شامل دې اونبی ﷺ دکافرانوسره جهادکول اودَهغوئ مالونه اخستل اوامت دجهادتعليم ورکول داټول دَرحمت سره منافی دې نوڅرنګه به نبی ﷺ دکافردَپاره رحمت اوګرځی؟ (۱) نوبعضوتنه جواب پدی شان کړيدې چه دَعالمين نه مرادخاص مؤمنين دې ليکن داجواب ضعيف دې مناسب ندې دَمقام دَمدحی سره.

(۲) دويم جواب امام رازی رحمه الله په خپل تفسيرکښې ذکرکړيدې چه نبی عليه السلام مطلقاً رحمت وو دَټول عالم دَپاره، خوچه په چاکښې دَرحمت قبولو استعدادوو هغوئ دارحمت قبول کړو اوسعادت دارين ورته حاصل شو اوپه کوموخلکوکښې چه ضداوعنادوو اودَځان نه ئې قبول رحمت استعداد ختم کړيدې نودَهغوئ دَپاره دارحمت،رحمت پاتی نشو ،لکه دَباران په باره کښې الله ﷻ فرمائی ونزّلنامن السّماء ماءً مّباركاً الخ(ق: ۹) خوبياهم داباران کله کله ذريعه دَفساداوګرځی،نودَامام رازی رحمه الله دَجواب خلاصه داده چه ذات اقدس دَرسول الله ﷺ خالص رحمت دې اودادځنی مخلوقاتو خپل نقصان اوقصوردې چه دَدې رحمت نه فائده نه آخلی اودَځان دَپاره ئې ذريعه دَعذاب اورحمت اوګرځوی.

(۳)دریم جواب چه اکثرمفسرینوکړیدي دادي چه نبیﷺ دکافرانودپاره رحمت وو پدی شان چه مخکښنو امتونوبه چه کله تکذیب اوکړو نوپه هغوئ باندي به عذاب استیصالی نازلیدلو په صورت دخسف کښ یامسخ کښ اویاغرق وغیره کښ اودذي امت دکافرانونه دنبیﷺ په برکت داقسم عذاب مؤخرکړي شویدي لکه اللهﷻ فرمائی وماکان الله لیعذبهم وانت فیهم(انفال) نوخلاصه داده چه نبیﷺ دمؤمنانودپاره هم رحمت وو چه دایمان په ذریعی سره دوئ ته سعادت دنیوی،اخروی حاصل شو،اودکافرانودپاره هم رحمت دي چه تاخیردعذاب اوحفاظت دعذاب استیصالی ورته حاصل شویدي اودغه شان دخاروو دپاره هم رحمت وو .لکه دیو اوښ شکایت شو دخپل مالك خلاف،نبیﷺ ته،یاواقعه دمرغئ دبچی شوه چه یوصحابی نیولی وه چه داواقعات امام مسلم وغیره محدثینوپه باب دمعجزات النبیﷺ کښ اوپه باب درحمت کښ ذکرکړیدي(۴) علامه ابن قیمؒ هم یوبحث کړیدي چه دهغی خلاصه داده چه انسانان قسمه دي(۱)مؤمنان(۲)کافرظاهری(۳)اومنافق نونبیﷺ دمؤمنانودپاره رحمت کیدل خوظاهره خبره ده څکه چه مؤمنانودنبیﷺ دتابعدارئ دوجی نه،ددنیا اواخرت سعادت حاصل کړیدي. دنیاکښ دجهادپه ذریعی سره دکفارو په اموالواوسلطنتونوباندي تسلط حاصل کړو اواخرت کښ اجرونه، اوجنتونه،ورته میلاؤشي،اوکفارودپاره رحمت څکه دي چه دهغوئ خلاف جنګ اوجهادئی اوکړو،اوهغوئ ئی اسلام قبولوباندي مجبوره کړل اویائی په اداء دجزئی باندي مجبورکړل چه دهغی دوجی نه بیادوئ دیواسلامی حکومت دلاندي دارام اوسکون ژوندتیره وی، اومنافقین دپاره پدی شان رحمت دي چه دهغوئ سره په ظاهرکښ دمؤمنانوپه شان معامله اودمؤمنانوپشان هغوئ ته هم حقوق ورکول، اودهغوئ رسوائی نه کول داټول دهغوئ دپاره رحمت وو.

هرکله چه نبوت مستلزم وو رحمت لره اودنبیﷺ رحمت کیدل دغهﷺ دنبوت اثروو نوددي وجه نه پدی ایت کښ اشاره ده چه نبی کریمﷺ اخری نبی دي اودټول عالم دپاره دي اونبوت ئی مخصوص په یوی زمانی اویاپه یوقوم پوری ندي.

| قُلۡ اِنَّمَا يُوۡحٰۤى اِلَىَّ اَنَّمَاۤ اِلٰـهُكُمۡ اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَهَلۡ اَنۡتُمۡ |
| --- |
| اوایه ته چه بیشکه وحی کیدي شي ماته ددي چه حقداردبندګئ ستاسویو(ذات)دي نوآیا یئ تاسو |

مُسْلِمُوْنَ ﴿١٠٨﴾ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ اٰذَنْتُكُمْ عَلٰى سَوَآءٍ ؕ وَاِنْ اَدْرِيْٓ

غاړه کيخښودونکي(دې مسلې) ته، پس که دوئ مخ اوګرځوي نوته اوايه چه ماتاسوخبرکړئ يوره يوره. اونه پوهيږم څه چه

اَقَرِيْبٌ اَمْ بَعِيْدٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ ﴿١٠٩﴾ اِنَّهٗ يَعْلَمُ الْجَهْرَ مِنَ الْقَوْلِ وَيَعْلَمُ

آيانژدې دې يالرې دې هغه عذاب چه تاسوسره ئې وعده شويده. بيشکه الله ﷻ پوهه دې په ښکاره ويناپوهه دې

مَا تَكْتُمُوْنَ ﴿١١٠﴾ وَاِنْ اَدْرِيْ لَعَلَّهٗ فِتْنَةٌ لَّكُمْ وَمَتَاعٌ ؕ

په هغه څه چه تاسوئې پټوئ اوځه نه پوهيږم کيدې شي دا(ورستوکيدل دعذاب)امتحان وي تاسولره اونفع وي

اِلٰى حِيْنٍ ﴿١١١﴾ قٰلَ رَبِّ احْكُمْ بِالْحَقِّ ؕ وَرَبُّنَا الرَّحْمٰنُ الْمُسْتَعَانُ

تريووخته پورې،اوئيل رسول ﷺ اى ربه ځمافيصله اوکړه حقه فيصله. اورب زمونږ رحمن دې مددغوښتلى کيږي دهغه نه

عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ ﴿١١٢﴾

په برداشت دهغه خبروچه تاسوئې بيان کوئ.

﴿قُلْ اِنَّمَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ﴾ دادليل وحي ذکرکيږي په توحيدباندې علامه زمخشري اوآلوسي فرمائي چه پدې ايت کښې دوه(۲)قصرونه دې يوقصردصفت دې په موصوف کښې اودويم قصردموصوف دې په صفت کښې اودوئ په مسلك چه څرنګه انما(بالكسر)دقصردپاره دې نودغه شان أنّما بالفتح هم دقصردپاره دې اوعلامه آلوسي رحمه الله دې قول ته دجمهورو قول وئيلې دې اوابوحيان صاحب دبحردأنّما(بالفتح) دقصردپاره استعماليدلونه انکارکړيدې

بهرحال: دجمهوروپه نيزاول قصرچه دإنّما(بالكسر) نه مستفاددې داقصردصفت دې په موصوف کښې يعني قصردوحي راغليدې په وحدانيت دالله ﷻ کښې اودويم قصرچه مستفاددې د أنّما(بالفتح) نه داقصردموصوف دې په صفت کښې نودآيت مقصددادې چه اى پيغمبره ﷺ ته دې خلکوته دا اوايه چه(په امردمعبودکښې ماته)دبل هيڅ شي وحي نده شوى سيوادوحدانيت نه اومعبود دستاسوتن تنهايوذات دې. اوکه څوك اشکال اوکړي چه دلته به قصردوحي په وحدانيت کښې څرنګه صحيح شي حالانکه نبي ﷺ ته خوډيرو امورو وحي کړې شوى وه مثلاً مونځ،زکوة، روژه وغيره اوصرف دتوحيدوحي نوه فقط؟ يوجواب تنه دادې چه داقصرادعائي

دې ځکه چه توحيد اصل الاصول دې، دټولو اصولو داسلام بناء په توحيد باندې ده نو داهتمام شان او عظمت شان دپاره قصر دوحی په وحدانيت کښې اوکړې شو ادعاءً.

دويم جواب دادې چه دا قصر قلب دې چه مخاطبين هغه خلك وو چه دهغوئ اعتقاد دشرك وو نومقصود پدی سره دهغوئ داعتقاد تبديلي وه دشرك نه توحيد ته نوځکه دا قصر قلب شو

﴿فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴾استفهام په معنٰی دامر سره دې﴿فَإِن تَوَلَّوْا فَقُلْ ءَاذَنتُكُمْ ﴾ آذن منقول دې داذن نه اوپه آذن(بالمد)کښې يوه همزه دنقل ده اوفرق په مينځ ددواړو کښې (بالمد او بالقصر) دادې چه اذن(بالقصر) استعماليږی په مطلق علم او اجازت کښې او آذن(بالمد) متضمن دې معنٰی دانذار لره(کشاف بتغير) اودلته په معنٰی داعلمتکم سره دې يعني اطلاع او علم ورکول سره دَيرى نه اومفعول ثانی ئی مقدردې اوهغه ياماأُمِرتُ بِهِ جمله ده ای اعلمتکم ماامرت به(مدارك) او ياحربې لکم دې او مراد دحرب نه ياعقوبت او عذاب دې اوياتنه محاربه اوجنګ کول مراددې او على سوآءٍ دا ياحال دې دمفعول اول نه چه کم ضميردې نو دايت معنٰی او مقصد دا شو چه دکومو امورو ماته وحی کړې شويده اودهغه دتبليغ حکم ماته کړې شويدې مثلا توحيدوغيره ددې اطلاع او خبرداری ماتاسوټولوته درکړيدې بلاتخصيص، منل اونه منل ستاسو کاردې، ماځه شي پټ ندې ساتلی (حداد) اوياحال دې دفاعل او مفعول دواړونه، اودايت مقصد دادې چه که دوئ اوس هم اعراض او انکار کوی نو ته ورته دااوايه چه دامسئله توحيد ماتاسوته په دسی واضحی طريقی سره بيان کړه چه مونږ تاسوټول پری ښه پوهه شوی يو،نوستاسو داانکار محض دضد او عناد په بنياددې (روح) اوپدې کښې رددې په مذهب دباطينيه(شيعه ګانو)باندې چه هغوئ ددې قائله دې چه نبیﷺ ځنی احکامات پټ حضرت علیؓ ته خودلی وو اوهغه ئی ورسره خاص کړې وو يادغه شان امامان خصوصی خبروسره خپل مخصوص کسان خاص کوی اوکچرې مفعول ثانی حرب شي اودحرب نه مراد عقوبة او عذاب شي نوپه دې صورت کښې على سوآء حال دې دکم ضميرنه،نو دايت مقصد دادې چه ستاسو دانکار په صورت کښې کوم عذاب راځی دهغې اطلاع ماتاسوټولوته درکړيده،ځه افراد می خاص کړی اوځه می پريخی ندې، اوياحرب نه مراد محاربة اوجنګ کول دې او على سوآء حال دې دفاعل اومفعول دواړونه نومقصد دادې چه

ځمادَطرف نه تاسوواضح بیان دي چه دَجنګ په مسئلی کښ مونږ تاسوبرابریو اوزمونږ اوستاسوپه مینځ کښ صلح نه کیږی (قرطبی).

﴿وَإِنْ أَدْرِىٓ أَقَرِيبٌ ﴾دااعاده ده دَدعوی دَسورت ان نافیه دي او﴿مَّا تُوعَدُونَ ﴾نه مراد غلبه دَمسلمانانو. ظهوردَدین اووقوع دَقیامت چه مشتمل دي په عذاب داټول تنه مراددي. مقصد دادي چه داټول مذکورڅیزونه خامخاواقع کیدونکی دي خوکله به واقع کیږی؟ نودَدي تعیین علم ماته نیشته دي ځکه چه اللهﷻ ماته دَدي دَوخت تعیین علم ندې راکړې.(مدارك) نوپدیکښ نفی دَشرك فی العلم ده چه نبیﷺ ته هم علم غیب نوو.

﴿إِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلْجَهْرَ ﴾داعلت دي دَماقبل دَپاره خلاصه ئی داده چه علم غیب مختص دي په اللهﷻ پوری په ظاهراوباطن باندي هغه خبرداردي فقط نودَدي وجه نه ماته علم غیب ندي حاصل ځکه چه دَ اختصاص په مفهوم کښ داده چه لایوجدفی غیره

﴿وَإِنْ أَدْرِى لَعَلَّهُۥ ﴾پدیکښ حکمت دَتاخیردَعذاب ذکرکیږی. یعني پوره دَحکمت علم خوماسره هم نیشته خوکیدي شي چه داتاخیردَعذاب ستاسودَپاره استدراج وی. نوفتنة نه مراد ازمائش اواستدراج دي.

﴿وَمَتَٰعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴾داخبردي دَمبتدامحذوفی دَپاره چه هذادي اودامتعلق دَماقبل سره ندي یعني دَترجی ماتحت ندي ځکه چه دامحل دَترجی دَپاره ندي بلکه دامتحقق دي.﴿قَٰلَ رَبِّ ٱحْكُم بِٱلْحَقِّ ﴾داتخویف دي﴿قَٰلَ﴾په صیغی دَماضی سره دي اوحکایت دي دَدعادَنبیﷺ نه او ﴿بِٱلْحَقِّ ﴾ یاپه معنٰی دَعذاب سره دي (حداد) (کبیر) یعني زمونږ اودکافرانوپه مینځ کښ فیصله په عذاب سره اوکړی اویا﴿بِٱلْحَقِّ ﴾ په معنٰی دَعدل اوانصاف سره دي اویا﴿بِٱلْحَقِّ ﴾صفت دي دَحکمك موصوف مقدردَپاره،موصوف حذف کړې شواوصفت دَهغی قائمقام کړې شو. تقدیردَعبارت داسی دي رب احکم بحکمك الحق اودَاللهﷻ هره فیصله په حق اوانصاف سره وی خوبیاهم دادعاپه حق قیدسره مقید کولو کښ اشاره ده دیته چه دکفارو داعمل یعني انکاردَحق نه مقتضی

دي دَتعجيل دَعذاب دَپاره نوګوياچه﴿بِٱلۡحَقِّ﴾ قيد دَپاره دَاستعجال دَنصرت اوپه دوئ باندي په جلتئ سره دَعذاب غوختلو دَپاره دي (زادالمسير).

﴿وَرَبُّنَا ٱلرَّحۡمَٰنُ ٱلۡمُسۡتَعَانُ﴾ پديکښ رددي په شرك فى الاستعانة اوشرك فى التصرف باندي. او﴿مَا تَصِفُونَ﴾ نه مراد الله ﷻ دَپاره شريك ثابتول ياولد ثابتول وغيره وى

تم بحمدالله وتوفيقه وبمنته تفسيرسورة الانبياء.اللهم اغفرلناولوالدينا ولجميع المؤمنين والمؤمنات اللهم اجعل رفاقتنا مع النبيين والصدقين والشهداء والصلحين، وحسن اولئك رفيقا. وصلى الله تعالى على خيرخلقه محمدواله وصحبه وسلم(امين).

| رکوع | سورة الحج مدنية | آيتونه |
| --- | --- | --- |
| ۱۰ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | ۷۸ |
| | خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکې دې شروع کوم | |

**رقمها حسب التسلسل (۲۲) وحسب النزول (۱۰۳)**

**تفسيرسورة الحج**: سورة الحج مدنی سورت دې سیوا دَخلورو ایاتونونه. یعنی ایت نمبر **۵۳** تا **۵۷** چه دامکی دی، دا قول دَابن عباس رضي الله عنه اوقتاده رحمه الله نه مروی دې اوبعض فرمائی چه داسورت مکی دې سیوا دَیوځوایاتونونه. چه هغه پکښ مدنی دی. لیکن غوره قول اودَجمهورو قول دادې چه داسورة مختلط دې بعض حصه ئی مکی ده اوبعض حصه ئی مدنی ده اوقرطبی رحمه الله دې قول ته اصح وئیلی دی اوقرطبی رحمه الله فرمائی چه دَدې سورة دَعجائباتونه. داده چه دَدې سورت بعض ایاتونه دَشپې نازل شویدی اوبعض دَورځې، بعض په سفرکښ اوبعض په حضر کښ نازل شویدی، بعض په مکه کښ اوبعض په مدینه کښ نازل شویدی، بعض ایاتونه پکښ دَجنګ اوبعض پکښ دَصلحی دی، بعض پکښ ناسخ اوبعض پکښ منسوخ دی اوبعض پکښ محکم اوبعض پکښ متشابه دی(قرطبی) اودَدې وجی نه دَدې زمانه نزول دَبعضی حصی دوراخیردَمکی معظمی دې اودَبعضی حصی نزول زمانه دورابتدائی دَمدینی دې. په ترتیب قرآنی کښ دویشتم(۲۲) اوپه ترتیب نزولی کښ(۱۰۳) نمبرسورت دې، دَسورة النورنه ورستواودَسورة المنافقون نه مخکښ نازل شویدې، داسورة(۷۸)ایاتونو(۱۰)رکوعاتو(۱۲۹۱) کلماتو او(۵۰۷۵)حروفوباندی مشتمل دې.

**ربط**: دَسورة الحج دَسورة الانبیآء سره ربط اسمی دادې چه په سورة الانبیا، کښ حال دَسعادت مندو اودَبدبختوبیان شو اوس پدی سورت کښ دَفزع اکبراوزلزلة الساعة نه دَبچ کیدلو اوسعادت حاصلولو اوشقاوت نه بچ کیدلوطریقه بیانیږی چه سعادت حصول اوشقاوت نه بچ کیدل په تقوی سره کیږی.

**ربط مضمونی**: دَمضامینوپه اعتبارسره دَدې سورة دَماقبل سره ربط دادې چه په سورة الانبیاء کښ نفی دَشرك فی التصرف وه چه حاجاتو پوره کوونکی صرف یو الله جل جلاله دې نوپدی سورة کښ

نفی دَشرك فعلی کیږی چه نذرونیازخالص دالله ﷻ په نوم باندی وړکوئ. نوګوبچه دا سمه دَماقبل ده،دغه شان سورة الانبیاء کښ عجزدَانبیاء کراموذکرشوچه دتکلیف په وخت کښ الله ﷻ ته فریادکړي وو،نوپدی سورة کښ ردديِ په هغه چاچه خپل عجزبل چاته پیش کوی دغه شان په سورة الانبیاء کښ مسئله دَتوحیدعقلاً نقلاً ثابته کړې شوه نواوس پدی سورة کښ داذکرکیږی چه څوك دامسئله نه منی نودهغه سره جهاد اوکړئ

**دعوه دَسورت**:دَدې سورت دعوی رد علی الشرك. اواثبات دتوحید رسالت اوقیامت دي په دلائلو سره.

**خلاصه مضامین**: دَدې سورة دَمضامینو مختصره خلاصه داده چه دا سورة په څلورحصو باندی تقسیم دي،**حصه اوله** دَایت نمبر(۱) نه ترایت نمبر(۲۲) پوری ده پدی حصه کښ نفی دَشرك فی التصرف مضمون ذکردي. اودلائل عقلیه په نفی دَشرك فی التصرف باندی. اوځه یکښ زجرونه اوتخویفونه هم ذکرکیږی.**دویمه حصه** دَایت نمبر(۲۲)نه ترایت نمبر(۳۸) پوری ده اوپدی حصه کښ نفی دَشرك فعلی بیان دي. یوپکښ دلیل نقلی بیانیږی دَرد دَشرك فعلی دپاره اودڅلور مضامینوپه ضمن کښ رد په شرك فعلی باندی کیږی. هغه څلورمسائل اومضامین دادی

(۱) تحریمات الله قائم اوساتئ(۲)تحریمات غیرالله ختم کړئ(۳)نذرلله پوره کړئ(۴)نذرلغیرالله مه کوئ.

**دریمه حصه** دَایت نمبر(۳۸)نه تر(۵۷)پوری ده پدیکښ دَجهاد اجازت اوحکم وعده دنصرت اواعلان دَفتحی کیږی سره دَبعض صفاتو دَمجاهدینونه،اودغه شان څه زجرونه وغیره هم پکښ ذکرکیږی او**څلورمه حصه** دَایت نمبر(۵۸)نه تراخردَسورت پوری ده، پدی حصه کښ دَدواړو مضامینواعاده، دلائل عقلیه په توحید،دَدواړو مضامینودَتوضیح دَپاره مثال اودَټولومضامینو دَسورت اجمالی اعاده په طریقی دَاف. نشرمرتب سره کیږی،سره دَیودلیل نقلی نه

**تفصیلی خلاصه**: ایت نمبر(۱ ، ۲)کښ تخویف اخروی ذکرکیږی.ایت نمبر(۳ . ۴)کښ زجردي. ایت نمبر(۲ ، ۷) کښ دوه دلیل عقلی بیانیږی په اثبات دَتوحیداوقیامت باندی.دَایت نمبر(۸)نه تر(۱۳)پوری دوه(۲)زجرونه. یوتخویف اخروی اویوتخویف دنیوی ذکرکیږی.په ایت نمبر(۱۴) کښ بشارت اخروی ذکرکیږی.په ایت نمبر(۱۵)کښ زجراوپه(۱۲)کښ ترغیب الی القرآن ذکرکیږی،په ایت نمبر(۱۷)کښ تخویف اخروی دي،په ایت نمبر(۱۸)کښ په توحیدباندی دویم

دليل عقلي مذكور دي، دَايت نمبر(۱۹)نه تر(۲۲)پورې تخويف اخروي دي.په ايت نمبر(۲۳، ۲۴)، كښې بشارت اخروي اوپه(۲۵)كښې تخويف اخروي دي

دَايت نمبر(۲۲)نه تر(۳۸)پورې دويمه حصه شروع كيږي. چه پديكښې دنفي دشرك فعلي بيان دي نوپه ايت نمبر(۲۲)نه تر(۳۸)پورې دويمه حصه شروع كيږي، چه پديكښې دنفي دشرك فعلي بيان دي نوپه ايت نمبر(۲۲)كښې دليل نقلي ذكركيږي دَحضرت ابراهيمعليه السلام نه.په ايت نمبر(۲۷، ۲۸، ۲۹)كښې بعض مسائل اومنافع دَحج اودَنذرلله دپوره كولوحكم ورلولي كيږي.په ايت نمبر(۳۰)كښې ذكردَتحريمات الله دي اوابطال دَتحريمات لغيرالله اونذرلغيرالله كيږي .ابت نمبر(۳۱)كښې تمثيل دَمشرك بيانيږي، په ايت نمبر(۳۲، ۳۳)كښې بطورتاكيددَنذرونيازدالله جل جلاله دَنوم والاذكركيږي. دَايت نمبر(۳۴)نهتر(۳۸)پورې نذرلله اعاده اوبعض شرائط دَقبوليت عندالله بيانيږي.

ايت نمبر(۳۹)نه تر(۵۷)پورې دريمه حصه ده، نوپه ايت نمبر(۳۹، ۴۰، ۴۱)كښې ترغيب الى القتال بيانيږي چه دَتوحيددَنشرواشاعت دَپاره جهاد اوكړئ اودغه شان علت دمشروعيت دَقتال اودَمجاهدينوبعض صفات بيانيږي، دَايت نمبر(۴۲)نه تر(۴۲)پورې ايتونوكښې تسلي نبي ﷺ ته ذكركيږي اومنكرينوته تخويف دنيوي ذكركيږي، ايت نمبر(۴۷، ۴۸)كښې زجرسره دَتخويف اخروي اودنيوي بيانيږيو په ايت نمبر(۴۹)كښې ترغيب الى الايمان واثبات دَرسالت كيږي.په ايت نمبر(۵۰)كښې بشارت اخروي دي مؤمنانوته، په ايت نمبر(۵۱)كښې تخويف دي منكرينوته. دَايت نمبر(۵۲)نه تر(۵۵)پورې اياتونوكښې دَمنكرينودَانكاروجه بيانيږي.په ايت نمبر(۵۶)كښې بشارت اوايت نمبر(۵۷)كښې تخويف ذكركيږي.

دَايت نمبر(۵۸)نه تراخره پورې څلورمه حصه دَسورت ده، نوپه ايت نمبر(۵۸، ۵۹)كښې بشارت اخروي اودنيوي ذكركيږي مهاجرينوته، په ايت نمبر(۶۰)كښې بشارت دنيوي ذكركيږي په نصرت سره په ايت نمبر(۶۱)كښې دليل انّي ذكركيږي دَنصرت دَپاره.په ايت نمبر(۶۴)كښې دويم دليل عقلي ذكركيږي په توحيدباندې په ايت نمبر(۶۵)كښې دريم او(۶۶)كښې څلورم دليل عقلي ذكركيږي، په ايت نمبر(۶۷، ۶۸، ۶۹)كښې اعاده دَمضمون ثاني يعنې نفي دَشرك فعلي اعاده كيږي سره دَتشجيع اوبيان دَطريقې دعوت نه، ايت نمبر(۷۰)كښې پنځم دليل عقلي ذكركيږي چه متعلق دي دَدواړو مضامينوسره، په ايت نمبر(۷۱، ۷۲)كښې زجردي منكرينوته. سره دَتخويف اخروي نه، په ايت نمبر(۷۳، ۷۴)كښې دَدواړو مضامينوسره متعلق يومثال بيانيږي دَپاره دَ اظهار

عجزدَمعبودانوباطلو. سره دزجرنه. په ایت نمبر ۷۵ کښې دَملائکو اوانبیاء کرامومتعلق داظهار
عجزدَمعبودانوباطلو. سره دزجرنه. په ایت نمبر(۷۵) کښې دَملائکواوانبیاء کرامومتعلق دیوی شبهې جواب ذکرکیږي. په ایت نمبر(۷۶)کښې بل دلیل عقلي بیانیږي په توحیدباندی. په ایت نمبر(۷۷) کښې دَمضامینودَسورت اجمالي اعاده ده. په ایت نمبر(۷۸)کښې حکم دَجهاد ورکولی کیږي اودلیل نقلي دَابراهیم عليه السلام ته اشاره کیږي

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمْۚ إِنَّ زَلْزَلَةَ ٱلسَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ ① يَوْمَ تَرَوْنَهَا |
| ای خلکو یره اوکړئ دَرب خپل نه،یقیناً زلزله دَقیامت یوڅیز لوئ هیبتناک دې په هغه ورځ چه اوبه وینئ تاسوهغې لره |
| تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّآ أَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى |
| چه غافله به شي هره یئ ورکوونکی دَهغه بچی نه چه یئ ورکوي هغه لره اواوبه غورځوي هرحمل والاحمل خپل. اووبه وینه |
| ٱلنَّاسَ سُكَٰرَىٰ وَمَا هُم بِسُكَٰرَىٰ وَلَٰكِنَّ عَذَابَ ٱللَّهِ شَدِيدٌ ② |
| خلك نشه اوحال داچه نه به وي په دوئ باندي نشه په څکلودَنشي والاخیزسره، اولیکن عذاب دَالله تعالی ډیرسخت دی |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمْ﴾دَسورت ابتدا په تخویف دَاثبات قیامت سره کیږي دَپاره دَدې چه په زړونوکښې خشیت اوانابت الی الله پیداشي، اوغورد خبرداده چه په تقوی سره مراد مطلق تقوی ده چه متضمنه ده ټولو مراتبودَتقوی لره اودهغې نه تعبیرپه الاجتناب عن کل مایؤثم من فعل وترك، سره کیږي یعني هرهغه عمل نه ځان بچ ساتل چه دهغې په کولوسره اویادَهغې په پریخودلوسره انسان ګنهګاریږي،امام رازی رحمه الله فرمائي چه امربالتقوی مستلزم دي دوه(۲) امورلره یو(۱)اتیان په ماموراتو(۲)دویم اجتناب دَمعاصینونه نوپدیکښې دَهرحرام کارکولونه ځان بچ ساتل اودغه شان دَواجب پریخودلونه ځان بچ ساتل، داټول پکښې داخل دی. باقي مراتب دَتقوی په سورة البقره کښې تفصیلاًتیرشویدی.

﴿إِنَّ زَلْزَلَةَ ٱلسَّاعَةِ﴾داعلت دې دَماقبل دَپاره، اوزلزله په اصل کښې تحرك شدیده ته وئیلي کیږي ،دلته دَزلزلة نه مرادحقیقة زلزله ده اوکه استعاره ده دَهیبت نه نودواړه قولونه پکښې راغلیدی چه بعض فرمائي چه دَزلزلي نه مراد حقیقةً زلزله نده بلکه داکنایه اواستعاره دَهیبت اودګبراهټ نه په میدان حشرکښې، اوپه هیبت اوګبراهټ اوپریشانئ باندی اطلاق دَزلزلي کیږي

لکه سورة الاحزاب کښې الله ﷻ فرمائي: هنالِكَ ابتلىَ المؤمنون وزلزلوا زلزالاً شديدا اوددې قول تائيدپه هغه روايت سره دې چه امام بخاري اونورو کتب دَاحاديثوکښې مروی دې په زيادت اوکمی سره چه يوصحابیؓ فرمائي چه داايت مذکوره په سفردغزوه بني المصطلق کښې نازل شو نونبیﷺ دَصحابونه تپوس اوکړو چه اتدرون ای يوم ذلك؟ يعنی تاسوته پته شته چه دابه کومه ورځ وی؟ صحابوعرض اوکړو الله ورسوله اعلم. چه الله ﷻ اورسولﷺ ته ښه علم دې نونبیﷺ اوفرمائيلوچه دابه هغه ورځ وی چه کله الله ﷻ آدم عليه السلام ته اوفرمائي چه دخپل اولادنه دَجهنم والا ډله راجدا کړه. هغه به عرض اوکړی چه څومره خلك دَجهنم دپاره راجدا کړم؟ الله ﷻ به ورته اوفرمائي چه هرزرو(۱۰۰۰)کسانوکښې نهه سوه نهه نوی. يعنی په زرو کښې کسانوکښې يوکم زرکسان دَجهنم دَپاره راجداکړه اويوکس به جنت ته ځی،صحابه کرامو ؓ چه داواوريدلونو ډيرپريشانه شو عرض ئی اوکړو چه يارسول اللهﷺ نوپه مونږ کښې به داسی څوك وی چه نجات به اومندی؟ نونبیﷺ تسلی ورکړه اوورته ئی اوفرمائيلو چه تاسونيك عمل کوئ اوثابت قدم اوسيږئ اوزيری قبول کړئ چه جهنم ته تلونکی خلکوکښې به (۱۰۰۰)زرکسان دَياجوج ماجوج نه به وی اويوکس به ستاسونه وی،اوبيانبیﷺ اوفرمائيلوچه زه اميدلرم چه تاسو(څلرمه حصه)به دَټول اهل جنت څلورمه حصه ئی، نوصحابو الله اکبراوئيلوبيانبیﷺ اوفرمائيلو چه تاسوبه دريمه حصه دَاهل جنت ئی، صحابو ؓ بياتکبير اوئيلوبيانبیﷺ اوفرمائيلوچه تاسوبه نيمه حصه دَاهل جنت ئی،صحابوبياتکبيراوئيلو. اودويم قول دادې چه دَدينه مراد حقيقةً زلزله ده، نودازلزله به کله واقع کيږی نوپدی کښې بيا دری(۳)اقوال دی(۱)يوقول دادې چه دازلزله به قريب قيامت کښې به واقع کيږی اودادَاشراطو دَقيامت نه به وی،داقول دَعلقمه رحمه الله اودَشعبی رحمه الله دې اودَحضرت ابی بن کعب ؓ نه مروی دی چه قيامت ته قريب شپږلوئ لوئ علامات به ظاهريږی(۱)نمر رنړاختميدل (۲)دَستورو يوبل سره ټکراؤکيدل(۳)سخته زلزله راتلل(۴)سمندرکښې اورلګيدل (۵) زمکه په زمکه کښې ننوتل(۶) هواچليدل چه دهغی دَوجې نه به سخت مرګونه واقع شی (زادالمسير).

(۲)دويم قول دَحضرت حسن بصری رحمه الله وغيرودې چه فرمائي چه دازلزله به دَنفخه اولی په وخت کښې وی لکه سورة النازعات کښې دی يوم ترجف الراجفة

(۳)دریم قول دادې چه دا زلزله به د نفخه ثانیه په وخت کښې وی چه کوم وخت انسانان د قبورنه راپاڅی لکه سورة الزلزال کښې دی(اذا زلزلت الارض زلزالها).

بهرحال هره زلزله چه وی اوکله چه هم واقع کیدونکی ده یوخودغه ورځ به ډیره دهیبت اودسختئ والا ورځ به وی﴿يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ﴾ دادهیبت دزلزلی بیان دې چه دومره سخته دهیبت والاورځ به وی چه دتئ ورکوونکی زنانه نه به خپل بچی هیرشی اودخوف دوجی نه به دحاملی زنانه حمل به اوغورزیږی.ددې ایت په تفسیرکښې دوه(۲)اقوال دی.(۱)یوقول دادې چه داایت حمل دې په فرض،تقدیراوتشبیه باندی.یعنی کچرته بالفرض والتقدیریوه مرضعه اویاحامله زنانه موجوده شی نومرضعه به دخپل بچی نه غافله شی اودحاملی زنانه به دډهشت اوخوف نه حمل ضائع شی.

(۲)دویم قول دادې چه ایت حمل دې په حقیقت باندی مرادتنه هغه زنانه دی چه دحمل اویابچی ته پیوور کولوزمانه کښې ورته مرګ راغلې وی نوددغه شان زنانوبعث به هم په دغه حالت کښې کیږی.

**فائده**: مرضع اومرضعة دواړه لفظونه دهغه زنانودپاره استعمالیږی چه بچی ته یئ ورکوی خوددواړو په مینځ کښې فرق دادې چه مرضعة ورته هغه وخت کښې وئیلې کیږی چه بچی ته ئی تئ په خوله کښې ورکړې وی اومرضع ورته عاموحالاتو کښې وائی.اوبچی ته دپیوورکولوداخاص وخت ډیردمینی وی اوزنانه دډیرتکلیف باوجود بچی دسینی نه،نه لری کوی خودقیامت اودزلزلی هیبت به دومره زیات وی چه دغه شان زنانه به هم خپل بچی دځان نه، لری کړی اودبچی نه به بالکل غافله شی.

اودغه شان ذات حمل اوحامل دواړه صفات دزنانودی چه په خیټه ئی بچی وی خوفرق په خپل مینځ کښې دادې چه ذات حمل ورته هغه وخت کښې وئیلې شی چه حمل ئی ښکاره اوظاهرشوې وی اوحامل ورته په عاموا وقاتوکښې ورته وئیلې شی اوهرکله چه زنانه ذات حمل وی نوپدغه وخت کښې داډیرزیات احتیاط کوی چه حمل ناتمام اونه غورزیږی.خودقیامت دورځی هیبت به دومره زیات وی چه زنانه به دخپل حمل حفاظت اونکړې شی.

﴿وَتَرَى ٱلنَّاسَ سُكَٰرَىٰ﴾غوره قول دادې چه رؤیت په خپلی معنی سره دې اوسکاری نه مراد مشابه دسکاری دې یعنی دهیبت دوجی نه به ددې خلکوپه عقلونوکښې داسی فتورراغلې وی

اوبدحاله به وی لکه څرنګه چه دنشيي سړی عقل کښې فتور وی اوپه هيڅ باندی هم نه پوهيږی اوبدحاله وی اوبعض فرمائی چه ﴿وَتَرَى﴾ په معنی دتظن سره دي ﴿ٱلنَّاسَ﴾ ورله مفعول اول او ﴿سُكَٰرَىٰ﴾ ورله مفعول ثانی دي .يعنی ته به په خلکو باندی داسی ګمان کوی چه دوئ نشه دي داسی دليونو په شان منډی به وهی اوحالانکه دوئ به حقيقت نشه نوی

﴿وَلَٰكِنَّ عَذَابَ ٱللَّهِ﴾ دا استدراك دي دمحذوف نه،مقصد دادي چه دامذکوراحوال يعنی ذهول دمرضعه وضع دحمل اوخلك بيهوشه ښکاريدل داټول څه ناڅه درجی کښې به آسان وی ليکن ددينه ورستوچه کوم عذاب به چه الله ﷻ دطرف نه وی هغه به ډيرسخت وی څه قسم نرمی اوآسانی به پکښې نوی، (بحر).

| وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِي ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطَٰنٍ مَّرِيدٍ ٣ |
| --- |
| اوبعض دخلکونه هغه څوك دی چه جګړه کوي په باره دتوحيددالله ﷻ کښې بغيرد پوهي نه اوروان دی په هرشيطان سرکش پسی |
| كُتِبَ عَلَيْهِ أَنَّهُۥ مَن تَوَلَّاهُ فَأَنَّهُۥ يُضِلُّهُۥ وَيَهْدِيهِ |
| فيصله کړې شويده په باره دهغه چاکښې چه چاتابعداری ئ اوکړه دشيطان نويقيناً هغه به ګمراه کوي دده لره اورسوي به دده لره |
| إِلَىٰ عَذَابِ ٱلسَّعِيرِ ٤ |
| عذاب دګرم اورته |

﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ﴾ منکرينو دتوحيد اوقيامت ته زجردي اوجدال فی الله نه مراد دالله ﷻ په قدرت اوصفاتو کښې جهګړا مرادده چه دوئ به داوئيل چه الله ﷻ په بعث بعد الموت باندی ندي قادر، ملائکوته بنات الله وئيلو اودقرآن په باره کښې به اساطيرالاولين قول کولو ﴿بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ ددينه مراد دليل عقلی دي.

﴿وَيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطَٰنٍ﴾ ددينه جنی اوانسی دواړه شيطانان مراددی، جنی شيطان مختلف قسم خيالات،شبهات دکفاروپه زړونو کښې اچوی اوکفاردهغی اتباع کوی اوانس شياطين هغه

مشران متبوعين دی چه خپلو اتباعو ته دکفر، شرك اوبدعت دعوت ورکوی اودوئ ئی قبلوی. اوپه هغوئ پسی روان دی.

﴿كُتِبَ عَلَيْهِ أَنَّهُ مَن تَوَلَّاهُ﴾ کتب نه مراد کتابت تقدیری دې. په معنی دقضی سره اوضمیرد ﴿عَلَيْه﴾ شیطان ته راجع دې ای قضی علی الشیطان(مدارك) او ﴿أَنَّهُ﴾ کښ ﴿هُ﴾ ضمیرشان دې او ﴿تَوَلَّاه﴾ په معنی دتبع سره دې اوداضمیرهم شیطان ته راجع دې. اوباقی ضمائرمن ته راجع دی. نو دا یت مقصد دا دې چه په شیطان باندی دافیصله کړې شویده چه څوك هم دده اتباع کوی نو هغه به ګمراه کیږی او شیطان به ئی جهنم ته بوځی.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ

ای خلکو کچري يئ تاسو په شك کښ ددوباره ژوندنه نو دليل واورئ يقيناً مونږ جوړکړی وئ تاسو اول دخاورونه. بيادنطفي نه

ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِن مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ

بياتکړي دوينی نه بيا تکړې دغوښي نه چه (څني) پوره اندامونه والاوي او (څني) کم اندامونو والاوي

لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ ۚ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى

دپاره ددې چه مونږ وضاحت اوکړو تاسو ته. اوساتو ئی په رحمونو کښ څومره چه زمونږ خوښه وي ترنيټي مقرری پورې

ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ۖ وَمِنكُم مَّن

بيا اوباسو تاسولره واړه بيا پالنه کوو ستاسو دپاره ددې چه اورسيږئ خوانئ خپلي ته. اوځنی دستاسونه هغه دی

يُتَوَفَّىٰ وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ

چه مړه کړې شي اوځنی دستاسونه هغه دی چه اوګرځولی شي سپك عمرته عاقبت داشی چه نه پوهيږی

مِن بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا ۚ وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً فَإِذَا أَنزَلْنَا عَلَيْهَا

ورستو دپوهي نه به هيڅ څيزباندی. اووينی ته زمکي لره اوچه پرته پس کله چه رااوروو مونږ په هغي باندی

| الْمَاءَ | اهْتَزَّتْ | وَرَبَتْ | وَأَنْبَتَتْ | مِنْ | كُلِّ | زَوْجٍ | بَهِيجٍ ⑤ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبه‌باران | نوتیاره | شي | دپاره | دزرغونئ | اوأوپرسیږي | اوراأبوکوي | دهرقسم تازه نه |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمْ ﴾پدی ایت کښ په اثبات دتوحیدوپه اثبات دقیامت باندی دوه۲، دلیل عقلی ذکرکیږی اول استدلال په پیدائش دانسان په مختلف اطوارو اوانقلاباتوسره دې اودویم استدلال دزمکی په مختلفواحوالوسره دې﴿إِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ﴾شرط دې اوجزاء ورله مقدره ده چه فازیلوا ریکم دې یعنی خپل شك پدی دلیل سره زائله کړئ او ﴿فَإِنَّا خَلَقْنَٰكُم ﴾ تفصیل دجزاء دې اوقائمقام دجزاء دې.

﴿فَإِنَّا خَلَقْنَٰكُم﴾دااول دلیل دې پدیکښ دانسان دابتداء نه ترانتهاء پورې اوه۷،منازل اومراحل بیان شویدی۱،تراب ۲،منی۳،علقه ۴،مضغه۵،طفولت۶،اشدیت۷،ارذل العمر.من تراب دااوله مرحله ده ددینه مرادیاحضرت آدمعليه السلام دې، چه الله تعالی دخاورونه جوړکړو اوبیائی پکښ روح واچولو.اوچونکه حضرت آدمعليه السلام اصل وو ټولوانسانانودپاره نودهغه پیدائش دخاورونه داد ټولوانسانانو دخاورو نه پیدائش دې،نوپدی اعتبار﴿مِن نُّطْفَةٍ ﴾نه مراد پیدائش داولاد آدم دې خکه چه توالداوتناسل دپاره ظاهری ذریعه نطفه انسانی یعنی منی ده. اویاد﴿خَلَقْنَٰكُم مِّن تُرَابٍ ﴾نه مراد هرهرفرد انسانی دې خکه چې دانسان دپاره مبدأ اول یعنی منی جوړیږی دغذاء نه اوغذا حاصلیږی دخاورونه یعنی دزمکی نه، نودایت مقصدداشوچه ستاسوغذا دخاورونه ده چه هغه غذا مختلف مراحلوکښ دتیریدلونه پس بیاپه منی سره بدله شی. نودادویمه مرحله اومنزل شو ﴿ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ﴾دادریمه مرحله ده چه حقیقت اوماهیت دمنی کښ الله تعالی انقلاب راولی اودوینی په حقیقت باندی ئی بدل کړی.

﴿ثُمَّ مِن مُّضْغَةٍ﴾داخلورمه مرحله ده چه دوینی ماهیت په غوښی سره بدل شی ﴿مُّخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ﴾دادواړه په جرسره صفات دې د ﴿مُّضْغَةٍ﴾دپاره، ددې یوه معنی داده چه مخلقة نه مراد تام الخلقت دې یعنی دظاهری جسم په اعتبارسره دعیبواونقائصونه پاك وی. قدوقامت. رنګ.

شکل اوصورت اوصحت په اعتبارسره کامل وی او ﴿وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ﴾ نه مراد غیرتام الخلقة وی، یعنی قدوقامت، اعضاء وغیره کښې فرق وی.

دویمه معنی ئی داده چه ﴿مُخَلَّقَةٍ﴾ نه مرادهغه دې چه حیات ورته ورکړې شوې وی او ﴿وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ﴾ نه مراد هغه دې چه صرف مضغه وی اونوراعضاء ئی نوی راغلی اونه پکښې حیات وی اوتفصیل اوترتیب داوی چه کله نطفه مادررحم ته لاړه شی نوترڅلویښت ورځوپوری دغه شان نطفه وی، دڅلویښت ورځونه پس داپه منجمدې وینی سره بدله شی.بیاڅلویښت ورځونه پس مضغه شی چه دایوه ټکړادغوښې وی اوشکل وصورت ورته نوی ورکړې شی نوبیا ددغی(۱۲۰)ورځویعنی څلورمیاشتونه پس دالله ﷻ په حکم سره شکل وصورت ورته ورکولی کیږی،سر،خپې،لاسونه وغیره اعضاء ورته جوړکړې شی،نوځنی وخت کښې حمل دتشکیل یعنی شکل جوړیدلونه مخکښې ساقط شی نودیته غیرمخلقة وائی اوځنی وخت کښې حمل پوره شی اودنیاته راشی نودیته مخلقة وائی.

**فائده**: ددینه معلومه شوه چه دانسان په جسمانی انقلاباتواوظاهری طورحدکمال ته رسیدلوکښې دڅلویښت ورځواو(۱۲۰)ورځولوئ دخل دې نوپه باطنی انقلاباتو اوپه مراتبوکښې حدکمال ته رسیدلودپاره هم پدی اعدادو اعتمادکړې شویدې، چنانچه صوفیاکرامو معمول دخپلومریدانو سره داوی چه په هغوئ باندی چلی تیره وی اوتبلیغی حضرات اواکابرین هم داصلاح دپاره چله اوڅلورمیاشتی نصاب مقررکړیدې، اوتقرر ددې نصاب ته بدعت نشی ویلې کیدلې کماتوهم بعض الجهلاء.

﴿لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ﴾دامتعلق دې په﴿خَلَقْنَاكُم﴾پوری اومفعول ئی مقدردې چه هغه کمال حکمتاوقدرتنا دې یعنی پدی انقلاباتوسره مونږتاسوته خپل کمال حکمت اوقدرت واضح کوو، چه تاسوپدی سره استدلال اوکړئ چه کوم ذات پدی انقلاباتوباندی قادردې هغه په اعادې دانسان باندی هم قادردې.

**فائده**: هرکله چه په انسان کښې دوه(۲)قسمه انقلابات وو یوانقلاب په اعتباردماهیت اوحقیقت سره، چه یوماهیت په بل ماهیت باندی بدلیدل دی. اودویم انقلاب په اعتباردوصف

سره دي، نوتردې ځائ پورې دَاول قسم انقلاب ذكراوشواوهركله چه دا قسم زيات صريح اوواضح دَپاره دَاستدلال په بعث باندی نودَدې وجه تنبيه اوكړې شوه په استدلال باندی په نين لفظ سره

﴿وَنُقِرُّ فِي ٱلْأَرْحَامِ﴾يعني ځومره چه دَالله ﷻ غوښته وی نو هومره وخت حمل په مادررحم كښ تيره وی ځنی شپږ مياشتی، ځنی اوه(۷)ځنی اته ځنی نهه اوځنی ددينه زيات وخت تيره وی.

﴿إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾دَمقرری نيتی اقل مدت شپږمياشتی وی اواكثرمدت ئې زمونږپه مسلك دوه(۲) كاله اودَامام شافعي رحمه الله په مسلك ځلوركاله وی.

﴿ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا﴾داذكردَانقلاباتودې په اعتباردَوصف سره اوداپنځمه مرحله ده او ﴿طِفْلًا﴾اسم جنس دې اودَطفوليت دَمدت اطلاق دَپيدائش نه ترحدبلوغ پورې كيږی ﴿ثُمَّ لِتَبْلُغُوٓا۟ أَشُدَّكُمْ﴾ دادَشپږمی مرحلی ذكردې اوغوره قول دادې چه﴿لِتَبْلُغُوٓا۟﴾ علت دې دَمحذوف دَپاره نوتقديردَعبارت داسی دې ثم نعمركم يا ثم نبقيكم لتبلغوا اشدكم،اواشديت نه مرادمرتبه دكمال قوت اوعقل اوتميزده.

﴿وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ﴾يعني ځنی كسان په مرتبی دَاشديت كښ اويادَهغی نه مخكښ وفات كړې شی، اوځنی كسان داسی وی چه هغوئ عمردرازشی اواومی(۷) مرتبی ته اورسيږی يعني ﴿يُرَدُّ إِلَىٰٓ أَرْذَلِ ٱلْعُمُرِ﴾شی اوارذل العمرهغه مرحلی دَشيخوخة ته وئيلې كيږی چه په هغی كښ انسان بل چاته محتاجه شی لكه ځرنګه چه په ابتداء كښ اوزمانی دَطفوليت كښ محتاجه وی

﴿لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنۢ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْـًٔا﴾لام دَعاقبت دې او"شيئا" نكره ده په سياق دَنفی كښ واقعه شويده نوعموم ئې فائده كړيدې او من زائده دې دَتاكيددَنفی دَپاره راغلې دې اوهركله چه دلته مراحل زيات اومتعدد ذكرشونودَدې وجه نه دَنفی تاكيدپه من زائده سره اوشو، اوپه سورة النحل ايت نمبر(۷۰)كښ صرف دَتخليق اوبيارد الى ارذل العمرذكردې اومراحل متعدد ندی ذكرشوی نوځكه هلته دَنفی تاكيدپه من سره ندې شوې اولكيلا يعلم بعدعلم ذكرشويدې اوحضرت عكرمه رحمه الله نه منقول دی چه من قراء القرآن لم يصرهذه الحالة يعني څوك چه قرآن لولی نو هغه

باندي به داحالت نه راځي يعني اهل علم او اهل قرآن الله ﷻ ددې حالت نه محفوظ ساتي دهغوئ عمرونه اګرچه اوږده شي خودهغوئ عقل اوفهم بالکل صحيح وي

﴿وَتَرَى ٱلْأَرْضَ هَامِدَةً﴾ دادويم دليل دې مخکښې دليل عقلي انفسي وو اودادليل عقلي افاقي دې اوپديکښې دزمکې خلوراحوال مذکوردي. ﴿هَامِدَةً﴾ دهمودنه دې اوچې اوبې ګياه والا زمکې ته وئيلې کيږي.يعني زمکه اوچه اومړه وی نوالله ﷻ پرې باران رااوروی نوحيات اوژوندون پکښې پيداشي، او﴿اهْتَزَّتْ﴾ دا اهتزازنه دې په معنی دحرکت سره اوهرکله چه تخم په زمکه کښې اوغورزولې شي اودغه تخم چه بيابهرته رااوځي دبوټي په صورت کښې.نوزمکه ورسره معمولي غوندې حرکت کوی ځکه چه بغيردحرکت دزمکې نه دتخم بهرته راوتل ممکن ندی اوبعض فرمائی چه داهتزازنسبت کول زمکې ته مجازادې يعني اسنادمجازی دې اصل کښې حرکت او اهتزاز دبوټي مراددې،نواهتزت معنی ده تحرکت نباتها اوبعض فرمائی چه اهتزازنه معنی مجازی مرادده.يعني قابل کيدل دزمکې دپاره دبوټي راويستلواودا حرکت حکميه دې.

﴿وَرَبَتْ﴾ داياپه معنی دارتفعت سره دې يعني اوچته شي.اوياپه معنی دانتفخت اوازدادت سره دې يعنی اوپړسيږی اودادواړه معاني قريبي قريبي دی.

ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّهٗ يُحْيِ الْمَوْتٰى وَاَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝

دادليل دې پدې چه بيشکه الله ﷻ حق دې اوبيشکه هغه به ژوندی کوي مړولره اوبيشکه هغه په هرڅيزباندی پوره قادردی

وَّاَنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيْهَا ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ يَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُوْرِ ۝

اوبيشکه قيامت راتلونکې دې نيشته شك په هغې کښې اوبيشکه الله ﷻ ژوندې کوي به هغه خوك چه په قبرونو کښې دی

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًى وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيْرٍ ۝

اوبعضې دخلکونه هغه څوك دی چه جګړه کوي په توحيد دالله ﷻ کښې بغيردپوهې نه اوبغيردهدايت نه اوبغيردکتاب روښانه نه

ثَانِيَ عِطْفِهٖ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ لَهٗ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَّنُذِيْقُهٗ

تاووي دده خپله دې دپاره چه ګمراه کړی خلك دلاري دالله ﷻ نه دده دپاره په دنيا کښې شرمندګی ده او اوبه څکوو ده نه

| يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَذَابَ الْحَرِيْقِ ۞ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدٰكَ وَاَنَّ اللّٰهَ |
| --- |
| په ورځ دقیامت عذاب داور سوزوونکی دا په وجه دهغی عملونو چه وړاندي لیږلي دي لاسونو ستا او بدي وجه چه الله ﷻ |
| لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ۞ |
| ندي ظلم کوونکی په بندگانو خپلو باندی |

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْحَقُّ﴾ "ذلك" سره اشاره مذکورفی الدلیل ته ده. او﴿بِأَنَّ ٱللَّهَ﴾ جارمجرورمتعلق دي په محذوف پوری چه لتستیقنوا اولتعلموا دي اوپه دي دوه(۲)ایاتونوکښ نتیجه دَماقبل دواړو دلیلونوذکرکیږی،په پنځه وجود اوامورسره.اوهغه پنځه اموربالترتیب دادی (۱)الله ﷻ حق دي (۲)مړی به ضرورژوندی کیږی(۳)الله ﷻ په هرڅه باندی قادردي(۴)قیامت به خامخا راځی(۵)مړی به دَخاورونه دوباره رااوچتیږی

﴿بِأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْحَقُّ﴾دااوله نتیجه ده حق معنی داده چه وجود دَالله ﷻ یقینی دي اوتغیراوتبدیل نه پاك دي. کنی داسی مضبوط اومنظم اوحکیمانه اموربه څرنگه ظاهریدلو؟ یعنی دادهغه کمال ذاتی دي ﴿وَأَنَّهُۥ يُحْيِ ٱلْمَوْتَىٰ﴾دادویمه نتیجه ده چه څرنگه الله ﷻ په ابتداء دَانسان باندی قادردي چه یوی نطفی نه ئی علقه، علقی نه ئی مضغه اومضغی نه خائسته صورت والاانسان پیداکړو نوپه اعادې باندی هم قادردي. یعنی هغه متصف دي په کمال فعلی سره

﴿وَأَنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾دادریمه نتیجه ده چه یوحقیقت په بل باندی بدلول داوچی زمکی نه گیاه رازرغونول وغیره داپدی دلالت کوی چه هرڅه دَالله ﷻ دَقدرت ماتحت دي.کنی داکارونه به څرته هم نوي شوي،یعنی هغه متصف دي په کمال وصفی سره.نوپدی ایت کښ دری(۳)امورثابت شو(۱)الله ﷻ په کمال ذاتی سره متصف دي(۲)الله ﷻ په کمال فعلی سره متصف دي(۳) الله ﷻ په کمال وصفی سره متصف دي

﴿وَأَنَّ ٱلسَّاعَةَ﴾داخلورمه نتیجه ده چه الله ﷻ په خپل قدرت بالغه سره اویوعجیب اوغریب نظام سره انسان پیداکړو نوداتخلیق عبث اوفضول ندي بلکه دازندگی یوامتحان دي اودَدې

نتيجى دپاره دقيامت ورځ هم پيداکړيده نوقيامت به خامخاراځى دې دپاره چه انسان ته جزا اوسزا ورکړې شى.

﴿وَأَنَّ ٱللَّهَ يَبْعَثُ مَن﴾ دا پنځمه نتيجه ده چه څرنګه الله ﷻ ونى بوټى دخاورونه پيدا کوى نودغه شان دَدې خاورونه به دقيامت په ورځ انسان دوباره راپورته کړى ﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ﴾ اتفصيلى اعاده ده دزجراول خلاصه ئى داده چه داضديان اومعاندين چه دالله ﷻ په دين کښ شکوك اوشبهات پيدا کوى اوناحق جهګړې کوى دالله ﷻ په وحدانيت کښ نودوئ سره په دې خپلى دعوى باندى نه دليل عقلى،نه نقلى، اونه وحى شته نو﴿بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ نه مراد نفى ددليل عقلى ده﴿هُدًى﴾ نه مراد دليل وحى دې او﴿كِتَٰبٍ مُّنِيرٍ﴾ نه مراد دليل نقلى دې اويادعلم نه مراد علم بديهى اوضرورى دې او﴿هُدًى﴾ نه مرادعلم استدلالى اواكتسابى دې ځكه چه نظرصحيح هادې اورسوونکى وى معرفت ته، اودکتاب منيرنه مراد دليل نقلى دې.﴿ثَانِىَ عِطْفِهِۦ﴾ داحال دې دضميرمرفوع د يجادل نه او ثانى اسم فاعل دې دثنى نه په اصل کښ اړول اوتاوولوته ونيلې کيږى او عطف جانب اوطرف ته ونيلې کيږى، دلته تنه مراد عدم قبول دحق ايمان اوتوحيددې دوجى دتكبراوعنادنه.﴿لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ داعلت غائى دې دجدال.﴿لَهُۥ فِى ٱلدُّنْيَا خِزْىٌ﴾ تخويف دنيوى دې ﴿وَنُذِيقُهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ﴾ داتخويف اخروى دې.

﴿ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدَاكَ﴾ ددينه مخكښ يقال لهم فى الاخرة اذا دخل النار جمله مقدرره ده ﴿وَأَنَّ ٱللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّٰمٍ﴾ ددې جملى تفصيل په سورة ال عمران کښ تيرشويدې

| وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَعْبُدُ ٱللَّهَ عَلَىٰ حَرْفٍ ۖ فَإِنْ أَصَابَهُۥ خَيْرٌ ٱطْمَأَنَّ بِهِۦ ۖ |
|---|
| اوبعضې دخلکونه هغه دى چه بندګي کوي دالله تعالى په طرف شك باندى،پس که اورسيږى ده ته خيرکلك شي په هغې. |
| وَإِنْ أَصَابَتْهُ فِتْنَةٌ ٱنقَلَبَ عَلَىٰ وَجْهِهِۦ خَسِرَ ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةَ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْخُسْرَانُ ٱلْمُبِينُ ﴿١١﴾ |
| اوکه اورسيږي ده ته تکليف نو رااوګرزي په مخ خپل باندى،تاواني کړه ده دنيااوآخرت لره.داتاوان دې ښکاره |

| يَدْعُوا مِنْ دُونِ اللهِ مَا لَا يَضُرُّهُ وَمَا لَا يَنْفَعُهُ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ |
|---|
| دوئ بلنه کوي سيوا دالله تعالی نه هغه چاته چه ضررنشی ورکولی ده ته اوهغه چاته چه نفع نشی ورکولی ده ته دا بی لاري کيدل |
| الْبَعِيدُ ﴿۱۲﴾ يَدْعُوا لَمَنْ ضَرُّهُ أَقْرَبُ مِنْ نَفْعِهِ ۚ لَبِئْسَ الْمَوْلٰى |
| دی لری دحق نه. عبادت کوي دهغه چاچه ضرردبندګئ دهغه زيات نزدې دي دفائدې دهغه نه.يقيناًچه ناکاره دوست دي |
| وَلَبِئْسَ الْعَشِيرُ ﴿۱۳﴾ |
| اويقيناًچه ناکاره ملګری دي |

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَن يَعْبُدُ اللَّهَ﴾دا دويم زجردې تفصيلا پديکښ حالات دمذبذبينو خلکو بيانيږی چه ددين منلو او ايمان راوړلودپاره مدار دينوی مفادات ګرځوی، کچرته مفادات ئی پوره کيدلو مال، دولت وغيره ميلاويدلو نوظاهرکښ دين قبلولوته تياروی اوکچرته مفادات ئی نه پوره کيدلو بلکه مشقت اوتکليف ورته اورسيږی نودين قبلولوته تيارنوی بلکه بدرد وائی، امام بخاری رحمه الله وغيره دابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړيدی: كان الرجل يقدم المدينة فان ولدت امرأته غلاما ونتجت خيله،قال هذا دين صالح وان لم تلدامرأته،ولم تنتج خيله، قال هذا دين سوء(بخاری، كتاب التفسير) يعنی مدينی ته به يو کس(ظاهری مسلمان) راغې نوکچرته نارينه بچی به ئی پيداشو اواسپه به ئی لنګه شوه نوبيائی وئيلوچه دادين ښه دې(يعنی پديکښ مزی دی) اوکچرته نارينه بچی به ئی پيدانشو اويابه ئی اسپه لنګه نشوه نوبيابه ئی وئيلوچه دادين ډيربد دې(يعنی پديکښ تکليفونه دی).

﴿عَلٰى حَرْفٍ﴾دا حال دې دفاعل د﴿يَعْبُدُ﴾نه ای حال كونه متزلزلاً اوحرف په اصل کښ طرف ته وئيلې کيږی دلته تنه مرادشك دې اوشك نه تعبيرپه حرف سره اوشوځکه چه داهم ديقين نه يوطرفته وی، اودغه شان شك کونکی سړی ددين نه يوطرف ته وی اود دين په وسط کښ نوی، اوعلامه زمخشری رحمه الله فرمائی چه دااستعاره تمثيليه ده،تشبيه ورکړې شويده دهغه کس چه خپل دين باندی ثبات نوی په قلق،اضطراب اوبی سکونئ کښ وی دهغه کس دحالت سره چه دلښکرنه يوطرف ته وی اوپدی انتظارکښ وی کچرته لښکرته کاميابی حاصله شی نودې به

پکښې هم شامل شی اومال غنیمت به حاصل کړی اوکچرته لښکرته شکست میلاؤشی نودې به اوتختي اوبعض فرمائي چه ﴿عَلَىٰ حَرْفٍ﴾ په معنی دَعلی شرط سره دي یعنی دین ته په شرائطو باندی راځی. اودالله ﷻ دَعبادت دپاره شرطونه مقرره وی. لکه قرطبی نقل کړیدی چه شیبه بن ربیعه نبی ﷺ ته راغې اودرخواست ئی اوکړوچه ماته دعااوکړه چه الله ﷻ ماته ډیرمال. اوښان اوآسونه اونارینه اولاد راکړی نوځه به ایمان راوړم. اوستادین به اختیارکړم. نونبی ﷺ دده دپاره دعااوکړه نوده ظاهراً اسلام قبول کړو. نوبیاورباندی الله ﷻ ازمائش راویستلونودې مرتد شو

﴿فَإِنْ أَصَابَهُۥ خَيْرٌ﴾ دابیان دَماقبل جملی دي اوخیرنه مراد دنیوی خیردي لکه مالداری. صحت اونارینه اولاد میلاویدل شولو ﴿وَإِنْ أَصَابَتْهُ فِتْنَةٌ﴾ فتنی نه مراد ازمائش دي لکه غربت بیماری اونارینه اولادنه میلاویدل شولو ﴿ٱنقَلَبَ عَلَىٰ وَجْهِهِۦ﴾ مرادتنه کفرته واپس کیدل دی. ﴿خَسِرَ ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةَ﴾ تاوان دَدنیایې دادې چه جان، مال اوعزت ئی غیرمحفوظ شواودنیوی عزت وکرامت ئی لاړو اوتاوان دَاخرت ئی دادي چه دَدائمی عذاب مستحق شو. اوکه څه نیك عملونه ئی کړی وی نوکفرته واپس کیدلودَوجی نه هغه ټول بربادشو

﴿يَدْعُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ دامتعلق دي دَماقبل سره اوبیان دَ ﴿ٱنقَلَبَ عَلَىٰ وَجْهِهِۦ﴾ دي اوتفصیل دي دَ ﴿خَسِرَ ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةَ﴾ چه دې ظالم دَالله ﷻ توحیداوعبادت پریخودلواو دَداسی عاجزمخلوق عبادت ئی شروع کړو. چه هغه ده ته په نفع یاضرر رسولو باندی قادرندي ﴿يَدْعُواْ لَمَن ضَرُّهُۥٓ﴾ دادَمشرك بدانجام ذکرکیږی. پدی آیت کښې یوڅومباحث دی

**اول مبحث** دادې چه دامذکورایت دَماقبل ایت دَپاره تاکیددې اوکه داایت په تاسیس باندی مبنی دې، نوبعض فرمائي چه داایت تاکیددې دَماقبل ایت دَپاره. اوپدی سره اشاره مقصود ده دیته چه داکفاردَغیرالله عبادت اوهغوئ ته بلنه په کثرت سره کوی

اوبعض فرمائي چه تکرارلفظی نیشته دې بلکه دلته تاسیس دې ځکه چه مخکښې ایت کښې ﴿يَدْعُواْ﴾ په خپلی متعارفی معنی سره وو، اودلته ﴿يَدْعُواْ﴾ په معنی دیطیعوا سره دې. او من نه مراد روساء دَمشرکینودی. اوقرینه پری داورستو جمله ده چه لبئس المولی ولبئس العشیر ده

**دويم بحث** دادې چه دلته په من باندې لام داخل شويدې اوداجمله يعنى ﴿لَمَن ضَرُّهُۥٓ﴾ په ظاهركښې مفعول به دې د ﴿يَدۡعُواْ﴾ دپاره اومفعول به باندې لام.نه داخليږى خکه چه مفعول به دکلام په مينځ کښې وى اوپه مينځ دکلام کښې لام نه راځى نو(١)علامه محلى رحمه الله وغيروحضراتو تنه جواب داسې کړيدې چه دالام زائددې (٢)اوبعض مفسرين فرمائى چه﴿لَمَن ضَرُّهُۥٓ﴾ جمله مفعول به ندې د﴿يَدۡعُواْ﴾ دپاره بلکه مفعول به د﴿يَدۡعُواْ﴾ محذوف دې چه من دون الله دې او﴿لَمَن ضَرُّهُۥٓ﴾ جمله مستانفه ده چه من ضره اقرب الخ موصول مبتدا ده او﴿لَبِئۡسَ ٱلۡمَوۡلَىٰ﴾ ورله خبردې نوپه من باندې لام الابتداء داخل شويدې خکه چه ابتداء ده(٣)اوبعض فرمائى چه محل دلام صله ده يعنى ضره اقرب الخ خودالام دصلى نه رامقدم کړې شواوپه موصول باندې داخل کړې شونوپه اصل کښې داسې وويدعوا من لضرّه اقرب من نفعه.اوابن جريرطبرى رحمه الله ددې دپاره دکلام عرب نه ډيرمثالونه بيان کړيدى چه دلام محل ورستوصله وى اودې داخل کړې شى په مقدم موصول باندې. لکه عرب وائى عندى لماغيره خيرمنه. چه په اصل کښې داسې دې عندى مالغيره خيرمنه(طبرى)

**دريم بحث** پدې مقام کښې يو اشکال دې.چه ددې ايت دمخکنى ايت سره تعارض دې خکه چه مخکښنى ايت کښې نفى دضرر اونفعى اوشودمعبودانوباطلونه مطلقا.اوپدې ايت کښې دمعبودانوباطلودپاره نفع اوضررثابته کړې شويده، نوجواب تنه په متعددو وجوهوسره شويدې(١)يوجواب دادې چه دلته﴿يَدۡعُواْ﴾په معنى دپطيع سره دې اومن نه مراد رؤساء اومتبوعين دې.مطلب دادې چه دارؤساء اومتبوعين چه خپلوتابعين سره ددنيوى مفاداتووعدې کوى نودهغى وعدوپه بنياد دوئ چه دمشرانواطاعت اوكفركوى نوددغى اطاعت نقصان دفائدې نه ډيردې، نوخلاصه دجواب داده چه مخکنى ايت کښې نفى دنفعى اوضرردمعبودانوباطلونه شوې وواوپدې ايت کښې چه اثبات شويدې دنفعى اودضررنوهغه درؤساء داطاعت شويدې

دويم جواب دادې چه مخکى ايت کښې نفى دضرربالذات وه يعنى دامعبودان باطله بالذات انسان ته ضرررسولوباندې قادرندې، اودلته اثبات دضررتسببيًا دې يعنى ددې معبودان باطلوعبادت کول سبب دضرردې، اودغه شان په مخکنى ايت کښې نفى دنفعى حقيقى وه اودلته

اثبات دَنفعي توقعي دې چه دَدې مشركينو عقيده اوخيال داوو چه دابتان به زمونږ شفاعت كوى اومونږ ته به فائده راكوى نودَايت مطلب داشوچه كوم ددوئ خيال دې چه دامعبودان به مونږ ته فائده راكړى هغه ډيربعيده ده ځكه چه هغه صرف اوصرف يوه توقع ده اوضررقريب دې ځكه چه هغه متقين دې اوبعض فرمائى چه پدى ايت كښ ضررته اقرب وئيلې شويدې اونفع ئى بعيده شوه اوپه كلام دَعربو كښ بعيدكله كله دَمعدوم دَپاره استعماليږى لكه سورة ق كښ دكفارو قول په باره دَبعث كښ الله تعالىٰ نقل كړيدې چه ذلك رجع بعيد دلته بعيد په معنى دَمعدوم سره دې. نودَجواب خلاصه داده چه مخكښنى ايت كښ هم نفى دَنفعي شوې وه اوپدى ايت كښ هم وجود دَنفعي معدوم كړې شو البته په مخكښنى ايت كښ نفى دَضررشوې وه خوهغه بالذات وه اودلته چه كوم اثبات دَضررشويدې هغه تسبيبادې.

**دريم جواب** امام رازى رحمه الله كړيدې چه نفى دَنفعي اودَضرر حقيقة ده اوپدى ايت كښ اثبات دَنفعي اودَضرر فرضادې يعنى دامعبودان باطله چاته نفع اوضررنشى وركولى خوكچرته بالفرض نفع اوضررئى وركولې هم شوې نوبيابه هم ضرربه ئى ډيروو په نسبت سره نفعي ته اونفع ئى به ډيركمه وه. والله اعلم.

إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي

يقيناً الله تعالىٰ به داخلوي هغه كسان چه ايمان ئى راوړى وي اوعملونه ئى كړيدى نيك (موافق دَسنت) جنتونوته چه بهيږى

مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۚ إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ ﴿١٤﴾ مَنْ كَانَ يَظُنُّ أَنْ لَنْ

به لاندې دَ بنګلو دَهغې نه نهرونه بيشكه الله تعالىٰ كوي هغه څه چه اوغواړي، څوك چه ګمان كوي چه هيڅرې به

يَنْصُرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ إِلَى السَّمَاءِ ثُمَّ لْيَقْطَعْ فَلْيَنْظُرْ

امداد اونكړى دَده (نبى پاك) الله تعالىٰ په دنيا اوآخرت كښ نو اوګده دې كړى يوه رسئ اسمان ته بيادې پريكړى نو اودې ګورې

هَلْ يُذْهِبَنَّ كَيْدُهُ مَا يَغِيظُ ﴿١٥﴾ وَكَذَٰلِكَ أَنْزَلْنَاهُ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ

چه آيا لرې كوي داچل دده هغه څه لره چه دې ئى غصه كړيدې. اوهمدارنګى نازل كړيدې مونږ داقرآن اياتونه واضح

| وَأَنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَن يُرِيدُ ۞ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا |
|---|
| اوبیشکه الله ﷻ هدایت کوي هغه چاته چه اراده ئې اوکړي بیشکه هغه کسان چه مؤمنان دی اوهغه کسان چه یهودیان دی |
| وَالصَّابِئِينَ وَالنَّصَارَىٰ وَالْمَجُوسَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا إِنَّ اللَّهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ |
| اوصاری اومجوسیان دی اوهغه کسان چه شرك ئې کړیدی. بیشکه الله ﷻ فیصله به کوي په مینځ ددوئ کښ |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ۞ |
| په ورځ دقیامت بیشکه الله ﷻ په هرڅیزباندی حاضرناظردی |

﴿إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ﴾ دا بشارت اخروی دي مؤمنانوته، ﴿إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ﴾ دا علت دي دماقبل دپاره یعنی دالله ﷻ داراده دپاره څه مانع نیشته چه څه اراده اوکړی نوهغه امرخامخاواقع کیږی نومؤمن ته اجراوکافرته سزا دابه هم خامخاواقع کیږی. ﴿مَن كَانَ يَظُنُّ﴾ دادریم زجرذکرکیږی اوپدی ایت کښ ډیرتوجیهات دی

**اوله توجیه** سره دربط نه دماقبل سره داده چه ﴿لَّن يَنصُرَهُ﴾ کښ ضمیرراجع دي نبی پاك ﷺ ته نوماقبل ایت کښ حال دمؤمنانوذکرشو نوپدی کښ حال دنبی ﷺ ذکرکیږی اودغه شان په ماقبل ایت کښ دکفارو دمعبودانوپه باره کښ ذکرشول چه معبودان باطله خپلو عابدانوته نه نفع ورکولی شی اونه ضرر تنه دفع کولی شی، نوکفاروبه دنبی ﷺ مخالفت کولو پدی بنیادچه الله ﷻ دخپل نبی ﷺ امداد اونصرت نه کوی نوالله ﷻ ددوئ دغه فاسدخیال رد کوي چه کچرته دوئ خانونه هم مړه کړی دغصی نه خوالله ﷻ به دخپل نبی ﷺ امداد اونصرت ضرورکوی، نوپدی اعتباردایت مقصد دادي چه کچرته دیوکس کوشش داوی چه په نبی ﷺ باندی غالب شم اوالله ﷻ دخپل پیغمبرامداد اونکړی نوداکس دي داسی اوکړی چه آسمان ته دِرسئ اورسوی. خکه چه امداد دجانبه دَ اسمان نه راځی نودي دِ رسئ په ذریعه اسمان ته اوخیژی اوامداد دي قطع یعنی بندکړی، نودي دي اوګوری چه پدی طریقی سره دي په خپل تدبیراومقصدکښ کامیاب کیدلی شی؟؟ اواستفهام دپاره دانکاردي یعنی بیابه هم دي پدی خپل مقصدکښ کامیاب نشی.

**دویمه توجیه** پدی اعتبارچه «یَنصُرَهُ» ضمیرراجع شی نبیﷺ ته داده چه «یَظُن» به معنی دَتمناسره دي اوسماء نه مراد اسمان دي «لِيَقْطَعْ» نه مراد وحي بنده ول دي خکه چه وحي راتلل موقوف علیه دَامداد دَپاره ده. نودایت مقصد دادي کچری دیوکس داخواهش وی چه دي په پیغمبرباندی غالب شيء اوالله ﷻ دي دَخپل پیغمبرسره امداد اونکړی نوداکس دي اسمان ته اوخیژی اوسلسله دَوحی دبنده کړی نواودګوری چه پدی طریقی اوتدبیرسره دي نصرت دنبیﷺ ختمولی شی؟ یعنی نشی ختمولی نوولی خان هسی سترړی کی. **دریمه توجیه** پدی اعتبارچه ضمیرنبی پاکﷺ ته راجع شی داده چه «اَلسَّمَآءِ»نه مراد سقف دبیت یعنی دکوروالا چهت مراددي او «لِيَقْطَعْ»په معنی دَلیختنق سره دي یعنی خان پهانسی کول. نودایت مقصددادي چه ثوك داګمان کوی چه الله ﷻ به دَخپل نبیﷺ امدادنه کوی نوهغه کس دي چهت سره رسۍ غوټه کړی اوپیادي خپل ځان له پهانسی ورکړی نواودي ګوری چه پدی طریقی سره دَده غصه ختمیږی اوکنه لکه په بل ځائ کښ الله ﷻ فرمائی موتوا بغیظکم اوپدی توجیه په اعتبارسره دایت محمول دي په تهدیدباندی اومحمول ندي په تجویزدَخودکشئ باندی

بل احتمال دادي چه«يَنصُرَهُ» ضمیرراجع دي من ته نوداایت بیامتعلق دي دایت نمبر(۱۱)سره چه په هغی کښ حالت دَمرتدینواومنافقینوذکروو چه تکلیف اوازمائش راتللوسره به ئی خپل دین پریخودلواودابه ئی وئیل کچرته دادین صحیح وی نوولی به په مونږ باندی تکالیف راتلل.نوپدی آیت کښ دغه شان خلکوته زجرذکرکیږی.نوپدی اعتبارهم متعددتوجیهات دی اوله توجیه داده چه پدیکښ مقصود حث دي په تسلیم دَتقدیرباندی.یعنی انسان ته تقدیرتسلیمولوباندی رغبت ورکول مقصوددي. خلاصه داده چه کله یومنافق اوضعیف الاعتقاد انسان ته تکلیف اورسیږی نوهغه ته غصه ورشی اودَالله ﷻ درحمت نه مایوسه شی اودَتقدیر په تسلیمولوباندی باندی راضی نشی اوداخیال اوګمان کوی چه الله ﷻ خماامدادپه دنیاکښ اونکړو نوپه آخرت کښ به هم نه کوی نوالله ﷻ فرمائی چه داخیال کوونکی انسان دي یوه رسۍ چت ته غوټه کړی اوځان له دي پهانسی ورکړی نوبیادي اوګوری چه پدی طریقی سره دي په تقدیرباندی غالب کیدي شی؟ یعنی نشی غالب کیدي نوبیا ولی تقدیرنه تسلیمه

وی.نوپدی توجیه هم ﴿ٱلسَّمَآءِ﴾نه مراد چت دي او ﴿لْيَقْطَعْ﴾نه مرادخپله زندگی ختمول یعنی ځان له پهانسی ورکول دی اوداهم په تهدیدباندی محمول دي نه په تجویزدخودکشئ باندی

بله توجیه دحضرت شاه صاحب رحمه الله ده چه هغه فرمائی چه دامثال بیانیږی دهغه سړی چه ددنیوی تکلیفونودوجی نه دمعبودانوباطلوعبادت شروع کړی یعنی کوم کس چه ددنیوی تکلیفونودوجی نه دالله جل جلاله نه مایوسه شی اودغیرالله نه امدادغوختل شروع کړی باباګانوته اوقبرونوته چیغی اوفریادونه شروع کړی، نودده مثال داسی دي لکه چه یواسمانی رسئ پوری نی ځان غوټه کړي وو. نوکه دي په خپله نشوختلی اسمان ته.نوکم ازکم داتوقع اوامیدخوور چه څوك هم دارسئ په بره راکاږی اودي به خپل منزل مقصودته اورسیږی خودا انسان صبراونکړی اودمعبودانوباطلوپه عبادت سره دغه اسماني رسئ کټ کړی.اومنزل مقصودته د رسیدلو هغه امیداوتوقع هم ختم شوه نوبیاداوګوري چه دغیرالله پدی عبادت سره دده غصه ختمیږي اوغیرالله به دده امداداوکړي شی؟ دذي توجیه په اعتبارسره﴿بِسَبَبٍ إِلَى ٱلسَّمَآءِ﴾نه مراد قرآن اوتوحیددي او امر بمعنی الاخباردي اودحضرت شاه صاحب رحمه الله توجیه ته حضرت الشیخ ترجیح ورکړیده ځکه چه پدی اعتباردآیت دماقبل سره ربط بالکل واضح دي.ځکه چي ماقبل آیت کښ دمعبودانوباطلو غیرنافع اوغیرضار ذکروواوپدی ایت کښ هم دغه مضمون دیومثال په ذریعي سره ذکرشو .ددینه علاوه نورهم توجیهات مفسرینو ذکرکړیدي

﴿وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَٰهُ﴾پدیکښ ترغیب الی القرآن ذکرکیږي.عام مفسرین فرمائی چه کاف دپاره دتشبیه دي،مشبه به آیات سابقه دي اومشبه باقی قرآن دي.یعني څرنګه مونږ ایات دتوحیداثبات درسالت اواثبات دحشرپه دلائلوعقلیوسره اوکړونودغه شان بافي قرآن هم مونږ نازل کړیدي چي په هغې کښ واضح واضح دلائل دی.اوحضرت شیخ رحمه الله فرمائی چي کاف دپاره دبیان کمال دي یعني دامسئله توحیدوغیره دقرآن په دلائلوسره واضح کول زمونږ کمال دي

﴿وَأَنَّ ٱللَّهَ يَهْدِى مَن يُرِيدُ﴾ یرید دپاره فاعل ضمیردي.اودهغې په مرجع کښ دوه (۲) احتماله دی،یواحتمال دادي چه ضمیرراجع دي من ته نودآیت مقصددادي چې الله جل جلاله هغه چاته هدایت

ورکوي چې هغه دَهدايت اراده کړي وي اوانابت الى الله ئى کړې وى اوياضميرراجع دې الله ته اوعائدمحذوف دې اى يريدالله هدايته.

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾هرکله چې ماقبل آيت کښې دَدې ذکراوشوچې هدايت ورکول دَالله ﷻ کاردي،نواوس پدى آيت کښې ذکردَهدايت يافته اودَغيرهدايت يافته خلکوکيږي.حضرت قتاده رحمه الله نه مروي دي چې اصول دَاديانو پنځه دي(پدى آيت کښې مذکوردي)څلوردَشيطان دي اويودَرحمان دي قال قتادة الاديان خمسة،اربعة للشيطان وواحدللرحمن(قرطبي)﴿ءَامَنُوا۟﴾مرادتنه امت محمديه ﷺ دې،﴿هَادُوا۟﴾نه مرادامت دَموسى عليه السلام دي﴿وَٱلصَّـٰبِـِٔينَ﴾ ،نه مرادامت دَابراهيم عليه السلام دي،ځکه چې دَصابئين په تفسيرکښې ډيراقوال دي مشهورقول پکښې دادي چې داهغه خلک ووچه دَستوروعبادت به ئي کولواوداپه دوردَحضرت ابراهيم عليه السلام کښې وو﴿وَٱلنَّصَـٰرَىٰ﴾ مرادتنه امت دَعيسى عليه السلام دي﴿وَٱلْمَجُوسَ﴾ مرادتنه دَاورعبادت کوونکي دي﴿وَٱلَّذِينَ أَشْرَكُوٓا۟﴾ مرادتنه عام مشرکين دې چې په يومخصوص نوم سره ندي مسمّىٰ،لکه څرنګه چې صابئين اومجوسيان په مخصوصونومونوسره مسمّىٰ دي،نولهذاداعطف دَمغايرت فى التسميه دَوجې نه دي اوحقيقةً مغايرت نيشته دي. ﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَفْصِلُ﴾غوره قول دادې چه دا انّ سره دَاسم اوخبر په محل دَ رفع کښې خبرواقع شويدې دَماقبل انّ دَپاره اودَايت مقصددادې چه په دنياکښې هريوه فرقه دادعوى کوى چه مونږ په حق يوخودَدوئ ټولوپه مينځ کښې به حقيقى اوعملى فيصله الله ﷻ دَقيامت په ورځ اوکړى دنياکښې هم الله ﷻ فيصله کړيده خودافيصله قولى ده اواخرت والافيصله به عملى وى.﴿إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ﴾داعلت دې دَماقبل يعنى﴿يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ﴾ دَپاره.

| أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَسْجُدُ لَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ وَٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ |
|---|
| آيانه ګوري ته چه بيشکه الله ﷻ ته سجده کوي هغه څوک چه په اسمانونوکښې دى اوهغه څوک چه په زمکه کښې دى اونمراوسپوږمۍ |
| وَٱلنُّجُومُ وَٱلْجِبَالُ وَٱلشَّجَرُ وَٱلدَّوَآبُّ وَكَثِيرٌ مِّنَ ٱلنَّاسِ ۖ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ ۗ وَمَن |
| اوستوري اوغرونه اوونې او چارپايان اوډيردَخلکونه اوډيروباندى پوره شويده فيصله دَعذاب اوهغه څوک |

| يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ۩ |
|---|
| چه سپك كړی هغه لره الله ﷻ نونيشته هيڅ څوك هغه لره عزت وركوونكې،بيشكه الله ﷻ كوی هغه څه چه اوغواړي |

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَسْجُدُ﴾دا دويم دليل عقلی دې په توحيدباندی،چه ټول كائنات دالله ﷻ مطيع اوالله ﷻ حكم ته منقاددی.دسجدې نه مراد ياحقيقة سجده ده اودهرمخلوق سجده دهغه دذات سره مناسب مخصوص كيفيت باندی وی نودانسان سجده وضع الجبهة على الارض ده اودنمرسجده دهغه يوطرف ته بل طرف ته ګرځيدل دی لكه الله ﷻ فرمائی اولم يروا الى ماخلق الله من شيئ يتفياء ظلله عن اليمين والشمائل سجداً لله (النحل) اودغه شان نورخيزونه چه دهغو مخصوص كيفيت سجده وی (ابن كثير)اودغه شان په حديث دابوذر رضی الله عنه كښې هم دی چه نقل كړيدې امام بخاری رحمه الله اومسلم رحمه الله وغيره قال رسول الله ﷺ اتدرى اين تذهب هذه الشمس؟ قلت الله ورسوله اعلم قال فانها تذهب فتسجدتحت العرش ثم تستامرالخ اوداقسم سجده اختياری ده اوهركله چه الله ﷻ شعورپه هرشی كښې پيدا كړيدې، كه انسانان دی ياځناور اويانباتات دی نوددې وجی نه هريوشی الله ﷻ ته اختياری سجده لګوی، البته دسجدې تكليفی حكم فقط انسانانواوجناتوته دې. اوبعض فرمائی چه دسجدې نه مراد انقياد اواطاعت دې تكوينی طورباندی اوپدی اعتبارسره دامعنی ذوی العقول،غيرذوی العقول، سجده تكليفی اوغيرتكليفی ټولوته شامله ده يعنی داټول مذكوراشيا تكوينی طوردالله ﷻ دحكم منقاددی.

اوكائنات ټول الله ﷻ ته سجده لګوونكی اوالله ﷻ ته منقاددی، ليكن تخصيص ددې مذكوره اشياؤځكه اوشوچه دامعبودان ګرځولی شوی وو ،صاحب دبحروغيره دابن عطيه رحمه الله نه نقل كړيدی چه حميرقبيلی به دنمرعبادت كولو ،كنانه به دقمر، تميم به ددبران ستوری، لحم به دمشتری ستوری،قريش به دشعری، طی به دثريا، اسدبه دعطارد اوربيعه به دمرزم ستوری عبادت كولو اودغه شان مشركينوځنی بتان دغرونونه تراش كړی وو ،اوځنی به ئې دوونونه جوړكړی وو اودغه شان دځنی وونوعبادت هم كړې شويدې، اودغه شان ددوابويعنی دځاروو عبادت هم كړې شويدې لكه غواوغيره شو.

﴿وَكَثِيرٌ مِّنَ ٱلنَّاسِ﴾ كثير مرفوع دي او ددې په رفع کښې درې اقوال دي (۱) يو قول دادې چه داعطف دې به ﴿وَمَن فِي ٱلْأَرْضِ﴾ باندې او دعطف الخاص على العام دقبيلې نه دې

(۲) دويم قول دادې چه دافاعل دې دفعل مقدر دپاره چه يسجدې او عطف دجملې په جملې باندې دې. او دسجدې نه مراد سجده تکليفي او تشريفي ده (۳) اودريم قول دادې چه ﴿وَكَثِيرٌ﴾ مبتداء ده او خبرئې محذوف دې چه مثاب لفظ دې

﴿وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ﴾ کچرته دسجدې نه مراد انقياد شي طوعا ياکرها، نوبيادې عطف په ﴿وَمَن فِي ٱلْأَرْضِ﴾ باندې دې. او ﴿حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ﴾ ورله صفت دې اوهرکله چه دوئ منکروو دسجدې تکليفي نه نو ددې وجه نه توصيف ئې په ﴿حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ﴾ سره اوشو اوکچرته دسجدې نه مراد سجده تکليفي او تشريعي شي نو بيا کثير مرفوع دې بناء برابتدائيت او ﴿حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ﴾ جمله ورله خبرواقع شويدې اويا ﴿حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ﴾ صفت دې او خبرد مبتدا دپاره محذوف دې چه محرومون لفظ دې ﴿وَمَن يُهِنِ ٱللَّهُ﴾ مرادتنه ازلي بدبختي او ايمان نه محروم کيدل دي

هَٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ فَالَّذِينَ كَفَرُوا

دادواړه، مؤمنان او کافران مخالفي ډلي دي چه جګړه کوي په باره درب خپل کښې. پس هغه کسان چه کفرئې کړيدې

قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّن نَّارٍ يُصَبُّ مِن فَوْقِ رُءُوسِهِمُ الْحَمِيمُ ﴿١٩﴾ يُصْهَرُ

جوړولي به شي ددوئ دپاره کپړې جامې داور. اچولي به شي پورته دسرونو ددوئ نه يشيدلي اوبه ويلې کيدې به شي

بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ وَالْجُلُودُ ﴿٢٠﴾ وَلَهُم مَّقَامِعُ مِنْ حَدِيدٍ ﴿٢١﴾ كُلَّمَا

په هغي سره هغه څه چه به خيټودوئ کښې دي او څرمني اوددوئ، دوهلو دپاره ګرزونه دي داوسپني نه. هرواري

أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ أُعِيدُوا فِيهَا

چه دوئ اوغوړي چه اوځي ددې اورنه دغم تکليف دوجې نه نو واپس به اوغورځولې شي به هغي کښې

وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ ﴿٢٢﴾

«اوبه وئیلې شي ورته اوڅکئ عذاب داور سوزوونکی»

﴿هَٰذَانِ خَصْمَانِ﴾ په هذان سره اشاره پدې مخکښې ایت کښې مذکورشپږو ډلوته ده چونکه دَدې تولورجع دوه «۲» ډلوته کیږی چه یوه ډله دمؤمنانوده اوبله ډله دکافرانوده. اوبیاا گرچه دکافرانو پنځه ډلې ذکرشویدی خوبناء برالکفرملة واحدة یوه ډله حساب کړې شویده نودَدې وجې نه اشاره تثنیه ذکرکړې شوه اوجهګړا دَدوئ په ذات اوصفاتودَالله ﷻ کښې اوپه دین دَالله ﷻ کښې اودغه شان په بعث بعدالموت کښې ده اوجهګړاهم عامه ده که قولی وی یعنی بحث مباحثی په صورت کښې وی یاعملی وی لکه جنګ بدروغیره کښې شو. اوپه روایت دبخاری وغیره کښې چه راغلیدی چه داایت دَمبارزین دَبدرپه باری کښې نازل شویدې چه ابتداءً دَمؤمنانودَطرف نه حضرت حمزه رضی الله عنه ، علی رضی الله عنه اوعبیده رضی الله عنه اووتلواودکافرانودَطرف نه عتبه. شیبه اوولیدرااووتلو نودَدې تعارض دَدې ماقبل قول اوتفسیرنیشته دې ځکه چه اعتبارعموم دَالفاظوسره وی اوخصوص دَواقعی لره نوی.

﴿فَالَّذِينَ كَفَرُوا﴾ داتخویف اخروی دې ډلی دکافرانوته اوتفصیل اووضاحت دَ ﴿إِنَّ اللَّهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ دې چه الله ﷻ به ددوئ په مینځ کښې څرنګه فیصله کوی؟ اودغه شان تخویف اخروی ذکرکیږی کافرانوته او ﴿قُطِّعَتْ﴾ په معنیٰ دَخیطت اوسویت سره دې یعنی دوئ دپاره به دَجهنم دَاورنه جامی جوړی کړې شی اودایااستعاره تمثیلیه ده یعنی څرنګه چه لباس په انسان باندی احاطه کړې وی دغه شان به په دوئ باندی دَجهنم اوراحاطه کړې وی اویاایت په ظاهراوحقیقت باندی محمول دې چه دَدوئ لباس به دَجهنم دَاورنه جوړکړې شوې وی. داقول دَحضرت سعیدبن جبیر رحمه الله دې.

﴿يُصَبُّ مِن فَوْقِ رُءُوسِهِمُ الْحَمِيمُ﴾ حمیم هغه سختی ګرمی اوبه دَجهنم دی چه دَهغی په باره کښې ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دی کچرته دَدې یوه قطره دَدنیاپه غرونوباندی توئی کړې شی نوداغرونه به ویلی شی نودغه ګرمی اوبه به دَجهنمیانودَسردَپاسه اړولی شی «اعاذناالله منها»

﴿يُصْهَرُ بِهِۦ مَا فِى بُطُونِهِمْ ﴾صهرويلی کیدلو ته وئیلې کیږی،دَحضرت ابو هریرة رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه سمعت رسول الله ﷺ یقول ان الحمیم لیصب من فوق رؤسهم فینفذمن جمجمة احدهم حق یخلص الی جوفه فیسلب مافی جوفه حق یمرق من قدمیه وهوالصهرثم یعاد کماکان(ترمذی) یعنی یقیناحمیم به ددوئ دَسرو نودَپاسه راتوئی کړې شی نودابه دَدوئ دَخیتودننه ته به اورسیږی اوددوئ په خیتوکښ چه څه دی هغه به لاندې ترخپوپوری به اوبهیږی اوداصهردې اوبیابه دوباره دوئ جوړکړې شی(داعمل به ورسره باربارکیږی).

﴿وَٱلْجُلُودُ﴾غوره قول دادې چه دَدینه مخکښ تحرق یاتشوی فعل مقدردې څکه چه څرمنی بهیږی یاتوویٔ ږی نه بلکه سوزیږی﴿وَلَهُم مَّقَـٰمِعُ مِنْ حَدِيدٍ ﴾مقامع جمع دَمقمع یادَمقمعة ده اودا ماخوذ دې دَقمع نه چه ذلت اورسوائی ته وئیلې کیږی، دلته تنه مراد گرزونه دی اوچونکه پدی سره وهلوکښ به دوئ ته ذلت رسول هم مقصودوی نوځکه لفظ دَمقامع ذکرشو، اودَحضرت ابوسیعدخدری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو:لوان مقمعاً من حدید وضع فی الارض فاجتمع له الثقلان مااقلوه من الارض(ابن کثیر) یعنی کچری داگرزدَاوسپنی په زمکه باندی کیخودلی شی اوبیاټول انسانان اوجنات دَدې دَراوچتولودَپاره راجمع شی نونه به ئی کړی اوچت دزمکی نه اوپه یوبل روایت کښ دی، لوضرب الجبل مبقمع من حدید لتفتت ثم عادکماکان، یعنی دَاوسپنی په دغه گرزباندی کچرته غراووهلی شی نوهغه به ټکړې ټکړې شی(نوچه کافرپری اووهلی شی نوهغه به هم دغه شان شی) اوبیابه دوباره هغه شان جوړکړې شی لکه څرنگه چه وو(ابن کثیر).

﴿كُلَّمَآ أَرَادُوٓاْ أَن يَخْرُجُواْ مِنْهَا﴾یعنی دَجهنم جوش چه کله داکافران اورلمبوسره رااوچت کړی نوپدی وخت کښ به دَدوئ امیدپیداشی چه دااوربه مونږ دَجهنم نه بهرته اوغورځوی اودوئ به اراده دَبهرته دَوتلواوکړی نوفرشتی به ئی دَاوسپنوپه گرزونواووهی اوواپس به ئی لاندې جهنم ته گذارکړی اودَاویا(۷۰)کالومسافت په اندازی سره به لاندې لاړشی نوارادې نه مراد هغه اراده ده چه په وخت دَاشراف کښ به وی اواعاده مرتبه ده په هغی اشراف باندی چه دوئ پکښ دَخروج اراده کړې وی، نولهذا دااعتراض نه واردیږی چه اعاده وئیلې کیږی سابقه حالت یامکان ته

واپس کیدل نود اتقاضا کوی دخروج دجهنم نه نودي ایت تعارض راغی دایت دسورة البقرة سره چه وماهم بخارجین من النار دي

(۲) اوحضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه اعاده به قعر دجهنم نه به کیږی او دا به دووئ یو طبعی کوشش وی چه دوئ به ئی کوی اگرچه دوئ به پدی باندی نه پوهه وی چه مونږ ددي نه بهرته نشوو تلی خودوئ به دقعرنه دروازی او کناری دجهنم ته به راشی نوهلته به ورته ملائک ولاړ وی او دا وسپنی په گروزنو باندی به ئی اووهی او قعرته به ئی واپس کړی

(۳) بعض فرمائی چه اعاده مرتبه دده په خروج حقیقة باندی خومراد دخروج نه یوی طبقی نه بلی طبقی دجهنم ته خروج مراددي. یعنی ځنی جهنمیان به دخپلی طبقی نه مراد بلی طبقی ته لاړشی نوفرشتی به وریسی لاړ شی اوپه گروزنو باندی به ئی اووهی او خپلی طبقی ته به ئی واپس کړی او دمن غم بدل اشتمال دي د منها دضمیرنه په اعادي دحرف جرسره او یامن اجلیه دي یعنی لاجل الغم او تنوین دپاره دتعظیم دي

إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي

بیشکه الله تعالیٰ به داخلوي هغه کسانو لره چه ایمان ئی راوړیدي او عملونه ئی کړیدي نیك جنتونو ته چه بهیږی به

مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا

لاندي دبنگلو دهغي نه ولي نهرونه خاښته کیدي به شي دوئ په هغي کښ په بنگړو دسرو زرو سره او ملغلري.

وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ۞ وَهُدُوا إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ وَهُدُوا

او جامي ددوئ به په هغي کښ ریښم وي او هدایت ورکړي شوي وو ددوئ پاکي وینا ته. او هدایت ورکړي شوي وو

إِلَىٰ صِرَاطِ الْحَمِيدِ ۞ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

لاري دستائیلي شوي ذات نه. بیشکه هغه کسان چه کفرئی کړیدي او منع کوی خلك دلاري دالله تعالیٰ نه او مسجد حرام نه.

الَّذِي جَعَلْنَاهُ لِلنَّاسِ سَوَاءً الْعَاكِفُ فِيهِ وَالْبَادِ وَمَنْ يُرِدْ فِيهِ

هغه چه گرځولی دي مونږ هغه دخلکو دپاره دبرابر دی. دیره مقیم په هغي کښ او مسافر. او چاچه اراده اوکړه په هغي کښ

| بِالْحَادٍ | بِظُلْمٍ | نُذِقْهُ | مِنْ | عَذَابٍ | أَلِيمٍ | ۲۵ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دكگ لیچ | په ظلم سره | نواوبه څکووموږ | هغه نه | دعذاب | دردناك | نه |

﴿إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ ءَامَنُوا﴾دابشارت اخروی دي مؤمنانوته اودمؤمنانودپاره د فیصلی بیان دي. ﴿يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ﴾داپه مقابله د ﴿وَلَهُم مَّقَامِعُ مِنْ حَدِيدٍ﴾كښ دي یعنی دكفارو دپاره به ذلت آمیزوهل وی اومؤمنانوته به فرشتی اساور یعنی بنګړی اوتاجونه اچوی اودابه دمؤمنانو داعزاز اواکرام دپاره وی لکه څرنګه چه پخوانو بادشاهانوبه په لاسونوکښ به دسرو زرو اودسپینوزرو بنګړی وو. اوپه سورة الکهف ایت نمبر(۳۱) کښ دابنګړی فقط دسرو زرو وئیلی شویدی اوپه سورة الدهرکښ فقط دسپنوزرونه وئیلی شویدی اوپدی سورة کښ اوپه سورة فاطرکښ ورسره ذکر دلؤلؤ یعنی ملغلرو هم دي. نوددي وجه نه مفسرقرطبی رحمه الله فرمائی چه دهرمؤمن په لاس کښ به دری(۳)قسمه بنګړی وی دملغلرو دسرو زرو اودسپینوزرو اوبعض فرمائی چه اصل بنګړی به دسرو اوسپینوزرو به وی اودملغلرو نقش نګاری به پری کړې شوې وی

﴿وَلُؤْلُؤًا﴾دامنصوب دې ځکه چه داعطف دې په محل د﴿أَسَاوِرَ﴾باندی. اوکه په جرسره شی لکه داقراءت دبعضو دي نوبیاعطف دې په اساور باندی لفظاً. ﴿وَهُدُوا إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ﴾ددي هدایت نه مرادیاپه اخرت کښ دي نوبیادقول طیب نه مراد هغه کلمات دی چه په سورة الزمرایت نمبر(۷۴)کښ دی چه دوئ به داوائی په جنت کښ الحمدلله الذی صدقنا وعده واورثنا الارض الخ او ﴿صِرَاطِ الْحَمِيدِ﴾نه مراد جنت ته داخلیدل دی اوکه هدایت نه مراد دنیوی شی نوقول طیب نه مراد کلمه توحیدده اوصاحب دروح المعانی ذکرکړیدی چه قول طیب نه مراد امربالمعروف اونهی عن المنکردي او﴿صِرَاطِ الْحَمِيدِ﴾نه مراددین اسلام دي.

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾تخویف اخروی ذکرکیږی هغه خلکوته چه دالله ﷻ ددین نه خلك منع کوی. ﴿وَيَصُدُّونَ عَن﴾واو یاحالیه دي اوداجمله حال واقع شویده دضمیرمرفوع د﴿كَفَرُوا﴾ نه

اويا داجمله خبرده دمبتدا محذوفي دپاره، يعني هم يصدون نوپدي دواړو اعتبارتوسره خبرذان محذوف دي چه معذبون دي په قريني د ﴿نُذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ﴾سره اوياواو زائددي او ﴿يَصُدُّونَ﴾خبردي د انّ يعني دالله ﷻ ددين نه خلك منع كول داكاردكافرانودي او ﴿يَصُدُّونَ﴾اګرچه مضارع ده خومرادتنه استمرار دي لكه وئيلي كيږي فلان يعطى،فلان يحسن الى الفقرآء نوددينه مراد صرف يوځلي اعطاء اوصرف يوځلي احسان كول ندي بلكه استمرار داعطاء اواستمرارداحسان دي

﴿وَٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ﴾دمسجدحرام نه مراد ياټول حرم دي په طريقې دذكر دجز مرادتنه كل. لكه په سورة التوبة كښې دي انما المشركون نجس فلايقربوا المسجدالحرام الخ قرينه ېرې داورستو جمله ده ﴿وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ بِظُلْمٍ﴾داقول دابن عباس رضي الله عنه دي اوددينه بعض اهل علمو استدلال كړيدي چه ارض حرم وقف عام دي اوملك خاص ندي نولهذا دهغې خرڅول اوپه كرايه وركول جائزندي داقول دامام ابوحنيفه رحمه الله نه هم مروي دي. نوپدې اعتبارسره ﴿سَوَآءً ٱلْعَٰكِفُ فِيهِ وَٱلْبَادِ﴾په اعتباردحق اوملكيت سره مراد دي يعني په ارض حرم كښې دمقيم حرم اودمسافر يوشانتي حق دي. اويادالمسجدالحرام نه مراد خالص مسجدحرام دي نوپدې اعتبارسره سواءن العاكف فيه والباد تسويه په اعتباردقبلي اودتعظيم سره ده يعني مسجدحرام قبله دهرچادپاره ده كه څوك په مكه كښې وي اويابهروي دمكې نه اودهغې تعظيم په هرچاباندې ضروري دي

**فائده** پدې باندې دټولو اهل علمو اتفاق دي چه دارض حرم اودمكې دزمكې هغه حصه چه دهغې سره مناسك دحج او افعال دحج وابسته دي هغه دچاپه ملك خاص كښې ندي بلكه وقف عام دي دهغې خرڅول په كرايه وركول جائزندي البته عامې زمكې دحرم اودمكې داپه ملك خاص كښې دي اوكه نه؟ نوپدې كښې په ابتداء كښې داهل علمو اختلاف وو بعضوبه نيزجائزاودبعضوپه نيزناجائزوو اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه هم پدې سلسلې كښې دوه(۲) قولونه رانقل كړي شويدي صاحب دهدايې په باب الكراهية كښې عدم جوازقول ته ترجيح وركړيده اوصاحب دمظهري هم پدې باندې زورور كړيدي.ليكن مفتى به قول دجواز والادي. اودامسئله اوس اتفاقي ګرځيدلي

ده چه دمناسك حج سره تعلق لرونكي زمكي نه علاوه باقي زمكي دمكي كښې ملك خاص راتلي شي نولهذا دهغي خرخول اوپه كرايه وركول جائزدي اوپدي ايت كښې ذكردهغي حصي دي چه هغي سره مناسك دحج تعلق لري

﴿سَوَآءً ٱلۡعَٰكِفُ فِيهِ وَٱلۡبَادِ﴾سواءً په معنى دمستويا سره دي مفعول ثانى دي دجعلناه دپاره (مدارك). ﴿وَمَن يُرِدۡ فِيهِ بِإِلۡحَادِۭ بِظُلۡمٖ﴾الحاد نه مراد دلته خروج اوعدول دقصد اواعتدال نه دي اودادواړه يعني ﴿بِإِلۡحَادِ﴾ او ﴿بِظُلۡمٖ﴾ ياحالين مترادفين دي ديرد دضميرنه اويا ﴿بِإِلۡحَادِ﴾ حال دي دضميرديرد نه او ﴿بِظُلۡمٖ﴾بدل دي د﴿بِإِلۡحَادِ﴾ نه په اعادي دحرف جارسره اوباء په دواړو مواضعوكښې يادملابست دپاره ده اوياپه ﴿بِإِلۡحَادِ﴾كښې ملابست دپاره اوپه بظلم كښې دسببيت ده اى ملحداً بسبب الظلم اومفعول د ﴿يُرِد﴾ دپاره محذوف دي دپاره دعموم چه شيناما دي اوظلم نه مرادهغه ټول اموردى چي دهغي ارتكاب يامطلقاًممنوع وي.لكه شرك.كفر.كنځل اوغيبت شواوياًدهغي ارتكاب صرف حدود دحرم كښې ممنوع وى لكه په ارادي دعمرى ياحج سره بغيرداحرام نه حرم ته داخليدل. ښكاركول يادحرم بوټي شوكول شو اوپه حديث كښې دى دابن عباس رضي الله عنه نه مروى دى چه نبى ﷺ اوفرمائيلوچه درى كسان الله جل جلاله ته ډيرمبغوض دى په هغى كښې يوكس ملحدفى الحرم دي اوزيادت دظلم پس دالحاد نه پدي كښې اشاره ده چه په حدود دحرم كښې هرقسم خروج عن الاعتدال ظلم دي په خلاف دعامومقاماتونه چه هلته كله كله خروج عن الاعتدال ظلم نوى بلكه حق وى بدليل قوله تعالى وجزآء سيئة سيئة مثلها (جمل).

**فائده**: په ارض حرم كښې صغيره ګناه كبيره جوړه شي اوپه عامومقاماتوكښې په ارادي دګناه باندى مؤاخذه نيشته دي خوپه ارض حرم كښې په ارادې باندى هم مؤاخذه كيږي

وَإِذۡ بَوَّأۡنَا لِإِبۡرَٰهِيمَ مَكَانَ ٱلۡبَيۡتِ أَن لَّا تُشۡرِكۡ بِي شَيۡـٔٗا وَطَهِّرۡ

اوهركله چه ځاى وركړو مونږ ابراهيم عليه السلام ته په ځاى دبيت الله كښې اوويل مونږ چه شريك مه جوړه ماسره هيڅ څيز اوپاك ساته

بَيۡتِيَ لِلطَّآئِفِينَ وَٱلۡقَآئِمِينَ وَٱلرُّكَّعِ ٱلسُّجُودِ ﴿٢٦﴾

كورځما دپاره دطواف كوونكو اوپه ولاړه سره عبادت كوونكو اوركوع سجده كوونكودپاره

﴿وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ﴾ دَدې ځائ نه ترايت نمبر(۳۸) پورې دويمه حصه شروع كيږي چه پدې كښې نفى دَشرك فعلي دې اوپدى ايت كښې دليل نقلي ذكركيږي دَابراهيم عليه السلام نه.هركله چه ماقبل ايت كښې زجروو په الحاد اوظلم باندې په مسجدحرام كښې نوپدې ايت كښې طعن دې په مشركينوباندې په حالت دَابراهيم عليه السلام سره چه باني دَمسجدحرام اودَخانه كعبې وو چه حضرت ابراهيم عليه السلام ته دَخانه كعبې جوړولوپه وخت كښې الله جل جلاله دطرف نه حكم شوې وو چه خماداكورته دَبتانو نه پاك كړه. نودَخانه كعبې تعمير مقصدبت پرستى اوشرك ختمول وو

﴿بَوَّأْنَا﴾ په معنى دَجعلناه مباءة سره دې يعني ټهكانه ګرځول اويا په معنى دَبينا اوعينا يعني وضاحت كول اوږده ځائى تعين كول سره دې نوپدى دواړو اعتباراتو سره لام په ﴿لِإِبْرَاهِيمَ﴾ كښې دَپاره دَتعدية دې.

خانه كعبه په زمانې دَطوفان دنوح عليه السلام كښې ورانه شوې وه ابراهيم عليه السلام چه كله خپل بچي اسماعيل عليه السلام اودهغه مورحضرت هاجره رضي الله عنها په خوشى صحراء كښې پريښودلو نوڅه وخت ورستو بيا الله جل جلاله ابراهيم عليه السلام ته دَخانه كعبې بنيادونه اوخودلو اودَتعميرحكم ئې ورته اوكړو

﴿أَن لَّا تُشْرِكْ﴾ ان مفسره دې په اعتباردَقول مقدره سره هركله چه لوئ مقصددَتعميردَخانه كعبې نه شرك ختمول وو اوتوحيدقائمه ول وو.نودَدې وجه نه ﴿أَن لَّا تُشْرِكْ﴾ په نورو مقاصدباندې مقدم كړې شو. اوهركله چه دمعمولي غوندې شرك دَلوئ هستئ نه هم قابل برداشت ندې نودَدې وجې نه بالذات نسبت اوخطاب ابراهيم عليه السلام ته اوشو. ﴿وَطَهِّرْ بَيْتِيَ﴾ مراد دَطهارت نه هرقسم طهارت دې كه حسى وى لكه ګندګئ نه پاكى شوه.يامعنوى وى لكه شرك.كفراوبدعات وغيره ګناهونه شولو. ﴿لِلطَّائِفِينَ﴾ غوره قول دادې چه دَدينه مرادطواف كوونكى دى اوهركله چه طواف مخ په زمكه په بلې حصې كښې نده اداكيږي سيوادَمسجدحرام نه نودَدې وجې نه تخصيص ئې هم اوكړې شو اوتقديم ئې هم اوشولو

﴿وَالْقَائِمِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ﴾ دَدينه مراد مونځ كوونكى دى اوچونكه قيام. ركوع اوسجده دري(۳) اهم اركان دَمانځه دى اودرې واړو دَپاره طهارت دَمكان شرط دى لكه چه

دامذهب داهل السنة والجماعت دي پـه خلاف دشيعګانونه چه هغوئ صرف دسجدې دلګولو ځائ دصفائى قائله دى، نوددې وجه نه ددې درې(٣) اركان ذكراوكړې شو اوبعض فرمائي چه د ﴿لِلطَّآئِفِينَ﴾نه مراد بهرنه راتلونكى كسان دى او ﴿وَٱلْقَآئِمِينَ﴾نه مراد مقيمين كسان دى اوكه څوك اشكال اوكړى چه امرپه تطهيردخانه كعبى سره تقاضه كوى اولاً وجود دخانه كعبى اوحالانكه خانه كعبه پدغه وخت كښ نوه جوړه كړې شوې نوڅرنګه به امرپه تطهيرسره صحيح شي؟ نويوجواب تنه امام رازى رحمه الله داكړيدې چه داحكم قبل بناء الكعبه وو اوممكنه ده چه په هغى ځائ كښ څه ګندګى وى نوددې وجه نه دهغى د پاكى حكم وركړې شو. ليكن داجواب خلاف ذوق سره سره دسياق كلام سره هم مناسب ندې نوصحيح جواب دادې چه داحكم ورستو دبناء نه دې،مقصد دادې چه دتعميراوبناء نه ورستوداخانه كعبه دشرك اوبدعاتواودغه شان دحسى ګندګئ نه پاكه اوساته.

وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ﴿٢٧﴾

اواعلان اوكړه په خلكوكښ دحج. راځي به دوئ تاته پياده اوسواره په هره تيزرفتاره سورلئ چه راځي به دهري لارې لرې نه

﴿وَأَذِّن فِي ٱلنَّاسِ بِٱلْحَجِّ﴾اعلان توحيدنه بعداعلان حج ذكركيږى چه پديكښ دعملى توحيداظهاردې اوغوره قول دادې چه داحكم داعلان حج ابراهيم عليه السلام ته شوې وو. دابن عباس رضي الله عنه نه مروى دې چه كله ابراهيم عليه السلام دتعميردكعبى نه فارغ شو، نوالله تعالىٰ ورته اوفرمائيلو چه اوس خلكوته دحج اعلان اوكړه نوحضرت ابراهيم عليه السلام عرض اوكړو چه اې ربه چه څما اواز به څرنګه خلكوته اورسيږى الله تعالىٰ ورته اوفرمائيلو چه ته اعلان اوكړه رسول څما كاردې نوپه بعضى رواياتوكښ اودريدلو اواعلان ئې اوكړو: يآيهاالناس ان ربكم قدبنى بيتا وكتب عليكم الحج الى البيت فحجوه. چې اې خلكوستاسو رب كور جوړكړيدې اودهغى حج ئې په تاسوباندى فرض كړيدې نوتاسودهغى حج اوكړئ

نودآواز الله تعالىٰ بطور معجزه دابراهيم عليه السلام په هغه دوركښ موجود ټولومخلوقاتو ته اورسولو اوكوم خلك چه موجود نووبلكه په ارحامودمينودو كښ وو ياپه اصلاب داباؤكښ وو هغوئ ته هم الله تعالىٰ اورسولو اوچه دكوموكسانو په تقديركښ الله تعالىٰ حج ليكلى وو نوهغوئ ټولو ددې اعلان جواب په تلبيى سره وركړويعنى لبيك ئې اوئيلو اوقسطلانى نقل كړيدى چه

چاچه څوخلې تلبيه ونيلې وي هومره خلې به ورته دحج سعادت نصيب کيږي.اللهم ارزقنا مرارا امين. ﴿يَأْتُوكَ رِجَالاً﴾ داجواب دامردې او﴿رِجَالاً﴾جمع دراجل ده يعنې پيدل اونسبت داتيان دخلکو ابراهيم عليه السلام ته کول تشريفا دې ځکه چه حضرت ابراهيم عليه السلام منادې وو اودده نداقبولول داداسې دي لکه دده طرف ته راتګ شو ﴿وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ﴾ ضامرياد تضمير الخيل نه دې چه په يو مخصوص طريقې سره اس وغيره نرې کول چه بيا په جهاد اوسفر کښې نه ستړې کيږي اودهغې مخصوصې طريقې ذکر په کتب داحاديثو اوفقه کښې په تفصيل سره موجود دې. اوياد ضمورنه دې په معنى دکمزورسره. يعنې هغه ځاروي چه دډيرو اوږد سفردوجې نه کمزوري شوي وي.

﴿يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ﴾ داجمله صفت واقع شويده د﴿كُلِّ ضَامِرٍ﴾ دپاره اوهرکله چه ﴿كُلِّ ضَامِرٍ﴾ معنى مؤنث دې اګرچه په اعتبار دلفظ سره مذکر دې نودې وجې نه صفت ورله هم مؤنث راوړې شو.

**فائده**. امام مالک رحمه الله په دې ايت سره استدلال کړيدې چه سورلۍ په استطاعت کښې نده يعنې يوکس سره حرم ته درسيدلو دپاره سورلۍ نيشته دې خوداسړې تندرست اوصحت مند دې نوامام مالک رحمه الله په مسلک باندې پدې سړي باندې حج فرض دې پيدل دې روان شي اوپه لاره دې محنت اومزدوري کوي اوحج دې اداکړي،ځکه چه په جواب د امريعنې د ﴿وَأَذِّن﴾ په جواب کښې چه څرنګه ذکردسورلۍ لرونکو خلکوشويدې همدغه شان دپيدل اوسورلۍ نه لرونکو خلکوهم شويدې،ليکن احناف تنه جواب کوي چه ذکرد ﴿رِجَالاً﴾ صرف دتشريف اوتعظيم دپاره دې اودې دپاره ندې چه راحله په استطاعت کښې نده داخله. اوياپه ﴿رِجَالاً﴾ سره مراد قريب خلک دي حرم ته چه هغوئ پياده راځي او ﴿كُلِّ ضَامِرٍ﴾ نه مراد بعيد اولرې خلک دي اواحنافو استدلال کړيدې په روايت ددارقطنى سره عن جابربن عبدالله رضي الله عنه قال لمانزلت هذه الاية ولله على الناس حج البيت من استطاع اليه سبيلاً قام رجلٌ فقال يارسول الله ﷺ ماالسبيل؟ قال الزاد والراحلة اودا روايت په متعددو طرقو سره منقول دې اودغه شان په روايت ددارقطنى کښې دحضرت علي رضي الله عنه نه مروي

دي ان النبیﷺ سئل عن السبیل فقال ﷺ ان تجد ظهر بعیر. اودغه شان تفسیر د استطاعت به زاد اوراحلی سره کول منقول دي دحضرت ابن عباسؓ. ابن عمر او ابن زبیرؓ نه، والتفصیل فی کتب الفقه،

**فائده نمبر۲**: پدی ایت کښې دحج دپاره صرف ددوه (۲) قسمه سفرونو ذکر اوشو او یو دریم قسم سفرچه هغه بحری سفردي دهغی ذکر اونشو .نوبعض اهل علمو پدی سره استدلال کړیدي چه دسمندر دوجی نه وجوب دحج ساقط کیږی. لیکن دا مسلك ضعیف دي ځکه چه عدم ذکر مستلزم ندي عدم وجوب لره بلکه دلته بحری سفر نه ذکرول ددي وجی نه دي چه مکی ته رسیدلو دپاره اوخاص طورحرم ته درسیدلو دپاره دغه دوه (۲) حالتونه دی چه یابه پیدل وی اویابه په سورلئ باندی وی اودریم قسم سفرځکه ندي متصور چه مکه په ساحل دسمندرباندی نده واقعه، والله اعلم،

**فائده نمبر۳**: پیدل حج غوره دي اوکه په څورلئ سره غوره دي نوپدیکښې هم اختلاف شته دي خو دا اختلاف محض په افضلیت اوعدم افضلیت کښې دي امام ابوحنیفه رحمه الله نه مروی دي چه کوم کس پیدل تلی شی نوهغه دپاره پیدل حج کول افضل دي ځکه چه پدی ایت کښې الله جل جلاله پیدل حج کوونکی مقدم کړیدی تشریفا اوتعظیما، نوددي وجی نه پیدل حج افضل دي. دغه شان استدلال ئی کړیدي په واقعی دام عقبه بنت عامرسره چه هغی نذرمنلی وو چه ځه به حج کوومه ماشیا، نوطاقت ئی اونه لرلو، نونبی ﷺ ورته اوفرمائیلو چه په سورلئ باندی حج ته لاړشه اوقربانی ورکړه. نوددي نه معلومه شوه چه پیدل حج کول اطاعت دي او ادنی مرتبه داطاعت استحباب دي نوددي وجی نه پیدل حج کول مستحب دي اودغه شان استدلال ئی کړیدي په اثر دابن عباسؓ چه فرمائی ماآسی علی شیئ الا انی وددت انی کنت حججت ماشیالان الله تعالی یقول یاتوك رجالاً (احکام القرآن) یعنی ابن عباسؓ فرمائی چه ماته په بل هیڅ څیزباندی دومره افسوس ندي راغلي سیوا ددینه چه ځماخواهش دي چه پیدل حج اوکړم (خو دضعف دوجی نه نشم کولی) ځکه چه الله جل جلاله پیدل حج کوونکی مقدم کړیدی فرمائیلی دی چه (یاتوك رجالاً) اودغه شان دحضرت حسن بن علیؓ په باره کښې مروی دی چه هغه پنځلس (۱۵) حجونه کړی وو اوټول پیدل وو. سورلئ به ئی هسی ځان سره روانه کړې وه اودغه شان مشهورقانون دي چه العطایا علی متن البلایا. چه څومره تکلیف زیات وی هومره ئی اجراوثواب زیات وی اوباقی نبی ﷺ چه آخری

حج اداکړي وو په سوزلئ باندی تلی وو نوظاهره ده چه به هغه وخت کښې نبیﷺ عمرمبارک دضعف والا وو .اونبیﷺ متبدن شوي هم وو.والله اعلم

لِّيَشْهَدُوْا مَنَافِعَ لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ عَلٰى مَا

دپاره ددي چه حاضرشي فائدو خپلوته اویادکړی نوم دالله ﷻ په ورځومعلوموکښې په ذبح دهغه څه باندی

رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ ۚ فَكُلُوْا مِنْهَا وَاَطْعِمُوا الْبَآئِسَ الْفَقِيْرَ ﴿۲۸﴾

چه ورکړیدی الله ﷻ دوئ ته دڅارو نه .نو خپله هم خوري دهغي نه اوخوروئ ئې به مصیبت وهلي محتاج باندی

ثُمَّ لْيَقْضُوْا تَفَثَهُمْ وَلْيُوْفُوْا نُذُوْرَهُمْ وَلْيَطَّوَّفُوْا بِالْبَيْتِ الْعَتِيْقِ ﴿۲۹﴾

بيادي لري کړي دوئ خيري خپل اوپوره دې کړي منختي خپلي اوطواف دې اوکړي دکورازاد قديم نه

﴿لِيَشْهَدُواْ مَنَٰفِعَ لَهُمْ﴾پديکښې ذکردبعضی منافعودحج دي اومنافع نه مرادعام دي دینی وی اوکه دنیوی وی.دینی لکه عفواومغفرت شو اودنیوی لکه دقربانئ غوخی اوتجارت وغیره شو.

﴿وَيَذْكُرُواْ ٱسْمَ ٱللَّهِ﴾داد خلورو مسائلو ذکردی(۱)نذرلله جائز(۲)تحریمات الله برحق(۳) نذرلغیرالله حرام(۴) تحریمات لغیرالله باطل نود ﴿وَيَذْكُرُواْ ٱسْمَ ٱللَّهِ﴾نه مراد دالله ﷻ په نوم باندی قربانی اودهغه په نوم باندی نذرورکول دی اوددینه تعبیرپه ﴿وَيَذْكُرُواْ ٱسْمَ ٱللَّهِ﴾ سره څکه اوشو چه پدیکښې اشاره راشی دینه چه دمسلمان ذبح دالله ﷻ دنوم نه.جدانوی بحر په خلاف دذبح دکفارو نه چه دهغوئ ذبح اونذرونیازدبتانوپه نوم باندی وی

﴿فِىٓ أَيَّامٍ مَّعْلُومَٰتٍ﴾غوره قول دادي چه ددینه مراد ایام دنحریعنی دقربانئ ورځی دی نو مراددی چه هغه په نیزدجمهورو دری(۳)ورځی دی لسم(۱۰)،یوولسم(۱۱)،اودولسم(۱۲)،دذی الحجی. اوامام شافعی رحمه الله په نیزڅلورورځی دی یوه(۱)،داخترورځ اودری(۳)وروستی ورځی

﴿عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّنۢ بَهِيمَةِ ٱلْأَنْعَٰمِ﴾ دررزقهم نه مخكښې لفظ د ذبح مقدردي اى على ذبح ما رزقهم او اضافت دبهيمة انعام ته اضافت بيانى دي اومراد دانعام نه ابل. بقر. غنم اومعزدي. چه تفصيل ئې په سورة الانعام کښې تيرشويدي

﴿فَكُلُوا مِنْهَا﴾ امردپاره داستحباب دي اوچونکه زمانه جاهليت کښې دقربانئ غوخې خپله خوړل به ناجائزګڼړلې شو نودَدي وجې نه حکم اوشوچه خپله ئې خورئ. ﴿وَأَطْعِمُوا ٱلْبَآئِسَ﴾ بائس سخت اوږى اومحتاج ته وئيلې کيږى ﴿ٱلْفَقِيرَ﴾ دابيان اوتفسيردَ ﴿ٱلْبَآئِسَ﴾ دي يعنى داوږى فقيروى اوداتفسير ځکه اوکړې شو چه کله کله يوسړى اوږى وى خودغربت دَوجى نه.نوى بلکه دبخل يادَبل څه وجې نه وى

﴿ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ﴾ پديکښې څنې احکامات دحج بيانيږى. يعنى دَوقوف عرفه.ذبح اودَرمى نه پس حلق وغيره اوکړئ نفث په اصل کښې خيرى ته وئيلې کيږى دلته تنه مراد هغه امورى چه محرم ئې دځان حلالولودپاره کوى لکه حلق وغيره شو اوقضاء په اصل کښې وئيلې کيږى پوره کولوته.اودقضاء نه ورستوفراغت لازمى دي، نودَدي وجى نه بعض مفسرينودقضاترجمه په فراغت سره کړيده يعنى تاسومناسك دَحج پوره کړئ نوبياځان فارغ کړئ دَمناسك دَحج نه په حلق سره اوبعض مفسرينودَقضاتفسيرپه ازالې سره کړيدي مجازا ځکه چه دَقضاء په مفهوم کښې قطع اوفصل معتبردي اودَقطع سره ازاله لازمه ده يعنى دَباقى افعالوپوره کولونه پس تاسو ازاله دَخيرى اوکړئ يعنى ويخته دَسرکټه کړئ زيرناف ويخته ترخونو ويخته وغيره لرى کړئ

﴿وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ﴾ يعنى .نذرلله برحق دي نوکه څه نذرمومنلى وى نوهغه هم پوره کړئ اوايفاء وئيلې کيږى پوره ... کولوته نوپديکښې اشاره ده چه نذرمنوونکى به په خپل دَنذرنه څه نه خورى، اوحضرت عکرمه رضی الله عنه نه مروى دي چه دلته دَنذرنه مراد اصطلاحى نذرندي بلکه واجب حج تنه مراددي يعنى هغه امورچه په حاجى باندى دَحج دَوجى نه ضرورى شوي وى

﴿وَلْيَطَّوَّفُوا﴾ددینه مراد طواف افاضه اوزیارت دي چه دارکان دحج نه دي اوپدی سره اتمام دَاحرام راځي. او مسجدحرام نه ﴿بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ﴾وئیل په ډیرو وجوهاتو سره دی عتیق په معنی دَازاد سره نوددې یومقصد دادې چه داکورازاد دې دَلاسونودجبابروا اوظالمانونه. یعنی دهغوئ دَتسلط نه محفوظ ساتلی شویده. اوداوجه تسمیه په روایت دَابن الزبیر﷛ کښې ده چه نقل کړیدې امام ترمذی وغیره اوپدی وجه تسمیه باندی دااشکال نه واردیږی چه خانه کعبه خوحجاج بن یوسف ورانه کړې وه نوځرنګه دَظالمانودلاس نه محفوظ شوله ځکه چه دَجبابرونه.مراد کافرجبابره دی لکه ابرهه وغیره شو(کذافی الروح) اودغه شان اشکال نه واردیږی په عمل دَحبشی سره چه حدیث کښې دی چه په اخیره زمانه کښې به یوحبشی خانه کعبه وارنه وی اوددې حبشی به سمندرته اوغورځوی، ځکه چه په تقدیر دَتسلیم دَصحت ددې حدیث هغه نه به تسلط کُلاً نوی حاصل بلکه هغه به یوځو خبنتی اوباسی نوسوربه یوکړې شی. اویادآزاد مطلب دادې چه دې آزاد دې دَملکیت دَخلکونه اویاازاد پدی معنی سره دې چه پدیکښې ګناه ګاران دَجهنم اودګناهونونه آزاده ولی شی اویا ﴿الْعَتِيقِ﴾په معنی دَقدیم سره دې.اوددې تائید په صحیح حدیث سره هم کیږی چه انه اول مسجد وضع فی الارض(متفق علیه) یعنی مخ په زمکه باندی دَتولونه.اول مسجدحرام جوړکړې شویدې، اویاعتیق په معنی دکریم اوجید سره دې.

ذٰلِكَ ۖ وَمَنْ يُعَظِّمْ حُرُمٰتِ اللّٰهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ۗ وَاُحِلَّتْ لَكُمُ

دایادلرئ،اوچاچه تعظیم اوکړو دحرمتونو دالله جل جلاله نوداډېره غوره ده،ده لره په نیز درب خپل. اوحلال کړې شویدی ستاسو دپاره

الْاَنْعَامُ اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ ۝

څاروی مګرهغه چه لوستلی کیدې شي په تاسوباندی پس ځان بچ کړئ دپلیتئ نه چه بت پرستی ده اوځان بچ کړئ ددروغو وینانه

حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ ۗ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَكَاَنَّمَا

کلک شئ په اخلاص کولو الله جل جلاله لره مه کیږئ شرک کوونکی دهغه سره،اوچاچه شرک اوکړو دالله جل جلاله سره نوګو یاچه دې

خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ اَوْ تَهْوِيْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ مَكَانٍ سَحِيْقٍ ۝

رااوغورزیدلو داسمان نه پس اونخنوی ده لره مارغان یا اوغورځوی ده لره سیلئ په مکان لري کښې

﴿ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ ﴾ دا ذكر دتحريمات الله دي. يعنې كوم څيزونه چه الله ﷻ حرام كړيدي هغه برحق دي اودهغې حرام ګڼړل عين تقوى ده. او ﴿ذَٰلِكَ﴾ خبر دې دمبتدا محذوفې دپاره يعنې الامر كذلك او ﴿حُرُمَٰتِ ٱللَّهِ﴾ نه مراد هغه ټول اموردي چه دهغې ارتكاب حلال نوى. په مناسك دحج كښې وى اويا په نورافعالوكښې وى. اګرچه دلته تنه مراد هغه اموردي چه په حرم كښې اوياحج په موقعه كښې جائزندي. لكه په حالت داحرام كښې ښكاركول دحرم بوټې شوكول وغيره شو.اودحرمات الله تعظيم دادې چه ددغې ممنوع امورو ارتكاب اونكړې شي ﴿وَأُحِلَّتْ لَكُمُ ٱلْأَنْعَٰمُ ﴾دارددې په تحريمات لغيرالله باندې چه تحريمات لغيرالله باطل دى.يعنې مشركانوچه كومې بحيرې. سائبې وغيره جوړې كړيدى اودهغې دحرمت قائل دى داټول باطل دى او ﴿ٱلْأَنْعَٰمُ ﴾ نه مخكښې لفظ داكل اوذبح مقدردې.څكه چه ذات دانعام په حلت اوحرمت سره نه متصف كيږى.اوانعام نه مراد اته(۸)قسمه څاروى دى چه دهغې ذكرپه سورة الانعام كښې دې

﴿إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ﴾دابيان دتحريمات الله دې. اوددې تفصيل په سورة المائده ايت نمبر(۳) حرمت عليكم الميتة الخ كښې تيرشويدې ﴿فَٱجْتَنِبُوا۟ ٱلرِّجْسَ ﴾رجس وئيلې كيږى پليتى اوګندګى ته. ﴿مِنَ ٱلْأَوْثَٰنِ ﴾كښې من بيانيه دې. اوپدى سره مقصود بيان درجس دې اوداوثان نه مخكښې لفظ دعبادت مقدردې نومقصد دايت داشو فاجتنبوا الرجس الذى هوعبادة الاوثان. يعنې خپل ځان د پليتئ نه بچ كړئ چه هغه عبادت دبتانودې. اوعبادت نه مراد عام دې كه قولى وى يابدنى وى اويامالى وى. نوددې وجې نه دغيرالله په نوم ذبح كول يانذرمنل داټول په عبادت داوثان كښې داخل دې

﴿وَٱجْتَنِبُوا۟ قَوْلَ ٱلزُّورِ﴾داعطف دې په ماقبل ﴿وَٱجْتَنِبُوا﴾باندې اعاده دفعل دتاكيد اومزيد اهتمام دپاره ده. او﴿ٱلزُّورِ﴾يادزور نه اويادازورار نه دې په معنى دانحراف سره اوهرشى چه مخالف اومنحرف وى دحق نه هغې ته زور وئيلې كيږى. كه هغه كفرى اوشركى عقيده وى ياتلبيه وى دغيرالله په نوم يادادروغو شهادت وى اويادوالدينو نافرمانى وى. اوحضرت شيخ رحمه الله

فرمائی چه ﴿قَوْلَ الزُّورِ﴾ نه مرادهغه الفاظ دی چه دغیرالله په نوم ذبح کولو وخت کښ به اغستلی کیدلو

﴿حُنَفَآءَ لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ﴾ دا دواړه یعنی ﴿حُنَفَآءَ﴾ او ﴿غَيْرَ مُشْرِكِينَ﴾ حالین مترادفین دی دضمیر دفاجتنبوا نه حنفاء جمع دحنیف ده اودالفظ داضدادونه دي اطلاق ئې په استقامت باندی هم کیږی اوپه میلان باندی هم کیږی چه ضد د استقامت دي. دلته تنه مراد استقامت دي په دین اوپه توحید د الله ﷻ باندی اوبعض فرمائی چه دالفظ حقیقة دي په میلان کښ اواستقامت ورسره لازمی دي نود حنیف معنی داده چه دټولو ادیانو نه بیزاره وی اومائل وی دین حق اوتوحید طرف ته او ﴿غَيْرَ مُشْرِكِينَ﴾ کښ اشاره ده دیته چه دین حنیف اختیاره ول صرف ددنیوی مفاداتو دوجی نه. نوی بلکه دشرك سره دنفرت په بنیاد باندی وی

﴿وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ﴾ دامثال بیانیږی دحالت دمشرك. اودایاتشبیه مرکبه ده اویامتعدد اوتفصیلی ده کچری تشبیه مرکبه شی نوحاصل ئې دادي چه حالت دمشرك مشابه ګرځولی شویدې دحالت دهغی چاسره چه داسمان نه رااوغورزیږی اومارغان ئې پوټی پوټی کړی اودبدن غوښې ئې په خپلوججوروکښ مختلف مقاماتوته یوسی. اویایوه طوفانی سیلئ پری راشی اوپه کندوکښ ئې اوغورځوی اووجه دشبه هلاکت اوعدم نجات دي یعنی څرنګه په دغه احوال مذکوره باندی متصف انسان دهلاکت نه نشی بچ کیدلی نودغه شان مشرك هم دهلاکت نه نشی بچ کیدلی اویاتشبیه متعدده اوتفصیلی ده خلاصه ئې داده چه ایمان مشابه کړې شویدې داسمان سره اوشرك مشابه کړې شویدې دکندې اوپستئ سره اومشرك مشابه کړې شویدې دهغه کس سره چه داسمان اوبلندئ نه لاندې زمکی اوپستئ ته ځان راغورځوی اودهغه دخواهشاتو تشبیه ورکړې شویده دښکاری مارغانوسره اوپده باندی دشیطانی تسلط تشبیه ورکړې شویده دطوفانی سیلئ سره نوحاصل ئې دادي چه کوم کس شرك اختیارکړی اوایمان پریدی نوهغه داسی دي لکه چه خپل ځان داوچت اوبلند ځائی نه لاندې پستئ ته رااوغورځوی اودده دبچ کیدلو هیڅ امکان نوی ځکه چه یوخوراغورځیدلی وی داوچت ځائ نه اوبله داچه یائی په هواکښ مارغان پوټی پوټی کړی چه دادمشرك خواهشات نفسانی دی چه دده عقل اوفکرداسی معطل کړی اوپه دنیاپسی ئې داسی لیونی کړی چه دهدایت والاسوچ اوفکرنه هم محرومه شی

اوپه شیطان تیزهوا گانی پری راشی اویولری صحراکښ ئی اوغورځوی اوداسی مضمون ته په یوحدیث کښ هم اشاره راغلیده. من جعل الهموم هما واحدا کفاه الله عن سائر الهموم الخ.

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه دامثال دغیرمخلص فی الدین دپاره دې. یعنی کوم کس چه په خپل دین کښ مخلص وی نو هغه دهرقسم افات دینیه نه محفوظ وی اوکوم کس چه په خپل دین اوایمان کښ مخلص نوی بلکه ددنیوی مفاداتو نیتونه ئی کړی وی نو په دنیاکښ به ئی مختلف قسم فتنی پوتی پوتی کړی. یعنی خپلومفاداتو دپاره به دې هرقسم کارکوی اوهرمذهب به اختیاره وی. کله به عیسائی شی. کله به یهودی اوکله به بل څه شئ؟ اویابه ددې تولو ادیانونه به بیزارشی نو ددهریت هوابه ئی دځان سره یوځی. نو په دواړو حالاتوکښ به دنیا اوآخرت کښ به ذلیل وی اوددې توجیهاتو نه معلومه شوه چه اوپه اوتهوی کښ مانعة الخلو دپاره دې اوقاضی بیضاوی رحمه الله فرمائی چه او دتوزیع اوتقسیم دپاره دې اوپدیکښ دوه مثالونه ددوه قسمه مشرکانو دپاره بیانیږی. ځکه چه مشرك په دوه قسم دې. یو(۱) هغه دې چه هغه ته دتوبی توفیق بالکل نه میلاویږی اودنجات امیدتنه قطع شوې وی. دویم(۲) قسم هغه دې چه دهغه دشرك نه دنجات اوتوبی ویستلو امیدوی نو اول مثال داول قسم مشرك دپاره دې اودویم مثال ددویم قسم مشرك دپاره دې.

ذٰلِكَ ۗ وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ ﴿٣٢﴾ لَكُمْ

دا یادکړئ اوچاچه تعظیم اوکړو دخاص نخوچه الله تعالی مقررکړیدی نو یقینا داتعظیم داخلاص دزړونو نه ستاسودپاره

فِيْهَا مَنَافِعُ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ مَحِلُّهَآ اِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ ﴿٣٣﴾ وَلِكُلِّ اُمَّةٍ

په هغې کښ فائدې دی ترنیټې مقررې پورې بیاانتهاددې فائدوپه طواف د کورازاد یاقدیم سره ده. اودپاره دهرامت

جَعَلْنَا مَنْسَكًا لِّيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ ۗ

مقررکړیده مونږ طریقه دقربانی دې دپاره چه یادکړی نوم دالله تعالی په هغه باندې چه ورکړیدې الله تعالی دوئ ته دچارپایانو دځناورونه

فَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَلَهٗٓ اَسْلِمُوْا ۗ وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ ﴿٣٤﴾

ځکه چه حقدار دبندگی ستاسویوذات دې نو خاص دهغه حکم منئ اوزیری ورکړه عاجزی کوونکوته

﴿ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ﴾ ذلك مبتدا دي اوخبرئې محذوف دي اى ذلك امر الله اوياخبردي دمبتدا محذوفي دپاره اى الامر ذلك اويامفعول به دي دفعل محذوف دپاره چه اتبعوا دي(قرطبي).

﴿شَعَٰٓئِرَ﴾ جمع دشعيرة ده وئيلي كيږي ظاهري علامى ته. نودشعائرالله نه مراد دالله ﷻ ددين علامات دي. لكه كعبه. صفا مروه. منى. عرفات. مساجد. مدارس دينيه. عبادات ظاهريه اوسنت ظاهريه وغيره شو. اودلته نه مرادهغه څاروي دي چه حرم ته دذبح دپاره بوتللى كيږي. اوتعظيم دهغودادي چه دهغودحقوقو ادائيگى اوكړې شى. دهغوادب اوكړې شي اوهغوته تكليف رسولونه. اوبى ادبئ نه ځان اوساتلي شي.

﴿فَإِنَّهَا مِن تَقْوَى ٱلْقُلُوبِ﴾ها ضميرراجع دي تعظيم ته. اومن ابتدائيه دي نومقصد د عبارت داشو چه فانّ تعظيمها ناشئٌ من تقوى القلوب(قرطبي) اوبعض فرمائي چه من اجليه دي اى فان تعظيمها لاجل تقوى القلوب(روح)اواضافت دتقوى قلوب ته كول ددې وجى نه دي چه حقيقة تقوى په زړه كښې وى اوتقوى دپاره محل حقيقة زړه دي اوددې وجى نه حديث كښې راغليدي چه نبى پاك ﷺ زړه ته اشاره اوكړه اواوفرمائيلو چه التقوى ههنا (تقوى دلته ده).

﴿لَكُمْ فِيهَا مَنَٰفِعُ﴾فيها ضميرراجع دي شعائرته، نوكچرته دشعائرنه مراد عام مواقف دحج شي نودمنافع نه مراد ديني منافع دي، لكه وقوف په منى، عرفه اومزدلفه كښې او﴿أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ نه مراد اخري وخت دوقوف دي او﴿ثُمَّ مَحِلُّهَآ﴾ كښې ثم دتراخي زمان دپاره ده اومحل نه مراد احلال دمحرم دي او ﴿ٱلْبَيْتِ ٱلْعَتِيقِ﴾نه مراد خالص مسجدحرام اوخانه كعبه ده، چه محرم ددينه طواف وداع اوكړى نوبياحلال شي، نومطلب داشو چه ددې ټولواعمالو منتهى په طواف وداع سره راځي. اوكچرته دشعائرنه مراد بدنه اوهدايا شي نوبيادمنافع نه مراد دنيوى اوديني دواړه مراد كيديشي نوكچرته دنيوى منافع مرادشي لكه په بدنى باندې ركوب وغيره شو نواجلِ مسمّٰى نه مراد يوم النحرده اوثمّ دتراخي زماني دپاره دي او﴿مَحِلُّهَا﴾نه مراد دذبح ځائ دي او ﴿ٱلْبَيْتِ ٱلْعَتِيقِ﴾ نه مراد ټول حرم دي نوپه ټول حرم كښې قرباني كول جائزده البته په منى كښې افضل ده. اوكه

دمنافع نه مراد دینی منافع شی نوبیانم دتراخی رتبی دپاره دي. یعنی په دیکښې ستاسو دپاره مختلف دینی منافع دی خو په تولو کښې عظیمه نفع هغه دذبح ده په حرم کښې

**فائده** دبدنی اوهدیی دحرم نه فائده اغستل جائزدی اوکه ندی؟ نوپدیکښې د آئمه مجتهدینو اختلاف دي امام مالک رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله مطلقا دجواز قائله دي. اوامام ابوحنیفه رحمه الله امام شافعی رحمه الله اوجمهورعلماء دعدم جواز قائله دی البته دشدیدضرورت په بنیاد په هغی باندی رکوب کول بیاجائزدي اودروایت دبخاری اومسلم نه په بدنی باندی دسورلئ کولو کوم اجازت چه معلومیږی لکه چه دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه مروی دي. فرمائی انّ رسول الله صلی الله علیه وسلم رای رجلا یسوق بدنةً فقال ارکبها.فقال انهابدنة فقال ارکبها.قال انهابدنة الخ نوهغه محمول دي په ضرورت شدیده باندی. اودلیل پدی حدیث دجابر رضی الله عنه دي چه امام مسلم وغیره نقل کړیدي فرمائی سمعت النبی صلی الله علیه وسلم یقول ارکبها بالمعروف اذا الجئت الیها حتی تجدظهراً(مسلم باب جواز رکوب البدنة).

﴿وَلِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا﴾داهم دالله جل جلاله په نوم باندی دنذرونیازبیان دي. خلاصه ئی داده چه دالله جل جلاله په نوم باندی نذرو نیازورکول. ذبح اوقربانی کول دادستورپه هرامت کښې وو.یوامت هم ددي نه مستثنی نوو (کشاف.روح).﴿لِيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ﴾دافائده بیانیږی دالله جل جلاله په نوم باندی دنذرورکولو اودهغه په نوم باندی دذبح کولو چه دالله جل جلاله په نوم باندی نذرورکولو اودهغه په نوم باندی ذبح کولوفائده داده چه په وخت دذبحی کښې دالله جل جلاله نوم ذکر اودهغه ادا ددي انسانانوعادت جوړشی

﴿فَإِلَٰهُكُمْ﴾فاء تعلیلیه ده داعلت ذکرکیږی په وخت دذبح کښې دالله جل جلاله دنوم اغستلودپاره، چه ذبح اوقربانی اودغه شان نورنذرونه دالله جل جلاله په نوم باندی څکه ورکوئی چه ستاسومعبود اورازق هغه دي﴿وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِينَ﴾دابشارت دي او﴿الْمُخْبِتِينَ﴾نه مراد تواضع اوعاجزی کوونکی دی. اودعمروبن اوس نه منقول دی چه مخبت هغه چاته وئیلي کیږی چه ظلم نه کوی اوکچری په ده ظلم اوشی نوانتقام نه اخلی. اوصاحب دروح المعانی فرمائی چه ولایخفی حسن موقع ذلك هنامن حیث ان نزول الخبت مناسب للحاج، یعنی لفظ دخبت پدی مقام کښې ذکرکول

ډیر مناسب دی دحالت دحاجیانو سره څکه چه دحاجیانو احوال. افعال او صفات په حالت دحج کښې دعاجزئ دی لکه حالت داحرام کښې ګنډلې شوې لباس پرېښودل. سرتور سر ګرځېدل معمولي غونډي پېزار پخپو کول، عرفات کښې قیام اوزاری کول او تکلیفونه او مشقتونه برداشت کول وغیره دا ټول دعاجزئ والا احوال دی نو ددې مناسبت په بنیاد لفظ دمخبتین دلته ذکر کړې شو

| الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَالصَّابِرِينَ عَلَىٰ مَا أَصَابَهُمْ |
|---|
| هغه خلك چه كله ياد كړې شي الله ﷻ او ويريږي زړونه ددوئ او صبر كوونكي وي په هغه تكليف چه رسيدلي وی دوئ ته. |
| وَالْمُقِيمِي الصَّلَاةِ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣٥﴾ وَالْبُدْنَ جَعَلْنَاهَا |
| او پابندي كوونكي دمونځ دی او دهغه مال نه چه مونږ دوئ ته وركړيدي خرچ كوي. او اوښان غټ ځاروي ګرځولي دي مونږ دا |
| لَكُم مِّن شَعَائِرِ اللَّهِ لَكُمْ فِيهَا خَيْرٌ ۖ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا |
| ستاسو دپاره دخاص نخودَ الله تعالى نه. ستاسو دپاره په هغې (ځارو) كښې فائدې دی. پس يادوئ نوم دالله ﷻ په هغې باندې |
| صَوَافَّ ۖ فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ |
| چه ولاړ وي. پس هر كله چه راا وغورځيږي اړخونه دهغوئ (ځارو)، نو پخپله خورئ دهغې نه او خوروئ صبر كوونكي ګذاره كوونكي |
| وَالْمُعْتَرَّ ۚ كَذَٰلِكَ سَخَّرْنَاهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٣٦﴾ |
| اوبى قراره ته. همدارنګه تابع كړيدي مونږ داځاروي ستاسو دپاره. دې دپاره چه تاسو شكر او كړئ |

﴿الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ﴾ دا بعض علامات دمخبتین ذکر کیږی او په ﴿وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ﴾ کښې اشاره ده کمال استحضار او کمال قوت ایمانی ددوئ ته ﴿وَالصَّابِرِينَ عَلَىٰ مَا أَصَابَهُمْ﴾ دا اثر دکمال یقین دې. ﴿وَالْمُقِيمِي الصَّلَاةِ﴾ کمال عمل ته اشاره ده، او مراد ددېنه مداومت او همیشوالی دې په مونځ باندې په صحیح او کاملې طریقې سره.

**فائده نمبر۱**: هر کله چه حالت او کیفیت دزړه بدلیږی رابدلیږی. کله خوف غالب وی او کله طمع او امید کله یره وی او کله نوی کما ورد فی الحدیث یاحنظلة ساعةً هذه وساعة هذه. نو ددې وجې نه دمؤمنانو دزړه کیفیت او صفت په فعل یعنی وجلت سره ذکر شو څکه چه فعل په تجدد باندې

دلالت کوی اودغه شان انفاق هم کله وی اوکله نوی هغه هم په فعل سره ذکرشو. اوصبرپه مصائبو اواقامت صلوة چونکه هروخت کښ مطلوب دي نوددي وجی نه دا دواړه په اسم سره ذکرکړي شو چه دي په دوام اواستمرارباندی دلالت کوی.

**فائده نمبر۲**: علامه قرطبی‌رحمه‌الله دَدي ایت په ضمن کښ لیکلی دی چه الله‌جل‌جلاله دَمؤمنانوحالت دا ذکرکړیدي چه کله دَالله‌جل‌جلاله ذکراوشی نودَدوئ په زړونوکښ دَالله‌جل‌جلاله دَعذاب نه خوف اویره پیداشی، لکه پدی ایت کښ اوپه سورة الانفال ایت نمبر(۲)کښ اوپه سورة المائده ایت نمبر(۳۸) کښ هم دغه شان ذکردی، اوهغه پیران چه چغی اوباسی اوټوپونه وهی اودیته وجدوائی دَدوئ داعمل مخالف دي دَشریعت نه اومخالف دي دَعمل دَصحابه کرامونه اوبدعت دي.دَدوئ حالت اوکیفیت په معرفت دَالله‌جل‌جلاله کښ نه کیفیت دَنبی‌ﷺ ته رسیدلی دي اونه حالت دَصحابه کرامو‌رضی‌الله‌عنهم ته دَهغوئ حالت ډیربلنداواعلی وو اودهغی باوجود دَنبی‌ﷺ اودَصحابونه داطریقه اوعمل ندي منقول.

﴿وَٱلۡبُدۡنَ جَعَلۡنَٰهَا﴾داهم دَنذرلله بیان دي بُدن جمع ده بدنة ده اودا ماخوذدي دَبدانة نه.لغت کښ وئیلي کیږی لوئی جسم والاشی ته اوپه عرف کښ دَدي اطلاق په هغه څاروی باندی کیږی چه په حرم کښ ذبح کیږی، امام شافعی‌رحمه‌الله په نیزاطلاق دَدي خاص دي په اوښ اواوښی پوری اوامام ابوحنیفه‌رحمه‌الله اطلاق دَدي عام دي ټولوغټوڅارووته، که هغه ابل وی یابقروی.

﴿مِّن شَعَٰٓئِرِ ٱللَّهِ﴾دادَبدنی احکامات بیانیږی دائی اول حکم دي چه بدنه دَشعائرالله نه،ده نولهذا تعظیم ئی ضروری دي،﴿لَكُمۡ فِيهَا خَيۡرٞ﴾یعنی پدیکښ ستاسودَپاره دنیوی اواخروی منفعتونه اوفائدي دی،دنیاکښ دَهغی دَغوښو،څرمنی اوپیونه فائده اغستل دی اوپه آخرت کښ اجراوثواب دي

﴿فَٱذۡكُرُواْ ٱسۡمَ ٱللَّهِ عَلَيۡهَا﴾دابل حکم دي چه دَذبحی په وخت کښ په دي باندی بسم الله یاالله اکبر وائی اومفسرین فرمائی چه مستحبه ده چه دَقربانئ په څاروی باندی داکلمات اوئیلي شی. الله اکبر الله اکبرلااله الاالله والله اکبر، اللهم منك والیك(بحر، روح) ﴿صَوَآفَّ﴾حال دي دَها ضمیرنه، اوصواف اګرچه اسم فاعل دي لیکن دلته په معنی دَاسم مفعول مصفوف سره دي. یعنی په

قطار کښې په دسې حالت سره اودره ولې شوې وی چه یوه خپه ئې تړلې شوی وی. او په اوښانو کښې نحر کول په ولاړه باندې مسنون عمل دې

﴿فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا﴾ وجبت په معنٰی دسقطت سره دې. او داکنایه ده دمرګ نه. یعنی چه کله ددې نه روح اوځی نوبیائی خپله هم خورئی اوفقراء ومساکینو ته هم ورکوئ. ﴿فَكُلُوا مِنْهَا﴾ امردندب او استحباب دپاره دې اوپدیکښې رددې په مشرکینو باندې چه دوئ به دهدې دځاروی نه خوراك كول جائزنه کنړلو ﴿وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ﴾ دلته هم امردندب او استحباب دپاره دې قانع هغه فقیرته وئیلې کیږی چه قناعت کوونکی وی ځان دسوال کولو نه. بچ کوی اومعتر هغه ته وئیلې کیږی چه بې قراره وی. فریاد کوونکی اوځان پیش پیش کوونکی وی

﴿كَذَٰلِكَ سَخَّرْنَاهَا﴾ کاف یادپاره دکمال بیان دې. یعنی داځاروی باوجود ددې چه عظیم الجثه اوطاقتورمخلوق دې خوبیاهم مونږ ستاسوتابع کړیدی. یوکمزورانسان لګیاشی اوداطاقتور ځاروی رااوغورځوی اوذبحه ئې کړی. اویاکاف دپاره دتشبیه دې مشبه به امردې په نحرسره اومشبه تسخیردې. یعنی لکه څرنګه چه مونږ تاسوته ددې په نحرسره امرکړیدې نوهمدغه شان هغوئ موستاسوپه کنټرول کښې راویستلی دې، (مدارك) اوصاحب دجلالین فرمائی چه کاف اسمی دې په معنٰی دمثل سره اوذلك سره اشاره هغه تسخیرته ده چه په صواف کښې مذکوردې او ﴿سَخَّرْنَاهَا﴾ کښې تسخیردپاره دنحر اورکوب مراددې

لَنْ يَنَالَ اللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَاؤُهَا وَلَٰكِنْ يَنَالُهُ التَّقْوَىٰ مِنْكُمْ ۚ كَذَٰلِكَ

هرګزنه رسی الله ﷻ ته غوښې ددوئ اونه وینی ددوئ اولیکن رسي هغه ته اخلاص ستاسونه همدارنګه

سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا

تابع کرځولیدی الله ﷻ داځاروي ستاسودپاره.دې دپاره چه تکبیراوایئ په هغې باندې په هغه طریقې سره

هَدَاكُمْ ۗ وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِينَ ﴿٣٧﴾ إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ

چه خودلي ده الله ﷻ ستاسونه اوزیری ورکړه احسان کوونکوته.بیشکه الله ﷻ دفع کوی(جنګ.ضرر) دهغه کسانونه

| كَفُوْرٍ ۞ | خَوَّانٍ | كُلَّ | يُحِبُّ | لَا | اللّٰهَ | اِنَّ | اٰمَنُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ناسکره. | گر | دهرخینت | کوی | نه | محبت | بیشکه الله | چه ایمان ئی راوړیدي. |

﴿لَن يَنَالَ ٱللَّهَ لُحُومُهَا﴾ په دیکښې دَقربانئ اصل فلسفه اوشرط دَقبولیت ذکر کیږي. خلاصه ئی داده چه دَقربانئ اصل مقصددَالله ﷻ رضا .اودَالله ﷻ دَعظمت اولوئی اقرار اودخپل عبودیت اودَعجزاظهاردي اوداصرف په وینی تویولوسره اوغوښی سره نه حاصلیږي. ترڅوچه په زړونوکښې اخلاص اوتقوی نوی راغلی. ﴿يَنَالَ ٱللَّهَ﴾ کنایه ده دَقبولیت عندالله نه. اورضادالله ﷻ نه، (ابوسعود) اودَدینه معلومه شوه چه کومه قربانی دَصحیح نیت نه خالی وی هغه مقبول عندالله نده اونه دیته شرعاً قربانی وئیلي کیږي بلکه فقهاء فرمائی کچرې داسی کس چه دهغه دقربانئ نه مقصدصحیح نیت نوو بلکه محض دَغوښی خوراك یاشهرت اوریامقصود وه نودي که دَبل چاسره شریك شی نودَده دَغلط نیت دَ وجی نه دَوجی نه دَټولوقربانی فاسده شوه ﴿وَبَشِّرِ ٱلْمُحْسِنِينَ﴾ دابشارت دي توحیدمنونکوته محسنین نه مراد موحدین دی یعنی هغه خلك چه خپل ځان دَهرقسم شرك نه بچ ساتی، خواه که شرك جلي وی یاخفی، اعتقادی وی یافعلی

﴿إِنَّ ٱللَّهَ يُدَٰفِعُ عَنِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ﴾ دَدي ځائ نه دریم باب شروع کیږي تفصیل ئی مخکښې تیرشویدي. اوهرکله چه ماقبل ایتونوکښې نفی دَشرك فی التصرف اونفی دَشرك فعلی تفصیلاً اوشوه نواوس جهاد ته ترغیب اوتمهیدذکرکیږي، اوتسلی ذکرکیږي مؤمنانوته چه ستاسوحفاظت دَدښمنانونه. الله ﷻ به کوی، اوداتسلی الله ﷻ دَعام الحدیبیه په کال چه کله کفارو مسلمانان دَعمری اداکولونه.منع کړل. نازله کړه، اودَدینه ورستو بیادکفارو په طاقت کښې مسلسل کمی راتله اوشکستونه به ئی خوړلوحتّی چه (۸هـ) کښې لکه فتح شوه.

دَ ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ﴾ داعلت دیې دَمدافعت دَپاره. او ﴿خَوَّانٍ﴾ او ﴿كَفُورٍ﴾ دواړه دَمبالغی صیغی دی. مرادتنه دلته هغه خلك دی چه دَذبحی اوقربانئ په وخت کښې دَبتانونوم اخلی اوهغوئ ته تقرب حاصله وی.(زاد المسیر،خازن) اوهرکله چه دي انسان دَالله ﷻ په ورکړې

شوی مال کښې د الله ﷻ سره بل خوك شريك اوګرځووو اود هغه تقرب ورسره حاصلولو کوشش اوکړو نوخکه دې ډیرخیانت ګر او ډیرناشکره اوګرځیدلو

| أُذِنَ | لِلَّذِينَ | يُقٰتَلُونَ | بِأَنَّهُمْ | ظُلِمُوا |
|---|---|---|---|---|

اجازت ورکړې شویدې دجنګ هغه کسانوته چه هغوئ سره جنګ کیدلی شي په سبب ددې چه دوئ باندې ظلم کړې شویدې

وَإِنَّ اللّٰهَ عَلٰى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ﴿۳۹﴾ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ

اوبیشکه الله ﷻ په مدد کولو ددوئ باندې یقیناچه قادردې داهغه کسان دې چه ویستلی شویدي دخپلوکورونه بغیردځه جرمه

إِلَّا أَنْ يَقُولُوا رَبُّنَا اللّٰهُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ

ماسیواددینه چه دوئ وائی چه رب زمونږ الله ﷻ دې.اوکه نوې اړول دالله ﷻ خلکولره بعضولره په بعضوسره

لَهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوٰتٌ وَمَسٰجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا

نوخامخانړېدولې شوې به وې ګرجې اوعبادت خانې دنصارئ اوعبادت ګاهونه دیهودیانواوجماتونه چه یادولې شي په هغې کښې

اسْمُ اللّٰهِ كَثِيرًا ۗ وَلَيَنْصُرَنَّ اللّٰهُ مَنْ يَنْصُرُهُ ۗ إِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿۴۰﴾

نوم دالله ﷻ ډیر.اوخامخامدد کوي الله تعالی دهغه چاسره چه مدد کوي ددین دهغه سره.بیشکه الله ﷻ قوت والادې زوراوردې

﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقٰتَلُونَ﴾داترغیب اوتمهید نه ورستو اوس اصل مسئله جهادبیانیږی چه دشرك اوکفرظالمانه نظام خاتمې دپاره اودتوحیدعادلانه نظام قائمولودپاره خپل جان. مال ورکړئ. اوهرکله چه دمکی دور دتربیت جهاد.اصلاح نفس اودریاضت دوروو. نوپه هغې کښې دکفارو په اذیتونو اوتکلیفونوباندې دصبر کولو اودصفح اواعراض حکم وو.صحابه کرام ﷡ به حضورﷺ ته په داسې حالت کښې کله کله راغلوچه کفاروبه وهلی وو.دچابه سرزخمي وو اوپه چابه نورظلم کړې شوې وو.اودوئ به دحضورﷺ نه دقتال اجازت غوختلو خوحضورﷺ به ورته اوفرمائیلو چه ځمارب ماته دقتال اجازت ندې راکړې، حتیٰ چه څه دپاسه اویا (۷۰)ایاتونه دصفحې اواعراض اوصبراوتحمل په باره کښې نازل شو.اوکله چه حضورﷺ مدینې ته هجرت اوکړو نولږ وخت ورستودا ایت نازل شو.نوغوره قول دادې چه داایت مدنی دې.اوداول ایت دې په باره دقتال کښې. اوپدیکښې اذن دقتال ورکړې شویدې چه دلالت په اباحت کوی.نولهذا ددې

قول تعارض دهغی روایت سره نیشته دي چه په هغی کښ دي چه دټولونه اول ایت په باره دجهادکښ وقاتلوا فی سبیل الله الخ نازل شویدې.لکه ابن جریر رحمه الله دابوالعالیه رحمه الله نه نقل کړیدی. انّ اول ایت نزلت فیه وقاتلوا فی سبیل الله الخ ځکه چه دهغی نه مراد فرضیت دقتال دي. نودي ایت ته اولیت حقیقی حاصل دي چه داباحت په اعتبارسره دي اووقاتلوا فی سبیل الله ته اولیت په اعتباردفرضیت سره دي، اودحضرت شیخ رحمه الله دکلام نه معلومیږی چه دلته ددفاعی جهادحکم دي، اوپه وقاتلوافی سبیل الله کښ اقدامی جهادحکم دي اودعام مفسرینوپه نیزدلته ماذون فیه محذوف دي چه لفظ قتال دي. یعنی اذن فی القتال للذین یقتلون بانهم ظلموا اوحضرت شیخ رحمه الله فرمائی چه "القتال" مفعول به دي د ﴿أُذِنَ﴾دپاره یعنی اذن للذین یقتلون القتال. یعنی کوم خلك چه دستاسو سره قتال کوی نودهغوئ سره تاسوته دقتال اجازت درکړې شویدې. نودادفاعی جهادشو.

﴿بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا﴾دا اسبب دمشروعیت دجهاددې. چه جهاد اوقتال درحقیقت دظلم خلاف دي. اوچونکه شرکی اوکفری نظام هم په ظلم باندی مبنی دي اواسلامی نظام په عدل اوانصاف باندی مبنی دې،نوددي وجی نه دکفردنظام خلاف جهادضروری شویدې، اوددات دکافرخلاف جهاندې راغلي دذات دپاره صرف دعوت دې.

﴿وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ﴾دا وعده دنصرت ده دجانبه دالله جل جلاله نه، ﴿الَّذِينَ أُخْرِجُوا﴾دا په موضع دجرکښ صفت واقع شویدې دماقبل﴿لِلَّذِينَ﴾دپاره، اومقصود پدی سره بیان دظلم دکفارودې.

﴿بِغَيْرِ حَقٍّ﴾دامتعلق دې په اخراج پوری یعنی ددوئ داخراج دپاره څه موجب اوسبب هم نوو. بغیردموجب اوسبب نه ویستلی شویدې.

﴿إِلَّا أَن يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ﴾بعض علماء فرمائی چه استثناء منقطعه ده الاً په معنی دلکن سره دې.لیکن غوره خبره داده چه دااستثناء متصله ده، اوداکلام دقبیلی دتاکیدالمدح بمایشبه الذم نه دې، مقصد دادې چه ددوئ داخراج دپاره هیڅ قسم سبب نوو سیوا ددینه چه دوئ دتوحیداقرار کړې وو ،اواقرار دتوحیدجرم ندې چه سبب داخراج دپاره اوګرځی بلکه داخوسبب دتمکین اوتوقیردپاره دې.

﴿وَلَوْلَا دَفْعُ ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ﴾داحکمت بیانیږی دمشروعیت دجهاد . چه دجهاد په ذریعی سره دمراکز دینیه حفاظت کیږی، ځومره دینی مراکزاوعبادت خانی دی. داټول دجهادپه برکت سره محفوظ دی، کچرته جهادنوی نودَدې مراکزوحفاظت به هم نوی،اودغه شان په سورة بقره ایت نمبر(۲۵۱) کښ هم ذکردی. اومراد په﴿دَفْعُ ٱللَّهِ﴾سره تسلط ورکول دی بعضولره په بعضو باندی.اودَدی مختلف صورتونه دی کله الله ﷻ مؤمنانولره تسلط ورکړی په کافرانوباندی په ذریعی دَجهاد سره اودامعنی په ټولوکښ مقدمه ده. اودغه شان صورت دَدفع دَالله ﷻ داهم دې چه دحاکمانو عادلانو په ذریعی سره دَظالمانو ظلم منع کوی اودغه شان دګواهانو دګواهئ ذریعی سره دَیوحقدارته خپل حق میلاویږی اوغیرحقداردَهغه دَحق خوړلونه منع کوی. اودغه شان دفع الله صورت داهم دې چه الله ﷻ دَصالحینوپه دعاګانوسره دَفاسقانونه عذاب دفع کوی. اودغه شان دفع دَبدعاتواودَفسق اوفجورده په تبلیغ دَاهل حق سره کوی اوداټول معانی ابن جریرطبری رحمه الله اوآلوسی رحمه الله په خپلوتفاسیروکښ لیکلی دی

﴿لَّهُدِّمَتْ صَوَٰمِعُ﴾هدم ظاهری نړیدلودَعمارت ته وئیلې کیږی، دلته په معنی دَ عطلت سره دې، اوتعطیل چه څرنګه ظاهری فسادته شامل دې نودغه شان معنوی فسادته هم شامل دې. استعمال دَهدم دَپاره دَمبالغی دې په فسادکښ اوصوامع جمع دَصومعة ده په اصل کښ وئیلې کیږی هغی بناء اوتعمیرته چه په اوچت ځائ باندی جوړکړې شوې وی، اوبیائی تخصیص شویدې په مخصوص،عبادت خانی دَراهبانوپوری(خانقاه دَراهبانو)اوبیع جمع دَبیعة ده وئیلې کیږی عام عبادت خانودَنصاریٰ ؤته(کنیسا)اوصلوٰة جمع دَصلاة ده دَیهودیانوعبادت خانی تنه مرادی.

﴿يُذْكَرُ فِيهَا ٱسْمُ ٱللَّهِ﴾ضمیردَفیهایاراجع دې مساجدوته اوداجمله صفت واقع شویده دَمساجددَپاره اویاضمیرراجع دې په تاویل دکل واحدسره مذکورټول عبادت خانوته، خوپدی اعتباردَمساجدنه علاوه باقی عبادت خانوکښ دَالله ﷻ ذکرقبل النسخ. دَهغوئ په خپلوخپلو ادواروکښ مراددې نوخلاصه داده کچرته جهادنوی نوبه دَراهبانوخانقاګانی اونه به دَعیسایانو عبادت خانی نه به دَیهودیانوعبادت خانی په خپلوادوارو کښ اونه به دَمسلمانانوجماتونه اومدارس محفوظ وی

﴿وَلَيَنصُرَنَّ ٱللَّهُ مَن يَنصُرُهُۥٓ﴾ دا اعلان فتح دې او الله ﷻ دچا امداد او نصرت ته محتاج ندې او نه ئې ضرورت شته دې خو دَ الله ﷻ دَدين خدمت. دَاهل حق په صف کښې شامليدل دَ الله ﷻ دَدوستانو او علماؤ سره محبت او تعلق ساتل. دَهغوئ سره تعاون کول دا داسې دی لکه چه د الله ﷻ سره امداد کول دی

| |
|---|
| ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ أَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ |
| دامهاجرين هغه کسان دی کچرته طاقت ورکړو مونږ دوئ ته په زمکه کښې پابندي به کوي دمونځ او ورکوي به زکوة |
| وَأَمَرُوا۟ بِٱلْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا۟ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ۗ وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلْأُمُورِ ۝ |
| اوحکم به کوي دَنيکئ اومنع کوي به خلك دَبدئ نه.اوخاص الله ﷻ لره دي انجام دټولوکارونو. |
| وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَثَمُودُ ۝ |
| اوکچري دوئ دغروژن وائي تاته نوبقيناً دروغژن کنړلي وو مخکښې دَدوئ نه قوم دَنوح ؑ اوعاديانو اوثموديانو خپلو پيغمبرانولره، |
| وَقَوْمُ إِبْرَٰهِيمَ وَقَوْمُ لُوطٍ ۝ وَأَصْحَٰبُ مَدْيَنَ ۖ وَكُذِّبَ مُوسَىٰ فَأَمْلَيْتُ |
| اوقوم دَابراهيم ؑ اوقوم دَلوط ؑ. اوأسيدونکو دَمدين، اودروغژن کنړلي شوي وو موسى ؑ، پس مهلت مي ورکړو |
| لِلْكَٰفِرِينَ ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ ۖ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ۝ فَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَٰهَا |
| کافرانوته.بيااونيول ماهغوئ پس څرنګه شوعذاب څماهغوئ لره.پس ډيردکلونه هلاك کړيدي مونږ هغه |
| وَهِىَ ظَالِمَةٌ فَهِىَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ مَّشِيدٍ ۝ |
| اوحال داچه هغوئ ظلم کوونکي وونو هغه پريوتلي دی په چتونوخپلوباندی اوډيرکوهيان شاړاوډيرمحلونه پاخه شاړدي، |

﴿ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمْ﴾ دا ايت دَاستخلاف دې او داجمله يابدل واقع شويده دَ ﴿مَن يَنصُرُهُۥٓ﴾ نه اويابدل واقع شويده دَ ﴿ٱلَّذِينَ أُخْرِجُوا۟ مِن دِيَٰرِهِم﴾ نه اوپديکښې دَالله ﷻ دَدين امدادکوونکو خلکو اودَمجاهدينو. مهاجرينو صفات بيانيږي او ﴿إِن مَّكَّنَّٰهُمْ﴾ شرط دې او ﴿أَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ﴾ ورله جزاء ده اومراد په تمکن سره سلطنت اوقوة نافذه دې اوپدې باندی ترتب دَخلوړ امورشويدی

(۱) ﴿أَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ﴾ (۲) ﴿وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ﴾ پديکښ دوئ انفراد اوذاتي اصلاح ته اشاره ده. چه دحکومت ميلاويدلوپه وجې سره په دوئ کښ څه غرور اوتکبرنه راځي. اونه دالله جَلَّ جَلَالُهُ په احکاماتوکښ سستي کوي (۳) امربالمعروف (۴) نهي عن المنكر. ددينه مراد اجراء داحکام شرعيوده په مملکت کښ

اوهرکله چه ﴿ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمۡ﴾ کښ وقوع دمقدم په اخبارمتواتروسره ثابت دي اووقوع دتالي په نصوص قطعيه سره ثابت دي ځکه چه تالي په حقيقت کښ اخباردي دجانبه دالله جَلَّ جَلَالُهُ نه اوددې وجه نه مفسرين فرمائي چه دااګرچه بظاهرجمله شرطيه ده ليکن حقيقة داجمله خبريه ده. نوددې وجې نه داايت دليل دې په حقانيت دخلافت دخلفاء راشدين باندې. اوداددوئ دپاکيزه سيرت پيشنګوئ ده (لعنة الله على اعدائهم) اوجمله شرطيه په ځائ دخبرئي ځکه راوړې شوه چه داشرط شامل شي هرهغه چاته چه الله جَلَّ جَلَالُهُ ورله بادشاهي اوحکومت ورکړي. لکه قرطبي رَحِمَهُ اللهُ دضحاك نه نقل کړيدې چه الله تعالى داشرط لازم کړيدې په هغه چاباندې چه بادشاهي اوحکومت ورله ورکړې وي.

﴿وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلۡأُمُورِ﴾ داتاکيددې دماقبل دپاره اواشاره ده ديته چه څرنګه حکمراني ورکول دالله جَلَّ جَلَالُهُ په قدرت اواختيارکښ دي نودغه شان دهغې دوام هم دالله جَلَّ جَلَالُهُ په قدرت اواختيارکښ دي. ﴿وَإِن يُكَذِّبُوكَ﴾ داتسلي ده حضور ﷺ اومؤمنانوته چه کچرته داکفارستاتکذيب کوي اوتاسوته اذيت اوتکليف درکوي نوتاسو زړه مه تنګوئ اوصبرکوئ الله جَلَّ جَلَالُهُ به دوئ هلاك کړي لکه څرنګه مخکښني مکذب، قومونه ئې هلاك کړيدي.

﴿وَعَادٞ وَثَمُودُ﴾ داپه رفع سره عطف دې په ﴿قَوۡمُ﴾ باندې اوتعبيردقوم هود اوصالح نه په علم سره ځکه اوشوچه داقومونه په دې نوم سره مشهور وو اواختصاص هم دې واصحاب مدين ددينه مرادقوم شعيب عَلَيْهِ السَّلَامُ دي. دلته قوم شعيب عَلَيْهِ السَّلَامُ اونوئيلې شوځکه چه شعيب عَلَيْهِ السَّلَامُ دوه (۲) قومونوته ليږلې شوې وو. يواصحاب مدين وو اوبل اصحاب الايکه وو اصحاب مدين په تکذيب اوهلاکت کښ مقدم ووپه اصحاب الايکه باندې اوهلاکت ددوئ مشهورهم وو په عربوکښ نوددې وجې نه دلته ذکرصرف داصحاب مدين اوشو

﴿وَكُذِّبَ مُوسَىٰ﴾ دلته اسلوب د کلام بدل کړې شو او داسې اونه وئيلې شو چه وقوم موسٰی ځکه چه د موسٰی علیه السلام خپل قوم بنی اسرائیل وو او بنی اسرائیل و د موسٰی علیه السلام تکذیب نوو کړې. بلکه تکذیب کوونکی د موسٰی علیه السلام قبطیان وو او هغوئ غیر وو د قوم د موسٰی علیه السلام نه ﴿فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ﴾ استفهام د پاره د تقریر دې او نکیر په معنٰی د انکار سره دې یاء د متکلم محذوفه ده اکتفاء په کسری باندی شویده او نکیر او انکار په اصل کښې تغیر او بدلولو ته وئیلې کیږی دلته نه مراد عذاب دې. ځکه چه پدی سره نعمتونه په زحمتونو سره ژوند په مرګ سره بدل شی

﴿فَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ﴾ دا تفصیل دې د عذاب دنیوی ﴿وَهِيَ ظَالِمَةٌ﴾ دا جمله حال واقع شویده د ضمیر منصوب د ﴿أَهْلَكْنَاهَا﴾ نه او پدیکښې اشاره ده علت د هلاکت ته چه د دې قرئی خلك ظالمان یعنی مشرکان وو. نو د شرك د وجی نه الله جل جلاله دوئ هلاك کړل. (مدارك).

﴿فَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا﴾ خاوية د خوی الدار نه دې غورځیدلو ته وئیلې کیږی، نو مقصد دا دې چه د دې کورونو او بنګلوچتونه اول راوغورځیدلو او بیا د پاسه پری دیوالونه را اوغورځیدلو او بعض فرمائی چه خاویه د خوی البطن نه دې چه کله ګیډه خالی شی، نو مقصد دا دې چه دا عظیم الشان او خائسته بنګلی په خپلو دیوالونو باندی خالی اولاړی وی او اهل ئی ټول هلاك شوې وو (کبیر).

﴿وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ﴾ معطلة د تعطیل نه دې وئیلې کیږی ابطال د منافعو ته، او ﴿مَّشِيدٍ﴾ یا د شید (بالفتح) نه دې وئیلې کیږی اوچتوالی او رفعت ته او یا د شید (بالکسر) نه دې په معنٰی د محکم سره. چه په چونی وغیره سره مضبوط کړې شوې وی، او د دینه یا مراد دا دې چه د دې هلاك شوی قومونو په کلو. او کورونو کښې کوهیان وو. چه شاړې پاتی شو او اوچ شو او د هغوئ غټی او مضبوطی بنګلی هم وی، لکه د قوم ثمود چه څرنګه بنګلی وی او قرطبی رحمه الله وغیره نقل کړیدی چه دا کوهی او قصر دواړه د حضرت موت په یوی قرئی چه حاصورا نوم ئی وو په هغی کښې وو. قصر د غره په سرکښې وو او کوهی د غره په لمن کښې وو او دا حاصورا شهر هغه څلورزره مؤمنانو جوړ کړې وو چه د حضرت صالح علیه السلام سره حضرموت ته راغلې وو. دلته راتلو نه څه وخت ورستو د حضرت صالح علیه السلام وفات اوشو. او د دې وجی نه دې شهرته حضرموت وئیلې کیږی چه

دلته حضرت صالح علیه السلام ته مرګ حاضرشوي وو ،دده دوفات نه ورستودده متبعينودخان دپاره يوحصاراووهلو اوحاصورا ئې تعميرکړو اودکوهي خواته ئې قيام اوکړو. اوپوکس چه نوم ئې جهلست بن جلاس ياعلس بن جلاس وو اميرئې مقررکړو. اودې ډيرنيك سيرت اوحسن صورت والاوو .څه وخت ورستودوئ په نسلونوکښې شرك شروع شو نو الله تعالى ددوئ دهدايت دپاره حنظله بن صفوان علیه السلام پيغمبررااوليږلوخودوئ دهغه خبره اونه منله اوهغه ئې شهيدکړو .نو الله تعالى په دوئ باندې عذاب رااوليږلو اودوئ ټول هلاك شول اوکوهي اوبنګلي ئې شاړې پاتې شوې

أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ يَعْقِلُونَ بِهَا أَوْ آذَانٌ يَسْمَعُونَ

آیانودوئ ګرځي نه په ملك كښې.چه پس پيداشي دوئ لره داسې زړونه چه بوهيږي به هغې سره،غوږونه چه اورېدل کوي

بِهَا فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى الْأَبْصَارُ وَلَٰكِنْ تَعْمَى الْقُلُوبُ الَّتِي فِي الصُّدُورِ ﴿٤٦﴾

په هغې سره.بيشکه قصه داده چه نه ړندېږي سترګې اوليکن ړنديږي هغه زړونه چه په سينوکښې دي

وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَنْ يُخْلِفَ اللَّهُ وَعْدَهُ ۚ وَإِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ

اودوئ په جلتئ سره غواړي ستانه عذاب اوهرګزخلاف نه کوي الله ﷻ دوعدې خپلې نه اوبيشكه يوه ورځ

كَأَلْفِ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ ﴿٤٧﴾ وَكَأَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ أَمْلَيْتُ

په نيزدرب ستا،دورځو دآخرت نه،پښان دزروکالو ده دهغې نه چه تاسوئې شمارکوئ په دنياکښې اوډيرکلي دي چه مهلت ورکړېدې ما

لَهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ ثُمَّ أَخَذْتُهَا وَإِلَيَّ الْمَصِيرُ ﴿٤٨﴾

هغوئ ته اوحال داچه ظلم کوونکي دي بيااونيول ماهغوئ لره اوخاص ماطرف ته راګرځيدل دي

﴿أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ دا ترغيب دې سيروسياحت ته. دپاره دعبرت حاصلولو اوپديکښې اشاره ده چه کوم سيروسياحت دعبرت حاصلولودپاره وی هغه عبادت دې اوپوامرمستحبه دې ﴿فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ يَعْقِلُونَ بِهَا﴾ يعقلون په معنى ديعلمون سره دې. اومفعول به ئې محذوفه ده

ای یعلمون بما یجب ان یعلم من التوحید(روح) یعنی ددې زړنو په ذریعې سره دوئ په توحید باندې پوهه شوی وی

﴿فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى ٱلْأَبْصَٰرُ﴾ها ضمیرقصه دې ﴿لَا تَعْمَى ٱلْأَبْصَٰرُ﴾ورله تفسیردې او دا کلام محمول دې په مبالغې فی النفی باندې. اودامقصدندې چه سترګې نه ړندیږی. لکه څرنګه چه ظاهرد صیغې د مضارع د اسنادتقاضاده څکه چه داخلاف واقع اوحقیقت دې اوپدیکښې اشاره ده چه ړندوالی فقط دسترګودومره مضرندې لکه څومره چه ړندوالی د زړه مضردې

﴿وَلَٰكِن تَعْمَى ٱلْقُلُوبُ ٱلَّتِي فِي ٱلصُّدُورِ﴾زیادت دفی الصدور دتاکیدد پاره دې لکه یقولون بافواههم، اوتلک عشرة کاملة وغیره شو، پدیکښې اشاره ده چه محل دعقل اوعلم دپاره زړه دې

**فائده** پدیکښې اختلاف دې چه عقل کوم ځائ کښې وی؟ نو اکثرحکماء اوبعض متکلمین ددې قائله دی چه محل دعقل دماغ دې. اواستدلال ئی په ظاهری اثارو اوقرائنوسره کړیدې. مثلاً کله کله دیوکس دماغ خراب شی اوزړه ئی صحیح وی نوداکس تندرست اوصحت مندوی. خوعقل نه لری بلکه پاګل اومجنون وی اودغه شان که یوکس په سرباندې دکانړې ګذارلګیدلو دوجې نه کله کله حافظه خرابه شی یادشی ورنه هیرشی بلکه کله کله ورنه عقل هم زائله شی اوډیروخت یوکس داسی وی چه زړه ئی خراب شی خودهغې باوجود عقل اوحافظه ئی ټهیک وی اوددې قول نسبت امام ابوحنیفه رحمه الله ته هم کړې شویدې لیکن قرطبی رحمه الله فرمائی چه امام صاحب ته ددې قول نسبت صحیح ندې.

جمهورمتکلمین ددې قائله دی چه محل دعقل زړه دې. اواستدلال ئی پدی ایت مذکورو اودغه شان نورو آیتونوسره کړیدې چه په هغې کښې محل دعقل دپاره زړه خودلی شویدې. دبعض متکلیمن اودحکماؤ دطرف ه دایت مذکوروغیره نه جواب کړې شویدې چه محل دعقل دپاره زړه وئیل دامحمول دی په عرف اوپه خیال دعربو باندې چه دهغوئ خیال داوو چه محل دعقل زړه دې اوددې وجې نه په عربوکښې به هوښیارسړی په باره کښې به وئیلې کیدلو چه ددَه دوه زړونه دی لیکن مذهب ددې بعضوموافق ندې دنصوصوسره. بلکه دجمهورو مذهب اوفق دې دنصوصوسره اوحضرت شاه صاحب رحمه الله وغیره حضراتو په ددې دواړوقولینوکښې تطبیق داسی کړیدې چه داصل په اعتبارسره محل دعقل زړه دې، اودماغ محل دعقل په اعتباردتصرف سره دې. نوګویاچه منبع دعقل زړه دې اومحافظ ئی دماغ دی.

وعندی وجه اخروان لم اجدلی الکتب المتداولة والله اعلم بصحته، چه دَزړه دوه،۲، تاثیره دی. یوظاهری اوبل باطنی. دَظاهری تاثیرتعلق دَجسم سره دې اوپه جسم کښې ظاهریږی اوباطنی تاثیر تعلق دَدماغو سره دې. اودماغ ددغی تاثیرمحافظ خانه ده اوداتاثیرهلته محفوظ کیږی. نودَدماغو په فسادسره څکه سرې پاګل کیږی چه محافظ خانه فاسده شی. اوپه فسادبطنی دَقلب سره اصل تاثیرختم شی اودَدې وجی نه په څنوابتونوکښې داسی راغلیدی﴿لَهُمْ قُلُوبٌ یَعْقِلُونَ بِهَآ﴾اوهرچه دې فسادظاهری دَقلب نوهغه مستلزم ندې فساد باطنی لره.نوددې وجه نه دَزړه په ظاهری بیماریٔ سره په عقل کښې فتورنه راځی(والله اعلم بالصواب)

﴿وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ﴾دازجرمع التخویف دې په استعجال دَعذاب سره. چه دامشرکین عبرت خونه اخلی بلکه عذابونه په جلتیٔ سره غواړی﴿وَلَن يُخْلِفَ اللَّهُ وَعْدَهُ﴾ ددینه مراد وعده دعذاب ده په قرینی دَ﴿وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ﴾سره اوعذاب نه مراد عام دې دنیوی وی اوکه اخروی اودنیوی عذاب وعده الله ﷻ په بدرکښې پوره کړه﴿وَإِنَّ يَوْمًا﴾ داتنبیه ده په حماقت اوجهالت دکفاروباندی.چه داجاهلان دَالله ﷻ عذاب په جلتیٔ سره غواړی حالانکه دَهغی نه پناه غوختل پکاردی څکه چه داعذاب به دومره سخت او اوږدبه وی چه دهغی یوه ورځ به دَزرو(۱۰۰۰)کالو برابروی

﴿كَأَلْفِ سَنَةٍ﴾دَیوی ورځ تشبیه دَزرو کالوسره ورکول یاپه عددکښې ده چه دَقیامت یوه ورځ ستاسودَزرو(۱۰۰۰)کالوسره برابرده،نودغی ورځی ته الله ﷻ داعذاب مؤخرکړیدې اودَدې تائید په هغی حدیث سره کیږی چه ابن کثیر رحمه الله ذکرکړیدې چه دَحضرت ابوهریرة رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی پاک ﷺ ارشاد اوفرمائیلوچه فقراء به دَمالداروخلکونه نیمه ورځ مخکښې جنت ته داخلیږی اونیمه ورځ دَاخرت پنځه سوه(۵۰۰)کاله ده. نوددې حدیث نه معلومه شوه چه داخرت یوه ورځ به زر(۱۰۰۰)کاله وی. اوکه څوک اشکال اوکړی چه دَسورة المعارج ایت نمبر(۴)کښې دقیامت ورځ پنځوس زره کاله وئیلی شویده نوداخوتعارض دې؟

یوجواب تنه دادې چه اصل اوږدوالی دَدغی ورځی زرکاله دی خوپه خلکوباندی دَشدت اوسختیٔ دَوجی نه به پنځوس زره کاله اوګرځی. نوخلاصه دَجواب داده چه پدی ایت ایت

اوحديث مذكوركښې اصل اوږدوالی مذکوردې اوپه سورة المعارج کښې دسختئ دوجې نه اوږدوالی ذکردې.۲. بعضوتنه جواب داسی کړيدې چه مواقف دقيامت پنځوس دی اوهرموقف زرکاله دې. نوپدی آيت کښې زمانه ديوموقف ذکرده اوپه سورة المعارج کښې دټولو مواقفو مجموعه ذکرده (والله اعلم) اوياتشبيه ده په قدرت اوانفاذ دارادې کښې. مراددادې چه کوم کارتاسوپه زرکاله کښې کوئ الله جَلَّ جَلَالُهُ ئې په يوه (۱) ورځ کښې کوی اوذکردزرکالودتحديددپاره ندې بلکه داکنايه ده دکثرت نه. نوخلاصه داده چه تاسوته فوراً عذاب درکول ياځه وخت دپاره مهلت درکول. دادواړه حالتونه الله جَلَّ جَلَالُهُ ته مساوی اوبرابردی. الله جَلَّ جَلَالُهُ په هروخت کښې عذاب ورکولوباندی قادردې اوياتشبيه ده په شدت دعذاب کښې چه دالله جَلَّ جَلَالُهُ عذاب تاسوپه جلتئ سره غواړئ نودهغی ديوی ورځی شدت اوتکليف به دومره سخت اوزيات وی لکه زر (۱۰۰۰) کاله ځکه چه تکليف اودسختئ والاورځ اوږدی وی اودراحت اوخوشحالئ والا ورځی لنډی اومختصری وی ﴿وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ﴾ پديکښې هم تخويف اخروی ذکرکيږی اوتمهيددې دترغيب الی الايمان دپاره. اوهرکله چه ددينه مخکښې جمله ﴿فَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ﴾ بدل واقع شوې وه دئکيرنه اودواړه په حکم دجملې واحدې کښې وی نوددې وجه نه هغه په فاء سره ذکرشوه اودلته دواړه مستقلې جملی دی نودډې وجی نه به دلته په واؤسره عطف کړې شوه

قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَآ أَنَا۠ لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٤٩﴾ فَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ

ته اووايه ای خلکو بيشکه زه تاسوته بره درکوونکی ښکاره يم. پس هغه کسان چه ايمان ئی راوړيدې اوعملونه ئی کړيدی نيک

لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٥٠﴾ وَٱلَّذِينَ سَعَوْا۟ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ أُو۟لَٰٓئِكَ

د دوئ دپاره بخنه اورزق عزت والادې. اوهغه کسان چه کوشش کوې په اياتونوزمونږ کښې مقابله کوونکې دهغي سره دغه کسان

أَصْحَٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴿٥١﴾ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ وَلَا نَبِىٍّ إِلَّآ إِذَا تَمَنَّىٰٓ أَلْقَى

اور والا دی. اوندې ليږلی مونږ ستانه مخکښې هيڅ رسول اونه يونبي مګرهرکله چه هغه به لوستل کول نوغورځولی به

ٱلشَّيْطَٰنُ فِىٓ أُمْنِيَّتِهِۦ فَيَنسَخُ ٱللَّهُ مَا يُلْقِى ٱلشَّيْطَٰنُ

شيطان وسوسې دخلکو به زړونو کښې په وخت دلوستلودهغه کښې. نووران کړل الله ﷻ هغه شبهات چه اچول شيطان

| ثُمَّ | يُحْكِمُ | اللّٰهُ | اٰيٰتِهٖ ؕ | وَاللّٰهُ | عَلِيْمٌ | حَكِيْمٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیا | محکم «کلك» اوساتل | الله ﷻ | ایاتونه خپل | اوالله ﷻ | پوهه دي | حکمنونوالادي |

﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ﴾داترغیب الی الایمان ذکرکیږی اواثبات درسالت کیږی سره دجواب داستعجال دعذاب نه، چه تاسوځمانه په جلتئ سره عذاب غواړئ حالانکه داځماپه اختیارکښ ندي، څه خوداًالله تعالیٰ دطرف نه رسول یم اویره ورکوونکی اودعذاب خبرورکوونکی یم اودلته ذکرصرف دنذیرصفت اوشواوصفت بشیرذکراونشوځکه چه مقصود بالخطاب دلته صرف مشرکان اوکافران دی اوهرچه دي ذکردانعاماتودپاره دمؤمنانو بالاصاله ندي بلکه دکفارو غیظ غضب دزیاتولودپاره دي«کذاذکره الکشاف» اویاوجه داده چه نذیرصفت عام دي مؤمنانودپاره هم دي اوکفارودپاره هم دي، په خلاف دبشیرصفت نه چه هغه خاص دي په مؤمنانو پورې

﴿فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾بشارت دي مؤمنانوته﴿وَرِزْقٌ كَرِيْمٌ﴾کریم په معنی دعزت سره دي نومصداق ئی په دنیاکښ مال دغنیمت دي چه هغه دعزت والا رزق دي اویاکریم معنی بغیرتعب یعنی چه پغیردکړاؤنه وی نومصداق ئی بیاجنت دي ځکه چه ددنیاپه رزق کښ خامخاکړاؤوی

﴿وَالَّذِيْنَ سَعَوْا فِيْٓ اٰيٰتِنَا﴾داتخویف اخروی دي او﴿سَعَوْا فِيْٓ اٰيٰتِنَا﴾نه مراد کوشش دي په ابطال دایتونودالله ﷻ کښ چه هغی ته سحر،شعروغیره وئیل وو، ﴿مُعٰجِزِيْنَ﴾داحال دي د﴿سَعَوْا﴾ ضمیر فاعل نه، اوباب مفاعله یادمشارکت دپاره ده چه دوئ صاحب ایت پیغمبر دعاجزه کولو اراده کوی اوایاتونه دقرآن دوئ عاجزه کوی دمقابلی نه اویاباب مفاعله دمبالغی دپاره ده یعنی ددوئ کوشش دادي چه زمونږ داختیارنه اوځی اویا ﴿مُعٰجِزِيْنَ﴾په معنی دمثبطین سره دي. یعنی منع کوونکی دی خلکولره دایمان نه (خازن).

﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ﴾داایت دمشکلاتودقرآن نه دي پدیکښ ثلورمباحث دي(۱)ربط ماقبل(۲) دایت صحیح تفسیر(۳)دایت په سبب نزول کښ یوه غلطه واقعه اودهغی رد(۴) منشاء دغلطی

(۱)ماقبل سره ربط دادي چه مخکښې اياتونوکښې دکافرانودکفراوانکاربيان وو اوس پدې ايت کښې دهغوئ دَ نه منلووجه ذکرکيږي اودغه شان ماقبل اياتونوکښې نبي پاكﷺ ته تسلي ورکړې شوې وه وان يکذبوك فقدكذّبت قبلهم اوپدې ايت کښې بله تسلي ذکرکيږي نبيﷺ ته

(۲) ددې ايت په تفسيرکښې دَمفسرينو متعدد اقوال ذکرکړې شويدی ليکن غوره اوصحيح اقوال پکښې دوه(۲)دي.څکه چه لفظ دتمنی په کلام عرب کښې په دوه(۲) معانيوکښې مستعمل شويدی يو(۱) په معنی دَقرائت سره لکه په مرثيه دَحضرت حسان رضي الله عنه کښې چه دَحضرت عثمان رضي الله عنه په باره کښې ئې وئيلي وه:

تمنى كتاب الله اول ليلة– واخرها لاقى حمام المقادر

نودلته ﴿تَمَنَّىٰ﴾په معنی دَقرء سره دې اودويم(۲) معنی دَ﴿تَمَنَّىٰ﴾ مشهوره اومعروفه ده چه خواهش اوآرزو ته وئيلې کيږي. دلته که﴿تَمَنَّىٰ﴾ په معنی دَقرء سره شي.نو فيٓ به په ﴿فِيٓ أُمۡنِيَّتِهِۦ﴾ کښې په معنی دَعندسره وي. لکه لبثتَ فينا(الشعراء: ۱۸) کښې فی په معنی دَعندسره ده اوامنيّة به په معنی دَمتلوسره وي اوشيطان نه مراد عام دې که انسي وي ياجني وي،نودَايت مقصد دادې چه دايوقديم عادت دې اوهرنبي اورسول سره دامعامله شويده چه کله به هم هغه تلاوت ياوعظ اونصيحت کولو .نوشيطان په دغه وخت کښې دَخلکوپه زړونوکښې وسوسې اچولې. اومختلف شکوك اوشبهات پيداکولوکوشش کولو. لکه حرمت عليكم الميتة، نه داشبه کول چه دَالله تعالیٰ وژلي شوی څيزته حرام وائي اوخپل وژلي شوی ځاروی ته حلال وائي اودَانكم وماتعبدون من دون الله حصب جهنم نه داشبه پيداکول چه عبادت دَحضرت عزيرعليه السلام اوعسیٰ عليه السلام اودَملائکو هم شويدې نولهذا هغوئ به جهنم ته ځي(العياذبالله) اودغه شان دَ وروحٌ مّنه نه ابنيت وسوسه اچول وغيره شونو ﴿فَيَنسَخُ ٱللَّهُ﴾يعنی بياالله تعالیٰ داسې وحي رانازله کړي چه دهغې په ذريعې سره دَشيطان دَدغه سطحي اعتراضاتو جواب اودَوسوسودفعيه اوکړې شي

﴿ثُمَّ يُحۡكِمُ ٱللَّهُ ءَايَٰتِهِۦ﴾يعنی الله تعالیٰ محکم اياتونه نازل کړي اونبيﷺ مضبوط اومحکم کړي په دلائلو سره. نوخلاصه داده چه شيطان دَمتشابهات اياتونوظاهري معنی په اعتبارسره عامو خلکو گمراه کولو کوشش کوی. نو الله تعالیٰ دَده داکوشش په ايات محکمات سره ناکام کوی.

اوکه څوك اشکال اوکړی چه الله ﷻ ابتداءً ولی ایات محکمات نه نازله وی اوشیطان نه دوسوسواچولوموقعه ولی ورکوی؟ نودَدې جواب اوحکمت ذکرپه راتلونکی ایاتونوایت نمبر(۵۳ . ۵۴) کښی بیانیږی اودا تفسیر اکثر اهل علمو اختیارکړیدې امام بخاری هم په بخاری شریف کښی دې تفسیرته ترجیح ورکړیده

اوکه تمنی په خپلی مشهوراومعروف معنی سره شی نوبیادَایت مقصددادې چه دهرنبی اورسول خواهش داوی چه خلك ایمان راوړی. اودې دَپاره به چی پیغمبرخپل قوم ته وعظ،نصیحت کولونوشیطان به دَپیغمبرپه دې تمنا اوخواهش کښی رکاوټ پیداکولو اودَخلکوپه زړونوکښی به ئی وسوسی اچولی لیکن الله ﷻ دَمحکم ایاتونوپه ذریعی سره دَشیطان وسوسی ختموی

(۳)دَدې ایت یوبل تفسیرهم شویدې اودَهغی تفسیربناء په یوسبب نزول باندی دې اوهغی سبب نزول کښی یوه واقعه ذکرکیږی چه ابن جریر رحمه الله. بغوی رحمه الله. صاحب دَجلالین اوزمخشری رحمه الله وغیرهم ذکرکړیده چه یوځلی نبی پاك ﷺ سورة النجم تلاوت کولو نوچه کله افرایتمُ اللاّت والعزّیٰ ومناة الثّالثة الاخری ته رااورسیدلو نودَ نبی ﷺ په زبان مبارکه باندی داالفاظ جاری شوچه تلك الغرانیق العلی وان شفاعتهن لترتجی(دابتان بلندمرتبی والادی بیشکه دوئ نه دَشفاعت امیدکیدلی شی) نومشرکینوچه کله داواوریدلونوډیرخوشحاله شو چه نبی ﷺ زمونږ دَبتانو صفت بیان کړو.دَسورت په اختتام باندی چه کله نبی ﷺ سجده اوکړه نودوئ ټولومشرکینوهم سجده اوکړه سیوادیوکس نه چه دَبیماریٔ دَوجی نه ئی سجده نشوه کولی نوهغه خاوری خپل تندی ته رااوچتی کړی. څه وخت پس حضرت جبرئیل علیه السلام نبی ﷺ ته ددې واقعی اوالفاظو خبرورکړو نونبی پاك ﷺ ډیرخفه شو.نوالله ﷻ تسلی دَپاره دامذکوره ایاتونه نازل کړلو. داواقعه اګرچه مشهوره ده لیکن محققین مفسرینوپه نیزمردوده ده. امام رازی رحمه الله دې واقعی ته موضوعی وئیلی دی. خازن.ابوسعود . شربینی وغیره هم پدی باندی سخت رد کړیدې بیهقی رحمه الله فرمائی هذه القصة غیرثابت من جهة العقل. محمدابن اسحاق دَدې واقعی په باره کښی فرمائی ان هذه القصة من وضع الزنادقة لااصل لها چه داواقعه زنادقوایجاد کړیده شرعاً دې دَپاره څه اصل نیشته. اوکوم حضرات چه دَدې واقعی دَاثبات قائله دی نودَهغوئ په خپل مینځ کښی دَدې الفاظو دمتکلم په باره کښی اختلاف دې. چه داالفاظ وئیلی چاوو؟ نوپدیکښی دری ۳ اقوال

دی(۱) بعض فرمائی چه شیطان دَنبی پاکﷺ په لهجه کښ وئیلی وو(۲) بعض فرمائی چه مشرکینو کښ چاوئیلی وو(۳) نبی پاکﷺ وئیلی وو. په دریم قول کښ بیادری اقوال دي. عمدا ئی وئیلی وو، خطاءً ئی وئیلی وو. سهوا ئی وئیلی وو

کوموحضراتوچه پدی واقعی باندی ردکړیدي اودَدي واقعی دَصحت نه ئی انکارکړیدي نو وجوه دَبطلان ئی متعدد ذکرکړیدی(۱) داواقعه سنداً ضعیفه ده اودَدي په سندکښ انقطاع ده اومتناً مضطربه ده(۲) داواقعه منافی دَعصمت ده څکه چه دَدي واقعی دَصحت په بنیاد نبی پاکﷺ غیروحی ته وحی اوقرآن اوئیل لازمیږی

(۳) داکلمات وئیل به دوه(۲) حالاتونه خالی نوی. یابه ددَینه ظاهری معنیٰ نبی پاکﷺ مراد کړی وی اودَمعبودان باطله صفت اومدحه به ئی اراده کړی وی. داشق باطل دي بداهةً څکه چه مستلزم دي کفرلره. اویابه ظاهری معنی نوی مراد بلکه یوه بله معنی به مرادوی چه دَهغی بیان ندي شوي،لیکن مشرکینودامطلب فهم کړوچه نبی پاکﷺ زمونږ دَبتانو مدحه اوکړه اوبیانبی پاکﷺ ددوئ دامطلب اومراد رد هم نه کړو بلکه خاموشی اختیارکړه.داصورت هم باطل دي بداهةً څکه چه داتقریردکفردي

(۴) ددي واقعی په صحت باندی لازمیږی تسلط دَشیطان په انبیاء کراموباندی. اوحالانکه شیطان ته په یوعام انسان باندی تسلط طاقت ندي ورکړي شوي لکه په سورة النحل ایت نمبر(۹۹) اوسورة بنی اسرائیل ایت نمبر(۲۵) کښ دی، نوپه ابیاء کراموباندی تسلط شیطانی محال دي په طریق اولی سره

اوکچری څوك داوائی چه داالفاظ شیطان وئیلی وو په لهجه دنبیﷺ کښ. اودَنبی پاکﷺ په زبان ئی نوو جاری کړی. نولهذا تسلط نه لازمیږی، نوجواب تنه دادي چه اللهﷻ شیطان ته داطاقت هم ندي ورکړي چه هغه دَپیغمبرلهجه اختیارکړی. لکه څرنګه شیطان ته دَپیغمبرپه صورت کښ دَمتمثل کیدلوطاقت ندي ورکړي شوي اوڅرنګه چه وحی اوقران محفوظ دي دغه شان مجالس دَوحی هم محفوظ دي لکه سورة الجن ایت نمبر(۲۷ ، ۲۸) کښ دي چه فانه یسلکه من بین یدیه ومن خلفه رصدا الخ.

اوکه څوك داوائی چه دَنبی پاکﷺ نه داالفاظ سهواً یاخطاءً صادرشویدي. نولهذا نه تسلط شیطانی راغی اونه عدم حفاظت راغی دَمجالسودَوحی، نوجواب تنه دادي چه پدی

صورت کښې تقوّل على الله (الله ﷻ ته دَداسې خبرې نسبت کول چه الله ﷻ نوې فرمائیلې) لازمیږي اګرچه خطاءً یاسهواً ده. اوپیغمبرنه په سلسلې دَتبلیغ اوپه امورِدَشرعه کښې خلاف واقع وینامحاله ده مطلقا خواه عمدا وي یاسهوا یاخطاء وي اودغه شان پدې تقدیرقرآن باندې به اعتماد هم باقي پاتې نشي

لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کښې پدې زور ورکړیدې چه داواقعه ثابته ده اوصحیح ده. حافظ متعدد طرق اوسندوسره داواقعه ذکرکړیده اوپه هغې کښې دوه(۲) طرق صحیح اوموافق دي دَشرائطودَصحیحوسره اګرچه مرسل دي

۴: منشاغلطی: محدثین فرمائي چه منشاء دَغلطئ دَبعض رواتوداده چه په حدیث دَبخاري کښې دي: سجدالنبی ﷺ بالنجم وسجدمعه المشرکون والجن والانس یعنی دَسورة النجم په اختتام باندې نبي ﷺ سجده اوکړه محدثین فرمائي چې کله نبي ﷺ سورة النجم تلاوت اوکړواوپه آخرکښې يې سجده اوکړه،اودي مجلس کښې مشرکینوسرداران هم موجودوو،نوهغوئ باندې هم تاثیراوشواوبې اختیاره يې سجده اوکړه نومشرکینوته چې کله روستوددې پته اولګیده چې مونږخوسجده اوکړه،نوهغوئ داپروپیګنډه اوکړه چې مونږداسجده ځکه اوکړه چې نبي ﷺ زمونږدابتانومدح بیان کړه اودالفاظ يې ویلي ووچې:تلك الغرانيق العلیٰ،حالانکه دې خبره کښې هیڅ حقیقت نووصرف بدنامئ اوپیغورنه بچ کیدلودَپاره يې داخبره خوره کړه اودَنبي ﷺ سره ټولومشرکینواوجناتو اوانسانانو سجده اوکړه، نودې بعضو راویانودافهم کړه چه دَمشرکینو سجده دَتلك الغرانيق العلی الخ دالفاظو وئیلودَوجې نه وه. اوحالانکه داسجده دَټولو مخلوقاتو دَدې وجې نه وه(بقول شاه ولی الله رحمه الله)چه الله ﷻ خپلې تجلی قهري ظاهرې کړې وې. دَدینه علاوه نورمتعددتوجیهات هم پکښې راغلي دي چه محدثینوذکرکړیدي (من شآء فلیطالع ثمه) والله اعلم بالصواب.

| لِّيَجْعَلَ مَا يُلْقِي الشَّيْطٰنُ فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ |
|---|
| دې دپاره چه اوګرځوي (الله) هغه شبهې چه اچوي شیطان امتحان. هغه کسانولپاره چه په زړونودهغوئ کښې مرض دي. |
| وَّالْقَاسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ ۚ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَفِيْ شِقَاقٍۭ بَعِيْدٍ ۙ﴿۵۳﴾ وَّلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ |
| اودسخوزړونوالولپاره. اوبیشکه ظالمان خامخاپه دښمنئ لرې کښې دي اودې دپاره چه یقین اوکړي هغه کسان |

أُوْتُوا الْعِلْمَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَيُؤْمِنُوْا بِهٖ فَتُخْبِتَ لَهٗ قُلُوْبُهُمْ ؕ

چه علم ورنه ورکړی شویدي چه یقیناً داحق دي دطرفه درب ستانه.نوایمان راوړي پدي باندي نوعرم به شي دسه زړونه ددوئ

وَاِنَّ اللّٰهَ لَهَادِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۵۴﴾ وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ

اوبیشکه الله ﷻ رسوونکی دي هغه کسانولره چه ایمان لرونکی وی لاری نیغي ته.اوهمیشه به وی هغه کسان چه

كَفَرُوْا فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْهُ حَتّٰى تَاْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً اَوْ يَاْتِيَهُمْ عَذَابُ

کفرئی کړیدي په شك کښ ددینه سمی لاری نه، تردي پوري چه راشي دوئ ته قیامت ناگهانه اویا راشي دوئ نه عذاب

يَوْمٍ عَقِيْمٍ ﴿۵۵﴾ اَلْمُلْكُ يَوْمَىِٕذٍ لِّلّٰهِ ؕ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ ؕ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

دورخي شنډي بادشاهي په دغه ورځ صرف دالله ﷻ ده.فیصله به کوي په مینځ ددوئ کښ.پس هغه کسان چه ایمان ئی راوړی وي

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿۵۶﴾ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا

اوعملونه ئی کړیدی نیك موافق دسنت په جنتونو دنعمتونو کښ به وي اوهغه کسان چه کفرئی کړیدي اودروغژن گڼړي

بِاٰيٰتِنَا فَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۵۷﴾

ایاتونه زمونږ پس دغه کسان دوئ لره عذاب ذلیل کوونکی دي

﴿لِّيَجْعَلَ مَا يُلْقِى الشَّيْطٰنُ﴾ هرکله چه ماقبل کښ دوه (۲) فعلونه ذکرشو (۱) القا دشیطان (۲) نسخ دالله ﷻ نواوس پدی باندی دوه (۲) تفریعات ذکرکیږی نوداجمله مرتبه ده په القاء باندی اوپدیکښ شیطان ته دوسوسو اچولوطاقت اوقدرت ورکولوحکمت بیانیږی. چه داالقاء شیطانی دپاره دازمائش ده، پدی سره دمنافقینو اومشرکینوزړونه نورهم سخت کیږی. اوددوئ گمراهی ورسره نورهم زیاتیږی

﴿فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ﴾ دینه مراد منافقین دی. ﴿وَالْقَاسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ﴾ دینه مراد مشرکین دی.

﴿وَلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ﴾ دامرتبه ده فینسخ باندی. یعنی اهل ایمان ته پدی باندی فائده رسیږی او ایمان ئی زیاتیږی په حق باندی. نود ﴿اُوْتُوا الْعِلْمَ﴾ نه مراد مؤمنان دی او ﴿فَيُؤْمِنُوْا بِهٖ﴾ نه زیاتوالی

دایمان مراددي په اعتبار دمؤمن به سره اویداوتو العلم نه مراد اهل علم دیهود یانودی. اوفیؤمنو به مقصد دادي چه کله حقانیت دقرآن ورته معلوم شی نو بیاپری ایمان راوړی ﴿فَتُخْبِتَ لَهُ قُلُوبُهُمْ﴾د دینه مراد انابت اونرم والی دي. ﴿وَإِنَّ اللَّهَ لَهَادِ الَّذِينَ﴾مراد دادي چه شیطان دمؤمنانو په زړونو کښې وسوسې اچوی لیکن الله ﷻ ددغی وسوسونه ددوئ حفاظت کوی

﴿وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ﴾دایافقط تخویف دنیوی دي.کچرته د ﴿عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيمٍ﴾نه مراد دجنګ بدر ورځ شی اویاتخویف دنیوی اخروی دواړه دی کچرته ﴿يَوْمٍ عَقِيمٍ﴾نه دبدر اودقیامت دواړه ورځی مرادشی.اوعقیم شنډته وئیلې کیږی اوشنډ دپاره اولادنه نی چه هغه دده مثل وی. نودې وجی نه عقیم نه مراد لامثل له دي یعنی داسی سخت عذاب به وی چه دهغی دپاره به څه مثل نوی اویادعقیم نه مراد صرف دقیامت ورځ ده. اوقیامت ورځ ته عقیم پدی اعتبارسره هم وئیلې کیږی چه دي دپاره شپه نیشته دي اوهویوم القیمة لالیل له(جلالین).

﴿الْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِلَّهِ﴾غوره خبره داده چه تنوین عوض دجملی نه راغلیدي اوهغه محذوفه جمله یوم تزول مریتهم وشکهم ده. یعنی چه کوم ورځ دوئ په عذاب کښې مبتلاشی اوددوئ شك زائله شی چه دابه دقیامت ورځ وی نوپه دغه ورځ ټول اختیارات اوتصرفات به دالله ﷻ وی. مجازا متصرف به هم څوك نوی، په خلاف ددنیادزندګئ نه چه پدیکښې مخلوقات مجازا متصرف دي

﴿فَالَّذِينَ آمَنُوا﴾داتفصیل د﴿يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ﴾دي اودابشارت اخروی دي مؤمنانوته.

﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا﴾داتخویف اخروی دي

**وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ قُتِلُوا أَوْ مَاتُوا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللَّهُ رِزْقًا حَسَنًا**

اوهغه کسان چه هجرت ئی کړیدي په لاره دالله تعالی کښې بیااووژلی شو یامړه شو خامخا رزق به ورکوي دوئ ته الله ﷻ رزق ښائسته

**وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴿٥٨﴾ لَيُدْخِلَنَّهُمْ مُدْخَلًا يَرْضَوْنَهُ وَإِنَّ اللَّهَ**

اوبیشکه الله ﷻ ښه روزی ورکوونکی دي خامخا داخل به کړی دوئ ځای دداخلیدلو ته چه دوئ به ئی خوخوي اوبیشکه الله ﷻ

لَعَلِيْمٌ حَلِيْمٌ ۞ ذٰلِكَ ۚ وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ مَا عُوْقِبَ بِهٖ

پوهه دې صبر کوونکی دې، دازیری یقینی دې اوچاچه بدل واخستلو پشان دهغې چه دوئ ته تکلیف ورکړې شویدی په هغې سره

ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ لَيَنْصُرَنَّهُ اللّٰهُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ۞

بیا ظلم اوکړې شي په هغه باندې نو خامخا به مدد کوي دده سره الله ﷻ بیشکه الله ﷻ خامخا معافي کوونکی بخنه کوونکی دې

﴿وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا﴾ دَدې ځائ نه اخری باب دَدې سورت شروع کیږی. تفصیل ئی اول کښې ذکرشویدې اودامتعلق دې دَ ﴿اِنَّ اللّٰهَ يُدٰفِعُ﴾ سره، چه هلته دَمشرکینو سره دَجهاد کولو اجازت میلاؤشو نواوس پدی ایتکښ ترغیب الی الهجرت والجهاد ذکرکیږی یعنی کوموکسانو چه دَالله ﷻ دَرضادَپاره هجرت کړیدې اوبیا په جهاد کښې شهیدان شویدی اویا په خپل مرګ باندی وفات شویدی نودوئ دَپاره په اخرت کښې رزق حسن یعنی بلامشقته اونه ختمیدونکی رزق به وی.

**سبب نزول**: دَدې ایت سبب نزول قرطبی رحمه الله وغیره داذکرکړیدې چه کله دَنبی پاک ﷺ رضاعی رور حضرت عثمان بن مظعون رضی الله عنه اویو بل صحابی حضرت ابوسلمه بن عبدالاسد رضی الله عنه وفات شونوبعضو خلکو داخبره اوکړه چه دوئ ته افضل اوغوره مرګ چه دَشهادت والادې میلاؤنشو نوپدی باندی داایت نازل شو. چه پدیکښې الله ﷻ دَشهیداوغیرشهیددواړو دَپاره انعام ذکرکړیدې.

دَدې ایت دَظاهرنه دَمهاجرشهیداوغیرشهیدپه مینځ کښې تسویه معلومیږی اودَدې وجی نه بعضی اهل علمو دَدې ایت نه استدلال هم کړیدې چه مهاجرمقتول اومیت په ثواب اواجرکښې برابردې،اودغه شان استدلال ئی کړیدې په ایت سورة النساء نمبر(۱۰۰)سره اودغه شان په حدیث دام حرام رضی الله عنها سره چه ذکرکړیدې امام بخاری رحمه الله په کتاب الجهاد باب غزوة المراة فی البحرکښې، چه حضرت ام حرام رضی الله عنها دَسورلئ نه غورځیدلی وه وفات شوې وه شهیده شوې نوه. خوحضور ﷺ هغې ته فرمائیلی وو انت من الاولین، لیکن اکثرعلماء فرمائی چه مقتول ته زیادت فضیلت حاصل دې په میت باندی. اوپه دې باندی ډیراحادیث دال دی باقی وعده دَرزق حسن یادَنفس اجر دال ندې په تفضیل یاپه تسویه باندی،یعنی پدی مذکورایاتونو سره صرف داثابته

شوه چه مقتول اومیت دواړو دپاره رزق حسن اواجرشته دي. اوفضیلت دیوپه بل یاددواړو په مینځ کښ تسویه ددي مذکوراياتونونه معلومیږی. تفضیل دمقتول په نورو نصوصوسره دي اومراد په رزق حسن سره هغه رزق دي چه بې کړاوه اونه ختمیدونکی وی اودارزق به په قبرکښ به هم وی لکه سورة ال عمران ایت نمبر(۱۲۹)کښ دی اوپه جنت کښ به هم وی

﴿وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ﴾رازقین جمع په اعتباردظاهرسره وئیلې شویده چه خلك یوبل ته ورکړه کوی، نومخلوق ته رازقین وئیل مجازا دی اوخیرورسره ځکه ذکرکړي شو چه اعطاء یعنی ورکړه دالله ﷻ اصالةً اوحقیقةً ده اودمخلوقاتو ورکړه اواعطاء تبعا اومجازاده ځکه چه مخلوق پخپله الله ﷻ ته محتاجه دي کچرته الله ﷻ ورته څه شی ورکړي وی نودي به ئی هم بل چاته ورکړی ورنه نشی ورکولی اودغه شان اعطاء دالله ﷻ محض احساناً ده دمخلوق نه ئی طلب دعوض اویاڅه طمع نه کوی، په خلاف داعطاء دمخلوقاتونه، چه هغه محض احساناً نوی بلکه دپاره دطلب دعوض وی. ﴿لَيُدْخِلَنَّهُم مُّدْخَلًا﴾دابشارت اخروی دي په اعتباردمکان سره اومدخلا اسم مکان دي مراد تنه جنت دي.

﴿ذَٰلِكَ وَمَنْ عَاقَبَ﴾هرکله چه ماقبل ایت کښ دمهاجرینو. اومقتولینو اوامواتو دفی سبیل الله ثواب ذکرشونواوس پدی ایت کښ اعاده دوعدي دنصرت اودفتح کیږی (بحر) او﴿ذَٰلِكَ﴾ خبردي دمبتدامحذوفی دپاره یعنی الامرذلك، ﴿بِمِثْلِ مَا عُوقِبَ﴾عقاب هغې بدلی ته وئیلې کیږی چه دظلم نه ورستو بطورعوض ورکړې شی، اوابتداءً ظلم باندی اطلاق دعقاب نه کیږی اوحالانکه دلته په ابتداء دظلم باندی اطلاق دعقاب شویدې نودایامشکالةً دي دماقبل عاقب سره اویامجازا دي دقبیلی دتسمیة السبب باسم المسبب نه دي، ځکه چه ابتداء په ظلم باندی سبب ګرځی دپاره دبدلی اوبعض علماء فرمائی چه ابتداء دظلم دپاره لفظ دعقاب استعمالول عرفاً دی. یعنی عرف عام کښ لفظ دعقاب استعمالیږی مطلق تکلیف دپاره. اګرچه په اعتباردأصل سره وضع شویدې دبدلی دتکلیف دپاره.

﴿ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ﴾ ثم دتعقیب ذکردپاره دي اويادتراخي زماني دپاره دي نومقصد دادي چه اولا ئي دوئ ته سخت سخت جسماني اذيتونه اوتکليفونه ورکړل اوبياني دعلاقي نه اويستلواوهجرت ته ئي مجبوره کړو. نوثم بغی په معنی د ثم اخرجوا سره دي

﴿لَيَنصُرَنَّهُ ٱللَّهُ﴾ يعنی دَدي ظالمانو په مقابله کښ به الله جَلَّ جَلَالُهُ دمظلوم مؤمنانو ضرورامدادکوی

﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ﴾ دَدي جملي دَماقبل سره ربط اوتعلق دادي چه ماقبل کښ ذکرشو کچرته دامظلوم مؤمن بدله اوانتقام اخلي نوالله جَلَّ جَلَالُهُ به دَده امدادکوی اوپدی جمله کښ ترغيب دي عفوی اودرګذرته. چه الله جَلَّ جَلَالُهُ باوجود ددې چه قادرمطلق ذات دي هغه عفواودرګذرکوی. نوانسان چه دَهغه قدرت کامل ندي نوهغه ته په طريق اولی سره عفو اودرګذرنه کاراخستل پکاردی. اويامقصد دادي چه دي مظلوم اګرچه خپله بدله واخستله اوجهادئی اوکړو .ليکن پدی بدلی اخستلوکښ دَنفس دَطرف نه دَانتقام جذبه خامخاوی نودااګرچه من وجه دَنفسانی جذبی تکميل دي خوالله جَلَّ جَلَالُهُ معاف کړيدي اوحضرت تهانوی رحمه الله فرمائي چه عفواومغفرت دلته راجع دی عدم مراعات ته په بدله کښ. يعنی دي مظلوم ته دومره بدله اخستل پکاروه څومره چه پده باندی ظلم شويدي، خودامظلوم کله کله په اجتهاد دَدي مماثلت کښ خطاء شی اوزياتی ورنه اوشی نوپدی اجتهادي خطاء باندی دَالله جَلَّ جَلَالُهُ دَطرف نه څه مواخذه اوګرفت نيشته دي

**فائده** دَمماثلت دارعايت په سلسلی دَجهاد کښ نيشته دی. بلکه داصرف په معاشرتی معاملاتوکښ دي.لکه قصاص وغيره شو .دغه شان دَدينه هغه بدلی هم مستثنی دي کوم چه په هرحالت کښ دَقبيلی دَمعصياتونه دي لکه پلاربچی اووهی ياورته کنځل اوکړی نوبچی ته بدله ورکرځول حرام دی. يادغه شان دَچاسره زنااوکړي شی نودهغی بدله په زناسره ورکول حرام دی

ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ وَاَنَّ اللّٰهَ

دامددپدي چه دي چه بيشکه الله تعالیٰ داخله وي شپي لره په ورځی کښ اوورننه باسي ورځی لره په شپه کښ اوبيشکه الله تعالیٰ

سَمِيْعٌ بَصِيْرٌ ۞ ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ

څه اوري هرڅه ويني.دامددپدی وجه دي چه بيشکه الله تعالیٰ برحق معبود دي اوبيشکه هغه چه دوئ بندګی کوي بلنه ورنه کوي

مِنْ دُوْنِهٖ هُوَ الْبَاطِلُ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿٦٢﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ

سیوا دالله ﷻ هغه باطل دي اوبیشکه الله ﷻ بلند دي لوئ ذات دی. آیا نه ګوری ته چه بیشکه الله ﷻ راورولیدی

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۫ فَتُصْبِحُ الْاَرْضُ مُخْضَرَّةً ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَطِيْفٌ خَبِيْرٌ ﴿٦٣﴾ لَهٗ

داسمان دطرف نه اوبه باران پس شي صباله زمکه شنه بیشکه الله ﷻ مهربان دي خبرداردی. خاص دهغه په اختیارکښ دی

مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿٦٤﴾

هغه څه چه په اسمانونوکښ دی اوهغه څه چه په زمکه کښ دی اوبیشکه الله ﷻ صرف هغه بی حاجته ستائیلی شوي ذات دي

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ يُولِجُ﴾ ذلك سره اشاره ده نصرت اوامداد دمظلوم اومؤمن ته اودادليل ائی دي په دعوی دنصرت اوفتح باندی. اودڅاسره امداد کولو اوهغه ته فتح ورکولودپاره ددوه(۲)څیزونوضرورت وی. یو(۱)کمال قدرت او(۲)بل کمال علم. نوکمال قدرت دالله ﷻ ذکرکیږی په ایلاج سره. چه دالله ﷻ دقدرت یوه نمونه داده چه شپه په ورځی اوورځ په شپی باندی بدله وی،شپی پسی ورځ اوورځی پسی شپه راولی. نودغه شان پدی هم قادردي چه یوجماعت په بل باندی غالب کړی. اوشمول وکمال علم دالله ﷻ ثابت شوپدی جملی سره چه.

﴿وَأَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ﴾ یعنی الله ﷻ په صفت دسمع اوعلم سره متصف دي دمظلوم فریاداوری. اودهغه په امدادکولوباندی پوهیږی

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ﴾ دادلیل لمی ذکرکیږی په دعوی دفتح اونصرت باندی. یعنی د امداد اونصرت دپاره اصل علت اولم داخبره ده چه الله ﷻ معبودبرحق دي اومشرکین چه دڅاعبادت کوی هغه معبودان باطله دی، نودمعبود برحق عبادت عابدینوته فائده ورکوی نولهذا ددوئ به غالب وی اودمعبودان باطلوعبادت عابدینوته هیڅ فائده نه ورکوی، اونه نی امدادکولی شی نوځکه به دوئ مغلوب وی اویاداعلت دي دماقبل دلیل دپاره چه الله ﷻ په کمال قدرت اوپه کمال علم باندی ځکه متصف دي چه هغه معبود برحق اومستحق دالوهیت دي اودمشرکینو معبودان،معبودان باطله دی. نولهذا څوك چه مستحق دالوهیت وی نوهغه به په هرڅه قادر اوعالم وی

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ﴾ دا په اخیرکښ یو ځلې بیانفي دشرك اعتقادي او ددلائلو عقلیو اعاده کیږي.

نو دا اول عقلی دلیل ذکرکیږي او دا دلیل عقلی افاقي جوی دي ﴿فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً﴾ فاء په فتصبح کښ یاد مطلق عطف دپاره ده، او تصبح په معنی دتصیرسره دي او یا فاء دتعقیب مع الوصل دپاره ده او تصبح په خپلی معنی سره دي. او دا حکم یعنی چه دشپې باران اوشی او بیا سهارله په زمکه کښ شینکی ښکاره شوی وی په نسبت سره بعضو مقاماتو ته دي لکه دحضرت عکرمه رحمه الله نه منقول دی چه په مکه او تهامه کښ دا سې کیږي او ابن عطیه رحمه الله فرمائي چه دسوس علاقه کښ هم ما داسې لیدلی دی، او هرکله چه اثر دباران باقي تردیروخته پوری او صرف دوریدلو وخت پوری خاص نوی نو ددي وجی نه عدول دماضی نه، مضارع ته او شو او تصبح او ئیلي شو او فاصبحت الارض او نو ئیلي شو ﴿لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ﴾ لام داختصاص دپاره دي او تقدیم دخبر دپاره دحصر دي یعنی زمکی او اسمانونه او په دیکښ دا ټول خیزونه دالله ﷻ په تصرف کښ او دهغه په قبضه قدرت کښ دی

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ وَالْفُلْكَ تَجْرِي |
| آیا نه ګوري ته چه بیشکه الله ﷻ په کارلګولی دی دپاره دفائدي ستاسو هغه څه چه په زمکه کښ دی او کشتئ رواني دی |
| فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ ۗ وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ أَن تَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ إِلَّا بِإِذْنِهِ ۗ |
| په دریاب کښ په حکم دالله ﷻ سره. او راتینګ کړیدي اسمان دراپریوتلو نه په زمکه باندی سیوا دحکم دهغه نه |
| إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٦٥﴾ وَهُوَ الَّذِي أَحْيَاكُمْ ثُمَّ |
| بیشکه الله ﷻ په خلکو باندی شفقت کوونکی رحم کوونکی دي او الله ﷻ هغه ذات دي چه ژوندی کړی یئ تاسو. بیا به |
| يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ۗ إِنَّ الْإِنسَانَ لَكَفُورٌ ﴿٦٦﴾ لِّكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا |
| مړه کوي تاسو بیا به ژوندي کوي تاسو. بیشکه انسان خامخا ناشکره دي دپاره دهري دلي مقرر کړیده مونږ یوه طریقه دبندګئ |
| هُمْ نَاسِكُوهُ ۖ فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْأَمْرِ ۚ وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ ۖ |
| چه دوئ چلیږي په هغي. بس دوئ دي نه کوي تاسره جګړې په دین کښ او ته دعوت ورکوه دخپل رب طرف ته. |

إِنَّكَ لَعَلَىٰ هُدًى مُّسْتَقِيمٍ ﴿٦٧﴾ وَإِن جَٰدَلُوكَ فَقُلِ ٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا

یقیناً ته خامخائی په هدایت برابر باندی او کچري دوئ جګړه کوي تاسره پس اوایه چه الله ﷻ ښه پوهه دي په هغه کارونو

تَعْمَلُونَ ﴿٦٨﴾ ٱللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ

چه تاسوئی کوئ. الله ﷻ به فیصله اوکړي په مینځ دستاسوکښ په ورځ دقیامت په هغه څیزکښ چه تاسوئ په هغي کښ

تَخْتَلِفُونَ ﴿٦٩﴾ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِى ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ

اختلاف کوونکی. آیاته نه پوهیږی چه یقیناً الله ﷻ پوهه دي په هغه څه چه په اسمان کښ دی اوزمکه کښ دی

إِنَّ ذَٰلِكَ فِى كِتَٰبٍ إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٌ ﴿٧٠﴾ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا

یقیناً داټول په کتاب(لوح محفوظ)کښ دی، بیشکه دا په الله ﷻ باندی اسان دی او بندګی کوي دوئ سوا د الله ﷻ نه د هغه چاچه

لَمْ يُنَزِّلْ بِهِۦ سُلْطَٰنًا وَمَا لَيْسَ لَهُم بِهِۦ عِلْمٌ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴿٧١﴾

ندي نازل کړي شوي په هغي باندی هیڅ دلیل او دَهغه چاچه نیشته دوئ لره په هغي باندی علم او نیشته ظالمانو لره هیڅ مددګار

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ سَخَّرَ لَكُم﴾ داهم دلیل عقلی دي په نفی دَشرك فی التصرف باندی اوداعقلی افاقی دي مشتمل دي په علوی اوسفلی باندی. چه دَبروبحراواسمان دټولو امورومتصرف الله ﷻ دي. ﴿لَكُم﴾ لام دَپاره دَانتفاع دي اوتسخیر مطلب په کارباندی لګول اودَانسان دَپاره قابل انتفاع ګرځول دی.

﴿وَيُمْسِكُ ٱلسَّمَآءَ﴾ امساك مطلب دادي چه الله ﷻ په خپل قدرت سره بغیردَستنونه، راټینګ کړیدي. ﴿أَن تَقَعَ عَلَى ٱلْأَرْضِ﴾ دایاپه موضع دَنصب کښ بدل اشتمال دي دَالسماء نه اویامجروردي په تقدیردَحرف جرسره ای عن ان تقع علی الارض اویامفعوله دي اولفظ دَکراهة ورسره مقدردي یعنی لاجل کراهة ان تقع علی الارض. ﴿إِلَّا بِإِذْنِهِۦٓ﴾ غوره قول دادي چه مستثنی دَحکم دَمستثنی منه، نه په درجی دَمسکوت عنه کښ وی نولهذا ددې ایت نه دانه ثابتیږی چه

آسمان به دقیامت په ورځ په زمکه باندې غورځيږي اوکه نه؟ ددې ایت دوی سره څه تعلق نیسته دي. البته په نورو نصوصو سره داثابته ده چه اسمان به شليږي اوراتوليږي به

﴿وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَحۡيَاكُمۡ﴾ دادليل عقلي انفسي دي. درې حالاته دانسان پکښې ذکردي. انّ الانسان لكفورٌ دازجردي چه ددې عظيم انعاماتو اودلائلوذکرکولوباوجود انسان ناشکرې اوکفرکوي. ﴿لِّكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلۡنَا﴾ دااعاده دمضمون ثاني يعنې نفي دشرك فعلي ده اوتشجيع ده په دعوت ددين باندې. بغوي رحمه الله وغيره ذکرکړيدي چه کفاروبه مؤمنانوته وئيل چه كوم څاروی تاسومړکړئ يعنې ذبحه ئې کړئ نوهغه خوتاسوخورئ. خوكوم څاروى چه الله تعالى ئې مړکړي (ميته) نوهغه نه خورئ؟ نودهغې په جواب کښې داايت نازل شو. چه دهرامت دپاره الله تعالى يومخصوص شريعت اوذبحې يوه طريقه مقررکړيده چه دهغې مطابق هغوئ عمل کوي. نودمسلمانانوطريقه دذبحې جائزه اوموافق دشرع ده. اومشرکين چه دكوم شرك فعلي ارتکاب کوي نودايه يومذهب اودين کښې جائزندی، نوجعل نه مراد عام دي تشريعي وی یاتکويني وی. صحيح وی اوياغلط وی. نودکفارومسلك اوطريقه دذبحې تکويناً ده اوغلطه ده اودمؤمنانوطريقه دذبحې تشريعا اوصحيح ده. اومنسك په اصل کښې هغه ځائ ته وئيلې کيږي چه هلته خلك عادةً جمع کيږيويادخيرکاردپاره اويادبدکاردپاره اودي وجې نه مناسك حج ته مناسك وئيلې کيږي چه دغې مقاماتوته هرکال خلك ځي اوجمع کيږي اوغوره خبره داده چه دلته د﴿مَنسَكًا﴾نه مراد معنى مصدري ده. يعنې په معنى دطريقې اوشريعت سره يعنې دهرامت دپاره خپل خپل شريعت اوطريقه دذبحې وه چه هغوئ به په هغې باندې عمل کولو. لکه امت دموسى عليه السلام دپاره دين موسوی، امت دعيسى عليه السلام دپاره دين عيسوی وو ، اوامت محمديه على صاحبها الصلوة والسلام دپاره دين محمدی صلى الله عليه وسلم دي اوباقي پاتې شو مشرکين نودهغوئ داطريقه په يوشريعت کښې نيشته دي، او﴿فِى ٱلۡأَمۡرِ﴾نه مراد ياټول دين دي اويامعامله دذبحې ده.

﴿وَٱدۡعُ إِلَىٰ رَبِّكَ﴾ هرکله چه په دعوت سره ثبات اواستقامت على الدين حاصليږي نوددي وجې نه دممانعت دنزاع نه ورستو حکم په دعوت سره اوشو. ﴿إِنَّكَ لَعَلَىٰ هُدًى﴾ پديکښې اشاره ده نسخ دباقي اديانوته. ﴿وَإِن جَٰدَلُوكَ﴾ يعنې دظهورحق اولزوم حجت باوجود اوس بياهم دوئ

تاسره جهګړه اوبحث مباحثه کوی نودوی داجهګړه اوبحث مباحثه دضد اوعناد په بنياد ده نولهذا دمعاند دجهګړی نه خاموش شه. اومعامله ئی الله ﷻ ته اوسپاره. ﴿ٱللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ﴾ دااد خال الهی دپاره دتسلی دنبی ﷺ دي. چه دقيامت په ورځ به الله ﷻ ستاسوپه مينځ کښ عملی فيصله اوکړی. اوپديکښ اشاره ده چه معاند انسان سره بحث ومباحثه نده پکار. ځکه چه بحث ومباحثه دپاره داظهار دحق اوالزام دحجت وی. اومعاند ته حق ښه معلوم وی اوالزام دحجت ورباندی هم شوې وی ليکن دضداوعناد دوجی نه انکارکوی. نودهغه سره دبحث مباحثی څه فائده نوی

﴿أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ﴾ دادليل عقلی دي اومتعلق دي ددواړو مضامينو.نفی دشرك اعتقادی اونفی دشرك فعلی، سره. ﴿إِنَّ ذَٰلِكَ فِي كِتَٰبٍ﴾ په ذلك سره اشاره ده زمکی. اسمانونو اوهغه ټول امورو ته چه پديکښ واقع اوثابت دي اومرادپه کتاب سره لوح محفوظ دي. يعنی دازمکی، اسمانونه اوپديکښ ټول واقع کيدونکی امورپه لوح محفوظ کښ ليکلی شويدی﴿إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٌ﴾ پدی ذلك سره اشاره ده نوشته ئی تقديرته. يعنی پدی زمکو،اسمانونواوپه ټولو امورو باندی علم اوداټول په لوح محفوظ کښ ليکل الله ﷻ ته اسان دی ﴿وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ دازجردي اودلائلوسابقودپاره په منزله دنتيجی ده. مالم ينزّل به سلطاناً ددينه مراددليل وحی. نقلی دي. ومالیس لهم به علمٌ ددينه مرادعقلی دليل دي. يعنی مشرکانوسره په خپل شرك باندی نه نقلی دليل شته اونه عقلی دليل شته

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٍ تَعْرِفُ فِي وُجُوهِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا

اوکله چه تلاوت کړی شي په دوی باندی ایاتونه زمونږ ښکاره پيژنی ته به مخونودهغه کسانوکښ چه کفرئی کړيدی

ٱلْمُنكَرَ ۖ يَكَادُونَ يَسْطُونَ بِٱلَّذِينَ يَتْلُونَ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتِنَا ۗ قُلْ

خفګان نزدې دي چه دوی حمله اوکړی په هغه کسانوباندی چه لولي په دوی باندی ایاتونه زمونږ.نه اوايه

اَفَاُنَبِّئُكُمۡ بِشَرٍّ مِّنۡ ذٰلِكُمۡ ؕ اَلنَّارُ ؕ وَعَدَهَا اللّٰهُ الَّذِيۡنَ

آیا بس خبردرکړم تاسو ته په بدتر خبر سره ددې نه چه هغه اوردې. وعده کړېده دهغې الله ﷻ دهغې کسانو سره

كَفَرُوۡا ؕ وَبِئۡسَ الۡمَصِيۡرُ ۝

چه کفرئې کړېدې. او ډېربد ځائ دورګرځېدلو ورتللو دې دااور

﴿وَاِذَا تُتۡلٰى عَلَيۡهِمۡ﴾ دا هم زجر او شکوی ده، چه دوئ سره خو په شرك باندې څه دلیل نیشته دې خو کله چه قرآن لوستلې کیږي چه په هغې کښې دَاثبات دَتوحید دَپاره. واضح دلائل دي نو دَدوئ په مخونو کښې دَخفګان اثرات ظاهرشي. او نزدې وی چه دوئ په دې تلاوت کوونکو باندې حمله اوکړي.

﴿قُلۡ اَفَاُنَبِّئُكُمۡ بِشَرٍّ﴾ دا تخویف اخروي دې. یعنی دَقرآن تلاوت او دَتوحید بیان ستاسو دَپاره ذریعه دَغیظ وغضب ګرځي، لیکن څه تاسو ته دَیو بل داسې شي خبردرکوم چه هغه ستاسو دَپاره دَدینه هم زیات دَغیظ وغضب ذریعه ګرځي. چه هغه دَجهنم اوردې، چه ستاسو دَپاره تیارشوېدې او ﴿اَلنَّارُ﴾ خبردې دَمبتداء محذوفي دَپاره چه هو دې.

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسۡتَمِعُوۡا لَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيۡنَ تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ

اې خلکو بیانیږي یو مثال نو غوږ کیدئ هغې ته. بیشکه هغه معبودان چه تاسوئې عبادت کوئ سیوا دَ الله ﷻ نه.

لَنۡ يَّخۡلُقُوۡا ذُبَابًا وَّلَوِ اجۡتَمَعُوۡا لَهٗ ؕ وَاِنۡ يَّسۡلُبۡهُمُ الذُّبَابُ شَيۡــًٔـا

هرګزنشي پیداکولی دوئ یو مچ اګرکه دوئ ټول راجمع شي هغې ته.اوکچرې اوتختوی ددوئ نه مچ څه څیز

لَّا يَسۡتَنۡقِذُوۡهُ مِنۡهُ ؕ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالۡمَطۡلُوۡبُ ۝

نونشي خلاصولی دوئ هغه څیزدَدې مچ نه. کمزورې دې غوختونکې او دَچانه چه غوختنه کیدې شي

﴿يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ﴾ دَسورة دَابتداء نه تردې ځائ پورې اثبات دَتوحید او نفی دَشرك اعتقادي اوفعلي اوشوه په دلائل نقلیه، عقلیه سره اوس نفی دَشرك دیو مثال په ذریعې سره

کیږي. اودَدې مثال تعلق ددواړو مضامینوسره دې البته تعلق ئې دَمضمون اول سره بالذات اومضمون ثانی سره بالتبع دې اومثال مصدرکول کوپه حرف نداء سره اوحرف نداء اومنادی له په مینځ کښې فصل په ایهاسره راوړل ټول دَپاره دَاستحضاردې. چه ډیرمهتم بالشان مثال ذکرکیږي. ښه په غورسره ئې واورئ، اوضرب په ډیرمعنوسره راځی، دلته په معنی دَبیان سره دې اومثل یاپه معنٰی دَعجیب اوبدیع سره دې یعنی دَدې معبودان باطلویوعجیب حالت بیانیږي. اویامثل په معنٰی دَمثال سره دې. یعنی ذکردذباب په طریقی دَمثال سره دې خلاصه دَمثال داده چه مشرکین چه کوم معبودان باطله دَالله ﷻ سره شریکه وی اوعبادت ئې کوی اوامدادتنه غواړی نوهغه دومره کمزوری دی کچرته ټول راجمع شی نودَیومچ غونډې کمزوری مخلوق هم نشی پیداکولی. پیداکول خولری خبره ده بلکه داکمزوری مخلوق کچرته دَدې معبودنه څه شی په خلبه کښې یاپه پنجوکښې اوتختنه وی نودَدوئ دومره وس اوطاقت نوی چه هغه څیزتنه واخلی. نودومره کمزوری شی ته معبودوئیل اودَهغه نه دَامداد امیدلرل لوئ حماقت اوجهالت دې. چه هغه ځان دَمچ نه نشی بچ کولی نوستاسوامدادبه څه اوکړی اوذباب ته ذباب یادَدې وجی نه وئیلې کیږی چه دامرکب دې دَذب او اب نه ذب معنٰی ده شړل، اواب معنٰی ده، انکارکول. نومچ هم خلك دَنفرت دَوجی نه شړی اودې انکارکوی بیاییابه راځی، کلماذب لاستقذاره آب لاستکباره(مدارك) اویا دامشتق دې دَ ذبذبة نه په معنی دمتحرك سره نومچ هم یوطرف ته اوبل طرف ته مسلسل په حرکت کښې وی

اودلته په مثال کښې تخصیص دَذباب دَډیروو جوهاتونه دی(۱)مشرکینوبه بتانوته متهیانی(شیرنی) ایخی وه اودَهغوئ په جسمونوباندی به ئې زعفران لګولی وو نوپه هغی پسې به مچان ډیرراتلو . نوځکه ذکردَمچانواوشو(۲)مچ قلیل الاعضاء حیوان دې ځکه چه دَده اعضاء دَماشی نه هم کم دې.نوچه دامعبودان باطله قلیل الاعضاء حیوان نه پیداکولی شی اونه ئې مقابله کولی شی نوستاسوبه څه امداد اوکړی(۳)مچ قلیل الحیوة هم دې دَده دَزندګئ اکثرمدت څلوېښت ورځی وی(جمل)نوچه یومعبود دومره کمزوری وی چه هغه قلیل الحیوة حیوان نشی پیداکولی اونه ئې مقابله کولی شی نوتاسوته به څه فائده درکړی(۴)مچ په ټولوحیواناتوکښې اجهل حیوان دې خپل ځان په خپله په هلاکت کښې غورځوی اودَمهلکاتونه ځان نه بچ کوی اودغه شان احرص یعنی ډیرحریص هم دې، نودَجهالت اوحرص دَوجی نه دې زرهلاك کیږی نوچه

یو معبود دومره کمزوری وی چه هغه ددغه شان اجهل او احرص نه خان نشی بچ کولی نو دعابدینو به څه امداد اوکړی۵ پدیکښی دعابدینو او منجورانو ذم ته اشاره ده چه دامنجوران دمچ پشان جاهلان او قابل دنفرت دی

﴿فَٱسْتَمِعُواْ لَهُۥٓ﴾ استماع مستلزم دې انصات لره. اوځکه حافظ ابن کثیر ترجمه داستماع په انصات سره کړیده ای انصتوا وتفهموا (ابن کثیر) ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ﴾ دابیان دمثال دې او په ﴿تَدْعُونَ﴾ کښی خطاب کفارو او مشرکینو ته دې ﴿ضَعُفَ ٱلطَّالِبُ﴾ طالب نه مراد یاصنم یعنی بت دې او مطلوب نه مراد مچ دې او یادطالب نه مراد عابد دې او مطلوب نه مرا معبود من دون الله دې یعنی داعابد دعقل په اعتبار سره دومره کمزوری دې چه دغیر محل نه حاجت پوره کول غواړی. او معبود ئی ځکه کمزوری دې چه خپل عابد ته هیڅ هم نشی ورکولی

**فائده** صاحب دروح المعانی ددې ایت په فوائدو کښی باب الاشاراة کښی لیکلی دی. وفی قوله تعالی ان الذین تدعون اشارة الی ذم الغالین فی اولیآء الله تعالی حیث یستغیثون هم فی الشدة غافلین عن الله تعالی، وینذرون له النذور. والعقلاء منهم یقولون انهم وسائلنا الی الله تعالی وانما ننذرهم لله عزوجل ونجعل ثوابه للولی ولایخفی انهم فی دعواهم الاولی اشبه الناس بعبدة الاصنام القائلین انمانعبدهم لیقربونا الی الله زلفی.....ومنهم من یثبت التصرف لهم جمیعًا فی قبورهم.....ومنهم من یزعم انهم یخرجون من القبور ویتشکلون باشکال مختلفة. وعلماؤهم یقولون انماتظهر ارواحهم متشکلة وتطوف حیث شاءت. وربماتشکلت بصورة اسد اوغزال اونحوه اونحوه، وکل ذلك باطل لااصل له، فی الکتاب والسنة وکلام سلف الامة وقدافسدعلی هولاء علی الناس دینهم (روح ص۲۱۳ ج۱۲).

یعنی پدی ایت کښی رددې په هغه خلکو باندی چه غلو او تجاوز کوی په حق داولیاء کښی چه دتکلیف په وخت کښی دهغوئ نه امداد غواړی او دالله ﷻ نه غافل وی او داولیاؤ په نوم باندی نذرونه ورکوی. او پوهه کسان نی داوائی چه دامونږ وسیله ګرځوو الله تعالی ته او مونږ خونذر دالله ﷻ دپاره ورکوو او ثواب ئی ولی ته بخو. لیکن دوئ په دې خپلی دعوی کښی مشابه دی دمشرکانو سره. چه هغوئ به داوئیلو چه مونږ ددې بتانو عبادت اودوئ په نوم باندی نذرونیاز ددې دپاره ورکوو چه الله ﷻ ته خان قریب کړو. او ځنی په دوئ کښی داسی کسان هم دی چه اهل قبورنه په ټولو امورو کښی تصرف ثابته وی او ځنی پکښی داسی هم دی چه داوائی چه اولیاء

دَقبرونونه. رااوخی او په مختلفو شکلونو باندی ظاهریږی، او ګرځی راګرځی چرته ئی چه خوښه شی. او کله کله په صورت دَزمری او کله په صورت دَغزاله هوسئ، کښی او کله دَبل شی په صورت کښی ظاهره شی. او دا ټول باطل خبری دی او واهیات دی مخالف دی دکتاب الله او دسنت او دَامت دبزرګانونه او دغه شان علماؤ دَخلکو دین او عقائد خراب کړل

مَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٧٤﴾ اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ

نه دي پيژندلی دوئ الله ﷻ لائق دپيژندلو دهغه. بيشکه الله ﷻ قوت والادي زورآور دي الله ﷻ غوره کوی د ملائکو نه

رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ﴿٧٥﴾ يَعْلَمُ مَا

پيغام رسوونکی او د انسانانو نه. بيشکه الله ﷻ اوريدونکی کتونکی ذات دی. عالم دی الله ﷻ په هغه څه چه

بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۗ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٧٦﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

وړاندي ددوئ دي او هغه چه ورستو ددوئ دي. او خاص الله ﷻ ته ورګرځولی شي ټول کارونه. ای ایمان والو

ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۩ ﴿٧٧﴾

رکوع کوئ او سجدي کوئ او بندګئ کوئ صرف درب خپل او کوئ دخیر کارونه ددی دپاره چه کامیاب شئ

﴿مَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ﴾ دا زجراو شکوی ده مشرکینو ته. چه دوئ الله ﷻ پريږدی دي او دَهغه صفات او دَهغه عظمت عظمت ئی هیر کړیدي او بیو کمزوری مخلوق ته ئی معبود وئیلی دي. نو دَ قدر نه مراد معرفت دي او معرفت په اعتبار دکنه سره ندي مراد ځکه چه دَهغی په نفی کښی موحد او مشرک برابر دي یعنی په کنه دَالله ﷻ باندی معرفت نه موحد ته حاصل دي او نه مشرك ته. بلکه معرفت په اعتبار دَاوصافو سره مراد دي یعنی هغه اوصاف چه الله ﷻ خان لره ثابت کړیدي مشرکینو په هغی باندی ایمان نیشته دي او دَهغی معرفت ئی ندي حاصل کړي

﴿اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ﴾ دا دَ بیوی خبری او دبیو توهم جواب دي چه بعض خلك وائی چه مونږ دَانبیاء کرامو، ملائکو او دَ اولیاؤ عبادت او دَدوئ نه خپل حاجتونه ځکه غواړو چه دوئ دَالله ﷻ نازه ولیدی او الله ﷻ دوئ ته اختیار ورکړیدي، حاصل دجواب دادي چه ملائك، انبیاء کرام او اولیاء الله دَالله ﷻ منتخب هستئ دی خوخدائ طاقت ورته ندي حاصل. دوئ دَصفات

دخدائ اومعبوديت نه خالي اوعاري دي. صفات دالوهيت صرف دالله ﷻ په ذات کښې منحصردی ﴿إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌۢ بَصِيرٌ﴾ دادرحقیقت دلیل دې دماقبل جواب دپاره.چه الوهیت صرف په ذات دالله ﷻ کښې ځکه منحصردې چه صفات دالوهیت په الله ﷻ کښې منحصردی. لکه سمع. بصر وغیره شو

﴿يَعۡلَمُ مَا بَيۡنَ أَيۡدِيهِمۡ﴾ داهم دلیل دې دماقبل دپاره چه په کل اموروباندی عالم صرف الله ﷻ دې بل چاته علم کلی ندې حاصل نولهذا ماسیوا دالله ﷻ بل څوك خدائ هم نشی جوړیدې ﴿وَإِلَى ٱللَّهِ تُرۡجَعُ ٱلۡأُمُورُ﴾ دابل دلیل دې دماقبل دپاره چه قادرمطلق. مختارکل اودټولو امورو متصرف صرف اوصرف الله ﷻ دې نولهذا الوهیت هم صرف په الله ﷻ کښې منحصردې

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ داپه اخیرکښې دسورت دمضامینو بالاجمال اعاده کیږی.

﴿ٱرۡكَعُواْ وَٱسۡجُدُواْ﴾ ددینه مرادټول مونځ دې خوهرکله چه دا دواړه اعظم ارکان دمانځه وو چه په هیڅ حالت کښې دمونځ کوونکی نه. نه ساقطیږی په خلاف دقیام اوقراءت نه چه دمعذورنه ساقط دې اوافضل ارکان دمانځه وو چه دعاموتکبرینونه،فرق په رکوع اوسجدې سره راځی. نه په قیام اوقرأت سره،نودې وجی نه تخصیص درکوع اوسجدې تخصیص اوشو . اوتخصیص دمونځ دوجی داهتمام شان نه دې. چه په ټولو عبادات بدنیه کښې مهتم بالشان مونځ دې

﴿وَٱعۡبُدُواْ رَبَّكُمۡ﴾ داتعمیم بعدالتخصیص دې بدنی اومالی ټول عبادتونه ته مراددې. یعنی عبادت صرف دالله ﷻ دپاره کوئ اونذروغیره دهغه په نوم باندی ورکوئ.

﴿وَٱفۡعَلُواْ ٱلۡخَيۡرَ﴾ دامزید تعمیم دې حقوق الله اوحقوق العباد ټولوته شامل دې اوپه حقوق الله کښې فرضی. وجوبی اونفلی ټولوعباداتو ته شامل دې، اوپه حقوق العبادو کښې دعامومخلوقاتوسره احسان کول. ښه اخلاق اختیارول وغیره ته شامل دې

**فائده** پدی ایت کښې دسجدې حکم دې نوپدی سره سجده تلاوت واجبه ده اوکه نده واجبه؟ پدیکښې اختلاف دې. دامام شافعی رحمه الله په نیزواجبه ده اواستدلال ئی کړیدې په روایت دعقبه بن عامر رضی الله عنه سره چه نبی پاك ﷺ ارشاد اوفرمائیلوچه سورة الحج ته په دوه،۲ سجدوسره فضیلت

ورکړې شویدي(رواه الترمذی، اودغه شان استدلال نی کړیدي په روایت دعمروبن العاص ﷺ سره.فرمائی چه نبی پاك ﷺ ماته په قرآن مجید کښ ...حلس ایاتونه دسجدي والاتلاوت کړل چه په هغی کښ دری ۳،په مفصلات کښ ...دوه ۲ په سورة الحج کښ وی(رواه ابوداود)اوپه مسلك دامام ابوحنیفه رحمه الله ... مالك رحمه الله ... سفیان ثوری رحمه الله کښ پدی باندی سجده نده واجبه.ځکه چه دده ... سجده ... معنی دمونځ دسجدي حکم دې اوددینه مرادسجده تلاوت نده. دقرآنی اسلوب نه دامعلومیږی چه په کوم ځائ کښ درکوع اوسجدي حکم په یوځائ کښ ورکړې شی نو ... سجدي نه مراد دمونځ والاسجده وی اوپه هغی سره به سجده تلاوت نوی واجبه. لکه ... سورة ال عمران ایت نمبر(۴۳)کښ دی اوددې تائید په اقردابن عباس ﷺ سره هم کیږی چه هغه فرمائی انهم کانوا فی اول اسلامهم یرکعون فی صلاتهم بلاسجود تارة ویسجدون بلارکوع اخری فامروا بفعل الامرین جمیعا(قرطبی،طبری) یعنی داسلام په ابتداء کښ به خلکو په مونځ کښ کله رکوع کوله اوسجده به ئی نه کوله اوکله به ئی سجده کوله اورکوع به ئی نه کوله نو پدی ایت سره، ددواړو دکولو حکم اوکړې شو

باقی روایت دعقبه بن عامر ﷺ دهغی په باره کښ امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه داروایت ضعیف دې ځکه چه په هغی کښ ابن لهیعه راوی دې چه هغه ته اکثرمحدیثینوضعیف وئیلی دی اودغه شان په روایت دعمروبن العاص ﷺ کښ عبدالله بن منین کلالی راوی دې چه هغه غیرمعروف دې اودهغه نه روایت کوونکی حارث بن سعیدثقفی دې اوهغه هم مجهول دې نوداروایت هم ضعیف دې.قابل استدلال ندې(والله اعلم).

وَجَاهِدُوْا فِي اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ ؕ هُوَ اجْتَبٰىكُمْ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ

اوجهاد کوئ په لاره دالله ﷻ کښ پوره جهاد .هغه غوره کړی یئ تاسو اونده ګرځولی الله ﷻ په تاسو باندی په دین کښ

مِنْ حَرَجٍ ؕ مِلَّةَ اَبِيْكُمْ اِبْرٰهِيْمَ ؕ هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ ۙ۬ مِنْ قَبْلُ

څه تنګسیا،تابع سئ ددین دپلار ستاسو چه ابراهیم ﷺ دې هغه نوم ایخودلی دې تاسو مسلمانان مخکښ ددی قرآن نه

وَفِيْ هٰذَا لِيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ شَهِيْدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ ۚ

په نورو کتابونو کښ اوپدی قرآن کښ ددی دپاره چه شي رسول ګواه په تاسو باندی.او تاسوشئ ګواهان په نورو امتونو باندی.

| فَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاعْتَصِمُوْا بِاللّٰهِ ؕ هُوَ مَوْلٰىكُمْ ۚ فَنِعْمَ الْمَوْلٰى |
|---|
| پس پابندی کوئ دمونځ اوور کوئ زکوة اوکلك شئ په دین د الله ﷻ پوري. هغه ستاسو مولی دې پس ښه مولی دې هغه |
| وَنِعْمَ النَّصِيْرُ ﴿۷۸﴾ |
| او ښه مددګار دې هغه. |

﴿وَجَٰهِدُواْ فِي ٱللَّهِ﴾ داترغيب الى الجهاد دې اوجهاد مصدرد مفاعلی نه دې مشتق دې یاد جُهد (بضم الجيم) نه اویاد جَهد (بفتح الجيم) نه جُهد او جَهد (بالضم و الفتح، دبعضو علماؤ په نیز دواړوکښ فرق نیشته دې لیکن اکثرعلماء فرمائی چه جُهد (بالضم) وسعت اوطاقت ته وئیلې کیږی اوجَهد (بالفتح) مشقت ته وئیلې کیږی اوباب مفاعله دپاره دمبالغی ده نومعنی ئی ده ډیرطاقت خرچ کول یاډیرمشقت کول اوچونکه په جهاد اصطلاحی شرعی کښ هم ډیرطاقت خروج کول اوډیرمشقت اچتول وی نودې وجی نه ورته جهادوئیلې کیږی.

حافظ ابن حجر رحمة الله عليه اونورو حضراتو دجهاد مختلف اقسام ذکرکړیدی، خلاصه ئی داده چه جهاد په دوه (۲) قسمه دی. یوظاهری اوبل باطنی. بیادظاهری جهاد دوه (۲) اقسام دی (۱) جهاد مع الکفار (۲) جهادمع الفساق. دجهاد مع الکفارعموماً واصالةً اطلاق په قتال باندی کیږی یعنی اعلاء کلمة الله دپاره دکفارو خلاف مسلح قتال کول. اوکله کله ئی اطلاق په دعوت باندی هم کیږی. اودجهاد مع الفساق عموماً اطلاق په دعوت اوامربالمعروف ونهی عن المنکرباندی کیږی لکه ابن ماجه په باب دامربالمعروف ونهی عن المنکرکښ حدیث ذکرکړیدې: افضل الجهاد کلمة عدل عندسلطان جائر.

اوجهاد باطنی هم په دوه (۲) قسمه دې (۱) جهادمع الشيطان (۲) جهادمع النفس. دجهاد مع الشيطان مقصددادې چه شيطان دانسان په زړه کښ مختلف قسم شکوک اوشبهات اچوی. اوګناهونه ورته خائسته کوی نوانسان ددغی شکوک وشبهاتونه ځان بچ اوساتی اوګناه باندی آماده نشی اودجهاد مع النفس مقصددادې چه انسان دخپل نفس په ناجائزاموروکښ اتباع اونکړی. اوخپل ځان ددین په زده کړه کښ اوپه دین باندی عملی کولوکښ مشغول اومصروف کړی. نودلته دجهاد نه عامه معنی مرادده. که دکفارو یاظالمانوسره قتال وی یاامربالمعروف اونهی عن المنکروی اویادنفس اوشيطان سره مجاهده اوریاضت وی

﴿حَقَّ جِهَادِهِۦ﴾داپه اصل کښ جهادا فيه حقا دي خواضافت دصفت اوشوموصوف نه اوحرف جر(ف) حذف کړې شو اواضافت دجهاد ضميرته اوشوچه راجع دې الله ﷻ ته. دوجې دادنې ملابست نه. چه جهاد محض دالله ﷻ درضادپاره اودهغه ددين داعلاء دپاره کيږی. اوحق الجهاد مقصد دادې چه په جهادکښ خپل پوره طاقت خرچ کړې شی. جان ومال هرڅه اولګولی شی، اودابن عباس ﷺ نه يوبل روايت کښ دی چه حق الجهاد دادې چه انسان دالله ﷻ په اوامروپوره کولو کښ دملامت کوونکی دملامتيانه ويره اونکړی. ومعنی حق الجهاد استفراغ الطاقة فيه قاله ابن عباس ﷺ، وعنه قال لاتخافوا فی الله لومة لائم فهوحق الجهاد(خازن) اوبعض فرمائی چه حق الجهاد. مقصد دادې چه دجهاد ټول افرادپه شرعی طريقی سره اداکړې شی. لکه قتال دپاره صحيح نيت اواعلاء کلمة الله عزم کول وغيره شو. ﴿هُوَ ٱجْتَبَىٰكُمْ﴾ دامربالجهاد دپاره دپنځو علتونو ذکردې. نودااول علت دې چه تاسو الله ﷻ دخپل دتائيداونصرت اودجهاد دپاره منتخب کړی ئی. نوځکه تاسوجهاد کوئ.لکه سورة ال عمران ايت نمبر(۱۰۹)کښ دی کنتم خيرامة اخرجت للنّاس.

﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ﴾دويم علت دې، يعنی په ټول دين کښ(چه هغی کښ جهاد هم دې)الله ﷻ ستاسودپاره تنګی اوسختی نده پيداکړې، بلکه ستاسودوس اوطاقت مناسب احکامات ئی په تاسوفرض کړيدې، نولهذا حکم دجهاد هم ستاسودوس اوطاقت نه بهرندې

﴿مِّلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَٰهِيمَ﴾غوره قول دادې چه ملة منصوب دې په فعل مقدرسره چه اتبعوا دې ای اتبعوا ملة ابيکم الخ اودريم علت دې دامربالجهاد دپاره، يعنی تاسودخپل پلارحضرت ابراهيم ﷺ دملة اودين اتباع اوکړئ چه هغه خپل جان اومال دالله ﷻ ددين دپاره وقف کړې وو،نوتاسوهم دپلارپه نقش قدم روان شئ. ﴿هُوَ سَمَّىٰكُمُ﴾ داڅلورم علت دې يعنی ستاسونوم مسلمان ايخودلی شويدې اودمسلمان مقصددادې چه تاسوبه هروخت دالله ﷻ حکم ته غاړه ايخی وی اودهغه په لاره کښ خپل جان ومال قربان کولوته هروخت کښ تياروئی. بعض مفسرين فرمائی چه ﴿هُوَ﴾ضميرابراهيم ﷺ ته راجع دې او ﴿مِن قَبْلُ﴾نه مراد قبل هذاالوقت دې اومقصد دادې چه تاسوته مسلمان نوم ابراهيم ﷺ درکړې وواوتاسودهغه دمقبول

دعا اثرني .حه ابراهيم الطَّيْلاً دعاکړي وه ربّنا واجعلنا مسلمين لك ومن ذريتنا امة مسلمة لك البقره

۱۲۸ نحو اكثر مفسرين فرمائي چه ﴿هُوَ﴾ضمیرراجع دي الله جل جلاله ته او ﴿مِن قَبْلُ﴾ نه مخکښي

کتابونه لکه تورات انجیل وغیره مراد دی او وفی هذا نه مراد قرآن دي. يعني مخکني

کتابونو کښې هم الله جل جلاله تاسو ته مسلمان لقب درکړيدي اوپه دې قرآن کښې هم تاسو ته دمسلمان نوم

درکړې شوېدې. اوپه دې کښې اختلاف دي چه داتسميه وصفي ده او که علمي ده غوره مسلك دادې

چه داتسميه علمي نده يعنى داعلم ندي. بلكه تسميه وصفي اوصفتي ده لکه په روايت دنسائی

سنن کښې ددې ايت په تفسيرکښې دحارث اشعری رضي الله عنه نه روايت نقل کړيدي فرمائی چه رسول

الله ﷺ ارشاد وفرمائيلوچه څوك دجاهليت په نومونوسره اوازونه اوبلنه کوی نوهغه به دجهنم

خشاك وی نو يوکس عرض اوکړو چه يارسول الله ﷺ! اګرکه داکس روژې نيسي اومونځونه

کوی .نبی کريم ﷺ اوفرمائيلو هاؤ. اګرکه دې روژې نيسي اومونځونه کوی تاسويوبل په هغه

نومونوسره رابلئ چه تاسو ته الله جل جلاله ايخودلی دي،مسلمين. مؤمنين. عباد الله. نومعلومه شوه

چه مسلمان تسميه دي امت دپاره علم ندي بلکه وصف اولقب دې.

﴿لِيَكُونَ ٱلرَّسُولُ شَهِيدًا﴾ حضرت شيخ الهند رحمه الله اوحضرت عثمانی رحمه الله دلته شهيد په

معنى دمعلم سره اخستی دي اودايت مقصددادې چه پدې کښې پنځم علت دجهاد ذکرکيږی چه

تاسوجهاد ځکه کوئ چه ستاسوپيغمبرحضرت محمد ﷺ هم ددنيادپاره معلم وو اوتبليغی

جهادئی کوو ،نولهذاتاسوهم دخپل پيغمبر ﷺ اتباع اوکړئ پيغمبر تاسوته تعليم درکړو تاسوئی

نورو اقواموته ورکړئ حضرت عثمانی رحمه الله فرمائی: *گویاجو مجد وشرف اس کو(امت کو) ملاہے اسی وجہ سے ہے کہ یہ دنیاکیلئے معلم بنی اور تبلیغی جہاد کریں.*

عامومفسرينوشهيد په معنى دګواه سره اخستی دي يعنی تاسوبه دقيامت په ورځ په

نورامتونو باندی ګواهی ورکوئ اودهغوئ دانبياء کرامو په حق کښې به ستاسوګواهی قبليږی.

نوستاسوداګواهی قبليدل به هم ستاسودپيغمبر دوجې نه وی. هغه به ګواهی ورکوی چه تاسوته

ئی دالله جل جلاله ددين تبليغ کړيدي نودااعزاز اواکرام ددې وجې نه دې چه تاسودالله جل جلاله په لاره کښې

جهاد اوکړئ اودې شهادت تفصيل په سورة البقرة ايت نمبر(۱۴۳)کښې تيرشويدې

﴿فَأَقِيمُوا ٱلصَّلَوٰةَ﴾ دا په اخیرکښې ذرې(۳)امورمصلحه ذکرکړې چه پدې امورو سره اصلاح دنفس اوتثبت فی الجهاد حاصلیږی اودغه شان پدیکښې اشاره ده چه مجاهد . اومبلغ نه دنورو خلکو داصلاح سره سره دخپل ځان اصلاح هم ضروری ده چه صرف دګفتارحدپورې غازي نوی بلکه کردارهم صحیح پکاردي

د ﴿فَأَقِيمُوا ٱلصَّلَوٰةَ﴾نه عبادات بدنیه مراددی. ﴿وَءَاتُوا ٱلزَّكَوٰةَ﴾نه عبادات مالیه مراددی او ﴿وَٱعْتَصِمُوا بِٱللَّهِ﴾نه قولی عبادات مراددی. یعنی تکلیف په وخت کښې اعتماد اوبهروسه په الله جل جلاله باندی کوئ اودغه نه امداد غواړئ اوسوال ورنه کوئ. نوهغه به ستاسو امدادکوی.قال ابن عباس رضي الله عنه سلوا ربکم ان یعصمکم من کل مایکره(بحر).

﴿هُوَ مَوْلَىٰكُمْ﴾دسورت ابتداء په تخویف سره شوې وه اواختتام ئی په بشارت سره کیږی. نوپدیکښې اشاره ده چه څوك دامذکورامورخپل کړی،یعنی مونځ په پابندئ سره کوی. زکوة ورکوی اودالله جل جلاله دین ئی مضبوط نیولی وی اوپه سختئ سره وربانذی عمل کوی نو الله جل جلاله به په هره سخته کښې دده امداد کوی اودغه شان دقیامت دسختیونه به ئی هم حفاظت اوکړی. ر ب اجعلنامن مقیمی الصلوة وموتی الزکوة والمعتصمین بك واجرنا من خزی الدنیا وعذاب الاخرة، انت مولانا وناصرنا فنعم المولی انت ونعم النصیر، امین ثم امین یارب العلمین، وصلی الله علی النبی الامی وعلی آله وصحبه وسلم.

تم تفسیرسورة الحج بفضل الله تعالی وبمنته ۲۱ رمضان المبارك یوم الجمعة سنه(۱۴۳۳ھ)مطابق ۱۰ اگست سنه(۲۰۱۲ء).

| ركوع | سورة المؤمنون مكية | آيتونه |
|---|---|---|
| ۶ | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۱۱۸ ۱۱۹ |

خاص په نوم د الله سره چه بيحده مهربان او ډير رحم کوونکي دي شروع کوم

## رقمها حسب التسلسل (۲۳) وحسب النزول (۷۴)

سورة المؤمنون مکی سورت دي.ترتيب نزولی کښ څلوراويايم نمبرسورت دي اوپه ترتيب قرآنی کښ ديرويشتم(۲۳) نمبرسورت دي.سورة الانبياء نه وروستو اوسورة السجدة نه مخکښ نازل شويدي،زمانه دنزول ئی دور متوسط دمکی دي.(۱۱۸ يا۱۱۹)اياتونو ،شپږو رکوعاتو او(۱۸۴۰)کلماتو او(۴۸۰۰)حروفو باندي مشتمل دي

**ربط:** دسورة المؤمنون دماقبل سره ربط اسمی دادي چه په سورة الحج کښ اعلان دحج اوشو عاموخلکو ته.په سورة المؤمنون کښ دغه حکم منونکو اوحج ته راتلونکوخلکواوصاف بيانيږی

**ربط معنوی:** دسورة المؤمنون دماقبل سره ربط په اعتباردمضمون سره متعددو وجوهاتوسره دي:(۱)دسورة الحج په اخيرکښ مؤمنانو ته څواوامر ذکرشو اوپه هغې باندي اميددفلاح مرتب کړي شوي وو،چه﴿يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ارْكَعُوْا ـــ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ (۷۷) اوپه سورة المؤمنون کښ دمؤمنانو يوڅواوصاف ذکرکيږی اوپه هغې باندي تحقق دفلاح مرتب کيږی چه ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ﴾(۲)دسورة الحج په ابتداء کښ تخويف وو په عذاب اوزلزلي دقيامت سره.دسورة المؤمنون په ابتداء کښ دسختئ اوعذاب دقيامت نه دنجات طريقه اوعلاج بيانيږی(۳)په سورة الحج کښ رد وو په شرك اعتقادی اوشرك فعلي باندي. په سورة المؤمنون کښ په شرك اعتقادی باندي مزيد ردکيږی اوعلی سبيل الترقی دذوئ مزيد نورغلط عقائداورسمونه ذکرکيږی چه﴿وَلَهُمْ أَعْمَالٌ مِّن دُوْنِ ذٰلِكَ﴾ (۲۲)اوپه هغې رد کيږی اودغه شان دنفي دشرك فعلي بالاجمال اعاده کيږی

**خلاصه مضامين**. دَسورت دمضامينو مختصرخلاصه داده چه دا سورت دوه (۲) حصونه منقسم دي يوه حصه دَشروع نه ترايت نمبر (۷۷) پورې ده اوبله حصه دَايت نمبر (۷۸) نه تراخيره پورې ده. په اولې حصې كښې درې (۳) عقلي دلائل شپږ نقلي دلائل اوپه ابتداء كښې دَعذاب نه بچ كيدلوطريقه اوپه مينځ كښې څه زجرونه ذكركيږي. اوپه دويمې حصې كښې په نفي دَشرك اعتقادي باندې څلور عقلي دلائل چه په هغې كښې يوتفصيلي غيراعترافي دې اودرې (۳) پكښې على سبيل الاعتراف من الخصم دي اوڅه پكښې زجرونه. تخويفونه اوبشارتونه ذكركيږي اوپه اخيركښې دَسورت خلاصه بيان كړې شويده

تفصيل ئې دادې چه دَايت نمبر (۱) نه ترايت نمبر (۱۱) پورې دعذاب نه دبچ كيدلوطريقه بيانيږي اوايت نمبر (۱۲) نه تر (۱۴) پورې اول دليل عقلي انفسي په توحيدباندې ذكركيږي. په ايت نمبر (۱۵- ۱۶) كښې دَانسان دَزندګئ مزيد دورونه اوتخويف بيانيږي. دَايت نمبر (۱۷) نه ترايت نمبر (۲۰) پورې په توحيدباندې دويم دليل عقلي ذكركيږي. ايت نمبر (۲۱- ۲۲) كښې دريم دليل عقلي دې. دَايت نمبر (۲۳) نه ترايت نمبر (۳۰) پورې اول دليل نقلي ذكركيږي دَپاره دَنفي شرك في التصرف والبركة. دَايت نمبر (۳۱) نه تر (۴۱) پورې دويم دليل نقلي تفصيلي ذكركيږي. دَايت نمبر (۴۲) نه تر (۴۴) پورې دريم دليل نقلي ذكركيږي خواجمالي دې. دَايت نمبر (۴۵) نه تر (۴۹) پورې څلورم دليل نقلي تفصيلي دې، په ايت نمبر (۵۰) كښې پنځم دليل نقلي دې دعيسى عليه السلام نه، اوپه ايت نمبر (۵۱- ۵۲) كښې شپږم دليل نقلي اجمالي ذكركيږي دَتولو انبياء كرامونه. اوبيادَايت نمبر (۵۳) نه تراخردَحصې اولې يعنى ايت نمبر (۷۷) پورې څه زجرونه دي. په مينځ كښې دكفاروحالات اواوصاف بيانيږي اوبيادمؤمنانوحالات ذكركيږي اودهغې امور تلاثه شده كيږي كوم چه دَسورت په ابتداء كښې دي اوپه اخيركښې څوتخويفات دي

اودَايت نمبر (۷۸) نه دويمه حصه دَسورت ده. نودَايت نمبر (۷۸) نه ترايت نمبر (۸۰) پورې اول دليل عقلي دې. ايت نمبر (۸۱) نه تر (۸۳) پورې زجرونه دي. دَايت نمبر (۸۴) نه تر (۸۹) پورې درې (۳) دلائل عقلي على سبيل الاعتراف من الخصم ذكركيږي، په ايت نمبر (۹۰) كښې زجردې. په ايت نمبر (۹۱- ۹۲) كښې تفريع ده په دلائلو اوذكر ددعوى دَسورت ده. په ايت نمبر (۹۳- ۹۴- ۹۵) كښې تخويف دنيوي دې، په ايت نمبر (۹۶- ۹۷- ۹۸) كښې طريقه ددعوت وتبليغ ذكركيږي اودَايت نمبر (۹۹) نه تر (۱۰۱) پورې تخويفات دي، په ايت نمبر (۱۰۲) كښې مختصربشارت دې اوبيادَايت

نمبر ۱۰۳ نه تر ۱۱۵ پورې تخویفات دی. اوپه اخیری ایاتونوکښ خلاصه دسورت بطورثمره ذکر کیږی. اوپه ایت نمبر ۱۱۸ کښ امرپه دعاسره ورکولې کیږي

قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ ۝١ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خٰشِعُونَ ۝٢

بیشکه کامیاب دي مؤمنان هغه مؤمنان چه دوئی په خپلومونځونوکښ عاجزی کوونکي دي

﴿قَدْ أَفْلَحَ ٱلْمُؤْمِنُونَ﴾ دااوله حصه دسورت ده. ﴿قَدْ﴾ دپاره دتحقق اودثبوت دمتوقع دي. لکه څرنګه چه لمّا دنفی دمتوقع دپاره دي اوقد چه په ماضي داخل شي نودتحقق سره سره په قرب دزمانی باندې هم دلالت کوي. یعنی زمانه ماضی حال ته قریب کوي حتی که کله کله ماضی په حکم دحال کښ کړی. لکه قدقامت الصلوة دلته ماضی په حکم دحال کښ ده. څکه چه اقامت دمونځ نه وړاندې کیږی نوپدی ځائی کښ هم ماضی (افلح) په حکم دحال کښ ده. یعنی مؤمنان په فلاح باندې دی اوفلاح وئیلی کیږی الظفربالمطلوب والنجاة من المرهوب یعنی مطلوب موندل اومرهوب نه نجاة حاصلول. نودفلاح په مفهوم کښ دوه (۲) څیزونه دی (۱) یوداچه مطلوب اوموندلې شي (۲) دویم داچه دکوم څیزنه خطره کیږی هغې نه نجات میلاؤشي اوخطره بالکلیه ختم شي اوپه حدیث دترمذی کښ دی چه حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی چه کله دا ایاتونه نازل شو اونبی پاک ﷺ قبلې ته مخ کړو اولاسونه ئی پورته کړل اودادعائی اوکړه اللهم زدنا ولاتنقصنا واکرمنا ولاتهنا واعطنا ولاتحرمنا وآثرنا ولاتؤثرنا علینا وارض عنا وارضنا. اوبیائی ارشاد اوفرمائیلو چه بیشکه ماباندې لس (۱۰) ایاتونه نازل کړې شویدی، چاچه پدی باندې عمل اوکړو نوجنت ته به داخل شي. نومعلومه شوه چه فلاح نه مراد جنت ته داخلیدل دی اوچونکه جنت ته په داخلیدلوسره انسان ته مرغوب اومطلوب حاصل شي اودخطرې اوتکلیف والاځائ یعنی جهنم نه بچ شي اودغه شان جنت ته داخلیدلو نه پس دهرقسم خطرې والاامورونه محفوظ شي لکه بیمارئ. بوډهاوالي. مرګ وغیره نوددې وجهې نه اصل اوحقیقي کامیابی جنت ته داخله ده اودا سې ذکرپه سورة آل عمران ایت نمبر ۱۸۵ کښ هم دي چه فمن زحزح عن النّار وادخل الجنّة فقدفاز اوددینه معلومه شوه چه ددنیا بادشاهی. صدارت. وزارت. ممبری اوعهده موندل څه کامیابی نده بلکه اُلټه زحمت اوعذاب دي چه حاسدین اومخالفین زیات شي اوهروخت دختمیدلو خطره ئی موجوده وي

﴿الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ﴾ داصفات دمؤمنينو ذکر کیږي چه پدې سره فلاح راځي اوصفات کله احترازیه اومخصصه وي اوکله مادحه غیراحترازیه وي.نوکچرته دا صفات احترازیه شي. نوالمؤمنون نه به کامل مؤمنان مرادوي.اوفلاح نه به هم کامله فلاح یعنې جنت ته دخولی اولی یعنې ابتداءً جنت ته داخلیدل به مرادوي. اومطلق فلاح بیانده مراد .ځکه چه عاصي مؤمن به هم جنت ته داخلیږي. اوکچرته داصفات مذکوره مادحه غیراحترازیه شي نوبیاد مؤمن نه هم عام مؤمن مراددې اودفلاح نه هم مطلق فلاح مرادده. برابره خبره ده که دخول ابتداءً وي یاانتهاءً. نواول صفت دمؤمن داذکرشوچه په مونځ کښې خشوع کوونکي وي اوخشوع ونیلي کیږي دزړه توجه ته نومحل دخشوع زړه دې اوکله چه په زړه کښې خشوع راشي نواثرئې په ظاهري اعضاؤکښې ظاهرشي اوټول بدن په سکون اواطمینان سره وي. اوددې وجهې نه په یوحدیث کښې دی چه نبی پاکﷺ یوکس اوکتلو چه مونځ ئې کولو اوپه مانځه کښې ئې په ږیره باندې لاس راخکلو نونبی کریمﷺ اوفرمائیلو چه لوخشع قلب هذا خشعت جوارحه(ترمذی) یعنې کچرته دده په زړه کښې خشوع وې نودده ظاهری اعضاء به هم په ارام اوسکون سره وو .اوددې وجهې نه فقهاءکراموچه کوم مکروهات دمانځه بیان کړیدی لکه په سترګوسره(یعنې دمخ اړولونه بغیر)بوطرف ته بل طرف ته کتل، پوزه صفاکول، ارګی کول، خله پټول،تشي نیول، څادرپه ځان رازړندول، کاڼړي لرې کول(بلاضرورته) اوډ ګوتونه ټکونه ویستل وغیره ټول منافی دی خشوع اوخضوع سره.اوپه مانځه کښې اصل مقصود خشوع اوخضوع ده اوددې وجهې نه یوحدیث کښې دی چه نبی کریمﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه کم مَن قائم حظّه من قیامه التعب والنّصب(اتحاف السادة المتقين) یعنې ډیرمونځ کوونکی داسې دي چه دهغوئ په حصې کښې دمانځه نه صرف سترپیا اوستومانتیاوي یعنې په مانځه باندې ورته څه اجراوثواب نه میلاویږي.اوخشوع په مانځه کښې هغه وخت حاصلیږی چه زړه دمانځه دپاره فارغ کړې شي،دنوروځیزونوتوجه ختم کړې شي اومانځه ته به نورو کارونو باندې ترجیح ورکړې شي. نوداسې مونځ دانسان دپاره ذریعه دراحت اوسکون ګرځي. لکه په حدیث دنسائی وغیره کښې دي چه نبی پاکﷺ اوفرمائیلو جعلت قُرّة عینی فی الصّلوة. اوپه یوبل روایت کښې دی چه په یوې موقعې باندې نبی پاکﷺ حضرت بلال‌ ته اوفرمائیل قم یابلال فارحنا بالصّلوة(ابن کثیر) اوکوم مونځ چه دخشوع نه خالي وي نوهغه مونځ ذریعه دراحت نه ګرځي بلکه مونځ کوونکی ئې په ځان یوبوج ګڼړی چه انتهاء ئې دمانځه په پریخودلوسره راځي. لکه

دحضرت حذیفه﷛ نه مروي دی چه اول ماتفقدون من دینکم الخشوع واخرماتفقدون من دینکم الصلوة. اودغه شان مضمون په یوحدیث کښ هم دی چه نبی کریمﷺ اوفرمائیلوچه قیامت ته قریب دئیولونه اول به دمانځه نه خشوع پورته کړې شي. حتی که چه پوره جماعت کښ به یو کس هم خشوع سره مونځ کوونکې به نوي اواضافت دمونځ مونځ کوونکوته اوشو یعنی فِی صَلَاتِهِمْ اوئیلې شو اوفی الصلوة یافی صلوة الله اونوئیلې شو ځکه چه مونځ اګرچه دالله﷯ اودبنده په مینځ کښ دتعلق یو ذریعه ده. خوپدې سره فائده صرف مونځ کوونکي ته میلاویږی اوهغه ترینه فائده اخلي اوالله﷯ دفائدې اخستلونه عالی اوبلنددې. نودې وجهې نه مونځ کوونکوته نسبت اوکړې شو قرطبی﷫ اونورحضرات فرمائی چه خشوع په مانځه کښ فرض ده اګرچه په ټول مانځه کښ لږوخت دپاره ولې نوي. لیکن اکثراهل علم فرمائی چه خشوع جزترکیبی دمونځ ندې. چه ددې په فوت کیدلوسره داعادې دمونځ حکم اوکړې شي البته دقبول کامل اوتام دپاره جزء دې حضرت تهانوی﷫ فرمائی چه خشوع دصحت صلوة دپاره موقوف علیه نده لیکن دقبول صلوة دپاره موقوف علیه ده اوظاهردآیت نه هم معلومیږی چه خشوع رکن اوجزء دمانځه ندې اوفرض نده ځکه چه دلته مونځ ظرف ګرځولې شویدې دخشوع دپاره اوخشوع مظروف ده نو دا دجزئیت تقاضانه کوي (والله اعلم)

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ ۝

او هغه کسان چې دوئ دبې فائدې خبرونونه مخ ګرځوي اوهغه کسان چې دوئی زکوة لره ورکوونکی دی په پابندئ سره

وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ۝ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ

اوهغه کسان چې دوئی دخپلوعورتونو حفاظت کوونکی دي. مګرپه خپلو بیبیانوباندې یاهغه وینځې چې مالکان دي

اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ۝ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ

خې لاسونه ددوئی پس بیشکه دوئی ندي ملامته کړې شوي. پس چاچه اولټوو پوره کول دشهوت سیواددینه

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ۝

نودغه کسان دوئ دحدنه تیریدونکي دي

﴿وَٱلَّذِينَ هُمۡ عَنِ ٱللَّغۡوِ﴾ دا دويم صفت دمؤمنانو دي. اولغو تفسير بعض حضراتو په معاصى سره کړيدې. اوبعض حضراتو په حرام سره کړيدې ليکن غوره خبره داده چه لغو هرعبث اوباطل کارته اوئيلې شي او په دې کښې ټول معاصى اوحرام کارونه لکه شرك. دروغ. غيبت. رقص، کنزل، بدعات رواجونه وغيره پکښې داخل دى. اودغه شان هغه کارچه مباح وي خوعبث اوبلافائدې وي هغې ته هم شامل دې او په مشهورصحيح حديث کښې دى. من حسن اسلام المرء ترك مالايعنيه(بخاري) او ﴿مُعۡرِضُونَ﴾ جمله اسميه راوړې شوه دپاره د لالت په دوام اوثبات باندې. چه دلغوکارنه خان بچ کول دادمؤمن دائمى صفت وي. داسې نه چه صرف يوخل يادوه (٢) خلې خان بچ کړى

﴿وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِلزَّكَوٰةِ فَٰعِلُونَ﴾ دابل صفت دې اوزکوة نه يازکوة دنفوس يعني تزکيه نفس مرادده، يعني خپل خان دشرك اوبداعمالونه پاك ساتى اويا ترينه زکوة ماليه مراددې اوتحقيقى قول دادې چه زکوة فرضيت په مکې کښې راغلې وو. اونصاب اومقاديرئى په مدينه کښې سنه ٢ھ کښې مقرر شوى وواوکله چه زکوة نه مراد زکوة ماليه وي نودزکوة نه مخکښې به لفظ د اداء مقدر وي اى لاداء الزكوة فاعلون(بحر) اويا ﴿فَٰعِلُونَ﴾ متضمن دې معنى دمؤدون لره خو مؤدون ذکرنکړې شو ځکه چه ﴿فَٰعِلُونَ﴾ لفظ په دوام دلالت کوي، په خلاف دمؤدون نه

﴿وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِفُرُوجِهِمۡ﴾ دابل صفت دفلاح موندونکو خلکودې چه دخپل عورتونوحفاظت کوي اوحفاظت دفرج بچوالې دې دحرام کارنه، لکه چاته خپل عورت ښکاره کول يازنا اولواطت کول

﴿إِلَّا عَلَىٰٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ﴾ دا دماقبل نه استثناء ده او په دې کښې کمال عفت طرف ته اشاره ده چه دوئ شهوات لري اوخواهش ئى وي خو بې محله ئى نه استعماله وي. په خپل محل کښې استعماله وي اوپه دې ايت کښې دسړي دپاره دوه (٢) قسمه زنانونه خپل حاجت اوخواهش پوره کولو اجازت دې يوزوجه يعني په نکاح شرعي سره دې دهغې نه دفائدې اخيستلو مالك ګرځولې شوې وى اودويم چه په ملك يمين سره دې مالك ګرځيدلې وي يعنى دده وينزه وي نووينزه نه فائده اخستل

بغیردنکاح نه جائزه ده اوپه علی کښې دمفسرینوډیراقوال راغلیدی خوغوره قول دادی چه دلته علی په معنی دمن ده سره دی یعنی الامن ازواجهم.

﴿فَمَنِ ٱبْتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ﴾ .ذلك سره اشاره ده منکوحه اومملوکه نه.دمنکوحه اومملوکه نه علاوه باقی چه څومره صورتونه دخواهش پوره کولودی ټول حرام اوناجائزدی.لکه زنا . لواطت. استمناء بالید .اومتعه اوداایت صریح دي په حرمت دمتعې کښې اوشیعه ګان داوائی چه چونکه متعه په نکاح کښې داخله ده نوددې وجهې نه ددې ایت نه دمتعې حرمت نه راځي.لیکن ددوئ دا خبره څکه باطله ده چه متعه بالکل نکاح ندې(۱)یوخوددې وجهې نه چه متعه په لفظ داتمتع سره وي یعنی یوسړې دیوې زنانه. نه دمخصوص پیسوپه عوض دیومخصوص وخته پورې په لفظ داتمتع سره فائده اخستل طلب کړی اوزنانه ورسره راضي شي. اولفظ دنکاح یاتزویج پکښې نوی اودې وجهې نه حضرت شاه ولی اللهؒ اوعلامه قرطبیؒ فرمائی چه متعه په حقیقت کښې بضع په اجرت باندې ورکول دی.(۲)اوبل ددې وجهې نه چه دنکاح اومتعې په مینځ کښې داحکاماتو اوداغراضو په اعتبارسره هم ډیرفرق دې،دنکاح نه غرض توالد اوتناسل وي اودمتعې نه غرض صرف خواهش پوره کول دی. دغه شان دنکاح نه غرض حفاظت دنسب وي اوپه متعه کښې اختلاط دنسب وي. دغه شان دنکاح نه غرض عفت اواصلاح دمعاشرې وي اوپه متعه سره فساد په معاشره کښې راځي.وغیرذلك اوددواړوپه احکاماتوکښې هم فرق دې په نکاح کښې توارث وي. یعنی کچرته خاوند مړشي نوښځه دمیراث مستحقه وي اوکه ښځه مړه شي نوسړې به دمیراث دهغې مستحق وي اوپه متعه کښې توارث نه وي بلکه دواړه دیوبل دپاره اجنبی وي. دغه شان په نکاح کښې چه کوم اولاد پیداشي دهغې نسب دخاوندنه وي اوپه متعه کښې اولاد دخاوندسره نه ملحق کیږی. دغه شان په نکاح کښې چه ترڅوخاونددطرف نه ښځې ته طلاق نوی میلاؤشوې نوښځه دخاوند دعقد نه نشي بهرکیدلې اوپه متعه کښې مخصوص وخت په

(۱) ابن العربی فرمائی چه دالس(۱۰) ایاتونه عام دی په حق دنارینو اوزنانوکښې لیکن دادوه(۲)ایاتونه خاص دی په نارینوپورې په دلیل دماملکت ایمانهم. سره څکه چه زنانه دپاره دخپل غلام سره مباشرت کول جائزندی. قرطبیؒ واقعه نقل کړیده چه دعمرؓ په دورکښې یوزنانه دظاهر اودعموم دایت نه استدلال اوکړو اودخپل یوخایسته غلام سره ئې زنااوکړه نوحضرت عمرؓ هغه دصحابه کرامو اوعلماؤپه مشورې سره څکه رجم نکړه چه هغې تاویل کړو اوعلم ورته نوو قرطبی ج۲ ص ۸۲.

ختميدلو سره ښځه خودبخود دَخاوندنه لاړه شي. دغه شان په نکاح کښې ښځې ته طلاق میلاویدلونه پس په ښځه باندې عدت تیرول ضروری وي .بغیر دَعدت دَتیریدلونه ښځه بل ځائ کښې نکاح نشي کولې. اوپه متعه کښې ښځې ته مکمل اجازت وي لکه دَخناورچه یو کس ورنه خپل خواهش پوره کړو او مخصوص وخت ختم شي نو دافورًا دبل کس سره عقد کولې شي. نو ددې وجهې نه داپه الا علی ازواجهم کښې نده داخله. بلکه داپه فمن ابتغی ورآء ذلك. کښې داخله ده. باقی دَمتعې متعلق مکمل بحث دَسورة النساء ایت نمبر (۲۴) کښې تیرشویدې

اودغه شان پدې ایت سره حرمت دَاستمناء بالید یعنی دَخپل لاس یادَخپل بدن په یوې عضوې سره شهوت پوره کړلو حرمت هم ثابت شو .ابن کثیر ﷫ روایت نقل کړیدې چه دَحضرت انس ﷛ نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه اوه (۷) قسمه کسان دی چه دَقیامت په ورځ به الله ﷻ دوئ ته .نه دَرحمت په نظر اوګورې اونه به دَدوئ تزکیه معافی اوکړی. اونه به دوئ دَنیکو کاروخلکو سره جمع کړی اودوئ به اورته دَاول تلونکوخلکو سره به داخل کړی. مګرکچرته دوئ توبه اوکړی اوځوك چه توبه کوي نو الله ﷻ دَهغه توبه قبلوي (۱) لاس سره شهوت پوره کوونکې (۲) بدکاري (غلام بازی) کوونکی (فاعل) (۳) مفعول یعنی بدکاري چه ورسره کیږی (۴) شراب باندې مداومت کوونکې (۵) مور او پلار وهونکې (۶) ګاونډی ته تکلیف ورکوونکې چې هغه پرې لعنت اوائی (۷) دګاونډي دَزنانه سره زناکوونکې (ابن کثیر)

وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ﴿۸﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ

اوهغه کسان چې دوئ دخپلو امانتونو اودخپلو وعدونو لحاظ کوونکي دي اوهغه کسان چې دوئ خپلو مونځونو باندې

يُحَافِظُوْنَ ﴿۹﴾ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْوٰرِثُوْنَ ﴿۱۰﴾ الَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْفِرْدَوْسَ ط

ساتنه کوي دغه کسان هم دوئ اغستونکي دي (حقداران دي) هغه وارثان چې میراث کښې به واخلي جنت فردوس

هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۱۱﴾

دوئ به په هغې کښې همیشه وي

*وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ* دانور (۲) دوه صفات دَفلاح موندونکو خلکو ذکرکیږي چې امانت کښې خیانت نه کوي اوپه عهد کښې خلاف ورزي نه کوي .او امانات نه مراد هغه ټول اموردي چې

انسان ته ذمه دارګرځولې شوې وی.که هغه دیني وي لکه تکالیف شرعیه یادنیوي وي لکه اموال مودعه او عهد نه مرادهغه اموردي چې انسان ئي په ځان باندې لازم اوګرځوي.که هغه حقوق الله وي یاحقوق العباد وي

﴿وَٱلَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَوَٰتِهِمْ﴾ دابل صفت دې.او محافظة علی الصلوة نه مراددادې چې مونځ په خپل وخت کښې.دپوره شرائطواوارکانواودادابودرعایت سره اداکړې شي اوهمیشوالې پرې اوکړې شي.دمکروهاتواومفسداتونه.بچ اوساتلې شي،نوخشوع په حالت دمونځ کښې باطني صفت دې.او حفاظت عام دې په حالت دمونځ کښې هم وی اودمونځ نه مخکښې هم وي اودغه شان ظاهري صفت دې دمانځه

﴿أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْوَٰرِثُونَ﴾ دابیان دفلاح دې اوبشارت دې او﴿أُوْلَٰٓئِكَ﴾نه مرادمؤمنان دي چې پدې اوصاف مذکوره باندې متصف وي او﴿أُوْلَٰٓئِكَ﴾مبتدامعرفه ده ﴿ٱلْوَٰرِثُونَ﴾خبرمعرف باللام دې اوپه مینځ کښې ضمیرفصل هم راوړې شونوټول په حصرباندې دلالت کوي.خوداحصرپه اعتباردعظمت شان.سره دې اوحصرحقیقي ندې یعني دوئ ددې مستحق دي چې وارثین ورته اوئیلې شي.الاحقاء بان یسموا وراثا دون من عداهم (مدارک)اودامقصدندې چې عصاة مؤمنین به جنت ته نه ځي

﴿ٱلَّذِينَ يَرِثُونَ ٱلْفِرْدَوْسَ﴾ داعطف بیان اویابدل دې دماقبل نه او فردوس په جنتونوکښې اعلی اوبهترین جنت دې.اوپه حدیث دبخاري کښې دي ان رسول الله ﷺ قال "اذاسألتم الله الجنة فاسألوه الفردوس فانه اعلی الجنة واوسط الجنة، ومنه تفجرانهار الجنة، وفوقه عرش الرحمن.یعني نبي پاک ﷺ اوفرمائیل چې کله تاسو دالله ﷻ نه دجنت سوال کوئ نوجنت الفردوس ورنه غواړئ چې داپه ټولو کښې اعلی اوبهترین جنت دې.اوددې نه نوروجنتونوته نهرونه جاري دي اوددې دپاسه دالله ﷻ عرش دې.باقي جنت ته میراث ولې وئیلې شویدی؟ نوددې تفصیل په سورة مریم آیت نمبر(۶۳)اوسورة الاعراف آیت نمبر(۴۳)کښې تیرشویدې

وَلَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ مِن سُلَٰلَةٍ مِّن طِينٍ ﴿١٢﴾ ثُمَّ جَعَلْنَٰهُ نُطْفَةً فِى قَرَارٍ مَّكِينٍ ﴿١٣﴾

اویقیناپیداکړیدی مونږانسان دچاڼکړې شوي خټې نه اوبیااوګرځولومونږ هغه نطفه په ځائی دقرارې مضبوط کښې

ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظٰمًا

بیا موجوړ کړه د نطفې نه ټکړه د وینې. بیا موجوړ کړو د ټکړې د وینې نه بوټی بس اوګرځولو موږ بوټی هډوکي والا

فَكَسَوْنَا الْعِظٰمَ لَحْمًا ۗ ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ خَلْقًا اٰخَرَ ۚ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ

بیا غستونه موږ هډوکی نه غوښه. بیا پیدا کړو موږ هغه په پیدائش بل سره. بس برکت ور کونکی دی الله ﷻ

اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ ⑭ ثُمَّ اِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ ⑮ ثُمَّ اِنَّكُمْ

چې ډېر ښه ښائسته شکل جوړوونکي دي بیا بیشکه تاسو ورستو ددې نه خامخا مړه کیږئ بیا بیشکه تاسو به

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ تُبْعَثُوْنَ ⑯

په ورځ د قیامت دوباره ژوندی کیږئ

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ﴾ دا اول دلیل عقلی دي. په دیکښې د انسان د زندګئ پنځه ادوار ذکر کړي شویدی (۱) خالص خاوره (۲) رحم مادر (۳) روح اچولو نه پس دنیوی زندګی (۴) برزخی زندګی (۵) اخروی زندګی. او بیا دویم دور یعنی مادر رحم والا دور په شپږو مراحلو باندې مشتمل دي (۱) منی (۲) علقه (۳) مضغه (۴) عظام یعنی هډوکی پیدا کیدل (۵) لحم یعنی په هډوکی باندې غوښه راتلل (۶) روح اچیدل او بهرته راتلل. او مقصد دادي چه د انسان د زندګئ او د وجود ټول تصرفات او حالات د الله ﷻ په اختیار او قدرت کښې دی، نو لهذا ستاسو کارساز او معبود هم صرف هغه دي

او ﴿الْاِنْسَانَ﴾ کښې الف لام د عهد دپاره دي او مراد تنه حضرت ادم ﷺ دي او سلالة هغه خالص ختې ته وئیلی کیږی چه په موټی کښې اونیولې شي او زور ورکړې شي نو په ګوتو نو کښې راووځي او ﴿مِنْ سُلٰلَةٍ﴾ کښې من ابتدائیه دی او په ﴿مِّنْ طِيْنٍ﴾ کښې من یا بیانیه دي او یا تبعیضیه دي. نو دا اول دور دي د تخلیق انسانی. او د حضرت ادم ﷺ د پیدائش اطوار هم مختلف وو چه د هغې تفصیل په سورة النحل ایت نمبر (۲۲) کښې تیر شویدی

﴿ثُمَّ جَعَلْنٰهُ نُطْفَةً﴾ دا دویم دور اوله مرحله ده. چه انسان د منی په صورت کښې د مور په رحم کښې وي. او ضمیر راجع دي اولاد ادم ﷺ ته او مرجع اګرچه حذف شده ذکر خو حکمه ضمن

دَالانسان کښ مذکوره، اوياپکښ صنعة الاستخدام دی چه ﴿ٱلۡإِنسَٰنَ﴾اسم ظاهره سره آدم‌علیه‌السلام مراددې. اوپه اسم ضميرسره ترينه اولاد ادم مراددی او﴿ قَرَارٍ ﴾ اګرچه مصدردې خودلته په معنی دَظرف يعنی مستقرسره دې او﴿مَّكِينٍ﴾په معنی دَمحفوظ سره دې. دامجازاً صفت د ﴿قَرَارٍ﴾د پاره واقع شويدې، ځکه چه ﴿مَّكِينٍ﴾صفت دَذی المکان يعنی نطفې دَپاره وي

﴿ثُمَّ خَلَقۡنَا ٱلنُّطۡفَةَ عَلَقَةً ﴾پديکښ مزيدپنځه نور مراحل دَدويم دورانسانی ذکرکيږی، علقه منجمدې وينې ته وئيلې کيږی نونطفه په مادررحم کښ څلويښت ورځې پرته وي، اوبياپکښ انقلاب راشي نوپه علقه باندې بدله کړې شي

﴿فَخَلَقۡنَا ٱلۡعَلَقَةَ مُضۡغَةً ﴾نوبياڅلويښت ورځې پس په علقه کښ انقلاب راشي اوپه مضغه باندې بدله کړې شي اوبياڅلويښت ورځې ورستوپدې مضغه کښ روح واچولې شي اودَ هغې نه پس بيادَنورو اعضاؤ تکميل کيږی، نودَروح اچولوپورې هره هره مرحله په څلويښت ورځوېوې چلې) باندې مشتمله وي، يعني دَيوې چلې نه پس انقلاب راځي اودَدې وجهې نه اسلافواو صوفياءکراموپوه چله دَحالت دَبدليدلو دَپاره نصاب مقرر کړيدې، اودَروح اچيدلوپورې داټوله دورانيه په څلورمياشتوباندې مشتمله ده نوددې وجهې نه بزرګان فرمائی چه انسان اصل مقصد ته دَراتلودَپاره هم کم ازکم څلورمياشتې دَالله‌ﷻ په لاره کښ لګول ضروري دي

﴿فَخَلَقۡنَا ٱلۡمُضۡغَةَ عِظَٰمٗا ﴾نوبيادَنورو اعضاؤ تکميل کيږی يعنی هډوکي پيداکړې شي

﴿فَكَسَوۡنَا ٱلۡعِظَٰمَ لَحۡمٗا ﴾اوبيادَهډوکي دَپاسه غوښه راخوره کړې شي، اوپديکښ اشاره ده چه دَانسان دَوجودقوام په هډوکي سره دې اوغوښه دَهډوکي دَپاره دَلباس حيثيت لري، نوچه هډوکې صحيح وي نوعضوبه کارکوي اوچه هډوکې خراب شي اګرچه غوښه صحيح وي نوعضو هم معطل شي اوکارکول پريدي

﴿ثُمَّ أَنشَأۡنَٰهُ خَلۡقًا ﴾دَدينه اجمالي طوردَروح اچولونه پس ترمرګ وختہ پورې ټول حالت مراددې

﴿فَتَبَارَكَ ٱللَّهُ أَحْسَنُ ٱلْخَٰلِقِينَ﴾دانتيجه ده دَدليل مذكور. او احسن ياپه معنى دَمضبوط اومحكم سره دې، يعنى دَحقيراوكمزورنطفي نه اللهﷻ مضبوط انسان پيدا كړو.اوياأحسن په معنى دَخائسته سره دې او ﴿ٱلْخَٰلِقِينَ﴾په معنى دَمصورين يامقدرين سره دې

**فائده نمبر۱**: په حديث دابن مسعود ؓ كښې دي چه رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائيلو ان احدكم ليجمع خلقه فى بطن امه اربعين يومانطفة ثم يكون علقةً مثل ذلك ثم يكون مضغة مثل ذلك ثم يرسل اليه الملك فينفخ فيه الروح... يعني په تاسوكښې هريوكس دَمورپه ګيډې كښې څلويښت ورځې دَنطفې په صورت كښې وي بيادغه شان يعنى څلويښت ورځې علقه په صورت كښې وي بيادغه شان مضغې په صورت كښې وي بيافرشته رااوليږلې شي هغه پكښې روح پوكړي اوهغې ته حكم اوكړې شي په ليكلو دَڅلورخبروسره(۱)دده رزق(۲)دده اجل(۳)دده عمل(۴)اودې به بدبخت وي كه نيك بخت. پس څمادې قسم وي په هغه ذات چه نيشته دى حقداردَبندګئ بل څوك سيوا دهغه نه.چه په تاسوكښې به يوكس عمل كوي دَجنتيانو حتَى چه دده اودَجنت په مينځ كښې به صرف يوګزفاصله پاتې وي نوپه ده باندې به تقديرغالب شي اودده خاتمه به دَجهنميانوپه عمل اوشي اوجهنم ته به داخل شي اويوكس به په تاسوكښې داسې وي چه دَهغه عمل به دَجهنميانو وي حتَى كه چه دده اودَجهنم په مينځ كښې به صرف دَيوګزفاصله پاتې وي خوتقديربه غالب شي اودده خاتمه به دَجنتيانوپه عمل اوكړې شي اودې به جنت ته داخل كړې شي

نودَدې ايت اوحديث په مينځ كښې په ظاهركښې تعارض دې. ځكه چه په حديث كښې ټول مراحل په(ثم) سره ذكرشويدى چه هغه دلالت كوي په تراخي باندې، نودَحديث نه دامعلوميږي چه دَدې ټولو مراحلوكښې تراخي ده، اوايت كښې اول اودويمه مرحله په ثمّ سره ذكرشويده اواخري مرحله په ثم سره ذكرشويده اونورباقي دري(۳)مراحل په(فاء)سره ذكرشويدى چه هغه په وصل او اتصال باندې دلالت كوي؟ نو جواب تنه دادې چه دَدې مراحلوپه مينځ كښې دورانيه څلويښت ورځې شته دې لكه حديث كښې تصريح هم ده اودَدې وجهې نه حديث كښې دامراحل په ثم سره ذكرشويدى، خوهركله چه دادورانيه دَدومره عظيم تبديلئ دَپاره په حقيقت كښې څه حيثيت نه لري،نودَدې وجهې نه په كلام الهي كښې دَدغې دورانيې اعتباراونكړې شوبلكه خالص دَاللهﷻ دَقدرت اعتباراوكړې شونوځكه "فاء" راوړې شوه چه ګويادادومره معمولي وقفه اودورانيه دَدومره عظيمې تبديلئ دَپاره په منزله دَعدم د وقفې ده خوبياهركله چه اول دوه(۲)مراحل او اخري مرحله

عقلاډېرزيات مستبعدوو.په خلاف دَدې نورو مراحلونه يعني ماده سلالة په ماده نطفې سره بدلول اوبيانطفه محض ځلوينبت ورځې پس په علقه باندې بدلول عقلا ډېره مستبعده خبره ده.
په خلاف دَتبديلۍ دَ علقې نه په مضغې سره چه دادومره مستبعده نده ځکه چه وينه کله منجمده شي نوظاهري شکل اوصورت ئې دَمضغې شي اودغه شان غوخه چه اوچه شي نوکلکوالي اومضبوط والي پکښې راشي. نوپديکښې اګرچه استبعاد شته دې خوډېرندې اوبيادَدې ټول مراحلو نه تيريدلونه پس يوخائسته اوحسين صورت والانسان پيداکيدل عقلا ډېرمستبعدوو.
نوځکه دادرې(۳)مراحل په(ثُمَّ)سره ذکرشو، دَپاره دَدلالت په استبعاد اوبعدرتبي باندې
**فائده نمبر۲** دَدې ايت نه معتزلو دَخپلو دوه(۲)مسائلو دَاثبات دَپاره استدلال کړيدې اول داچه انسانان دَخپلو افعال اختياريه خالق دی،ځکه چه دلته ﴿ٱلۡخَٰلِقِينَ﴾جمع ذکرشويده.نولهذا دَجمعې تقاضه داده چه خالقين ډيردی اوانسان هم خالق دې اودويم داچه دَدې ايت نه داهم معلومه شوه چه الله ﷻ خالق دَخيردې اودَشراودکفرندې
دَاول استدلال نه ئې جواب دادې چه خلق وئيلې کيږی هرهغه فعل ته چه دَيوفاعل نه قصداً اوارادةً صادرشوې وي.نودَدې وجهې نه دَخلق اطلاق په افعالو دَعبادو باندې شويدې لکه حضرت عيسى عليه السلام فرمائيلی وو:انی اخلق لکم،اودغه شان الله ﷻ فرمائی:وتخلقون افکا (عنکبوت:۱۷) ليکن فرق دادې چه کله دَخلق نسبت اوشي افعالو دَعبادوته نوهلته بياخلق په معنى دَايجاد المعدوم سره نه وي، بلکه په معنى دَمطلق فعل ايجاد اوصنعت سره وي ځکه چه دَنصوصونه ثابته ده چه خلق په معنى دَ ايجاد المعدوم صفت مختصه دَالله ﷻ دې اودَدې وجهې نه په عبد باندې اطلاق دَخالق بغيردَاضافة نه نشي کيدلې،لکه څرنګه چه دَرب اطلاق بغيردَ اضافة نه نشي کيدلې، نودَدې وجهې نه احسن الخالقين دلته په معنى دَاحسن الصانعين سره دې،او ياخلق په معنى دَاندازې اوتقديرسره دې نواحسن الخالقين په معنى دَاحسن المقدرين سره دې اويا په معنى دَمصورين سره دې،اوبعض حضراتو داکلام دَ قبيلې دَ فرض اوتقدير نه ګرځوليدې. يعني نورخالقين خونشته خوبالفرض کچرته وې نوبيا به هم الله ﷻ په دوئ ټولو کښې افضل وو.
اوباقي دويمه خبره نوچه کله خالقين په معنى دمصورين يامقدرين سره شونوڅه قسم اشکال پاتې نشو ، اودويم جواب ترينه دادې چه احسن په معنى دَ اتقن سره دې (والله اعلم)

**فائده نمبر۳** مفسرینو واقعه ذکرکړیده چه دنبي پاكﷺ په کاتبین کښ یوکاتب وو. چه نوم ئې عبدالله ابن ابی سرح وو. نونبی پاكﷺ په هغه باندې داایت تلاوت کوو دلیکلو دپاره نوچه کله ثم انشاناه خلقا اخر ته رااورسیدلو نودهغه دخولې نه بې اختیاره اووتلو چې فتبارك الله احسن الخالقين نونبیﷺ ورته اوفرمائیلو چه داهم اولیکه دادایت حصه ده نوهغه انکاراوکړواوبیائی ارتداداختیار کړو اوخلکوته ئې داوئیلو کچرته محمدﷺ ته وحي راځي اودې نبی وي نوماته هم وحي راغلیده اوځه هم نبی یم. یعنی موافقت ته ئې عین وحي نوم ورکړو اومکې ته لاړو. نوچه کله فتح مکه اوشوه نونبیﷺ دعام معافئ اعلان باوجود څنې کسان واجب القتل قرار کړی وو.نودده په باره کښ هم نبیﷺ اعلان کړې ووچې کوم ځائ کښ میلاؤ شي نوهلته ئې قتل کړئ.بیادحضرت عثمانؓ په سفارش سره نبیﷺ ورته امان ورکړو اوده بیاپه دغه ورځ ایمان راوړو اومخلص مسلمان شو.اګرچې په بعض روایاتوکښ دي چه دې په حالت دکفرکښ مړ شویدي. لیکن اول قول زیات راجح دې.

بعض مفسرین فرمائی چه دعبدالله ابن ابی سرح دارتداد واقعه په مدینه کښ شوي وه اودامذکور ایت مکي دې.ځکه چې سورة المؤمنون په مکه کښ نازل شویدې لیکن علامه الوسيؒ ترینه جواب کړیدې چې سورة او ایت اګرچه مکي دې اوپه مکه کښ نازل شویدې لیکن ممکنه ده چې په مکه کښ لیکلې شوي نوي اولیکلوحکم ده ته نبیﷺ په مدینه کښ ورکړې وو، اوده ته داایت یادهم نوو اونه ورته دنزول پته وه اوداهم ممکنه ده چې سورت دې مکي وي اومذکوره ایت پکښ مدني وي، لکه څرنګه بعضوعلماؤ څنی نورایاتونودې سورت په باره کښ وئیلی دی چه دامدنی دې

﴿ثُمَّ إِنَّكُم بَعْدَ ذَٰلِكَ﴾پدیکښ دریم،څلورم دور طرف ته اشاره ده چې دبرزخ زندګی ده اوپه ﴿ذَٰلِكَ﴾سره اشاره اطوارمختلفه بدیعه ته ده اواشاره بعیده ئې دبعدمنزلت دوجهې نه راوړې شوه.او ﴿لَمَيِّتُونَ﴾جمع ده میّت ده اوفرق په مینځ دمیّت(بالتشدید)اودمیت(بالتخفیف)کښ دادې چې په تشدید سره وئیلی کیږی هغه چاته چې مرګ ورته راغلې نوي په مستقبل کښ ورته راځي اوبه تخفیف سره هغه چاته وئیلې کیږی چې هغه مړ شوي وي اودمیّت یعنی بالتشدید سره مرادف لفظ دمائت هم دې، خودلته مائت اونه وئیلې شو ځکه چې هغه دلالت کوي په حدوث دصفت

دَموت باندي، اوميّت پـه دوام اوپـه ثبات باندي دلالت كوي نو لفظ دَ ﴿لَمَيِّتُونَ﴾ تاكيد اُونيلى شـويدى اودغـه شـان دَدي نـه عـلاوه پـدي جملـه كښ دوه (۲) نـور ادوات دَتاكيـد راوړي شـويدى. چـه (ان) دى پـه ابتـداء كښ اولام تاكيديـه دي پـه ﴿لَمَيِّتُونَ﴾ كښ ﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ دادَانسـان دَزندګئ اخري دوردي، چې دَمرګ نه پس بيابه دَ نفخ ثانيه سره راژوندى كيږئ

| ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَآئِقَ ۖ وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غٰفِلِيْنَ ﴿۱۷﴾ وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ |
| --- |
| اويقيناً پيداكړيدى مونږ پاسه دَستاسونه اوه (۷) لارې اونه يو مونږ دَمخلوق نه ناخبره اوراوروليي دي مونږ دَاسمان دَطرف نه |
| مَآءًۢ بِقَدَرٍ فَاَسْكَنّٰهُ فِي الْاَرْضِ ۖ وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍۢ بِهٖ لَقٰدِرُوْنَ ﴿۱۸﴾ |
| اوبه په اندازې سره پس اوسولى دى مونږ هغه اوبه په زمكه كښ .اوبيشكه مونږ په اوچولو دَهغې باندي يقيناچې قدرت لرونكي يو |
| فَاَنْشَاْنَا لَكُمْ بِهٖ جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍۢ لَكُمْ فِيْهَا فَوَاكِهُ كَثِيْرَةٌ |
| پس پيداكړل مونږ ستاسو دَپاره په اوبو سره باغونه دكجورو اودَانګورو .ستاسو دَپاره په هغې كښ ميوې ډيرې دي |
| وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿۱۹﴾ |
| اوبعضې دهغې نه تاسو خورئ |

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ﴾ دادويم دليـل عقلـي دي پـه توحيد بانـدي او دادليـل مشـتمل دي پـه دري (۳) اقسامو باندي، علوى، جوى. سفلي نو دا (علوى) دى يعنى ستاسو دَپاخه عظـيم الخلقـت مخلوق يعني آسمانونو خالق اومتصرف صرف الله ﷻ دي اودَهغې په ټولو امورو اوحالاتو باندي خبردارهم صرف الله ﷻ دي نو لهذا معبود هم صرف اوصرف هغه دي. اودَ ﴿سَبْعَ طَرَآئِقَ﴾ نه مراد اوه (۷) آسمانونه دى اوآسمانونو ته طرائق ځكه ونيلي كيږي چې دادَيوبل دَپاخه دى اوكوم شيزونه چې دَ يوبل دَپاخه وي (تهه به تهه) نو هغې ته طريقة او طرائق ونيلي كيږي (كشاف) اويا طرائـق جمع دَطريق ده لارې ته ونيلي كيږي نو آسمانونو ته طرائق دَدي وجهې نه ونيلي كيږي چې دامشـتمل دى په لارو دملائكو باندي. يعنى پديكښ دَملائكو دَپاره دَختلو اوراكوزيدلو لارې دى

﴿وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غَٰفِلِينَ﴾ خلق په معنى دَمخلوق سره دى اوغوره خبره داده چې دَدينه مراد ټول مخلوقات دى او ﴿غَٰفِلِينَ﴾ په معنى دَمهملين سره دى، يعنى دټول عالم اومخلوق الله ﷻ مهمل ندي پريخي بلكه الله ﷻ دَمقتضى حكمت موافق دَهرمخلوق حفاظت اوپه هغه كښ تصرف كوي.لكه اسمان ئى محفوظ كړيدي دَراغورزيدلونه،په مخلوقاتوباندې، دغه شان نورڅيزونه دى چې الله ﷻ دحكمت موافق دهغې تدبيركوي

﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ﴾ دادويمه حصه دَدليل عقلى ثانى ده داجوى دې اودَ﴿مِنَ السَّمَآءِ﴾ نه مراد جهت دَسماء يعنى بلندى مرادده اوپه ﴿مَآءً﴾ سره مراد خوږې اوبه دى اوددې خوږواوبودَپاره اصل ماده دَسمندراوبه دى الله ﷻ دَبخاراتو په صورت كښ دسمندرنه داماده اوچته كړى اوپيدې رفع اوتصعيدكښ الله ﷻ په دې اوبوكښ خوږلت پيداكړى، اوبيائى دَمخلوقاتو دَنفع دَپاره واپس زمكې ته رانازلى كړى ﴿بِقَدَرٍ﴾ جارمجرور دَمتعلق سره صفت دَ﴿مَآءً﴾ دې اوقدر نه مراد مقداردې يعنى يومعلوم مقدار موافق چې څومره مخلوقاتوضرورت وى اودهغوئ مصلحت پكښ وى

﴿فَأَسْكَنَّٰهُ﴾ دَدينه مراد دادې چې اوبه الله ﷻ دَپاڅه طرف نه رانازلې كړى اوبيائى دَچينوخوړونو، سيندونو اوكويانوپه صورت كښ دَمخلوقاتو دَپاره ئى محفوظ كړيدى اودَانسان دَپاره ئى قابل انتفاع كرځوليدى اونسبت دَاسكان اوسولو الله ﷻ خپل ذات طرف ته اوكړو پديكښ اشاره ده چې دَابو طبعى تقاضا جاذبيت اوپه زمكه كښ لاندې تلل دى خو الله ﷻ په خپل قدرت باهره سره ياخوئى مخ په زمكه جارى كړيدى اويائى په كويانو كښ هم پدومره اندازې سره لاندې محفوظ ساتلې دى چې دَانسان په قدرت اووس اوطاقت كښ دى

﴿وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابٍ بِهِۦ﴾ پديكښ يوقسم تخويف دنيوى دې يعنى الله ﷻ پدې قادردې چې دغه محفوظ كړې شوې اوبه اوچې كړى اوانسانان اوڅاروې دَتندې دَلاسه هلاك كړى دغه شان ذكرپه سورة الملك ايت نمبر(۳۰)كښ هم دې.

﴿فَأَنشَأْنَا لَكُم بِهِۦ﴾ دادريمه حصه دَدليل عقلى ده داسفلې دې اوتخصيص دَ﴿نَّخِيلٍ وَأَعْنَٰبٍ﴾ يعنى دكهجورې اوانګور دَوجهې دَشرافت اوكثيرالمنفعت نه دې اوخاص طورعربو كښ ددې

استعمال ډیرزیات وو او دغه شان دافاکه هم ده او غذا هم ده من وجه. او یا اوله میوه یعنی کهجور داونې په نوم سره ذکرشوه او میوه ذکرنشوه په خلاف دانګورنه چې هلته دمیوې نوم ذکرشویدې. ځکه چې دکهجورې په اونه کښې ډیرزیات منافع دی او دانګورپه میوه کښې اګرچه منافع ډیردی خو بوټه ئې مقصود ندې. په هغې کښې دکهجورې پشان ډیرمنافع نیشته دی

﴿لَكُمْ فِيهَا فَوَاكِهُ كَثِيرَةٌ﴾ ددینه مراد دکهجورې او انګورنه سیوا نورې میوې دی. ﴿وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ﴾ "من"یاتبعیضیه دې او اکل نه مراد حقیقی معنی ده. یعنی ځنې میوې تاسو خورئ. نو په دیکښې اشاره ده چې ددې میوونه تاسو دخوراك نه علاوه نورې فائدې هم ترینه حاصلوئ لکه تجارت وغیره شو. او یا "من" ابتدائیه دې او د"اکل"نه مجازې معنی مراد ده. یعنی تعیش. یعنی روزی ګټل یعنی پدې میوو سره تاسو ځان له روزی پیدا کوئ

| |
|---|
| وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُورِ سَيْنَاءَ تَنْبُتُ بِالدُّهْنِ وَصِبْغٍ لِّلْآكِلِينَ ﴿٢٠﴾ وَإِنَّ لَكُمْ |
| او پیدا کړې موده هغه اونه چې راوځی دغره دسیناء نه راټوکوی تیل او سالن دخوراك کوونکو دپاره اوبیشکه ستاسو دپاره |
| فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۖ نُسْقِيكُمْ مِّمَّا فِي بُطُونِهَا وَلَكُمْ فِيهَا |
| په څارووکښې خامخا عبرت دې. څکوو په تاسو دهغې نه چې په خیټو دهغې کښې دی او تاسولره په هغې کښې |
| مَنَافِعُ كَثِيرَةٌ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿٢١﴾ وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُونَ ﴿٢٢﴾ |
| فائدې ډیرې دي او بعضې دهغې نه تاسو خورئ او په دغه څارووباندې او په کشتوباندې سوره ولی شئ تاسو |

﴿وَشَجَرَةً تَخْرُجُ﴾ دا هم ددلیل عقلي ددریمې حصې یعنی سفلې یو قسم دې او ﴿وَشَجَرَةً﴾ عطف دې په ﴿جَنّٰتٍ﴾ باندې او د ﴿فَأَنشَأْنَا لَكُم﴾ تحت واقع دې او ددینه دځونه ونه مراد ده.

طور سیناء مشهور غردې په ملك شام کښې چې حضرت موسیٰ علیه السلام پرې دالله جل جلاله سره همکلام شوې وو او طور دعربی یانبطی یادحبشی یادسریانی ژبې لفظ دې، وئیلې کیږی غرته، او سیناء په دغه مذکور ژبو کښې وئیلې کیږی هغه غرته چې پکښې ډیرې اونې وې نو په غره کښې چې څومره زیاتې اونې وې نو هومره خائسته ښکارې نو ددې وجهې نه بعض مفسرینو ئې ترجمه په خائسته غره سره کړیده، نو طور عام غرته وئیلې کیږی او "سیناء" معنی ده مبارك یا خائسته، او اضافت د

طور ،سيناء نه دقبيلې داضافت دعام دې خاص ته، اوبعض فرمائي چې مضاف اومضاف اليه مجموعه علم گرځيد ليدی دمخصوص غردپاره لکه امرؤ القيس پشان.

﴿تَنْبُتُ بِالدُّهْنِ ﴾دا جمله صفت د ﴿وَشَجَرَةً﴾دپاره دې اوپه﴿تَنْبُتُ﴾کښې دوه(۲)قرائته راغليدی يوقراءت دابن کثير رحمه الله دې چې په ضمې دتاء اوپه کسرې دباء سره منقول دې اودادثلاثي مزيد افعالو نه دې، نوپدې اعتبار باء په بالدهن کښې زائده ده او"الدهن" مفعول د﴿تَنْبُتُ﴾دپاره دې اودويم قراءت دجمهور قراؤودې چې په فتحې دتاء اوپه ضمې دباء سره منقول دې دثلاثي مجردنه دې نوپدې اعتبار باء يامصاحبت اوملابست دپاره ده اومتعلق ئې محذوف دې چې متلبسة يامصحوبة دې اوهغه حال واقع شويدې دضمير فاعل دتنبت نه اى تنبت متلبسة اومصحوبة بالدهن(روح) يعنې چې دااونه پيدا کيږې نوتيل هم ورسره وي اوددې دهن اوتيلونه دزيتون مراد دې چې په هغې سره غوړول هم کيږې اودخوراك په ځائ هم استعماليږي.

﴿وَصِبْغٍ لِلْآكِلِينَ ﴾دا عطف دې په الدهن باندې اوصبغ په اصل کښې رنګ ته وئيلې کيږې، دلته ترينه مراد سالن دې اوصبغ اودهن په اعتبار دذات سره واحد دی اوپه اعتبار دمفهوم سره مغاير دی نوځکه صبغ په﴿بِالدُّهْنِ﴾باندې عطف کړې شو ،اوپه عربو کښې به بهترين سالن زيتون تيل حسابيدو اوپه احاديثو کښې هم ددې پرفضيلت راغليدې، حضرت ابوهريرة رضي الله عنه دنبی پاك ﷺ نه نقل کړيدی چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيلو چې كلوا الزيت و ادهنوا به فانه شفاء من سبعين داء منها الجذام(روح بحواله ابونعيم) يعنې تاسو زيتون خورئ اوپه هغې سره ځانونه غوړه وئ داد اوياؤ ۷۰مرضونو علاج دې چې په هغې کښې يو مرض جذام دې.

﴿وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ ﴾دا دريم دليل عقلي دې يعنې په څاروو کښې هم ستاسودپاره په توحيد باندې دلائل موجوددي﴿نُسْقِيكُمْ مِمَّا فِي بُطُونِهَا ﴾ مماپه اصل کښې من ما دې نو من تبعيضيه دې اوماعبارت دې دالبان يعنې پيو نه اوبطون نه مراد حقيقي بطن يعنې صرف خيټه نده مراد ، بلکه مراد ترينه جوف دې ځکه چې پئ په غولانځو کښې وي اوپه خالص خيټه کښې نوي اوکچرته بطن حقيقي معنی مراد شي نوبيابه من ابتدائيه وي اوما به دهغه تول خوراك نه عبارت وي چې څاروي ئې کوي اودهغې په نتيجه کښې بيا څاروي پئ ورکوي نودا يت مقصد به داشي چې دڅاروو

دخیتي دغوشانو اووینې نه بالکل صاف ستهرا پئ تاسو ته الله جل جلاله درکوي ﴿وَلَكُمْ فِيهَا مَنَٰفِعُ﴾ یعنی دپیونه علاوه نورپکښې هم ډیري منافع دي لکه کڅ. غوړي پشان قیمتی خوراکونه ددینه دي اودغه شان دڅارو دڅرمنو. ویختو اووړئ نه هم خلك ډیرې فائدې اخلی اودغه شان د تجارت ذریعه هم ده

﴿وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ﴾ اکل نه عام معنی مرادده که خوراك وي اویامطلق تعیش وي لکه مخکښې تیرشویدي ﴿وَعَلَيْهَا وَعَلَى ٱلْفُلْكِ تُحْمَلُونَ﴾ یوبله غټه فائده دڅارو ذکرکیږي چې لکه څرنګه په اوبوکښې ستاسو دپاره الله جل جلاله دکشتیوبندوبست کړیدې چې په هغې باندې تاسو خپله هم سورلی کوئ اوسامانونه پکښې اوړئ نودغه شان په اوچې کښې هم الله جل جلاله تاسو ته انتظام کړیدې پدې څارو باندې تاسو سورلئ هم کوئ اوسامانونه پرې هم چلوئ. اوعلامه قرطبي رحمه الله اوالوسي رحمه الله وغیره فرمائی چې ﴿وَعَلَيْهَا﴾ ضمیراګرچه انعام ته راجع دې خو په طریقې دصنعة الاستخدام سره، مرادترینه اوښان دی اوټول انعام ندي مراد، ځکه دسورلئ فائده داوښانونه اخستلې کیږي اواوښان سفائن البر دی اوغویانونه دسورلئ فائدې اخستلونه حدیث کښې اشارة منع راغلیده لکه حدیث کښې دی چې مخکښې زمانه کښې یوکس په غوباندې سوروو نوالله جل جلاله هغې ته دګویائی طاقت ورکړو نوهغه غوادې سړي ته ګویاشوله چې: انالم نخلق لهذا وانما خلقت للحرث یعني مونږ دسورلئ دپاره نه یوپیداکړې شوی بلکه مونږ دکاروندې دپاره پیداکړې شوي یو (قرطبی).

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦ فَقَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم﴾

اویقیناًلیږلي دي مونږنوح علیه السلام دهغه قوم ته،پس اوئیل هغه ای ځماقومه بندګي کوئ خاص دالله جل جلاله نیشته تاسولره

﴿مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥٓ ۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ ۝٢٣ فَقَالَ ٱلْمَلَؤُا۟ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن قَوْمِهِۦ مَا هَٰذَآ﴾

حقداربندګئ سوادهغه نه آیانو تاسولې نه یریږئ؟ پس اوئیل مشرانوهغوچې کفرئی کړې وودقوم دهغه نه چې ندې دا

﴿إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ ۚ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ﴾

مګر بشر دې ستاسوپه شان غواړي چې غوره والي(مشري)حاصله کړي په تاسوباندې اوکه غوختلې الله جل جلاله رسول

| لَاَنْزَلَ | مَلٰٓئِكَةً | مَّا | سَمِعْنَا | بِهٰذَا | فِيْٓ | اٰبَآئِنَا | الْاَوَّلِيْنَ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نوخامخا به نې نازلې کړې | وې ملائکې | نه دي | اوريدلې مونږ | دا خبره | په | مشرانو خپلو | مخکنيو کښې |

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا﴾ د دلائلو عقليو ذکر کولو نه پس اوس دلائل نقليه په توحيد باندې ذکر کيږي نو دا اول دليل نقلي دې د نوح عليه السلام. نه او هر کله چې ما قبل کښې د انعاماتو حسيو ذکر وو او په دې اياتو نو کښې انعامات معنويه ذکر دې او دغه شان ما قبل کښې ايت کښې په کشتئ باندې د سورلئ کولو ذکر وو او نوح عليه السلام او دهغه ملګرو ته هم په کشتئ سره نجات ميلاؤ شوې وو نو د دې مناسبت د وجهې نه دا واقعه په واو حرف عطف سره ذکر کړې شوه.

﴿فَقَالَ يَـٰقَوْمِ ٱعْبُدُواْ ٱللَّهَ﴾ (اعبدوا الله) په معنی د وحدوا الله سره دې، يعنی توحيد اختيار کړئ او شرك پريدئ، په لفظ د عبادت ذکر کولو کښې اشاره مقصود ده چې حقيقتاً عبادت هغه دې چې صرف د الله جل جلاله او کړې شي او عبادت سره د شريك جوړولو ديته د سرنه عبادت نشي وئيلې کيدلې.

﴿فَقَالَ ٱلْمَلَؤُاْ ٱلَّذِينَ﴾ د حضرت نوح عليه السلام د دعوت په جواب کښې د قوم مشرانو په حضرت نوح عليه السلام باندې پنځه طعنونه اولګولو او ممکنه ده چې مختلف طعنونه د وجهې د مختلف طبقاتو د قوم نه وو اول طعن نې دا اولګولو چې ﴿مَا هَـٰذَآ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾ دا طعن په نسبت سره د عوامو طبقې ته وو، چې دې خو ستاسو غوندې يو عام انسان دې د غريبې کورنئ سره تعلق لرې د عامو خلکو پشان خوراك او څکاك کوي نو دې څنګه نبی شو؟

﴿يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ﴾ دا دويم طعن دې او دا طعن په نسبت سره سرمايه داره طبقې (مالدارانو) ته دې چې د نبوت په دعوې سره دې ستاسونه مشري اخلي او دا خبره فرعون هم د موسی عليه السلام او هارون عليه السلام په باره کښې کړې وه، لکه سورة يونس ايت نمبر (۷۸) کښې دی. ﴿وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ لَأَنزَلَ﴾ دا دريم طعن دې او دا طعن د مذهبی طبقې د اطمينان د پاره وو چې رسول بشر نه دې بلکه رسول يوه فرشته پکار ده مفعول د مشيئت محذوف دې چې (يرسل رسولا) دې. اې: (لوشاء الله ان يرسل رسولا لانزل ملائکه (بيضاوي) او سابقه دوه (۲) طعنونو کښې انکار د نبوت د نوح عليه السلام وو، او په دې کښې انکار د نبوت د مطلق بشر نه دې.

﴿مَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِىٓ ءَابَآئِنَا﴾ دا خلورم طعن دي او دا طعن په نسبت دقوم پرست طبقې ته وو. چې دده دا دعوی دتوحید زمونږ درسم اورواج نه هم خلاف ده. ځکه چې زمونږ اباء واجداد، پلار. نیکه، دا نعره نوه اوچته کړې. نو هــذا سره اشاره ده توحید ته اوددوئ دا انکاریاد ضد اوعناد دوجهې نه وو اویاحقیقةً تریوې اوږدې زمانې پورې دوئ ته پیغمبر نه وو راغلې. اودسابقه انبیاء کرامو والاتعلیمات دوئ هیر کړی وو

إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌۢ بِهِۦ جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوا۟ بِهِۦ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿۲۵﴾ قَالَ رَبِّ

نه دې دا مګر یو سړی دې په ده باندې لیونتوب دې نو انتظار کوئ په باره دده کښې تریووخته پورې اونیل نوح ﷺ ای ربه خما

ٱنصُرْنِى بِمَا كَذَّبُونِ ﴿۲۶﴾ فَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِ أَنِ ٱصْنَعِ ٱلْفُلْكَ

امداد وکړې خما په سبب ددې چې دوئ ماته دروغژن وائی. پس وحي اوکړه مونږ دده ته چې جوړه کړه کشتئ

بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا فَإِذَا جَآءَ أَمْرُنَا وَفَارَ ٱلتَّنُّورُ

په مخامخ دسترګو زمونږ (نګرانئ زمونږ کښې) اوپه وحي زمونږ سره پس کله چې راشي حکم دعذاب زمونږ او اُخوټکیږي تنور

فَٱسْلُكْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ ٱثْنَيْنِ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَن سَبَقَ

نو ورننه باسه په کشتئ کښې دهرقسم حیوان نه جوړې دوه (۲) اواهل خپل ماسوا دهغه چانه چه مخکښې شویده

عَلَيْهِ ٱلْقَوْلُ مِنْهُمْ ۖ وَلَا تُخَـٰطِبْنِى فِى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟

په هغه باندې فیصله دعذاب ددوئ نه. اومه کوه خبرې ماسره په باره دهغه کسانوکښې چې ظلم ئې کړیدې

إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ ﴿۲۷﴾ فَإِذَا ٱسْتَوَيْتَ أَنتَ وَمَن مَّعَكَ عَلَى ٱلْفُلْكِ فَقُلِ

بیشکه دوئ غرق کولې کیږي. پس هرکله چې برابرشي ته اوهغه څوك چې ستاسره دي په کشتئ باندې نو اوایه ته چې

ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى نَجَّىٰنَا مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿۲۸﴾ وَقُل

ټول صفات دالوهیت خاص دي الله تعالی لره هغه ذات چې خلاصې راکړیدې مونږ له دقوم ظالمانو نه اواوایه نه

| |
|---|
| رَّبِّ أَنزِلْنِي مُنزَلًا مُّبَارَكًا وَأَنتَ خَيْرُ الْمُنزِلِينَ ۞ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ |
| ای ربه خما راکوزکړې ماخئ دکوزېدلو برکت والا ته او ته غوره ئې دکوخوونکونه بیشکه پدیکښ خامخاعبرتونه دي |
| وَإِن كُنَّا لَمُبْتَلِينَ ۞ |
| اوبیشکه مونږامتحان کوونکي یو |

﴿إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ﴾ داپنځم طعن دي او دا طعن دسابقو ټولو طعنونونه لوئ او دټولو مجموعه ده. چې دده دعوی دنبوت "العیاذبالله" دلیونتوب دوجهې نه ده چې دي لیوني دي ځکه داخبري کوي اولیوني خو پیغمبرنوي اونه دهغه خبره قابل اعتباروي اودلیونی نه دخلاصئ دوه (۲) طریقې دی یوه (۱) داچې دده لیونتوب ختم شي اوروغ شي. دویم (۲) داچې مړشي. نودامقصددی د ﴿فَتَرَبَّصُوا بِهِ حَتَّىٰ حِينٍ﴾ چې دومره انتظار اوکړئ چې یاخودې روغ شي نوخپله دادعوی به پریدی اویابه مړشي. نوتاسو به ترینه په ارام شئ.

﴿قَالَ رَبِّ انصُرْنِي﴾ نهه نیم سوه (۹۵۰) کاله مسلسل دعوت ورکولونه پس حضرت نوح عليه السلام ته دوحي په ذریعه پته اولګیده چې چاایمان راوړو نوهغوئ ایمان راوړې دي مزید نورخلك ایمان نه راوړی لکه سورة هود ایت نمبر (۳۶) کښ دی، نوحضرت نوح عليه السلام ددغه ازلی بدبختو دهلاکت بددعااوکړه نو "باء" په ﴿بِمَا كَذَّبُونِ﴾ کښ سببیه ده او "ما" مصدریه ده. او ﴿كَذَّبُونِ﴾ په تاویل د مصدر سره اضافت ئې شویدې "یاء" دمتکلم ته چې په حالت دوقف کښ حذف شویده او اکتفاء په کسرې باندې شویده، نومعنی ئې داشوه بسبب تکذیبهم ایای (روح) اویا "باء" موصوله ده او ﴿كَذَّبُونِ﴾ جمله ورله صله ده اوعائد محذوف دي چې "به" دي ای انصرنی بالذی کذبونی به (روح) اوموصول عبارت دي دعذاب موعوده نه، یعنی خماامداد په هغې عذاب سره اوکړې چې مابه ترینه دوئ ته یره ورکوله اودوئ به دهغې په باره کښ خماتکذیب کولو

﴿فَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ﴾ پدیکښ دحضرت نوح عليه السلام ددعاء قبولیت اودقوم هلاکت اودمؤمنانو دهلاکت نه دنجات ته بیرذکرکیږی ﴿أَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ﴾ غوره قول دادې چې "ان" مفسره دې یعني حضرت

نوح ﷺ ته دَالله ﷻ دَطرف نه دکشتئ جوړولو حکم اوتعلیم ورکړې شو. ﴿بِأَعْيُنِنَا﴾ اعـين جمع دَ عـين ده اوداجمع دَپاره دَمبالغې ده اومرادترينه حفاظت اونګرانی ده لکه دامنقول دی دَابن عباس ﷺ نه اوپه ځنې اسرائيلي اوتاريخي رواياتوكښ دي چې الله ﷻ حضرت جبرئيل ﷺ رااوليږلواوهغه به حضرت نوح ﷺ ته دکشتئ جوړولو طريقه خودله حضرت نوح ﷺ په دوه (۲) کالوکښ داجوړه کړه چې دَدې اوږدوالي درې سوه (۳۰۰) ګزه اوپلن والي پنځوس (۵۰) ګزه اواوچتوالي ئې ديرش (۳۰) ګزه وو (والله اعلم) دَدې ايت ځنې تفصيل په سورة هود ايت نمبر (۴۰) کښ تيرشويدې

﴿فَإِذَا جَآءَ أَمْرُنَا﴾ يعنى چه كله كشتئ جوړه شي نوبيابه زمونږ دَطرف نه عذاب راځي نو امرنا نه مراد امر دَعذاب دې. ﴿وَفَارَ ٱلتَّنُّورُ﴾ داعلامه وه دَنوح ﷺ دَپاره چې ددينه پس بيا په كشتئ كښ سوريدل وو ﴿فَٱسْلُكْ﴾ مرادترينه داخلول اوسواره كول دی. ﴿مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ﴾ غوره قول دادې چه كلّ دَاستغراق عرفي دَپاره دي او استغراق حقيقي ندې اوتنوين پكښ عوض دَمضاف اليه نه دې يعنى من كل نوعٍ اوپه سورة هودكښ تيرشويدی چې (اثنين) ذكردَتعين دَاحد الاحتمالين دَپاره دې. ځكه چې دَ (زوجين) اطلاق كله په څلورو باندې كيږی اوكله په دوه (۲) باندې ځكه چې زوجين تثنيه دَزوج ده نودَدې زوج يعنى واحد اطلاق كله په مجموعې دَهغه دوه (۲) څيزونو باندې اوشي چې يوبل ته محتاج وي، لكه مذكر، مؤنث دايوه جوړه ده پرتوګ، قميص دايوه جوړه ده نوپدې مجموعې باندې اطلاق دَزوج كيږی نوپدې اعتبارسره دَزوجين يعنى تثنيې اطلاق په څلور افرادو باندې كيږی اوكله دَزوج اطلاق صرف په يو (۱) فردباندې اوشي لكه صرف خاوندته زوج وئيلې كيږی نوپدې اعتبارسره دَزوجين يعنى تثنيې اطلاق صرف په دوه (۲) افرادو باندې كيږی نودلته دادويمه معنى مرادوه نوځكه دَتعيين دَپاره اثنين ذكرشو.

﴿إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ﴾ ددينه يارمراد دَنوح ﷺ كافربچې كنعان اوكافره بی بی ده اوياترينه ټول كفارمراد دی، تفصيل په سورة هودكښ تيرشويدی. ﴿إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ﴾ يعنى دوئ محكوم عليه بالاغراق دی يعنى دَغرق كيدلوفيصله پرې كړې شويده.

﴿فَإِذَا ٱسۡتَوَيۡتَ ﴾پديکښې تصريح ده چې دَمصائبو اوتکاليفونه نجات ورکوونکې صرف الله ﷻ دي. ﴿فَقُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي ﴾هرکله چې نجات دَظالم نه ډيرلوئ نعمت وو نوځکه نوح ﷺ ته امرپه شکراوحمدباندې اوکړې شو .اودلته تصريح په هلاکت اونشوه بلکه تصريح په نجات باندې اوشوه يعنې داسې اونوئيلې شو ((فقل الحمدلله الذى اهلك القـوم الظلمـين)) بلکه ﴿نَجَّىٰنَا﴾ اوئيلې شو اګرچه دامتضمن دې معنى دَهلاکت لره.دَپاره دَاشارې ديته چې محض دَچاپه تکليف باندې خوشحاله کيدل ندى پکاراګرچه دشمن ولې نوې البته دَظالم په مرګ اوهلاکت باندې دَدې وجهې نه خوشحاله کيدل چې مخلوقاتو ته دَده دَظلم نه نجات ميلاؤشو جائزاومستحسن دى اودغه شان پديکښې اشاره ده چې دَظالم په مرګ اوهلاکت باندې الحمدلله وئيل جائزاومستحسن دى

﴿وَقُل رَّبِّ أَنزِلۡنِي ﴾پديکښې تصريح ده چې برکات ورکوونکې ذات هم صرف الله ﷻ دې﴿مُنزَلٗا ﴾ يامصدرميمي دې په معنى دَ انـزال سره يعنى انـزلنى انــزالا مبارکــاً اوياظرف دې يعنى ځائ دکوځيدلو ،اى انزلنى موضعامبارکااو"مبارکا"مقصــد ادې چې هلتــه دَدشمن نه نجات اوسلامتيا وي. دَرزق کثرت وي اودَالله ﷻ عبادت اودَهغه دَدين اشاعت وي.

قرطبى رحمه الله فرمائى چې پـدې ايت کښې تعليم دې چې څـوک کشتئ تـه خيـژي. يـاکوزيږى اويايوځائ ته داخليږي نوداد عالوستل پکاردى، دَحضرت على رضي الله عنه په باره کښې مروي دى چې هغه به جمات ته داخليدلو په وخت کښې هم داد عالوستله اوحضرت قتاده رحمه الله نه مروي دى چې دَاوبووالاسورلئ ته ختلوپه وخت کښې .بسم الله مجريهـــا(هود: ۴۱) اودَاوچې سورلئ ته ختلووخت کښې سبحن الذى سخرلنا(زخرف ۱۳)اودکوزيدلوپه وخت کښې دامذکوره دعـايعنى ربّ انــزلنى منزلاً اويوځائ ته.کلې اوعلاقې ته داخليدلو په وخت کښې ربّ ادخلنى مدخل صدق(الاسراء:۸۰، وئيل پکاردى(کبير:ص۲۷۳)

﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ﴾په ذلك سره اشاره واقعې مذکورې ته ده چې نجات دَ مؤمنانو او اهلاك دکفارودې يعنى پدې واقعې مذکورې کښې دَالله ﷻ دکمال قدرت ډيردلائل دى. "وان کنا لمبتلين" ان مخففه من المثقله دې اسم ئې ضميرشان محذوف دې اولمبتلين کښې لام فارقه دې يعنى دَدې لام په

ذريعې سره ان نافيه او ان مخففه په مينځ كښې فرق راځي. او "مبتلين" يا مشتق دې د بلاء نه په معنى د معذبين سره او يا مشتق دې د ابتلاء نه په معنى د مختبرين سره دې يعنى پدې واقعې سره مقصود ازمائش او امتحان وو چې انسانان پدې سره عبرت واخلي او ايمان راوړي

ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿۳۱﴾ فَاَرْسَلْنَا فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ

بيا پيدا كړه مونږ وروستو د دوى د هلاكت نه نيړۍ بله. پس اوليږلو مونږ په هغوئ كښې رسول هود د هغوئ نه

اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ

د اموورته او وئيل چې بندګي كوئ خاص د الله ﷻ نيشته تاسو لره حقدار د بندګئ سوا د هغه نه

اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۳۲﴾ وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا

آيا پس نه بچ كيږئ تاسو د شرك نه او اوئيل مشرانو د قوم د هغه نه هغه كسانو چې كفرونې كړې وو او دروغژن ئې ګڼړلو

بِلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ وَاَتْرَفْنٰهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ

ملاقات د اخرت او بدمسنه كړي وو مونږ دوئ په ژوند د دنيا كښې چې ندې دې مګر بنده دې په شان ستاسو

يَاْكُلُ مِمَّا تَاْكُلُوْنَ مِنْهُ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَلَئِنْ اَطَعْتُمْ

خوراك كوي د هغې نه چې تاسو خوراك كوئ د هغې نه او څكاك كوي د هغې نه چې تاسو ئې څكئ. او كچرې فرمانبرداري اوكړه تاسو

بَشَرًا مِّثْلَكُمْ ۙ اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴿۳۴﴾ اَيَعِدُكُمْ اَنَّكُمْ اِذَا مِتُّمْ وَكُنْتُمْ

د يو بنده چې ستاسو په شان وي بيشكه تاسو به پې دغه وخت تاوان والا آيا وعده كوي دې تاسو سره چې يقيناً كله مړه شئ او شئ تاسو

تُرَابًا وَّعِظَامًا اَنَّكُمْ مُّخْرَجُوْنَ ﴿۳۵﴾ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوْعَدُوْنَ ﴿۳۶﴾

خاورې او هډوكي نو بيشكه تاسو به بيا راويستلې كيږئ لرې ده لرې ده هغه چې تاسو سره ئې وعده كيدې شي

﴿ثُمَّ أَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ﴾ د دينه مراد قوم عاد وغيره دى. ﴿فَأَرْسَلْنَا فِيهِمْ رَسُولاً﴾ دا دويم دليل نقلي دې د پاره د نفي د شرك فى التصرف او غوره قول دا دې چې د ﴿رَسُولاً﴾ نه مراد حضرت

هود ﷺ دي اوداواقعه دَقوم نوح نه بعدقوم عاد دَزمکي خليفګان جوړکړې شوی وو اودغه شان په سورة الشعرآء کښې هم دَقوم نوح واقعې نه بعد دَقوم عاد واقعه ذکرکړې شويده. نومعلومه شوه چې دلته هم دَ ﴿رَسُولا﴾ نه مراد هود ﷺ دي.داقول منقول دي دَابن عباس رضی الله عنهمانه اودیته اکثرو مفسرینو ذهاب کړيدي. اوبعض فرمائی چې دَدینه مراد صالح ﷺ اودَهغه قوم ثمود یان دی اودلیل ئی داپیش کړیدې چې دَدې واقعې په اخیرکښې عذاب دَصیحې(چغې)ذکردې اوعذاب دَصیحې په ثمودیانوراغلې وواوپه عادیانونه ووراغلې بلکه هغوئ دَسیلئ په عذاب سره هلاك کړې شوی وو ،لیکن قرطبی رحمه الله اوآلوسي رحمه الله ترینه جواب کړیدې چې(۱)ممکنه ده چې دواړه قسمه عذابونه دې په عادیانوباندې جمع شوی وی سیلئ سره سره دې په فرشتې چیغه هم وهلی وي(۲)اوداهم ممکنه ده چې دَصیحې نه مراد دلته مصطلحه صیحه نشي،بلکه مرادترینه مهلکه سزا اوسخت ترین عذاب شي اوپه سخت اومهلك عذاب باندې اطلاق دَصیحې کیږي لکه پدې قول دَشاعرکښې:

صاح الزمان بآل برمك صيحة- خروا لشدتها على الاذقان

(۳)اوبعضوترینه داجواب کړیدې چې مراد دَالصیحة نه هغه سخت آواز دَسیلئ دې لکه سورة الحاقه کښې ددغې سیلئ صفت صرصربیان شویدې اوسیلئ چې کله ډیره تیزه وي نوآواز کوي نودَدې وجهې نه دلته ئی صفت صیحة بیان شویدې اوبعضوئیلي دی چې دَدینه مراد شعیب ﷺ اودَهغه قوم دې لیکن داقول ډیرضعیف دې ځکه چې دَدې قصې په اخیرکښې دی ﴿ثم ارسلنا رسلناترا﴾یعنی دَدې قوم دَهلاکت نه بعدپرله پسې ډیررسولان راغلو حتَی چې موسی ﷺ هم راغې نوکچرته ددینه مراد حضرت شعیب ﷺ شي نوبیادَایت معنی نه صحیح کیږي، ځکه چې دَشعیب ﷺ اودَموسی ﷺ په مینځ کښې نورانبیاء کرام ندي راغلي.

﴿وَقَالَ ٱلْمَلَأُ مِن قَوْمِهِ﴾دَهود ﷺ دَدعوت په جواب کښې هم دَقوم مشرانو هغه اوئیل کوم چې نوح ﷺ ته خپل قوم وئیلی وو ﴿ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَكَذَّبُواْ﴾ دادواړه صفات یعنی کفراوتکذیب دَپاره دَبیان دغلودکفردوئ اومزیدقباحت دَدوئ دَپاره ذکرکړې شویدې اویاصفات احترازیه دی ځکه چې ځنې مشران داسې وو چې کفراوتکذیب ئی نه وو کړی بلکه ایمان ئی راوړې وو.

﴿وَأَتۡرَفۡنَٰهُمۡ﴾ دا سبب د کفر او تکذیب دَدوئ بیانیږي چې دَدنیا په عیش و عشرت کښې انهماك او مال باندې حرص دَدوئ د کفر دَپاره ذریعه او ګرځیدله ﴿مَا هَٰذَآ إِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُكُمۡ﴾ دا هم هغه اعتراض دې چې قوم نوح علیه السلام په نوح علیه السلام باندې کړې وو.

﴿يَأۡكُلُ مِمَّا تَأۡكُلُونَ مِنۡهُ﴾ مراد ترینه ټول لوازم دَبشریت دی او دَ ﴿تَشۡرَبُونَ﴾ نه ورستو عائد "منه" محذوف دې په قرینې دَاول "منه" سره

﴿وَلَئِنۡ أَطَعۡتُم بَشَرًا﴾ یعنی هود علیه السلام ته په تاسو باندې څه فضیلت ندې حاصل، بلکه ستاسو پشان یو بشر دې چې بیاهم تاسو دَده خبره منئ او دَخپلو معبودانو عبادت پریدئ نو دا خو ستاسو ډیر لوئ ذلت دې، اکثر مفسرین فرمائی چې "واو" دلته قسمیه دې او "لام" په لئن اطعتم کښې موطئه للقسم دې، او ﴿إِنَّكُمۡ إِذٗا لَّخَٰسِرُونَ﴾ جمله جواب قسم دې او جواب شرط ندې ځکه چې دَشرط په جواب کښې فاء داخلیږي (کله چې جمله اسمیه وی) نو جواب شرط محذوف دې چې په هغې باندې جواب قسم دلالت کړیدې

﴿أَيَعِدُكُمۡ أَنَّكُمۡ﴾ استفهام یا انکاري دې او دا یو بل اعتراض وو دَقوم عاد دَطرف نه په هود علیه السلام باندې خلاصه ئې داده چې مونږ دَده نبوت ځکه نه منو چې دې دَبعث بعد الموت قائله دې او بعث بعد الموت خو نیشته دې ځکه چې خلاف عقل دې او یا استفهام تقریری دې او مقصود پدې سره دَماقبل جملې یعنی دَخسران تقریر او وضاحت دې یعنی که تاسو دَده خبره منئ او اطاعت ئې کوئ نو نقصان کښې به وئ ځکه چې دې خو دَبعث بعد الموت قائله دې او پدې عقیدې سره انسان دَدنیا دَعیش و عشرت او ازاد زندګئ تیرولو نه محروم میږی. ﴿أَنَّكُم مُّخۡرَجُونَ﴾ دا دویم ځلې "انکم" تاکید دې دَاول "انکم" دَپاره او ﴿أَنَّكُم مُّخۡرَجُونَ﴾ خبر دې دَاول "انکم" دَپاره، نو دَعامل او معمول په مینځ کښې طول فصل او بعد دَوجهې نه تاکیداً تکرار دَ "ان" اوشو.

﴿هَيۡهَاتَ هَيۡهَاتَ﴾ دا اسم فعل په معنٰی دَبَعُدَ ماضی سره دې او مکرر استعمالیدل یا دَدې وجهې نه دي چې اول "هیهات" نه مراد عقلاً بُعد دې او دویم "هیهات" نه مراد نقلاً بُعد دې، یعنی عقلا او نقلا بعث بعدالموت بعیده خبره ده او یا تکرار دَپاره تاکید دې یعنی بعث بعد الموت ډیره بعیده خبره ده

دَعقل نه، او دا لفظ په کلام عرب کښې مکرر استعماليږي، دَبعض شعرا په کلام کښې اګرچې بلا تکرار استعمال شويدې خو هغه شاذ دې او ﴿لِمَا تُوعَدُونَ﴾ کښې لام يا متعلق دې په محذوف پورې چې هغه لفظ دَتصديق دې اي هيهات هيهات تصديق لماتوعدون او يا لام دَپاره دَبيان دې لکه په هيت لك کښې لام دَپاره دَبيان دې دلته هم لام بيان دَمستبعد اوکړو، چې هغه بعيد دَعقل نه څه شې دې؟ نو ﴿لِمَا تُوعَدُونَ﴾ سره بيان اوشو او يا لام زائده دې او ﴿لِمَا تُوعَدُونَ﴾ فاعل دَ ﴿هَيْهَاتَ﴾ دَپاره دې.

إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ

نيشته دې نور ژوند مګر صرف ژوند زمونږ د دنيا دې مره کيږو مونږ او پيدا کيږو مونږ او نه يو مونږ

بِمَبْعُوثِينَ ﴿٣٧﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا وَمَا نَحْنُ

چه دوباره به راژوندي کړې شو، ندې دا (هود) مګر يو سړې دې چې جوړ کړې ئې دی په الله ﷻ باندې دروغ او نه يو مونږ

لَهُ بِمُؤْمِنِينَ ﴿٣٨﴾ قَالَ رَبِّ انصُرْنِي بِمَا

ده لره ايمان لرونکي (ده په خبره يقين کوونکي)، هود (عليه السلام) اوئيل اې ربه ځما مدد اوکړې ځما په دې وجه

كَذَّبُونِ ﴿٣٩﴾ قَالَ عَمَّا قَلِيلٍ لَّيُصْبِحُنَّ نَادِمِينَ ﴿٤٠﴾ فَأَخَذَتْهُمُ

چې دوئ دروغژن وانې ماته. اوئيل الله ﷻ چې ورستو د لږ وخت نه خامخا به اوګرځي دوئ پښيمانه. پس اونيولو دوئ لره

الصَّيْحَةُ بِالْحَقِّ فَجَعَلْنَاهُمْ غُثَاءً ۚ فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿٤١﴾

چيغې هيبت ناکې په عذاب حق سره پس اوګرځول مونږ دوئ خس خاشاك پس هلاکت دې قوم ظالمانو لره

ثُمَّ أَنشَأْنَا مِن بَعْدِهِمْ قُرُونًا آخَرِينَ ﴿٤٢﴾ مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ﴿٤٣﴾

بيا پيدا کړې مونږ ورستو د دوئ نه پيړئ نورې. نه وړاندې کيږي هيڅ امت دَخپلې نيټې نه او نه ورستو کيږي

﴿إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا﴾ دا تاکيد دې دَماقبل دَپاره ﴿نَمُوتُ وَنَحْيَا﴾ دَدې مقصد دا دې چې ژوندون صرف دا دې چې مونږه ئې په سترګو وينو چې بعضې مړه کيږو او بعضې پيدا کيږو، نورې زندګئ

نیشته دې اودَ ﴿نَمُوتُ وَنَحْيَا﴾ مقصد داندې چې مونږه به مړه کیږو او بیا به ژوندي کیږو. ځکه چې دامقصد مخالف دې دَسیاق اوسباق دکلام نه. ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ﴾ یعنی دَهود ﷺ ادعاء نبوت اوعقیده دَحشر نشر (العیاذبالله) افتراء ده په الله ﷻ باندې.

﴿قَالَ رَبِّ انصُرْنِي﴾ حضرت هود ﷺ چې کله دَخپل قوم دَایمان راوړلو نه مایوسه شونودَهغوئ د هلاکت بددعائی اوکړه اودا تصریح ده پدې چې انبیاء کرام محتاجه وو الله ﷻ ته نو معلومه شوه چې مشکل کشا، حاجت روا صرف الله ﷻ دې.

﴿قَالَ عَمَّا قَلِيلٍ﴾ الله ﷻ حضرت هود ﷺ ته دَدعاقبلیدلو خبرورکړو او "عن" په ﴿عَمَّا﴾ کښې په معنی دَ "بعد" سره دې او "ما" زائده ده دَتاکید دَقلت دَپاره ده او "قلیل" صفت دې دَ "زمن" محذوف دَ پاره اي: بعدزمن قلیل، اوداهم جائزه ده چې "ما" نکره موصوفه شي اوقلیل ورله صفت شي یعنی الله ﷻ ورته اوفرمائیلو چې صبراوکړه دیرلږ وخت ورستو په دوئ باندې عذاب راتلونکې دې ﴿لَّيُصْبِحُنَّ نَادِمِينَ﴾ اکثرعذابونه په وخت دَصبا کښې راغلیدی نوځکه "لیصبحن" اونیلې شو او ﴿نَادِمِينَ﴾ مقصد دادې چې کله دوئ معاینه اومشاهده دَعذاب اوکړی نو په دغه وخت کښې به دوئ په دې خپل کفراوتکذیب باندې به پښیمانه شي، لیکن په دغه وخت کښې پښیمانتیا فائده نه ورکوي

﴿فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ﴾ تفصیل ئې مخکښې تیرشویدې چې دَسیلئ سره سره په دوئ باندې عذاب دَصیحې هم راغلې وو اویادَ صیحة نه مرادمهلك عذاب دې اویاترینه مراد صیحه دَسیلئ ده.

﴿بِالْحَقِّ﴾ جارمجرورمتعلق دې په "اخذت" پورې او "حق" نه مراد هغه عذاب ثابت دې چې ماسوا دَ الله ﷻ نه څوك هم دَهغې دَپاره دفع کوونکې نه وو (روح) اویا "حق" په معنی دَعدل او استحقاق سره دې، یعنی دوئ ته عذاب ورکول اودوئ هلاکول په عدل سره وو یعنی دوئ ئې مستحق وو (کبیر) ﴿فَجَعَلْنَاهُمْ غُثَاءً﴾ غثاء هغه خس وخشاك ته وئیلې کیږی چې دَسیلاب په وخت کښې دَابو دَپاسه روان وي، پدې کښې اشاره ده سختئ دعذاب ته، چې قوم عاد باوجود دَدې چې دَ "من اشد منا قوة" نعره ئې لګوله خو دالله ﷻ دعذاب په مخکښې بالکل بې حیثیته وو، لکه څرنګه

چې د سیلاب د پاسه خس وخشاک بې حیثیته روان وي ﴿فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِیْنَ﴾ دا په معنی د بدعا سره دي او د دینه مخکښ فعل مقدر دې چې بعُدوا دي لکه شکراً، سقیا، جدعا وغیره شو

﴿ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ﴾ دا دریم دلیل نقلي دی. مراد ترینه قوم صالح ؑ، قوم لوط ؑ او قوم شعیب ؑ دي ﴿مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ﴾ امة فاعل د تسبق دي او من زائد دي. یعنی کوم وخت چې د هلاکت د پاره مقرر وو په هغې کښ څه ردوبدل نه وو راغلي.

ثُمَّ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَا ؕ كُلَّمَا جَآءَ اُمَّةً رَّسُوْلُهَا كَذَّبُوْهُ

بیا اولیږلو مونږ خپل رسولان پرله پسې. هرکله چې راغې یو امت ته رسول د هغوی نو دروغژن به اوئیل دوی هغه ته

فَاَتْبَعْنَا بَعْضَهُمْ بَعْضًا وَّجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِیْثَ ۚ فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ

پس هلاک کړل مونږ بعضي د دوی ورستو د بعضونه او اوګرځولو مونږ دوی قصې د عبرت. پس هلاکت دې هغه قوم لره

لَّا یُؤْمِنُوْنَ ﴿۴۴﴾ ثُمَّ اَرْسَلْنَا مُوْسٰی وَاَخَاهُ هٰرُوْنَ ۬ۙ بِاٰیٰتِنَا وَ سُلْطٰنٍ مُّبِیْنٍ ﴿۴۵﴾

چې ایمان نه لري بیا اولیږلو مونږ موسیٰ او ورور د هغه هارون په خپلو نښانو (دلائلو) سره او په دلیل ښکاره سره

اِلٰی فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا عَالِیْنَ ﴿۴۶﴾ فَقَالُوْٓا

فرعون ته او د غټانو د قوم هغه ته نو لوئي اوکړه دوی او وو دوی قوم زوراور، پس اوئیل دوی

اَنُؤْمِنُ لِبَشَرَیْنِ مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عٰبِدُوْنَ ﴿۴۷﴾ فَكَذَّبُوْ

آیا خبره اومنو مونږ د دوه سړو چې زمونږ پشان دي او قوم د دې دواړو زمونږ بندګي کوونکي دي نو دروغژن ئې اوګڼړل

هُمَا فَكَانُوْا مِنَ الْمُهْلَكِیْنَ ﴿۴۸﴾ وَلَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسَی الْكِتٰبَ لَعَلَّهُمْ یَهْتَدُوْنَ ﴿۴۹﴾

هغوی. نو شول دوی د هلاک کړې شوونه. او یقیناً ورکړې وو مونږ موسی ته کتاب د دې د پاره چې دوی هدایت اومومي

وَ جَعَلْنَا ابْنَ مَرْیَمَ وَ اُمَّهٗٓ اٰیَةً وَّ اٰوَیْنٰهُمَآ

او ګرځولي دي مونږ خوئ د مریم او مور د هغه نخښه او ځائي ورکړې وو مونږ دواړو ته

﴿إِلَىٰ رَبْوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ وَمَعِينٍ ۝﴾

په خربې غونډئ باندې چې دارام ځائ او چينه دارو و

﴿ثُمَّ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا﴾ اجمالي طور هغه ټول رسولان مراد دي چې دهود ﷺ نه تر موسیٰ ﷺ پورې پرله پسې راغلي وو. ﴿تَتْرَا﴾ په وزن دفعلیٰ باندې مأخوذ دې د وتر نه. واو په تاء سره بدل شوي دې او دينه متواتر هم دې او "تترا" او متواتر وئيلې کيږي هغه پرله پسې والي ته چې سره مهلت او فصل نه وي ﴿كُلَّ مَا جَآءَ أُمَّةً﴾ مراد په مجيئت سره دعوت ورکول دي داحکاماتو دالله ﷻ ﴿كَذَّبُوهُ﴾ مراد ترينه تکذيب داکثر ودې چونکه اکثر لره حکم دکل وي نو دې وجهې نه نسبت د تکذيب ټولو ته اوشو. ﴿وَجَعَلْنَٰهُمْ أَحَادِيثَ﴾ داجمع د "احدوثة" ده، لکه اعاجيب جمع داعجوبة ده او احدوثه هغې واقعې ته وئيلې کيږي چې بطور تعجب بيانيږي او مقصود ترينه عبرت وي، او اخفش فرمائي چې دالفظ په شر کښې استعماليږي.

﴿ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ﴾ داخلورم دليل نقلي دې په نفي دشرك في التصرف باندې، دموسیٰ ﷺ او هارون ﷺ نه او ﴿بِآيَاتِنَا﴾ نه مراد نهه معجزات دي چې په سورة اعراف او سورة اسراء کښې ذکر شويدي او ﴿وَسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ﴾ نه مراد يا حجت واضحه دي او يا ورنه عصادموسیٰ ﷺ مراد ده او عطف دقبيلې عطف الخاص على العام نه دې او تخصيص ئې دپاره دتعظيم دې ځکه چې دا عصا ام المعجزات وه ډير معجزات پدې سره صادر شوي وو، او بعض فرمائي چې ﴿وَسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ﴾ نه مراد رعب او دبدبه دموسیٰ ﷺ وه په دشمن باندې. ﴿إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِيْهِۦ﴾ دملأ نه مراد يا مشران دقوم دي، او تخصيص دمشرانو ځکه او شو چې کشران ددوئ تابع دي او يا ملاء په معنی دمطلق قوم سره دې ﴿فَقَالُوٓا أَنُؤْمِنُ﴾ دابيان د ﴿فَٱسْتَكْبَرُوا﴾ دې او ايمان چې کله متعدی شي په لام سره نو مراد تينه اطاعت او انقياد وي، يعنی دوئ اوئيل چې مونږ ددوئ خبره او منو داخو زمونږ پشان بشر دې ﴿وَقَوْمُهُمَا لَنَا عَٰبِدُونَ﴾ دابيان د ﴿قَوْمًا عَالِينَ﴾ دې يعنی ددوئ قوم بنی اسرائيل

خوزمونږخادمان اوغلامان دی﴿فَكَذَّبُوهُمَا﴾ مراد ترینه استمراردې په تکذیب اواصراردې په استکبار.

﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى﴾دکتاب نه مراد تورات دې چې موسیٰ علیه السلام ته ورستودغرق کیدلودَ فرعونیانونه.ورکړې شوې وو.

﴿وَجَعَلْنَا ٱبْنَ مَرْيَمَ﴾داپنځم دلیل نقلي دې دَحضرت عیسیٰ علیه السلام اودهغه دَمورحضرت مریم رضي الله عنها نه چې حضرت مریم رضي الله عنها حمل جوړیدل، حضرت عیسیٰ علیه السلام بغیردَپلارنه پیداکیدل اوورکوالی کښې دَموریه غیږکښې اعلان توحید کول،داټول دَالله جل جلاله دکامل قدرت دلائل دی.

اوهرکله چې دَحضرت مریم رضي الله عنها حامله کیدل بغیردَنزدیکت دَبشرنه اوحضرت عیسیٰ علیه السلام پیداکیدل بغیردَپلارنه، دواړه یوه نشاني وه نوځکه آیة مفرد ذکرشو.اویاترینه مراد جنس ایة دې نوپدې اعتبارسره بیادَهریو والا جداجدا حالاتوته اشاره مقصودده لکه حضرت مریم بی بی ته بې موسمه میوې راتلل،خلاف عادت غتې دل،بغیردَنزدیکت دَبشرنه حامله کیدل وغیره شو، اوحضرت عیسیٰ علیه السلام بغیردَپلارنه پیداکیدل، وړوکوالئ کښې خبرې کول، مړی ژوندی کول، برص مریض اومادرزاد ړوند علاج کول وغیره شو.

﴿وَءَاوَيْنَٰهُمَآ إِلَىٰ رَبْوَةٍ﴾ربوه اوچتې سطحې والا سربې زمکې ته وئیلې کیږي،(ابن کثیر) اودَ﴿ذَاتِ قَرَارٍ﴾مقصد دادې چې دغه زمکه دَاوسیدلودَپاره صالحه وه،میوې اوفصلونه پکښې وو،او "معین"مقصد دادې چې دَاوبو والاچینې پکښې وې،یعنی دې موراوځوی ته مونږ په داسې ځائ کښې پناه ورکړه چې بلند ،میوواوفصلونواودَچینووالاځائ وو، قرآن اویاحدیث صحیحه کښې دَدې تصریح نیشته دې چې دَدینه کومه علاقه مراده؟ دَدی وجهې نه دَدې په تعیین کښې دَ مفسرینومختلف ارآء دی، چې دَدینه مرادبیت اللحم، رمله،مصر، فلسطین، شام وغیره دې، لیکن غوره قول دادې چې ددینه مرادبیت المقدس دې اوسبب دَدې ایوا«پناه»دااووچې یو مجوسي بادشاه«هیرودس»دَحضرت عیسیٰ علیه السلام دَقتل اراده اوکړه نوحضرت مریم بی بی دَعیسیٰ علیه السلام سره دغې مذکورمقام ته هجرت اوکړو،اودولس کاله ورستوچې کله الله جل جلاله دغه بادشاه هلاك کړو نودوئ واپس خپلې علاقې ته راغلو.

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلرُّسُلُ كُلُوا۟ مِنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَٱعْمَلُوا۟ صَٰلِحًا ۖ إِنِّى بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ۝٥١ |
|---|
| اې رسولانو خورئ دحلال ښيزونو نه اوعملونه کوئ نيک.بيشکه زه په هغه عملونوچې تاسو ئې کوئ پوهه يم |
| وَإِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱتَّقُونِ ۝٥٢ فَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ |
| اوبيشکه دادين ستاسو دي دين يو .اوزه ستاسورب يم پس اوويريږئ زمانه. نو ټکرې کړودوئ دين خپل پخپل مينځ کښې |
| زُبُرًا ۖ كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ۝٥٣ فَذَرْهُمْ فِى غَمْرَتِهِمْ |
| ټکرې ټکرې هره فرقه په هغه دين چې ددوئ سره دي خوشحاليږي.پس پريږده دوئ لره په ګمراهئ ددوئ کښې |
| حَتَّىٰ حِينٍ ۝٥٤ أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِۦ مِن مَّالٍ وَبَنِينَ ۝٥٥ نُسَارِعُ لَهُمْ |
| ترېو وخته پورې. آياګمان کوي دوئ چې بيشکه هغه چې مونږ زياته وو دوئ لره مال اوځامن دازربدله ورکوودوئ لره |
| فِى ٱلْخَيْرَٰتِ ۚ بَل لَّا يَشْعُرُونَ ۝٥٦ |
| دنيک عملونودوجهې نه.بلکه دوئ نه پوهيږي |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلرُّسُلُ كُلُوا۟﴾ دا شپږم دليل نقلي اجمالي دې دټولو انبياء کرامونه، مخکښې دلائل په نفي دشرک فی التصرف باندې وو، اودادليل په نفي دشرک فعلي باندې دې اودانداء اوخطاب ټولو انبياء کراموته په خپل خپل دوراوخپل خپل وخت کښې وو اودډينه مخکښې(قلنا)مقدردې يعنې مونږ هرپيغمبرته په خپل خپل دورکښې داخطاب اوحکم کړې چې حلال اوپاک خوراک کوئ او حلال ښيزونه ته حرام مه وايئ اوناپاک ښيزونه مثلانذرلغيرالله وغيره نه ځان بچ ساتئ. نود

﴿ٱلطَّيِّبَٰتِ﴾ نه مرادهغه رزق دې چې دحرمت دشبهې نه هم پاک وي.

﴿وَٱعْمَلُوا۟ صَٰلِحًا﴾ هرکله چې رزق حلال ذريعه دبرکات علمي اوعملي دپاره ګرځي يعنې په حلال خوراک سره انسان ته په عبادت کښې شوق اورغبت ميلاويږي نودډې وجهې نه دحلال خوراک حکم ورکولوپسې متصل دعمل صالح حکم ورکړې شو اوچونکه حلال خوراک سبب دقبوليت عمل صالح وو ،يعنې حلال خوراک موقوف عليه دې دقبوليت عمل صالح دپاره، نودډې وجهې نه

دحلال خوراك حكم اول وركړي شو او په مشهور حديث كښې دي ان الله تعالى لايقبل عبادة من في جوفه لقمة من حرام، يعنې الله ﷻ دهغه چاعبادت نه قبلوي چې دهغه په ګېډه كښې يوه لقمه دحرامو وي، او په يوبل روايت كښې دي انما لحم نبت من سحتٍ فالنار اولى به يعنې كومه غوښه چې دحرام مال په ذريعې سره شوې وي نو هغه د اور سره ډېره مناسبه ده.

**حكايت** بعض تاريخي كتابونو واقعه ذكر كړېده چې يو خلې امام شافعي رحمه الله خپل شاګرد امام احمد بن حنبل رحمه الله ته خبر اوكړو چې خما ملاقات له مصر ته راشه، نو امام احمد بن حنبل رحمه الله راروان شو، امام شافعي رحمه الله خپل كور كښې كوروالو ته اوبچوته ډېر تاكيد اوكړو چې يو عظيم شخصيت او دوخت امام به زمونږ كور كښې ميلمه وي په ښه شان دهغه ميلمستيا اوكړئ، بهرحال امام احمد بن حنبل رحمه الله چې كله راغي او ماښام روټئ دپاره دسترخوان واچولې شو او خوراك شروع شو نو امام احمد بن حنبل رحمه الله ډېر زيات خوراك اوكړو، نو د امام شافعي رحمه الله كوروالا خلك حيران شو چې دا څرنګه امام دي چې دومره ډېر خوراك كوي بيا چې كله دشپې ارام دپاره ځائ جوړ كړې شو نو دتهجد د كولو دپاره اودس والا اوبه هم ورته كېخودلې شوې، نو سهار چې دكور خلكو اوكتلو نو هغه اوبه هم هغه شان پرتې وې، نو نور حيرانه شو او امام شافعي رحمه الله نه ئې پوښتنه اوكړه چې دا څرنګه امام دې چې يو خوئې خوراك ډېر زيات اوكړو، چې دا د اهل علمو شان ندې، او دويم دشپې ئې تهجد هم ندې كړې امام شافعي رحمه الله دخپل شاګرد امام احمد رحمه الله نه پوښتنه اوكړه چې دا تبديلي په تاكښې كوم وخت نه راغلېده چې دشپې تهجد دې هم پرېخې دې، نو امام احمد رحمه الله ورته حقيقت حال بيان كړو چې كله ماته خوراك كېخودلې شو نو ما په هغې كښې انوارات محسوس كړل نو ماته پته اولګېده چې دا ډېر پاك او حلال مال دې، نو ما پدې بنياد ډېر خوراك اوكړو چې پته نشته دې چې بيا دغه شان پاك او حلال رزق كله ماته نصيب كيږي او دهغې خوراك بركت وو چې ټوله شپه الله ﷻ ماته دعبادت توفيق راكړو او دقرآن مجيد د ايات نه سل ۱۰۰ هغه مسائل ما مستنبط كړو چې تر اوسه پورې ماته پكښې مشكلات وو.

﴿وَإِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ﴾ دا عطف دى په (كلوا) باندې او دا خطاب هم انبياء كرامو ته دې او يا خطاب عام دې انبياء كرامو او غير انبياؤ ټولو خلكوته دې او په (هذه) سره اشاره ده مذكور احكاماتو ته او ﴿أُمَّةً﴾ په معنى دملت او شريعت سره دې او ﴿أُمَّةً وَٰحِدَةً﴾ حال دې دمضمون د ﴿وَإِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ﴾ نه او د دې ايت تعلق دما قبل ټولو دلائلو عقليو او نقليو سره دې، يعنې دماقبل ټولو دلائلو عقليو، نقليو ته

داثابته شوه چې دټولو انبیاء کرامو ملت اوشریعت په اعتبار دَاصولو سره یووو ،په عقیدې دتوحیداوپه نفي دَشرك اعتقادي اوفعلي باندې ټول متفق وو

﴿وَأَنَا رَبُّكُمْ﴾ داعطف تفسیري دې دَدینه مقصود تفسیر دَ﴿هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ﴾ دې او ﴿فَاتَّقُونِ﴾ په منزله دَنتیجي دې اوهرکله چې دلته په ماقبل کښې ذکردَهلاکت دَامتونووو ، نوځکه ورپسې ذکردَ﴿فَاتَّقُونِ﴾اوشو چې داډیرمناسب دې دَتحذیراویرې سره اودغه شان ذکرپه سورة الانبیاء کښې هم دی،خوهلته کښې دَ﴿فَاتَّقُونِ﴾په ځائ دَ فاعبدون ذکرووو ،ځکه چې هلته کښې ماقبل کښې ذکردَانعاماتو اواحساناتووو نودَهغې سره مناسب حکم په عبادت سره وو(بحر).

﴿فَتَقَطَّعُوٓاْ أَمْرَهُم﴾ دادَیومقدرسوال جواب دې، سوال داکیدلو چې هرکله ټول انبیاء کرام په عقیدې دَتوحیداوپه نفي دَشرك اعتقادي،فعلي وغیره باندې متفق وونوبیاداشرك اعتقادي اوفعلي وغیره څرنګه پیداشول؟ نوجواب ترینه اوشوچې ټولوانبیاء کرام اودَهغوئ ملتونه په توحیدباندې متفق وو ،خودنیاپرست اوخواهش پرستومشرانواوملایانودامتفق دین ټکړې ټکړې کړونو﴿فَتَقَطَّعُوٓاْ﴾کښې ضمیرراجع دې مشرانو اوملایانوته،چې په هغې باندې ملت لفظ دلالت کریدې:الضمیرلمادل علیه الامة من اربابها(روح)په سورة الانبیاء کښې داسې ذکرپه واو سره شویدې یعنی وتقطعوا وئیلې شویدی اودَ زبرا ذکرورسره هم نیشته دې، وجه داده چې هلته کښې اولاذکردانعاماتو شوې وواوانعاماتونه ورستوحکم په عبادت سره ورکړې شوو ،نودَانعام اواحسان نه ورستوعبادت کښې تفرقه راتلل زر(جلتئ سره) نه وی اوچې کومه تفرقه راشي نوډیره زیاته نه نوي، نودَدې وجهې نه هلته تفرقې ذکرپه واو سره اوشو ،اولفظ دَ زبرا هم ورسره ذکرنشو ، اودلته چونکه په ماقبل کښې نفي دَشرك فعلي شوې وه اوحکم ورکړې شویدې دَحلال خوراك اودَحرام نه بچ کیدلو ،اودَخوراك(رزق)په معاملې کښې اختلافات ډیرهم دی اوزرهم پیداشویدی، نودَدې وجهې نه دلته په فاء سره ذکراوشواو زبرا لفظ هم ورسره ذکرشو.

﴿كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ﴾ یعنی دوئ پدې خپل بداعمالوباندې نېپیمانه نوو ،بلکه دا بداعمال ئې دَځان دَپاره ثواب باعث کنړلو اوخوشحاله وورته، ﴿فَذَرْهُمْ﴾ داشکوی بطورزجرذکرکیږی اودکفارو والایوخوحالات بیانیږي چې موجب دَعذاب دی،نوپدې ایت کښې یوحالت ذکرکیږي

چې دَالله ﷻ دَاحکاماتو نه، غفلت او دَناپوهئ باوجود دَپوهې دعوی کول دی، مراد په غمـرة سره غفلت، ضلالت او دَناپوهئ باوجود دَپوهې دعوی کول دی.

﴿حَتّٰى حِيْنٍ﴾ مراد ترینه یا په دنیا کښې دَدوئ قتل دې، او یا اخروي عذاب دې. ﴿اَيَحْسَبُوْنَ اَنَّمَا﴾ دامزید نور احوال موجب دَعذاب دَپاره ذکر کیږي چې غلط گمان. او عدم شعور دې. یعنی دوئ ته چې کوم ډیر مال او اولاد ورکړې شویدی، دَدې په باره کښې دَدوئ خیال دې چې دا زمونږ دَاعمالو نېه اثر او نېه نتیجه او مونږ په حقه یو، حالانکه دا دَالله ﷻ دَطرف نه استدراج دې، خو دوئ نه پوهیږي نو په ﴿اَنَّمَا﴾ کښې ماموصوله اسم دَ(ان) دَپاره دې او عائد پکښې محذوف دې چې (به) دې او ﴿لَا يَشْعُرُوْنَ﴾ دا دَ ﴿اَيَحْسَبُوْن﴾ دَمضمون نه استدراك دې یعنی ددوئ دا گمان غلط دې چې دا دوئ دَنېه اعمالو نتیجه ده بلکه دا استدراج دې خو دوئ دَخاروو پشان دی پدې هم نه پوهیږي چې دا استدراج دې او که مسارعة فی الخیرات دې (کشاف).

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِ |
| بیشکه هغه کسان چې دوئ دَوجهې دَډیرې دَرب خپل نه مینه کوونکي دي دهغه سره. او هغه کسان چه دَوئ په ایاتونو |
| رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ يُؤْتُوْنَ مَآ |
| دَرب خپل باندې ایمان لري او هغه کسان چې دوئ دَخپل رب سره شرك نه کوي. او هغه کسان چې ورکوي هغه څه چې |
| اٰتَوْا وَّقُلُوْبُهُمْ وَجِلَةٌ اَنَّهُمْ اِلٰى رَبِّهِمْ رٰجِعُوْنَ ۝ اُولٰٓئِكَ يُسٰرِعُوْنَ فِى الْخَيْرٰتِ |
| ورکوي او زړونه دَدوئ یره کوونکي وي چې بیشکه دوئ خپل رب طرف ته به گرځي. دغه کسان منډې وهي نیکو کارونه ته |
| وَهُمْ لَهَا سٰبِقُوْنَ ۝ |
| او دوئ هغې ته وړاندې کیږي دَیو بل نه |

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ﴾ دا اعاده دَصفات دَمؤمنینو په مقابله دَحالاتو دکفارو کښې یعنی کفار دنیوي وسائل او مادي منفعتونه ذریعه دَخیر او دَالله ﷻ دَرضا گڼري چې دا مادي منفعتونه څکه مونږ ته میلاؤ شویدی چې الله ﷻ زمونږ نه راضي او خوشحاله دې، حالانکه دغه مال دولت دوئ

دپاره دخیر اوبرکت ذریعه نده بلکه دوئ دپاره ذریعه دعذاب ده. اصل خیر وبرکت مؤمنانو ته میلاویږي چې هغوئ پدې صفاتو مذکوره سره متصف دی ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ هُم﴾ کښې اعاده دمضمون ﴿ٱلَّذِينَ هُمۡ فِي صَلَاتِهِمۡ﴾ ده اوخشية اواشفاق دواړه جمع کول یاتاکیداً دی معنی ددواړو یوه ده. اویاخشية په معنی دعذاب سره دې، لیکن غوره خبره داده چې خشیت دزړه حالت دې او اشفاق دظاهري بدن او اعضاؤ حالت دې. ځکه چې اوّلا په زړه کښې خشیت پیدا شي. اوچې حد کمال ته اورسیږي نوپه ظاهري اعضاؤ کښې ئې اثر ښکاره شي نو بیاورته اشفاق وئیلی کیږی چې داکمال مرتبه دخوف خداده (کبیر).

﴿وَٱلَّذِينَ هُم بِـَٔايَٰتِ﴾ پدیکښې د ﴿قَدۡ أَفۡلَحَ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ﴾ دمضمون اعاده ده او غوره قول دادې چې دآیت نه مراد هرقسم ایاتونه دی که هغه تنزیلیه وي لکه قرآنی ایاتونه شو اویاتکوینیه وي لکه وجود دمخلوقاتو چې ایات اودلائل دی په وجود دخالق اوصانع باندې، او ﴿يُؤۡمِنُونَ﴾ په معنی د یصدقون سره دې اودینه مراد په نفس وجود ددې اشیاؤباندې تصدیق ندې ځکه چې وجود ددې اشیاؤ ثابت دې بداهة اوحسا، نوپدې باندې تصدیق سبب دمدحې ندې. بلکه مرادترینه تصدیق دې په مدلولاتو ددې اشیاؤ باندې، چې داټول دلائل حق دی اومدلولات ددې ثابت دی.

﴿وَٱلَّذِينَ هُم بِرَبِّهِمۡ﴾ دادَ والّذين هم عن اللّغو معرضون دمضمون اعاده ده اود ﴿لَا يُشۡرِكُونَ﴾ نه مراد نفی دهرقسم شرك ده که جلي اویاخفي وي،

﴿وَٱلَّذِينَ يُؤۡتُونَ﴾ دادَ والّذين هم للزّكوة فاعلون دمضمون اعاده ده او ﴿يُؤۡتُونَ﴾ په معنی دیعطون سره دې اود ﴿مَآ ءَاتَوا﴾ نه مراد ټول هغه حقوق دی چې دهغې ایتاءیعنی پوره کول ضروری وي که هغه حقوق الله وي لکه مونځ، زکوة وغیره شو، یاحقوق العباد وي لکه امانات وغیره شو ﴿وَّقُلُوبُهُمۡ وَجِلَةٌ﴾ یعنې دنیك کارونو کولو باوجود ددوئ په زړونو کښې داخوف موجودوي چې ددوئ دانیك اعمال به قبول کړې شي اوکه نه؟ اودادکمال ایمان علامه ده چې انسان ته خپل نیك اعمال ناقص ښکاره شي، اودنه قبولیت خوف اوخطره ئې په زړه کښې موجوده وي بلکه دمؤمن شان دادې چې هغه دخپل ایمان په باره کښې هم بې فکره نه وي اوپه خوف کښې وي، امام بخاري رحمه الله پدې باندې

مستقل باب وضع کړیدي په کتاب الایمان کښې باب خوف المؤمن ان يحبط عمله. او په حدیث د ترمذی شریف کښې دي چې حضرت عائشې ﷞ د دې ایت په باره کښې د نبي پاك ﷺ نه پوښتنه اوکړه چې یارسول الله ﷺ د دینه مراد هغه خلك دي چې غلا، زناکوي او شراب څکي خو د الله ﷻ نه یره کوي. نبی پاك ﷺ او فرمائیلو چې نه، بلکه د دینه مراد هغه خلك دي چې روژې نیسي. مونځونه کوي او زکوة ورکوي خو بیا هم یریږي چې قبول به کړې شي او که نه. او حضرت حسن بصري ﷫ نه مروي دي چې مؤمن کښې نیکیاني او خوف جمع وي او کافر کښې ګناه او امن جمع وي ﴿أَنَّهُمْ إِلَىٰ رَبِّهِمْ﴾ د اعلت دي د ماقبل د پاره او د لنه لام تعلیلیه مقدر دي. یعنی دوئ کښې دایره ځکه موجوده وي چې د دوئ عقیده داوي چې مونږ به د الله ﷻ دربارته واپس کیږو او حساب و کتاب به راسره کیږي، او یا د لته من ابتدائیه مقدر دي یعنی د دوئ خوف ناشي وي د دینه چې د دوئ عقیده د قیامت وي، چې مونږ به د الله ﷻ په دربار کښې پیشي ورکوو.

﴿أُولَٰئِكَ يُسَارِعُونَ﴾ په "اولئك" سره اشاره ده هغه کسانو ته چې متصف دي په اوصافو مذکوره سره ﴿يُسَارِعُونَ﴾ باب مفاعله د پاره د مبالغې ده او "خیرات" نه مراد طاعات دي یعنی کوم کسان چې په دغه مذکور اوصافو باندې متصف وي نو هغوئ د طاعاتو پابندي کوي او هغې طرف ته جلتي کوي او د خپل وخت نه ئې نه بې وخته کوي (کشاف) او یا د خیرات نه مراد برکات او منافع دنیوي دی، چې هغه یو مؤمن ته د نیك اعمالو د وجهې نه په دنیا کښې د اخرت نه مخکښې میلاویږي. او په اخرت کښې ورته بیا لوئ لوئ اجرونه دی. نو د ایت مطلب دادې چې په دغه مذکور اوصافو سره متصف کسان د نیك اعمالو په ذریعې سره منافع او برکات دنیوي، اخروي حاصلولو د پاره مسارعت او تیزي کوي او د غه شان مضمون ذکر په سورة ال عمران ایت نمبر (۱۴۸) کښې هم ذکر دی.

﴿وَهُمْ لَهَا سَابِقُونَ﴾ "لها" کښې "لام" یا په معنی د "الی" سره دي لکه بانّ ربّك اوحٰی لها کښې لام په معنی د "الی" سره دي او یا لام اجلیه او تعلیلیه دي ای وهـم لاجلها فـاعلون السبق (روح) یعنی د دې برکاتو حاصلولو د وجهې نه دوئ نیك اعمالو ته جلتي کوونکي دی او بعض فرمائی چې لام زائده دې د پاره د تاکید دي (فتح)

| |
|---|
| وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا وَلَدَيْنَا كِتٰبٌ يَّنْطِقُ بِالْحَقِّ |
| او تكليف نه وركوو مونږ هيڅ يو نفس ته مګر په قدر دَوس دهغه اوزمونږ سره كتاب دې چې ګويا به شي په حق وښيلو سره |
| وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۶۲﴾ بَلْ قُلُوْبُهُمْ فِيْ غَمْرَةٍ مِّنْ هٰذَا وَلَهُمْ اَعْمَالٌ مِّنْ دُوْنِ |
| او په دوئ باندې به ظلم نشي كيدې .بلكه زړونه دَدوئ په غفلت كښ دى دَدې كتاب نه او دوئ لره نور عملونه دي سيوا ددې |
| ذٰلِكَ هُمْ لَهَا عٰمِلُوْنَ ﴿۶۳﴾ حَتّٰى إِذَا اَخَذْنَا مُتْرَفِيْهِمْ بِالْعَذَابِ إِذَا هُمْ |
| عملونونه دوئ هغې لره كوونكي دى، ترهغې پورې چې كله اونيسومونږ عيش پرست دَدوئ په عذاب سره نودغه وخت به |
| يَجْـَٔرُوْنَ ﴿۶۴﴾ لَا تَجْـَٔرُوا الْيَوْمَ إِنَّكُمْ مِّنَّا لَا تُنْصَرُوْنَ ﴿۶۵﴾ |
| دوئ كرنجيګي (فرياد به كوي) او به وئيلې شي مه كرنجيګئ نن ورځ بيشكه زمونږ دَطرف نه هيڅ مدد نشي كيدلې دستاسو |
| قَدْ كَانَتْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَكُنْتُمْ عَلٰى اَعْقَابِكُمْ تَنْكِصُوْنَ ﴿۶۶﴾ |
| يقيناً وواياتونه ځماچې لوستلې به شوپه تاسوباندې پس وئ تاسوپه پوندوخپلوباندې اوړيدلې |
| مُسْتَكْبِرِيْنَ ۖ بِهٖ سٰمِرًا تَهْجُرُوْنَ ﴿۶۷﴾ |
| لوئى كوونكي وئ په دې (قرآن ياحرم) باندې قصې كونكي وئ پريخودو به تاسو دې قران لره. |

﴿وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا﴾ دا جمله معترضه دَپاره دَدفع توهم ده چا به توهم كولو چې چه دغه صفات مذكوره اونيك كارونه كول او درجات حاصلول به ډير مشكل او ګران به وي نو دَدې توهم دفعيه اوكړې شوه چې دا صفات مذكوره په ځان كښ راويستل ګران ندى ځكه چې دَانسان دَوسعت او طاقت نه بهرندى ﴿وَلَدَيْنَا كِتٰبٌ﴾ دا تسلى ده مؤمنانو ته او تخويف دې كافرانو ته، او كتاب اسم جنس دې مراد ترينه عملنامې يعنى صحيفه اعمال دى (قرطبى) ﴿وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ﴾ يعنى دَچا حق تلفى به نه كيږي چې په نيكيانو كښ ئى كمې راوستلې شي اويا په ګناهونو كښ اضافه اوكړې شي .

﴿بَلْ قُلُوبُهُمْ فِي غَمْرَةٍ﴾ بل اضرابيه دي اودارجوع ده حالاتو دَمنكرينوته، اويا بل دَپاره دَترقى دي اوداامتصل دي دَ﴿بَل لَا يَشْعُرُونَ﴾ سره اوپه مشار اليه دَ هذا كښې درې(۳) احتمالات دي:

(۱) يو داچې مشار اليه دَدې قرآن دې(۲) دويم داچې مشار اليه دَدې عملنامې شي (۳) اودريم داچې مشار اليه ددې اعمال البريعني صفات دَمؤمنانوشي، ﴿وَلَهُمْ أَعْمَالٌ مِّن دُونِ ذَٰلِكَ﴾ په ذلك سره اشاره ده كفراوغمرة طرف ته يعنى دكفراوشكرنه علاوه دوئ دَپاره نورهم ډيربدعملونه دي چې هغه موجب دَدخول دَنار دپاره دى اويا په ذلك سره اشاره ده اعمال دَمؤمنانوته يعنى دوئ دَپاره دَمؤمنانو دَاعمالونه علاوه نور اعمال دي يعنى كفراوشرك. ﴿هُمْ لَهَا عَامِلُونَ﴾ په ديكښې اشاره ده استمرار ددوئ ته په بدو اعمالو باندې

﴿حَتَّىٰ إِذَا أَخَذْنَا﴾ داتخويف دنيوي دې، حتى حرف ابتداء دې او اذا شرطيه دې اوجمله شرطيه غايه دَماقبل ﴿هُمْ لَهَا عَامِلُونَ﴾ دپاره ده، اودويم اذا مفاجاتيه دې، قائمقام دَ فا جزائيه دې اوداجمله جزاء ده دَشرط او ﴿مترفيهم﴾ كښې اشاره ده سبب عذاب ته چې هغه عيش پرستي ده اومراد په عذاب سره عام دې، كه هغه په جنګ بدر كښې رؤسآء مشركينو قتل وو يا په مشركين مكه باندې قحط مسلط كيدل وو اويانور دنيوي عذابونه وو

﴿لَا تَجْأَرُوا الْيَوْمَ﴾ دَدينه مخكښې لفظ دَ قلنا مقدر دې اوداورته ملائك په حالت دَنزع كښې وائى اويا تقدير ته ضرورت نيشته دې بلكه دابه ورته په زبان حال سره وئيلې كيږي، چې چيغې اوفرياد مه كوئ داتاسوته هيڅ فائده نه دركوي اويامقصود دَنهي نه اخباردې يعنى كه تاسو ډيرې چيغې اوهئ نو تاسوته به هيڅ فائده نه دركوي(قرطبى). ﴿إِنَّكُم مِّنَّا لَا تُنصَرُونَ﴾ منا په معنى دَ من عـذابنا سره دې او ﴿لَا تُنصَرُونَ﴾ په معنى دَ لاتمنعون سره دې.

﴿قد كانت آيتي﴾ داعلت دې دَ﴿لَا تُنصَرُونَ﴾ دپاره، ﴿فَكُنتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ﴾ داكنايه ده دَاعراض اوعدم قبول نه، يعنى دَقران اياتونو تلاوت اواوريدلو وخت كښې به تاسو اعراض كولو.

﴿مُسْتَكْبِرِينَ﴾ داحال دي دَضمير فاعل دَ تنكصون نه او سبب دَاعراض دَدوئ ذكر كيږي، يعني تاسو به دَقرآن نه اعَراض ځکه کولو چې تاسولوئي اوتکبر کوونکی وئ. ﴿بِهِۦ﴾ "باء" سببيه ده او ضمير راجع دي حرم او ياخانه کعبې ته او دا اګرچه مذکور ندي ماقبل کښې. ليکن دَدوئ تکبر او فخر په حرم او خانه کعبه باندې معروف او مشهور و ځکه چې دوئ به ډیر په فخر سره داخبره کوله چې مونږ اهل حرم يو په مونږ باندې څوك نشي غالب کيدلې. نو دَشهرت دَوجهې نه بغير دَذکر نه ارجاع دَضمير ورته او کړې شوه (کشاف) او يا "باء" په معنی دَ "عن" سره ده او ضمير راجع دي قرآن ته، چې هغه مفهوم کيږي دَ آيتي نه ﴿سَٰمِرًا﴾ دا يا په معنی دَ "تسمرون" (جمعي) سره دي او دا دَمشرکينو عادت وو چې دَشپې په وخت کښې به راجمع شول او ګپ شپ به ئې لګولو نو دَقرآن نه به ئې تکبر کولو او دَشپې فضول ګپ شپ لګول خصلت دَمشرکانو دي او دې وجهې نه په حديث کښې دَماسخوتن نه ورسته ګپ شپ لګولو نه ممانعت راغليدې سوا دَدين خبرو او دَخپل اهل وعيال سره خبرو کولو نه او ﴿تَهْجُرُونَ﴾ دَ "هجر" (بالفتح) نه دي په معنی دَفضول او بې هوده خبرو سره دي يعني دوئ به دَقرآن خلاف بيهوده خبرې کولې، چا به قرآن ته سحر، چا به شعر او چا به کذب وئيلو او يا ﴿سَٰمِرًا﴾ مفرد اسم فاعل دي او دَدينه مخکښې عبارت مقدر دي چې "تظنون" دي يعني تظنون بـه سـمرا" يعنی په دې نبي ﷺ باندې تاسو دَقصه ګوګمان کوئ او "تهجرون" پدې اعتبار سره يا دَ "هَجر" (بالفتح) نه دي او يا دَ "هجر" (بالكسر) نه دي په معنی دَپريخودلو سره او حضرت شيخ رحمه الله رائ داده چې ﴿سَٰمِرًا﴾ په معنی دَ "واعظا" سره دي او دا مفعول به مقدم دي دَ ﴿تَهْجُرُونَ﴾ دَپاره او ﴿تَهْجُرُونَ﴾ دَ هجر (بالكسر) نه دي اى هجرون واعظا، يعنی تاسو دَدې قرآن قاري او واعظ لره پريخودونکی يئ او دَهغه دَوعظ او تلاوت نه اعراض کوونکی يئ.

**أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ أَمْ جَاءَهُم مَّا لَمْ يَأْتِ آبَاءَهُمُ الْأَوَّلِينَ ﴿٦٨﴾**

آيا پس سوچ نه کوي دوئ پدې قرآن يا راغليدې دوئ ته هغه څيزچې نووراغلې مشرانودوئ مخکو

أَمْ لَمْ يَعْرِفُوا رَسُولَهُمْ فَهُمْ لَهُ مُنْكِرُونَ ﴿٦٩﴾ أَمْ يَقُولُونَ بِهِ جِنَّةٌ ۚ بَلْ

آیادوی نه پیژني رسول خپل پس دوی هغه ناآشناګڼونکي دي آیادوی وائي چې پده باندې لیونتوب دي بلکه

جَاءَهُمْ بِالْحَقِّ وَأَكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كَارِهُونَ ﴿٧٠﴾ وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ أَهْوَاءَهُمْ

هغه راوړی دی دوی ته حق اواکثردوی نه حق لره بدګڼونکي دي اوکچېرې تابع وی‌موافق وی‌حق ددوی دخواهشاتو

لَفَسَدَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ وَمَنْ فِيهِنَّ ۚ بَلْ أَتَيْنَاهُمْ بِذِكْرِهِمْ

خامخاخراب شوي به وې اسمانونه اوزمکې اوهغه څوك چې پدې کښ دي بلکه راوړي دي مونږدوی له یاداشت ددوی

فَهُمْ عَنْ ذِكْرِهِمْ مُعْرِضُونَ ﴿٧١﴾ أَمْ تَسْأَلُهُمْ خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ ۖ وَهُوَ

پس دوی دیاداشت خپل نه مخ ګرځوي آیاته غواړې ددوی نه آمدن‌مزدوري‌پس آمدن‌بخشش‌ درب ستادیرغوره دې اوهغه

خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴿٧٢﴾ وَإِنَّكَ لَتَدْعُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ﴿٧٣﴾ وَإِنَّ الَّذِينَ

ډیرغوره رزق ورکوونکي دې اوبیشکه ته یقیناًرابلې دوی سمې‌نیغې‌لارې ته اوبیشکه هغه کسان

لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ عَنِ الصِّرَاطِ لَنَاكِبُونَ ﴿٧٤﴾ وَلَوْ رَحِمْنَاهُمْ

چې یقین نه لري په اخرت باندې دسمې لارې نه خامخااوړیدونکي دي اوکچېرې رحم اوکړومونږپه دوی باندې

وَكَشَفْنَا مَا بِهِمْ مِنْ ضُرٍّ لَلَجُّوا فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿٧٥﴾

اولرې کړوهغه چې په دوی باندې څه تکلیف وي خامخابیابه هم ورننوځي به په سرکشۍ خپله کښ سرګردانه به وي

وَلَقَدْ أَخَذْنَاهُمْ بِالْعَذَابِ فَمَا اسْتَكَانُوا لِرَبِّهِمْ وَمَا يَتَضَرَّعُونَ ﴿٧٦﴾

اویقیناًنیولي وومونږدوی په عذاب سره پس فرمانبرداري اونکړه دوی درب خپل اونه نی وربه عاجزي اوکړه

حَتَّىٰ إِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيدٍ إِذَا هُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ ﴿٧٧﴾

ترهغې پورې چې کله [illegible] په دوی باندې دروازه د سخت عذاب [illegible] دوی به هغې کښې [illegible]

﴿أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا ٱلْقَوْلَ﴾ دا زجـردي پـه اعـراض دَدوئ بانـدې دَاتبـاع حـق نـه اوپـه غور نـه كولو باندې په قرآن كښې اومراد په قول سره قرآن دې، ﴿أَمْ جَآءَهُم﴾ استفهام دلته دپاره دَانكاردې خو انكاردَواقع نه دې. نه ده وقوع نه. بلكه وقوع ثابت اومتقردې. نومقصد دادې چې دوئ ته داسې خبره اوداسې مسئله نده راغلې چې دَدوئ مشرانوته نوي راغلې چې دوئ ترينه انكار كوي، بلكه هم هغه مسئله ورته داپيغمبربيانوي كومه چې ددوئ مشرانوته راغلې وه يعني مسئله توحيد، اودادومره پخوانئ ده چې دَآدمﷺ نه ئې رااونيسه ټولو انبياء كرامودا مسئله بيان كړيده

﴿أَمْ لَمْ يَعْرِفُوا﴾ دلتـه هـم واقـع ثابـت اووقـوع منفـي دې يعنـي دوئ دَپيغمبـرﷺ اوصـاف صداقت، ديانت، شجاعت، حسن اخلاق وغيره دَمخكښې نه ښه معلوم دي چې دااوصاف لائق دي په انبياء كرامو پورې، ليكن بياهم دوئ دَضداوعناددَوجهې نه ايمان نه راوړي.

﴿فَهُمْ لَهُۥ مُنكِرُونَ﴾ يعني دوئ دَدې پيغمبرنه، څه نااشناخونه دي څلويښت كالو پورې دوئ په ده باندې ازميښتونه كړيدي دده ريښتوني اوصدق ورته ښه معلوم دي

﴿أَمْ يَقُولُونَ بِهِۦ جِنَّةٌ﴾ مقصد دادې چې دوئ نبي پاكﷺ تـه نسبت دَجنون اوليونتوب كـوي. حالانكه دې په عقل، رائې اوسوچ وفكركښې دَهرچانه زيات دې ﴿بَلْ جَآءَهُم بِٱلْحَقِّ﴾ دااضراب دې دَاعتقاد دَدوئ نه چې په هغې باندې سابقه كلام دلالت كوي يعني خبره داسې نده لكه چې دوئ ئې كوي بلكه دې پيغمبرحق دين دوئ ته راوړيدې اودوئ دَضداوعناداودَخپلو مشرانوغلط تقليدد‌َوجهې نه حق قبولو ته تيارنه دي(قرطبی).

﴿وَلَوِ ٱتَّبَعَ ٱلْحَقُّ أَهْوَآءَهُمْ﴾ نه مراد دَدوئ اعتقاد دَشرك اونسبت دَولددې الله ﷻ ته اواتباع نه مراد حقيقة اتباع ده نودايت مقصد دادى كچرته الله ﷻ دَدوئ دَخواهش اتباع اوكړى اودَ ځان سره په الوهيت كښې شريك اونيسى، يااولاد اختياركړى نودكائنات دانظام مشاهدبه ټول درهم برهم شي اوكه دَحق نه مرادپيغمبرﷺ شي نودَايت مقصد به داشي كچرته پيغمبرﷺ دَدوئ دَخواهش اتباع اوكړى اودوئ ته دَشرك اجازت وركړى ياالله ﷻ لره ولدثابت كړي نودَالله ﷻ دَغصې اوغضب دَوجهې نه به داټول نظام فسدشي اوياد حق نه مراد امرثابت للواقع يعني دين ترينه مراددې اودَاتباع نه مراد معنى

مجازي ده یعنی موافقت نو دآیت مقصد دادې کچرته دادین دَدوئ دَخواهش مطابق وی او دَمعبودان باطلو عبادت پکښې جائزوي. او دَدوئ خرافات ته دین وئیلی شوی وی نو داپوره نظام به فاسد او درهم برهم وی. لکه سورة الانبیاء ایت نمبر (۲۳) کښې ذکر دی. ﴿بَلْ أَتَيْنَٰهُم بِذِكْرِهِمْ﴾ بل دَاضراب او انتقال دَپاره دې او دا انتقال دَیو حالت دَهغوئ نه بل حالت او صفت طرف ته دې چې هغه اعراض دې دَحق نه او مراد په "ذکر" سره قرآن دې، چې دا دوئ دَپاره ذریعه دذکر، شهرت او فخر وه او یا "ذکر" نه مراد ددوئ تمناده لکه سورة الصفآت آیت نمبر (۱۶۸) کښې دی یعنی دوئ چې دکوم ذکر تمنا کوله او غوختلوئی هغه ورته راغې خو بیاهم دوئ هغې نه اعراض کوي او حضرت شیخ رحمه الله فرمائی چې "ذکر" په معنی دَمذکور سره دې. یعنی هغه خبره چې دوئ ئې په خپل مینځ کښې ذکر کوي. چې هغه دَالله ﷻ دَوحدانیت اقرار دې. چې دَحج په موقعې باندې به دوئ په تلبیه کښې دَالله ﷻ وحدانیت اقرار کولو. او دا به ئې وئیلو چې لبیك اللهم لبیك لبیك لاشریك لك لبیك نو الله ﷻ فرمائی چې دا خبره دوئ هم کوي خو مونږ ورته تشریح او وضاحت اوکړو نو دوئ ترینه انکار اوکړو

﴿أَمْ تَسْـَٔلُهُمْ خَرْجًا﴾ دا هم زجر دې یعنی ته دَدوئ نه په دعوت او په تعلیم دَدین باندې خوځه نه غواړې، خو بیاهم دوئ ایمان نه راوړي او حق نه انکار کوي، ﴿فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ﴾ "خیر" دا دَماقبل یعنی نفي دَاجرت دَپاره دلیل دې او مراد په "خراج" سره دلته اجر او ثواب دې یعنی دَپیغمبر ﷺ نه دا متصوره نده چې هغه په تعلیم او دعوت باندې اجرت واخلي. ځکه دَدنیا معمولی اجرت په مقابله کښې دَالله ﷻ دَ طرف نه میلاویدونکی اجر او ثواب ډیر غوره دې

**فائده** "خرج" په سکون دَ راء سره او "خراج" کښې فرق دادې چې خرج هغې اعطاء ته وئیلې کیږي چې تبرعاً یعنی بطور بخشش وي او "خراج" هغې ته وئیلې کیږي چې لزوماوي. او دغه شان "خرج" قلیل او لږشي ورکولو ته وئیلی کیږي او خراج ډیرشي ورکولو ته او بار بار ورکولو ته وئیلې کیږي. نو په جانب دَالله ﷻ کښې خراج ذکر کول دَپاره دکمال مبالغې دې او لزوم پکښې تفضلا او احساناً دې

﴿وَإِنَّكَ لَتَدْعُوهُمْ﴾ یعنی اې پیغمبره ستا مطالبه ددین دوئ نه څه ناجائزه نده چې دوئ ستا خبره نه منی. بلکه کومې لارې او دین طرف ته چې ته دوئ رابلې او دعوت ورکوې هغه دین صحیح او حق دین دی ﴿وَإِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ یعنی دَدوئ دَایمان راوړلو دَپاره دَپیغمبر ﷺ دَطرف نه او یا څه بل څه مانع

نیشته دي.صرف وجه داده چې ددوئ په زړونو کښ خوف خدا او دحساب و کتاب یقین نیشته دې. دې وجهې نه دوئ اعراض کوي

﴿وَلَوْ رَحِمْنَٰهُمْ﴾ داتخویف دنیوي دې اوپه کفرسرکشۍ باندې ددوئ دوام ذکر کیږي چې ددوئ کفراوسرکشي دومره حدته رسیدلې ده چې کچرې ددوئ دکفراوبداعمالو دوجهې نه په دوئ باندې راغلې عذاب لرې کړیشي، اوپه دوئ باندې رحم اوکړې شي.نوبیاهم دوئ ایمان نه راوړي بلکه په کفراوسرکشۍ کښ نوره ترقي کوي

﴿وَلَقَدْ أَخَذْنَٰهُم﴾ ضمیرراجع دې کفارمکه ته اومراد په عذاب سره قحط والا عذاب دې چې دنبي ﷺ دبددعادوجهې نه په دوئ باندې تراوه(۷)کالوپورې مسلط وؤ،نبي پاك ﷺ بددعااوکړه. اللهم اعنی علیهم بسنین کسنی یوسف(نسائی ،بیهقی) ترجمه.ای الله ﷻ خمادمدددپاره په دوئ باندې داسې قحط سالي راولې لکه دیوسف الطّیِّبِ په دور کښې دې راوستې وه اودې بددعا په وجهې الله ﷻ په دوئ باندې داسې قحط مسلط کړو چې دلوږې دلاسه به اهل مکه په ګندګۍ کښې به دځرمنې ټکړه اپرته وه هغه به ئې راواخستله اوابه ئې خوړه،آخرکارابوسفیان چې لاترهغه وخته پورې مسلمان شوي نه وو، یوه ورځ نبي ﷺ ته راغې اوعرض ئې اوکړو چې آیاته رحمة للعلمین نه ئې اوته خلکوته دصله رحمۍ حکم نه کوې، نبي پاك ﷺ ورته اوفرمائیلو چې هاؤخه رحمة للعلمین یم اوخلکوته دصله رحمۍ حکم ورکوم، نوابوسفیان عرض اوکړو چې ستادقوم مشران په بدرکښ په تورې سره هلاك کړې شو او کشران ئې په لوږې سره هلاك کیږي.نوته دعااوکړه چې دامسلط قحط ختم کړې شي.نودنبي ﷺ په دعاسره هغه قحط اوچت کړې شونودومره سخت عذاب باوجود اهل مکه نه ایمان راوړو اونه ئې الله ﷻ ته سوال اوزاري اوکړه.

﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِم﴾ غوره خبره داده چې داتخویف اخروي دې اود ﴿عَذَابٍ شَدِيدٍ﴾نه مراد عذاب دجهنم دې یعنی دوئ دخپل رب اطاعت ګزاری نه کوی تردې چې جهنم ته ئې داخل کړولیکن بیابه دوئ ایمان نشي راوړلې اودهرخیرنه به نا امیده وي لکه سورة الزمر ایت نمبر(۷۱)کښ دي چې کله دوئ جهنم ته اورسیږي نودجهنم دروازې به ورته پرانستې شي.نو﴿إِذَا هُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ﴾یعنی پدې وخت کښ به دوئ دهرقسم خیرنه مایوسه شي اوبعض فرمائی چې داتخویف دنیوي دې اوعذاب نه مراد فتح مکه اوباجنګ بدر دې

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ۭ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ۝٧٨

او الله جل جلاله هغه ذات دی چې پیدا کړیدي ستاسو دپاره غوږونه او سترګې او زړونه. لږ غوندې شکر ادا کوئ تاسو

وَهُوَ الَّذِيْ ذَرَاَكُمْ فِي الْاَرْضِ وَاِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ۝٧٩ وَهُوَ الَّذِيْ

او الله جل جلاله هغه ذات دی چې خواره کړي یئ تاسو په زمکه کښې او خاص هغه ته به تاسو جمع کړی شئ او الله جل جلاله هغه ذات دی

يُحْيٖ وَيُمِيْتُ وَلَهُ اخْتِلَافُ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝٨٠ بَلْ

چې ژوندي کول کوي او مړه کول کوي او خاص دهغه په اختیار کښې دي بدلیدل دشپې اودورځې آیا پس عقل نه لرئ تاسو بلکه

قَالُوْا مِثْلَ مَا قَالَ الْاَوَّلُوْنَ ۝٨١ قَالُوْٓا ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا

دوئ وائی پشان دوینا دمخکنو خلکو دوئ وائی چې آیا کله چې مړه شومونږه او خاوري شومونږ او هډوکي شو آیا مونږ به

لَمَبْعُوْثُوْنَ ۝٨٢ لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَاٰبَاۗؤُنَا هٰذَا مِنْ قَبْلُ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ

دوباره ژوندي کیږو یقیناً وعده کړې شویده مونږسره او دمشرانو زمونږسره دا وعده ده مخکښې راسې، ندي دا مګر د دروغو قصې دي

الْاَوَّلِيْنَ ۝٨٣ قُلْ لِّمَنِ الْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهَآ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝٨٤ سَيَقُوْلُوْنَ

دمخکنو خلکو. ته او ایه د چا په اختیار کښې ده زمکه او هغه څوک چې پدیکښې دي که چیرې تاسو پوهه لرئ نو خامخا به دوئ وائی

لِلّٰهِ ۭ قُلْ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝٨٥ قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ

الله جل جلاله لره اختیاردي او ایه ته آیا پس ولې تاسو نصیحت نه قبلوئ او ایه څوک دي اختیارمند داو (۷) آسمانونو

وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ ۝٨٦ سَيَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ ۭ قُلْ اَفَلَا

او څوک اختیارمند دي دعرش لوئ شان والا، نو خامخا به دوئ وائي الله جل جلاله لره اختیاردي، او ایه ته آیا پس ولې

تَتَّقُوْنَ ۝٨٧ قُلْ مَنْ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ يُجِيْرُ

خان نه ساتئ تاسو دشرک نه ته او ایه د چا په لاس (قدرت) کښې پوره بادشاهي ده هرڅیز ده او هغه پناهي ورکوي ده هرمصیبت نه

وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨٨﴾ سَيَقُولُونَ لِلّٰهِ ۚ

او پناهي نشي ورکيدې دهغه په مقابله کښې کچرې تاسو پوهيږئ خامخا به دوئ اوائي چې الله جل جلاله لره اختيار دې

قُلْ فَأَنّٰى تُسْحَرُونَ ﴿٨٩﴾ بَلْ اَتَيْنٰهُمْ بِالْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿٩٠﴾

نو ته ورته اوايه پس څرنګه اړ ولی شئ تاسو دحق نه بلکه راوړې دې مونږ دوئ ته حق او بیشکه دوئ خامخا دروغ ویني

﴿وَهُوَ الَّذِيْ أَنْشَأَ لَكُمُ﴾ ددې ځائ نه دويمه حصه دسورت شروع کيږي خلاصه ئې په ابتداء دسورت کښې ذکرشويده. نو دا اول دليل عقلي دې، په نفي شرک اعتقادي باندې. او مراد په سمع، ابصار او افئدة سره قوتونه دادراکاتو دی او تقديم دسمع په بصر او افئده باندې ځکه او شو چې دسمع منافع ډيردی او دغه شان منافع دسمع اعلی او اولی دی په نسبت دمنافعو دبصرته ځکه چې څوك دقوت دسمع نه محروم وي نو ده ډيرڅيزونو دادراك نه محروم وي ځکه چې ادراکات دسمع کثيردی په خلاف دقوت بصارت نه، چې دهغې ادراکات قليل او کم دی. ﴿قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ﴾ دهرعضوې شکرادا دې چې دالله جل جلاله په اطاعت کښې صرف کړې شی او دهغه په معصيت کښې استعمال نکړې شي، مثلاً په سترګو سره کائنات ته دعبرت په نظر او کتلې شي، په غوږونو سره دلائل قدرت اووحدانيت واوريدلې شي اوپه زړه اودماغو سره پرې فکر او غور او کړې شي. او په ﴿قَلِيلًا مَّا﴾ کښې "ما" زائده ده، دتاکيد دقلت دپاره ده يعنی ډيرلږ شکرادا کوئ او "قليل" ځکه اوئيلې شوچې کفاروبه اقرار دنعمتونو کولو سره دشرك نه او بعض فرمائی چې قليل په کلام دعربو کښې کله کله په معنی دعدم سره راځي نو مقصد دايت دادې چې تاسو بالکل شکر نه اداکوئ.

﴿وَهُوَ الَّذِيْ ذَرَأَكُمْ﴾ يعنی مختلف اطرافودزمکی کښې ئې ستاسونسلونه خواره کړيدی او بيابه تاسو دقيامت په ورځ بوميدان ته راجمع کړی

﴿وَهُوَ الَّذِيْ يُحْيِ﴾ يعنی انقلابات داحوال دالله جل جلاله په تصرف او قبضه، قدرت کښې دی ﴿وَلَهُ اخْتِلَافُ الَّيْلِ﴾ يعنی شپه بوتلل او ورځ راوستل يا ورځ بوتلل او شپه راوستل او دغه شان شپه اوږدول او ورځ لنډه ول، يا ورځ اوږدول او شپه لنډه ول

﴿بَلْ قَالُوا۟ مِثْلَ ﴾ دا شکوی ده او دا جمله عطف ده په مقدر باندې چې په هغې باندې دلالت ماقبل جملې یعنی استفهام انکاري کړیدي. چې فلم یعقلوا دي یعنی فلم یعقلوا بل قـالوا او ﴿اولون﴾ نه مراد دوئ اباؤ واجدادې چې هغوئ به هم داسې خبرې کولې لکه دې سورت په ایت نمبر (۳۵) کښې تیرشویدی

﴿قَالُوٓا۟ أَءِذَا ﴾ دا تفسیر د ماقبل اجمال دي ﴿لَقَدْ وُعِدْنَا ﴾ یعنی د بعث بعد الموت وعدې د یروخت نه کیږي. زمونږ اباؤاجدادو سره هم شوې وې خو تر اوسه پورې رینښتونې نشوې

﴿قُل لِّمَنِ ٱلْأَرْضُ﴾ دا دویم عقلي دلیل دې او دا علی سبیل الاعتراف من الخصم دي او مقصود اصلي په دې دلیل سره نفی د شرك اعتقادي دي، خو اشاره په دې سره اثبات د حشرونشر (بعث بعد الموت) ته هم کیږي. او دا استدلال په باره د زمکې او د اوسیدونکو د هغې کښې دې، چې د دې زمکې او د دې د اوسیدونکو اکدار څوك دي؟ ﴿إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ جواب د شرط محذوف دې چې فاخبروني دي

﴿سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ﴾ دا اخبار دې د هغوئ د اعتراف او اقرار نه او هرکله چې د دوئ د طرف نه دا اعتراف او اقرار متقین وو. نو د دې وجهې نه الله ﷻ د دوئ د کلام نه اخبار ورکړو ﴿قُلْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ یعنی د دې دلیل نه تاسو وعظ او نصیحت ولې نه اخلئ؟ چې کوم ذات د دې واکدارې دې نو هغه ئې متصرف هم دې او دهغه سره د خدائ په صفاتو کښې څوك شریك هم نیشته دې او دغه شان کوم ذات د دې خالق دې نو هغه د دې مخلوق په فناء او اعادې هم قادر دې، (کشاف، مدارك).

﴿قُلْ مَن رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ ﴾ دا دریم عقلي دې او دا هم علی سبیل الاعتراف من الخصم دې، یعنی دوئ د دې اقرار کوي چې د اوه (۷) اسمانونو او د عرش عظیم رب صرف الله ﷻ دې ﴿قُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾ یعنی د دې اقرار باوجود تاسو د الله ﷻ سره شرك کوئ او د هغه د عذاب نه، نه یریږئ او ځان د شرك نه، نه بچ کوئ؟ (ابن کثیر).

﴿قُلْ مَنۢ بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ ﴾ دا هم دلیل عقلي علی سبیل الاعتراف دې، یعنی مشرکین د دې اقرار هم کوي چې د کائنات هر څیز د الله ﷻ په ملك کښې دې ﴿وَهُوَ يُجِيرُ ﴾ یعنی هغه چاته خوښه شي

نو دهرقسم تکلیفونو او مصائبونه. ورله پناه ورکړي. ﴿وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ﴾ يعنی چه چا ته څه تکليف
رسول او غواړي نو دده په مقابله کښې څوك دچا امداد نشي کولې. ﴿فَأَنَّىٰ تُسْحَرُونَ﴾ يعني ددې
اعتراف او اقرار باوجود تاسو حق ته باطل او باطل ته حق وايئ دا تاسو څرنګه دهوکه کښې
مبتلا يئ. چې دواضح حق نه اعراض کوئ

**فائده** پدې دلائلو کښې احسن ترتيب اختيار کړې شويدی ځکه چې انسانانو ته نزدې زمکه ده نو
اول تپوس په باره دزمکه کښې اوشو .بيا دزمکې نه پورته اسمان او دهغې نه پورته عرش دې
نو دويم تپوس دهغې په باره کښې اوشو او بيا دريم تپوس دټول کائنات دبادشاهئ په باره کښې
اوشو چې هغه دمجموعې داسمان، زمکې وغيرهمانه او چونکه دزمکې دنزديکت دوجهې نه د
هغې سره ياداشت او تذکره زياته مناسبه وه نو ددې وجهې نه په اول دليل باندې تذکره متفرع شوه
او داسمان او عرش دعظمت شان او رفعت دوجهې نه هغې سره تقوىٰ او خوف الهي حاصليدل
زيات مناسب دی نو ددې وجهې نه په دويم دليل کښې تتقون ذکر اوشو او هرکله چې دوئ دالله ﷻ
دعظيم قدرت او بادشاهئ اقرار کولو او دمخلوق دعجز او ضعيف اعتراف ئې کولو نو ددغې اقرار
او اعتراف باوجود بياهم دالله ﷻ سره په ذاتو او صفاتو کښې شريك جوړول انتهائی حماقت او دبې
وقوفئ انتهائی درجه ده نو ځکه په دريم دليل کښې ﴿فَأَنَّىٰ تُسْحَرُونَ﴾ په تعجب سره متفرع شو،
چې تعجب راشي ددوئ په عقلونو باندې.

﴿بَلْ أَتَيْنَاهُم بِالْحَقِّ﴾ دا اضراب دې ددې قول ددوئ نه چې ﴿إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ﴾ دې
يعنی دقرآن مضامين، توحيد، رسالت، او قيامت وغيره دروغ ندی بلکه ددوئ خبرې دروغ دی
چې منکر دبعث دی يا الله ﷻ لره ولد او شريك ثابته وي.

مَا اتَّخَذَ اللَّهُ مِن وَلَدٍ وَمَا كَانَ مَعَهُ مِنْ إِلَٰهٍ إِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍ

ندې نيولې الله ﷻ هيڅ قسم څوئی او نيشته دهغه سره برابر څوك واكدار. ګنې دغه وخت به بيل کړی وو هر اختيارمند

بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ ⑪

هغه مخلوق چې ده پيدا کړی دی او خامخا به زورآور شوی به وې په يو بل باندې پاك دې الله دهغې نقص عيب نه چې دوئ بيانوي

عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۹۲﴾ قُلْ رَّبِّ اِمَّا تُرِيَنِّيْ

عالم دی په هر پټ او ښکاره باندې پس بلند دې دغه ذات د هغې نه چې دوئ ئې ورسره شریک کوي ته اووايه ای ربه خما که چرې ته ښئې

مَا يُوْعَدُوْنَ ﴿۹۳﴾ رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِيْ فِي الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۹۴﴾ وَاِنَّا عَلٰى

ماته هغه عذاب چه دوئ سره ئې وعده کیدې شي ای ربه خما پس مه گرځوې ما په قوم ظالمانو کښې او بېشکه مونږ خامخا په دې چې

اَنْ نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقٰدِرُوْنَ ﴿۹۵﴾ اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ السَّيِّئَةَ

او خایو مونږ تاته هغه عذاب چې دوئ سره ئې وعده کوو خامخا قدرت لرونکي یو دفعه کوه په هغې طریقې سره چه ښائسته ده بدئ لره

نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَصِفُوْنَ ﴿۹۶﴾ وَقُلْ رَّبِّ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ هَمَزٰتِ الشَّيٰطِيْنِ ﴿۹۷﴾

مونږ ښه پوهیږو په هغه خبرو چه دوئ ئې بیانوي او ته اووايه ای ربه خما پناه نیسم په تاسره د وسوسو د شیطانانو نه

وَاَعُوْذُ بِكَ رَبِّ اَنْ يَّحْضُرُوْنِ ﴿۹۸﴾

او پناه نیسم په تا سره ای ربه خما د حاضریدلو د دوئ نه ماته.

﴿مَا اتَّخَذَ اللّٰهُ مِنْ وَّلَدٍ﴾ دا دعوی د سورت ده سره د دلیل نه او ﴿اِذًا لَّذَهَبَ﴾ تالي یعني جزاء ده ځکه چې "اذاً" په تالي او جزا باندې داخلیږي او مقدم (شرط) محذوف دی چې هغه لو کان معه الٰهٌ دې او ﴿لَّذَهَبَ﴾ په معنی د "انفرد" او "میز" سره دي، خلاصه د دلیل دا ده که چرته د الله ﷻ سره به صفاتو د خدائ کښې څوک شریک وې نو هغه شریک به قادر وې په خلق والا لازم به شي عجز او عاجز خو اله نشي جوړې دې، نو خامخا به هغه شریک قادر په خلق وي او د هغه د پاره به بالفعل مخلوق وي، نو دا شریک به خپل مخلوق جدا کوي او ځان ته به ئې مستقل حکومت جوړولو، یعني لذهب کل اله بما خلق، او دا جدائي او مستقل حکومت او خدائ ناممکنه او باطله ده، ځکه چې لازمیږي د دې وجهې نه تحارب او جنګ نو په ﴿وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾ کښې اشاره ده بطلان التالي ته او ملازمه پکښې عادیه ده یعني د بادشاهانو عادت پدې جاري دې چې یو په بل باندې غلبې حاصلولو کوشش کوي او چې کله د دوئ په مینځ کښې جګړه شروع شوې وې نو د انظام مشاهد بلکه د اټول کائنات به درهم برهم شوي وې لیکن پدې نظام مشاهد کښې څه قسم فتور

او نقصان نيشته دي، نو معلومه شوه چې د (۱) يو نه زيات خدايان نيشته دي او الله ﷻ تن. تنها ذات دي او دا دليل په ظاهر كښې حجت اقناعي دي. ځكه چې ملازمه پكښې عقليه نده بلكه عاديه ده ځكه چې استلزام د تحارب بين الملوك عقلا ندي بلكه عادةً دي او دغه شان برهان هم جوړيدلي شي على تقدير، تفصيل ئې په سورة الانبياء كښې تير شويدي ﴿سُبْحَـٰنَ ٱللَّهِ﴾ دا تفريع ده په نتيجې باندې

﴿عَـٰلِمِ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَـٰدَةِ﴾ دا يا بدل دي د لفظ ﴿ٱللَّهِ﴾ نه او يا صفت دي يعني متصرف او مختار د ټولو اشياؤ الله ﷻ دي او په هر غيب باندې عالم هغه دي نو لهذا د هر قسم شرك نه هغه پاك دي.

﴿قُل رَّبِّ إِمَّا تُرِيَنِّى﴾ د دلائلو او تفريعاتو ذكر كولو نه پس اداب د دعا او طريقه د تبليغ تعليم وركولې كيږي او تخويف ته پكښې هم اشاره كيږي، او ﴿إِمَّا﴾ اصل كښې إن ما وو. ما زائده ده د پاره د تاكيد ده او مقصد دا دي چې اى الله ﷻ ته خودوئ نه عذاب خامخا وركونكې ئې يا په دنيا كښې او يا په اخرت كښې خو كچرته دا عذاب په دنيا كښې وي نو ما حفاظت ترينه اوكړې.

﴿رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِى فِى ٱلْقَوْمِ ٱلظَّـٰلِمِينَ﴾ وضع د اسم ظاهر په ځائ د ضمير د پاره د اشعار دي په سبب د عذاب باندې، چې هغه ظلم او شرك دي او نبى پاك ﷺ باوجود د دې چې معصوم وو خو بيا هم هغه ته د دعا غوختلو حكم او تعليم وركول د پاره د اظهار د كمال عبوديت دي، او دغه شان په دې كښې اشاره ده شدت د عذاب ته او دغه شان په دې كښې اشاره ده چې په دنيوي عذاب كښې عام طور باندې عموم او شمول وي لكه په سورة الانفال كښې دي. واتقوا فتنة لاتصيبن الذين ظلموا منكم خاصة او دغه شان دعا په حديث د ترمذي كښې هم د نبى ﷺ نه منقوله ده چې: اذا اردتَّ في النّاس فتنةً فاقبضني اليك غير مفتون.

﴿وَإِنَّا عَلَىٰٓ أَن نُّرِيَكَ﴾ يعني الله ﷻ په دې قادر دي چې ستا په ژوندون كښې په دوئ باندې عذاب راولي ليكن د حكمت د وجهې نه الله ﷻ عذاب مؤخر كوي ځكه چې د الله ﷻ په علم كښې ځنې كسانو ايمان راوړل مقدر دي.

﴿ٱدْفَعْ بِٱلَّتِى﴾ دا طريقه د تبليغ ذكر كيږي. يعني دا مشركين اګرچه ستا د دين او توحيد دعوت په سخت لهجې سره رد كوي خو ته د نرمۍ او حسن اخلاق مظاهره كوه، نو مراد په ﴿بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ﴾

نرمه لهجه او خانسته اخلاق دي او د ﴿اَلسَّيِّئَةَ﴾ نه مراد د کفارو بد اخلاقي او سخته لهجه ده. او دغه شان ﴿بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾ نه مراد عفو. درګزردې او د ﴿اَلسَّيِّئَةَ﴾ نه مراد د کفارو ظلم دی ﴿نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَصِفُونَ﴾ يعنې د دوئ خبرې او کارونه زمونږ په علم کښې دي. مونږ به ورته پوره پوره سزا ورکړو

﴿وَقُل رَّبِّ أَعُوذُ بِكَ﴾ دا د بلې دعا تعليم دې او مراد د ﴿هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ﴾ نه شيطاني وسوسې دی چې د انسانانو په زړونو کښې اچوي چې د هغې په ذريعې سره انسان د الله ﷻ د ذکر نه غافله کړي او د قبول ايمان نه ئې منع کړي او ﴿أَن يَحْضُرُونِ﴾ مقصد دا دې چې شيطان انسان ته په مختلف اوقاتو کښې حاضريږي د هغه په امورو کښې خلل واقع کوي د انسان په زړه کښې تکبر. ريا. غضب او نور اخلاق رذيله پيدا کوي او د ثواب نه ئې محرومه کوي، امام مسلم رحمه الله د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت نقل کړيدې چې رسول الله ﷺ ارشاد او فرمائيلو چې شيطان ستاسو هر کار ته په هر وخت کښې راځي او په هر کار کښې د ګناهونو او بد کارونو وسوسې تاسو ته اچوي نو دې د پاره د دې دعا خصوصي تعليم ورکړې شو. امام ترمذی رحمه الله د عمرو بن شعيب رحمه الله سند سره حديث نقل کړيدې فرمائی چې نبی پاک ﷺ مونږ ته يو څو کلمات خودليدی چې د ګبهراهټ نه د بچ کيدلو د پاره او ده کيدلو په وخت ئې مونږه وايو. هغه کلمات دا دي: بسم الله اعوذ بکلمات الله التامة من غضبه وعقابه وشر عباده ومن همزات الشيطين وان يحضرون او راوي فرمائی چې حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه به دا دعا په خپلو مشرانو اولاد باندې ياده وله او ماشومانو له به ئې اوليکله او په غاړه به ئې ورله واچوله.

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُوْنِ ۙ لَعَلِّيْٓ

د دوئ به انکار کوی تر هغې وخته پورې چې راشي يو تن د دوئ ته مرګ نو وائی به اې ربه خما واپس کړې ما لره. د پاره د دې

اَعْمَلُ صَالِحًا فِيْمَا تَرَكْتُ كَلَّا ؕ اِنَّهَا كَلِمَةٌ

چې عمل او کړم نيک په بدله د هغې کښې چې ما پريخودلې دې او به ونيلې شي، هيچرې دا نه کيږي بيشکه دا يوه خبره ده

هُوَ قَآئِلُهَا ؕ وَمِنْ وَّرَآئِهِمْ بَرْزَخٌ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ۝

چې دې وائي هغې لره او مخې د دوئ نه لويه پرده ده تر هغه ورځ پورې چه دوئ به دوباره ژوندي کولې شي

فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَلَآ أَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ

پس هرکله چې ـوکې اوکړې شي په شپیلۍ کښې پس نه به وي نسبونه په مینځ ددوئ کښې په دغه ورځ

وَلَا يَتَسَآءَلُوْنَ ﴿١٠١﴾ فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهٗ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿١٠٢﴾

اونه به دوئ تپوسونه کولې شي دیوبل نه پس هغه څوك چې درانه شي عملونه دهغه پس دغه کسان هم دوئ کامیاب دي

وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِيْنُهٗ فَأُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا أَنْفُسَهُمْ فِيْ جَهَنَّمَ

او هغه څوك چې سپك وي عملونه د هغه نو داهغه کسان دي چې تاواني کړی ئې دی خانونه خپل په جهنم کښې به وی دوئ

خٰلِدُوْنَ ﴿١٠٣﴾ تَلْفَحُ وُجُوْهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيْهَا كٰلِحُوْنَ ﴿١٠٤﴾

همیشه دپاره. سوزوي به مخونه د دوئ اور او دوئ به په هغې کښې بدشکله وي

﴿حَتّٰٓى إِذَا جَآءَ﴾ داتخویف اخروي دې اودَدې تعلق دَایت نمبر (۹۰) کښې ﴿وَإِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ﴾ سره دي، یعنی دوئ په تکذیب اوغفلت کښې پراته دی اوشرك، کفرکښې مشغوله دی لیکن چې کله به دوئ کښې چاته مرگ راشي اودَخپل اعمالو سزا اونتیجه اوگوري نوبیابه ارمان کوي اوباربار به دنیاته دَواپس کیدلو تمنا اودرخواست کوي دَپاره دَنیك عمل لیکن دَدوئ دادرخواست به نه قبلیږي ﴿رَبِّ ارْجِعُوْنِ﴾ جمع دَپاره دَتعظیم دَمخاطب ده چې الله ﷻ دې، اوځرنگه چې واحد متکلم دَتعظیم دَپاره صیغه دَجمع استعمالیږي نودغه شان دَمخاطب واحد تعظیم دَپاره هم صیغه دَجمعې استعمالیږي اوبعض فرمائی چې مقصود دَجمعې نه تکراردي، لکه څرنگه چې کله کله تثنیې نه تکرارمراد کړې شي لکه: قفانبك من ذكرى حبيب ومنزل، کښې "قفا" (دَیو(۱) قول مطابق) په معنی دَ "قف قف" سره دي، نودغه شان "ارجعون" په معنی دَارجعنی، ارجعنی، ارجعنی سره دې او بعض فرمائی خطاب په اصل کښې ملائکوته دې اوذکردَ "رب" ځکه اوشو چې مستغاث په حقیقت کښې الله ﷻ دي

قرطبي وغیره فرمائی چې داتمنا اودرخواست په کافرپورې ندې مختص، بلکه مؤمن فاسق به هم داتمنا کوي. لکه سورة المنافقون ایت نمبر (۱۰) کښې دی اودغه شان داتمنا به په مختلف اوقاتو کښې وي، په وخت دَمعاینې دَموت کښې به وي لکه پدې سورت اوسورة المنافقون کښې دی،

په عالم برزخ کښې به وي لکه په سورت ابراهیم ایت نمبر (۴۴) کښې دی، په وخت دنشور او حشر کښې به وي لکه سورة الاعراف ایت نمبر (۵۳) کښې دی. په وخت دپیښې درب کښې به وي لکه سورة الانعام ایت نمبر (۲۷) کښې دی. او دغه شان دجهنم په اور کښې به هم دغه چیغې او باسي لکه په سورة فاطر ایت نمبر (۳۷) کښې دی

﴿لَعَلِّيٓ أَعۡمَلُ﴾ "لعلّ" دامید او تردد دپاره ندي. ځکه په دغه وخت کښې به ددوئ عزم دنیک عمل وي نو کلمه دترجي به دوئ تواضعاً استعماله وي، او بعض فرمائي چې دا ترجي په نسبت سره رد الی الدنیا ته ده یعنی زمونږ امید دې چې مونږ دنیاته واپس کړې شو نو مونږ به ضرور نیک عمل کوو. او بعض فرمائي چې دنیک عمل کولو به ددوئ عزم وي خو چونکه دنیاته واپس کیدل او نیک عمل کول دامورو مستقبلونه دی او علم دهغې بغیر دالله ﷻ نه بل چاته نیشته دې نو ددې وجهې نه. یعني دوجهې دعدم تیقن دعلم نه، دوئ خپل کلام کښې به کلمه ترجي استعماله وي او مراد په عمل صالح سره ایمان او طاعات ټول دی او د﴿ترکت﴾نه مراد مال، اولاد او بد اعمال دی چې دوئ په دنیا کښې پریخي وي او یا ترکت په معنی دضیّعتُ سره دې، یعني کوم شی چې ماضائعه کړیدې، چې ایمان او نیك اعمال دی.

﴿كَلَّآۚ إِنَّهَا﴾ "کلا" کلمه ردعه ده او دده درخواست مسترد کیدل او دتمنا جواب دې. چې دنیاته واپسي کیدل او بیا موقعه میلاویدل هرګز نشي کیدلې او "ها" ضمیر راجع دې تمنادده ته، چې ﴿رَبِّ ٱرۡجِعُونِ﴾دې. ﴿هُوَ قَآئِلُهَا﴾ یعنی دحسرت او ندامت دوجهې نه به دې دا تمنا بار بار کوي، خو دا تمنا به نی صرف تمنا پاتې شي او څه فائده به پرې نشي مرتبه ﴿وَمِن وَرَآئِهِم﴾ دا مانع ذکر کیږي دواپس راتلو دپاره یعني دده دنیاته واپس راتلل محال دي ځکه چې اوس خو دې برزخ ته رسیدونکي دي او دعالم برزخ نه عالم دنیاته واپس راتلل نشي کیدې. او برزخ په لغت کښې ددوو (۲) څیزونو په مینځ کښې حائل او مانع ته وئیلی کیږئ او په اصطلاح دشرع کښې هغه مدت ته وئیلې کیږي چې دمرګ نه پس تر دوباره راژوندي کیدلو پورې دې. او بدې عالم کښې اثرات دسزا او انعاماتو بالذات په روح باندې مرتب کیږي او روح یا به علیین کښې وي او یا په سجین کښې وي او دروح په واسطې بدن او اجزاؤ دبدن ته هغه اثرات رسیږي او بدن او دهغې اجزاء او ذرات ئی

محسوسه وي اګرچې دغه بدن خاورې شوې وي یاغرق شوې وي. ځکه چې د روح دَبدن سره تعلق وي او داتعلق کله کله اقوی وي حتی چې هغه بدن باندې ځنې دنیوي احکامات مرتب شي او کله قوي وي. کله ضعیف او کله اضعف وي. لکه څرنګه چې عالم دنیاکښې جزاء او سزا بالذات په بدن باندې مرتبه کیږي او بالواسطه اثرئې په روح کښې ظاهریږي او په اخرت کښې جزاءاو سزا روح او بدن دواړوته بالذات وي، او دَدې وجهې نه په دنیاکښې دَنیك عمل یادَبدعمل جزاء او سزا پوره بدله نده دغه شان په قبرکښې جزاوسزا دَاعمالوپوره بدله نده، بلکه پوره بدله دَاعمالوپه اخرت کښې ده چې روح او بدن دواړوته بالذات میلاویږي. نولهذا دکوم اسلافونه چې منقول دي چې دَبرزخ نه مراددادي چې نه دَاهل دنیاسره وي چې خوراك وڅښاك اوکړي اونه دَاهل اخرت سره وي چې دَاعمالوبدله ورته ورکړې شي نوددینه مراد پوره پوره بدله ورکول دي لکه ابن کثیر رحمه الله داقول دَمحمدبن کعب رحمه الله نه نقل کړیدی چې: البرزخ مابین الدنیاوالاخرة، لیسوا مع اهل الدنیایاکلون و یشربون، ولامع اهل الاخرة یجازون باعمالهم(ابن کثیر) نولهذا دَداسې اقوالونه استدلال کول په نفي دَعذاب قبریاتنعیم قبرباندې غلط دی اوهرکله چې په عالم برزخ کښې دَتعذیب یاتنعیم، بالذات تعلق دَروح سره وي او روح غیرمرئ اوغیرمحسوس شئ وي، نودَدې وجهې نه برزخي زندګي هم غیرمحسوسه زندګی ده. ایمان پرې راوړل ضروري دي.

﴿فَإِذَا نُفِخَ فِي ٱلصُّورِ﴾ داتخویف اخروي دې او دَنفخ نه مراد نفخه ثانیه ده چې په هغې سره به ابتداء دَعالم اخرت کیږي. ﴿فَلَآ أَنسَابَ﴾ دَدینه دَمطلق نسب نفي نده مراد، بلکه نفي دَمنفعت دَنسب ترینه مرادده یعني نسبونه به چاته فائده نشي ورکولې، بلکه هریوکس به دَیوبل نه تختي، لکه په سورة عبس ایت نمبر(۳۵) کښې دی او یاترینه نفي دَتفاخردَنسب ده یعني فخریه نسبونو باندې به نه وي.

﴿وَلَا يَتَسَآءَلُونَ﴾ دددینه یانفي دَسوال تراحم مرادده چې دَیوبل نه به دَرحم سوال نشي کولې دَډیردهشت اودَخوف وجهې نه اویاداچې مواقف اومقامات دَقیامت ډیردی نوپه ځنې مواقفوکښې به پوښتنه اوسوالونه دَیوبل نه، به نشي کولی، اوپه ځنې مواقفوکښې به دَیوبل نه تپوس کولی شي، بهرتقدیردَدې ایت تعارض دَسورة الصّافات دَایت نمبر(۲۷)سره نیشته دي چې هلته دَیوبل نه. دَتپوس کولوذکردې حضرت تهانوي رحمه الله فرمائي چې نفي دَمنفعت دَنسب اونفي

دَتسائل دواړه مختص دي په كفاروپورې. اوهرچې دي مومنان نوهغوئ ته به نسب اوتعلق فائده
وركوي لكه سورة الطور ايت نمبر(۲۱) او په سورة الزخرف ايت نمبر(۶۷) كښې دي اودغه شان
مؤمنان به دَيوبل سره خبرې هم كوي

﴿فَمَن ثَقُلَتْ مَوَٰزِينُهُۥ﴾ دا ابشارت اخروي دې اواضافت دَموازين ضميرته دَپاره دَعهد دې اومراد
ترينه موازين الحسنات دى اوقرينه پرې داورستو مرتبه جمله ﴿فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ﴾ ده. دَدې
ايت مزيده تشريح حضرت والد صاحب نورالله مرقده په سورة الاعراف ايت نمبر(۸) كښې په جامع
اندازسره كړيده.

﴿وَمَنْ خَفَّتْ﴾ دا تخويف اخروي دې ﴿تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ﴾ تخصيص دَوجه دوجهې دَشرافت نه
دې چې دا اشراف الاعضاء ده اوعام طورباندې دَتكليف په وخت كښې خلك دَمخ بچ كولو كوشش
زيات كوي. نوچې مخ دَعذاب نه بچ شي نونوراعضاء به په طريق اولى سره نشي بچ كيدلې

﴿كَٰلِحُونَ﴾ دَدې تفسيرپه حديث دَترمذي وغيره كښې دَنبي ﷺ داسې منقول دې. چې ددوئ
مخونه به په جهنم كښې اوسوزي نوبره شونډه به ئې دَسرترمينځ پورې اورسيږي اولاندې شونډه به
ئې ترنامه پورې به اورسيږي اوغاښونه به ئې ښكاره پاتې شي

أَلَمْ تَكُنْ ءَايَٰتِى تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فَكُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴿١٠٥﴾ قَالُوا۟ رَبَّنَا

آيانه وو اياتونه خماچې لوستلې كيدل په تاسوباندې پس تاسووئ چې دروغجن گڼړل مو هغې لره وائي به دوئ اې ربه زمونږ

غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَآلِّينَ ﴿١٠٦﴾ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا مِنْهَا

غالبه شوې وه په مونږباندې بدبختى زمونږه اومونږووبوډله بې لارې اې ربه زمونږاوباسه مونږه ددې جهنم نه

فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظَٰلِمُونَ ﴿١٠٧﴾ قَالَ ٱخْسَـُٔوا۟ فِيهَا

پس كه چرې واپس شو مونږ گمراهئ ته نوبيشكه مونږبه ظالمان يو اوبه وائي الله ﷻ كوزې شئ اوسيږئ به جهنم كښې

وَلَا تُكَلِّمُونِ ﴿١٠٨﴾ إِنَّهُۥ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِى يَقُولُونَ رَبَّنَآ ءَامَنَّا

اوبيخي خبرې مه كوئ بيشكه وه يوه ډله دَبندگانو زما نه چه وئيل به هغوئ اې ربه زمونږه ايمان راوړې دې مونږ

فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۱۰۹﴾ فَاتَّخَذْتُمُوْهُمْ سِخْرِيًّا

موبخښه اوکړې مونږته اورحم اوکړې په مونږ باندې اوته ئې زيات مهربان د رحم کوونکونه پس نيولي وو تاسو هغوئ لره په تو...

حَتّٰۤى اَنْسَوْكُمْ ذِكْرِيْ وَكُنْتُمْ مِّنْهُمْ تَضْحَكُوْنَ ﴿۱۱۰﴾ اِنِّيْ جَزَيْتُهُمُ الْيَوْمَ

تردې چې غافل ئې کړئ د ياد زمانه اووئ تاسوچې په هغوئ پورې موخندا کوله بيشکه بدله ورکړه ما هغوئ ته نن ورځ

بِمَا صَبَرُوْۤا ۙ اَنَّهُمْ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ قٰلَ كَمْ لَبِثْتُمْ فِي الْاَرْضِ

په وجه د صبر د دوئ چې بيشکه خاص هم دوئ کامياب دي اوبه وائي الله جل جلاله څومره وخت تيرکړو تاسو په زمکه کښې

عَدَدَ سِنِيْنَ ﴿۱۱۲﴾ قَالُوْا لَبِثْنَا يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ فَسْـَٔلِ الْعَآدِّيْنَ ﴿۱۱۳﴾

په شمار د کالونوسره دوئ به اوائي تيره کړيده مونږه يوه ورځ يايوه حصه د ورځ پس تپوس اوکړه د شمارکوونکونه

قٰلَ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا قَلِيْلًا لَّوْ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۱۴﴾

اوبه وائي الله جل جلاله نه دي تيرکړي تاسومگر ډيرکم وخت کچرې تاسو پوهيدلی

﴿اَلَمْ تَكُنْ﴾ دی آياتونوکښې جهنميانوته په مذکورې تمنازجردې چه د جانبه د الله جل جلاله نه ورته زجرا اوئيلې شي، چې ځماایاتونه په تاسوتلاوت کيدلو شونوتاسوبه ئې تکذيب کولو

﴿غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا﴾ د دينه مراد ياشقاوت تقديري دې اوياترينه دنيوي خواهشات مراد دي.

﴿وَكُنَّا قَوْمًا ضَآلِّيْنَ﴾ داوينابه د دوئ اعتذارا نه وي بلکه اقرارا به وي. لکه سورة المؤمن ايت نمبر ۱۱ کښې تصريح ده.

﴿قَالَ اخْسَـُٔوْا فِيْهَا﴾ اخسئوا کلمه د تحقير اوتذليل ده، په عربو کښې د سپي شړلو اوچپ کولو د پاره استعماليږي او ﴿وَلَا تُكَلِّمُوْنِ﴾ مقصد دادې چې تاسود دې قابل نه يئ چې رفع د عذاب يادنياته د واپس کيدلو په باره کښې درخواست اوکړئ. ابن عباس رضی الله عنه نه مروي دی چې جهنميان به په جهنم کښې شپږ قسمه درخواستونه کوي اوهرد رخواست به زر (۱۰۰۰) کاله ورستووي د بل نه، اود ترمذی روايت مطابق د دوئ درخواست اود فرشتي جواب ورکولو مينځ کښې به هم زر (۱۰۰۰) کاله

مدد وي (۱) **اول** درخواست به اوکړي ربنا ابصرنا وسمعنا (السجدة:۱۲) نو دغې په جواب کښ به ورته اوئیلې شي چې حق القول مني (السجدة ۱۳) (۲) **دویم** درخواست به اوکړي چې: ربنا امتنا اثنتین واحییتنا اثنتین فاعترفنا (المؤمن ۱۱) نو دغې په جواب کښ به ورته اوئیلې شي ذلکم بانه اذا دعی الله (المؤمن ۱۲) (۳) **دریم** درخواست به اوکړي یامالك لیقض علینا ربك. دغې په جواب کښ به ورته اوئیلې شي انکم مکثون (الزخرف ۷۷) (۴) **څلورم** درخواست به اوکړي: ربنا اخرنا الی اجل قریب نجب. دغې په جواب کښ به ورته اوئیلې شي اولم تکونوا اقسمتم من قبل (ابراهیم:۴۴) **پنځم** درخواست به اوکړي اخرجنا نعمل صالحا نو دغې په جواب کښ به ورته اوئیلې شي: اولم نعمرکم ما یتذکر فیه (فاطر:۳۷) او **شپږم** درخواست دا مذکور اوکړي چې ﴿ رَبَّنَآ أَخۡرِجۡنَا مِنۡهَا فَإِنۡ عُدۡنَا ﴾، او دې په جواب کښ به ورته دا مذکوره کلام اوکړې شي چې ﴿ٱخۡسَـُٔواْ فِيهَا ﴾ د دینه ورستو به بیا دوئ درخواستونه نشي کولې او په جهنم کښ به د سپو او خرو پشان اوازونه به را اوباسي (اعاذنا الله منها بفضله العظیم).

﴿إِنَّهُۥ كَانَ فَرِيقٌ مِّنۡ عِبَادِي ﴾ حضرت شیخ رحمه الله فرمائي چې دا ادخال الهی دې او علت دې د ما قبل د پاره یعنی تاسو ته دا سزا ځکه درکولې کیږي چې تاسو به په دنیا کښ د دین منونکو خلکو پورې ټوقې، مسخرې او خندا ګانې کولې، نو د ﴿فَرِيقٌ مِّنۡ عِبَادِي ﴾ نه مراد موحدین او د الله تعالی د دین منونکې ضعفاء مسلمانان دی، لکه حضرت بلال رضي الله عنه، خبیب رضي الله عنه، صهیب رضي الله عنه وغیرهم شو (قرطبي) او ﴿سِخۡرِيًّا﴾ مصدر د سخر نه دې او یا ېکښ د مبالغې د پاره ده.

﴿حَتَّىٰٓ أَنسَوۡكُمۡ ذِكۡرِي ﴾ نسبت د انساء مؤمنانو ته کول مجازا دی یعنی په هغوئ پورې ټوقې او مسخرو کولو کښ تاسو دومره مشغوله شوئ چې د دغې شغل د وجهې نه ستاسو نه څما ذکر او عذاب هیر شو

﴿إِنِّي جَزَيۡتُهُمُ ٱلۡيَوۡمَ ﴾ یعنی ستاسو حالت خو دا دې چې د سپو پشان په جهنم کښ پراته یئ او هغه ضعفاء مؤمنان چې تاسو به وریورې خندګانې کولې د هغوئ په ایمان باندې صبر او دینی مشقتونو کښ د تحمل د وجهې نه هغوئ ته پوره پوره بدله میلاؤ شوه او نن ورځ په کامیابئ او خوشحالئ کښ دی

﴿قَٰلَ كَمْ لَبِثْتُمْ﴾ غوره قول دادي چې دا تپوس به دجانبه دالله جل جلاله نه وي په واسطه دملائکو سره اومقصود ددې سوال نه توبیخ وي. او ﴿فِي الْأَرْضِ﴾ نه مراد دنیوي زندګي ده اوبعض فرمائی چې قبرزندګي ترینه مراد ده ځکه چې کفاردفنا دائمي قائله وو. اوبرزخي زندګي قائله نه وو. نوتوبیخا به ترینه داتپوس اوکړې شي لیکن اول قول زیات غوره دې

﴿قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا﴾ دآخرت دتکلیفونو اوسختئ دوجهې نه. به دوئ ته ددنیازندګی ډیره کمه ښکاره شي اودغه شان دقیامت دشدائدو اواهوالو دوجهې نه. به دوئ حواس باخته شي اودنیا والامدت به ورنه هیرشي، اوډیرهیبت اوحیرانتیادوجهې نه به اوائی چې ﴿فَسْئَلِ الْعَادِّينَ﴾ یعنی دشمارکوونکونه تپوس اوکړئ مونږ ته خوهیڅ پته نه لګی، اودینه مراد یاحساب دان خلك دی اویاترینه ملائك مراددی. چې هغوئ دانسانانو اعمالوسره دهغوئ عمرونه هم لیکي

﴿قَٰلَ إِن لَّبِثْتُمْ﴾ "ان" نافیه دي اودآیت مقصد دادی چې دالله جل جلاله دطرف نه به ورته اوئیلې شي چې تاسو په دنیاکښې ډیرلږوخت تیرکړیدې خوتاسو دهغې په قدرنه وئ پوهه شوي اودهغې نه موفائده نه وه اغستې

أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَٰكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا

آیاپس ګمان کړیدې تاسو داچه بیشکه پیداکړی یئ مونږ تاسوبې فائدې اوداچه بیشکه تاسوبه مونږطرف ته

لَا تُرْجَعُونَ ﴿۱۱۵﴾ فَتَعَٰلَى اللَّهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۖ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ ﴿۱۱۶﴾

نشئ راګرځولې. پس بلند دې الله جل جلاله بادشاه دې حق دې نیشته حقداربندګۍ سوا دهغه نه رب دې دعرش عزت مند

وَمَن يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ لَا بُرْهَٰنَ لَهُۥ بِهِۦ

اوچاچه بلنه اوکړه (عبادت ئې اوکړو) دالله جل جلاله سره بل مددګارته نیشته دلیل ده لره په هغې باندې

فَإِنَّمَا حِسَابُهُۥ عِندَ رَبِّهِۦٓ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ الْكَٰفِرُونَ ﴿۱۱۷﴾ وَقُل رَّبِّ اغْفِرْ

پس بیشکه دده پوره حساب درب دده سره دې. بیشکه نشي بچ کیدلې کافران اوآوایه ته اې ربه خمابخښنه اوکړې

وَارْحَمْ وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿١١٨﴾

او رحم او کړې او ته ښې زیات مهربان د رحم کونکو نه

﴿أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا﴾ د ازجر دې منکرینو ته او همزه په مقدر جملې باندې داخل دې او فاء فصیحیه ده نو تقدیر د عبارت داسې دې اغفلتم و تلاهیتم فحسبتم یعنی تاسو په غفلت او بې پرواهئ کښې پراته یئ په دې خیال او ګمان چې تاسو عبث پیدا کړی شوی یئ او عبث وئیلې کیږي هر هغه څیزته چې د فندې نه خالي وي او یا هغه فعل چې مقصد د هغې نه غرض صحیحه نه وي او ﴿عَبَثًا﴾ یا حال دې د ضمیر متکلم نه. په معنی د عابثین سره دې او یا مفعول له دې د خلق د پاره یعنی ستاسو ګمان دا دې چې ستاسو خلق او پیدائش د عبث د پاره شویدې او تاسو به په زندګی تیره ولو کښې مکمل ازادیئ چې احکامات د ثواب و عقاب به په تاسو باندې نه دی مقرر کړي شوي. لکه څرنګه چې بهائم دي

﴿وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ﴾ دا عطف دې په ﴿أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ﴾ باندې او د ﴿أَفَحَسِبْتُمْ﴾ تحت واقع شویدې. یعنی حسبتم انکم الینا لا ترجعون.

﴿فَتَعَالَى اللّٰهُ﴾ دا تفریع په ټول سورت ده او په دې سورت کښې بیان شوی دلائل عقلیه، نقلیه ثمره او نتیجه ده یعنی د ټولو دلائل عقلیو او نقلیو نه دا ثابته شوه چې الله ﷻ لوئ ذات دې. او د هر قسم شریك او د عبث کارونو نه پاك دې ﴿الْمَلِكُ الْحَقُّ﴾ صفت اول دی د الله ﷻ د پاره یعنی حقیقي بادشاه او متصرف صرف الله ﷻ دي ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ صفت ثانی دې یعنی د هغه نه علاوه بل معبود، حاجت روا او مشکل کشا نیشته دې ﴿رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ﴾ دریم صفت دې او الله ﷻ اګر چه د ټولو مخلوقاتو رب دې خو تخصیص د عرش د دې وجه نه او شو چې عرش په ټولو مخلوقاتو باندې احاطه کړیده او د ټولو مخلوقاتو د پاره په منزله د سقف دې او دغه شان اعظم المخلوقات دې نو چې د عرش رب شو د نورو مخلوقاتو په طریق اولی سره رب شو او کریم ورته خکه وئیلې شوي دي چې ده ته لوئ شرافت د نسبت استواد الله ﷻ حاصل دې، او دغه شان دا اعزاز او اکرام ورته هم حاصل دې چې مرکز د تجلیات الهیو دې او ټول رحمتونه او فیوضات د عرش نه نازلیږي او دغه شان کریم په معنی د حسن او خائسته سره د

﴿وَمَن يَدْعُ مَعَ ٱللَّهِ﴾ دا تخویف اخروي دي﴿لَا بُرْهَٰنَ لَهُۥ بِهِۦ﴾ دا صفت لازمه دي دَ ﴿إِلَٰهًا ءَاخَرَ﴾ دَپاره یعني په شرك باندې چاسره څه دلیل هم نیشته دي﴿فَإِنَّمَا حِسَابُهُۥ﴾ دا جزا ده دَشرط دَپاره اوحساب کنایه ده دَبدلې ورکولونه اوبدله په لفظ دَحساب سره ذکرکولو کښې اشاره ده غتو الي دَعذاب اوسزا ته﴿إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلْكَٰفِرُونَ﴾ په دیکښې اجمالاً سزا طرف ته اشاره ده چې دَمشرك دَپاره معافي اودَجهنم نه خلاصی نیشته دي اودَسورت ابتداء په ﴿قَدْ أَفْلَحَ ٱلْمُؤْمِنُونَ﴾ سره شوی وه، او اختتام ئې په ﴿ لَا يُفْلِحُ ٱلْكَٰفِرُونَ﴾ سره اوشونو په دیکښې حسن مناسبت دي دَابتداء دَاختتام سره ﴿وَقُل رَّبِّ ٱغْفِرْ﴾ دا په اخیرکښې دَفلاح اوکامیابۍ دَپاره دَدعا تعلیم ورکولې کیږي چې دَ الله ﷻ نه طلب دَمغفرت اورحمت کوئ اومفعولین دَمغفرت اودرحمت حذف کړې شویدی دَپاره دَشمول اوعموم، نو په مغفرت کښې اشاره ده دفع دَمضرت ته، چې هرقسم مضرت وي اوپه رحمت کښې اشاره ده جلب منفعت ته، چې هرقسم منفعت وي اودغه شان په مغفرت سره تخلیه عن الرزائل ته اشاره ده اوپه رحمت سره تحلیې ته اشاره ده اودَدې وجهې طلب دَمغفرت مقدم کړې شو په طلب درحمت باندې اونبی ﷺ ته حکم دَطلب دَمغفرت کول باوجود دَدې چې نبی ﷺ معصوم دي دا دَپاره دَحصول دَمراتبو دي اودغه شان دَپاره دَدې چې امتیان هم دَنبی ﷺ اقتداء اوکړي.

بغوي روایت نقل کړیدی چې دَحضرت ابن مسعود ﷺ تیریدل په یو ډیرسخت بیمارباندې اوشو نوحضرت ابن مسعود ﷺ دَهغه په غوږکښې دا مذکوراياتونه اوئیل اودهغه ئې پرې دم کړو نوهغه فوراً صحیح شو،نبی ﷺ دَده نه تپوس اوکړو چې تادَدې مریض په غوږکښې څه اوئیل؟ حضرت ابن مسعود ﷺ ورته عرض اوکړو چې مادا(مذکور)اياتونه اوئیل،نبي پاك ﷺ اوفرمائیلو چې خمادې قسم وي په هغه ذات باندې چې دَهغه په قبضه کښې خماروح دي چې یو یقین لرونکې کس دا اياتونه په غرباندې اووانی نوهغه به هم دَځیل ځائې نه لرې کړي، دغه شان ابن السنی دَابراهیم بن حرث نه نقل کړیدی چې نبی ﷺ مونږ په لښکرکښې دَجهاد دَپاره اولیږلو اومونږته ئې حکم اوکړو چې سهاراوماښام دا مذکوراياتونه لولئ مونږبه لوستل،نو الله ﷻ مونږه په سلامتیا سره اومال غنیمت سره واپس کړو.

تم تفسیر سورة المؤمنون بفضل الله وعونه وکرمه (۲۷)ذی الحجة سنة(۱۴۳۳ه)۸ نومبر سنه ۲۰۱۲ء.

| عنوان | د مضامینو فهرست | صفحه |
|---|---|---|

## سورة الكهف

## سوره مریم

## سورة طٰهٰ

## سورة الانبياء

## سورة الحج

## سورة المؤمنون



**تمت بالخير**

**تم فهرس الكتاب بعون الملك الوهاب**

**وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى اله وصحبه وسلم اجمعين برحمتك يا ارحم الراحمين**